بسم الله الرحمن الرحيم

من يرد الله به خيرا يفقهه فى الدين (الحديث)

# الحق الصريح

پښتو شرح

## مشكوٰة المصابيح

تاليف:

فضيلة الشيخ ابو محمد امين الله البشاوري حفظه الله

جمع وترتيب ابو زهير سيف الله غفرله

٦

په دے جلد کښے د درے سوه اولس 317 / ٣١٧ احاديثو تشريح کړے شوے ده

مكتبه محمديه

بيرون گنج گيت منګل مارکيت پېښور

د کتاب نوم ——— الحق الصریح شرح مشکاة المصابیح پښتو: جلد (٦)

د مولف نوم ——— الشیخ العلامه ابو محمد امین الله البشاوری حفظه الله

جمعه وترتیب ——— ابو زهیر سیف الله

تعداد ——— (١١٠٠) نسخې

سنه طباعت ——— اول محرم/١٤٣١ هـ موافق ٢/١٢/٢٠١٠ء

دوهم ځل ١٥ صفر/١٤٣٣

فن ——— الحدیث

اخراج ——— ابو سلمان حضرت محمد موافق ١٠/١/٢٠١٢

ناشر ——— مکتبه محمدیه گنج پېښور

دریم ځل ١٣ ربیع الثانی/١٤٣٥ موافق ١٢/٢/٢٠١٤

## مکتبه محمدیه

بیرون گنج گیټ پهندو روډ منگل مارکیټ پېښور

زیر انتظام : ولی الله موبائل نمبر: 03018828402

**ملاویدو پتی :**

- مکتبة الکتاب والسنة نیو سلطان آباد کراچی 03002615407
- ایوب اسلامی مکتبه عقب قصه خوانی پېښور
- معراج کتب خانه محله جنگی قصه خوانی پېښور
- نوروز کتب خانه صوابی اډه
- مکتبه محمدیه تالاشی چوک جلال آباد ٠٧٨٩٥٣٧٩٢٩

بسم الله الرحمن الرحيم

# ٤٣- باب وجوبها

## د جُمعې د وجوب (يعنی فرضيت) بيان

په اتفاق د علماؤ سره د وجوب نه مراد فرضيت دے۔ په شرح السنه کښې دی : جُمعه په نيز د اکثرو اهل علمو فرض عين ده۔ ۲- او بعض علماء وائي دا فرض کفايه ده۔ ۳- او بعض احناف وائي : د جُمعې په ورځ د جُمعې د مونځ نه ماسوی مونځ هم کيږی چه ماسپښين مونځ اُوکړی ليکن دا خبره خطاء ده۔ د احاديثو خلاف ده۔ بلکه ظاهر د احاديثو دا دے چه دا په هر مسلمان باندے فرض ده کله چه جماعت وی۔ او دا تقريباً د علماؤ په مابين کښې اتفاقی مسئله ده چه جمعه فرض عين ده او چا چه ديته فرض کفايه وئيلے ده نو هغه غلط شويدی لکه دا خبره په کتاب (الرحمة في اختلاف الائمة) کښې نقل شويده۔ علامه عراقیؒ فرمائي:[مَذَاهِبُ الْاَئِمَّةِ الْاَرْبَعَةِ مُتَّفِقَةٌ عَلٰى اَنَّهَا فَرْضُ عَيْنٍ لٰكِنْ بِشُرُوْطٍ يَشْتَرِطُهَا اَهْلُ كُلِّ مَذْهَبٍ] (څلور واړه مذاهب پدے متفق دی چه د جُمعې مونځ فرض عين دے ليکن هر مذهب والا خپل خپل شروط لګوی) او علامه ابن المنذرؒ، علامه ابن العربیؒ، علامه ابن قدامهؒ په المغنی کښې هم دا اجماع نقل کړيده [نيل الاوطار (۳/۲۷٤) الروضة الندية (۱/۱۳۱) طرح التثريب (الفقه على المذاهب الاربعة (۱/٥۸۹) سبل السلام (۱/٥۱) الدراری المضية (۱/۸٦)]

دلائل د وجوب به ئے روستو واضح شی۔

## د جُمعې مونځ کوم وخت فرض شويدے؟

اختلاف دے چه جُمعه کله فرض شويده ؟ دوه قوله دی : (۱) مشهور قول دا دے چه دا په مکه کښې فرض شويده ليکن نبی ﷺ دے طاقتیٔ په وجه نشوه کولے ځکه مقصود په جُمعه کښې اظهار دے او نبی ﷺ به په مکه کښې مونځونه په پټه کول۔ (۲) حافظ ابن حجرؒ فرمائي : اکثر علماء پدے خبره دی چه جُمعه په مدينه کښې فرض شويده۔ **دليل** دا دے چه ددے فرضيت په آيت ﴿ إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ ﴾ سره ثابت دے او آيت مدنی دے۔ مګر د دواړو خبرو محاکمه دا ده چه څوک چه وائي په مکه کښې فرض شويده نو اصل وجوب او

فرضيت ئې په مکه کښې شوې وو، دا وجه وه نبي ﷺ د خپل هجرت نه مخکښې د انصارو د دولسو کسانو يو نقيب أسعد بن زراره انصاريؓ ته او مصعب بن عميرؓ ته حکم کړے وو چې تاسو په مدينه کښې د جمعې مونځ أوکړئ نو دوی په نقيع الخضمات علاقه کښې (چه د مدينې نه يو ميل فاصله باندې علاقه ده، علامه سمهودیؒ وائي : دوه نيم ميله ده (الوفاء٢/٣٥٨) د جُمعې مونځ أوکړو، او حديث کښې راځي کعب بن مالك ﷺ به چه کله د جُمعې اذان واوريدو نو اسعد بن زرارهؓ باندې به ئې ترحُم وئيلو، خوی ترې تپوس أوکړو چه دا ولې وائې ؟ هغه به فرمايل : ځکه دا (اسعدؓ) اول هغه شخص دے چه مونږ ته ئې په حره د بني بياضه کښې په نقيع الخضمات علاقه کښې د جُمعې مونځ کړے۔

او چا چه دا وئيلي چه جُمعه په مدينه کښې فرض شويده نو وجه دا ده چه نبي ﷺ د هجرت نه روستو پخپله په مدينه کښې ادا کړيده ځکه په مکه کښې مجبور وو۔ نو شرائط د جمعې نهٔ وو پوره، او بيا چه کله ئې مدينې ته هجرت أوکړو او قباء ته راغلو هلته ئې مسجد جوړ کړو او په هغې کښې ئې درے ورځے تيرے کړے د يوم الاثنين نه تر يوم الخميس پورے وو (بعض وائي قباء کښې ئې څوارلس ورځے تيرے کړے ليکن صحيح دا ده چه هغې کښې د جُمعې مونځ نهٔ دے معلوم بلکه څلور ورځے ئې تيرے کړې) بيا د هغه ځائے نه مدينې طرفته د جُمعې په ورځ روان شو کله چه د بني سالم بن عوف يو وادی ته راورسيدل نو د جُمعې د مانځه وخت شو نو صحابه کرامؓ ته ئې هلته اول د جُمعې مونځ أوکړو۔ او بيا مدينې ته راغلو۔ (فتح الباری لابن رجب جزء٦/١٤٣) (فتح الباری لابن حجر ١٩٤/٧) الموسوعة الفقهية (١٩٥/٢٨) واعانة الطالبين (٦٢/٢)

**المسئلة الثانية** : د جمعې دپاره شرائط دی، بعض شرعي دی او بعض اجتهادی دی۔ شرعي شرائط يو څو دی (١) يو دا چه بغير د جَمع نه انفراداً نهٔ صحيح کيږی ځکه نبي ﷺ د جُمعې مونځ په جَمع سره کړيدے۔

(٢) دويم شرط : خطبه پکښې ضروری ده، بغير د خطبې نه د جُمعې مونځ نهٔ کيږی او دا راجح او صحيح قول دے۔ (٣) ورځ به ورله خاص وی د جُمعې ورځ به وی بعد الزوال يا قبل الزوال على القولين لکه روستو راځي۔ (٤) سړے به عاقل بالغ وی۔

(٥) سړے به وی زنانه به نهٔ وی ځکه په زنانو باندې واجب نهٔ ده او که حاضره شي نو ورله جائز ده۔ لکه دا په حديث د طارق بن شهابؓ کښې راځي۔ (٦) مقيم به وی، مسافر باندې واجب نهٔ ده۔ په قول د اکثرو علماؤ او که ورته حاضر شي نو ورله پکار ده۔

(٧) ـ حُرَ به وی، غلام به نهٔ وی، ځکه غلام د مولیٰ په خدمت مشغول وی ځکه شارع په

هغه باندې نهٔ ده لازم کړې. (٨) صحيح او سالم به وي په سخت مريض باندې نشته. او دا شرطونه احاديثو کښې راغلي دي او تقريباً د ټول اُمت په نيز اتفاقي دي. صرف ابن حزمؒ وائي په مسافر او غلام باندې هم فرض ده. (المحلي ٥/٤٥)

**اجتهادي شرطونه :** او اجتهادي شرطونه ډير زيات دي هر مذهب والا خپل شرطونه لګولي دي.

## د جمعې مانځه دپاره د مقتديانو په شمير کښې اختلاف :

١ - احناف وائي : درې کسان شرط دي، دوه مقتديان او يو امام (وهو قول ابی يوسف والحسن البصريؒ) يا درې مقتديان او يو امام (وهو قول ابی حنيفةؒ ومحمدؒ) (٢) بعض وائي : دولس کسان به وي او دا قول ماورديؒ د امام زهريؒ او أوزاعيؒ نه ذکر کړې. او دا قول د مالکيه ؤ دې.(٣) بعض وائي : څلويښت کسان به وي او دا قول د امام شافعيؒ دې او يو روايت د امام احمدؒ دې. (٤) بعض وائي : پنځوس به وي، دا د عمر بن عبد العزيزؒ نه نقل دي او دا يو قول د امام احمدؒ دې. (٥) عکرمهٔ وائي : د اُووه کسانو نه به کم نهٔ وي.

(٦) - بعض وائي : دوه کسان به وي لکه د جماعت په شان. او دا قول د ابراهيم نخعيؒ او اهل ظواهرو دې. او همدا قول حق دې. او دا قول د شوکانيؒ دې، او امير صنعانيؒ ديته ترجيح ورکوي، (نيل الاوطار (٣/٢٨٦) والمحلی (٥/٤٨)

او علامه ابن حزمؒ ددې ټولو مذاهبو دپاره دلائل ذکر کړي چه بعض بعيد استدلالات دي او بعض ضعيف روايات دي او بيا ئې په هغې باندې تفصيلي کلام کړې او دا ئې ثابته کړيده چه جُمعه په دوه کسانو هم منعقد کيدې شي.

**دليل** دا دې چه په شريعت کښې هيڅ دليل نهٔ دې موجود په شرط کولو د يو خاص عدد باندې او په ټولو مونځونو کښې په دوه کسانو باندې جماعت صحيح کيږي نو دغه شان په جُمعه کښې به هم په دوه کسانو سره صحيح کيږي. د دواړو ترمينځ هيڅ فرق نشته، او د رسول الله ﷺ نه څه نص ندې راغلي چه جُمعه به نهٔ منعقد کيږي مګر په دومره دومره کسانو.

علامه شوکانيؒ فرمائي : جُمعه کښې معتبر اجتماع ده او دا په يو تن باندې نهٔ حاصليږي او هر چه دوه دي نو کله چه يو د بل سره يو ځائې شي نو اجتماع حاصله شوه او شارع دوه کسانو ته جماعت وئيلې دې [ اَلْاِثْنَانِ فَمَا فَوْقَهُمَا جَمَاعَةٌ اه]

علامه صديق حسن خانؒ او علامه سيد سابقؒ : وئيلي دي چه پدې مخصوص عدد باندې هيڅ دليل نشته بلکه دا د علماؤ آراء دي. او علامه عبد الحقؒ فرمائي : (اِنَّهٗ لَا يَثْبُتُ فِيْ عَدَدٍ

الْجُمُعَةِ حَدِيثٌ) (د جُمعے دپاره د عدد په باره کښې هيڅ حديث نهٔ دے ثابت) او دغه شان خبره علامه سيوطیؒ هم کړيده : [لَمْ يَثْبُتْ فِیْ شَیْءٍ مِنَ الْاَحَادِيْثِ تَعْيِيْنُ عَدَدٍ مَخْصُوْصٍ] (د مخصوص عدد معين کول په هيڅ حديث کښې نهٔ دی ثابت)۔ علامه ابن حزم الظاهریؒ فرمائی : نبی ﷺ مالك بن الحويرثؓ او د هغهٔ ملګری ته وئيلی دی : [إِذَا سَافَرْتُمَا فَأَذِّنَا وَأَقِيْمَا وَلْيَؤُمَّكُمَا أَكْبَرُكُمَا] دلته نبی ﷺ د مانځه په باره کښې دوه کسانو ته د جماعت حکم ورکړو۔ لهذا پدے سره اجتماع حاصله شوه او بل طرفته د الله امر موجود دے ﴿إِذَا نُوْدِیَ لِلصَّلَاةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلٰی ذِكْرِ اللهِ﴾ دا دوه کسانو ته هم شامل دے۔ انتهیٰ۔ او کوم علماء چه څلويښت کسان ذکر کوی نو هغوی وائی په نقيع الخضمات کښې اسعد بن زراره ؓ څلويښت کسانو ته د جُمعے مونځ کړے وو۔ ليکن دا نفی د زيادت او کمی نهٔ کوی۔ او دباقی مذاهبو استدلالات ضعيف دی۔

(راجع لتفصيل الاقوال فتح البارى ٥٠٧/٤) والمحلى (٥/٤٦-٤٩) ونيل الاوطار (٣٨٥/٣) والمرعاة (٤٤٩/٤) والروضة الندية (١٣٢/١) وفقه السنة (٢٦٧/١) والفتح الربانى (٢٩/٦) وفتاوى اللجنة الدائمة (١٧٨/٨) ومجموعة الفتاوى (١٨٧/٢٤)

(٢)- شرط : بعض وائی : امام اعظم او پادشاه او خليفة المسلمين به موجود وی يا به د هغه نائب وی، او د هغه نه بغير د جُمعے مونځ نهٔ کيږی۔ نو پدے شرط باندے هيڅ دليل نشته۔ او دا شرط په ډيرو مواضعو کښې مفقود دے او بيا هم خلق د جُمعے مونځونه کوی۔ او کوم روايت چه خلق پيش کوی (اَرْبَعٌ إِلَی الْوُلَاةِ) (يعنی څلور څيزونه خلفاؤ ته سپارلے شويدی) نو دا حديث نهٔ دے، د حديثو امامانو وئيلی دی چه دا د کلام د نبوت نه نهٔ دے او نهٔ کلام د صحابی دے بلکه دا د حسن بصریؒ کلام دے۔

## طلوع الانوار علی ان الجمعة فی القریٰ والامصار

٣- **شرط : محل اقامة الجمعة** : د جمعے کوم ځائے جائز دے؟۔ نو مصر (ښار) به وی۔ په قُریٰ (کلو او بانډو) کښې نهٔ کيږی او دا قول د احنافو دے۔ بيا د مصر په تعريف کښې مختلف اقوال کوی؛ ○ طحطاوی، کفاية المفتی، رد المحتار او شرح الوقاية (٢٤٠/١) او فتح القدير (٢٤/٢) وغيره کښې وائی : (مَا لَا يَسَعُ اَكْبَرُ مَسَاجِدِهِمْ اَهْلَهٗ مِصْرٌ الخ)

(مصر هغهٔ ځائے دے چه د هغه ځائے اُوسيدونکی په لوئی مسجد کښې نه ځائيږی)۔

○ بعضو ئے دا تعريف کړے چه مصر هغه دے چه هغے دپاره يو امير وی او قاضی وی چه هغه حدود قائموی او تنفيذ د احکامو کوی۔ او ټول حوائج د اُوسيدونکو پکښې پوره کيږی۔ کما فی

شرح الوقایه وغیره. دا تعریف مخکنی قول والا نهٔ غوره کوی ځکه چه په دې باندې دا إعتراض راځی چه ډیر ملکونه اسلامی دی چه په هغې کښې حدود نهٔ قائمیږی او امیران او قاضیان پکښې نهٔ وی. نو آیا هلته به هم د جُمعې مونځ نهٔ کیږی نو ځکه ئې مخکنې تعریف غوره کړیدې. لیکن صاحب د التحقیقات العلی ص (٤٢) فرمائی : دا تفسیر د مصرِ جامع دپاره نهٔ په کتابونو د لغت کښې شته او نهٔ په سنت د رسول الله ﷺ کښې لهذا پدې باندې احتجاج (دلیل نیول) صحیح نهٔ دې انتهیٰ.

○ بعض وائی چه مصر هغهٔ دې چه په هغې کښې لس زره کسان وی. ○ بعض وائی : چه په هغې کښې مسجد او امام او اذان او اقامت وی اگرکه وروکے وی. ○ بعض وائی : دا هغه ځائے دې چه عرف کښې ورته مصر وئیلے شی. ○ بعض وائی دا هغه دې چه جامع وی مختلفو کلو لره. لیکن دې ټولو تعریفونو باندې هیڅ دلیل نشته او د مقادیرو بیان شریعت ته سپارل شویدې د ځان نه اندازې لګول جائز نهٔ دی. احنافو خپله وئیلی دی : [وَالْمَقَادِيْرُ لَا تُعْرَفُ إِلَّا بِالشَّرْعِ] (هدایه، فتح القدیر) او بیا خپله ترې مخالفت کوی.

**د احنافو دلائل: ۱ - دلیل :** علی ﷺ فرمائی :[لَاجُمُعَةَ وَلَا تَشْرِيْقَ إِلَّا فِيْ مِصْرٍ جَامِعٍ أَوْ مَدِيْنَةٍ عَظِيْمَةٍ] [مصنف ابن ابی شیبة (۱۰۱/۲) ومصنف عبد الرزاق (ابوعبید- فتح الباری۲/۴۵۷) وسنده صحیح موقوفاً] (جُمعه او تشریق دا صرف په جامع مصر او غټه ښاریه کښې کیږی)

**الجواب :** دا روایت موقوفاً او مرفوعاً نقل دې لیکن مرفوعاً (لا اصل له) یعنی نهٔ دې ثابت. او موقوفاً د علی ﷺ نه ثابت دې یعنی د هغه قول دې. بعض وائی پدیکښې حارث الاعور ضعیف راوی دې لیکن عبد الرزاق او ابن حزمؒ ددې موقوف کیدل صحیح ګڼړلی دی. او ابوعبیدؒ په صحیح اسناد سره نقل کړے. لیکن دا د علی ﷺ اجتهاد دې ځکه چه پدې باب کښې اجتهاد دپاره مداخلت شته. لهذا دا د راتلونکو مرفوع احادیثو خلاف دې نو دا به حجت نهٔ وی. (نیل الاوطار ۲۸۷/۳)

۲ - دویم دا چه صاحب د کفایة المفتی (۱۹٦/۳) وائی : پدې (لَاجُمُعَةَ) کښې احتمال شته چه نفی د وجوب وی نهٔ نفی د صحت نو بیا د دوی استدلال پدې اثر د علیؓ باندې د دوه وجونه نهٔ صحیح کیږی. ۱ - یو دا چه احناف په کلو او بانډو کښې د جُمعې مونځ ته جائز نهٔ وائی. او حال دا چه پدې اثر کښې که نفی د وجوب شی نو معنیٰ دا ده چه جائز دې خو واجب نهٔ دې. نو استدلال صحیح نهٔ شو.

۲ - دویم دا چه کله احتمال د نفی الصحت راغلو او احتمال د نفی الوجوب راغلو نو استدلال

د دوی صحیح نه شو ځکه دا قانون دے : (اِذَا جَاءَ الْاِحْتِمَالُ بَطَلَ الْاِسْتِدْلَالُ) لهذا په دے نفی کښ نفی د کمال ده یعنی په کلو او باندو کښې جُمعه قائمول افضل نه دی۔

۳- جواب : علیؓ دا خبره ځکه کړے وه چه خوارجو به د علی ﷺ په خلاف ځانله ځانله د جُمعے مونځونه قائمول نو علی ﷺ دا اُووئیل چه جُمعه به صرف په مصر کښې وی، دے دپاره چه رد راشی په هغوی باندے، او د علی ﷺ سره په جُمعه کښې شریك شی۔ لهذا د یو مصلحت په بناء دا حکم شوے دے۔ کما اشار الیه صاحب مطلع الانوار ص (۷۰)

۴- څلورم جواب : دا اثر د نورو آثارو د صحابه کرامؓ خلاف دے لکه د اثر د عمر فاروق او اثر د ابن عمر رضی الله عنهما۔ نو کله چه تعارض بین الآثار راشی نو رجوع به کتاب او سنت ته کولے شی او په کتاب او سنت کښې ادله عامه موجود دی چه هغه دیرش روایات دی چه دلالت کوی چه په قریٔ او باندو کښې د جُمعے مونځ کیږی۔

۵- امام بیهقیؒ په السنن الکبیر (۳/۱۷۹) کښې لیکلی چه د علی ﷺ مراد دا دے چه جُمعه په کلو کښې د هغه چا نه کیږی چه اَهل قرار نه وی او اهل عمُود (خیمو) والا وی۔ نو دوی د یو ځائے نه نقل کیږی بل ځائے ته لهذا په دوی باندے جُمعه نشته او دا خبره د اقوالو د سلفو او د افعالو د هغوی مشابه ده۔ انتهیٰ۔

۶- مونږ تپوس کوو چه د مصر جامع نه څه مراد دے آیا ښت ښت کلی مراد دی او که نه ؟ که ښت کلی مراد وی نو د مکے او مدینے په مابین کښې وړو وړو کلو کښې په زمانه د سلفو کښې او په ربذه کښې په زمانه د عثمان کښې د جُمعے مونځونه شوېدی لکه دا خبره بیهقیؒ ذکر کړیده۔ او ربذه د مدینے د کلو نه یو کلے دے چه د حجاز په لاره باندے ذات عرق ته نزدے دے چه ددے او د مدینے ترمینځ درے ورځے مزل دے۔ (معجم البلدان ۳/۲۳)

۲- دوېم دلیل : دا وائی : حذیفه ﷺ فرمائی : [لَيْسَ عَلٰى اَهْلِ الْقُرٰى جُمُعَةٌ، اِنَّمَا الْجُمُعَةُ عَلٰى اَهْلِ الْاَمْصَارِ، مِثْلَ الْمَدَائِنِ] [ابن ابی شیبة ۲/۱۰۱] (په کلو والو باندے جُمعه نشته بلکه په ښاریو والو ده لکه د مدائن په شان) جواب : دا چه دا اثر ضعیف دے د ابراهیم نخعیؒ او حذیفهؓ ترمینځ انقطاع ده۔ انظر میزان الاعتدال ۱/۷۵)

۲- دارنګه په دے کښې عمر بن عامر السلمی راوی (صَدُوْقٌ لَهٗ اَوْهَامٌ) دے او یحییؒ ورته ضعیف وئیلے دے نو پداسے قسم آثر حجت نشی کیدے۔

۳- دارنګه دا مخالف دے د نورو آثارو او مرفوع احادیثو نه کوم چه روستو راروان دی۔

۳- درېم دلیل : ښت دلیل دا وائی چه کله د صحابه کرامؓ په دور کښې باندے فتح شوے نو

هغوی دا حکم نۀ دے کړے چه منبرونه اُودروی او د جُمعے مونځونه شروع کړی لکه دا خبره ابن الهمامؒ فتح القدیر کښې ذکر کړیده. نو دا دلیل دے چه قُرٰی کښې جُمعه نشته.

**الجواب** : ۱-دا قول باطل دے ځکه چه پدے باره کښې د صحابه کرامؓ اعمال موجود دی لکه چه روستو به راشی. بله دا چه پدے کښې دوی د یو معلول دپاره نفی د یو علت اُوکړه او جائز ده چه د یو معلول دپاره ډیر علتونه وی او په نفی د یو علت سره نفی د معلول نۀ راځی ځکه چه دلته د منبرونو د نۀ اُودرولو دپاره کیدے شی نور علتونه وی چه مثلاً فی الحال خلق په جهاد کښې مصروف وو. ۲- دارنګه د جُمعے دپاره خو دا شرط نۀ دے چه منبرونه به ورله ضرور اُودروی. ۳- دارنګه دا خبره هم یادول پکار دی چه کله یوه مسئله په احادیثو کښې ثابته شی نو بیا د هر صحابیؓ عمل په هغې باندے نقل کول ضروری نۀ دی، لهذا دا ضروری نۀ ده چه مونږ دا خبره ثابته کړو چه دغه صحابه کرامؓ دا منبرونه اُودرولی دی او که نۀ؟ پس د هغې نه چه په مرفوع احادیثو کښې په کلو والو باندے د جُمعے مونځ لازم شویدے.

نور دلائل ئے نشته سوئ ددے نه چه د متشابهاتو نه استدلال کوی او هغه دا چه:

٤- قرآن کریم کښې دی: ﴿ وَذَرُوا الْبَيْعَ ﴾ (بیع شراء پریدئ او جمعے ته راشئ) او بیع خو په بازار کښې وی، نۀ په قُرٰی کښې لهذا په قُرٰی کښې مونځ نۀ دے جائز.

**جواب** : دا استدلال وهمی او بعید دے ځکه چه بیع شراء خو څه مصر پورے خاص نۀ ده، آیا بانډو والا بیع او شراء نۀ کوی څه؟. ○ بله دا چه که دا استدلال صحیح شی نو بیا خو ددے نه دا لازمیږی چه کوم ځائے کښې بیع شراء کیږی هلته به د جُمعے مونځ کیږی نو که څوك په صحراء کښې بیع شراء کوی یا په کشتئ او جهاز کښې سفر کوی او بیع شراء کوی نو هلته به هم د جُمعے مونځ واجب وی!!.

٥- بل دلیل دا وائی چه حدیث کښې دا راغلی دی چه د بحرین په جُوَاثیٰ علاقه کښې به د جُمعے مونځ کیدلو نو که نورو کلو والو باندے واجب وے نو د جُواثیٰ تخصیص به ئے ولې کولے؟.

**جواب** : د مکے د فتح نه مخکښې کلی په درے قسمه وو: ۱- یو هغه وو چه ټولو ایمان راوړے وو. ۲- دویم هغه چه ټول کفار وو. ۳- دریم هغه چه ګډوډ وو، بعض مومنان بعض کفار وو. نو عَوَالی والا او جواثیٰ والا د اول قسم نه وو. دعوالی خلق به مدینے ته راتلل ځکه چه دوی مدینے ته نزدے وو او جُواثیٰ والا لرې وو، نو هغوی به ځائله مونځونه کول. او هرچه کفار وو نو هغوی به په اسلام راوړلو کښې د فتح د مکے انتظار کولو، بیا چه مکه فتح شوه نو نبی ﷺ په حُدَيبيه او حُنَين کښې د جُمعے مونځونه اُوکړل. لکه ددے تفصیل به روستو راشی. او دریم قسم والا

خلق قادر نۀ وو په جمعے باندے ځکه چه خوف وو یا مسجد او امام وغیره نۀ وو معلوم۔

نور متشابهات هم شته خو د هغے نقل کولو ته ضرورت نشته اُوګوره فتاوی الدین الخالص (١٦٨-١٥٥/٦)۔

**القول الثانی** : قول الجمهور : (ائمه ثلاثه وغیرهم) فرمائی : جُمعه په هر ځائے کښې کیږی او مصر ورله شرط نۀ دے، نو په بانډو کښې هم کیږی۔ او خلق لګ وی او که ډیر۔ او دا قول د راتلونکو ډیرو دلائلو په وجه صحیح دے۔

**دلائل** ددے قول دوه قسمه دی، دلائل عامه ٢- او دلائل خاصه۔

دلائل عامه دا دی : ١- **دلیل** : قول الله تعالیٰ : ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ﴾ دا خطاب عام دے د زمکے ټولو مومنانو ته دے، برابره ده که په ښارونو کښې وی او که په کلو او بانډو کښې وی او ددے تخصیص نۀ دے جائز مګر ددے په شان دلیل باندے او هغه نۀ دے موجود۔ او حنفی اصول هم دا دی چه په خبر واحد سره تخصیص د کتاب الله نشی کیدے ځکه دا نسخ د کتاب الله ده، اګرکه دا قاعده غلطه ده لیکن دلته خو احنافو له پرے عمل پکار دے۔ او داسے څه حدیث هم نۀ دے موجود چه هغه پدے آیت کښې تخصیص راولی، او هرچه اثر د علی ﷜ دے نو هغه موقوف دے او په موقوف روایاتو سره نصوص نشی منسوخ کیدے۔ کما فی التحقیقات العلی ص (٣٥)

نو دا آیت کریمه په ټولو امکنه و کښې په ټولو مومنانو باندے د جُمعے په وجوب کښې نص قاطع دے او د مؤمن دپاره صرف دا یو دلیل هم کافی دے۔

٢- **دویم دلیل** : روستو حدیث د طارق بن شهابؓ کښې راځی : [اَلْجُمُعَةُ حَقٌّ وَاجِبٌ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ فِیْ جَمَاعَةٍ إِلَّا أَرْبَعَةً الخ الحدیث : اخرجه ابوداود (٢٨٠/١) وهذا مُرْسَلُ صَحَابِيٍّ فَإِنَّ طَارِقاً رَأَى النَّبِیَّ ﷺ وَلَمْ يَسْمَعْ مِنْهُ كَمَا قَالَ اَبُوْدَاوُدَ وَلٰكِنْ اَخْرَجَهُ الْحَاكِمُ (٢٨٨/١) والبیهقی فی المعرفة (٤٧١/٢) (١٦٧٨) عَنْ طَارِقٍ عَنْ اَبِیْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَزَالَتْ هٰذِهِ الْعِلَّةُ) مَعَ أَنَّهَا لَيْسَتْ عِلَّةً لِأَنَّ الصَّحَابَةَ كُلُّهُمْ عُدُوْلٌ (وَصَحَّحَهُ النَّوَوِيُّ فِی الْمَجموع (٤٨٣/٤) والزیلعی فی نصب الرایة (١٩٩/٢) وابن حجر فی التلخیص (٦٥/٢) وَالزَّبِيْدِیُّ فِیْ إِتْحَافِ السَّادَةِ الْمُتَّقِيْنَ (٢١٧/٣) وَلَهٗ شَوَاهِدُ کما فی المرعاة (٤٥٣/٤) والمجمع (١٧٠/٢) والنیل (١٠٣/٣) وَصَحَّحَهُ الْعَظِيْمُ آبادی فی التحقیقات العُلی (٢٣) والشیخ فی الارواء رقم (٥٩٢) (٥٤/٣)

دا حدیث په خپل عموم سره قوی دلیل دے په وجوب د جُمعه باندے په هر مسلمان، سِوَی د هغۀ نه چه استثناء د هغے نه په احادیثو کښې راغلے ده او باقی ددے عموم تخصیص نشته۔ نو

مسلمانان که په هر ځائے کښې وی خو چه جماعت ئے پوره وی نو په دوی باندے جُمُعه فرض ده۔

۳- **دریم دلیل** : [عَنْ تَمِيْمِ الدَّارِيِّ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ : اَلْجُمُعَةُ وَاجِبَةٌ اِلَّا عَلٰى صَبِيٍّ اَوْ مَمْلُوْكٍ اَوْ مُسَافِرٍ] (بیهقی ۱۸۳/۳) ورواه الطبرانی وزاد فیه : (اَلْمَرْأَةِ وَالْمَرِيْضِ) كما في المجمع (۱۷۰/۲)

دا حديث ضعيف دے په سند کښې ئے الحكم بن عمرو الرعيني دے چه نسائيؒ وغيره ورته ضعيف وئيلے دے او ضرار بن عمرو الملطی متروك دے۔ ليكن دا د مخكنی روايت دپاره شاهد گرځی لکه بيهقیؒ هم دا د مخكنی روايت دپاره شاهد ذكر كړيدے۔

٤- مولی لآل الزبير د نبی ﷺ نه ارشاد نقل كوی : [اِنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ : اَلْجُمُعَةُ وَاجِبَةٌ عَلٰى كُلِّ حَالِمٍ اِلَّا عَلٰى اَرْبَعَةٍ : عَلَى الصَّبِيِّ، وَالْمَمْلُوْكِ، وَالْمَرْأَةِ وَالْمَرِيْضِ) (البيهقی (۱۸۳/۳)

(د جُمعے مونځ په هر بالغ باندے واجب دے سوئ د څلورو نه، په ماشوم، په غلام، په ښځه او په مريض نهٔ دے واجب) -- مولی د آل الزبير مجهول دے مگر ممكن ده چه دا صحابی وی۔ (ارواء الغليل ۲۵٦/۳) او كه صحابی نهٔ هم وی بيا هم د احنافو په نيز مجاهيل د قرون ثلاثه ؤ مقبول دی۔ نو دا حديث په احنافو باندے پوره رد گرځی۔

۵- **دليل** : د حفصه رضی الله عنها نه مرفوعاً نقل دی : (رَوَاحُ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلٰى مُحْتَلِمٍ) (نسائی - بسند صحيح) (جُمعے ته تلل په هر بالغ باندے واجب دی) ددے حديث رجال صحيح دی سوی د عياش بن عياش نه چه هغه ته صرف عِجْلیؒ ثقه وئيلے دے ليكن تائيد ئے په حديث د جابرؓ كښې موجود دے چه هغه بيهقی (۱۸۳/۳) كښې راغلے دے او شيخ البانیؒ ورته په صحيح النسائی (۲۹۷/۱) رقم (۱۲۹۹) كښې صحيح وئيلے دے۔

٦- دارنگه د جُمعے د ترك په باره كښې چه د وعيد كوم احاديث راغلی دی هغه هم دليل دے د وجوب د جُمعے په هر چا باندے ځكه چه په هغے كښې عام الفاظ دی چه هر چا ته شامل دی۔ لكه هغه روايات بعض روستو رازروان دی۔ (مَنْ تَرَكَ ثَلَاثَ جُمَعٍ الخ) (لَيَنْتَهِيَنَّ اَقْوَامٌ عَنْ وَدْعِهِمُ الْجَمَاعَاتِ) (وَيَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى قَلْبِهِ) الفاظ دی۔ نو دا دليل دے چه جُمعه پريخودل د كبائرو نه دی او سبب د نفاق دے او ددے نه هيڅوك بَدَوِی وغيره مستثنیٰ نهٔ دے۔

۷- مخكښې باب كښې حديث تير شو : [ثُمَّ هٰذَا يَوْمُهُمُ الَّذِىْ فُرِضَ عَلَيْهِمْ يَعْنِىْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَاخْتَلَفُوْا فَهَدَانَا اللّٰهُ لَهُ الحديث] دا حديث دليل دے چه جُمعه د اسلام د شعائرو نه ده نو څوك چه د جُمعے مونځ نهٔ كوی هغوی به د يهود او نصاراؤ نه په دے ورځ په څهٔ جدا كيږی؟۔ د جدائی سبب خو دا دے چه مسلمان د جُمعے مونځ كوی او يهود او نصاریٰ ئے نهٔ كوی۔

اودے حديث كښې فكر اُوكړه تا ته به خپله پته اُولگی چه جُمعه په هر ځائے كښې واجب ده۔ او

ددې شعيرې إظهار په هر ځائې کښې پکار دې چه د يهود او نصاراو نه پوره إمتياز راشي۔ نو څوك چه د جُمعې مونځ نهٔ کوی هغهٔ د يهود او نصاراو سره مشابه کيږی۔

۸- حديث د ابن عمرؓ کښې دی : [كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُوْلٌ عَنْ رَعِيَّتِهٖ] (بخاری ۱/ ۱۲۲)

دا حديث په خپل عموم سره قوی دليل دې چه جُمعه په هر چا لازم ده ځکه څوك چه د جُمعې په اقامت باندې قادر وی او بيا هم هغه نهٔ قائموی نو د هغه نه به د قيامت په ورځ تپوس کيږی۔

۹- صحيح ابن خزيمه (۱۷۳۲) کښې په اسناد حسن سره حديث راځی چه څوك د جُمعې مونځ أوكړی نو د مخکنی جمعې پورې ئې گناهونه معاف کيږی الحديث ۔ نو څوك چه دا وائی چه جمعه په کلو او بانډو والو نشته نو ددې لوئې خير نه ئې بغير د څهٔ دليل نه محرومه کړل۔

۱۰- روستو راځی : [عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مَرْفُوْعًا : يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ ! إِنَّ هٰذَا يَوْمٌ جَعَلَهُ اللّٰهُ عِيْدًا] (ابن ماجه المشكاة (۱/ ۱۲۲) (اې مسلمانانو دا ورځ (جمعه) الله ستاسو دپاره اختر گرځولې دې) دا دليل دې چه د ټولو مسلمانانو دپاره ورځ د جُمعې اختر دې ددې نه اهل القرئ نهٔ دی مستثنیٰ۔

**ادله خاصه : ۱۱- دليل :** [عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : إِنَّ أَوَّلَ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ بَعْدَ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ فِيْ مَسْجِدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ - فِيْ مَسْجِدِ عَبْدِ الْقَيْسِ بِجُوَاثٰى مِنَ الْبَحْرَيْنِ] (بخاری ۱/ ۱۲۲) او په روايت د ابوداود کښې دی :(قَرْيَةٌ مِنْ قُرَى الْبَحْرَيْنِ)

(يعنی اوله جُمعه چه د رسول الله ﷺ د مسجد نه پس شويده نو هغه جُمعه ده چه په مسجد د عبد القيس په جواثیٰ کښې شويده چه دا د بحرين د کلو نه يو کلې (بانډه) ده۔

دا حديث صريح دليل دې چه جُوَاثیٰ يوه بانډه ده او په دې کښې د جُمعې مونځ شويدې اودا په امر د رسول الله ﷺ شويدې ځکه چه د صحابه کرامؓ دا عادت وو چه هغوی د نبی ﷺ نه په أمور شرعيه وُ کښې استقلاليت نهٔ کولو۔ بله دا چه دا کار د وحی د نزول په زمانه کښې شويدې،که دا کار غلط وې نو نبی ﷺ ته به وحی شوې وې او دغه صحابه کرام به ئې ددې کار نه منع کړی وې۔ ځکه دا زمانه د نزول الوحی وه نو دا خبره د بخاری د حاشيې والا صحيح نهٔ ده چه وائی شايد نبی ﷺ به د دوی په حال خبر نهٔ وی۔

**جواب :** ﴿ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا ﴾ الله خو خبر دار دې۔

او پدې حديث کښې پخپله دا راغلل چه جُوَاثیٰ يوه قريه ده لهٰذا دا د بکرۍ وغيره د وينا نه غوره دې چه هغه وائی جُوَاثیٰ يوه مدينه ده۔ ځکه کوم شې چه په نفس حديث کښې ثابت شی هغه غوره وی د هغه نه چه بل څوك ئې أووائی۔ يا دا احتمال شته چه اوله کښې قريه وی او بيا روستو مدينه گرزيدلې وی۔ خو علیٰ کل حال دا مونځ په قريه کښې شويدې۔ اودا حديث دليل

دی چه عبد القیس قبیلـه پـه تولو قبیلو کښ اول سبقیت اسلام ته کړے وو۔ نو دوی به خپلو باندو کښ د جُمعے مونځونه کول او باقی کلو والو لا ایمان نهٔ وو راوړے۔ کما مرّ۔ (فتح الباری)۔
او صاحب د مطلع الانوار الحنفیؒ وائی : ما د یو جید عالم نه واوریدل چه جوائیٰ لا تر اوسه پورے مصر (ښار) نهٔ دے گرزیدلے ځکه چه دا ما په خپلو سترگو لیدلے ده۔ مطلع الانوار ص (٦٦)۔
**سوال** : بعض وائی : مکے او مدینے ته هم قریه وائی ؟ **جواب** : د اطلاق په وجه یو شے د خپل اصـل نـه نـهٔ وزی۔ ځکه که جُواثا ته هر نوم ورکړے خو حقیقت ئے د باندے دے او تعریف د مصر پرے نـهٔ صـادقیږی بلکه بحرین تولے باندے دی، سوی د دریے ځایونو نه چه هغه ښاریئے دی ۱- هفوف، ۲- قطیف، ۳- هَجَر، او جواثا د هغے نه نهٔ ده بلکه دا بانده ده۔
**۱۲- کعب بن مالك** ﷺ پـه چه کله د جُمعے د ورځے اذان واوریدلو نو په اَسعد بن زُرَارَه ﷺ به ئے تـرحم وئیلو (نو عبد الرحمنؒ فرمائی) ما ورتـه اُووئیل : کله چه ته د جُمعے اذان واورے نو په اَسعد بـن زراره بـانـدے تـرحم وے (دا څه وجه ده ؟) هغه اُوفرمایل : پدے وجه چه دا اول هغه شخص دے چه مونږ ته ئے په هزم النبیت کښ په نقیع علاقه کښ چه هغے ته نقیع الخضمات وائی د جُمُعے مونځ کریدے۔ ما اُووئیل : تاسو په دغه وخت څو مره وئ ؟ هغه اُوفرمایل : څلویښت کسان وو۔
(ابوداود ۱/۱۹۹) والـدارقطنی (۲/۵) والحـاکـم (۱/۱۸۱) والبیهقی (۳/۱۷٦) وابن حبان فی صحیحه (٥/٤٧٧) (٧٠١٣) وابن ماجه (۱/٣٤٤) وغیرهم) و اسناده حسن کما فی الارواء رقم (٦٠٠) وقوّاه شعیب الارناووط فی تعلیق صحیح ابن حبان وقال الحافظ : اسناده حسن (التلخیص الحبیر ۲/٥٦) ووصححه الحاکم ووافقه الذهبی وصححه الزیلعی فی نصب الرایة (۲/۱۹۸) وحسنه البیهقی (۳/۱۷۷)
نو دا حدیث صریح او قوی نص دے چه په قُرئ (کلو) کښ د جُمعے مونځ پکار دے۔ ځکه نقیع الخضمات مصر نهٔ وو۔ او په هغے باندے د مصر تعریف هم صادق نهٔ راځی۔
**۱۳- دلیل** : عـلامـه ابـن حزمؒ او مـؤلف د مـطلع الانوار ص (٦٨) وائی چه مدینه نبویه هم د هجرت پـه وخت کـښ ښاریه نهٔ وه بلکه په هغه وخت کښ بانده وه چه په هغے باندے د مصر تـعـریـفـات نـهٔ صادقیږی ځکه په هغے کښ بازار نهٔ وو، نهٔ پکښ کوڅے وے او نهٔ پکښ قاضی او مـفتـی او امام او اکبر المساجد وغیره وو او نهٔ ئے کورونه متصل وو) او ددے په بانده والی باندے دلیل دا دے چه بخاری کښ راځی : په کورونو کښ د بیت الخلاء جوړولو نه مخکښ به د مدینے زنانه د قضاء حاجت دپاره د شپے بهر راوتلے بلکه د هغوی حال داسے وو لکه د پخوانو عربو ځکه وتـل د زنـانـو بهـر تـه د قـضـاء حاجت دپاره منافی دی د مصر کیدو سره۔ او دا کار تر اُووم هجرت پورے کیدو لکـه چـه دا خبـره پـه غـزوه د مُرَیْسیع کـښ پـه حدیث الافك کښ راغلے ده

(بخاري٢/٥٩٥) (المحلى٦/١٤٨)

صاحب د مطلع وائي : هركله چه د مدينې داسې حال دې او پدې حال كښې هم مصعب بن عميرؓ د نبي ﷺ په اجازت د دولسو كسانو سره د جُمعې مونځ اُوكړو او أسعد بن زرارهؓ په بله پيره كښې په حره د بني بياضه كښې د څلويښت كسانو سره جُمعه قائمه كړه. او بيا نبي ﷺ پخپله په بني سالم بن عوف كښې د سلو (۱۰۰) كسانو سره قائمه كړه او ددې نه پس ئې د كور خواته په بني مالك بن النجار كښې قائمه كړه او مدينه په دغه وخت كښې واړه واړه مختلف كلي وو روستو بيا متصل كلي شو. بيا نبي ﷺ د هغوي د اُوسيدونكو دپاره يو بازار متعين كړو او مساجد ئې پكښې جوړ كړل او خلقو ته ئې ترغيب وركړو چه مسجد نبوي ته حاضري وركوئ او په سخت ضرورت كښې به خلقو په راتلو كښې د يو بل سره نوبت كولو. الى آخر ما قال. وانظر وفاء الوفاء (٥٣٩/٢) للسهموديؒ والرحيق المختوم)

١٤- **دليل** : ابو هريره ﷺ فرمائي : خلقو (د بحرين نه) عمر فاروق ﷺ ته خط اُوليږلو چه د هغه نه ئې د جُمعې متعلق تپوس كولو نو عمرؓ ورته جواب كښې اُوليكل : [أَنْ جَمِّعُوْا حَيْثُ كُنْتُمْ] (ابن ابى شيبة١/١٠١) (نيل ٣/٢٨٧) (د جُمعې مونځ هرځائې كوئ) امام احمدؒ په مسائل المروزي كښې ورسره دا زيات ذكر كړيدي چه اوله جُمعه چه په مدينه كښې شويده نو هغه مصعب بن عميرؓ كړيده چه خلق ئې راجمع كړل او هغوي له ئې ګډ ذبح كړو نو د هغوي كافي شو او هغوي څلويښت كسان وو او هلته څه احكام نافذ نۀ وو. او عبد الرزاق (٣/١٦٠) د امام زهريؒ نه نقل كړيدي چه مصعب بن عميرؓ دا جُمعه د نبي ﷺ په امر كړې وه. (كما فتح البارى ٢/٣٠٣) والمعرفة (٢/٤٦٧) والسلسلة الضعيفة رقم (٩١٧)

امام شافعيؒ ددې حديث دا معنى كوي : ((په هر كلي كښې چه تاسو يئ نو د جُمعې مونځ كوئ، ځكه د دوي پاتې كيدل په بحرين كښې په كلو كښې وو او غرض ئې دا دې چه ابو هريرهؓ عمرؓ ته د بحرين نه خط ليكلې وو)).

١٥- **دليل** : امام مالك رحمه الله فرمائي :[كَانَ أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ ﷺ فِيْ هٰذِهِ الْمِيَاهِ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِيْنَةِ يُجَمِّعُوْنَ] ابن ابى شيبة ٢/١٠٢) باسناد صحيح الى مالك)

(د رسول الله ﷺ صحابه كرامؓ به د مكې او مدينې ترمينځ چينو (خواكښې) د جُمعې مونځونه كول) او دا چينې په ښارونو كښې نۀ وې بلكه دا تول كلي او باندې وې. او پدې حديث كښې د صحابه كرامؓ د عمل نه اخبار دې. او دا قصه مشهوره ده.

١٦- **دليل** : جعفر بن برقان وائي : [كَتَبَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ إِلٰى عَدِيِّ بْنِ عَدِيٍّ : أَيُّمَا أَهْلِ قَرْيَةٍ

لَیْسُوا بِاَهْلِ عَمُوْدٍ، یَنْتَقِلُوْنَ فَاَمِّرْ عَلَیْهِمْ اَمِیْرًا یُجَمِّعُ بِهِمْ] (ابن ابی شیبة ۱۰۲/۲) (عمر بن عبد العزیزؒ، خپل والی (گورنر) عدی بن عدیؒ ته اُولیکل چه کوم کلی والا چه د خیمو والا (یعنی مسافر) نهٔ وی چه نقل کیږی رانقل کیږی نو هغوی باندے امیر مقرر کړه چه هغوی ته د جُمعے مونځ کوی) او په هغه زمانه کښې به امیر د مسجد امام هم وو۔ نو اُوګوره عمر بن عبد العزیزؒ چه خلیفه راشد دے په کلو کښې په جُمعے باندے اَمر کوی په حضور د مسلمانانو کښې او هیڅوک هم پرے دا رد نهٔ کوی چه په کلو کښې خو مونځ نهٔ کیږی نو دا دلیل دے چه د جُمعے د قائمولو دپاره د هغوی په نیز دغه شروط نهٔ وو کوم چه فقهاؤ مقرر کړیدی۔

۱۷- **دلیل** : [اِنَّ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِیْزِ کَتَبَ اِلٰی اَهْلِ الْمِیَاهِ بَیْنَ مَکَّةَ وَالْمَدِیْنَةِ : اَنْ جَمِّعُوْا] (عبد الرزاق ۱٦۹/۳) (عمر بن عبد العزیزؒ هغه بانډو والو ته چه د مکے او مدینے ترمینځ وو- اُولیکل چه د جُمعے مونځونه اُوکړئ) او ددے روایت نور ډیر شواهد دی لهذا د جعفر او عمرؓ ترمینځ انقطاع ضرر نهٔ ورکوی۔ انظر اعلاء السنن (٤٧/٨)۔

۱۸- **دلیل**: ولید بن مسلمؒ وائی : ما د لیث بن سعدؒ نه (د جُمعے متعلق) تپوس اُوکړو؟ هغه اُوفرمایل: [کُلُّ مَدِیْنَةٍ اَوْ قَرْیَةٍ فِیْهَا جَمَاعَةٌ اُمِرُوْا بِالْجُمُعَةِ، فَاِنَّ اَهْلَ مِصْرَ وَسَوَاحِلِهَا کَانُوْا یُجَمِّعُوْنَ الْجُمُعَةَ عَلٰی عَهْدِ عُمَرَ وَعُثْمَانَ بِاَمْرِهِمَا وَفِیْهَا رِجَالٌ مِنَ الصَّحَابَةِ] [البیهقی فی السنن ۱۷۸/۳) والمعرفة (٤٦٦/٢) وفتح الباری (۳۰۳/۲) نیل الاوطار (۲۸۷/۳)

(هره ښاریه یا کلے چه په هغے کښې جَمع کیږی نو هغوی ته حکم د جُمعے هم شویدے (دلیل : ځکه مصر او د هغے اطراف والو به د عمرؓ او عثمانؓ په دور کښې د هغوی په حکم سره د جُمعے مونځونه کول او په هغه علاقو کښې به صحابه کرامؓ هم موجود وو)۔

۱۹- **دلیل** : عبد الله بن عمر ﷺ به د مکے او مدینے په مابین کښې اهل المیاه (بانډو والا) لیدل چه د جُمعے مونځونه به ئے کول او په هغوی به ئے هیڅ عیب نهٔ وئیلو۔

[عبد الرزاق ۱۷۰/۳) کما فی الفتح (۳۰۳/۲) والتلخیص الحبیر (٥٤/٢) واسناده صحیح کما قال الحافظ والشوکانی فی النیل [۲۸۷/۳]

نو دا صریح دلیل دے چه جُمعه په کلو او بانډو کښې د صحابه کرامؓ په دور کښې مشهوره وه۔

۲۰- صاحب د مطلع الانوار وائی : د هغه کلو نه چه رسول الله ﷺ په کښې ابتداء د هجرت کښې د جُمعے مونځ کړے وو او هغه حدیث زمونږ اسلافو (احنافو) ته نه دے رسیدلے هغه د بنی سالم بن عوف کلے دے چه دے کښې نبی ﷺ د جُمعے مونځ اُوکړو او دا د مدینے نه دوه نیم میله فاصله کښې دے۔ (وفاء الوفاء ۳۲/۲) للسمهودی ومطلع الانوار ص (٦٤)

**۲۱- الجمعة في حنين :** ابوداود (۱۵۸/۱) باب الجمعة في اليوم المطير كښې د ابو المليح عن ابيه روايت راوړے : چه د حنين ورځ باراني وه نو نبي ﷺ يو آواز كونكي ته حكم اُوكړو چه داسې اُووائي : [اَلصَّلَاةُ فِي الرِّحَالِ] (مونځونه په خپلو خيمو كښې اُوكړئ) او ابو المليح وائي دا د جمعې ورځ وه۔ صحيح ابي داود (۱۰۵۷)۔

نو كه باران نۀ وے دوي به په ميدان د حُنين كښې د جُمعې مونځ كولے۔ لكه دا معنىٰ ابوداودؒ فهم كړيده او پدے حديث باندے ئې دا باب لګولے دے (بَابُ الْجُمُعَةِ فِي الْيَوْمِ الْمَطِيرِ) او حُنين د مكے نه دولس ميله جدا دے۔ او دا كلئ د مكے د فتح نه روستو كړيدے۔ نو دا واضح دليل دے چه په قرئ او بانډو كښې د جُمعې مونځ ہے شكه لازم دے۔ او مُسافر باندے د جُمعې مونځ نۀ وي ليكن كله چه ورسره مقيم خلق وي نو بيا به ئې كوي او دلته همدغه شان وه۔

**۲۲- الجمعة في الحديبية :** ابوداود (۱۵۹/۱ رقم : ۱۰۵۹) باسناد صحيح د ابو المليح عن ابيه روايت نقل كوي چه دا په زمانه د حُديبيه كښې د جُمعې په ورځ د نبي ﷺ سره حاضر وو او خلقو باندے باران اُوشو، چه د خپلو لاندے طرف ئې نۀ وو لوند كړے (يعني كم باران وو) نو نبي ﷺ دوي ته حكم اُوكړو چه په خپلو (خيمو) كورونو كښې مونځ اُوكړي۔

دا هم دليل دے چه كه باران نۀ وے نو نبي ﷺ به د جُمعې مونځ په ميدان كښې كولے او حُدَيْبِيَه د مكے نه شپږ ميله فاصله وراندے ده۔ او حُدَيبيه د امام محمدؒ په نزد كلے دے او د مكے نه خارج دے او د مكے د فناء نه حساب نۀ دے۔ كما في الهداية (۱۶۸/۱)

بلـه دا چه دا ځـكه د مكے د فناء نه نۀ دے چه مكه په هغه زمانه كښې دار الحرب وو نو د هغے فناء څنګه جوړيدے شي؟۔

**۲۳- دليل :** بخاري (۱۲۳/۱) تعليقاً د انس بن مالكؓ نه نقل كوي : [وَكَانَ أَنَسٌ فِي قَصْرِهِ أَحْيَانًا يُجَمِّعُ وَأَحْيَانًا لَا يُجَمِّعُ، وَهُوَ بِالزَّاوِيَةِ عَلَى فَرْسَخَيْنِ يَعْنِي مِنَ الْبَصْرَةِ] [وَصَلَهُ ابْنُ أَبِي شَيْبَةَ] (يعنى انس بن مالك ؓ به په خپله بنګله (علاقه) كښې كله د جُمعې مونځ كولو او كله به ئې نۀ كولو او هغه په زاويه علاقه كښې وو چه د بَصرے نه دوه فرسخه (شپږ ميله) وراندے ده)۔

دا واضح دليل دے چه جُمعه په كلو كښې هم واجب ده لكه څنګه چه په ښاريو كښې واجب ده۔ او پدے روايت مطلب دا دے چه كله به انس بن مالكؓ په خپله علاقه كښې وو نو جُمعه به ئې كوله او كله به بصرے ته د جُمعې مانځه ته راتلو۔ لكه دا خبره په مصنف عبد الرزاق او فتح الباري (۳۰۳/۲) او عمدة القاري (۷۶/۱۰) او تغليق التعليق (۲۶۹/۱) د ابن حجر عسقلانيؒ كښې ذكر شويده۔

۲٤- صاحب د مطلع الانوار ص (٦٣) وائي : دا خبره ياده کړه چه د مدينې په کلو جُمعه دير کرت ثابته شويده۔ اول : د يهودو په مقابله کښې قائمه شويده چه د هغې تعداد نۀ دے معلوم او ځائې د قائمولو ئے هم نۀ دے معلوم، او دا زمونږ دپاره پوره حجت نۀ دے ځکه چه دا د نبی ﷺ په امر باندے نۀ وه قائمه شوې (ليکن صحيح دا ده چه دا د وحی په زمانه کښې قائمه شويده او رد پرے نۀ دے راغلے نو دا سنت تقريری سره ثابته ده۔ ابوزهير)

دويم : مصعب بن عميرؓ د دولسو کسانو سره د جُمعے مونځ کړيدے چه د هغې ځائې يقيناً نۀ دے معلوم لکه دا په حديث د دارقطنی کښې راغلی دی، ابن عباسؓ فرمائی : نبی ﷺ مصعب بن عميرؓ ته اُوليکل چه خلقو ته د جُمعے مونځ اُوکړی نو هغه ورته د جُمعے مونځ اُوکړو او دوی دولس کسان وو۔ (ليکن دا روايت په البداية والنهاية (۳/۱۸۵) او وفاء الوفاء (۱/۱۵۹) کښې دے) او دريم اسعد بن زراره ﷺ د نورلسو کسانو سره د جُمعے مونځ کړے وو په يو کلی کښې چه د مدينے نه بهر وو چه د هغه کلی نوم نۀ دے معلوم۔ لکه امام سرخسیؒ دا خبره په المبسوط (۲/۲۵) کښې کړيده۔ څلورم په قريه د بنی بياضه کښې په نقيع الخضمات کښې۔ انتهیٰ۔ او دا تولے باندے دی۔

۲۵- امام سرخسیؒ په المبسوط (۲/۲۵) کښې ليکی :[إِنَّ مُصْعَبَ بْنَ عُمَيْرٍ أَقَامَ الْجُمُعَةَ بِالْحُدَيْبِيَةِ مَعَ اثْنَيْ عَشَرَ رَجُلاً] (مطلع الانوار ص ٦٩) (مصعب بن عميرؓ په حُديبيه کښې د ۱۰ لسو کسانو سره د جُمعے مونځ کړے وو) او حُديبيه په هغه زمانه کښې بانډه وه۔

۲٦- **عقلی دليل** : په هر ځائے کښې د جُمعے قائمولو کښې خير شته او شر پکښې نشته او د کوم نص خلاف نۀ راځی بلکه بعينه د نصوصو موافق کار دے۔ لهذا ددے د منع هيڅ وجه نشته۔

شيخ ابن باز رحمه الله په فتاوی هيئة کبار العلماء (۱/۳۳۲) کښې ليکی : بعض علماء دا رايه لری چه جُمعه په وړو وړو کلو کښې نۀ قائميږی بلکه لوی لوی ښارونو کښې به قائميږی ليکن دا قول ضعيف دے او ددے دپاره په شريعت مطهره کښې هيڅ وجه نشته، او دا خبره علی بن ابی طالبؓ ته منسوب ده ليکن هغه نه ئے نقل صحيح نۀ دے۔ بيا وائی : خلاصه دا شوه چه په کلو او امصارو کښې د جُمعے قائمول واجب دی، دے دپاره چه د کتاب او سنت په شرعی دلائلو عمل راشی او ددے په قائمولو کښې چه کوم مصالح عظيمه دی هغه حاصل شی چه بعض د هغه مصالحو نه راجمع کول د خلقو دی په يو خير باندے او هغوی ته وعظ او تذکير او تعليم ورکول دی د هغه څه چه هغوی ته فائده ورکوی او د يو بل سره ئے تعارف اُوشی او په بر او په تقویٰ باندے د يو بل سره تعاون اُوکړی۔ انتهیٰ۔

لهذا ثابته شوه چه د جُمعے په قائمولو کښې ډیر مصلحتونه او حکمتونه دی نو ددے قائمول په هر کلی کښې ضروری دی۔ وبالله التوفیق والله اعلم۔ وانظر فتاوی الدین الخالص تفصیلًا (١٤٣/٦)۔

## الفصل الاول

١٣٧٠ (١) – عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَاَبِیْ هُرَیْرَةَ، اَنَّهُمَا قَالَا: سَمِعْنَا رَسُوْلَ اللهِ ﷺ یَقُوْلُ عَلٰی اَعْوَادِ مِنْبَرِهٖ: «لَیَنْتَهِیَنَّ اَقْوَامٌ عَنْ وَدْعِهِمُ الْجُمُعَاتِ، اَوْ لَیَخْتِمَنَّ اللهُ عَلٰی قُلُوْبِهِمْ، ثُمَّ لَیَکُوْنُنَّ مِنَ الْغَافِلِیْنَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : ابن عمر او ابو هریره رضی الله عنهما دواړه فرمائی : مونږ د رسول الله ﷺ نه آوریدلی دی چه د منبر په لرګو باندے ئے فرمایل : «د جُمعے مونځونو پریخودلو نه به خلق خامخا منع شی، او (که نه منع کیږی) یا به الله تعالیٰ د هغوی په زړونو باندے مهر اُووهی، بیا به د غافلانو نه (حساب) شی»۔ (مسلمؒ)

**تشریح : اَعْوَادِ مِنْبَرِهٖ :** یعنی د منبر په پړوباندے۔ او دا ورسره ځکه ذکر کوی چه اشاره کوی چه مونږ ته خبره بالکل پوره طریقے سره یاده ده، او بل اشاره کوی چه دا حدیث مشهور دے ډیرو خلقو آوریدلے دے۔

**وَدْعِهِمْ :** ودع په فتحه د واو سره پریخودلو ته وائی یعنی هغه خلق دے منع شی چه بغیر د شرعی ضرورت نه د جُمعے مونځ پریدي او ورته نهٔ حاضریږی نو الله به د دوی په زړونو باندے مهر اُووهی او بیا به د غافلانو نه حساب شی چه دا نفاق او کبیره ګناه ده۔ نو دا حدیث دلیل شو چه څوك د جُمعے مونځ ته نهٔ حاضریږی یائے نهٔ قائموی او ځانله ځانله مونځونه کوی نو هغوی کښې د نفاق او فاسقانو خصلت موجود دے۔ او ددے خصلت نه ځان بچ کول فرض دی لهذا د جُمعے مونځ په هر ځائے کښې فرض شو۔ او دا حدیث دلیل دے چه جُمعه په هر فرد باندے فرض ده نو دا فرض عین شوه۔

**فوائد الحدیث :** (١) قاضی عیاضؒ فرمائی: پدے دواړو کارونو کښې به یو کار ضرور کیږی یا به خلق د جُمعے د پریخودلو نه منع کیږی نو بس د مصیبت او عذاب نه به بچ وی او یا به ضرور د دوی په زړونو مهر وهی (٢) په چا چه د جُمعے مونځ واجب وی او کور کښې د امام د مانځه نه مخکښې د ماسپښین مونځ اُوکړی نو د هغه د ماسپښین دا مونځ نهٔ صحیح کیږی ځکه دهٔ ته پدے وخت کښې خطاب د جُمعے د مانځه متوجه دے او دا هغه څهٔ کوی چه د هغے

خطاب ورته نشته نو ځکه نۀ صحيح کيږي۔(۳) حديث دليل دے چه گناهونه کله سبب د نورو گناهونو گرځي او دا د الله د طرفنه د گناه سزا وي لکه دلته جُمعه پريخودل سبب د ختم (مهر وهلو) دے او بيا سبب د غفلت دے۔

(٤) دا دليل دے چه د الله د عظيمو عقوباتو نه يوه سزا دا ده چه انسان له خذلان او د آخرت نه غفلت ورکړې نو پس د مرگ نه بيا بيدار شي او وائي : ﴿رَبِّ ارْجِعُوْنِ لَعَلِّيْٓ اَعْمَلُ صَالِحًا فِيْمَا تَرَكْتُ، كَلَّا﴾ بيا دنيا ته رجوع نۀ وي۔ نو غفلت لويه سزا ده۔ او غفلت د کفارو او مجرمينو صفت دے۔ نو د مسلمانانو په عظيمو جماعاتو کښې د شرکت نۀ کولو دغه سزا ده۔

(٥) حديث دليل دے چه جُمعه د ظهر د مانځه نه افضل ده ځکه چه دومره سزا ددے په ترک باندے راغلله۔

(٦) اَوْلَيَخْتِمَنَّ اللهُ: پدے کښې اثبات د افعال اختياريو د الله تعالىٰ دے لکه چه دا مذهب د اهل السنة والجماعة دے چه دوی الله تعالىٰ ته د هغه افعال اختياري منسوب کوی کوم چه متعلق دی د مشيئت او د ارادے د الله سره۔ او هر چه مُعَطِّله دی نو هغوی پکښې تاويلات کوی۔ دليل دا وائي چه د حادث فعل قيام د حادث پورے وی او الله سبحانه وتعالىٰ خو حادث نۀ دے بلکه هغه اول ذات دے چه د هغه نه هيڅ شے مخکښې نشته۔ ليکن دا قول د دوی په عقل او نقل سره مردود دے لکه فعال لما يريد، يفعل ما يشاء، ان الله يفعل ما يريد۔ او قيام د حادث د حادث پورے نۀ لازميږی ځکه چه د الله صفات قديم بالنوع دی اگرکه آحاد ئے متجدد او حادث دی۔ او د حدوث د آحادو نه حدوث د صفاتو نۀ لازميږی۔ (توضيح الاحكام ٢/٢٠٣)

## الفصل الثاني

١٣٧١ (٢) – عَنْ اَبِي الْجَعْدِ الضَّمْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« مَنْ تَرَكَ ثَلَاثَ جُمَعٍ تَهَاوُنًا بِهَا، طَبَعَ اللهُ عَلٰى قَلْبِهٖ ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه، وَالدَّارِمِيُّ. (١٣٧٢ (٣) – وَرَوَاهُ مَالِكٌ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ. ١٣٧٣ (٤) – وَاَحْمَدُ عَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ.

ترجمه : ابو الجعد ضمري ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دی : « چا چه د سُستیٔ په بناه درے جُمعے پريخودلے الله به د هغهٔ په زړهٔ باندے مهر اُولگوی »۔ (ابوداودؒ، ترمذیؒ، نسائیؒ، ابن ماجهؒ، دارمیؒ) او امام مالكؒ د صفوان بن سليمؒ نه او امام احمدؒ د ابو قتادهؓ نه دا روايت نقل کړيدے۔

**تعارف د ابو الجعد** : ابو الجعد الضمري دده نوم نهٔ دے معلوم عند البخاري۔ بعض وائي : كنيه او اسم ئے يو دے۔ بعض وائي : نوم ئے أَدْرَع دے۔ بعض وائي عمرو بن بكر دے، بعض وائي : جناده دے، صحابي دے۔ علامه خزرجيؒ وائي : څلور احاديث ترے نقل دي۔ او په جنگ جَمَل كښې قتل شويدے، نبي ﷺ د مكے د غزا دپاره خپل قوم ته ليږلے وو چه هغوي راجمع كړي او دارنګه په غزوه تبوك كښې ئے هم ليږلے وو نو هغوي د ساحل په لاره باندے د خپل قوم په ملګرتيا كښې د نبي ﷺ سره شريك شو۔ په مدينه كښې ئے كور وو هلته اُوسيدو۔ راجع الاصابة (٢٢/٤)

**تشريح : تَهَاوُنًا** : د تهاون نه مراد سُستي ده په غير د عذر نه۔ او سپكوالے مراد نهٔ دے ځكه چه د شعائر الله سپكاوے كول كفر دے۔ او كوم حديثونه چه مطلق راغلي دي نو هغهٔ به هم پدے صورت باندے حملولے شي چه د سستئ په وجه ئے پريدي، يا بغير د عذر نه ئے پريدي۔

دا حديث هم باندے او غير باندے ټولو ته عام دے۔ هرڅوك چه د جُمعے مونځ نهٔ كوي نو هغه باندے به دغه شان عذاب مسلط كيږي۔ او ددے عذاب نه خو ځان ساتل فرض دي لهذا جُمعه قائمول په هر ځائے كښې فرض شو۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : اخرجه احمد (٤٢٤/٣ - ٤٢٥) والدارمي (٣٦٩/١) وابوداود (١٠٥٢) والترمذي (٥٠٠) والنسائي (٨٨/٣) وابن ماجه (١١٢٥) والحاكم في المستدرك (٢٨٠/١) واسناد رواية احمد (٣٠٠/٤) عن صفوان، صحيح، رجاله موثقون وصححه الحاكم (٤٨٨/٢) وتعقبه الذهبي بما لايجدي وحسّن اسناده البوصيري والحافظ.

---

**١٣٧٤ (٥) - وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: « مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ، فَلْيَتَصَدَّقْ بِدِيْنَارٍ، فَإِنْ لَّمْ يَجِدْ فَبِنِصْفِ دِيْنَارٍ ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَه.**

---

ترجمه : او سمره بن جندب ؓ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « چا چه د جُمعے مونځ د (شرعي) عذر نه بغير پريخودلو نو هغهٔ دے يو دينار صدقه كړي، كه يو دينار نهٔ مومي نو نيم دينار دے صدقه كړي »۔ (احمدؒ، ابوداودؒ، ابن ماجهؒ)

**تشريح** : د جُمعے د پريخودلو د كفارے په باره كښې روايات ضعيف دي ليكن معنیٰ ئے پدے طريقه صحيح ده چه جُمعه پريخودل ګناه ده او د هرے ګناه نه روستو توبه ويستل او صدقه وركول پكار دي۔ نو دا امر د استحباب دپاره شو۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : اخرجه احمد (١٤/٥) وابوداود (١٠٥٣) والنسائي (٨٩/٣)

وابن ماجه (١١٢٨) وفيه قدامة بن وبرة وهو مجهول كما قال الحافظ في التقريب وهو منقطع عند ابن ماجه كما قال المنذري وان كان هذا الانقطاع نفاه د: بشار عواد على سنن ابن ماجه ولكن العلة هنا في تدليس الحسن وعدم سماعه من سمرة)

---

١٣٧٥ (٦) - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ، قَالَ: «اَلْجُمُعَةُ عَلٰى مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او عبد الله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل :« دجُمعے مونځ په هغۀ چا لازم دے چه اذان ئے اَوريدلے وی»۔ (ابوداؤدؒ)

**تشريح :** **جُمعه په چا لازم ده ؟**

دلته د علماؤ اختلاف دے چه جُمعه په چا باندے واجب ده ؟ د کوم ځائے پورے خلق به جُمعے مانځه ته حاضرى ورکوى ؟ (١) احناف وائى : (عَلٰى مَنْ آوَاهُ اللَّيْلُ) (يعنى چه مابنام له کورته واپس تلے شى) بلکه عينىؒ وائى چه پنځلس فرسخو پورے راتلل ضرورى دى۔ دليل نيسى په حديث د ترمذى (١/١١٢) (٥٠٦) (اَلْجُمُعَةُ عَلٰى مَنْ آوَاهُ اللَّيْلُ إِلٰى أَهْلِهٖ)

**جواب :** دا حديث ضعيف دے (فِيْهِ عَبْدُ اللّٰهِ الْمَقْبُرِيُّ وَمُعَارِكُ بْنُ عَبَّادٍ وَحَجَّاجُ بْنُ نَصِيْرٍ وَكُلُّهُمْ ضُعَفَآءُ) (الفتح الربانى ٢٨/٦) وتحفة الاحوذى (١/٣٦٠) ونيل الاوطار (٣/٢٧٨)

نو دا روايت د استدلال قابل نۀ شو۔ ٢- دويم دا مخالف دے د عموم د آيت ﴿إِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلٰى ذِكْرِ اللّٰهِ﴾ او د احنافو دا اصول دى چه په خبر واحد صحيح سره به عموم د کتاب الله کښې تخصيص نشى کولے ځکه بيا نسخ د کتاب الله راځى او په ضعيف خبر واحد سره خو په طريق اولىٰ تخصيص جائز نۀ دے۔!!

(٢) بعض وائى : چه څوك لس ميله کښې وى په هغه لازم ده۔ وهو قول عطاء۔

(٣) بعض وائى : شپږ ميله۔ وهو قول الزهرىؒ ۔ (٤) بعض وائى : چه يو فرسخ کښې وى او دا قول د امام شافعىؒ او احمدؒ دے۔ (الفقه الاسلامى ٢/٢٦٨)۔ (٥) بعض وائى : چه د مصر او د فناء المصر نه بهر وى نو په هغه جُمعه لازم نۀ ده۔ وهو قول اصحاب الرأى۔

(٦) بعض وائى : څوك چه اذان اَورى نو اِجابت به کوى او که اذان نۀ اَورى نو جُمعه پرے نۀ ده لازمه او دا قول امام ترمذىؒ د شافعىؒ احمدؒ او اسحاقؒ نه نقل کړيدے۔ او ابن العربىؒ د مالكؒ نه نقل کړے او دا قول د عبد الله بن عمروؓ راوى د حديث دے۔

(٧) ددے تولو نه راجح قول دا دے چه څوك په ښاريا کلى يا بانډه کښې دننه اُوسيږى نو دوى

باندے جُمعه لازمه ده، برابره ده اذان آوري او که نهٔ، او دا قول د عام اهل علمو دے۔ علامه عراقیؒ په شرح د ترمذی کښې د شافعیؒ مالكؒ او احمد بن حنبلؒ نه نقل کړیدے چه دوی په اهل مصر باندے جُمعه لازم گڼړي اگرکه اذان نه آوري۔ ○ او که څوك د کلي، ښار یا باندے نه بهر وی او ددے خلقو سره شريك نه اُوسيږي نو راجح دا ده چه جُمعه به پرے هله لازمه وی چه اذان آوری کله چه اذان په اُوچت ځائے باندے کيږي او آوازونه په آرام وی او موانع زائله وی او ددے اندازه بعض علماؤ د درے ميله لګولے ده چه تقريباً (٥) کلو ميټر جوړيږي۔ (کما فی الجامع لاحکام الصلاة ٤٣١/٢) او که څوك اذان نهٔ آوري په هغوی واجب نهٔ ده۔ مګر که وسع ئے کيده او زيات مشقت ورته نهٔ وو بيا به هم راځي (واجب ده)۔ (فتح الباري ٣٨٦/٢)۔

**دلائل** : ددے قول دلائل دا دی : ١- يو دا حديث الباب دے او دا موقوفاً صحيح حديث دے۔ او مرفوعاً حسن درجه کښې دے۔ (کما قال السبكي في المنهل العذب المورود شرح ابی داود ٢٠٠/٦) او امام شوکانیؒ ددے تقويت ته اشاره کړيده په النيل (٢٧٧/٣) کښې او په الفتح الرباني کښې ئے حسن ګرځولے دے۔

٢- علامه عراقیؒ فرمائي : مسلم کښې راغلی دی چه نبیﷺ ته يوړند سړے راغلو عرض ئے اُوکړو : زما دپاره قائد نشته چه ما مسجد ته بوځي نو د نبیﷺ نه ئے رخصت غوختلو چه په کور کښې مونځ اُوکړي۔ نبیﷺ ورته رخصت ورکړو کله چه واوړيدو، بيرته ئے راوغوختو ورته ئے اُوفرمايل : [هَلْ تَسْمَعُ النِّدَاءَ بِالصَّلاَةِ؟] آيا تهٔ اذان اورے ؟ هغه اُووئيل : آو، وے فرمايل : اجابت کوه۔ (يعني ضرور راځه) مسلم (٢٣٢/١) نو اُوګوره د جماعت نه په پاتے کيدو کښې نبیﷺ ړوند ته رخصت ورنکړو نو د جُمعے نه په طريق اولیٰ سره پاتے کيدل صحيح نهٔ دی کله چه اذان آوري۔ او دا حديث مخکني حديث د صحت دپاره تائيد دے۔ (النيل ٢٧٧/٣)

٣- **دليل** : آيت ﴿إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ﴾ دے آيت کښې هم نداء (اذان) ذکر دے چه کله اذان اُوشي او تاسو ئے واورئ نو بيا جُمعے مانځه ته ځئ او کله چه انسان اذان وانهٔ وري نو دهٔ ته به څه پته لګي چه جُمعے وخت داخل شويدے او که نهٔ ؟ نو سعی به څنګه اُوکړي؟۔ او دا آيت هم د مخکني حديث تائيد دے۔

٤- **دليل** : صحيح بخاري (١٢٣/١) او صحيح مسلم کښې دی : [كَانَ النَّاسُ يَنْتَابُونَ الْجُمُعَةَ مِنْ مَنَازِلِهِمْ وَمِنَ الْعَوَالِيْ الحديث] ۔ (يعني خلق به جُمعے مانځه ته د کورونو او عوالي (اطرافو) نه راتلل) او دغه عوالي بعض درې ميله وو۔ بعض څلور او بعض شپږ ميله وو۔ او پدے حديث امام بخاري دليل نيولے چه جُمعه په کلو والو باندے هم شته۔

**٥- دليل :** مخكښې د انس بن مالك عمل تير شو چه هغه به په زاويه كښې كله د جُمعې مونځ كولو او كله به ئې نهٔ كولو او دا زاويه د بصرې نه دوه فرسخه وراندې وه- يعنى كله به ئې خپله علاقه كښې مونځ كولو او كله به بصرې ته د جُمعې دپاره راتلو- نو امام بخارىؒ ديته اشاره كوى چه دوه فرسخو كښې لازم نهٔ ده څكه اذان نهٔ اوريدلې كيږى نو انسؓ به څكه نهٔ راتلو-

**٦- دليل :** عبد الله بن عمرو بن العاصؓ به په وهط علاقه كښې وو او د جمعې په ورځ به خلقو سره طائف ته نه حاضريدلو او ددۀ او د طائف په مابين كښې به څلور يا درې ميله فاصله وه- (عبد الرزاق ١٦٣/٣ (عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده) الجامع لاحكام الصلاة ٤٣١/٢)

دا دليل دې چه څوك د ښار نه بهر وى او اذان نهٔ اورى او يا طاقت د راتلو نهٔ لرى نو په هغه باندې جُمعه واجب نهٔ ده-

علامه ابو الحسن مباركفورىؒ فرمائى : راجح دا ده چه څوك د مصر نه بهر وى واړه واړه كلو او باندو كښې اُوسيږى نو هغوى باندې ښار ته راتلل د جُمعې قائمولو دپاره واجب نهٔ دى بلكه هغوى باندې واجب دى چه پخپله به جُمعه قائموى د وجه د عموم ددې قول د الله تعالىٰ نه ﴿ إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ﴾ بله دا چه مصر ته د راتلو په وجوب باندې هيڅ دليل نشته- او زيات تفصيل په عون المعبود كښې اُوګوره (٤١٣/١) آه-

راجع فتاوى الدين الخالص (٢٠٠/٦) وبالله التوفيق

**درجة الحديث :** الحديث حسن : اخرجه ابوداود (١٠٥٦) وفى اسناده ابوسلمة ابن نبي وهو مجهول نكرة كما قال الذهبى ومثله شيخه عبد الله بن هارون ولكن للحديث شاهد من حديث عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده وسكت عليه الحافظ فى التلخيص (ص١٣٧) راجع الارواء (٥٩٣)

---

**١٣٧٦ (٧) - وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ: «اَلْجُمُعَةُ عَلَىٰ مَنْ آوَاهُ اللَّيْلُ إِلَىٰ أَهْلِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ.**

---

**ترجمه :** او د ابو هريره ؓ نه روايت دې چه نبى ﷺ فرمايلى دى : « د جُمعې مونځ په هغهٔ چا لازم دې چه خپل كور ته (واپس كيدو كښې ورته) شپه ځائې وركوى »- (يعنى شپه كور ته رسولې شى)- (امام ترمذىؒ دا روايت نقل كړې او وئيلى ئې دى : ددې حديث اسناد ضعيف دې)

**تشريح :** پدې حديث كښې علماؤ دوه معانى كړيدى ١- يو دا چه جُمعه په هغه چا واجب ده چه د جُمعې مانځه نه پس د شپې د داخليدو نه مخكښې مخكښې كور ته راواپس كيدې شى-

٢- دويمه معنیٰ دا ده چه جُمعه په هغه چا واجب ده چه مُقيم وی او کور ته مابنام له راځی۔ بناء په اوله معنیٰ دا دليل دے د هغه علماؤ چه هغوی وائی ښهرکلو والا به ښار ته راځی په دومره مسافت چه بيرته شپے ته کور ته واپس کيدے شی۔ ليکن حديث ضعيف دے قابل د استدلال نهٔ دے۔

آوَاهُ : يعنی شپه ځائے ورکوی خپل اهل ته۔ يعنی شپے له کور ته واپس کيدے شی۔

**درجة الحديث:** اسناده ضعيف جداً : أخرجه الترمذي (٥٠٢) وقال حديث اسناده ضعيف قلت : بل تالف جداً، فيه عبد الله بن سعيد المقبري وقد كذّبوهُ وله علة اخرىٰ معارك بن عباد وعنه حجاج بن نصير وكلاهما ضعيف۔

**١٣٧٧ (٨)** - وَعَنْ طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« اَلْجُمُعَةُ حَقٌّ وَاجِبٌ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ فِيْ جَمَاعَةٍ، إِلَّا عَلٰى اَرْبَعَةٍ: عَبْدٍ مَمْلُوْكٍ، اَوِ امْرَأَةٍ، اَوْ صَبِيٍّ، اَوْ مَرِيْضٍ ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَفِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ بِلَفْظِ الْمَصَابِيْحِ عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِيْ وَائِلٍ.

---

**ترجمه :** او طارق بن شهاب رضی الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ فرمايلی دی : « د جُمعے مونځ په هر مسلمان باندے د جماعت سره حق او لازم دے، سوئی د څلور کسانو نه : (١) غلام چه د بل چا په مِلك کښ وی، (٢) يا ښځه، (٣) يا ماشوم (٤) يا مريض »۔ (چه په دوی باندے د جُمعے مونځ فرض نهٔ دے) (ابوداوٗد) او په شرح السنه کښ د مصابيح په الفاظو سره د بنی وائل د يو سړی نه (نقل شوے دے)۔

**تعارف د طارق بن شهاب :** طارق بن شهاب بن عبد شمس البجلی الاحمسی ابوعبد الله الکوفی د جاهليت زمانه ئے موندلے ده او نبی ﷺ ئے ليدلے دے ليکن سماع ئے ترے نهٔ ده کړے نو دا مرسل د صحابی دے او مرسل د صحابی بالاتفاق حُجت دے۔

## تشريح : جُمعه په کومو خلقو نهٔ ده لازمه ؟

پدے مذکوره خلقو باندے جُمعه ولے فرض نهٔ ده ؟ : غلام خو د بل په ملکيت او تصرف کښ وی، پدے وجه په هغهٔ باندے جُمعه فرض نهٔ شوه، ښځه باندے چونکه د خاوند حقوق زيات وی نو د هغے په اداځيګئ باندے مصروفه وی چه دا مانع ګرځی د جُمعے د مانځه نه۔ او ماشوم خو مکلف نهٔ دے، او دغه شان په مريض باندے د ضعف او کمزورتيا په وجه او د دفع د ضرر په وجه جُمعه فرض نهٔ شوه، ليکن د مريض نه مراد هغهٔ مريض دے چه په داسے مرض مبتلاوی چه د هغے په وجه جُمعے ته حاضريدل هغه ته مشکل او ګران وی۔

دا حدیث دلیل دے چه د جُمعے مونځ په هر هغه چا واجب دے چه د جماعت قدرت لری یعنی که دوه درے کسان وی نو جُمعه به ضرور قائموی مگر دغه څلور کسان تربے مستثنیٰ دی۔ نو دا دلیل دے چه په کلو او باندو او هر ځائے کښې د جُمعے مونځ واجب دے۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (١٠٦٧) ورجاله ثقات رجال مسلم غير ان ابا داود اشار الى انه منقطع فقال :"طارق بن شهاب قد رأى النبي ﷺ ولم يسمع منه شيئاً" لكن قال الزيلعي في نصب الراية (١٩٩/٢) قال النووي في الخلاصة : هذا غير قادح في صحته فانه يكون مرسل صحابي وهو حجة والحديث على شرط الشيخين۔ وصححه العراقي والحافظ ابن حجر وابن الهمام والبسام في توضيح الاحكام۔

## الفصل الثالث

۱۳۷۸ (۹) – عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ، اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ لِقَوْمٍ يَتَخَلَّفُوْنَ عَنِ الْجُمُعَةِ :« لَقَدْ هَمَمْتُ اَنْ آمُرَ رَجُلًا يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ، ثُمَّ أُحَرِّقَ عَلٰى رِجَالٍ يَتَخَلَّفُوْنَ عَنِ الْجُمُعَةِ بُيُوْتَهُمْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : د ابن مسعود ؓ نه روایت دے چه نبی ﷺ دهغه خلقو په باره کښې چه د جُمعے مانځه نه پاتے کیږی داسے فرمایلی دی : «ما اراده کړے ده چه زهٔ یو سړی ته حکم اُوکړم چه هغهٔ خلقو ته مونځ اُوکړی، (جُمعه اُوکړی) بیا زهٔ (لاړ شم) په هغهٔ خلقو کورونه اُوسوزوم چه (بغیر د عذر نه) د جُمعے نه پاتے کیږی» (مسلمؒ)۔

**تشریح** : یعنی څوك چه بغیر د عذر نه د جُمعے نه پاتے کیږی او د جُمعے مونځ نهٔ کوی نو دا مستحق ددے دے چه ددهٔ کور اُوسوزولے شی یعنی دا کبیره گناه والا دے۔ دا هم دلیل دے چه جُمعه فرض عین ده، هر یو تن به ورته حاضری ورکوی او په هر ځائے کښې به قائمولے شی۔ او ددے په شان حدیث مخکښې د جماعة په باره کښې تیر شو تفصیل ئے هلته اُوگوره۔

---

۱۳۷۹ (۱۰) – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ :« مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ مِنْ غَيْرِ ضَرُوْرَةٍ، كُتِبَ مُنَافِقًا فِيْ كِتَابٍ لَا يُمْحٰى وَلَا يُبَدَّلُ» – وَفِيْ بَعْضِ الرِّوَايَاتِ – ثَلَاثًا. رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.

**ترجمه** : او ابن عباس ؓ روایت کوی چه نبی ﷺ فرمایلی دی :« چاچه بغیر د ضرورت نه د جُمعے مونځ پریخودلو، دا به په داسے کتاب کښې منافق اُولیکلے شی چه هغهٔ نهٔ محوه کیږی او نهٔ بدلیږی» او په بعض روایاتو کښې دی چه څوك درے جُمعے پریږدی.(نو دا وعید د هغهٔ دپاره دے)۔ (شافعیؒ)۔

**تشریح** : د ضرورت نه مراد عذر دے یعنی مرض، باران، چقړے وغیره۔ حدیث دلیل دے چه

ځوك بغير د شرعي ضرورت نه د جُمعې مونځ نهٔ کوی نو هغه کښې د منافقت خصلت راغلې دې. او دغه شان سزا د جماعت د پريخودلو په صحيح حديث کښې راغلې ده. دا دليل دې چه د جُمعې مونځ فرض عين دې.

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : اخرجه الشافعي في مسنده (٣٩) وفيه ابراهيم بن محمد وهو الاسلمي وهو واهٍ)

١٣٨٠ (١١) - وَعَنْ جَابِرٍ، اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ: «مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، فَعَلَيْهِ الْجُمُعَةُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، اِلَّا مَرِيْضٌ، اَوْمُسَافِرٌ، اَوْصَبِيٌّ، اَوْ مَمْلُوْكٌ. فَمَنِ اسْتَغْنٰى بِلَهْوٍ اَوْ تِجَارَةٍ اسْتَغْنَى اللهُ عَنْهُ، وَاللهُ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ». رَوَاهُ الدَّارِقُطْنِيُّ.

---

ترجمه : او د جابر ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل: «څوك چه په الله او په ورځ روستنۍ ايمان لرى نو هغهٔ باندې د جُمعې په ورځ د جُمعې مونځ (فرض) دې، سوئ د مريض، مسافر، ماشوم او غلام نه. (چه په دوى لازم نهٔ دې) او څوك چه په لوبو او تجارت بې پرواهى اختيار کړى نو الله به د هغهٔ نه بې پرواه شى، او الله بې حاجته ستائيلې شويدې». (دارقطنیؒ)

**تشريح** : مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ : ددې مفهوم مخالف دا دې چه څوك د جُمعې مونځ نهٔ کوى نو هغه په الله او په آخرت مؤمن نهٔ دې او كه ورسره د ماسپښين مونځ هم نهٔ کوى نو د هغه به څهٔ حال وى؟ دا دليل دې د هغه علماؤ چه جُمعه واجب ګڼړى او تارك الصلاة ته كافر وائى.

د مسافر نه مراد هغه مسافر دې چه في الحال په سفر کښې شروع وى، په لاره روان وى. او کوم شخص چه يو ځائې کښې څه وخت دپاره ديره اچولې وى نو هغه باندې هم د جمُعې مانځه ته حاضريدل لازم دى. لکه دا د سلفو د يو جماعت قول دې او جُمهور وائى : مطلق مسافر باندې جُمعې مونځ نهٔ شته. ځکه ده دپاره احکام د سفر باقى دى لکه قصر وغيره. نو جُمعه هم ددهٔ نه ساقطه ده.

**فَمَنِ اسْتَغْنٰى** : يعنى څوك چه د ګپ شپ (فضول کار) يا د تجارت (کاروبار، دکاندارئ) په وجه د الله د طاعت نه مشغول شو نو الله به د هغه نه بې پرواه شى، الله ددهٔ عبادت ته ضرورت نهٔ لرى بلکه فائده ئې دهٔ ته راجع کيږى، نو دا د ځان دشمن دې.

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف : اخرجه الدارقطني في السنن (١٦٣-١٦٤) وفيه ابن لهيعة وهو متكلم فيه وكذلك معاذ بن محمد الانصاري شيخ ابن لهيعة مجهول (الذهبي) وابو الزبير مدلس وقد عنعنه)

# ٤٤- باب التنظيف والتبكير

## د پاکۍ او مانځه ته د وختي تلو بيان

تنظيف پاکي ته وائي چه انسان غسل اُوکړي، پاکې جامے واچوي، عطر وغيره اُولګوي، سر ګمنز کړي، او تبکير جُمعے مانځه ته وختي تلو ته وائي او دا هم سنت دے۔ ډير فضائل ئے احاديثو کښ راغلي دي۔ علماء فرمائي : اول بدعت چه په اسلام کښ پيدا شويدے هغه دا دے چه خلق جُمعے مانځه ته ناوخته راځي۔

## جُمعے مانځه ته تلل کوم وخت نه شروع کيږي؟

بيا تبکير (وختي راتلو) کښ څو قوله دي (۱) يو قول د ابن حزمؒ او شوکانيؒ دے چه تبکير نه مراد بعد الزوال دے يعني جُمعے ته د زوال نه پس روانيدل مستحب دي او د تبکير د کوم ساعتونو فضائل چه راغلي دي نو د هغے نه هم مراد هغه ساعتونه دي چه د زوال نه پس وي او هغه معمولي لحظات دي چه په شپږم ساعت کښ داخل دي او د شپږم ساعت اجزاء دي۔ چه ددے تفصيل به روستو راشي۔ او دا قول د امام مالكؒ دے۔ دوي استدلال کوي چه حديث کښ (مَنْ رَاحَ) (وَمَثَلُ الْمُهَجِّرِ) الفاظ دي او رواح او تهجير د زوال نه بعد وي۔ ليکن د دوي دا استدلال صحيح نهٔ دے ځکه چه دا د استعمال د عربو خلاف دے عرب رواح د مطلق ذهاب دپاره استعمالوي، که اول ورځ کښ وي او که په آخر کښ او که په شپه کښ وي کما قال الازهريؒ او دا لغت د حجازينو دے۔ [شرح مسلم ۲۱۷/۳) وزاد المعاد (۳۸۷/۱)۔

(۲) امام شافعيؒ وغيره وائي : د تبکير ابتداء د طلوع الفجر نه روستو شروع کيږي او کوم ساعتونو کښ چه د وختي تلو فضيلت راغلے دے نو هغه د طلوع الفجر نه شروع کيږي۔ او دا قول د شافعيؒ علامه روياني، او صاحب المهذبؒ او نوويؒ او رافعيؒ صحيح ګرزولے دے۔

(۳) بعض وائي : اول د تبکير د طلوع الشمس نه دے۔ او په هم دے وخت کښ جُمعے ته تلل افضل دي۔ او دا قول د ثوريؒ، ابو حنيفةؒ، شافعيؒ (علی قول) او احمدؒ دے۔ علامه ماورديؒ وائي : دا اصح قول دے، دے دپاره چه د طلوع الفجر نه پس تر طلوع الشمس پورے زمانه د تيارۍ شي په غسل وغيره کولو سره۔

(٤)- څلورم قول دا دے چه د تبکير اول وقت د ارتفاع النهار نه شروع کيږي چه دا اول وخت د ضُحیٰ دے او اول وخت د هاجرے (غرمے) دے۔ (يعنی نهه لس يولس بجے) او دا قول راجح دے او پدے سره جمع د احاديثو راځی او دا قول علامه مبارکفوریؒ هم راجح کړيدے۔ وجه دا ده چه حديثو کښ لفظ د مُهجر راځی (مثل المُهجّر) او علامه قرطبیؒ فرمائی : تهجير دلته د هاجره نه دے، معنی ئے ده : د گرمئ په وخت کښ مزل کول او دا که د زوال نه مخکښ وی او که د زوال نه روستو وی دواړو ته شامل دے۔ او دا خبره خو معلومه ده چه گرمی هله سختيږی چه ربع النهار راشی غالباً۔ نو څوك چه د ارتفاع النهار په وخت جُمعے دپاره ځی نو پدے باندے هغه الفاظ د حديث صادق راځی کوم چه (تهجير، متعجل، تبکير، غدو، رواح) وغيره دی ځکه چه د ارتفاع النهار وخت دے تولو ته شامل دے۔

٢- بل دليل دا دے چه جُمعه على القول الراجح قبل الزوال هم جائز ده نو هر کله چه جُمعه قبل الزوال جائز شوه نو ضرور به تبکير د هغے نه مخکښ وی۔ لهذا د زوال نه پس د تبکير کيدل صحيح نهٔ شو نو د امام ابن حزمؒ قول ساقط شو۔

٣- دليل : نبی ﷺ د جُمعے د مانځه نه مخکښ ډيرو نوافلو ته ترغيب ورکړے دے (فَصَلّٰى مَا قُدِّرَ لَهُ) (فَصَلّٰى مَا كُتِبَ لَهُ)۔ او عبد الله بن عمرؓ به دولس رکعاته د جُمعے نه مخکښ کول نو دا تول دليل دے چه د زوال نه مخکښ تبکير مستحب دے۔

٤- دارنګه شريعت ترغيب ورکړے دے چه تهجير کوئ (يعنی وختی راځئ) نو که د زوال نه پس تبکير مراد شی او په دغه وخت کښ خو به امام او خطيب خطبے دپاره راوتلے وی ځکه چه بعد الزوال مباشرةً د جُمعے مونځ جائز دے عند الجمهور۔ نو څه وخت کښ به تهجير اُوشی؟!۔

او بعد الفجر او عند طلوع الشمس تبکير د صحابه کرامؓ نه نهٔ دے ثابت چه هغوی د طلوع الفجر نه پس يا د صبا د مانځه نه پس يا د طلوع الشمس نه پس مسجد ته راغلی وی او د جُمعے په انتظار کښ ناست وی۔ لهذا حديث به په داسے مَحْمَل نهٔ شی حمل کولے چه صحابه کرامؓ په هغے عمل نهٔ وی کړے۔(نيل الاوطار ٣/٢٩٤) المرقاة (٤/٤٦٤) زاد المعاد (١/٣٨٧)

## الفصل الاول

١٣٨١ (١) - عَنْ سَلْمَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« لَا يَغْتَسِلُ رَجُلٌ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَيَتَطَهَّرُ مَا اسْتَطَاعَ مِنْ طُهْرٍ، وَيَدَّهِنُ مِنْ دُهْنِهٖ، أَوْ يَمَسُّ مِنْ طِيْبِ بَيْتِهٖ، ثُمَّ يَخْرُجُ فَلَا يُفَرِّقُ بَيْنَ اثْنَيْنِ، ثُمَّ يُصَلِّيْ مَا كُتِبَ لَهٗ، ثُمَّ يُنْصِتُ إِذَا تَكَلَّمَ الْإِمَامُ، إِلَّا غُفِرَ لَهٗ مَا بَيْنَهٗ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ

الْأُخْرٰى». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : سلمان ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «د جُمعې په ورځ چه يو شخص غسل اُوکړي او د خپل طاقت مطابق ځان پاك کړي، او خپل تيل اُولګوي، او د خپل کور خوشبوئي اُولګوي، بيا (د کور نه) راوزي، او د دوه کسانو ترمينځ جدا والے رانۀ ولي، بيا چه څومره مونځ ورله (تقدير کښ) ليکلے شوے وي هغۀ اُوکړي، بيا امام ته غوږ کيدي چه کله امام خبره کوي، (داکارونه نۀ کوي مګر) دۀ ته به ددے جُمعے او راتلونکي جُمعے ترمينځ ګناه معاف شي»۔ (بخاريؒ)

تشريح : أَوْ يَمَسُّ : يعني که دُهن او تيل موجود نۀ وي نو خپله خوشبوئي اُولګوي او که خپله خوشبوئي ورسره نۀ وي نو د ښځے خوشبوئي دے اُولګوي کما في الحديث الآخر۔ دا حديث دليل دے چه انسان له خوشبوئي ساتل ضروري دي، چه د جُمعے په ورځ ئے استعمالوي ليکن کله چه ختمه شوي وي نو بيا د بل چا خوشبوئي هم لګولے شي۔

وَيَتَطَهَّرُ : دا د (لا) د لاندے دي۔ (اي لا يتطهر ولا يمس الى آخره)۔

فَلَا يُفَرِّقُ : ددے مطلب دا دے چه ناوخته راشي او د دوه کسانو مينځ کښ کيني يو بل ته اُووائي تۀ وړاندے شه زۀ دلته کينم۔ ۲- يا د چا په اُوګو باندے خپے اَروي او روستو راغلے وي او ځان اول صف ته رسوي نو دا کار حرام دے۔ يو صحابي دا کار اُوکړو چه د خلقو په څټونو ئے خپے اړولے نبي ﷺ ورته اُوفرمايل : [اِجْلِسْ فَقَدْ آذَيْتَ وَآنَيْتَ] (ابن ماجه وصحيح ابن حبان بسند صحيح عن جابر) (ناوخته هم راغلے او خلقو له دے ضرر هم ورکړو) يعني دا دوه جرمونه دي، يو ناوخته راتلل او بيا خلقو ته تکليف ورکول۔ ليکن بل طرف ته نورو مسلمانانو له پکار دي چه جُمعے مانځه له وختي راشي او د اول نه جوخت جوخت کيني او مخکني ځايونو کښ خالي ګاه پرے نۀ دي دے دپاره چه روستو راتلونکي ته د دوه کسانو د جدا کولو ضرورت راپيښ نۀ شي۔

ثُمَّ يُصَلِّي : ددے نه دا فائده معلومه شوه چه د جُمعے مانځه نه مخکښ سنت راتبه (مقرر سنت) نشته بلکه هرڅومره چه ورله الله ليکلي وي هغه به کوي۔

وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ الْأُخْرٰى : ددے نه مراد يا تيره شوے يا راتلونکے جُمعه ده۔ لکه روستو حديث کښ رازي۔

۱۳۸۲ (۲) - وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ قَالَ: «مَنِ اغْتَسَلَ، ثُمَّ اَتَى الْجُمُعَةَ فَصَلّٰى مَا قُدِّرَ لَهُ، ثُمَّ اَنْصَتَ حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْ خُطْبَتِهِ، ثُمَّ يُصَلِّيْ مَعَهُ، غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ

الْجُمُعَةِ الْأُخْرٰى، وَفَضْلُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او د ابو هريره ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل :«څوك چه (د جُمعے په ورځ) غسل اُوكړي بيا د جُمعے مانځه ته راشي او څومره مونځ چه ورله مقرر وي، اُوكړي، بيا غلے وي تردے چه امام د خطبے نه فارغ شي بيا د هغهٔ سره مونځ اُوكړي نو دهٔ ته به ددهٔ او د راتلونكي جُمعے ترمينځ بلكه درے ورځے زيات گناهونه اُوبخلے شي». (مسلم)

تشريح : حديث دليل دے د جُمعے د مانځه نه مخكښ مقرر سنت نشته ولے كه وے نو داسے به ئے وئيلي وے (ثم يصلي اربع ركعات) (بيا څلور ركعاته اُوكړي).

۲- دويم : دا دليل دے چه د جُمعے په ورځ مكروه وخت نشته ځكه (فَصَلّٰى مَا كُتِبَ لَهٗ) سره ئے قيد د مكروه وخت ذكر نهٔ كړو. لكه دا خبره مخكښ په باب السنن وفضائلها كښ ذكر شوه.

۳- غفرله : دا مغفرت صغائر او كبائرو ته شامل دے كله چه په دغه شرائط مذكوره ؤ سره اُوشي نو الله پكښ دير طاقت پيدا كوي چه كبيره گناهونه هم ورسره كله نا كله معاف كيږي.

ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ : ددے نه معلوميږي چه راتلونكے جُمعه مراد ده ځكه درے ورځے خو روستو راځي. نو لس ورځے شوے.

۱۳۸۳ (۳) - وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوْءَ، ثُمَّ أَتَى الْجُمُعَةَ فَاسْتَمَعَ وَأَنْصَتَ، غُفِرَ لَهُ مَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ وَزِيَادَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ. وَمَنْ مَسَّ الْحَصٰى فَقَدْ لَغَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي :«څوك چه اُودس اُوكړي او ښائسته (د آداب او سنن د رعايت سره) اُودس اُوكړي، بيا جُمعے مانځه ته راشي او (خطبے ته) غوږ كيدي او چپ شي (مشغلے پريدي) نو دهٔ ته به ددهٔ او د راتلونكے جُمعے ترمينځ بلكه درے ورځے زيات گناهونه اوبخلے شي، او چا چه گيټئ (كانړي) مسّه كړے (گوتے ئے وروړے)، نو هغهٔ لغو اُوكړه». (مسلم)

تشريح : وَمَنْ مَسَّ الْحَصٰى: د نبي ﷺ په مسجد كښ كانړي پراته وو نو ځكه ئے دا ذكر كړل او كانړو سره لوبے كول د خطبے نه مانع گرزي، پدے وجه ئے ديته لغو اُووئيل ځكه لغو په عربي ژبه كښ باطل او بے فائدے كار كولو ته وائي، بيا ددے نه مراد دا دے چه په حالت د خطبه كښ داسے غفلت اُوكړي، لكه امام نوويؒ فرمائي : پدے كښ په حالت د خطبه كښ د كانړو وغيره

مسـه كـولـو نـه نهي ده نو پدے كښې اشاره ده چه خطبے ته به زړۀ او جوارح بنۀ متوجه كوى۔ آه۔
۲- او يا ددے نـه پـه سجده كښې كاڼړى برابرول مراد دى او مخكښې تير شوى دى چه دا به صرف
يو ځل برابرولے شى كۀ ضرورت وى۔ بارباربه پدے سره لوبے نۀ كوى۔
دلته ئے د كاڼړو تذكره اُوكړه او ددے په حكم كښې هر هغه شے دے چه انسان پرے د خطبے نه غافل
كيږى لكه گيره، سر، كوټو، جامو، موبائل وغيره كښې گوتے وهل۔ دا ټول منع دى۔
**فَقَدْ لَغَا** : يـعـنـى دۀ لـغـوه (فـضـول كـار) اُوكړو او چا چه لغوه اُوكړه نو د هغۀ د جُمعے مونځ نۀ
كيږى۔(كـمـا فـى رواية ابـى داود) يـعنى د جُمعے د زياتى فضيلت نه محروم شو او هر چه د ظهر
مـونـځ دے نـو هـغـه بـه ئے اُوشى يعنى ذمه ئے ساقطه شوه او د جُمعے د دغه فضيلت نه محروم
شو۔لـكـه دا معنىٰ په حديث د عبد الله بن عمرو بن العاصؓ كښې راغلے ده ((وَمَنْ لَغَا وَتَخَطّٰى رِقَابَ
النَّاسِ كَانَتْ لَهُ ظُهْرًا - ابـوداود، وابـن خـزيـمة بسـنـد حسنه الالبانى فى صحيح الترغيب وصححه فى
الجامع الصغير رقم : ٦٠٦٧) ○ دويـم مـطلب دا دے چه د جُمعے مونځ ئے باطل شو او د ماسپښين
خو پـه طريقه اولىٰ نۀ كيږى۔ نو هيڅ قسم اجر ورته ملاؤ نشو او غاړه ئے هم آزاده نۀ شوه نو دا
ډير وعيد دے۔ او بيا دا دليل دے چه د جُمعے خطبه آوريدل واجب او فرض دى۔ او بغير د ضرورت
نه ددے پريخودل حرام دى۔

۱۳۸۴(٤) - وَعَـنْـهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ:(( إِذَا كَـانَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ، وَقَفَتِ الْمَلَائِكَةُ
عَـلٰى بَـابِ الْـمَسْـجِدِ، يَكْتُبُوْنَ الْاَوَّلَ فَالْاَوَّلَ، وَمَثَلُ الْمُهَجِّرِ كَمَثَلِ الَّذِيْ يُهْدِيْ بَدَنَةً، ثُمَّ
كَـالَّـذِيْ يُهْـدِيْ بَـقَـرَةً، ثُـمَّ كَبْشًـا، ثُمَّ دَجَاجَةً، ثُمَّ بَيْضَةً، فَإِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ طَوَوْا صُحُفَهُمْ
وَيَسْتَمِعُوْنَ الذِّكْرَ)). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او ابو هريره ؓ فـرمائى : رسول الله ﷺ فرمايلى دى : ((كـلـه چه د جُمعے ورځ شى،
مـلائك د مسـجـد په دروازه كښې اُودريږى۔ كوم شخص چه مسجد ته د ټولو نه (اول وخت كښې)
رومبے راشى نو د هغۀ اول نوم ليكى، بيا ددے نه د روستو راتلونكى شخص نوم ليكى، او مثال
د هـغـۀ شـخـص چـه اول (وختـى د جُـمعے) مانځه ته راځى په شان د هغۀ سړى دے چه مكے ته د
قربانۍ دپاره اُوښ ليږى، بيا د هغۀ نه روستو چه كوم شخص جُمعے ته راځى داسے مثال دے لكه
څـوك چـه غـوا ليږى، بيا ددے نه د روستو راتلونكى مثال داسے دے لكه چه گډ ليږى، بيا د هغۀ
نـه روستـو راتـلـونـكى شخص مثال داسے دے لكه چه چرگه ليږى، بيا د روستو راتلونكى مثال

داسے دے لکه چه د (چرگے) آنده (هگئ) ورکوي، او کله چه امام (د خطبے دپاره) منبر ته راوځي، نو ملائك خپلے صحيفے راتاؤ کړي، او خطبه آوري». (بخاريؒ ومسلمؒ)

**تشريح** : که په يو وخت کښ مسجد ته دوه يا درے کسان يا زيات په يو ځل رانّنوزي نو درے واړه په يوه درجه کښ ليکی۔

**الْمُهَجِّرِ**: د اسم فاعل صيغه ده د تهجير نه ماخوذ دے هغه انسان چه د جُمعے مانځه ته وختی راشی نو د تهجير نه مراد بعينه تبکير دے۔ مالكيهٔ وائي : تهجير نه مراد هاجره (غرمه) کښ راتلل دی۔ نو دا دليل دے چه دا راتلل به د زوال نه پس وی۔ ليکن مخکښ تا اُوپيژندل چه دلته د تهجير نه مراد تبکير دے يعنى د ارتفاع النهار نه روستو راروانيدل ديته هم تهجير وائي۔ لکه په قول د قرطبيؒ کښ تير شو۔ او علامه توريشتيؒ فرمائي : ځوك چه د تهجير معنیٰ په تبکير سره کوي نو هغه حق وائي او ډيره ښائسته طريقه ئے اختيار کړيده او هغه داسے چه دهٔ هغه وخت چه ورځ په کښ راپورته کيږي او گرمي پکښ شروع کيږي دا ئے تغليباً د غرمے نه اُوگرزول په خلاف د مابعد الزوال نه چه هغے ته هاجره وئيل دومره غوره نهٔ دی ځکه چه په هغے کښ گرمي په خکته کيدو وی۔ (يعنى د زوال نه روستو وخت ته هاجره وئيل دومره غوره نهٔ دی لکه څنگه چه د زوال نه مخکښ وخت ته هاجره وئيل مناسب دی)۔

د الذکر نه مراد هغهٔ وعظ او نصيحتونه دی چه په خطبه کښ وی۔ ملائك ئے ذکر کړل پدے کښ تيزي ورکول دی چه دے خطبے ته چه ملائك غوږ اږدی نو تاسو له خو ډير ضروري دی۔

---

**۱۳۸۵ (۵) ـ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «إِذَا قُلْتَ لِصَاحِبِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ: أَنْصِتْ، وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، فَقَدْ لَغَوْتَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه** : او ابو هريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلی دی : «کله چه تهٔ د جُمعے په ورځ د امام د خطبے په دوران کښ خپل (خواکښ ناست) ملگری ته اُووائے : "غلے شهٔ !" نو دا تا لغو اُوکړه»۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

**تشريح** : صاحب لفظ ئے ذکر کړو اشاره ده چه څوك د امام سره خبرے کوي يائے امام د مقتديانو سره اُوکړي نو جائز ده لکه دا په احاديثو کښ ثابت دی۔ عمر فاروق د خطبے په دوران کښ عثمان ته اُوفرمايل : ولے نا وخته راغلے، او نبی ﷺ يو سړي ته اُوفرمايل : پاځه دوه رکعاته اُوکړه او يو صحابی نبی ﷺ ته اُوفرمايل : دعا د باران دپاره اُوکړه۔ هرچه د مقتديانو خپل مينځ کښ خبرے دی نو دا ناروا دی۔ وجه دا ده چه پدے سره غفلت راځی او په امام باندے پريشر راځی،

افراتفري جوړيږي.

بيا دا ياد ساته چه په وخت د خطبه كښ به امر بالمعروف او نهي عن المنكر هم نهٔ كوي، دا اگركه فرض عمل دے ليكن خطبه آوريدل پدے مقام كښ ډير اهم دي. او بله دا چه امام پخپله امر بالمعروف او ناهي عن المنكر لگيا دے نو بل چا ته ضرورت نشته او هر چه دوه ركعاته تحية المسجد دي نو هغے سره گډوډي نهٔ رازي او د مسجد حق ورسره ادا كيږي لهذا د هغے كول پكار دي. او همدغه شان حكم شرعي دے.

بيا هركله چه په وخت د خطبه كښ په امر بالمعروف كولو سره اجر باطليږي نو په فضول خبرو او كارونو سره به خامخا اجر باطليږي.

**مسئله** : د پرنجي په وخت الحمد لله وئيل يا پرنجي كونكي ته جواب وركول يا نوي راتلونكي سلام اچول يا د سلام جواب وركول يا په نبي ﷺ باندے درود وئيل (په آرام سره په زړهٔ كښ) كله چه د هغه نوم ياد شي يا دوه ركعاته تحية المسجد كول آيا دا كارونه جائز دي؟ پدے كښ اختلاف دے، ددے حديث عموم دليل د حرمت دے ځكه چه انصات عام دے، شامل دے هر حالت ته نو د (انصت) معنىٰ ده (اُسْكُتْ عَنْ كُلِّ شَيْءٍ) (د هر شي نه غلے شه) ليكن بل طرفته پدے كارونو باندے امر راغلے دے نو په خطبه كښ دننه هم دا كارونه كول جواز لري. لهذا مونږ ترجيح وركوو دغه احاديث آمره ؤ ته ځكه چه په احاديثو د استماع الى الخطبه كښ نور ډير كارونه جائز شويدي نو د هغے د عموم نه ډير تخصيصات شويدي لكه خطيب سره سوال وجواب كول، د منبر نه د خطيب د يو حاجت دپاره راكوزيدل، دوه ركعاته د خطبے په وخت كول دا په احاديثو سره خاص شويدي لهذا دا احاديث آمره به هم د هغه عموم نه خاص وي. نو دا كارونه به جائز وي.

بله دا چه دا كارونه مُخل د خطبے نه دي، دخطبے آوريدو ته څه نقصان نهٔ رسوي او دا جديد قول د امام شافعيؒ دے او يو روايت د امام احمدؒ دے. او دا قول د اهل ظاهرو دے. او همدا حق دے.

**مسئله** : امر بالمعروف او نهي عن المنكر يا جواب د سائل په ژبه سره وركول حرام دي مگر په سر يا په لاس يا په سترگه سره اشاره كولو باندے هيڅ حرج نشته، عبد الله بن عمر ؓ دوه سړي په كانړي اُوويشتل كله چه امام د جُمعے په ورځ خطبه وئيله او دوي خبرے كولے، دغه شان هغه يو سائل اُوليدو چه سوال ئے كولو نو په كانړي ئے اُوويشتو او هغه به د جُمعے په ورځ يو سړي ته (د هغه د غلي كولو دپاره) اشاره كوله چه غلے شه ! (انظر السنن الكبرى (٢٢٣/٢) والمحلى ٢٦٨/٣) واحكام الجمعة لمحمد ظاهر (١٥٣) وفتاوى الدين الخالص (٢٣٢/٦) .

**مسئله** : د جُمعے په ورځ بعض مساجدو كښ چنده توليږي پداسے طريقه چه دوه كسانو

څادر نيولے وي او په صفونو کښې ګرځي يا ئے يوه پچئ يا بکسه لاس کښې نيولې وي او خلق ورته پيسے اچوي او کله ناکله د چا سره ځاتے پيسے نهٔ وي نو په خطبه کښې دننه د هغه نه خپل نوټ ماتوي او ټول خلق ورته ګوري نو دا کار صحيح نهٔ دے بلکه په دوران د خطبه کښې د کانړو د مَسَه کولو نه منع راغلے ده نو دا کار خو د خطبے نه په مشغوله کولو کښې ډير غټ دے۔ لهٰذا ددے نه احتراز پکار دے۔

١٣٨٦ (٦) – وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «لَا يُقِيْمَنَّ اَحَدُكُمْ اَخَاهُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، ثُمَّ يُخَالِفُ اِلٰى مَقْعَدِهٖ، فَيَقْعُدُ فِيْهِ، وَلٰكِنْ يَقُوْلُ: اِفْسَحُوْا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

**ترجمه :** او جابر ﷺ فرمائي، رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «د جُمعے په ورځ دے په تاسو کښې څوک خپل رور (مسلمان) د هغهٔ د ځائے نه نهٔ پاڅوي چه بيا لاړ شي او د هغهٔ په ځائے کښې کيني ليکن (هغهٔ له پکار دي چه) داسے اُووائي : ځائے پراخه کړئ!»۔(مسلمٌ)

**تشريح :** دا يو بهترين اسلامي ادب دے چه د عام مجالسو سره هم متعلق دے او د جُمعے ورځے سره هم، چه يو انسان به بل تن د خپل ځائے نه نهٔ پاڅوي چه خپله پکښې کيني ځکه پدے کښې د مسلمان زړهٔ ته دکهه (تکليف) رسي، او د انسان په نفس کښې يو قسم عُجب، خود پسندي او تکبر پيدا کيږي او د ايثار نه خلاف کار دے۔ بلکه که انسان مجلس فراخولو ته محتاج شي نو په خوله دے اُووائي چه وررونو لګ لګ اُوخوزيږئ۔

## الفصل الثاني

١٣٨٧ (٧) – عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ، وَاَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَا: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَلَبِسَ مِنْ أَحْسَنِ ثِيَابِهٖ، وَمَسَّ مِنْ طِيْبٍ اِنْ كَانَ عِنْدَهٗ، ثُمَّ اَتَى الْجُمُعَةَ، فَلَمْ يَتَخَطَّ اَعْنَاقَ النَّاسِ، ثُمَّ صَلّٰى مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَهٗ، ثُمَّ اَنْصَتَ اِذَا خَرَجَ اِمَامُهٗ حَتّٰى يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهٖ، كَانَتْ كَفَّارَةً لِمَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ جُمُعَتِهِ الَّتِيْ قَبْلَهَا». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

---

**ترجمه :** ابوسعيد او ابو هريره رضي الله عنهما فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «څوک چه د جُمعے په ورځ غسل اُوکړي او ښائسته جامے واغوندي، او که خوشبوئي ورسره وي اُولګوي، بيا جُمعے مانځه ته راشي، او د خلقو په څټونو خپے وانهٔ ړوي، بيا څومره چه الله ورله ليکلي وي مونځ اُوکړي، بيا غلے کيني په هغهٔ وخت کښې چه امام (خطبے ته) راوځي ترديے چه د

مانځه نه فارغ شي، نودا به کفاره (رژونکې) شي د هغه (ګناهونو) چه ددې جُمعې او د مخکنۍ جُمعې ترمینځ دي»۔ (ابوداوٗد)

**تشریح: إِنْ كَانَ عِنْدَهُ:** یعني که انسان سره خوشبوئي وي نو هغه به لګوي او که ورسره نۀ وي نو بیا ترې دا فضیلت نۀ خرابیږي. همداسې به مانځه ته روان شي. خو پدې شرط چه باقي شرطونه پوره عملي کړي۔ نو پدې کښې هم د یوې جُمعې ګناهونه معاف کیږي یعني دډې جُمعې نه چه مخکنۍ جمعې پورې کوم ګناهونه شوي وي هغه معاف کیږي۔

او حدیث دلیل دې په عظمتِ شان د جُمعه باندې چه ددې دپاره به دغه شان دَول او زینت اختیارولې شي۔

**أَعْنَاقَ النَّاسِ:** یعني مانځه ته د راتلو په وخت کښې به هم د خلقو په څټونو خپې نۀ اړوي، او د مونځ د ختمیدو نه پس به هم د خلقو په څټونو خپې نۀ اړوي۔ دا ډیر عظیم جرم دې۔ ابو هریره رضی الله عنه فرمائي : که په تاسو کښې یو تن د غوږ په مینځ کښې (یعني په سخته ګرمه زمکه) مونځ اُوکړي دا ورله غوره ده ددې نه چه امام خطبه وائي او دا راشي د خلقو په څټونو خپې اړوي) (معرفة السنن والآثار ۱۷۰/۵) للبیهقيؒ۔

او کعبؓ فرمائي : که زۀ د جُمعې مونځ پریدم دا ماته محبوبه ده ددې نه چه زۀ د خلقو په څټونو خپې واړوم۔ (شرح ابن بطال)۔

او خالد بن ثابت الفهميؒ یوه ورځ د جُمعې په ورځ مسجد ته داخل شو چه هغهٔ د نمر نه ډك شوې وو نو بعض خلقو چه په سورې کښې ناست وو- اُولیدلو، دهٔ ته ئې اشاره اُوکړه چه ځائې ورته فراخولو نو هغه دا بده اُوګڼړله چه د خلقو په څټونو خپې واړوي او هغه سورې ته ځان اُورسوي، او دا آیت ئې اُولوستلو ﴿وَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا أَصَابَكَ إِنَّ ذَٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ﴾ بیا په نمر کښې کیناستو۔(فتح الباري لابن رجب)

**درجة الحديث :** اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (۳۴۳) ورجاله ثقات الا ان محمد بن اسحاق مدلس وقد عنعنه لكن صرح بالتحديث في رواية احمد (۸۱/۳) والحاكم (۲۸۳/۱) واخرجه ابن خزيمة (۱۷٦۲) وابن حبان (۱۹۴/٤-۱۹۵) والبغوي في شرح السنة (۲۳٦/٤رقم ۱۰٦۰)

---

**۱۳۸۸ (۸) - وَعَنْ أَوْسِ بْنِ أَوْسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« مَنْ غَسَّلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاغْتَسَلَ، وَبَكَّرَ وَابْتَكَرَ، وَمَشٰى وَلَمْ يَرْكَبْ، وَدَنَا مِنَ الْإِمَامِ وَاسْتَمَعَ وَلَمْ يَلْغُ، كَانَ لَهُ بِكُلِّ خُطْوَةٍ عَمَلُ سَنَةٍ :أَجْرُ صِيَامِهَا وَقِيَامِهَا ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : او أوس بن أوس رضي الله عنه فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : (( چا چه د جُمعې په ورځ په بـل غسـل أوكـري او خپـلـه (هم) غسل أوكړي، او وختي (مسجد) ته لاړ شي، او اول د خطبې لاندې كړي او پيادهٔ لاړ شي او سور نهٔ شي، او امام ته نزدې كيني او (دهغه خطبې ته) غوږ كيدي، او لغـوه (فضـول كار) أونـكـړي، ددهٔ دپاره بـه پـه هـر قدم باندې د يو كال د عمل د روژو او د شپې دعبادت ثواب أوليكلې شي))۔ (ترمذيؒ، ابوداودؒ، نسائيؒ، ابن ماجهؒ)

**تشريح** : دا هغـه حـديث دې چه داسې اعمال پكښې ذكر دي چه د ليلة القدر نه ئې هم اجر زيات دې۔ ځكـه پـه هر قـدم باندې د يو كال د اعمالو ثواب ملاوېږي نو ستا او د مسجد ترمينځ به څومره قدمونه وي، ددې اندازه أولګوه، بې حسابه اجر دې۔ او د الله فضل واسع دې۔

مَنْ غَسَّلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاغْتَسَلَ :دې كښې عـلماؤ ډير مصداقات ذكر كړيدي۔ ۱- يو دا چه غسّل باب تـفـعيـل دې بـل څوك غسل ته محتاج كول او بل چا باندې غسل أړول نو دا عرب كـنـايـه ګرځوي د جمـاع كـولـو نه يعني په خپله وينځه او ښځه باندې هم غسل واروي (جماع أوكړي) او خپله هم غسل أوكړي۔ بيا د جُمعې په ورځ د جماع كولو فائده څه ده ؟ نو ددې فائده دا ده چـه پـدې ورځ بـاندې چونكه ګنړه ګونړه زياته وي، زنانه مسجد ته ځي راځي نود انسان نظر بـه بد نهٔ استعماليږي او نفس به ئې په كنټرول كښې وي، ځكه چه كله انسان صُحبت نهٔ وي كړې نـو د هـغه نظر غير اختياري أوچت أوچت كيږي۔ او دا معنىٰ په بل روايت كښې راغلې ده :[أَيَعْجَزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يُجَامِعَ أَهْلَهُ فِيْ كُلِّ يَوْمِ جُمُعَةٍ ؟ فَإِنَّ لَهُ أَجْرَ اثْنَيْنِ أَجْرُ غُسْلِهِ وَأَجْرُ غُسْلِ امْرَأَتِهِ] (شعب الايمان۳/۹۸) (۲۹۹۱) عن ابي هريرة ذكره السيوطي في اللمعة (۱/٤) (آيـا يو تن په تاسو كښې ددې نه كـمزورې كيږي چـه د هرې جمعې په ورځ د خپلې بي بي سره كور والې أوكړي ځكه ددهٔ دپاره به پدې كار سره دوه اجرونه وي يو د خپل غسل اجر او بل د ښځې د غسل اجر)۔

۲- بـعـض وائي : غسّـل نه مراد سر وينځل دي او اغتسل معنىٰ ورپسې غسل كول دي. ځكه عـربو بـه اول پـه سر كښې خطمي (ګل خيرو) وغيره واچول او سر به ئې پدې سره أووينځلو او بيا به ئې غسـل كـولـو نو دلته ورته أووئيل شو چه اول سر أووينځه او بيا غسل هم أوكړه۔ داسې نهٔ چه د سر پـه ويـنـځـلـو اكـتـفـاء أوكـړې او غسل أونهٔ كړې۔ او ددې تائيد په دې روايت كښې په مسند احمد او ابوداود كښې داسې راغلې دې : (مَنْ غَسَّلَ رَأْسَهُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاغْتَسَلَ) مُنذريؒ وائي : دا حديث د غسّل دپاره تفسير شو چه ددې نه مراد د سر وينځل دي۔

۳- بـعـض وائي : غسـل : يعني د اوداسه دپاره ئې اندامونه أووينځل او اغتسل : بيا ئې غُسل د جُمعې دپاره أوكړو۔

٤- بعض وائی : غسل : جامے ئے اُووینځلے او اغتسل بدن ئے اُووینځلو (غسل ئے اُوکړو)۔
٥- بعض وائی : پدے کښې مقصود تاکید دے او د دواړو یو مطلب دے یعنی مبالغه ئے اُوکړه په غسل او تنظیف کښې۔ پدے کښې راجح دا ده چه غسل کښې یو د تخفیف قراءت دے او بل د تشدید نو د تخفیف (غَسَلَ) په صورت کښې ئے معنیٰ د سر وینځلو ده او د تشدید(غَسَّلَ) په صورت کښې ئے معنیٰ د جماع ده۔
وَبَكَّرَ وَابْتَكَرَ : ۱- بعض وائی : دواړه په یوه معنیٰ دی او تکرار ئے د تاکید دپاره کړیدے، لکه دا خبره ابن العربیؒ ذکر کړیده۔ ۲- بعض وائی : بکر معنی : په اول وخت کښې لاړ شی او ابتکر یعنی اول د خطبے اُومومی۔ او دا معنیٰ علامه عراقیؒ راجح کړیده۔
۳- ابن الانباریؒ وائی : د بکر معنیٰ ده د وتلو نه مخکښې صدقه ورکړی او ابتکر وختی روان شی۔ او دلیل کښې دا وائی چه حدیث کښې بکر په معنیٰ د وختی صدقے ویستلو سره راغلے ده لکه (بَاكِرُوْا بِالصَّدَقَةِ فَإِنَّ الْبَلَاءَ لَا يَتَخَطَّاهَا)۔ دویمه معنیٰ راجحه ده۔
وَلَمْ يَرْكَبْ: د جُمعے مانځه له پیاده تلل د سوریدو نه افضل دی۔
وَلَمْ يَلْغَ : ۱- یعنی خطبے ته غوږ کیدی او مینځ کښې ئے لغوه یعنی خبرے اُونکړی ځکه مینځ د خطبه کښې خبرے لغو کار دے۔ (نوویؒ) ۲- یا غوږ کیدی او په بل شی مشغول نشی۔ (از هرؒی) نو د لغو معنیٰ یو خبرے کول، یا په یو کار باندے ځان د خطبے نه مشغول کول دی۔
أَجْرُ صِيَامِهَا وَقِيَامِهَا : دا بدل دے د عمل نه یعنی هغه اعمال څه دی؟ نو هغه روژے او قیام اللیل دے۔
او دا فضیلت صرف د جُمعے دے، ورنه مطلق مانځه ته تلو باندے په هر قدم یوه درجه اُوچتیدل او یوه نیکی لیکل او یوه گناه معاف کیدل دی۔ او په جُمعه کښې ورسره دا زیاتی اَجر شو۔
**درجة الحديث** : اسناده صحیح : اخرجه احمد (۱۰٤/٤) وابوداود (۳٤٥) والترمذی (٤٩٠) والنسائی (۹۷/۳) وابن ماجه (۳٤٦/۱) رقم (۱۰۸۷) والحاکم (۲۸۲/۱) وحسنه العراقی وصححه الشیخ احمد شاکرفی شرحه للمسند (۱۷٦/۱۱) المرعاة (٤۷۳/٤)

---

**۱۳۸۹ (۹) — وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَلَامٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «مَا عَلٰى أَحَدِكُمْ إِنْ وَجَدَ اَنْ يَتَّخِذَ ثَوْبَيْنِ لِيَوْمِ الْجُمُعَةِ سِوٰى ثَوْبَيْ مَهْنَتِهٖ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.**
**(۱۳۹۰) ۱۰ — وَرَوَاهُ مَالِكٌ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ.**
ترجمه : او عبد الله بن سلام ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : « په تاسو کښې په یو

تـن بـانـدې چه څۀ مؤمن د جُمعې د ورځې دپاره د جامو د خدمت نه سوئ دوه جامې جوړولو کښې څۀ ګناه نشته»۔ (ابن ماجة)

**تشريح : ثَوْبَيْنِ** : نـه مـراد قـمـيـص پرتوګ، يا لُنګ او څادر، يا قميص او څادر دی نو ددې نه څلور جوړه جامې نۀ دی مراد۔ او په حديث کښې ترغيب دې چه په دوه جوړو ساتلو سره په انسان بانـدې څـه تـکـليف او حرج نشته يعنې زهد او تقوئ ئې پدې سره نۀ خرابيږي بلکه دا د إنسان ضرورت دې۔

**مَهْنَتِهِ** : په فتحه د ميم او دا اصح ده او قاموس کښې دی کسره هم جائز ده، خدمت او کار ته وائي۔

**درجة الحديث** : اسنـاده صحيح : اخرجه ابو داود (١٠٧٨) وابن ماجه (١٠٩٥) وقال البوصيري في الزوائد : اسناده صحيح رجاله ثقات۔ واسناد رواية مالك عن يحيى بن سعيد ضعيف معضل۔ الموطأ (١١٠/١ رقم ١٧)

---

**١٣٩١ (١١) – وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: « اُحْضُرُوا الذِّكْرَ وَادْنُوْا مِنَ الْإِمَامِ، فَإِنَّ الرَّجُلَ لَايَزَالُ يَتَبَاعَدُ حَتّٰى يُؤَخَّرَ فِي الْجَنَّةِ وَإِنْ دَخَلَهَا ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.**

---

**ترجمه** : او سمره بن جندب رضي الله عنه فـرمـائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دی :« وعـظ او نصيحت ته (پـه جـلـتـئ) حـاضـريږئ او امام ته نزدې کينئ؛ ځکه يو سړې به هميشه وړاندې کيږي تردې چه د جنت په داخليدو کښې به هم روستو شي، اګرکه داخل (هم) شي »۔ (ابوداود)

**تشريح** : مـطلب دا دې چه د جُمعې خطبې ته حاضري ورکوئ او امام ته نزدې کينئ، ډير کرت يـو سړې بـه د خـطبې د اوريدو او د صف اول نه روستو روستو کيږي کوم چه د مقربينو مقام دې تـردې چه الله به ئې د روستنو خلقو سره حساب کړي۔ ٢- يا يو سړې به د جُمعې مانځه له ناوخته ناوختـه راځي۔ ٣- يـا د خيـر هـر کـارتـه بـه ناوخته ناوخته راځي او هيڅ عذرئې نۀ وي نو دا که جنتي هم شي نـو روستـو بـه ورته داخليږي ځکه جزاء من جنس العمل وي، دنيا کښې چه ستا منده څومره الله طرفته زياته وي هغومره به جنت ته مخکښې ئې۔

او دا حـديث دليـل دې چه د جُـمـعې پـه ورځ د امام نه او د اولنو صفونو نه روستو روستو کيدل جنت ته د روستو داخليدو سبب دې نو دنيا کښې دومره لږه سُستي کول د آخرت په لحاظ ډير ضرر لـري۔ او دې کـښې دا مـطـلـب هـم دې چه که جنت ته داخل هم شي خو د جنت د اُوچتو درجتو او مقـامـاتو نه به محروم وي او پدې کښې د نيك اعمالو کښې د روستو روستو کيدو بدی بيان سره ده او د هغوی د عقلونو سپکاوې شوېدې چه دوی په معمولي څيزونو رضا دی، کم همته دی۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : اخرجه احمد (١١/٥) وابوداود (١١٠٨) والحاكم (٢٨٩/١) وقال صحيح على شرط مسلم ووافقه الذهبي وحسّنه الالباني فى الصحيحة (٣٦٥)

---

**۱۳۹۲ (۱۲) - وَعَنْ سُهَيْلِ بْنِ مُعَاذِ بْنِ اَنَسٍ الْجُهَنِيِّ، عَنْ اَبِيْهِ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَنْ تَخَطّٰى رِقَابَ النَّاسِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، اِتَّخَذَ جِسْرًا اِلٰى جَهَنَّمَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.**

**ترجمه** : او سهيل بن معاذ بن انس جهني د خپل والد محترم نه روايت كوي فرمائي: چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «چا چه د جُمعے په ورځ د خلقو په څټونو قدمونه وارول نو دهٔ جهنم طرف ته پُل جوړكړو» ـ دا روايت ترمذيؒ نقل كړے او وئيلي ئے دي: دا حديث غريب دے۔

**تشريح** : په څټونو باندے خپے اړول منع دي، وجه دا ده چه پدے كښ مسلمانانو ته تكليف وي او بل بے ادبي ده۔ لكه چه امام شافعيؒ په كتاب الام كښ دا خبره ليكلے ده۔نو دا علت بيا د جُمعے پورے خاص نهٔ دے بلكه هره ديني حلقه، لكه عِلمي، وَعْظِي، تربيتي اجتماع وي نو پدے كښ به د خلقو په اُوګو باندے بغير د اَشد ضرورت نه خپے اَړول ګناه وي او د جُمعے قيد ئے دلته اُولګولو دا په تغليب باندے حمل دے۔ او دا هله چه خلق صحيح ناست وي، او كه خلقو اول صفونه خالي پريخوستي وي او روستو ناست وي نو بيا د تيريدونكي ګناه نشته۔

بيا په اكثرو نسخو كښ عن معاذ بن انس عن ابيه لفظ دے دا نسخے خطاء دي ځكه د معاذ د والد انس دپاره صحبت نهٔ دے ثابت۔ كما قال الحافظ في الاصابة (٧٤/١) نو صحيح دا دے چه (عن سهل بن معاذ بن انس عن ابيه) يا دا چه د عن معاذ بن انس نه (ابيه) لفظ حذف شي هم معنىٰ به صحيح شي۔

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف : اخرجه الترمذى (٥١٣) وابن ماجه (١١١٦) وابويعلى فى مسنده (١٤٩١) والبغوى فى شرح السنة (٢٦٧/٤) رقم (١٠٨٦) وفى اسناده رشدين بن سعد و زبان بن فائد ضعيفان۔

---

**۱۳۹۳ (۱۳) - وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ اَنَسٍ: اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهٰى عَنِ الْحَبْوَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْاِمَامُ يَخْطُبُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَاَبُوْدَاوُدَ.**

**ترجمه** : او د معاذ بن انس رضي الله عنه نه روايت دے چه نبي ﷺ د جُمعے په ورځ چه اِمام خطبه وائي د اِحتباء كولو (ګونډو باندے كيناستلو) نه منع كړيده۔ (ترمذيؒ، ابوداودؒ)

**تشریح : الْحَبْوَةُ** : دا اسم مصدر د إحتباء دے او د إحتباء معنیٰ علماؤ دا ذکر کړیده چه سړے خپلے پوندئ أودروی او د هغے نه جامه راتاؤ کړی أو یا په زنګنونو باندے لاسونه أوتړی او دپاسه ئے پریے راواچوی۔ (قاضی عیاضؒ) علامه توربشتیؒ وائی : (( احتباء دیته وائی : چه سړے خپله ملا او پوندئ په یوه کپړه سره راجمع کړی او کله په لاسونو سره دا کار أوکړی))۔ ددے نه منع پدے وجه راغلے ده چه دا انسان ته خوب راکاږی نو د خطبے نه انسان غافله کوی۔ بله دا چه پداسے هیئت کښې تمکن په زمکه نهٔ وی نو په بعض اوقاتو کښې أودس ماتیدو ته خبره أورسی، نو بیا به ځی أودس به کوی نو د خطبے د أوریدو نه به محروم شی۔

۳– ډلرنګه پدے کار سره په نورو حاضرینو او خطیب باندے اثر کیږی۔ او دا قول د عباده بن نسیؒ دے کما نقله الترمذیؒ او د حسن بصریؒ، مکحولؒ او عطاؒ دے مع اختلاف النقل عن هؤلاء الثلاثة۔

او موطأ (۹۴/۱) کښې راځی چه عبد الله بن عمرؓ به په حالت د خطبه کښې احتباء کوله۔

**جواب** : اول خو دا بلاغ د مالك دے او سند نهٔ لری۔ دویم دا چه دا د عبد الله بن عمر ﷺ عمل دے چه پدے سره مرفوع حدیث نشی رد کیدلے، کیدے شی هغه ته به حدیث نهٔ وو رسیدلے، یا به پکښې هغه تاویل کولو۔ یا به هغه له په احتباء کولو سره خوب نهٔ ورتلو ځکه علت د منع یَرہ د خوب راتلو ده۔ او د ابن عمرؓ په شان عمل د انس بن مالكؓ او بعض تابعینو نه هم نقل دے۔ لکه امام ابوداودؒ د هغوی نومونه ذکر کړیدی : انس بن مالك ﷺ، شریح، صعصعه بن صوحان، سعید بن المسیب، ابراهیم النخعی، مکحول، اسماعیل بن محمد بن سعد او نعیم بن سلامه – رحمهم الله۔

لیکن د دوی روایتونه هم امام ابوداود په متصل سندونو سره نهٔ دی ذکر کړی صرف نومونه ئے ذکر کړیدی۔ (کما قال الشيخ الالباني في ضعيف ابی داود رقم (۲۴۲) بله دا چه د تابعینو اقوالو کښې حجت نشته۔

او د یعلی بن شداد بن أوس په روایت کښې چه د صحابه کرامؓ نه ددے جواز نقل دے چه هغه فرمائی : زهٔ د معاویهؓ سره بیت المقدس ته حاضر شوم نو هغه مونږ راجمع کړو، ما أوکتل چه په مسجد کښې مشران صحابه کرامؓ د امام د خطبے په حالت کښې إحتباء کړے وه) (اخرجه ابو داود ۱۶۵/۱) رقم (۱۱۱۰) نو دا روایت ضعیف دے (فِيهِ اِبْنُ الزِّبْرِقَانُ وَهُوَ ضَعِيفٌ) لهذا د جواز دلائل ضعیف دی۔ او دے بعض آثارو ته بعض علماؤ کتلی دی نو هغوی د نسخ قول کړیدے لکه امام ابوداودؒ هم دیته اشاره کوی۔ لیکن صحیح دا ده چه په عمل د صحابیؓ سره نسخ د مرفوع حدیث نشی کیدے۔

او بعض علماؤ دجواز فتوىٰ وركړيده هغوى ته احاديث النهى ضعيف ښكاره شويدى۔ ليكن صحيح دا ده چه ډير روايات دى چه راجمع شي نو ضرور يوه معنىٰ ترے ثابتيږي او ددے وجه نه محققين علماؤ هغه احاديث حسن درجه كښ شمارلى دى۔ نو د جواز خبره ضعيفه او دمنع خبره قوى ده۔ والله اعلم۔

او دا هغه حقه مسئله ده چه ائمه اربعهؤ پرے قول نۀ دے كړے۔ دا هم دليل دے چه حق صرف په څلورو مذاهبو كښ منحصر نۀ دے۔ بلكه ډير مسائل داسے شته چه احاديثو كښ ثابت وى او ائمه اربعهؤ پرے قول نۀ وى كړے۔ لكه هغه مسائل په فتاوى الدين الخالص (٢/٤) كښ اُوګوره۔

**درجة الحديث:** اسناده حسن : اخرجه احمد (٤٣٩/٣) وابوداود (١١١٠) والترمذى (٥١٤) وله شاهدان من حديث ابن عمرو عند ابن ماجه (١١٣٤) وحسنه الالبانى وجابر عند ابن عدى فى الكامل واسناده ضعيف ۔

---

**١٣٩٤ (١٤) – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« إِذَا نَعَسَ اَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فَلْيَتَحَوَّلْ مِنْ مَجْلِسِهٖ ذٰلِكَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.**

---

**ترجمه :** او ابن عمر ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلى دى : « كله چه يو تن ستاسو ته د جُمعے په ورځ (په خطبه كښ) خوب ورشي نو هغۀ دے د ځائے د ناستے نه بل طرف ته نقل شي (بل ځائے كښ دے كينى) »۔ (ترمذیؒ)

**تشريح :** د يوم الجمعة نه مراد توله ورځ د جُمعے نۀ ده بلكه كله چه په مسجد كښ د مانځه په انتظار كښ ناست وى يا خطبے اَوريدو ته ناست وى۔ او پدے ځائے بدلولو سره د انسان خوب زائله كيږى۔ بل د شيطان تسلط ضعيف كيږى۔ او دا اَوريدل پكار دى برابره ده كه په خطبه كښ وى او كه مخكښ د خطبے نه وى۔

احناف وائى : حالت د خطبه كښ اَوريدل ممنوع دى ځكه عمل په حالت د خطبه كښ منهى عنه دے۔ ليكن د دوى دا قول د ظاهر ددے حديث خلاف دے۔ ځكه حديث مطلق دے قيد د خطبے پكښ ندے راغلے، او دا معنىٰ ابوداودؒ فهم كړيده پدے وجه ئے داسے باب لګولے دے (بَابُ الرَّجُلِ يَنْعَسُ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ)۔ نو دا استثناء صحيح نۀ ده۔

**درجة الحديث :** اسناده صحيح : اخرجه احمد (٣٢/٢) وابوداود (١١١٩) والترمذى (٥٢٦) ورجاله ثقات غير ان فيه عنعنة محمد بن اسحاق لكن اخرجه احمد (١٣٥،٣٢/٢) عنه مصرحاً بالتحديث فى رواية صحيحة عنه۔

## الفصل الثالث

١٣٩٥ (١٥) - عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ: نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «أَنْ يُقِيْمَ الرَّجُلَ الرَّجُلَ مِنْ مَقْعَدِهِ وَيَجْلِسَ فِيْهِ». قِيْلَ لِنَافِعٍ: فِي الْجُمُعَةِ قَالَ: فِي الْجُمُعَةِ وَغَيْرِهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: نافع رحمه الله فرمائي: ما د ابن عمر ﷺ نه آوریدلي چه فرمایل ئې: رسول الله ﷺ ددې نه منع فرمائیلې ده چه یو سړې بل شخص لره د خپل ځائې نه پاڅوي او دا پکښې کیني، نافع ته اُوونیل شو: (دا ممانعت) د جُمعې په باره کښې دې؟ هغه اُوفرمایل: "جُمعې دپاره (هم) دې او د جُمعې نه علاوه هم"۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

تشریح: فِي الْجُمُعَةِ: یعني دا حکم عام دې جُمعې او غیر جُمعې دواړو ته شامل دې ځکه چه پدې کار کښې د مسلمانانو تحقیر او سپکاوي راځي او د هغوي زړۀ خفه کیږي او انسان کبر، عُجب او خود پسندي پیدا کیږي۔ دا حدیث دلیل دې چه څوک یو مباح ځائې ته مخکښې اُورسیدلو نو هغه پرې د بل چا نه ډیر مستحق دې۔

بیا پدې کښې حقیقي ناسته مراد ده۔ که یو انسان په یو ځائې کښې څادر یا جانماز اچولې وي او د مخکښې نه ئې ځانله ځائې نیولې وي، او في الحال پکښې حاضر نۀ وي لکه دا کار په حرمین شریفین کښې زیات کیږي نو دا مناسب نۀ ده بلکه که دغه ځائې ته بل څوك راغلو، هغه به مستحق وي۔ او د هغه جانماز یا څادر اخوا کولې شي۔ ځکه چه دا اِحترام د مجلس د اَجسامو دپاره دې، نۀ د څادرونو وغیره دپاره۔ بعض علماؤ وئیلي دي چه دا اَخوا کول جائز نۀ دي ځکه چه دا د حِجرُ الْمَوَات پشان دې چه یو مباح ځائې ځانله قبضه کړو او هغې ته ئې سبقت اُوکړو۔ نو دا پرې ډیر مستحق دې۔ لیکن دې کښې تفصیل دې یو د اوداسه دپاره پاڅیدل دي او بل د نورو اشغالو دپاره که د اوداسه دپاره پاڅیدلې وي نو بیرته راواپس کیدو کښې دا مستحق دې او که نورو کارونو له تلې وي بیا که ترې بل چا ځائې اُونیولو نو نۀ به ئې پاڅوي۔

بیا که یو انسان په خپله خوښه باندې پاڅیدو او بل څوك ئې په خپل ځائې کښې کینولو دا به جائز وي۔ او د عبد الله بن عمر ﷺ نه نقل دي چه هغه ته به څوك پاڅیدو نو بیا به په هغه ځائې کښې نۀ کیناستو نو دا محمول دې د هغۀ په تورّع باندې او حدیث کښې د هغې نه منع نشته۔ دارنګه که یو سړې د یو ځائې نه د ضرورت پوره کولو دپاره پاڅیدلو مثلاً اَودس تازه کوي نو که بیرته راواپس شو نو هغه د دغه ځائې ډیر مستحق دې۔

١٣٩٦(١٦) - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« يَحْضُرُ الْجُمُعَةَ ثَلَاثَةُ نَفَرٍ: فَرَجُلٌ حَضَرَهَا بِلَغْوٍ، فَذٰلِكَ حَظُّهُ مِنْهَا. وَرَجُلٌ حَضَرَهَا بِدُعَاءٍ، فَهُوَ رَجُلٌ دَعَا اللهَ، إِنْ شَاءَ أَعْطَاهُ وَإِنْ شَاءَ مَنَعَهُ، وَرَجُلٌ حَضَرَهُ بِإِنْصَاتٍ وَسُكُوْتٍ وَلَمْ يَتَخَطَّ رَقَبَةَ مُسْلِمٍ، وَلَمْ يُؤْذِ أَحَدًا، فَهِيَ كَفَّارَةٌ إِلَى الْجُمُعَةِ الَّتِي تَلِيْهَا وَزِيَادَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ، وَذٰلِكَ بِأَنَّ اللهَ يَقُوْلُ: ﴿مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا﴾ ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

---

**ترجمه** : عبد الله بن عمرو ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ اُوفرمايل :« جُمعے (مانځه) ته درے قسمه خلق حاضري وركوي : (١) يو هغه سړے دے چه جُمعے ته په لغو كاركولو سره راځي، (يعنى هغهٔ په خطبه كښ په بيهوده كلام او بيكاره كار مشغول كيږي) نو د جُمعے نه همدا ددهٔ حصه شوه، (يعنى د جُمعے د ثواب نه به محروم وي) (٢) دويم هغهٔ شخص دے چه جُمعے ته د دعاء دپاره حاضريږي. نو دا سړے به د الله نه دعاء اُوغواړي كه د هغهٔ اراده اُوشوه ورته وربه ئے كړي او كه اراده ئے اُوشوه نو منع به ئے كړي، (٣) او دريم هغهٔ سړے دے چه په خاموشئ اومشغله پريخودلو سره حاضريږي،او (دارنګه) د مسلمان په څټ باندے قدمونه نهٔ آړوي، او هيچا ته ضرر نهٔ رسوي، نو د هغه دپاره دا جُمعه د هغه جُمعے پورے چه دے ته نزدے ده او درے ورځے زيات (د ګناهونو) كفاره ده او ددے وجه دا ده چه الله تعالىٰ فرمائي : "څوك چه يو نيكى راوړي هغه ته به ددے نيكئ بدله لس چنده ثواب وركولے شي»۔ (ابو داودؒ)

**تشريح** : يعنى جُمعے مانځه ته خلق په درے قسمه نيتونو راځي يو هغه تن دے چه صرف عادي طريقے سره جُمعے مانځه ته راشي او بيا هلته لغو (فضول كار او خبرے) اُوكړي او بيرته واپس شي نو ددهٔ د جُمعے ثواب اُونشو بلكه د دغه لغو بدله ئے حاصله كړه، اګركه د مانځه نه غاړه ئے آزاده شوه۔ ○ دريم هغه سړے دے چه د دعا په نيت حاضر شي چه د جُمعے په ورځ دعاګانے قبليږي د مسلمانانو په دعاګانو كښ شركت كوي او ځانله دعاګانے غواړي نو په خطبه كښ دننه هم دعاګانے غواړي او د خطبے نه په دعاكولو سره مشغول وي يعنى دعاء ئے مقصود وي او خطبه ئے مقصد نهٔ وي اګركه خطبه واوري نو د الله خوښه ده يا به د خپل فراخه فضل او حلم په وجه دهٔ ته هغه حاجت وركړي او كه خوښه ئے شي نو د هغه نه به ئے منع كړي ځكه چه دهٔ غلط كار اُوكړو چه د خطبے د اوريدو نه په دعا كولو سره مشغول شو نو دا دده سزا شوه۔

○ دريم هغه سړے دے چه ډير په احترام سره جُمعے مانځه ته حاضر شي، لغو او فضول كار نهٔ

كوى او خطبے تـه متـوجه ناست وى او د مسلمانانو په څټونو باندے خپے وانۀ روى او هيڅ تـه ئے هيڅ قسم ضرر اُونۀ رسى نو ددۀ د جُمعے پوره ثواب كيږى چه لس ورځے گناهونه ئے معاف كيږى۔

**درجة الحديث**:اسناده حسن : اخرجه ابوداود (١١١٣) واحمد (٢/٢١٤) وابن خزيمة (١٨/٣)

---

**١٣٩٧ (١٧) - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :(( مَنْ تَكَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، فَهُوَ كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ اَسْفَارًا، وَالَّذِيْ يَقُوْلُ لَهُ: اَنْصِتْ، لَيْسَ لَهُ جُمُعَةٌ)). رَوَاهُ اَحْمَدُ.**

**ترجمه** : او ابن عباس رضي الله عنه فرمائى : رسول الله ﷺ فرمايلى دى : ((څوك چه د جُمعے په ورځ د امام د خطبے وئيلو په وخت كښ خبرے كوى نو ددۀ مثال د هغۀ خر په شان دے چه كتابونه ئے بار كړى وى۔ او هغۀ شخص چه هغۀ ته اُووائى : چپ شۀ ! د هغۀ دپاره د جُمعے ثواب نۀ شته))۔ (احمدؒ)۔

**تشريح** : د جُمعے په ورځ خطبه كښ خبرے كونكى ئے د هغه خر سره مشابه كړو چه كتابونه ئے بار كړى وى۔ وجه دا ده چه لكه څنگه چه خر باندے ډير فائده مند څيزونه (كتابونه) بار وى او د هغے بوج او تكليف برداشت كوى ليكن هغه ترے فائده نشى اخستے نو دغه شان دے انسان ډير تكليف اُوكړو چه خطبے تـه حاضر دے او ډير مفيد كلام دے ليكن دۀ ترے هيڅ فائده وانخستـه، بغير د فائدے حاصلولو نه ستړے شو۔ او په سورة جُمعه كښ د يهودو ذكر دے چه هغوى دغه شان وو، نو پدے كښ لطيفه اشاره ده تشبه باليهود ته، چه څوك د دين اوعلم نه فائده نۀ اخلى نو دا د يهودو سره مشابه كيږى۔

نو حديث دليل دے چه هر قسم كلام په حالت د خطبه كښ حرام دے، بعض علماء وائى : كه يو انسان د وړاندے والى يا د كوڼ والى د وجه نه خطبه نۀ اَورى، نو هغه دپاره په خطبه كښ خبرے جائز دى ليكن دا خبره د ظاهر د احاديثو خلاف ده، ځكه مخاطبين په دوه خبرو مأمور دى، يو په استماع (غوږ كيخودو) او بل په انصات (چپ كيناستو) او كله چه انسان وړاندے وى نو بيا صرف په انصات مامور دے اگركه استماع نشى كولے۔ انظر فتاوى الدين الخالص (٦/ ٢٣٠)

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف: اخرجه احمد (١/ ٢٣٠) وضعفه المنذرى فى الترغيب (١/٢٦٧) وفيه مجالد وهو ابن سعيد قال الحافظ ليس بالقوى وقد تغير فى آخر عمره۔ آه۔ لكنه من رواة مسلم والسنن الاربعة ففيه بعض الكلام)

---

**١٣٩٨ (١٨) - وَعَنْ عُبَيْدِ بْنِ السَّبَّاقِ، مُرْسَلًا، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِيْ جُمُعَةٍ مِنَ**

الْجُمَعِ: « يَا مَعْشَرَ الْمُسْلِمِيْنَ! إِنَّ هٰذَا يَوْمٌ جَعَلَهُ اللّٰهُ عِيْدًا، فَاغْتَسِلُوْا، وَمَنْ كَانَ عِنْدَهُ طِيْبٌ فَلَا يَضُرُّهُ اَنْ يَّمَسَّ مِنْهُ، وَعَلَيْكُمْ بِالسِّوَاكِ». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَه عَنْهُ.

١٣٩٩ (١٩) - وَهُوَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ مُتَّصِلًا.

---

**ترجمه :** او د عبيد بن سباقؒ نه په طريقه د ارسال نقل شوى دى چه فرمائى : رسول الله ﷺ د جُمعو نه په يوه جُمعه كښ اُوفرمايل : «اے د مسلمانانو ډلے! يقيناً دا ورځ الله تعالىٰ ستاسو دپاره اختر گرزولے دے، پدے كښ غسل كوئ او چا سره چه خوشبوئى وى، نو هغه ته د هغے په لگولو كښ هيڅ تكلف نشته (يعنى هغهٔ له پكار دى چه استعمال ئے كړى ځكه ددے په استعمالولو كښ تكليف نشته او فائده ئے شته) او تاسو باندے د مسواك استعمالول (هم) لازم دى»۔ (مالك، او ابن ماجهٔ (هم) د عبيد بن سباق نه نقل كړيدے)

(او ابن ماجه د ابن عباسؓ نه متصل سند سره نقل كړيدے)۔

عبيد بن السباق ابوسعيد الثقفى المدنى د اَوسط درجه تابعينونه دے، امام مسلمؒ د مدينے د تابعينو په طبقه اولىٰ كښ ذكر كړيدے۔

**تشريح :** مطلب د حديث دا دے چه د جُمعے ورځ د مسلمانانو دپاره د اختر ورځ ده، پدے كښ دوى خوشحالى كوى، پاكے جامے اَغوندى او خوشبوئى وغيره استعمالوى او د خپل رب په دربار كښ د هغه په عبادت باندے سر بَسُجود كيږى او د مؤمن خوشحالى د الله په بندگى كولو كښ ده۔ لهذا هر ممكن صفائى به كوى او خوشبوئى به استعمالوى، بيا د سړو دپاره داسے خوشبوئى استعمالول پكار دى چه بوئى ئے وى ليكن رنگ ئے نهٔ وى لكه عطر وغيره، او علامه ابن حجرؒ فرمائى: په ټولو كښ افضله خوشبوئى هغهٔ مَشك دى چه گلاب ورسره ملاؤ شوى وى ځكه نبى ﷺ به اكثر حالاتو كښ همدا قسم خوشبوئى استعمالوله۔

**تشريح :** اسناده صحيح : اخرجه مالك فى الموطأ (١/٦٦رقم ١١٣) ووصله ابن ماجه (١٠٩٨) وفيه ضعيفان ولكن له شاهدا من حديث ابى هريرة فى المعجم الصغير للطبرانى (١١٢٧) ورجاله ثقات. وبه يتقوى الحديث ويصح۔

---

١٤٠٠ (٢٠) - وَعَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: « حَقًّا عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ اَنْ يَّغْتَسِلُوْا يَوْمَ الْجُمُعَةِ، وَلْيَمَسَّ اَحَدُهُمْ مِنْ طِيْبِ اَهْلِهِ، فَإِنْ لَّمْ يَجِدْ فَالْمَاءُ لَهُ طِيْبٌ ». رَوَاهُ اَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ.

**ترجمه :** او براء بن عازب ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : ((په مسلمانانو باندے د جُمعے په ورځ لازم دي چه غسل اُوكړي، او په دوي كښې هر شخص دے د خپل كورخوشبوئي اُولګوي، كه هغه (خوشبوئي) نهٔ مومي نو بيا اُوبه د هغهٔ دپاره خوشبوئي ده))۔ (احمدؒ، ترمذيؒ) او امام ترمذيؒ وئيلي دي : دا حديث حسن دے۔

**تشريح :** پدے حديث كښې دا مسئله ده چه د جُمعے په ورځ غسل كول واجب دي ليكن دا مسئله مخكښې مونږ تفصيلاً د دلائلو سره ذكركړيده چه غسل كول سنت مؤكد دي بغير د ضرورت نه ئے پريخودل ندي پكار او واجب او فرض نهٔ دي۔

**فَالْمَاءُ لَهٗ طِيْبٌ:** مطلب دا دے چه د چا سره خوشبوئي نهٔ وي، او د هغه په كور كښې د زنانه وغيره سره خوشبوئي وي نو هغے ته دے واخلي ليكن پكار ده چه داسے خوشبوئي نهٔ وي چه هغے كښې رنګ وي بلكه عطر وغيره وي او كه هغوي سره هم خوشبوئي نهٔ وي، نو بيا دے صرف په لمبلو اكتفاء اُوكړي دا به په منزله د خوشبوئي قائم شي ځكه اُوبه د پاكئ او صفائي سبب دے او د بدن بد بوئي ورسره ختميږي۔

**درجة الحديث :** اسناده ضعيف : اخرجه احمد (٢٨٢/٤ (٢٨٣) والترمذي وقال حديث حسن وفي اسناده يزيد بن ابي زياد القرشي الكوفي قال الحافظ ضعيف كَبِرَ فَتَغَيَّرَ وصار يَتَلَقَّنُ۔ وهو في ضعيف الجامع الصغير (٢٧٣٧) ومعناه صحيح۔

OOOOOOO

# ٤٥- باب الخطبة والصلاة

**د جُمعې د خطبې او د مانځه او د هغې متعلق د صفات او کمالاتو او د اوقاتو بيان**

دلته يو څو مسائل دي. **١- اوله مسئله** : د جُمعې د خطبې څه حکم دې؟

١- جمهور اهل علم (شافعیؒ، ابوحنيفةؒ، مالكؒ) فرمائي : خطبه واجب ده، او بعض ښکښ وائي : خطبه شرط ده د صحت د جُمعې دپاره، ددې د وينا نه بغير مونځ نهٔ کيږي.

**د دوی دلائل** :

١- **يو دليل** :آيت ﴿ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ ﴾ پدې کښې امر دې په سعي باندې د الله ذکر ته بعنی خطبې ته نو سعي واجب ده ځکه چه سعي د غير واجب دپاره نهٔ وي.

٢- **دويم دليل**: په احاديثو کښې د نبیﷺ نه پدې خطبه باندې دوام او استمرار راغلې دې، نو دا دليل د وجوب دې.او ددې تائيد په (صلوا كما رأيتموني اصلي) سره کوي. او ددې قول تائيد عظيم آبادیؒ په عون المعبود (٣/٥٦) کښې کړې فرمائي : (قُلْتُ: وَالْحَقُّ مَعَ الْجُمْهُوْرِ) او امام نوویؒ هم د وجوب قول کړې. المجموع (٤/٥١٣) (١/٤٦٩)

ليکن ددې نه جواب دا دې چه مُجرد فعل دليل د وجوب نهٔ وي ځکه که دوام د فعل الرسول نه استدلال اُوکړې شي نو بيا خو نبیﷺ رفع اليدين عند التحريمة هم دائماً کړيدې هغې ته دې هم واجب او فرض اُووئيلې شي. او د (صَلوا) نه جواب دا دې چه پدې کښې صرف اَمر دې په واقع کولو د مانځه باندې په هغه طريقه چه نبیﷺ به واقع کولو او خطبه خو مونځ نهٔ دې لهذا ددې نه استدلال صحيح نهٔ شو. او د اول دليل نه جواب دا دې چه د ذکر الله نه مراد مونځ دې، نهٔ خطبه. علامه ابن حزمؒ وائي : دليل دا دې چه مخکښې او روستو ترې د مانځه تذکره ده مخکښې فرمائي : ﴿ إِذَا نُودِيَ لِلصَّلَاةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ ﴾ او روستو وائي ﴿ فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَاةُ فَانتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ﴾ لهذا دا سياق دليل دې چه د ذکر الله نه مراد مونځ دې نهٔ خطبه. علامه شوکانیؒ فرمائي : غاية الامر دا چه ذکر الله کښې دوه احتماله دي يو دا چه خطبه ترې مراد شي او بل دا چه مونځ مراد شي او د مانځه په وجوب کښې خو اتفاق دې او نزاع د جُمعې د خطبې په وجوب کښې ده لهذا دا دليل د وجوب نهٔ ګرزي.

٢- **قول ثاني** : حسن بصریؒ، ابن سيرينؒ، داود الظاهریؒ، ابن حزمؒ، او علامه الجوينیؒ فرمائي

:خطبـه د جُمعې مستحب او مسنون ده او واجب او فرض نهٔ ده او دا قول علامـه شوكانيؒ راجح گرځولې دې. او ديته ئې ظاهر قول وئيلې دې.او علامه سيد سابقؒ ئې تائيد كړيدې. دليل د وجوب ئې نشته نو بس راجح دا ده چه خُطبه سنت مؤكد ده، او فرض او واجب نهٔ ده او شرط د صحت د جُمعې دپاره بالكل نهٔ ده ځكه په شرطيت باندې هيڅ دليل نشته.

انظر الاجوبة النافعة للالباني (١/٥٠) وفقه السنة (١/٣٠٨) نيل الاوطار (٣/٣٢٦) عون المعبود (٣/٥٦) المُحَلّى (٥/٥٨) شرح مسلم (٣/٢٨٠)

**المسئلة الثانية : د خطبې مقدار څومره دې؟**

١- امام ابوحنيفةؒ، ابويوسفؒ او په يو روايت كښې امام مالكؒ فرمائي : د خطبې كم نه كم مقدار سبحان الله يا الحمد لله، يا الله أكبر يا لا اله الا الله وئيل دي. او پدې سره خطبه جائز كيږي چه په اوله خطبه كښې سبحان الله اُووائي او كينې او په دويمه خطبه كښې الحمد لله يا لا اله الا الله اُووائي. دا مذهب ضعيف دې. وجه دا ده چه ديته عُرفاً او شرعاً خطبه نشي وئيلې. او د احاديثو خلاف دې. د نبي ﷺ او خلفاءِ راشدينو نه هيڅ كله داسې خطبه نهٔ ده نقل. ٢- امام محمدؒ وائي : دومره خطبه به ضرور وائي چه هغې ته په عُرف كښې خطبه وئيلې شي. امام نوويؒ وائي دا قول د جُمهورو او د مالكؒ هم دې.

٣- امام شافعيؒ فرمائي : دواړه خطبې نهٔ صحيح كيږي مگر په حمد، صلاة على النبي ﷺ، وعظ او قراءت د يو آيت او دعاء للمؤمنين سره. او دا كارونه په خطبه كښې واجب دي.

٤- علامه ابو الحسن المباركفوريؒ فرمائي : زما په نيز راجح دا ده چه په خطبه كښې صرف حمد د الله او وعظ او نصيحت واجب دې، ځكه چه ديته خطبه وئيلې شي چه دا كارونه پكښې وي او مقصود د خطبې پدې سره حاصليږي او ددې نه سِوِئ درود په نبي ﷺ يا قرائت د قرآن، او دعا د مومنانو دپاره نو په خطبه كښې د هغې په شرطيت او وجوب باندې هيڅ دليل نشته. انتهىٰ.

٥- راجح دا ده چه روح د خطبې دا دې چه خلقو ته په كښې ترغيب او ترهيب وركړې شي او د همدې وجه نه خطبه مشروع شويده. او هرچه د حمد، يا درود، يا قراءت د قرآن شرط لگول دي نو دا خارج دي د مقصود د خطبې نه. او د نبي ﷺ په خطبه كښې دا كارونه اتفاقي طور سره واقع شويدي نو دا دليل نهٔ دې چه گنې دا واجب دي يا شرط دې. او د نبي ﷺ عادتِ مباركه به دا وو چه كله به هغوي يو مقصودي خبره كوله نو مخكښې به ئې ترې ثناء على الله او حمد او درود وئيلو بيا به ئې امّا بعد نه روستو مقصود كښې شروع كوله. او دغه مقصود د خطبې نه دې. حاصل دا چه روح د خطبې موعظه حَسَنه ده كه قرآن وي او كه حديث وي. او نبي ﷺ به كله

تقریر په قرآن باندے کولو، ټول سورت به ئې کله اُولوستو لکه سورة ق او سورة تبارك الذی وغیره او کله به ئې بعض آیتونه اُولوستل لکه یو کرت ئې پکښې ﴿ وَنَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ، قَالَ إِنَّكُمْ مَاكِثُونَ ﴾ آیت اُولوستو او کله به ئې ﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ﴾ آیت لوستو وغیره۔ مقصود پدے سره وعظ او نصیحت وو۔ لهذا حمد یا شهادتین وئیل یا صلاۃ علی النبی ﷺ وئیل دا ټول مقدمات او تمهیدات دی د خطبے دپاره او مقصود بالذات وعظ او تذکیر دے۔ لکه روستو به راشی (یُذَکِّرُ النَّاسَ) لکه دا خبره علامه شوکانیؒ په (السیل الجرار: ۱/۲۹۹) کښې او علامه البانیؒ په الاجوبة النافعة (۵۳) کښې او علامه صدیق حسن خانؒ په الروضة الندية (۱/۱۳٤) کښې او سید سابقؒ په فقه السنة (۱/۳۱۰) کښې ذکر کړیده۔

**المسئلة الثالثة :** خطبه د عربی لغت نه غیر په بل لغت لوستل څه حکم لری؟

۱- احناف وائی : عربی کښې خطبه لوستل سنت عملی دے او په بله ژبه باندے لوستل ئې هم جائز دی۔ ۲- ائمه ثلاثه وائی : خطبه په عربی کښې واجب ده۔ او په بله ژبه خطبه د جُمعے صحیح نهٔ ده۔ لهذا عربیت شرط ګنړی۔

کما فی الفقه علی المذاهب الاربعة (۱/۳۹۱) والمجموع (٤/٥٢١)

دلیل دا دے چه پدے باندے د نبی ﷺ او دخلفاءِ راشدینو مستمر عمل دے۔ لیکن جواب دا دے چه فعل د نبی ﷺ دلالت په وجوب نهٔ کوی پاتے لا دا چه په شرطیت دلالت اُوکړی۔ او نبی ﷺ او خلفاء راشدینو په عربی کښې خطبه ځکه وئیلے ده چه هغوی عرب وو او په بله ژبه نهٔ پوهیدل او مخاطبین ئې هم عرب وو۔

۳- تحقیقی قول دا دے چه خطبه کښې غرض ته کتل پکار دی نو غرض د خطبے نه تذکیر العوام او هغوی ته نصیحت او د اسلام قواعد او د الله حدود بیانول دی نو که تا ته عرب ناست وی نو عربی کښې به کولے شی او که عجم ناست وی نو عجمی کښې هم جائز ده، دا وجه ده نبی ﷺ خاص الفاظ د خطبے ندی مقرر کړی بلکه هر قسم تقریر کول جائز دی چه خلقو ته د دین بیان اُوشی او د هغوی اصلاح اُوشی، نو تلفظ په عربی باندے خاص عبادت نهٔ دے۔ بلکه د خطبے مقصود اِفهام (د خلقو پوهه کول) او تذکیر د عوامو دے۔ لهذا سنت دا ده چه اول به خطبة الحاجة په عربی کښې اُووائی لکه څنګه چه هغه سنت عمل دے، او بیا به وعظ او تذکیر په خپله ژبه کښې شروع کړی۔

**دلائل : ۱- یو دلیل آیت دے :** ﴿ وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهِ لِيُبَيِّنَ لَهُمْ ﴾ (ابراهیم ٤) دا آیت دلیل دے چه الله هر پیغمبر د قوم په ژبه او لغت رالیږلے دے، دے دپاره چه خلقو ته بیان

اُوکړی او بیان د هر قوم د هغوی په ژبه کولے شي، نو که څوك یو عجمی ته عربی شروع کړی او هغه پرے نهٔ پو هیږی نو دا بیان نشو، او که عربی ته عجمی کښې تقریر کوی نو مقصود د بیان نهٔ حاصلیږی۔

**٢ - دلیل** : که خطبه په غیر د عربی باندے جائز نهٔ وے یا مکروه وے، نو نبی ﷺ به د هغے بیان په قول یا په اشاره سره کړے وے، او که دا شرط وے نو ضرور به پیغمبر ددے بیان کولے او حال دا چه د نبی علیه السلام نه ددے په باره کښې هیڅ قول او اشاره نهٔ ده نقل، او نبی ﷺ خو د بیان دپاره راغلے وو او د کوم څیز نه چه شارع غلے شی نو اُمت ته ئے د هغے اجازه ورکړے ده۔(وَمَا سَكَتَ عَنْهُ فَهُوَ مِمَّا عَفَى عَنْهُ) نو هیچا دپاره دا جائز نهٔ دی چه په خلقو باندے هغه شے لازم کړی چه الله او رسول پرے لازم کړی نهٔ وی۔

**٣ - دلیل** : نبی ﷺ د خطبے دپاره الفاظ او کلمات ندی معین کړی چه د هغے نه سوئ نور دے جائز نهٔ وی، سوئ د خطبة الحاجة نه چه د هغے الفاظ منقول دی همغه الفاظ لوستل سنت طریقه ده (لکه د هغے بیان په ابتداء ددے کتاب کښې اُوګوره) بلکه نبی ﷺ به مختلف قسم خطبات وئیل او دغه شان خلفاء راشدینو او روستنو د دین نورو امامانو به یو قسم خطبے نهٔ وئیلے بلکه جُدا جُدا خطبے به ئے وئیلے، هر کله چه شارع ددے دپاره الفاظ مقرر نهٔ کړل نو ددے نه معلومه شوه چه دا خطیب ته سپارل شویدی چه هر قسم تقریر کوی او په هره ژبه چه خلق پو هولے شی هغه به استعمالوی۔

**٤ - دلیل** : روستو حدیث کښې راځی : ویذکر الناس) نبی ﷺ به په خطبه کښې خلقو ته وعظ او تذکیر کولو او دا هله ممکن ده چه خلق پو هیږی او فهم او پو هه به هله رازی، چه خطیب داسے لغت استعمال کړی چه مخاطبین پرے پو هیږی۔

**٥ - دلیل** : د عام فقهاء امت او امامانِ دین دا رأیه ده چه روح د خطبے دا دے چه د قرآن وغیره نه بنائسته وعظ او نصیحت اُوکړے شی او خلق په احکامو د شرع او قواعدو د اسلام او حدودو د الله باندے پو هه کړے شی او دا هله ممکن ده چه خطیب لغت دهغه خلقو استعمال کړی لکه دا روح د خطبے ډیرو علماو بیان کړیدے علامه صدیق حسن خان القنوجیؒ په الروضة الندیة، علامه الصنعانیؒ په سبل السلام (٤٨/٢) کښې فرمائی : خطیب به امر او نهی کوی او که کومه ناڅه راپیښه شی نو د هغے بیان به کوی او دا کارونه هله کیږی چه خلق د خطیب په لغت پو هیږی۔ دارنګه امام نوویؒ په شرح مسلم (٢٨٥/١) کښې، شوکانیؒ په نیل الاوطار (٣٠٧/٣) کښې، عبید الله المبارکفوریؒ په المرعاة (٤٩٤/٤) کښې او علامه عظیم آبادیؒ په عون المعبود (٤٢٨/١) کښې

ليكلې دي۔ دارنګه عام فقهاءِ احنافو وئيلي دي چه خطيب به خلقو ته په خطبه کښې احکام الفطر او احکام التشريق وغيره بيانوي او په خطبه د جمعه کښې به وعظ او تذکير کوي۔ بدائع الصنائع (٢٦٥/١) طحطاوي (٣٥٥/١) الهندية (١٥٠/١) الدر المختار (٦٦٧/١) البحر الرائق (١٤٧/٢) عمدة الرعاية (٢٠٣/١) دارنګه زاد المعاد (٤٠٩/١) د خطبې دا روح ذکر کړيدے۔

٦- **تائيد :** دا فتویٰ د ډيرو محققينو ده چه خطبه په غير عربي کښې هم جائز ده عند الضرورة نو ددے علماؤ فهم هم د جواز دپاره مؤيد دے، لکه دا قول ١- د علامه مبارکفوريؒ دے په مرعاة (٤٠٤/٤) کښې ٢- د عظيم آباديؒ دے په عون المعبود (٤٢٨/١) کښې ٣- په الفتاوی الثنائية (٦٢٢/١) کښې هم دغه شان فتویٰ ذکر ده۔ ٤- دا فتوی د عبد العزيز بن باز مفتي الديار السعوديه (رحمه الله) ده۔ ٥- د الشيخ صالح العثيمينؒ ده د هغه په کتب او رسائل کښې۔

٦- دا فتوی د شيخ نذير حسين دهلويؒ شيخ الکل في الکل ده (فتاوی نذيريه ٦١٣/١) ٧- دا فتویٰ د علامه عبد الحق دهلويؒ او شيخ عبد الحی اللکهنويؒ ده لکه په جديد فقهي مسائل (٥٩/١) کښې خالد سيف الله نقل کړيده۔

٧-**دليل :** که خطبه چرته په عربي کښې لازمه شي نو بيا دا نقصان راځي چه بيا به هميشه دپاره خطيبان همدغه يوه خطبه وائي لکه نن صبا هم دا رواج جوړ شوے چه په عام مساجدو کښې يوه خطبه وئيلے شي او حال دا چه دا د نبي ﷺ د سنتو خلاف ده ځکه چه هغه به د موقع او محل مطابق خطبه وئيله نو څوك چه خطبه په غير عربي کښې جائز نۀ وائي هغوی له پکار دی چه هميشه يوه خطبه اُونۀ وائي بلکه جُدا جُدا خطبې اُووائي۔ فتدبر۔ او څوك چه خطبه په بله ژبه جائز ګڼړي نو هغوی پدے خلاف سنت کښې نۀ داخليږي۔

بلکه ډير کرت خطيب د خطبې په معنیٰ هم نۀ پو هيږي صرف الفاظ ئې ياد کړي وي۔

○ بل پدے بدعت کښې اَخته شوي وي چه ددے خطبې نه مخکښې په خپله ژبه کښې بيان کوي، حال دا چه ددے په ذخيره د احاديثو کښې هيڅ ثبوت نشته۔ ○ بله دا چه پدے کار کښې دا خلاف سنت هم راځي چه دوی اول بيان کوي بيا څلور رکعاته سنت کوي، بيا دويم اذان کوي بيا هغه خطبه وائي چه عوام پرے نۀ پو هيږي بيا مونځ کوي او حال دا چه نبي ﷺ به شروع : اذان اُوکړه بيا خطبه بيا مونځ۔ نو څوك چه خطبه په عربي کښې لازم ګڼړي نو په دغه مخالفتونو او بدعاتو کښې به اَخته کيږي۔ او څوك چه عربي لازمه نۀ ګڼړي نو هغوی صرف په يو مخالفت کښې واقع کيږي او هغه دا چه دۀ نه پدې ... کښې د خطبې وئيل فوت شو کومه چه به نبي ﷺ وئيله ليکن دا فوت کيدل هم د ضرورت په رجه دی لهذا دا فوت کيدل هم مرفوع دی۔

راجع لتفصيل المسئلة فتاوى الدين الخالص (٦/٢٤٢) وروح الخطبة للشيخ عبد العزيز النورستانيؒ۔

الفصل الاول

**١٤٠١ (١) - عَنْ اَنَسٍ: اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُصَلِّي الْجُمُعَةَ حِيْنَ تَمِيْلُ الشَّمْسُ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.**

**ترجمه** : د انس ؓ نه روایت دے، چه نبی ﷺ به د جُمعے مونځ په هغهٔ وخت کولو چه نمر به (د آسمان د مینځ نه) مائل (کوږ) شو۔ (بخاریؒ)

**تشریح** : حِيْنَ تَمِيْلُ الشَّمْسُ؛ یعنی نبی ﷺ به د زوال نه پس د جُمعے مونځ کولو او (کان) لفظ ئے راوړو اشاره ده دوام ددے کار ته نو دا دلیل دے د جُمهورو علماؤ چه اول وقت د جُمعے د زوال الشمس نه روستو دے۔ لکه د ماسپښین د وقت په شان۔ او قبل الزوال نهٔ کیږی۔ لیکن پدے کښې اختلاف شته۔

## آیا د جُمعے مونځ د زوال نه مخکښې جائز دے؟

دا مسئله اختلافی ده: ١- جمهور ائمه فرمائی: جُمعه قبل الزوال نهٔ صحیح کیږی۔ دوی سره دلیل کښې هغه احادیث دی چه په هغے کښې نبی ﷺ او صحابه کرامؓ د جُمعے مونځ بعد الزوال کړیدے۔ ٢- قول ثانی: په مشهورو امامانو کښې د امام احمد بن حنبلؒ او اسحاق بن راهویهؒ فتویٰ دا ده چه جُمعه قبل الزوال جائز ده او دا قول د عطاؒ او مجاهدؒ دے کما فی المغنی (٢٠٨/٤) او علامه شوکانیؒ په نیل الاوطار (٣١٨/٣) کښې او شیخ البانیؒ په الاجوبة النافعة (٢١، ٢٥) کښې راجح کړیدے او شیخ محمد ظاهرؒ په احکام الجمعة کښې ورته قوی وئیلے دے ص (٩٥)۔

**دلائل الجواز** : شلور دلائل مخکښې په آخر دشلورم جلد باب اوقات النهی (٥٦٩/٤) کښې ذکر شویدی۔ دلته نور دلائل دا دی: ١- **دلیل** : جابر بن عبد الله ؓ فرمائی: (اِنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُصَلِّي الْجُمُعَةَ ثُمَّ نَذْهَبُ اِلٰى جِمَالِنَا فَنُرِيْحُهَا حِيْنَ تَزُوْلُ الشَّمْسُ يَعْنِي النَّوَاضِحَ) (رواه احمد ومسلم والنسائی) (المنتقی بشرح النیل ٣/ ٣١٨)

(نبی ﷺ به د جُمعے مونځ کولو بیا به مونږ خپلو اُوښانو له لاړو هغوی له به مو راحت ورکړو کله چه به نمر زائل شو) دا حدیث صریح دلیل دے چه جُمعه قبل الزوال جائز ده۔

علامه شوکانیؒ فرمائی: پدے کښې د تاویلاتو تعسُّف ته ضرورت نشته۔ (بعض وائی: کیدے شی چه حین تزول الشمس متعلق وی د یصلی سره جواب دا دے چه په صحیح مسلم کښې

ورسره دا زیادت راغلے دے۔ حسن بن عیاش راوی وائی : ما جعفر بن محمدؒ ته اُووئیل: (اَیُّ اٰیَۃٍ سَاعَۃٍ تِلْكَ ؟ قَالَ: زَوَالُ الشَّمْسِ) (یعنی دا د اُوبنانو راحت به په کوم وخت کښ وو؟ هغه اُوفرمایل : په زوال د نمر کښ) معلومه شوه چه مونځ مخکښ د زوال نه شویدے او اراحة (اوبنانو ته راحت ورکول) په زوال کښ۔ دارنګه متعلق قریب جوړول غوره دی نهٔ بعید۔

۲-**دلیل** : روستو متصل راتلونکے حدیث د سهلؓ کښ دی : چه مونږ به د جُمعے نه روستو قیلوله او غداء (ناشته) کوله۔ (متفق علیه) دا هم واضح دلیل دے څکه چه قیلوله او ناشته قبل الزوال کولے شی۔لکه دا قول د ابن قتیبۃ نه نقل دے : (لَایُسَمّٰی غَدَاءً وَلَا قَائِلَةً بَعْدَ الزَّوَالِ)۔ یعنی غداء او قیلوله دیته وائی چه قبل الزوال وی۔لیکن راجح دا ده چه قیلوله نصف النهار کښ استراحت کولو ته وائی لکه روستو راځی۔

۳-**دلیل** : عبد الله بن سلمة فرمائی : (صَلّٰی بِنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ الْجُمُعَةَ ضُحًی، وَقَالَ : خَشِیْتُ عَلَیْكُمُ الْحَرَّ) (مونږ ته عبد الله بن مسعودؓ د جُمعے مونځ په چاشت وخت کښ اُوکړو او بیائے اُوفرمایل : (ما جلتی ځکه اُوکړه چه) زهٔ په تاسو باندے د ګرمئ نه یریدلم)۔

(ابن ابی شیبة ۱/۲۰٦/۲) (الاثرم فی سننه) (المغنی ۲/۲۰۹) والشرح الکبیر (۲/۱٦٤) والنیل (۳/۳۲۰) وحسنه الالبانی فی الارواء (۳/٦۱) صلاۃ المسافر)

٤- **دلیل** : سعید بن سویدؒ فرمائی :[صَلّٰی بِنَا مُعَاوِیَةُ الْجُمُعَةَ ضُحًی]
(مونږ ته معاویه ﷺ د جُمعے مونځ په چاشت کښ اُوکړو)

(ابن ابی شیبة) ابن ابی حاتم (٦۲/۱/۲۹) وسنده جید ان شاء الله قاله الالبانی فی الارواء)

۵-**دلیل** : دغه شان عمل د سعد بن ابی وقاص، جابر، سعید بن زید رضی الله عنهم وو چه دوی قبل الزوال د جُمعے مونځونه کړیدی۔

(ابن ابی شیبة) المنتقی بشرح النیل ۳/۳۱۹) والمغنی (۲/۲۰۹)

٦- **دلیل** : عبد الله بن سیدان السلمی رحمه الله فرمائی : شَهِدْتُ الْجُمُعَةَ مَعَ اَبِیْ بَكْرٍ فَكَانَتْ خُطْبَتُهٗ وَصَلَاتُهٗ قَبْلَ نِصْفِ النَّهَارِ ثُمَّ شَهِدْتُهَا مَعَ عُمَرَ فَكَانَتْ صَلَاتُهٗ وَخُطْبَتُهٗ اِلٰی اَنْ اَقُوْلَ انْتَصَفَ النَّهَارُ ثُمَّ شَهِدْتُهَا مَعَ عُثْمَانَ فَكَانَتْ صَلَاتُهٗ وَخُطْبَتُهٗ اِلٰی اَنْ اَقُوْلَ زَالَ النَّهَارُ فَمَا رَاَیْتُ اَحَدًا عَابَ ذٰلِكَ وَلَا اَنْكَرَهٗ)

(الدارقطنی) (والامام احمد فی روایة ابنه عبد الله واحتج به) واخرجه ابن ابی شیبة بسند صحیح (۱/۲۰٦/۲) وحسنه الالبانی کما فی الارواء (۳/٦۱) رقم (۵۹۵) قال الحافظ فی الفتح (۲/۳۲۱): رجاله ثقات الا عبد الله بن سیدان فانه تابعی کبیر الا انه غیر معروف العدالة، قال ابن عدی : یشبه المجهول لکن اجاب عنه الالبانی بقوله: قلت : قد روی عنه اربعة من الثقات وهم ثابت بن الحجاج وجعفر بن برقان کما فی الجرح والتعدیل

(۲/۸۶/۲) ومیمون بن مهران وحبیب بن ابی مرزوق کما فی ثقات ابن حبان (۱/۱۰۶) الاجوبة النافعة للشیخ الالبانی ص (۲۳) انتهی فصح الحدیث والحمد لله وقد غلا القاری فقال: وقد اتفقوا علی ضعف ابن سیدان (المرقاة)۔

(ترجمه: زهٔ د ابوبکر صدیق سره د جُمعې مانځه ته حاضر شوم نو د هغه خطبه او مونځ د نصف النهار نه مخکښې وو، بیا د عمرؓ سره جُمعې مانځه ته حاضر شوم نو د هغه خطبه او مونځ نصف النهار ته نزدې وو، بیا د عثمانؓ سره حاضر شوم نو د هغه مونځ او خطبه زوال ته نزدې وه او ما هیڅوك نهٔ دې لیدلې چه د دوی پدې کارئې عیب وئیلې وی یائې پرې انکار کړې وی) (سند ئې صحیح دې)۔

دا حدیث واضح ثبوت دې چه صحابه کرامؓ به کله ناکله قبل الزوال هم د جُمعې مونځ کولو او ددې سره هغه احادیث معارض نهٔ دی چه په هغې کښې د جُمعې مونځ بعد الزوال راغلې دې لکه دا تعارض حافظ په فتح الباری کښې ذکر کړیدې۔ وجه دا ده چه صحابه کرامؓ دواړه عملونه لیدلی دی او په دواړو ئې عمل کړیدې کله ئې قبل الزوال هم کړیده او عام حالت کښې به ئې بعد الزوال کوله۔ (الاجوبة النافعة ص (۲۱) للشیخ الالبانی) نیل الاوطار (۳/۳۲۰)

علامه ابن قدامهؒ ددې حدیث نه دلیل نیولې چه د زوال نه مخکښې د جمعې د مانځه په جواز باندې د صحابه کرامؓ اجماع ده ځکه دلته ابوبکرؓ او عمرؓ قبل الزوال مونځ د جُمعې کړې او هیچا پرې عیب نهٔ دې وئیلې لهٰذا دا اجماع دلیل د جواز شو۔ (المغنی ۲/۲۰۹)

نور دلائل هم شته لیکن هغه لږ بعید دی۔ راجع المغنی وعون المعبود، والنیل)

**خلاصه** دا شوه چه د ټولو فقهاءِ اُمت په نیز دا اتفاقی خبره ده چه د جُمعې د مانځه د لزوم وخت بعد الزوال دې او په هغه وخت کښې بهتر او افضل ده ځکه چه پدې باره کښې دیر او صحیح او صریح احادیث راغلی دی چه احتمال د تاویل نهٔ لري مګر د حنابلو په نیز باندې تقدیم ئې هم جائز دې، دې دپاره چه عمل راشی په هغه احادیثو چه په هغې کښې قبل الزوال جُمعه أدا کیدل راغلې دی او هغه مُعطل او مُهمَل نشی، نو کله ناکله په هغې باندې هم عمل پکار دې، که چا دا عمل اُوکړو دیته به بَدْ نشی کتلې بلکه جائز به وی۔ لکه دا خبره علامه عظیم آبادیؒ په عون المعبود (۳/۴۷) الصلاة یوم الجمعة) کښې او علامه البانیؒ په الاجوبة النافعة (۲۳) کښې او علامه محمد ظاهر په احکام الجمعه (۹۵) کښې او علامه عبد الله البسامؒ په توضیح الاحکام (۲/۳۲۳) کښې راجح کړیده۔ وهو الحق الذی لا محیص عنه۔ او ددې دلائلو نه په تکلف سره تاویلاتو ته حاجت نشته کما قال الشوکانیؒ فی النیل والبسام۔ وَقَالَ الْبَسَّامُ: وَالْاِجْتِمَاعُ وَعَدَمُ

التَّفَرُّقِ اَوْلٰی وَاَحْسَنُ۔ وَاللّٰهُ الْمُوَفِّقُ انتهیٰ۔ یعنی که څوك ددې مسئلې سره ناشنا وی نو په اتفاقی مسئلو عمل دیر غوره دې مګر که مخکښې نه ددې په باره کښې د خلقو ذهن جوړ کړې شی او خلقو کښې ددې سنت والې مشهور شی نو بیا پرې عمل پکار دې۔

---

۱۴۰۲ (۲) – وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ: مَا كُنَّا نَقِيْلُ وَلَانَتَغَدّٰی اِلَّابَعْدَ الْجُمُعَةِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او سهل بن سعد ﷺ فرمائی : مونږ به د غرمې خوب (قیلوله) او خوراك د جُمعې (دمانځه) نه روستو کولو۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

تشریح : نَقِیْلُ: دا د باب د باع یبیع نه مصدر ئې قیلولة دې۔

علامه ابن الاثیرؒ په النهایه کښې لیکی : (اَلْمَقِیْلُ وَالْقَیْلُوْلَةُ اِلْاِسْتِرَاحَةُ نِصْفَ النَّهَارِ وَاِنْ لَمْ یَکُنْ مَعَهَا نَوْمٌ) (قیلوله په نیمائی ورځ کښې آرام کولو ته وائی اګرکه خوب ورسره نهٔ وی)۔

دا حدیث دلیل دې چه هرکله صحابه کرامؓ په زمانه د نبی ﷺ کښې ناشته او قیلوله د جُمعې نه پس کړې ده نو د جُمعې مونځ ئې قبل الزوال کړیدې ځکه چه د ناشتې او قیلولې په وخت کښې مونځ اُوشو او ناشته او قیلوله د جُمعې نه روستو شو۔ قلب مکانی پکښې اُوشو۔ دارنګه دا حدیث دلیل دې چه د جُمعې په ورځ ناشته او قیلوله د مانځهٔ نه روستو سنت عمل دې۔ نو پدې کښې دُ تاویل کول چه دوی به وختی مانځه ته تلل او د وختی تللو په وجه به ترې قیلوله او ناشته پاتې شوه بیا به ئې د مانځه نه پس کوله– دا تاویل خلاف الظاهر دې۔

بیا چه جُمعه قبل الزوال ادا کوی نو دا به دیر وختی نهٔ ادا کوی بلکه د ضُحیٰ د وخت نه پس به اداء کولې شی یعنی یولس دولس بجو وخت کښې لکه د غداء او قیلوله لفظ پرې دلیل دې۔ځکه چه دوی به قیلوله او ناشته تقریباً همدغه نصف النهار ته قریبه ادا کوله۔ او دیر وختی ادا کولو باره کښې دلیل نشته۔ او د امیر یمانیؒ دا تاویل هم مناسب نهٔ دې چه وائی صحابه کرامؓ به په مکه او مدینه کښې قیلوله او ناشته د ماسپښین مانځه نه پس کوله لکه آیت کښې دی : وَحِیْنَ تَضَعُوْنَ ثِیَابَکُمْ مِنَ الظَّهِیْرَةِ الخ– وجه دا ده چه یو خو دا د لغت خلاف دہ۔ دویم دا چه دلته صحابی ورسره قید د جُمعې اُولګولو نو ددې نه معلومه شوه چه دوی به قیلوله او ناشته قبل الظهر کوله او صرف د جُمعې په ورځ به ئې بعد الجمعه کوله فتفکر۔

١٤٠٣ (٣) - وَعَنْ أَنَسٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا اشْتَدَّ الْبَرْدُ بَكَّرَ بِالصَّلَاةِ، وَإِذَا اشْتَدَّ الْحَرُّ أَبْرَدَ بِالصَّلَاةِ، يَعْنِي الْجُمُعَةَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه : او انس ﷺ فرمائي : نبي ﷺ به چه كله د سختې يخنۍ موسم وو نو د جُمعې مونځ به ئې وختې (د زوال پسې متصل) كولو او كله چه به ګرمي سخته وه نو د جُمعې مونځ به ئې ناوخته كولو. (بخاري)

تشريح : پدې حديث كښې يوه قصه ده او هغه دا چه حكم بن ابي عقيل الثقفيّ د خپل ترهٔ ځوي حجاج بن يوسف الثقفي د طرف نه په بصره باندې نائب وو او حَكم د خپل ترهٔ ځوي په طريقه باندې ووچه د جُمعې خطبه ئې ډيره اُوګدوله تردې چه نزدې ده چه وخت اُووځي. بعض خلقو د حَكم پدې كار باندې انكار اُوكړو. نو حكم د انس بن مالك ﷺ نه تپوس اُوكړو : (كَيْفَ كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يُصَلِّي الظُّهْرَ ؟) (نبي ﷺ به د ظهر مونځ څنګه كولو؟) نو انسؓ دغه جواب وركړو كوم چه په دې حديث كښې ذكر دې. چه يخنئ كښې به ئې وختې كولو او ګرمئ كښې به ئې ناوخته.

پدې حديث كښې د ((يعني الجمعة)) لفظ زيادت د انس بن مالكؓ يا د لاندې راوي د طرفنه دې چه هغوي دا فهم كړيده چه دلته ذكر د عام فرد دې، شامل دې جُمعې او ظهر دواړو ته.

دليل دا دې چه په روايت د اسماعيلي كښې د انسؓ نه په بل سند كښې د ((يعني الجمعة)) لفظ نشته. او د انس بن مالكؓ رايه دا ده چه جُمعه په شان د ظهر ده نو په اُوړي كښې ناوخته او په ژمي كښې وختې كول سنت دي. لكه څنګه چه دا د سوال او جواب نه معلوميږي. او ديته د امام بخاريؒ ميلان هم دې او دا قول د احنافو هم دې. دوي وائي : صلاة لفظ ظهر او جُمعې دواړو ته شامل دې لهذا جُمعه او ظهر پدې حكم كښې شريك دي.

ليكن بل طرفته اكثر احاديث دلالت كوي چه د جُمعې او د ظهر ترمينځ فرق دې، نو په جُمعه كښې علىٰ كل حال تعجيل سنت دې، اُوړې وي او كه ژمې، او نبي ﷺ به دا په يو وخت كښې كوله لكه دا خبره علامه ابن قدامهؒ په المغني (٣٩٠/١) كښې ذكر كړيده چه نبي ﷺ به هميشه بعد الزوال كوله او تاخير به ئې پكښې نهٔ كولو دليل دا دې چه سلمه بن الاكوع ﷺ فرمائي :(كُنَّا نُجَمِّعُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ) (متفق عليه) (مونږ به د رسول الله ﷺ سره د جُمعې مونځ د زوال په وخت كښې كولو) او دا خبره مونږ ته نهٔ ده رارسيدلې چه هغه جُمعه روستو كړې وي بلكه هغه به جلتئ سره په اول وخت كښې كوله ○ لكه سهل بن سعد ﷺ فرمائي : مونږ به قيلوله او ناشته د جمعې نه پس كوله. (بخاري) ○ بله دا چه جُمعې ته وختې تلل سنت

دی او دے تہ ډیر خلق د لرے لرے ځایونو نه راجمع کیږی نو که دا روستو کړے شی خلقو ته پکښ تکلیف ملاویږی۔ او خلق په دومره اُوګد انتظار د امام باندے مشقت کښ پریوځی لهذا تقدیم به کولے شی۔ او دا قول شیخ الاسلام ابن تیمیة په منهاج السنة النبویة (۸/ ۳۱۰) کښ او علامه عبید الله المبارکفوریؒ په مرعاة المفاتیح (٤/ ٤٩٠) راجح کړیدے۔ او امام بخاری وائی : د جُمعے په باره کښ هم دا قانون دے د وجه د هغه دلائلو نه چه هغه ذکر کړیدی۔

---

١٤٠٤ (٤) – وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ، قَالَ: كَانَ النِّدَاءُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَوَّلُهُ إِذَا جَلَسَ الْإِمَامُ عَلَى الْمِنْبَرِ، عَلَى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ، وَأَبِيْ بَكْرٍ، وَعُمَرَ، فَلَمَّا كَانَ عُثْمَانُ وَكَثُرَ النَّاسُ، زَادَ النِّدَاءَ الثَّالِثَ عَلَى الزَّوْرَاءِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه : او سائب بن یزید فرمائی : د جُمعے په ورځ به اول (یعنی دویم) اذان په هغه وخت وو چه کله به امام په منبر باندے کیناستو په زمانه د رسول الله ﷺ، ابوبکر او عمرؓ کښ خو کله چه عثمان خلیفه شو او خلق زیات شو نو هغه دریم (یعنی اول) اذان په زوراء علاقه کښ زیات کړو۔ (بخاریؒ)

**تشریح :** أَوَّلُهُ : دا مرفوع دے، بدل دے د النداء نه اسم د کان دے او خبرئے (اذا جلس الامام) دے۔

## د اذان عثمانی ایجاد :

د اول اذان نه مراد هغه اذان دے چه د خطیب مخے ته کولے شی او دویم اذان نه مراد اقامت دے۔ او د دریم اذان نه مراد هغه اذان دے چه عثمان ﷺ زیات کړے وو کله چه خلق په مسجد نبوی کښ زیات شو او بل غټ جامع مسجد نهٔ وو، تول صحابه کرام به دے یو مسجد ته د جُمعے مانځه دپاره راجمع کیدل نو اکثر خلق به د خطیب په خوا کښ اذان باندے نهٔ خبریدل نو عثمان ﷺ دا إجتهاد اُوکړو چه د خطیب د راوتلو نه مخکښ ئے په بازار (زوراء) کښ د اذان دپاره سرے مقرر کړو، دے دپاره چه خلق خبر شی چه وخت داخل شویدے او خطیب د راوتلو وخت دے نو خلقو نه به اوائل د خطبے فوت نشی، نو دا د یو نیك مصلحت په بنیاد زیات شوے وو۔ دے اذان ته په بعض روایاتو کښ اول اذان وئیل شویدے او په واقع کښ هم اول دے ځکه دا د وخت په داخلیدو کښ کیږی او کله ورته اذان ثالث وائی پدے معنیٰ چه دا د هغه اذان نه – چه دخطیب مخے ته کولے شی او د اقامت نه روستو – زیات شویدے، او دغه دوه د نبی ﷺ د دور نه تر د عثمان د دور

پورے موجود وو، زیادت پکښې نهٔ وو. نو په اعتبار د مزید سره ثالث دے او په اعتبار د فعل سره اول دے. (یعنی اول کولے شي) لهذا تعارض نشته.

دا اذان چه کله عثمان ﷺ شروع کړو نو هیڅوا پرے رد اُونکړو سوئ د عبد الله بن عمر ﷺ نه چه هغه ورته بدعت اُووئیلو. لکه ابن ابی شیبه کښې راځي : (اَلْاَذَانُ الْاَوَّلُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ بِدْعَةٌ) لیکن مونږ وایو : دا کار بدعت نهٔ دے ځکه چه نبی ﷺ فرمائیلی دي : (عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِيْنَ) نو دا عثماني سنت دے او ددے دپاره اصل شته هغه دا چه د تولو مونځونو د وخت په داخلیدو کښې اذان کولے شي نو عثمان د جُمعے دپاره هم د وخت په داخلیدو کښې اذان شروع کړو. او بیا جُمعه کښې دا خصوصیت زیات شو چه د خطیب د منبر د کیناستو په وخت کښې هم اذان کولے شي. لهذا د جُمعے دپاره دوه اذانه او د عام مونځونو دپاره یو اذان شو. او دا اذان د نبی ﷺ او د ابوبکر صدیق، او د عمر فاروق او د عثمان د خلافت په اوائلو کښې نهٔ وو موجود، روستو راپیدا شو. او دغه مذکوره مصلحت په بنیاد پیدا شو، نو د عثمان دے عمل ته بدعت نشي وئیلے هاؤ ا عمل په فعل د نبی ﷺ او ابوبکر او عمر فاروق او هغه چه د عثمان د خلافت په ابتداء کښې کیدو خامخا بهتر دے. او د عثمان په اذان ثاني به هله عمل کولے شي چه دغه مصلحت پکښې موجود وي چه خلق خبرول دي او هغه چونکه اُوس نن صبا د لاوډ سپیکرو په ذریعه زائل شویدے ځکه پدے سره آواز لرے لرے ځایونو ته رسیږي. لهذا اُوس ئے زیاتولو ته ضرورت نشته.

○ دارنګه هغه اذان به په بازار کښې کولے شو، نهٔ په مسجد کښې. ○ دارنګه مسجد یو وو او خلق ګنړ وو، او نن صبا مساجد زیات دي، منارے شته، خلقو سره ګینتي او آلات د خبریدو شته نو دغه اذان ته ضرورت پاتے نشو ځکه چه اذان عثماني د ضرورت په وجه پیدا شوے وو او اُوس هغه ضرورت ختم دے بلکه په لاوډ سپیکر چه محمدي اذان اُوکړے شي نو تول خلق خبریږي. لهذا بس په هغه محمدي اذان به اکتفاء کولے شي کوم چه به د نبی ﷺ او د خلفاء ثلاثو په دور کښې کیدے شو. دے دپاره چه اتباع د نبی ﷺ راشي. نو که اُوس چرته په یوه علاقه کښې دغه شان ضرورت راپیښ شونو د عثمان ﷺ پدغه اذان به عمل کولے شي. لیکن هرکله چه هغه ضرورت ختم دے نو پدے باندے عمل هم متروك دے ځکه د علت او مصلحت په زائل کیدو سره حکم زائل کیږي. راجع فتاوى الدين الخالص (٣/٣٢٣) والأجوبة النافعة للالباني (٩-١٤)

بعض خلق دا اذان د اهل حدیثو په رد کښې پیش کوي چه دوی خلفاءِ راشدین نهٔ مني، مونږ وایو: دوی دروغ وائي، مونږ ورته سنت عثماني وایو لیکن عند الضرورة او په هغهٔ شرطونو

باندے کوم چه د عثمان په زمانه کښ وو۔ فتدبر۔ او دا مقلدین د خلفاءِ راشدینو دشمنان دی لکه زمونږ رساله ((احناف او خلفاء راشدین)) اُوګوره۔

الزَّوْرَاءِ : دا د مدينے په بازار کښ يو اُوچت ځائے وو، د مسجد نه بهر وو او ديته ((احجار زيت)) وائی۔

## اذان به کوم ځائے کښ وائی ؟ :

بیا بعض علماء (ابن عابدینؒ، ابن امیر الحاجؒ، شاطبیؒ، او شیخ البانیؒ) وائی: د جُمعے اذانِ ثانی په مسجد کښ دننه د خطیب مخے ته وئیل بدعت دے بلکه د نبی ﷺ په زمانه کښ به د چت په سر وئیلے شو، یا په دروازه د مسجد کښ، دے دپاره چه خلق ئے واوری او مسجد ته راشی او کنه چه د منبر په خوا کښ اُووئیل شی نو دغه مقصد پکښ نۀ حاصلیږی۔

لیکن د منبر په خوا کښ د اذان وئیلو متعلق یو حدیث راغلے دے چه د هغے نه معلومیږی چه ان شاء الله د منبر په خوا کښ وئیل به بدعت نۀ وی، خاصکر چه لاوډ سپیکر هم موجود وی، بهر خلقو ته آواز رسی، او مقصود حاصلیږی۔ او هغه حدیث دا دے : [عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ: كَانَ النِّدَاءُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ وَأَبِيْ بَكْرٍ وَعُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عنهما - عِنْدَ الْمِنْبَرِ وَأَوَّلُ مَنْ أَحْدَثَ النِّدَاءَ الْآخِيْرَ عُثْمَانُ رضی الله عنه ـ (معجم الطبرانی الکبیر (١٤٦/٧) رقم (٦٦٤٦) ورجاله ثقات مشهورون والاسناد صحيح كما ترىٰ) نو پدے روایت کښ (عند المنبر) لفظ دلالت کوی په دے چه اذان په مسجد کښ وو۔ اګرکه ددے مخالف روایت هم ابوداود (١/١٩٢) کښ موجود دے په روایت د ابن اسحاق چه اذان به په دروازه د مسجد کښ وو۔ نو ددے تطبیق دا دے چه ابن اسحاق مدلس دے او په دغه روایت کښ ئے عنعنه کړیده۔ یا دا چه عند المنبر نه مراد د دروازے خوا ده لیکن صحیح دا ده چه په مسجد کښ د منبر په خوا کښ ددے حدیث په وجه اذان جائز دے۔

---

١٤٠٥ (٥) - وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: كَانَتْ لِلنَّبِيِّ ﷺ خُطْبَتَانِ، يَجْلِسُ بَيْنَهُمَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ. وَيُذَكِّرُ النَّاسَ، فَكَانَتْ صَلَاتُهُ قَصْدًا، وَخُطْبَتُهُ قَصْدًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او جابر بن سمره ؓ فرمائی : د نبی ﷺ دپاره (د جُمعے په ورځ) دوه خطبے وے، چه د دواړو ترمینځ به کیناستو (پدے خطبو کښ به ئے) قرآن کریم لوستلو، او خلقو ته به ئے وعظ او نصیحت کولو، نو د هغه مونځ به درمیانه درجه وو او خطبه به ئے (هم) درمیانه درجه وه۔

(مسلم)

## تشريح : د جمعې دپاره څو خطبې دي؟

دا حديث دليل دے چه د جُمعې دپاره دوه خطبې دي ١ – بيا د امام شافعيؒ، او احمدؒ په نيز دواړه واجب دي۔ په يو باندے اکتفاء صحيح نۀ ده، لکه ابن قدامۀ فرمائي : د جُمعې دپاره دوه خطبې شرط دے، او دا مذهب د امام شافعيؒ دے او ٢ – مالكؒ، اوزاعيؒ، اسحاقؒ، ابوثورؒ، ابن المنذرؒ او اصحاب الرأي وائي : يوه خطبه کافي کيږي او د امام احمدؒ نه هم دا يو روايت دے۔ انتهى۔
(عمدة القارى ١٠/١٥٣) والمغنى (٢/١٨١) والنيل (٣/٣٢٧)

علامه عراقيؒ وائي : دا مذهب د جُمهور علماؤ دے۔ دوی دليل دا وائي چه پدے د رسول الله ﷺ د فعل دوام راغلے دے او دا چه د "صلوا کما رأيتموني" الخ سره ملګرے شي نو دليل د وجوب ګرځي ليکن دا خبره تا بار بار پيژندلے ده چه مجرد فعل دليل د وجوب نۀ وي۔ او ((صَلُّوْا)) کښې خو صلاة ذکر دے او خطبه صلاة نۀ دے۔ راجح قول د جمهورو دے۔

**يَجْلِسُ بَيْنَهُمَا**: آيا د دوه خطبو مينځ کښې کيناستل واجب دي؟ (١) امام شافعيؒ فرمائي : د دواړو خطبو مينځ کښې ناسته واجب ده، ځکه نبي عليه السلام پدے باندے مداومت فرمائيلے دے۔
(٢) جمهور وائي : واجب نۀ ده۔ ځکه مجرد فعل په وجوب باندے دلالت نۀ کوي۔ او همدا موقف راجح معلوميږي۔ (المجموع ٣٨٤/٤) الام (١/٣٤٢) بدائع الصنائع (١/٢٦٢) الهداية (١/٨٣) نيل الاوطار (٣/٣٢٧)۔

**وَيُذَكِّرُ النَّاسَ** : دا حديث دليل دے چه په خطبه کښې به قراءت او وعظ کولے شي او ددے وجوب ته امام شافعيؒ ذهاب کړيدے او د جُمهورو موقف دا دے چه دا واجب نۀ دي۔ او همدا قول حق دے۔ نيل الاوطار (٣/٣٢٧)

او حديث دليل دے چه مقصود د خطبې نه وعظ او تذکير دے که په هره طريقه وي او په هره ژبه کښې وي جائز ده۔

**صَلَاتُهُ قَصْدًا** : قصد اعتدال او درميانه روی ته وائي چه د افراط او تفريط ترمينځ وي، نۀ تقصير وي او نۀ تطويل وي، يعنې د نبي ﷺ مونځ او خطبه دواړه به معتدل وو، نۀ به لنډ وو او نۀ به اُوګدۀ وو۔ او دا ددے تقاضا نۀ کوي چه، مونځ او خطبه به دواړه برابر وو بلکه په هر باب کښې خپل خپل اعتدال مراد دے۔ نو دا د روستو حديث د عمار بن ياسرؓ مخالف نۀ دے۔ او نبي ﷺ به په دواړو کښې اعتدال کولو دے دپاره چه خلق تنګ نۀ شي او د خطبې مقصد – چه تعليم او تذکير دے – هغه بے اثره نشي، ځکه دا قانون دے چه بيان کله ډير اُوګد شي نو خلقو باندے

درونـد والـے راشـی چـه د هـغـے پـه وجـه بیـان کـښ مقصدی خبرے هیرے شی۔ لکه څنګه چه دا طریقه د متأخرینو ده چه اُوګده اُوګده بیانونه کوی، دا مناسب نهٔ دی۔

---

١٤٠٦ (٦) – وَعَنْ عَمَّارٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: « إِنَّ طُوْلَ صَلَاةِ الرَّجُلِ وَقِصَرَ خُطْبَتِهٖ، مَئِنَّةٌ مِنْ فِقْهِهٖ، فَأَطِيْلُوا الصَّلَاةَ وَأَقْصِرُوا الْخُطْبَةَ، وَإِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

تـرجـمه : او عمار ؓ فـرمـائـی : مـا د رسـول الله ﷺ نه اُوریدلی دی چه فرمایل ئے :« یقیناً د سړی اُوګد مونځ کول او لنډه خطبه (وئیل) د هغهٔ د پوهے نخه (او علامه) ده، نو اُوږد مونځ کوئ او لنډه خطبه وایئ، او بعض بیان د جادو په شان (تاثیر والا) وی»۔ (مسلمؒ)

**تشریح** : دا حدیث عمار ؓ په یوه مـوقـعـه کـښ بیان کړیدے ابو وائل رحمه الله فرمائی : مـونږ ته عمار بن یاسر خطبه راکړه او ډیره مختصره ئے راکړه لیکن ډیره بلیغه او کامله خطبه وه، کـلـه چـه راکـوز شـو، مـونږ ورته اُووئیل : اے ابو الیقظان! تا خو ډیره کامله خطبه اُووئیله ایکن ډیره مـخـتـصـره وه نو که تا مونږ ته اُوګده خطبه وئیلے وے (ډیره به ښهٔ وه) نو هغهٔ اُوفرمایل : ما د رسول الله ﷺ نه اُوریدلی دی ......الخ) دغه حدیث ئے بیان کړو۔

دے حدیث کښ نبی ﷺ د امت خُطباوُ ته دا ادب ورکوی چه مونځ اُوګد کول او خطبه لنډه وئیل (لکـه پیـغمبری خطبه هم داسے وه چه یو څو کلمات وو۔) دا د خطیب د پوهے او عقلمندیٔ دلیل او عـلامـه ده۔ یـعـنـی هـغـه خطیب عقلمند او دانشمند دے او لائق ددے دے چه هغه ته فقیه اُووئیلے شی چـه خطبـه لـنـډه وائـی او مـونـځ اُوګد کوی۔ او دا په دے وجه علامه د فقه او پوهے ده ١– چه مونځ مقصود بالذات دے او خطبه د هغے دپاره مقدمه ده او توجه اَهم طرفته اَړول عقلمندی ده۔

٢– یا د خطبے په حال کښ خطیب خلقو ته متوجه وی او د مانځه په حالت کښ خالق تو متوجه وی او هغه سړے فقیه دے چه د الله سره معراج (سرګوشی) زیاته کوی د مخلوق په نسبت۔

٣– یا دا چه مـونـځ اَصـل دے او خـطـبـه فـرع ده او دا د قـضـایاوُ فقهیه ؤ نه ده چه اصل د فرع په نسبت په زیادت باندے مشتمل وی۔

٤– عـلامـه شـوکـانیؒ فرمائی : لنډه خطبه علامه د فقه الرجل پدے وجه ده چه فقیه سړے چه جـامـع الفاظ او کلماتو باندے خبردار وی نو پدے قادر وی چه په مختصر لفظ سره د ډیرو معانیو او مـقـاصـدو نـه تـعـبیـر اُوکړی، څکه ئے روستو حکم اُوکړو چه مونځ اُوګد اُوکړئ او خطبه لنډه

وايئ يعني مختصر جامع كلمات وايئ. (نيل الاوطار ٣٢١/٣) ځکه مختصره خبره د يادولو او ذهن کښې کينولو دپاره آسانه وي. پدې وجه نبي ﷺ به خطبه نه اُوګدوله. (إِنَّمَا هُنَّ كَلِمَاتٌ يَسِيرَاتٌ). ٥- دارنګه مقصود د خطبې نه موعظه او بيان د احکامو دې او څومره چه خطبه لنډه وي نو د خلقو د يادولو او پوهې دپاره آسانه وي. او کله چه خطبه اُوګديږي نو سامعين به تنګيږي او آخر به ئې اول هيروي، او خلق به ترې څۀ ډير نۀ مستفيد کيږي. ددې وجه نه أفضل دا ده چه خطبه لنډه أووئيلې شي خو دومره لنډه هم نۀ چه مُخل د مقصود شي، او خلقو ته څه فائده حاصله نشي، نو اُوس ددې ميزان او معيار به څومره وي؟ بعض خلق اُوګدې خطبې ته لنډه وائي او بعض لنډه خطبه اُوګده ګڼړي؟ نو ددې معيار او ميزان د نبي ﷺ خطبه ده چه هغه به يو څو جامع کلمات وئيل، چه مخاطبينو به د هغې نه ډيره فائده اخستله او د يوسف او زليخا قصې به ئې ورته نۀ کولې. او د مونځ اندازه ئې دا وه چه د جُمعې په مانځه کښې به ئې کله سورة الجمعه او منافقون لوستل او کله به ئې سبح اسم ربك الاعلىٰ او سورة الغاشيه لوستله. بس دا پيغمبري مونځ دې. او مونځ اُوګدول ځکه بهتر دي چه مونځ د الله د مناجات مقام دې او د خپل خالق سره سرګوشي ده او بنده ته الله تعالىٰ د هر څه نه محبوب وي او قانون دا دې چه محبوب سره خبرې اُوګدول هر عقلمند ښه ګڼړي نو مونځ کونکې چه مونځ اُوګد کوي دا د هغه د فقاهت او عقلمندئ علامه ده.

مَئِنَّةٌ : مئنه په فتحه د ميم او کسره د همزه او تشديد د نون علامې ته او هغه شي ته وائي چه په بل شي باندې دلالت کوي. او ميم په کښې زائد دې او دا متضمن دې حروف د (أن) لره کوم چه دلالت کوي په تحقق او تثبت باندې. (يعنى ددۀ فقاهت ثابتوي).

اشکال : مخکښې حديث نه معلومه شوه چه د نبي ﷺ خطبه او مونځ برابر برابر وو. او دې حديث کښې راغلل چه اُوګد مونځ کول او لنډه خطبه د سړي د فقاهت علامه ده. نو هلته مونځ درميانه او دلته مونځ اُوګد راغلو. دارنګه هلته خطبه درميانه او دلته لنډه؟ نو ددې تعارض څۀ حل دې؟. جواب: ١- علامه سندي په حاشيه د نسائي کښې فرمائي: د نبي ﷺ مونځ لوګد وو د هغه حالت نه چه کوم باندې عام خلق دي. او خطبه ددې برعکس وه يعنى علم خلق مونځ لنډ کوي او خطبه ئې اُوګده وي. او حال دا چه د نبي ﷺ خطبه او مونځ په خپل خپل باب کښې متوسط وو. خو د خلقو په نسبت دغه شان حالت وو. نو دا د (فکانت خطبته قصداً وصلاته قصداً) مخالف نشو. او دا جواب صحيح دې.

٢- بعض وائي : که د دواړو حديثونو ترمينځ جمع متعذر شي نو بيا زمونږ په حق کښې عمل

په قول د نبی ﷺ دے چه خطبه لنډه او مونځ اوږد کوئ ځکه پدے کښې احتمال د تخصيص نۀ وی او په فعل الرسول ﷺ به عمل نۀ وی ځکه چه هغې کښې احتمال د تخصيص راتلے شی ځکه کيدے شی دواړه درميانه کول د نبی ﷺ خصوصيت وی۔ اوعلامه شوکانیؒ ددے قول ترجيح ته اشاره کړيده۔ او دا ئے وئيلی دی چه دا خبره مونږ بار بار ذکر کړه چه فعل د نبی ﷺ هغه قول سره معارض نۀ دے کوم چه اُمت پورے خاص وی۔ انتهیٰ۔ (نيل الاوطار ۳/۳۲۲)

علیٰ کل حال حديث دليل دے چه خطبه لنډه پکار ده په نسبت د اوږدے او مونځ اوږد پکار دے په نسبت د لنډ مونځ۔ لهذا پدے حديث کښې يو تربيت او ترغيب دے هغه خطيبانو ته چه هغوی موقع او محل ته نۀ گوري او داسے اوږدے اوږدے خطبے وائی چه خلق د هغے د اوريدو ته تنگ شی يو او دوه گينټے خطبه وائی او دومره اوږد شی چه خلق صرف په آخري خبرو پوهه شی او اول سر ترے هير شی۔ او داسے حالت ئے برپا کړے وی، ته به وائے چه خلق نوی مسلمانوی۔ او بعض خلق پکښې د خپلو مشرانو او مشائخو او بادشاهانو صفتونه او مدحے ذکر کوی چه د هغے په وجه نوره هم اوږده شی۔ او مقصد د خطبے خراب شی۔ نو ددے کار نه ځان ساتل هر خطيب له پکار دی۔ د نبی ﷺ خطبات چه سيرت کښې اوکتلے شی نو هغه تقريباً پنځلس شل منټه يا زيات نه زيات نيمے گينټے نه زيات نۀ دی۔ د پيغمبري خطبو نه غالباً زيادت مناسب نۀ دے۔ او پدے نقصان کښې تقريباً عام خطيبان واقع دی۔ والله المستعان ولا حول ولا قوة الا بالله۔

فَاَطِيْلُوا الصَّلاَةَ : يعنی اوږد مونځ کوئ په نسبت د لنډ مانځه او ددے نه داسے اوږدوالے نۀ دے مراد چه هغه په مقتديانو مشقت راولی نو دا مخالف نۀ دے د هغه تخفيف په کوم باندے چه امر راغلے دے۔ يعنی دلته درميانه اوږدوالے مراد دے۔

وَاِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا : سحر جادو ته وائی يعنی بعض بيانونه په زړونو باندے د جادو په شان اثر کوی او د خلقو زړونه هغے طرفته راوړی او خلق د هغے نه اثر اخلی۔ پدے وجه چه هغه مشتمل وی په مختصر او جامع الفاظو چه په خپلو معانی او مقاصدو باندے په کامله طريقه دلالت کوی او ډيرو معانيو لره راگيرونکی وی۔

دا جمله ئے طرداً او استطراداً ذکر کړيده او د ماقبل سره ئے مناسبت نشته۔ ۲- او علامه طيبیؒ فرمائی : دا جمله حال دے د ((اَقْصِرُوْا)) نه (ای اَقْصِرُوا الْخُطْبَةَ وَاَنْتُمْ تَاْتُوْنَ بِهَا مَعَانِيَ جَمَّةً فِيْ اَلْفَاظٍ يَسِيْرَةٍ، وَهِيَ مِنْ اَعْلٰى طَبَقَاتِ الْبَيَانِ) (يعنی خطبه لنډه کوئ پداسے حال کښې چه تاسو په لنډو الفاظو کښې ډير معانی او مقاصد راوړئ ځکه چه دا اعلیٰ طبقه د بيان ده) يعنی خطبه لنډه کوئ ځکه چه لنډ بيان اثر زيات کوی۔

قاضي عياض فرمائي : پدے عبارت کښې دوه تاويله دي : ١ - يو دا چه دا ذم او بدي ده د هغه چا چه په خپل بيان سره د خلقو زړونه ځان ته راګاړي ترديے چه د هغې په وجه ګناه حاصله کړي لکه څنګه چه د جادو په وجه انسان ګناهګارېږي۔ او امام مالكؒ دا حديث په موطأ کښې په (بَابُ مَا يُكْرَهُ مِنَ الْكَلَامِ) کښې راوړيدے او دا د هغه مذهب دے۔ ٢-دويم تاويل دا دے چه پدے الفاظو کښې مدح او صفت دے د هغه چا چه په مختصر الفاظو سره اظهار د مافي الضمير کولے شي او خپل مقصد د خلقو مخے ته وړاندے کولے شي ځکه چه الله په خپلو بندګانو باندے د بيان د تعليم احسان ذکر کړيدے او دا بيان ئے د سحر سره مشابه کړو پدے وجه چه دے طرفته زړونه راوړي او سحر هم په اصل کښې اړولو ته وائي نو بيان هم زړهٔ راړوي او مائله کوي هغه څه ته چه دا ورته دعوت ورکوي۔ امام نوويؒ فرمائي : همدا دويم تاويل مختار او صحيح دے۔

---

١٤٠٧ (٧) - وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا خَطَبَ احْمَرَّتْ عَيْنَاهُ، وَعَلَا صَوْتُهُ، وَاشْتَدَّ غَضَبُهُ، حَتّٰى كَأَنَّهُ مُنْذِرُ جَيْشٍ، يَقُوْلُ: «صَبَّحَكُمْ وَمَسَّاكُمْ»، وَيَقُوْلُ: «بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ»، وَيَقْرُنُ بَيْنَ أُصْبُعَيْهِ: السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطٰى. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ به چه کله خطبه وئيله نو سترګے (مبارکے) به ئے سرے شوے او آواز به ئے پورته شو او غصه به ئے تيزه شوه (داسے حالت به ئے وو) ګويا کښې (د دشمن) ديو لښکر نه خلقو لره يرَوي، داسے به ئے فرمايل : «دشمن درباندے سحر کښې حمله اُوکړهٔ او مابنام کښې حمله اُوکړهٔ»، او دا به ئے فرمايل : «زهٔ او قيامت ددے دوه ګوتو په شان راليږلے شوي يو، او دواړه ګوتے - مسواکئ او مينځنئ ئے يو ځائے کړے»۔ (مسلم)

تشريح : احْمَرَّتْ عَيْنَاهُ: دا حالت هغه خطيب ته عارضيږي چه خيرخواه او غيرتي وي۔ په دين باندے خفه کيدونکے وي۔

وَعَلَا صَوْتُهُ: آواز به ئے ځکه اُوچتولو دے دپاره چه په اَوريدونکو باندے زيات تاثير اُوکړي او د هغوي په زړونو کښې واقع شي۔

وَاشْتَدَّ غَضَبُهُ : غصه به ئے ځکه کوله چه د خلقو د زړونو نه غفلت زائل شي او خبره پکښې به ځائے اُونيسي۔ يا پدے وجه چه د نبي ﷺ فکر به موعظے ته متوجه شو نو په هغه باندے به آثار د هيبتِ الهي ښکاريدل۔ يا دا چه غصه سختيدل به په هغه وخت کښې وو چه کله به ئے

خلقو ته د يو لوئي كار إنذار او يَره ورکوله۔
نو دا حديث دليل دے چه خطيب له دا مسنون دی چه په خپله خطبه کښې ډیره خیر خواهی پیدا کړی او په سُستئ سره خطبه ورنکړی بلکه داسے پُر تاثیر بیان پکار دے چه خلق ترے مُتأثر شی او فائده ترے واخلی۔ او د هغوی زړونه پرے اُورَقیږی او غوږونه ئے پرے کولاؤ شی۔ لکه څنګه چه به نبی ﷺ داسے بیان کولو لکه چه یو فوج باندے یَره ورکونکے وی چه هغوی راغلی وی او په ښارونو او علاقو باندے ئے احاطه کړی وی او نزدے ده چه بیګاه یا صبا کښې پرے حمله اُوکړی او هغوی قتل کړی او زنانه ورله قیدیانے کړی او ماشومان ئے غلامان کړی او مالونه ئے لوټ کړی۔

مُنْذِرُ جَيْشٍ: هغه سړی ته وائی چه د دشمنانو د لښکر په رانزدے کیدو باندے یَره ورکوی چه هغوی په علاقو باندے د حملے اراده کړے وی۔

بیا دا خبره یاد ساتل پکار دی چه په تقریر او بیان کښې به د ایمانیاتو په پریخودلو انسان غصه کیږی، دارنګه په ارتکاب د منکراتو به غصه کیږی او د نوافلو په ترك کښې به غصه نهٔ کوی څکه دا تاثیر نهٔ کوی او د شریعت هم خلاف ده۔ څکه هر عمل له به خپله خپله درجه ورکولے شی۔ کوم چه د زیات غصے مستحق وی هغے کښې به زیاته غصه کولے شی او کوم چه د غصے مستحق نهٔ وی نو هلته به غصه نشی کولے۔

---

١٤٠٨ (٨) - وَعَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ، قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَقْرَأُ عَلَى الْمِنْبَرِ: «﴿ وَنَادَوْا يَا مَالِكُ لِيَقْضِ عَلَيْنَا رَبُّكَ﴾». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او يعلى بن اميه ﷛ فرمائی : ما د نبی ﷺ نه واوریدل چه دا (آیت) ئے په منبر باندے تلاوت کولو: « ونادوا یا مالك الخ» (او جهنمیان به مالك خزانچی ته آواز اُوکړی چه ستا رب دے په مونږ باندے د مرګ فیصله اُوکړی) (چه مونږ ختم شو) »(بخاری ومسلم)

**تشریح** : یعنی نبی ﷺ به په منبر باندے قرآنی آیتونو لوستلو سره هم وعظ کولو او تخویفات به ئے بیانول څکه چه په عامو خلقو کښې غفلت او سرکشی او شهواتو کښې انهماك دے نود هغوی سره تخویف مناسب نهٔ دے۔ او د نبی ﷺ بعثت هم ددے دپاره شویدے ﴿ لِيَكُونَ لِلْعَالَمِينَ نَذِيرًا﴾ (چه مخلوق ته یره ورکړی)۔

د آیت معنی : جهنمیان به په جهنم کښې راجمع شی او مالك ته - چه خزانچی د جهنم دے - به آواز اُوکړی چه الله نه اُوغواړه چه مونږ باندے د مرګ فیصله اُوکړی چه بس ختم شو او نور دا

عذاب نهٔ وی۔ او دا خبره ځکه کوی چه دوی باندې به تکلیف دیر زیات وی چه د هغې برداشت به نشی کولے۔ لیکن مالك به ورته زر کاله پس جواب ورکړی ﴿إِنَّكُم مَّاكِثُونَ﴾ (تاسو به پدے جهنم کښې او د الله په عذابونو کښې همیشه پراته یئ) او ستاسو خلاصے نشته۔ نو دوی به د هر څه نه نا اُمیده شی۔ او پدے کښې یو قسم استهزاء ده چه دوی ته زر کاله پس جواب ورکوی۔ هیڅ التفات به ورته نهٔ کوی ځکه چه دوی ذلیله خلق دی، الله طرفته ئے التفات نهٔ وو کړے۔ اعاذنا الله من تلك الحالة السيئة۔

---

١٤٠٩ (٩) – وَعَنْ أُمِّ هِشَامٍ بِنْتِ حَارِثَةَ بْنِ النُّعْمَانِ، قَالَتْ: مَا أَخَذْتُ ﴿ق وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ، بَلْ عَجِبُوا أَنْ جَاءَهُمْ مُنْذِرٌ مِنْهُمْ فَقَالَ الْكَافِرُونَ هٰذَا شَيْءٌ عَجِيبٌ﴾ إِلَّا عَنْ لِسَانِ رَسُولِ اللهِ ﷺ، يَقْرَؤُهَا كُلَّ جُمُعَةٍ عَلَى الْمِنْبَرِ إِذَا خَطَبَ النَّاسَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

**ترجمه :** او ام هشام بنت حارثه بن نعمان رضی الله عنها فرمائی : ما سورة (ق والقرآن المجيد) صرف د رسول الله ﷺ د ژبے نه یاد کړے دے چه هغهٔ به دا هرهٔ جُمعه په منبر باندے لوستلو کله چه به ئے خلقو ته خطبه وئیله۔ (مسلمؒ)۔

**ام هشام** بنت حارثة بن النعمان۔ دا د عمرة بنت عبد الرحمن د مور د طرفنه خور ده او انصاریه نجاریه صحابیه ده او بیعت الرضوان ته حاضره شویده۔ تقریب کښې دی : دا مشهوره صحابیه ده۔

**تشریح :** مَا أَخَذْتُ ق : ددے نه مراد بعض سورت دے لکه ابن الملك وئیلی دی۔

٢ – یا کل سورت دے لکه حافظ ابن حجرؒ وئیلی دی او همدا خبره راجح ده۔ حافظ فرمائی : دا په اول د سورت باندے حمل کول، بغیر د څه دلیل نه نص لره د خپل ظاهر نه اړول دی۔

او دا حدیث دلیل دے چه سورت ق تول یا بعض حصه د اکثرو جُمعو په خطبه کښې لوستل جائز بلکه مستحب دی۔ علماء فرمائی : ددے د اختیارولو وجه دا ده چه پدے سورت کښې بعث او موت او سخت سخت مواعظ او مؤکد وعیدونه ذکر دی۔ نو دا پوره تقریر دے۔ او دا حدیث دلیل دے چه په خطبه کښې قرآن کریم لوستل هم مستحب دی۔ او دا کار واجب نهٔ دے۔

او حدیث دلیل دے چه یو تقریر بار بار کول هم جائز دی۔ او دارنګه د عوام او عصاتو (نافرمانو) دپاره فائده مند وعظ دا دے چه هغوی ته د مرګ او بعث او جزاء او سزا بیان اُوشی ځکه چه

ځوك مرګ، او آخرت رایاد کړي نو هغه د ګناهونو نه منع کیږي خو که چرته زړهٔ لري او غوږ ئې صحیح طریقې سره متوجه کړے وي۔

او د هرے جُمعے نه مراد هغه جُمعے دي چه هغې کښ اُم هشام حاضره وه ورنه نبي ﷺ کله نا کله نور سورتونه هم وئیلي دي لکه مخکښ (ونادوا یا مالك) یا سورة (تبارك الذي) لوستل او کله به ئې څه آیتونه د سورة بقرے لوستل (الكامل لابن عدي) او کله به ئې (قل یا ایها الكافرون او قل هو الله احد) لوستل (طبراني في الاوسط) او کله به ئې سورة ص لوستلو (ابوداود ٢٠٧/١) (١٤١٠) نو معلومه شوه چه یواځې په سورة ق ئې مداومت نهٔ دے کړے۔ او دا مونږ ځکه ذکر کړل چه بعض خوارج په کراچئ (پاکستان) کښ سورة ق باندے مداومت لازم ګڼړي او په دے قول د ام هشام باندے دلیل نیسي۔ وانظر ایضاً توضیح الاحکام (٣٣٤/٢) و (سبل السلام) والمرعاة (٤٩٨/٤) وفتاوی الدین الخالص (٢١٨/٦)

---

١٤١٠ (١٠) – وَعَنْ عَمْرِو بْنِ حُرَيْثٍ : أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ خَطَبَ وَعَلَيْهِ عِمَامَةٌ سَوْدَاءُ قَدْ أَرْخَى طَرَفَيْهَا بَيْنَ كَتِفَيْهِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او د عمرو بن حریث ﷺ نه روایت دے چه نبي ﷺ د جُمعے په ورځ خطبه اُووئیله او په هغه باندے تور پټکئ وو چه د هغې دواړه طرفونه ئې د اُوګو ترمینځ زوړند کړي وو۔(مسلم)

عمرو بن حریث المخزومي القرشي، وړوکے صحابي دے په سنه (٨٥هـ) کښ وفات دے۔ بعض وائي : د نبي ﷺ وفات په وخت کښ دهٔ عمر (١٢) کاله وو۔

**تشریح** : نبي ﷺ د تور پټکي په حالت کښ خطبه وئیلے ده نو دا هم جائز دے، اګرکه افضل دا ده چه سپینه جامه واچولے شي لکه نبي ﷺ فرمائي : (خَيْرُ ثِيَابِكُمُ الْبَيَاضُ) (ستاسو غوره لباس سپینے جامے دي) او دلته ئې تور پټکے د بیان الجواز دپاره استعمال کړیدے۔ او نبي ﷺ په تور پټکي باندے دوام نهٔ دے کړے (زاد المعاد) (فتاوی الدین الخالص ١)

او سنت طریقه په پټکي وهلو کښ دا ده چه دواړه شملے د اُوګو ترمینځ زوړندي کړي۔نیغه شمله اُودرول یا دومره اُوګدول چه ثیاب الشهرت یا اسبال کښ داخل شي نو دا خلاف سنت دي۔ او دا حدیث دلیل دے چه د جُمعے په ورځ زینت کول او ډولي جامے اغوستل سنت دي۔

---

١٤١١ (١١) – وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ وَهُوَ يَخْطُبُ: «إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمْ يَوْمَ

الْجُمُعَةِ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ، فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ وَلْيَتَجَوَّزْ فِيهِمَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

**ترجمه** : او جابر﷛ فرمائي : رسول الله ﷺ د خطبې په حالت کښې اُوفرمايل : «کله چه يو تن ستاسو د جُمعې په ورځ (مسجد ته) راشي او امام خطبه وائي نو هغهٔ دې دوه رکعاته اُوکړي او اختصار دې پکښې اوکړي!!»۔ (مسلم)

**تشريح** : د خطبې په وخت کښې دا دوه رکعاته تحية المسجد کول پکار دي پدې سره په خطبه آوريدو کښې څه نقصان نهٔ راځي، ځکه پدې کښې دومره وخت نهٔ لګي۔ او بله دا چه نبي ﷺ مستثنیٰ کړيدي۔ او ددې په کولوئې حکم کړيدې نو پدې کښې تاويلاتو ته هيڅ حاجت نشته۔

بيا په حاشيه د مشکاة کښې ليکي : امام شافعيؒ او احمدؒ دا دوه رکعاته په تحية المسجد باندې حمل کړيدي او تحية المسجد د دوي په نيز واجب دي۔ الخ۔ ليکن دا خبره ئې خطاء ده ځکه د امام شافعيؒ او احمدؒ په نيز باندې تحية المسجد واجب نهٔ دي بلکه داسې وئيل پکار دي چه عندهما دا دوه رکعاته په خطبه کښې کول واجب دي ځکه پدې وخت کښې پدې دوه رکعاتو باندې مستقلاً حکم راغلې دې۔

اُوس دې رکعتان کښې اختلاف دې : ١- جمهور (شافعيؒ، احمدؒ، حسنؒ، ابن عيينةؒ، اسحاقؒ، مکحولؒ، ابوثورؒ، ابن المنذرؒ) وائي : دا دوه رکعاته کول پکار دي۔ او امام نوويؒ دا د فقهاء المحدثين نه او امام محمد بن الحسنؒ د مالکؒ نه نقل کړيدې۔

**دوه دلائل** وائي : (١) يو دا حديث دې چه پدې کښې آمر راغلې دې او قانون دې چه هر راتلونکې ته په دغه حالت کښې دا حکم دې چه دوه رکعاته اُوکړي۔ او مختصر دې اُوکړي چه خطبه ترې فوت نشي۔ نو دا حديث تشريع عام ده او قانون کلي دې او احنافو هم ددې اقرار کړې دې چه ددې نه تفصّي او خلاصې مشکل دې۔

ددې وجه نه امام نوويؒ په شرح مسلم کښې فرمائي : دا حديث نص دې چه هيڅ تاويل پکښې نشي کيدې او زما په هيڅ عالم باندې دا ګمان نهٔ دې چه هغه ته دا الفاظ اُورسي او دا ورته صحيح ښکاري او بيا هم ددې مخالفت کوي۔

توضيح الاحكام (٣٣٩/٢) شرح مسلم - باب التحية والامام يخطب) عون المعبود (٧٠/٣)

٢- **دويم دليل** : حديث د سليك غطفاني ﷛ دې چه دا د جُمعې په ورځ راغلو، نبي ﷺ په خطبه کښې وو (دا کيناستو) نبي ﷺ ورته اُوفرمايل : «آيا تا مونځ کړې ؟» دهٔ اُووئيل : نهٔ ! نبي ﷺ اُوفرمايل : «دوه رکعاته اُوکړه» (رواه الجماعة) دا ښهٔ واضح حديث دې، ليکن احنافو ددې

نه لس جوابونه كړيدي چه هغه فتح الباري او عمدة القاري كښې ذكر دي چه هغه ټول مردود دي. او د حديث ورانول دي. كله وائي : دا بربنډ وو. نبي ﷺ ورته د مانځه حكم ځكه اُوكړو چه پاځيږي خلق ئې اُوويني او صدقه پرې اُوكړي. **جواب** : د يو حكم دپاره دوه او درې علته هم كيدے شي، نو ددے مانځه د حكم دپاره د علت صدقه هم شي او تحية المسجد ئې هم نۀ وو كړي. آيا د يو سړي د مرګ دپاره دوه علته نشي كيدے څه؟ نو پدے كښې څه إشكال دے ؟.

○ بله دا چه ددے نه خو بيا مغلوميږي چه څوك پدے نيت دوه ركعاته كوي چه څوك پرے صدقه اُوكړي نودا به په حالت د خطبه كښې جائز وي، نو دغه شان د مسجد د حق د وجه نه دے هم جائز شي پدے كښې څه نقصان دے؟.

٣- **دليل** : حق د مسجد مقدم او مؤكد دے د حق د خطبے نه. كه خطبه د حق د مسجد په وجه لګ ساعت وانۀ وريدل شي هم خير دے.

او كوم روايات چه د صحابه كرامؓ نه نقل دي چه هغوي وئيلي دي چه كله به امام راوُوتو نو مونځ به مونځ پريخودو نو د هغے نه مراد دا دے چه كله امام په منبر كينې او يو انسان روستو پاځيږي او مونځ كوي نو دا كار منع دے او نوے راتلونكے مسجد ته پدے كښې نۀ دے داخل بلكه هغه به دوه ركعاته تحية المسجد كوي.

٤- **دليل** : ابوسعيد خدري ؓ د مروان بن الحكم په خطبه كښې دا دوه ركعاته كړيدي. (رواه البخاري والترمذي).

٢- **قول ثاني** : د احنافو او مالكيه وَ دے چه دا دوه ركعاته په حالت د خطبه كښې جائز نۀ دي.

**دلائل** :

١- **دليل** : دا حديث د ﴿إِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنصِتُوا﴾ سره معارض دے. **جواب** : دا په زوره تعارض پيدا كول دي، هيڅ تعارض نشته ځكه چه خطبه كښې خو مكمل قرآن نۀ وئيل كيږي چه هغے سره تعارض راشي. (٢) دويم دا چه دا دوه ركعاته مستثنىٰ دي د عموم ددے آيت نه. او رسول الله ﷺ د آيت په مطلب د اُمت نه بنه پوهيږي. هغه چه دا حكم كولو آيا آيت ورته نۀ وو معلوم ؟.

٢- **دليل** : حديث كښې دي : (إِذَا قُلْتَ لِصَاحِبِكَ أَنصِتْ ...... فَقَدْ لَغَوْتَ) نو په خطبه كښې خبرے كول او امر بالمعروف او نهي عن المنكر ئې منع كړيدي نو مونځ خو به په طريق اولىٰ منع وي.

**جواب** : ددے جواب دا دے چه دا تاسو رأى مقدم كړه په نص باندے ځكه چه د الله نبي وائي : په حالت د خطبه كښې امر بالمعروف مۀ كوه او دا دوه ركعاته اُوكړه نو پدے كښې څۀ إشكال او كوم

نقصان دے؟ نبی ﷺ په حالت د خطبه کښې امر بالمعروف او نهی عن المنکر منع کړیدی او دوه رکعاته کول ئے جائز کړیدی۔ نو پدے کښې د اشکال هیڅ خبره پاتے نۀ ده !!۔خو دا جواب فرمانبردارو ته دے چه خبره کښې چون وچرا نۀ کوی۔

۲– **دویم جواب** دا دے چه امر بالمعروف او نهی عن المنکر نه ئے آوریدونکے ځکه منع کړیدے چه خطیب لګیا دے هغه امر بالمعروف او نهی عن المنکر کوی نو تا ته ضرورت نشته چه ته ځان د خطبے د آوریدو نه په امر بالمعروف مشغول کړے۔ او هر چه مونځ دے نو هغه خو درله خطیب نشی کولے او حق د مسجد دے نو هغه به تۀ کوے، مختصر، چه خطبه هم درنه فوت نشی او د مسجد حق هم ادا شی او که تۀ خطبے ته کینے نو د مسجد حق به درنه فوت شی او حال دا چه د مسجد حق ډیر مؤکد دے د خطبے نه۔ او د الله د نبی په هر حکم کښې ناشنا حکمتونه وی۔ ولکن اکثر الناس لا یعقلون)۔

علامه امیر یمانیؒ فرمائی : د شارع په امرونو کښې تعارض نۀ راځی نو ناست انسان به انصات کوی (غلے به وی) او داخلیدونکے به دوه رکعاته تحیة المسجد کوی۔ لهذا پدے کښې هیڅ تعارض نشته۔ پدے کښې دا خبره کول چه دوه رکعاته کول مُبیح دی او احادیث د نهی مُحرم دی او عند التعارض ترجیح مُحرم له وی لهذا دا دوه رکعاته نۀ دی پکار۔ نو دا خبره هم خطاء ده ځکه چه دلته تعارض رانغلو نو ترجیح ته ضرورت نشته، ترجیح فرع د تعارض وی۔

علامه شوکانیؒ فرمائی : حدیث د انصات وارد دے په باره د منع کښې د خبرو نه د غیر سره او په مانځه کښې مکالمه نشته۔او که اُومنو چه دا هر کلام ته شاملیږی اګرکه په مانځه کښې وی نو بیا وایو چه دا عموم مُخصص دے په احادیث الباب باندے۔انتهیٰ۔ (النیل ٣١٧/٣)

علامه سندیؒ په احنافو ډیر ښۀ رد کوی فرمائی : (لَادَلِيْلَ عَلَى الْمَنْعِ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ عِنْدَ الْحَنَفِيَّةِ إِلَّا حَدِيْث: إِذَا قُلْتَ لِصَاحِبِكَ أَنْصِتْ الخ وَذٰلِكَ لِأَنَّ الْأَمْرَ بِالْمَعْرُوْفِ أَعْلَى مِنْ تَحِيَّةِ الْمَسْجِدِ فَإِذَا مُنِعَ مِنْهُ مُنِعَ مِنْهَا بِالْأَوْلَى۔ وَفِيْهِ بَحْثٌ أَمَّا أَوَّلاً فَلِأَنَّهُ اسْتِدْلَالٌ بِالدَّلَالَةِ أَوِ الْقِيَاسِ فِيْ مُقَابَلَةِ النَّصِّ، فَلَا يُسْمَعُ، وَأَمَّا ثَانِيًا فَلِأَنَّ الْمُضِيَّ فِي الصَّلَاةِ لِمَنْ شَرَعَ فِيْهَا قَبْلَ الْخُطْبَةِ جَائِزٌ بِخِلَافِ الْمُضِيِّ فِي الْأَمْرِ بِالْمَعْرُوْفِ لِمَنْ شَرَعَ فِيْهِ قَبْلُ، فَكَمَا لَا يَصِحُّ قِيَاسُ الصَّلَاةِ عَلَى الْأَمْرِ بِالْمَعْرُوْفِ بَقَاءً لَا يَصِحُّ ابْتِدَاءً۔ انتهى۔

(د احنافو سره په منع د رکعتین کښې هیڅ دلیل نشته سوئ د دغه حدیث د انصات نه چه په حالت د خطبه کښې به انصات کوے ورنه مونځ به برباد شی۔ لیکن ددے نه جواب دا دے چه دا استدلال دے په قیاس باندے په مقابله د نص کښې نو دے ته به هیڅ توجه نشی ورکولے۔ ۲ – دویم دا چه چا د خطبے نه مخکښې په مانځه کښې شروع کړی وی او بیا پرے خطبه شروع شی نو هغه

دپاره ددے سرتـه رسـول جائز دی په خلاف د امر بالمعروف نه چه چا د خطبے نه مخکښ شروع کړے وی نـو د خـطبے په حالت کښ به ئے سر ته نهٔ رسوی نو لکه څنګه چه قیاس د مانځه په امر بالمعروف باندے بقاءً صحیح نهٔ دے نو دغه شان ابتداءً هم صحیح نهٔ دے) انتهیٰ۔

او دا هـغـه مسـئـلـه ده چـه احـنافـو پـکـښ د نـص پـه مقابله کښ خپله رأی او قیاس اخستے دے۔ څـکـه چـه ددے دوه رکـعـاتو منع د پیغمبر نه نهٔ ده ثابته۔ او بیا وائی : قیاس په مقابله د نص کـښ نـامـقبـول دے۔ هسے دے وائی چه عمل پرے نهٔ کوی!!!۔ راجـع لتـفـصيل المسئلة عون المعبود، وتحفة الاحوذی، والمرعاة (٤/١ ٠ ٥) ونيل الاوطار٣/٣١٦)

---

١٤١٢ (١٢) - وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :((مَنْ اَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الصَّلَاةِ مَعَ الْإِمَامِ فَقَدْ اَدْرَكَ الصَّلَاةَ كُلَّهَا))۔ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او ابو هریره رضی الله عنه فـرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی: (( چا چه د امام سره یو رکعت اُوموندلو نو هغهٔ پوره مونځ اُوموندلو))۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

**تشریح :** امـام بغویؒ دا حدیث په باب د جُمعه کښ راوړو، إشاره کوی چه دلته د صلاة نه مراد صـلاة الجُمعه دے لکه دا په روستو حدیث د فصل ثالث کښ صراحةً راغلے دے۔ لیکن ظاهر دا ده چه په عموم باندے حمل شی۔ جُمعه او غیر جُمعه تولو مونځونو ته شامل شی۔

## د جُمعے په یو رکعت موندلو سره به د جُمعے مونځ کوی

بیـا پـدے کـښ د اکـثـرو ائـمـه وُ (ائمه اربعهؒ، ابن مسعودؓ، ابن عمرؓ، انسؓ، ابن المسیبؒ، حسنؒ، زهریؒ، نـخـعیؒ، ثوریؒ، اسـحاقؒ، ابوثورؒ اوصاحبینؒ) مذهب دا دے چه د جُمعے نه چا یو رکعت لانـدے کـړو نـو د جُـمـعے مونځ به کوی (دوه رکعاته)۔ ٢- او عطاءؒ، طاووسؒ، مجاهدؒ او مکحولؒ فـرمـائی : چـا نه چه خطبه فوت شوه نو د جُمعے مونځ به نهٔ کوی بلکه څلور رکعاته به کوی، د دوی پـه نیز خطبه شرط دے د جُمعے دپاره۔ لیکن پدے قول باندے هیڅ دلیل نشته۔ او د احادیثو خلاف دے۔ دا علماء کرام تابعین دی لیکن نص ورسره نشته پدے وجه خبره ئے خطاء ده۔

او که د یو رکعت نه کم لاندے کړی مثلاً سجده کښ شامل شی یا التحیات کښ نو پدے کښ اختـلاف دے ١- حَکَمؒ، حَمّادؒ، ابوحنیفهؒ او ابویوسفؒ او داود ظاهریؒ فرمائی : چه بیا هم مُدرِك د جُمعے دے چه د سلام نه مخکښ په هر حالت کښ امام سره شامل شی نو دوه رکعاته د جُـمعے به کوی۔ ٢- ائمه ثلاثه (امام شافعیؒ، احمدؒ، مالكؒ) او محمدؒ فرمائی : چا چه یو رکعت د امام سره

اُونهٔ مونډلو بلکه سجده یا تشهد کښې شامل شو نو دا مُدرك د جُمعې نهٔ دې بلکه د ظهر څلور رکعاته به کوی۔

پدې کښې بعض علماؤ د احنافو قول راجح کړیدې لکه علامه مبارکفوریؒ په تحفة الاحوذی (۳۷۲/۲) او عبید الله المبارکفوریؒ په المرعاة (۵۰۵/٤) کښې او ابن الحزمؒ په المحلی (۷٤/۵) کښې۔ دوی دلیل دا وائی چه حدیث کښې راغلی دی : (مَا اَدْرَكْتُمْ فَصَلُّوْا وَمَا فَاتَكُمْ فَاَتِمُّوْا) ابن حزمؒ فرمائی : رسول الله ﷺ دې سړی ته حکم اُوکړو چه د امام سره هغه مونځ اُوکړی کوم چه ئې لاندې کړیدې او نبیﷺ تعمیم اُوکړو او تخصیص ئې اُونکړو او دې ته ئې مُدرك اُوئیلو دوجه د هغه مانځه نه چه دهٔ لاندې کړو، نو بس چا چه امام په ناسته یا په سجده کښې اُوموندونو هغه باندې لازم دی چه د امام سره به په همدغه حال کښې شاملیږی او د امام التزام به کوی او پدې سره به دا یې شکه په جُمع کښې داخل وی او کوم مونځ چه ترې فوت شویدې د هغې قضاء به راوړی او دغه مونځ به پوره کوی او ددهٔ نه خو صرف دوه رکعاته فوت دی۔ او مونځ د جُمعې دوه رکعاته دې لهذا دا به دوه رکعاته کوی انتهیٰ۔

لیکن راجح قول د جُمهورو دې څکه دوی سره ډیر او صحیح او صریح دلائل دی۔

۱-**دلیل** : یو دا حدیث الباب دلیل دې چه دا عام دې تولو مونځونو ته شامل دې نو جُمعې ته هم شامل دې۔ حافظ په فتح الباری (۵۷/۲) کښې فرمائی : پدې حدیث کښې قید د رکعت دلیل دې چه چا د رکعت نه کم لاندې کړو نو هغه مدرك د مانځه نهٔ دې۔

او فقد ادرك الصلاة نه مراد دا دې چه دهٔ حکم د مانځه لاندې کړو یعنی که د جُمعې مونځ وونو دهٔ د جُمعې حکم لاندې کړو او که بل مونځ وونو د هغې حکم ئې لاندې کړو چه هغه اتمام دې۔

۲-**دلیل** : حدیث د ابن عمر رضی الله عنه دې : قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : مَنْ اَدْرَكَ رَكْعَةً مِنْ صَلَاةِ الْجُمُعَةِ اَوْ غَيْرِهَا فَقَدْ اَدْرَكَ الصَّلَاةَ (صححه الالبانی فی صحیح ابن ماجه (۱۸۵/۱) رقم (۱۱۲۳) وصححه فی فتاوی اللجنة (۲۲٤/۸) (چا چه د جُمعې یا د بل مانځه نه یو رکعت اُوموندونو هغه دغه مونځ اُوموندلو)۔ او په روایت د دارقطنی (۱۲/۲) کښې داسې الفاظ دی : مَنْ اَدْرَكَ رَكْعَةً مِنْ صَلَاةِ الْجُمُعَةِ فَلْيُضِفْ اِلَيْهَا اُخْرىٰ وَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُهٗ (وهو فی الارواء ۸٤/۳) (چا چه د جُمعې نه یو رکعت اُوموندلو نو هغه له پکار دی چه یو ورسره بل یو ځائې کړی او پدې سره به د هغه مونځ پوره شی)۔

دا پدې مسئله کښې ښه صریح دلیل دې۔

۳-**دلیل : اثر د ابن مسعود** : عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ : اِذَا اَدْرَكْتَ رَكْعَةً مِنَ الْجُمُعَةِ فَاَضِفْ اِلَيْهَا اُخْرىٰ، فَاِذَا فَاتَكَ الرُّكُوْعُ فَصَلِّ اَرْبَعًا (ابن ابی شیبة (۱۲۸/۲) والبیهقی (۲۰٤/۳) والمعجم الکبیر

(٨/٢٥٠)واسناده صحیح وقال الهیثمي في المجمع (١٩٢/٢) حسن (الارواء ٨٢/٣)

(ابن مسعودؓ فرمائي : کله چه تا د جُمعې یو رکعت اُوموندو نو بل ورسره یو ځائې کړه او کله چه درنه (د دویم رکعت) رکوع فوت شوه نو بیا څلور رکعاته (ظهر) اُوکړه.

٤- اثر ابن عمر: مَنْ اَدْرَكَ مِنَ الْـجُمُعَةِ رَكْعَةً فَلْيُضِفْ اِلَيْهَا اُخْرىٰ) وَفِي لَفْظِ الْبَيْهَقِيِّ : اِذَا اَدْرَكْتَ مِنَ الْـجُمُعَةِ رَكْعَةً فَاَضِفْ اِلَيْهَا اُخْرىٰ، وَاِنْ اَدْرَكْتَهُمْ جُلُوْسًا فَصَلِّ اَرْبَعًا) (ابن ابی شیبة ١٢٨/٢ - بسند صحیح)

(چا چه د جُمعې نه یو رکعت اُوموندو نو بل دې ورسره یو ځائې کړي او په روایت د بیهقی کښې داسې الفاظ دي: کله چه تهٔ د جُمعې نه یو رکعت اُوموموې نو بل ورسره یو ځائې کړه او که تا هغوی په ناسته اُوموندل نو بیا څلور رکعاته اُوکړه. (ابن ابی شیبه).

نو دا دواړه اثرین واضح دلیل دې چه دې صحابه کرامؓ هم دا فتویٰ ورکړیده چه د یو رکعت نه کم اُوموندې شي نو بیا به د ظهر مونځ کوي او د جُمعې مونځ (دوه رکعاته) به نهٔ کوي.دا دواړه اثرین چه د مخکنو مرفوع احادیثو سره جَمع کړې شي نو ددې نه حقانیت د قول د جُمهورو ثابتیږي.او دغه شان فتویٰ د انس بن مالك ﷺ نه هم نقل ده. او ددې صحابه کرامؓ په خپله زمانه کښې څوك مخالف نهٔ دې موجود لهذا دا د هغوی اِجماع شوه.

او د حدیث ((مَا فَاتَكُمْ فَاَتِمُّوْا )) نه جواب دا دې چه دغه حدیث عام دې او دا اَدله خاص دي او دا قانون دې چه خاص مقدم وي په عام باندې. او دې طرفته د صحابه کرامؓ فتاوی هم موجود دي او بل مفهوم د قول د شارع دې. او دې قول د جُمهورو ته علامه شوکانیؒ او صدیق خانؒ په (الروضة الندیة (١٣٨/١) والسیل الجرار (٣٠٢/١)کښې راجح وئیلې دې.

## الفصل الثاني

١٤١٣(١٣) - عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ، كَانَ يَجْلِسُ اِذَا صَعِدَ الْمِنْبَرَ حَتّٰى يَفْرُغَ، اُرَاهُ الْمُؤَذِّنَ، ثُمَّ يَقُوْمُ فَيَخْطُبُ، ثُمَّ يَجْلِسُ وَلَا يَتَكَلَّمُ، ثُمَّ يَقُوْمُ فَيَخْطُبُ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : ابن عمر ﷺ فرمائي : نبی ﷺ به (د جُمعې په ورځ) دوه خطبې وئیلې، کله چه به منبر ته اُوختلو نو (اول به) کیناستو تردې چه فارغ به شو. راوی وائي: زما په ابن عمرؓ گمان دې چه هغهٔ دا وئیلی دي : تردې چه مؤذن به فارغ شو. بیا به پاڅیدو او خطبه به ئې شروع کړه، بیا به (د دوه خطبو ترمینځ) کیناستو او خبرې به ئې نهٔ کولې بیا به (دویمې خطبې ته) پاڅیدو او خطبه به ئې اُووئیله. (ابوداودؒ)

**تشريح : كَانَ يَخْطُبُ** : دا د يخطب خطبتين اجمال دپاره تفصيل دے۔
**صَعِدَ الْمِنْبَرَ** : دا حديث دليل دے چه په منبر باندے خطبه وئيل مستحب دی۔
**أَرَاهُ الْمُؤَذِّنَ** : مطلب دا دے چه راوی وائی : زما په ابن عمرؓ باندے گمان دے چه د يَفْرُغَ نه د مؤذن فراغت مراد کوی يعنی نبیﷺ به په منبر باندے په ابتداء کښ دومره وخت ناست وو، څومره وخت کښ چه مؤذن د اذان نه فارغ کيږی۔ نو حديث دليل دے چه خطيب کله منبر ته اُوخيژی نو د خطبے د شروع کولو نه مخکښ به دومره وخت ناسته کوی لکه د اذان په مقدار۔ او دا په اتفاق د علماؤ سره سنت عمل دے۔
**ثُمَّ يَجْلِسُ**: د دوه خطبو په مابين کښ د جُلوس مقدار په هيڅ حديث کښ نۀ دے ذکر۔ ابن التينؒ وائی : دومره مقدار جلسه به کوی لکه د دوه سجدو په مابين کښ چه څومره کيږی او ددے خبرے نسبت ئے ابن القاسمؒ ته کړيدے۔ بعض وائی : د سورة الاخلاص په مقدار به کينی۔ليکن پدے خبرو باندے هيڅ دليل نشته ظاهر دا ده چه جلسه خفيفه به کوی او مقدار ئے نۀ دے معلوم۔ او جلوس بين الخطبتين سنت عمل دے او په شرطيت باندے هيڅ قوی دليل نشته۔ (كشاف القناع ۳۹/۲) بدائع الصنائع (۶۶۹/۲) واحكام الجمعة للشيخ محمد طاهر)
**وَلَا يَتَكَلَّمُ**: يعنی د دوه خطبو په مينځ کښ به ئے د دنيا خبرے يا وعظ وغيره نۀ کولو، او پدے کښ نفی د دعا او ذکر او قراء ت نشته بلکه دا په پټه باندے کولے شی۔او پدے کښ څه خاص ذکر يا دعا يا معيّن آيت نۀ دے ثابت۔ بلکه هر قسم دعاء او ذکر کولے شی۔ علی القاریؒ د طيبیؒ نه نقل کړيدی چه پدے ناسته کښ قرائت افضل دے څکه په روايت د ابن حبان کښ راغلی دی چه نبیﷺ به بين الخطبتين د کتاب الله نه قراء ت کولو او سورة الاخلاص لوستل افضل دی۔
ليکن صحيح دا ده چه هغه روايت کښ داسے الفاظ دی : (فَيَجْلِسُ بَيْنَ الْخُطْبَتَيْنِ، يَقْرَأُ مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ وَيُذَكِّرُ النَّاسَ) نو يَقْرَأُ مِنْ كِتَابِ الله دماقبل سره متعلق دے يعنی په خطبو کښ به ئے قرائت او تذکير کولو او دا مطلب نۀ دے چه بين الخطبتين به ئے قراء ت کولو څکه روستو ويذکر الناس ورسره نۀ لګی۔
**درجة الحديث**: اسناده ضعيف : اخرجه ابوداود (١٠٩٢) ونحوه احمد فی المسند (٣٥/٢) وفی اسناده العمری وهو عبد الله بن عمر بن حفص العمری المكبر وهو ضعيف كما فی التقريب)

---

**١٤١٤ (١٤) – وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا اسْتَوٰى عَلَى الْمِنْبَرِ، اسْتَقْبَلْنَاهُ بِوُجُوْهِنَا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيْثِ مُحَمَّدِ بْنِ**

الْفَضْلِ، وَهُوَ ضَعِيْفٌ ذَاهِبُ الْحَدِيْثِ.

---

ترجمه : اوعبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي : نبي ﷺ به چه كله په منبر باندے (برابر) كيناستو، مونږ به ورته مخامخ مخونه متوجه كړل. (دا روايت ترمذيؒ نقل كړيدے او دا ئے وئيلي دي : دا حديث مونږ نهٔ پيژنو مگر صرف د حديث د محمد بن فضل نه او هغهٔ ضعيف دے، حديث به ئے يادنهٔ پاتے كيدلو.

**تشريح** : حديث نه معلومه شوه چه سنت دا ده چه مقتديان خطيب ته او خطيب مقتديانوته مخامخ كيني. نو د جُمعے په ورځ خطيب ته مخامخ كيدل پكار دي اگركه د قبلے نه مخ واوړي او همدا سنت عمل دے. لكه په دے باره كښې ډير مرفوع او موقوف احاديث راغلي دي. او دا عمل د ابن عمرؓ او انس بن مالكؓ دے چه امام بخاريؒ تعليقاً او ابن ابي شيبۃؒ موصولاً ذكر كړيدے. (وسندهما صحيح). او وجه ددے دا ده چه مخاطبين د خطيب خبرو آوريدو ته ځان تيار كړي او د هغه سره د آدب نه كار واخلي. او د خطيب خبره په ښه شان په ذهن كښې پريوزي او د هغه خبره پرے ښه اثر كوي او خطيب به هم نشيط وي كله چه د هغه مخاطبين متوجه وي.

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف والحديث صحيح : اخرجه الترمذى (٥٠٩) وفى اسناده محمد بن الفضل وَهُوَ مُتَّهَمٌ بِالْكَذِبِ رَمَاهُ الْإِمَامُ اَحْمَدُ وَابْنُ مَعِيْنٍ وَغَيْرُهُمَا قَالَ الشَّيْخُ الْاَلْبَانِيُّ فى السلسلة الصحيحة (٧٩/٥) وَاِنَّ مِمَّا لَا شَكَّ فِيْهِ اَنَّ جَرَيَانَ الْعَمَلِ بِهٰذَا الْحَدِيْثِ مِنَ الصَّحَابَةِ وَمَنْ بَعْدَهُمْ لَدَلِيْلٌ قَوِيٌّ عَلٰى اَنَّ لَهٗ اَصْلاً اَصِيْلاً عَنِ النَّبِيِّ ﷺ لَا سِيَّمَا اَنَّهٗ يَشْهَدُ لَهٗ قَوْلُ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ جَلَسَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَلَى الْمِنْبَرِ وَجَلَسْنَا حَوْلَهٗ اَخْرَجَهُ الْبُخَارِيُّ (٩٢١) وفتح البارى (٤٠٢/٢)

## الفصل الثالث

**١٤١٥ (١٥) – عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَخْطُبُ قَائِمًا، ثُمَّ يَجْلِسُ، ثُمَّ يَقُوْمُ فَيَخْطُبُ قَائِمًا، فَمَنْ نَبَّأَكَ اَنَّهٗ كَانَ يَخْطُبُ جَالِسًا فَقَدْ كَذَبَ، فَقَدْ وَاللّٰهِ صَلَّيْتُ مَعَهٗ اَكْثَرَ مِنْ اَلْفَيْ صَلَاةٍ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.**

ترجمه : جابر بن سمره ﷺ فرمائي: نبي كريم ﷺ به په ولاړه خطبه وئيله، بيا به كيناستو، بيا به پاڅيدو، نو په ولاړهٔ به ئے خطبه اُووئيله، نو تا ته چه چا دا خبر دركړو چه نبي ﷺ به په ناسته خطبه وئيله نو هغهٔ شخص يقيني دروغجن دے، قسم په الله ! يقيناً ما د هغهٔ سره د دوه زرو مونځونو نه زيات مونځونه كړيدي. (چه هغهٔ به د غه شان خطبه وئيله) (مسلمؒ)

**تشريح :** دا حديث د امام مالك او شافعيؒ او د هغه د موافقينو دليل دے چه د جُمعے د خطبے دپاره قيام واجب دے۔ امام مالك ئے واجب گنړي او شافعيؒ ئے د جُمعے د صحت دپاره شرط گنړي۔ ځکه نبي ﷺ پدے باندے مواظبت او دوام كړيدے۔ ليكن اصح دا ده چه وجوب په نفس فعل د نبي ﷺ باندے نۀ ثابتيږي ترڅو چه دليل د وجوب نۀ وي موجود۔نو دا قيام سنت عمل دے او ددے خلاف بدعت دے۔ علامه امير صنعانيؒ فرمائي : «وَأَمَّا الْوُجُوبُ وَكَوْنُهُ شَرْطاً فِيْ صِحَّتِهَا فَلَا دَلَالَةَ عَلَيْهِ مِنَ اللَّفْظِ إِلَّا أَنْ يَنْضَمَّ إِلَيْهِ دَلِيْلُ التَّأَسِّيْ بِهِ ﷺ» (سبل السلام) وتوضيح الاحكام (٣٢٧/٣)۔ (په وجوب او شرطيت باندے قولي هيڅ حديث نۀ دے موجود مگر دا چه ددے سره دليل د اقتداء د نبي ﷺ منضم شي نو بيا به وجوب پيدا كړي)۔

**فَمَنْ نَبَّأَكَ :** دا ځکه وائي چه بعض بنوامیه کُسَالىٰ وو، په ناسته به ئے خطبه وئيله نو دا صحابي پرے رد کوي۔

**أَلْفَيْ صَلَاةٍ :** ددے دوه زره مونځونو نه به جُمعه او غير جُمعه دواړه اخستے شي ولے كه صرف د جُمعے مونځ مراد كړے شي نو بيا خو نبي ﷺ په مدينه كښې لس كاله تير كړيدي او اوله جُمعه ئے په وخت د راتلو كښې كړيده نو ټول د جُمعے مونځونه تقريباً پنځه سوه جوړيږي۔ خو مقصد دلته تحديد نۀ دے بلكه كثرت مراد دے۔

**١٤١٦ (١٦) - وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ : أَنَّهُ دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَعَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنِ أُمِّ الْحَكَمِ يَخْطُبُ قَاعِدًا، فَقَالَ: أُنْظُرُوْا إِلَى هٰذَا الْخَبِيْثِ يَخْطُبُ قَاعِدًا، وَقَدْ قَالَ اللهُ تَعَالٰى :﴿ وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انْفَضُّوْا إِلَيْهَا وَتَرَكُوْكَ قَائِمًا﴾. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.**

---

**ترجمه :** او دكعب بن عجره ؓ نه نقل شوي دي چه هغۀ (د جُمعے په ورځ) مسجد ته داخل شو او عبد الرحمن بن ام الحكم (چه د بني أميه ؤ نه د كوفے گورنر وو) په ناسته خطبه وئيله، نو كعبؓ أوفرمايل: «دے خبيث ته أوگورئ چه په ناسته خطبه وائي، او حال دا چه الله تعالىٰ فرمايلي دي: «او كله چه دوي تجارت يا د غفلت سامان أووينى نو هغے ته لاړ شي او تا لره ولاړ پريدى» (مسلمؒ)

**تشريح :** **عبد الرحمن بن ام الحكم :** دا عبد الرحمن بن عبد الله بن ام الحكم بنت ابي سفيان بن حرب د بني أميه ؤنه دے، معاويه ؓ په كوفه باندے امير مقرر كړے وو۔

**أُنْظُرُوْا إِلَى هٰذَا الْخَبِيْثِ :** دا د صحابه كرامو جرأت او په دين باندے خفگان دے چه امير ته د

سنت په خلاف كولو باندے خبيث واتى۔ نو څوك چه د سنت خلاف اُوكرى هغه سره دغه شان سختى جائز ده۔ خاصكر كله چه انسان ذى رأى وى او د هغه د خبرے لحاظ كيدے شى نو بيا به نهى عن المنكر باليد او باللسان كوى۔ او بنو اميه د صحابه كرامؓ نه يَريدل څه به ئے ورته نشو وئيلے ځكه پرے داسے صريح رد كوى۔

او دا حديث دليل دے چه خطبه په ولاړه سنت عمل دے او واجب نهٔ دے۔ ځكه دليل د وجوب نشته۔ او (قد قال الله تعالىٰ) جمله حاليه ده، حال مُقرّره دے۔ يعنى دا څنګه په ناسته خطبه واتى او نبى ﷺ به په ولاړه خطبه وئيله په دليل ددے قول د الله تعالىٰ چه اے نبى تا دوى ولاړ پريدى۔ آيت كښې واقعے ته اشاره ده چه مدينے والو ته لوږه او ګرانى رسيدلے وه نو د شام نه د تيلو تجارتی راغلو او نبى ﷺ د جُمعے په ورځ خطبه په ولاړه وئيله نو صحابه كرامؓ هغه له په ولاړه پريخودو او د هغه سره دولس كسان پاتے شو چه بعض د هغوى نه ابوبكرؓ او عمرؓ وو۔ (صحيح مسلم)۔

امام نوويؒ فرمائى : طريقه د استدلال د كعبؓ د آيت نه دا ده چه الله خبر وركړو چه نبى ﷺ به خطبه په ولاړه وئيله او الله فرمائى : ستاسو دپاره په نبى ﷺ كښې ښائسته اقتداء شته، او فرمائيلے ئے دى : څه چه رسول دركوى هغه واخلئ) آه۔

شوافعؒ ددے نه استدلال كوى چه قيام په خطبه كښې شرط دے۔ ليكن صحيح دا ده چه انكار د كعبؓ پدے وجه نهٔ دے چه قيام شرط دے بلكه پدے وجه دے چه ترك قيام خلاف سنت دے، او د خلاف سنت په وجه ئے په عبد الرحمن باندے رد اُوكړو۔ او كه قيام شرط وے نو هغه به په فساد د مانځه باندے حكم كړے وے۔ نو معلومه شوه چه خطبے دپاره قيام شرط نهٔ دے۔

---

١٤١٧ (١٧) – وَعَنْ عُمَارَةَ بْنِ رُوَيْبَةَ، أَنَّهُ رَأَى بِشْرَ بْنَ مَرْوَانَ عَلَى الْمِنْبَرِ رَافِعًا يَدَيْهِ فَقَالَ: قَبَّحَ اللهُ هَاتَيْنِ الْيَدَيْنِ، لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ مَا يَزِيدُ عَلَى أَنْ يَقُولَ بِيَدِهِ هٰكَذَا، وَأَشَارَ بِإِصْبَعِهِ الْمُسَبِّحَةِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او عماره بن رويبه ﷺ نه نقل شوى دى چه هغهٔ بشر بن مروان په منبر باندے اُوليدو چه دواړه لاسونه ئے پورته كړى وو، (لكه نن صبا مقررين او واعظين د تقرير په دوران كښې په جوش كښې راشى نو دواړه لاسونه پورته كوى او په هغے إشارے كوى) نو عماره اُوفرمايل : الله تعالىٰ دے دا دواړه لاسونه هلاك كړى، يقيناً ما رسول الله ﷺ ليدلے دے چه په خپل لاس سره ئے ددے نه زياته اشاره نهٔ كوله۔ دا ئے اُووئيل او د شهادت په ګوته سره ئے إشاره اُوكړه۔ (مسلمؒ)

بشر بن مروان بن الحكم الاموی القرشی، د عبد الملك بن مروان ورور دے او په کوفه باندے د خپل ورور د طرفه والی وو۔

**تشریح : رَافِعًا يَدَيْهِ:** ددے رفع الیدین نه څه مراد دی ؟ نو پدے کښې فهم د علماؤ مختلف دے : (۱) امام بیهقیؒ، نوویؒ او شوکانیؒ دا فهم کړیده چه ددے نه مراد هغه رفع الیدین دی چه د دعا په وخت کښې وی۔ امام نوویؒ په شرح مسلم کښې فرمائی : پدے حدیث کښې دا مسئله ده چه سنت په خطبه کښې دا ده چه د دعا په وخت کښې لاس اُوچت نهٔ کړے شی۔انتهیٰ۔ او دا رفع الیدین په حالت د استسقاء کښې ثابت دی۔ لیکن په عامه دعا د خطبه کښې به ئے نهٔ پورته کوی۔ صرف په یوه ګوته به اشاره کوی۔ (۲) او بعض علماء (ابن ابی شیبهؒ، نسائیؒ او طیبیؒ) فرمائی : ددے نه مراد هغه رفع الیدین دی چه د تکلم او خطاب په وخت کښې کیږی لکه دا د خطیبانو او مقررینو عادت دے چه په وخت د تقریر کښې لاسونه ښی او ګس طرفته اُوچتوی، خلقو ته تنبیه ورکوی په غور کیخودلو۔ نو دواړه لاسونه به نهٔ خوزوی بلکه صرف یوه ګوته به خوزوی او دوی رفع الیدین عند الدعاء په حالت د خطبه کښې جائز ګنړی۔

او امام ابوداودؒ او ترمذیؒ داسے بابونه قائم کړیدی چه دواړه احتماله پکښې راتلے شی۔لیکن راجح اول احتمال دے، وجه دا ده چه په روایت د ترمذیؒ او بیهقیؒ او احمدؒ کښې زیادت راغلے دے، په روایت د احمدؒ (٢٦١/٤) کښې پدے قصه کښې داسے الفاظ دی : (يُشِيرُ بِإِصْبَعَيْهِ، يَدْعُو)۔ (یعنی بشر په دواړو ګوتو اشارے کولے، او دعاء ئے کوله) په بل روایت کښې دی : (فَلَمَّا دَعَا (بِشْرٌ) رَفَعَ يَدَيْهِ) او په روایت د ترمذیؒ کښې دی : (فَرَفَعَ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ)۔(لاسونه ئے په دعاء کښې پورته کړل) لهذا په وخت د دعاء کښې په خطبه کښې به لاسونه او دوه ګوتے نهٔ پورته کوی بلکه صرف یوے ګوتے سره به اشاره کوی۔ او په بعض اوقاتو کښې لاسونه په دعاء کښې پورته کول جواز لری چه یو کار راپیښ شی یا څوک مطالبه د دعاء اُوکړی لکه نبی ﷺ په حالت د خطبه کښې د استسقاء په دعاء کښې لاسونه پورته کړل۔لیکن عام حالت کښې به په خطبه کښې عند الدعاء لاسونه نهٔ پورته کوی۔

او هرچه د خطیب لاسونه خوزول دی نو هغهٔ بالکل ثابت دی۔ صحیح مسلم (٣٧٠/٢) کښې دی : عبید الله بن مِقْسَم فرمائی: دهٔ عبد الله بن عمر ته اُوکتل چه څنګه ئے د رسول الله ﷺ (د خطبے او تقریر) حکایت کولو، دا فرمائی : الله به آسمانونه او زمکے په دواړو لاسونو کښې اُونیسی او اُوبه وائی : زهٔ الله یم، او ګوتے به ئے بندے کړے (یا ئے ئے کولاوے کړے، زهٔ بادشاه یم. تردے چه ما منبر ته اُوکتل چه د لاندے طرف نه خوزیدلو تردے چه ما اُووئیل : آیا دا په رسول الله ﷺ باندے راغورزیږی) او په روایت د احمد (٧٢/٢) کښې دی : (وَرَسُولُ اللهِ ﷺ يَقُولُ هٰكَذَا

بِيَدِهِ يُحَرِّكُهَا فَرَجَفَ بِرَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ الْمِنْبَرُ حَتّٰى قُلْنَا لَيَخِرَّنَّ بِهٖ) (او رسول الله ﷺ په لاس سره دغه شان اشاره كوله، لاس ئې خوزولو، نو په رسول الله ﷺ باندې منبر اُوخوزليدو، زمونږ گمان شو چه منبر به په هغه باندې راپريوزي) نو دلته رسول الله ﷺ په لاس او تولو گوتو سره په منبر باندې اشاره كړيده او ظاهر دا ده چه دا د خطبې دوران وو۔

۲- دارنگه په مسلم او بخاري كښې دي : نبي ﷺ به (په منبر باندې داسې فرمايل :

[بُعِثْتُ أَنَا وَالسَّاعَةُ كَهَاتَيْنِ وَيَقْرُنُ بَيْنَ إِصْبَعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطٰى وَيَقُوْلُ أَمَّا بَعْدُ...... الحديث]

(فتاوى الدين الخالص (٦/٢٢١)

قُبِّحَ : دا په تخفيف سره دې د باب د منع نه، معنیٰ ئې ده : الله دې ئې هلاك كړي او د خير نه دې وراندې كړي۔ لكه دا خبره احمد شاكرؒ په شرح د ترمذي كښې كړيده او د عوامو په ژبو باندې تشديد د باء مشهور دې د هغې وجه ئې هم په مصباح كښې دا ذكر كړيده چه دا د مبالغې دپاره دې۔

---

۱۴۱۸ (۱۸) - وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: لَمَّا اسْتَوٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يَوْمَ الْجُمُعَةِ عَلَى الْمِنْبَرِ، قَالَ: «اِجْلِسُوْا»، فَسَمِعَ ذٰلِكَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ، فَجَلَسَ عَلٰى بَابِ الْمَسْجِدِ، فَرَآهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ فَقَالَ: «تَعَالَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَسْعُوْدٍ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او جابر ؓ فرمائي : رسول الله ﷺ به چه كله د جُمعې په ورځ په منبر باندې (برابر) كيناستو نو فرمايل به ئې : اې خلقو كينئ! دا خبره ابن مسعود ؓ واوريدله نو هغهٔ (د اتباع كولو په نيت) د مسجد په دروازه كښې كيناستو، نو رسول الله ﷺ هغهٔ لره اُوليدلو وې فرمايل : «چه عبد الله بن مسعود دلته راشهٔ !»۔ (ابو داودؒ)

تشريح : اِجْلِسُوْا : يعنې رسول الله ﷺ چه كله منبر باندې اُوختلو نو بعض حاضرين ئې اُوليدل چه مانځه ته پاځيدل نو وې فرمايل : كينئ اُوس مهٔ پاځئ، ځكه دا اِجماعي مسئله ده چه د امام په منبر باندې دكيناستو نه روستو د ناستو خلقو دپاره مونځ جائز نهٔ دې۔ بلكه خطبې ته به غوږ اِږدي او ددې نه راتلونكې مستثنیٰ دې چه هغه دوه ركعاته تحية المسجد كولې شي۔ پدې وخت كښې عبد الله بن مسعودؓ مسجد ته راروان وو، د نبي ﷺ دا حكم ئې واوريدو نو د ځپلو په ځائې كښې كيناستو، دې دپاره چه د نبي ﷺ په حكم باندې فوراً عمل اُوكړي، نو نبي ﷺ ورته اُوفرمايل : ته راشه تا ته دا حكم نهٔ دې۔ پدې كښې د صحابه كرامؓ تابعداري اُ_كوره

چه صرف عام لفظ (اجلسوا) آوریدو سره دا حکم ځان ته متوجه کوی، داسے تاویل نۀ کوی چه ما ته خو ئې وائی چه کینه.

تَعَالَ: امام راغبؒ وائی : دا په اصل کښ د ښکته ځائے نه اُوچت ځائے ته رابللو دپاره استعمالیږی بیا هرځائے ته د راغوختو دپاره استعمال شویدے. او دلته معنیٰ دا ده : راشه د ځائے د نعال (د ښپلو ځائے) نه مقام د رجال (د سړو ځائے) ته.

بیا ددے نه دا نۀ لازمیږی چه د خلقو په څټونو به ئې خپے اړولی وی ځکه دا نۀ ده معلومه چه صفونه د مسجد دروازے ته رسیدلی وو تردے چه تخطی(د خلقو په اُوګو خپے اړول) لازم شی، او د نبی ﷺ دا رابلل مسجد طرف ته وو چه د ښپلو ځائے نه راشه مسجد ته. یا مطلب دا وو چه زما خوا ته نزدے راشه ځکه چه دا فقهاء الصحابه نه وو نبی ﷺ ځان سره نزدے ځائے کښ کینولو. لیکن اول مطلب ظاهر دے.

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (۵۹۱) وقال : والمعروف مرسل قلت : رجاله ثقات غير ابن جريج مدلس كما قال الدارقطني وغيره وقد عَنْعَنَهٗ ولم يتفرد مخلد بروايته موصولاً بل تابعه على ذلك معاذُ بن معاذ عند البيهقي فلا يضر ذلك ارسال من ارسله، وقد قال الالباني اسناده صحيح : صحيح ابی داود (۱/۲۰۳)

---

۱۴۱۹ (۱۹) - وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« مَنْ اَدْرَكَ مِنَ الْجُمُعَةِ رَكْعَةً فَلْيَصِلْ اِلَيْهَا اُخْرٰى، وَمَنْ فَاتَتْهُ الرَّكْعَتَانِ فَلْيُصَلِّ اَرْبَعًا » اَوْ قَالَ: «الظُّهْرَ». رَوَاهُ الدَّارِقُطْنِيُّ.

ترجمه : او ابو هریره ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی : « چا چه د جُمعے دمانځه نه یو رکعت اُوموندلو نو هغے سره دے بل رکعت یو ځائے کړی، (نو د جُمعے مونځ به ئې اداء شی) او چا نه چه دواړه رکعتونه فوت شی نو هغهٔ دے څلور رکعاته اُوکړی ». یا ئې داسے اُوفرمایل : « د ماسپښین مونځ دے اُوکړی». (دارقطنیؒ).

**تشریح** : فَلْيَصِلْ اِلَيْهَا : دے لفظ کښ بعض وائی دا مشدد دے او د صلاة نه دے یعنی دغه رکعت سره دے بل رکعت مونځ اُوکړی. دا ابن حجر هیثمیؒ وئیلی دی لیکن ملاعلی القاریؒ پرے رد کړیدے چه دا لفظ مشدد صحیح نۀ دے بلکه مخفف دے ځکه دلته الیها لفظ روستو راغلی دے نو دا د (وصول) نه دے یو ځائے کولو ته وائی او د وصول متعدی کیدل په الیٰ سره جائز دی.

دا حدیث دلیل دے د ائمه ثلاثو دپاره چه مُدرك د یو رکعت ته مُدرك د جُمعے وائی او که د یو

ركعت نه کم لاندې کړې نو بيا به د ظهر مونځ کوي۔ او دا رأيه مونږ د ذکر شوي دلائلو په وجه راجحه کړې وه او دا حديث اګرکه ضعيف دې ليکن مخکښ تير شوي روايات او د صحابه کرامو آثار ددې تائيد کوي لهذا ددې معنیٰ صحيح ده۔ اګرکه سند ئې ضعيف دې۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف ومعناه صحيح : اخرجه الدارقطني (١٦٧) وفي اسناده ياسين الزيات وهو ضعيف جداً اتهمه ابن حبان بالوضع وقد تابعه جماعة الضعفاء عند الدارقطني وغيره، وله طرق وشواهد كلها ضعيفة وبعضها اشد ضعفاً من بعض راجع تلخيص الحبير (١٢٦) والارواء (٦٢٢)

OOOOOOOO

# ٤٦- باب صلاة الخوف

## دِ خوف (يَرې) د مانځه بيان

صلاة الخوف ئې د عيدين نه مخکښې راوړو ځکه چه دې اُمت باندې جهادونه ډير راځي د اَخترونو نه نو ځکه ئې مُقدم کړو ليکن د جُمعې نه زيات نۀ دې نو د هغې نه ئې روستو ذکر کړو، صلاة الخوف دا اضافت د مانځه دې ظرف ته يعني د يرې د زمانې مونځ، د يَرې په وخت کښې به څنګه مونځ کوي؟ نو که يَريدونکې مسافروي قصربه هم کوي او تخفيف به پکښې هم کوي. او که مسافر نۀ وي نو بيا به قصر نۀ کوي او تخفيف به کوي.

**مسائل : المسئلة الاولىٰ : كيفيات صلاة الخوف :**

په صلاة الخوف کښې ډير کيفيات راغلي دي چه امام ابوداودؒ په خپل سنن کښې د صلاة الخوف اته (۸) کيفيات جمع کړيدي او دغه شان ابن حبان په صحيح کښې نهه (۹) ذکر کړيدي او دا ئې وئيلي دي چه ددې ترمينځ هيڅ تضاد نشته. او د مباح اختلاف د اقسامونه دي چه انسان له ددې په کولو کښې اختيار دې. کوم چه د وخت زيات موافق وي هغه کول پکار دي.

علامه ابن حزمؒ فرمائي : پدې کيفياتو کښې (١٤) څوارلس طريقې صحيح دي او دا ئې په يوه مستقله رساله کښې جمع کړيدي او ابن عربي په ((القبس)) کښې ليکي : په صلوة الخوف کښې ډير روايات راغلي دي چه اصح پکښې شپاړس (١٦) دي او د هغې بيان ئې نۀ دې کړې او دغه شان نوويؒ په شرح مسلم کښې ددې په شان ذکر کړيدي ليکن تفصيلي بيان ئې نۀ دې کړې او علامه عراقيؒ په شرح د ترمذي کښې دغه شپاړس بيان کړيدي او يو ئې پرې زيات کړيدې نو (١٧) کيفيات شو بيا ئې وئيلي دي چه ممکن ده چه بعض په بعضو کښې داخل شي.

○ حافظ ابن القيم رحمه الله فرمائي : اصول ددې کيفياتو شپږ دي او کوم علماؤ چه زيات شمارلي دي نو هغوي د رواتو اختلاف په يوه قصه کښې ليدلې دې نو هغې نه ئې مستقل کيفيت جوړ کړيدې او حال دا چه دا اختلاف د رُواتو دې. حافظ په فتح الباري کښې وائي : دا خبره معتمده ده او ديته زمونږ شيخ عراقيؒ پدې قول سره إشاره کړيده چه ممکن ده چه بعضې په بعضو کښې داخل شي. فتح الباري (٢/٤٣١)

○ علامه ابن القصار المالکيؒ نقل کړيدي چه نبي ﷺ صلاة الخوف لس کرت کړيدې.

○ ابن العربیؒ وائی : څلیریشت (۲٤) کرت ئے کړیدے، حافظ زیلعیؒ فرمائی : بعض فقهاؤ ذکر کړیدی چه نبی ﷺ صلاة الخوف لس ځایونو کښې کړیدے لیکن د اهل سیر او مغازی په نیز باندے دا خبره ثابته ده چه نبی علیه السلام په څلورو ځایونو کښې کړیدے۔ ۱- ذات الرقاع ۲- بطن نخله ۳- عسفان ٤- او ذی قرد۔ حدیث د ذات الرقاع په بخاری وغیره کښې د سهل بن ابی حثمه روایت دے۔ او حدیث د بطن نخله نسائی د جابر نه روایت کړیدے او حدیث د عسفان ابوداود او نسائی د ابوعیاش الزرقی نه روایت کړیدے او حدیث د ذی قرد نسائی د ابن عباسؓ نه روایت کړیدے۔

(نصب الرایة ۲/۲٤۷) (تحفة الاحوذی (۲/۱۰٤) وفتح الباری (۲/٤۳۱) توضیح الاحکام (۲/۳٦٥)۔

**المسئلة الثانیة** : اختلاف دے چه د صلاة الخوف نزول په کوم کال شویدے؟ نو جمهور اهل علم وائی : اول مونځ په غزوه د ذات الرقاع کښې شویدے۔ بیا اختلاف دے چه دا په کوم کال وو؟ نو عام اهل سیر (ابن اسحاق، ابن عبد البرّ وغیره) فرمائی : دا پس د غزوه خندق او بنی النضیر نه په جمادی الاولیٰ سنه (۵) هجری کښې شویدے۔

۲- ابن سعدؒ او ابن حبانؒ وائی : په لسم محرم سنه (۵) کښې شویدے۔ ۳- ابو معشرؒ وائی : د بنی قریظه نه پس د پنځم کال (۵) په آخر کښې شویدے۔ ٤- امام بخاری وائی : دا په اُوم (۷) کال د خیبر نه پس شویدے۔ او دا قول حافظ ابن القیمؒ او حافظ ابن حجرؒ راجح کړیدے۔ ابن القیمؒ او حافظ ابن حجرؒ دواړه فرمائی: اول مونځ چه د خوف د وجه نه شویدے هغه په عُسفان کښې شویدے او په عُمره د حدیبیه کښې شویدے چه دا د غزوه خندق او قریظه نه پس په سنه (٦) کښې وو او دارنګه په غزوه دذات الرقاع کښې هم شویدے نو معلومه شوه چه ذات الرقاع د خندق او د عسفان نه روستو وه۔

حافظ فرمائی : کله چه دا ثابته شوه چه اول مونځ د صلاة الخوف په عُسفان کښې شویدے او دا په عُمره د حُدیبیه کښې وو او دا د خندق او قریظه نه روستو وو او صلاة الخوف په غزوه د ذات الرقاع کښې هم شویدے او دا د غسفان نه روستو وه نو دا متعینه شوه چه ذات الرقاع د خندق او قریظه او حدیبیه نه متأخر دے نو دا قول قوی شو چه دا صلاة الخوف پس د خیبر نه وه ځکه غزوه د خیبر د حدیبیه د رجوع نه پس وو۔ انتهیٰ۔

**المسئلة الثالثة** : نبی ﷺ په غزوه خندق کښې ولے صلاة الخوف نهٔ دے کړے؟ ددے په سبب کښې مختلف اقوال دی : ۱- بعض وائی : صلاة الخوف ددے نه مخکښې نازل وو لیکن نبی ﷺ نه نسیاناً پاتے شو۔ او ددے په باره کښې یو ضعیف روایت باندے استدلال کوی چه

حافظ فرمائي : (في صحتها نظر)۔ او دا د صحيحينو د حديث مخالف دے چه نبي ﷺ عمر فاروق ته اُوفرمايل : (وَاللّٰهِ مَا صَلَّيْتُهَا) (ماهم د ماز يګر مونځ نۀ دے کړے)۔

۲- بعض وائي : دائے قصداً روستو کړو، ځکه چه نبي ﷺ په قتال باندے مشغول وو او اشتغال بالقتال مانع دے د مانځه نه۔ دا صاحب الهدايه او طحاوي او ابوبکر الجصاص ذکرکړيدے۔

۳- بعض وائي : نبي ﷺ ته په حالت د سُوريدو کښې د صلاة الخوف حکم نۀ وو شوے۔ ٤- بعض وائي: نبي ﷺ په حضر کښې وو او حکم د صلاة الخوف په سفر کښې وي (ابن ماجشون دا قول کړيدے)

٥- پدے کښې صحيح قول دا دے چه صلاة الخوف د غزوه خندق نه روستو نازل دے او د غزوه خندق په وخت کښې صلاة الخوف نازل نۀ وو او دا قول د جمهورو دے لکه ابن رشدؒ وئيلي دي۔ او ابن قيمؒ په زاد المعاد کښې او حافظؒ په فتح الباري کښې او قرطبيؒ په شرح مسلم کښې او عياضؒ په شفاء کښې او زيلعيؒ په نصب الرايه کښې دا قطعاً ذکر کړيدے۔

**المسئلة الرابعة** : جمهور علماء وائي : د صلاة الخوف حکم د نبي ﷺ نه روستو اُمت دپاره هم باقي دے۔ مُزنيؒ د شوافعو نه وئيلي دي چه دا منسوخ دے ځکه نبي ﷺ په غزوه خندق کښې نۀ دے کړے نو دا نۀ کول دليل دے چه صلاة الخوف منسوخ دے۔ ابن القصارؒ وائي : (هٰذَا قَوْلُ مَنْ لَا يَعْرِفُ السُّنَنَ) (دا قول د هغه چا دے چه سنن نۀ پيژني) ځکه صلاة الخوف خو د خندق نه روستو نازل شويدے۔

○ امام ابويوسفؒ نه پکښې دا هم نقل شويدي چه هغه وئيلي دي : صلاة الخوف د نبي ﷺ پورے خاص دے ځکه آيت کښې (وَإِذَا كُنتَ فِيهِمْ) راغلے دے نو صلاة الخوف پدے شرط جائز شويدے چه نبي ﷺ په خلقو کښې موجود وي او کله چه نبي ﷺ د دنيا نه لاړو نو بس صلاة الخوف هم ختم شو۔

عقلي دليل دا وائي چه پدے کښې هغه ډير کارونه دي چه منافي د مانځه دي لکه تلل راتلل او اعمال کثيره دي۔ او دا کارونه د نبي ﷺ په ژوند کښې خلقو ځکه کول چه د نبي ﷺ په اقتداء کښې ئے رغبت لرلو او پس د وفات د هغه نه رغبت پاتے نشو۔ **جواب** دا دے چه آيت کښې قيد د پيغمبر کيدو واقعي دے لکه په صلاة السفر کښې چه د (ان خفتم) قيد واقعي دے۔ او بله دا چه د نبي ﷺ سره د خطاب د تخصيص نه دا نۀ ثابتيږي چه حکم دے هم هغه پورے خاص وي ځکه چه ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً﴾ کښې هم پيغمبر ته خطاب دے او حال دا چه د رسول الله ﷺ نه

روستو هم صحابه كرامؓ مانعينو د زكاة باندے رد كرے وو په دغه خبره چه پدے آيت كښې خو نبي ﷺ ته خطاب دے چه هغه به زكات اخلي۔

ابن العربيؒ فرمائي : د نبي ﷺ په هغوى كښې دكيدلو شرط د بيان د حكم دپاره دے، نهٔ د وجود الحكم دپاره۔ مطلب دا دے چه اے نبي ! تهٔ ورته په خپل عمل سره بيان اُوكړه څكه دا ډير واضح وى د قول نه۔ انتهى۔

او بله دا چه صحابه كرامؓ د نبي ﷺ نه روستو هم پدے باندے عمل كريدے نو آيا هغوى په منسوخ دين عمل كولو، لكه سعيد بن العاصؓ په طبرستان كښې د يو لښكر اميرو ونو وے فرمايل : په تاسو كښې چا د نبي ﷺ سره صلاة الخوف كريدے؟ حذيفه ؓ اُوفرمايل : ما كريدے۔ نو هغه ئے مخكښې كړو او مونځ ئے ورته اُوكړو۔ علي ؓ صلاة الخوف كريدے۔ او ابو موسى اشعري ؓ په اَصبهان كښې خپلو ملګرو ته صلاة الخوف اُوكړو۔ او كوم افعال چه منافي د مانځه راغلي دي نو هغه د ضرورت په وجه جائز شويدي۔ او دا صلاة الخوف په بخاري كتاب التفسير كښې قولاً هم د نبي ﷺ نه ثابت دے۔ نافع فرمائي : د عبد الله بن عمرؓ نه به چه كله د صلاة الخوف په باره كښې تپوس اُوشو نو هغه به بيان كولو او په آخر د هغه حديث كښې دي : نافعؒ وائي : زما ګمان په عبد الله بن عمرؓ نهٔ دے مګر دا چه هغه دا د خوف مونځ د رسول الله ﷺ نه ذكر كوى۔

**المسئلة الخامسة :** صلاة الخوف په حضر كښې هم جائز دے كله چه ضرورت راشي مثلًا دشمن كلي ته نزدے راشي۔ او دا قول د جمهورو (شافعيؒ، احمدؒ، ابو حنيفةؒ، او د مالكؒ مشهور قول) دے۔ بل قول دا دے چه حضر كښې نهٔ دے جائز۔ او پدے باندے ابن ماجشونؒ قول كريدے۔ دليل د جواز دا دے چه آيت عام دے۔ (اذا كنت فيهم) ۔ كله چه نبي ﷺ په خلقو كښې وى نو مونځ ورته كولے شي۔ كه سفر وى او كه حضر۔

**المسئلة السادسة :** صلاة الخوف كښې يو ركعت هم ثابت دے كله چه قتال سخت شي. او دا قول د ابن عباسؓ، حسن بصريؒ، عطاءؒ، طاووسؒ، مجاهدؒ، حكم بن عتيبةؒ، قتادةؒ، اسحاقؒ، ضحاكؒ او ثوريؒ دے۔ ۲- اكثر اهل علم فرمائي : خوف اثر نهٔ كوى د ركعاتونو په تعداد كښې په حق د امام او مقتدى دوارو كښې۔ او دا قول د مالكؒ، شافعيؒ، احمدؒ او ابو حنيفةؒ وغيره دے۔

**د جواز دلائل : ۱ - دليل:** حديث د حذيفه ؓ دے : ((إِنَّ النَّبِيَّ ﷺ صَلَّى صَلَاةَ الْخَوْفِ بِهٰؤُلَاءِ رَكْعَةً وَبِهٰؤُلَاءِ رَكْعَةً وَلَمْ يَقْضُوا )) (احمد، ابوداود، نسائي او الاثرم وصححه ابن حبان) (بلوغ المرام ۱/۹۷) (الحديث صحيح) توضيح الاحكام (۲/۳۷۵) نبي ﷺ صلاة الخوف يو يو ډلے ته يو يو ركعت

أوكړو، او هغوى د باقي مانځه قضائي أونكړه) دا صريح دليل د جواز دے۔ پدے كښې دا تاويل كول چه لم يقضوا : يعني دوى د امن نه پس اعاده د مانځه أونكړه۔ دا بعيد او خلاف الظاهر دے۔ او هيڅ دليل پرے نشته۔

٢- دليل : ابن عباس ﷺ فرمائي : ((فَرَضَ اللّٰهُ الصَّلَاةَ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّكُمْ فِي الْحَضَرِ أَرْبَعًا وَفِي السَّفَرِ رَكْعَتَيْنِ وَفِي الْخَوْفِ رَكْعَةً)) (اخرجه احمد ومسلم وغيرهما)

(الله ستاسو د نبي په ژبه په حضر كښې څلور ركعاته مونځ او په سفر كښې دوه ركعاته او په خوف كښې يو ركعت فرض كړيدے) وقد تقدم هذا الحديث۔

نو دا صريح دليل دے چه صلاة الخوف يو ركعت هم جائز دے۔ پدے كښې دا تاويل كول چه يو ركعت د امام سره مراد دے او پدے كښې نفي د دويم ركعت نشته – دا تاويل خلاف الظاهر دے۔ وجه دا ده چه پدے كښې هيڅ منافات نشته چه واجب دے يو ركعت وى او أودے كړے شي دوه ركعاته نو تاويل او تطبيق ته حاجت پاتے نشو۔ يا دا چه افضل دا ده چه صلاة دوه ركعاته أوكړے شي او كله نا كله په يو ركعت باندے هم اكتفاء جائز ده۔ بله دا چه دا تاويل خلاف دے د (لَمْ يَقْضُوْا) نه چه صحابه كرامؓ د نبي ﷺ سره يو يو ركعت أوكړو او د بل ركعت قضاءئے أونكړه۔ او امام ابن حبانؒ په خپل صحيح (١١٤/٧) كښې د يو ركعت د اثبات دپاره څلور روايات ذكر كړيدى۔ هغے ته رجوع اوكړه۔ وانظر بلوغ الاماني (٨/٧) والمغني (٢٥٢/٢) وفقه السنة (٢٤٧/١) وكشاف القناع (١٠/٢) والفقه الاسلامي (٤٣٣/٢)

**المسئلة السابعة:** هغه طريقے او كيفيات چه په صحيح احاديثو كښې ثابت دى هغه ټول جائز دى د ټولو علماؤ په نيز او اختلاف صرف په اولىٰ او افضل كښې دے مگر صرف په درے صورتونو كښې چه هغے كښې بعض علماؤ تاويل كړيدے كوم چه ئے نهٔ مني۔

علامه سُهيليؒ فرمائي : د علماؤ اختلاف دے په ترجيح كښې نو يوه طائفه وائي : په هغه طريقه به عمل كولے شي كوم چه اشبه بظاهر القرآن (د ظاهر د قرآن زياته مشابه) وى، ٢- او يوه طائفه وائي : اخيرى طريقه به طلب كولے شي ځكه دا ناسخ ده د ماقبل دپاره۔ ٣- او يوه طائفه وائي : د نقل په لحاظ چه كوم اصح وى او د رُواتو په لحاظ أعلىٰ وى نو په هغے به عمل كولے شي۔ ٤- او يوه طائفه وائي : په ټولو به عمل كولے شي په اعتبار د اختلاف د احوالو د خوف سره نو كله چه خوف سخت وى نو په آسانه طريقه به عمل كولے شي۔ انتهىٰ۔

٥- امام احمدؒ او شافعيؒ هغه طريقے ته ترجيح وركوى كوم چه په روايت د (يزيد بن رومان عن صالح بن خوات عمن صلى مع رسول الله ﷺ) كښې ذكر ده چه هغه دويم حديث ددے باب دے۔

ځکه دا طريقه د کثرت مخالفت نه سالمه ده، دارنګه دا ډيره احوط ده د جنګي تدبير سره۔ او دا طريقه امام مالك هم مختار کړيده لکه هغه په الموطأ کښې د صالح بن خوات عن سهل بن ابي حثمةؓ روايت راوړيدے او بيا ئے وئيلي دي چه دا طريقه ما ته په صلاة الخوف کښې ډيره محبوبه ده۔

٦- ابوحنيفةؒ او محمدؒ هغه طريقه مختار کړيده کومه چه په روايت د ابن مسعودؓ کښې په ابوداود کښې په سند ضعيف نقل ده۔ او هغه چه په بخاري وغيره کښې د ابن عمرؓ نه نقل ده او هغه اول حديث ددے باب دے۔ ليکن په مذهب د ابوحنيفةؒ او محمدؒ باندے ددے طريقے په دلالت کښې خفاء ده۔لکه روستو به راشي۔

او هرچه هغه درے مختلف فيها صورتونه دي ١- نو اول په هغے کښې دا دے : چه امام هرے طائفے ته ځائله (يوائې) مونځ اُوکړي او سلام واړوي۔ نو امام په دويم مونځ کښې متنفل دے چه امامتي کوي مفترضينو ته۔ احناف دا نهٔ مني نو پدے کښې داسے تاويل کوي چه هغه يے ځايه دے۔ او بعض ددے د ثبوت نه منکر دي ليکن غلط وائي۔ ٢- دويم صورت دا چه امام اولے طائفے ته دوه رکعاته اُوکړي او سلام نهٔ ګرزوي بيا طائفه سلام واړوي۔ او واپس شي او د هيڅ شي قضائي رانهٔ وړي او دويمه طائفه راشي نو هغوي ته امام دوه رکعاته اُوکړي او هغوي باندے سلام واړوي او هيڅ قضاء رانهٔ وړي نو د امام څلور رکعاته شو په يو سلام او د قوم دوه دوه رکعاته شو فقط۔ احناف مالکيه، او حنابله دا طريقه نهٔ مني نو داسے تاويل کوي چه رد ته ئے ضرورت نشته۔وارجع الى المغنى۔ ٣- دريم صورت : اقتصار په يو رکعت کول۔ ددے نه شافعيؒ، مالكؒ، ابوحنيفةؒ، او اصحاب احمدؒ منکر دي او هغه تاويل پکښې کوي کوم چه مخکښې مسئله کښې تير شو سره د جواب نه۔

**المسئلة الثامنة** : صلاة الخوف هله جائز دے چه شرائط ئے موجود شي او هغه دا چه دشمن به مباح القتال وي او د هغه د هُجُوم (ناڅاپي حملے) نه به خطره وي۔ ٢- دويم دا چه صلاة الخوف د اراده کونکو هُجُوم (حمله) به مباح وي نو که چرته عُصَاة وي لکه د باغيانو په شان مثلًا نو د هغوي دپاره صلاة الخوف جائز نهٔ دے۔ ٣- مونځ کونکي به دومره ډير وي چه د هغوي دوه طائفے کول به ممکن وي، هره طائفه به درے کسان يا زيات وي۔ او دا قول حافظ ابن حجرؒ د امام شافعيؒ نه نقل کړيدے۔ دليل دا دے چه په آيت کښې ئے هغوي ته ضمير د جَمع راجع کړيدے (أَسۡلِحَتَهُمۡ) علامه ابن قدامةؒ فرمائي: اولیٰ دا ده چه دا شرط اُونهٔ لګول شي ځکه کم د دريو نه يو داسے عدد دے چه په هغے سره هم جماعت صحيح کيږي نو جائز ده چه دا مادون الثلاثه وے د دريو په شان طائفه اُوکرځي۔

٤- احناف دا شرط لګوي چه مونځ کښې به دننه قتال نشي کولے۔ که مونځ کښې قتال شروع کړي، مونځ فاسد دے۔ (راجع للتفصيل مرعاة المفاتيح (٤/٥)

التاسعة : فقهاؤ په دوه خبرو اتفاق کړیدے :١- یو دا چه غازیانو له دا جائز دي چه صلاة الخوف په دوه امامانو سره اُوکړي، هره طائفه د بیل امام سره۔ ٢- دویم دا چه کله خوف زیات شي او جماعت مشکل شي نو دوی له جائز دي چه څانله څانله په خپلو سمڅو (غارونو) او ځایونو کښې مونځ اُوکړي او د دوی نه چه کوم حرکت یا منډه او قبلې ته شا اړول راځي دا ټول معاف دي او رکوع او سجده به په اشاره سره کوي۔

تنبیه : د صلاة الخوف د مشروعیت نه په ټول کیفیاتو سره دوه خبرے إستفاده کیږي : (١) یو دا چه په اسلام کښې د مانځه ډیر آهمیت دے او ددے په خپل وخت کښې د اداء کولو حرص ترے معلومیږي ترد ے چه مسلمان د مانځه په ادا کولو کښې پدے سخت حالت د قتال کښې هم معذور نۀ دے ګنړلے شوے، او بیا هم ورته حکم شویدے چه ضرور به مونځ کوے اګرکه په هره طریقه وي، نو څۀ به وي حال د هغه سُستو خلقو چه په کورونو او بسترو پراته وي او جماعت ته حاضري نۀ ورکوي۔

(٢) دارنګه بل ددے نه د جهاد في سبیل الله عظمت او آهمیت معلوم شو تردے چه د جهاد د وجه نه په فرض مانځه کښې خلل راغلو او ډیر آرکان ترك کړے شو او ډیر منافي أعمال (منډه تره، قبلې ته شا اړول، رکوع او سجده وغیره) أوکړے شو دا ټول کاروته ددے دپاره کیږي چه جهاد في سبیل الله أوکړے شي چه د الله کلمه بلنده شي او په عَالَم کښې د هغه دین او دعوت خور شي۔ او د صلاة الخوف په مشروعیت کښې راز دا دے چه یو تیسیر او آساني په اُمت راشي ٢- او دویم مونځ په خپل وخت آداء کړے شي۔ (توضیح الاحکام (٢/٣٦٦)

د صلاة الخوف د ابتدائي نزول واقعه روستو پنځم حدیث کښې راروانه ده۔

## الفصل الاول

١٤٢٠ (١) – عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ اَبِيْهِ، قَالَ: غَزَوْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ قِبَلَ نَجْدٍ، فَوَازَيْنَا الْعَدُوَّ، فَصَافَفْنَا لَهُمْ، فَقَامَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُصَلِّي لَنَا، فَقَامَتْ طَائِفَةٌ مَعَهُ، وَاَقْبَلَتْ طَائِفَةٌ عَلَى الْعَدُوِّ، وَرَكَعَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِمَنْ مَعَهُ، وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ انْصَرَفُوْا مَكَانَ الطَّائِفَةِ الَّتِيْ لَمْ تُصَلِّ، فَجَاؤُوْا، فَرَكَعَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِهِمْ رَكْعَةً، وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ فَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ، فَرَكَعَ لِنَفْسِهٖ رَكْعَةً، وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ. وَرَوٰى نَافِعٌ نَحْوَهٗ وَزَادَ :

فَإِنْ كَانَ خَوْفٌ هُوَ أَشَدُّ مِنْ ذٰلِكَ صَلُّوْا رِجَالًا، قِيَامًا عَلٰى أَقْدَامِهِمْ، أَوْ رُكْبَانًا مُسْتَقْبِلِي الْقِبْلَةِ، أَوْغَيْرَ مُسْتَقْبِلِيْهَا، قَالَ نَافِعٌ: لَا أُرٰى ابْنَ عُمَرَ ذَكَرَ ذٰلِكَ إِلَّا عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** سالم بن عبد الله بن عمر رحمه الله د خپل والد محترم ابن عمر ﷺ نه روايت نقل كوى هغهٔ فرمائى : ما د رسول الله ﷺ سره نَجْد طرف ته غزا كړے ده، نو (كله چه) مونږ دشمن ته مخامخ شو، د هغوى (د مقابلے) دپاره مو صفونه اُوترل، رسول الله ﷺ اُودريدو مونږ ته ئے مونځ كولو او د هغهٔ سره يوه ډله اُودريده او بله ډله دشمن ته مخامخ شوه، رسول الله ﷺ د هغهٔ خلقو سره چه د هغهٔ سره (په مانځه كښې) شريك وو، ركوع اُوكړه، او دوه سجدے ئے اُوكړے، بيا دا خلق (چه يو ركعت ئے اُوكړو) د هغهٔ ډلے ځائے ته لاړل چه هغوى مونځ نهٔ وو كړے، او هغوى راغلل نو رسول الله ﷺ دوى ته يو ركوع او دوه سجدے اُوكړے بيا ئے سلام واړولو، او د دوى نه هريو شخص پاځيدو، ځانله ځانله يو ركوع او دوه سجدے ئے اُوكړے. او نافعؒ ددے په شان روايت نقل كړيدے او هغهٔ دا الفاظ زيات ذكر كړيدى : كه چرته خوف ددے نه زيات وى نو پياده په خپو ولاړ حالت كښې به مونځ كوى، يا (كهٔ پياده ممكن نهٔ وى بيا به) په سورلۍ باندے (كه ممكن وى نو) قبلے طرف ته مخ كونكى وى (او كه ممكن نهٔ وى نو) بل طرفته مخ كولو سره (مونځ اُوكړى).نافع فرمائى: زهٔ په ابن عمرؓ باندے گمان نهٔ كوم مگر دا چه دا ئے د رسول الله ﷺ نه ذكر كړى دى. (بخاريؒ)

**تشريح : نَجْدٍ:** نجد د عربو د زمكو نه اُوچتو زمكو ته وائى د تهامے نه تر عراق پورے. بيا دا نجد دوه قسمه دے نجد الحجاز او بل نجد اليمن . او پدے مقام كښې نجد الحجاز مراد دے. عينىؒ او قسطلانىؒ ليكى : دا غزوه د ذات الرقاع غزوه وه.

**فَوَازَيْنَا :** موازاة مقابل او مخامخ كيدو ته وائى.

**يُصَلِّيْ لَنَا :** يعنى زمونږ د وجه نه ئے مونځ كولو يا ئے مونږ ته إمامت كولو او د بخارى د باب المغازى نه معلوميږى چه دا صلاة العصر وو.

نو پدے حديث كښې د صلاة الخوف يو كيفيت او طريقه ذكر ده او هغه دا چه امام به د لښكر يوے طائفے ته يو ركعت اُوكړى او بله طائفه به د دشمن مخامخ ولاړه وى بيا به دا طائفه چه يو ركعت ئے اُوكړو واپس شى او د دشمن مخے ته به اُودريږى او هغه بله طائفه به راشى او د امام سره به يو ركعت اُوكړى بيا به هره طائفه ځانله ځانله يو يو ركعت اُوكړى نو د امام به هم دوه ركعاته

شي او د هر دوارو طائفتینو به هم دوه دوه رکعاته شي۔

**فَرَكَعَ لِنَفْسِهِ رَكْعَةً، وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ** : پدے کښې دا نۀ دي ذکر چه دے طائفتینو ځانله دا مونځ په یو حالت کښې اُوکړو او که علی سبیل التعاقب (یکے بعد دیگرے) اُوکړو۔ دوه احتماله دي۔ راجح احتمال دویم دے۔ ځکه ددے تائید په روایت د ابن مسعودؓ کښې په ابوداود کښې داسے راغلے دے : (( بیا رسول الله ﷺ سلام اُوګرځولو نو دا دویمه طائفه پاځیدله او ځانله ئے یو رکعت پوره کړو بیا ئے سلام اُوګرځولو، بیا دوی لاړل او رومبنۍ طائفه د دوی ځائے ته راغله نو هغوی ځانله یو رکعت پوره کړو بیا ئے سلام اُوګرځولو)) انتهیٰ۔ نو ددے نه دا ظاهره شوه چه دویمے طائفے پرله پسے دوه رکعاته اُوکړل او اُولے طائفے د دوی د مانځه پوره کولو نه روستو خپل دویم رکعت پوره کړو۔ ۲– بله وجه د ترجیح دا ده چه که دواړه طائفے په یو ځائے خپل رکعت کوی نو بیا د حراست او څوکیدارۍ مقصد فوت کیږی۔ ۳– دارنګه امام یواځے پاتے کیږی۔

او دا طریقه امام اوزاعیؒ غوره کړیده۔ او د احنافو مذهب دا دے چه اوله طائفه به د امام سره یو رکعت اُوکړی بیا به لاړه شی او دویمه طائفه به راشی، دوی به هم یو رکعت د امام سره اُوکړی او بیا به لاړ شی نو اوله طائفه به بیرته راشی او ځانله به یو رکعت اُوکړی۔ او پدے اخیری رکعت کښې به قراءت نۀ کوی ځکه دا لاحقین دی او لاحق حکماً مقتدی دے نو ددۀ دپاره حکماً قرائت د امام شته نو دوی به خپله قراءت نۀ کوی او دویمه طائفه به په دویم رکعت کښې ځانله قراءت کوی ځکه چه دا د مسبوق په شان دی او مسبوق خو د سلام د امام نه پس ځانله قراءت کوی۔ لهٰذا دوی به هم قراءت کوی۔ لیکن دا کیفیت د رسو الله ﷺ نه په هیڅ حدیث کښې نۀ دے ثابت او نۀ د صحابه کرامؓ نه بلکه د امام ابوحنیفهؒ نه مَحکښې د هیڅ یو تن نه ندے نقل او نۀ دے ته په یو حدیث کښې اشاره ثابته ده۔

او بل مذهب ئے دا دے چه دویمه طائفه به دویم رکعت په دغه ځائے نۀ ختموی بلکه دوی به لاړ شی او اوله طائفه به راشی، هغوی به دویم رکعت اُوکړی بیا به دوی لاړ شی او دویمه طائفه به راشی ځانله به باقی مانده یو رکعت اُوکړی۔ بعض شارحین دا حدیث د ابن عمرؓ پدے طریقه باندے حمل کوی لیکن ملاعلی القاریؒ فرمائی : حدیث پدے باندے هیڅ خبردارے نۀ ورکوی (یعنی دے ته اشاره هم نشته) ابن همامؒ وائی : پدے کښې بعض مذهب حنفی ذکر دے۔(تحفة الاحوذی ۱۰٤/۲) (مرقاة المفاتیح) (مرعاة المفاتیح ۷/۵)

**فَإِنْ كَانَ خَوْفٌ** : پدے کښې بله مسئله ثابتوی او هغه دا چه کله خوف ددے نه زیات سخت شی نو په هر حالت کښې مونځ کول جائز دی، برابره ده که پیاده وی او که سورلۍ باندے، او قبلے

تـه ئے مخ وی او که شاء اشاره وی او که رکوع او سجده کولے شی۔ ځکه په حالت د سوریدو کښې په اشاره باندے مونځ کیږی۔ نو هرکله چه په سورلئ باندے مونځ جائز شو نو په اشاره هم جائز شو۔ او ددے په باره کښې یوه واقعه د عبد الله بن انیس ﷺ هم مشهوره ده چه دا نبی ﷺ عرفات تـه د خالد بن سفیان الهذلی د قتل دپاره لیږلے وو، په لاره کښې ئے په اشاره سره مونځ اُوکړو (ضعیف ابی داود (۲۳۲) احمد (۳/۴۹۶) تمام المنة (۳۱۵) ارواء الغلیل (۵۸۹) حافظ ورتـه په فتح البارى (۳/۱۱۰) کښې حسن وئیلے دے)۔ دا حدیث حسن دے او دغه نور روایات ئے هم تائید کوی۔ لهذا معنیٰ ئے ثابته ده۔ او بله دا چه ددے په سند کښې محمد بن اسحاق عنعنه کریده او هغه مُدلس دے لیکن د محمد بن اسحاق روایت په باب د مغازی کښې حجت دے او دا حدیث هم د باب د مغازی نه دے۔ لهذا دا حسن حدیث شو۔

نـو دا حدیث دلیل دے چه په حالت د قتال کښې هم مونځ جائز دے بلکه هر څنګه چه ممکن وی مونځ به کوی۔ او دا مذهب د حنابله او شوافعو او مالکیه ؒ دے۔ ۲- او احناف وائی : په حالت د قتال کښې مونځ نۀ دے جائز او نۀ په حالت د مَشْی (مَزَل، روانه) کښې، که طالب وی او که مطلوب وی او په حالت د سورلئ کښې چه کله مطلوب وی او دشمن ورپسے وی نو بیا جائز دے۔

راجح دا ده چه که مونځ باندے قادر نۀ وی نو بیا روستو کول هم جواز لری ځکه دوی معذوره دی او دلیل پدے باندے دا دے چه نبی ﷺ په غزوه د خندق کښې څلور مونځونه روستو کړی وو۔ دارنګه انس بن مالك ﷺ فرمائی : د تُسْتُر علاقے قلعه باندے حملے ته زۀ د صبا د راختلو په وخت حاضر شوم، میدان جنګ ګرم شو نو خلق قادر نۀ وو چه مونځ اُوکړی نو مونږ د ورځے د راپورته کیدو نه پس مونځ اُوکړو او مونږ د ابوموسی اشعری سره وو آخر هغه فتح شوه۔ (بخاری۱/۲۴۸ مع الفتح) نو اُوکوره انسؓ او ابوموسیؓ دواړو په حالت د عذر کښې مونځ د خپل وخت نه روستو کړیدے۔

او امام اوزاعیؒ پدے باره کښې ډیره ښه خبره کړیده چه امام بخاریؒ نقل کړیده چه که فتح تیاره وه او خلق قادر نۀ وو په مانځه نو هر سړے به ځانله په اشاره مونځ کوی خو که په اشاره هم قادر نۀ وو نو مونځ به روستو کړی تردے چه قتال ختم شی او یا په اَمن شی نو بیا به دوه رکعاته اُوکړی (انظر جامع الفقه ۲/۳۴۷) وسبل السلام (۲/۷۷) وطرح التثريب (۳/۱۴۷) ومختصر الخلافیات للبیهقی (۲/۲۱۱) والمجموع (۴/۶۴۶) ومجموع فتاوی ابن تیمیة (۲۲/۲۹)

---

۱۴۲۱ (۲) – وَعَنْ يَزِيْدَ بْنِ رُوْمَانَ عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ، عَمَّنْ صَلّٰى مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ

يَوْمَ ذَاتِ الرِّقَاعِ صَلَاةَ الْخَوْفِ: أَنَّ طَائِفَةً صَفَّتْ مَعَهُ، وَطَائِفَةٌ وِجَاهَ الْعَدُوِّ، فَصَلَّى بِالَّتِي مَعَهُ رَكْعَةً، ثُمَّ ثَبَتَ قَائِمًا، وَأَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمْ، ثُمَّ انْصَرَفُوا فَصَفُّوا وِجَاهَ الْعَدُوِّ، وَجَاءَتِ الطَّائِفَةُ الْأُخْرَى، فَصَلَّى بِهِمُ الرَّكْعَةَ الَّتِي بَقِيَتْ مِنْ صَلَاتِهِ، ثُمَّ ثَبَتَ جَالِسًا وَأَتَمُّوا لِأَنْفُسِهِمْ، ثُمَّ سَلَّمَ بِهِمْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ٣- وَأَخْرَجَ الْبُخَارِيُّ بِطَرِيقٍ آخَرَ عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ صَالِحِ بْنِ خَوَّاتٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ.

---

**ترجمه :** او يزيد بن رومان د صالح بن خوات نه او هغهٔ د هغهٔ چا نه چه هغهٔ د رسول الله ﷺ سره د ذات الرقاع (غزوه) په ورځ د خوف مونځ کړے دے (د خوف د مانځه دا طريقه) نقل کوی چه (په هغه ورځ) يو جماعت د رسول الله ﷺ سره صف اُوترلو، او بل جماعت د دشمن مقابل کښې صف اُوترلو، رسول الله ﷺ هغه ډلے ته چه د هغهٔ سره (شريکه) وه يو رکعت اُوکړو بيا رسول الله ﷺ (د يو رکعت پوره کولو سره) اُودريدو، او هغهٔ ډلے خپل ځان له مونځ پوره کړو، بيا ذوی لاړل او د دشمن مقابله کښې ئے صفونه اُوترل او هغهٔ بله ډله (کومے چه مونځ نهٔ دے کړے) راغله نو نبی ﷺ هغوی ته هغهٔ رکعت اُوکړو کوم چه د هغهٔ د مونځ نه پاتے وو، بيا (په التحيات) برابر کيناستو، او هغهٔ ډلے ځانله مونځ پوره کړو، بيا ئے هغوی ته سلام اُوګرځولو. (بخاریؒ ومسلمؒ) او امام بخاریؒ دا روايت په بل سند سره د قاسمؒ نه هغهٔ د صالح بن خوات نه هغهٔ د سهل بن ابی حثمهؓ نه هغهٔ د نبی ﷺ نه نقل کړيدے۔

يزيد بن رومان د آل الزبير بن العوام مولیٰ دے، د صغار التابعين نه ثقه راوی دے په سنه (۱۳۰ هـ) کښې وفات دے۔

**تشريح :** ددے عَمَّنْ صَلّٰی نه مراد بعض وائی : سهل بن ابی حثمه ؓ دے لکه چه دا د بخاری د روايت نه ظاهريږی ليکن دلته راجح دا ده چه ددے نه مراد پلار د صالح دے چه هغه خوات بن جبير ؓ دے۔ ځکه ابو اُويس دا د يزيد بن رومان نه نقل کړيدے او هغه پکښې داسے وئيلی دی : عن صالح بن خوات عن ابيه۔ (ابن منده فی معرفة الصحابة، والبيهقی) او امام نوویؒ په تهذيب کښې پدے باندے جزم کړيدے چه دا خوات بن جبيرؓ دے۔ ځکه چه دا د مسلم وغيره د روايت نه ثابتيږی۔ بله دا چه سهلؓ وړوکے صحابی دے هغه غزوه د ذات الرقاع ته نهٔ دے حاضر شوے۔

**ذَاتِ الرِّقَاعِ :** په کسره د راء سره جمع د رُقْعَة ده نو ټې (کپړے) ته وائی، ددے غزوه ته ځکه ذات الرقاع وائی چه صحابه کرامؓ سره سورلۍ کمے وے او د مسلمانانو قدمونه د خپے اِبله مزلونو د

وجه نه سُوري شوي وو نو په هغې باندې ئې كپړې تړلې وې او دا وجه د تسميه د تولو نه صحيح ده، ابو موسى اشعرى په روايت د بخارى او مسلم كښې ذكر كړيده۔ (۲) بعض وائي : جنډه ئې د مختلفو توتو نه جوړه كړې وه۔ (۳) بعض وائي : دا د هغه مقام نوم دې چه هلته ونې زياتې وې۔ هغې ته ئې ذات الرقاع وئيلو۔ (٤) بعض وائي: دوې چه كومې زمكې ته ورغلى وو نو مختلف رنگونو والا وه د توتو سره مشابه وه نو ځكه ورته دا نوم وركړې شو۔ (٥) بعض وائي : آسونه پكښې سپين او تور وو۔ امام نوويؒ وائي : احتمال لرى چه ددې تولو سببونو په وجه مُسمّى شوى وى۔ او داوديؒ ډيره غريبه (بعيده) خبره كړيده چه دې ته ځكه ذات الرقاع وائي چه صلاة الخوف پدې كښې واقع شويدې او په هغې كښې هم مونځ رقعه رقعه (توته توته) كيږى۔(كذا في الفتح ۱۱/٤٥٧)

ددې غزا د واقع كيدو سبب دا وو چه يو أعرابى مدينې ته پئ راوړل وې وئيل: ما د بنى ثعلبه او بنى أنمار كسان أوليدل چه تاسو دپاره ئې خلق راجمع كول او تاسو د هغوى نه په غفلت كښې پراته ئې نو نبى ﷺ هغوى طرف ته راووتو او په مدينه باندې ئې ابوذر الغفاريؓ نائب مقرر كړو۔ بعض وائي عثمان بن عفان ئې مقرر كړو۔ او څلور سوه يا أووه سوه كسان ئې ځان سره روان كړل او د بنى ثعلبه د جماعت سره ملاؤ شو۔ يو بل ئې أوويَره ول ليكن جنگ أونه شو۔ بعض وائي ځكه چه دشمن په غرونو كښې تقسيم شوې وو خو بيا هم نبى ﷺ صلاة الخوف أوكړو ځكه يَره وه چه دشمن په مسلمانانو ناڅاپى حمله أونكړى۔ او راجح دا ده چه دا غزوه پس د خيبر نه په أووم (۷) كال واقع شويده او كوم عام اهل سِيَر چه دا په څلورم كال كښې شمارى، نو دا راجح نۀ ده ځكه چه ابو موسى اشعريؓ او ابو هريرهؓ دې كښې حاضر شويدى او حال دا چه ابو هريره خو اسلام د خيبر په كال راوړيدې۔ او ابو موسى د خپل كلى نه پدې كال حاضر شويدې۔ نو دا دليل دې چه دا غزوه د خيبر نه روستو واقع ده۔ (الرحيق المختوم ص : ۳٥٤)

پدې روايت كښې بل كيفيت دا ذكر شو چه يوې ډلې ته نبى ﷺ يو ركعت أوكړو او يو ركعت ئې ځانله أوكړو سلام گرځولو نه پس هغه لاړه، د دشمن مخې ته أودريده او نبى ﷺ په خپل ځائې ولاړ وو (چه أوږد قراء ت ئې كولو) بيا دويمه طائفه راغله هغوى ته ئې هم يو ركعت أوكړو بيا نبى ﷺ په التحيات كښې ناست وو (دعاگانې ئې وئيلې) او دغه طائفې ځانله دويم ركعت پوره كړو او د نبى ﷺ سره په التحيات كښې شريك شو او هغه ورته سلام أوگرزولو۔

نو دواړو ډلو يو يو فضيلت حاصل كړو۔ اولې طائفې د نبى ﷺ سره د تكبير تحريمې فضيلت حاصل كړو او دويمې طائفې د نبى ﷺ سره د سلام گرزولو فضيلت حاصل كړو۔ او دا كيفيت

امام شافعيؒ او احمدؒ غوره کړيدي او امام مالك وائي: دويمه طائفه به د امام سره تشهد اُووائي خو کله چه امام سلام واړوي نو دوي به پاڅيږي او ځانله به يو رکعت قضاء راوړي لکه د مسبوق په شان لکه دا په روايت د سهل بن ابی حثمهؓ کښ په بخاري کښ راغلي دي۔ ليکن ابن قدامهؒ فرمائي : اول کيفيت اولیٰ دے ځکه دا دآيت موافق دے۔ او دا د مانځه او د جنګ دپاره ډير أحوط دے۔(المغني (٤/٢٨١)

وَاَخْرَجَ الْبُخَارِيُّ بِطَرِيْقٍ آخَرَ : دا حديث مرسل د صحابي دے ځکه چه محدثين فرمائي : سهل په زمانه د نبي ﷺ کښ وړوکے وو، نبي ﷺ چه وفات کيدلو نو دے د (۸) اتو کالو وو عمر وو۔ نو پدے زمانه کښ دا قابل نۀ دے چه د نبي ﷺ سره دغه غزوے ته لاړ شي نو دا چه دا قصه د صلاة الخوف روايت کوي نو دا روايت ئے مرسل دے د بل صحابي نه ئے آوريدلے دے۔ او مرسل د صحابي بالاتفاق حجت دے۔

---

۱٤۲۲ (۳) - وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: اَقْبَلْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ حَتّٰى اِذَا كُنَّا بِذَاتِ الرِّقَاعِ قَالَ: كُنَّا اِذَا اَتَيْنَا عَلٰى شَجَرَةٍ ظَلِيْلَةٍ تَرَكْنَاهَا لِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ، قَالَ: فَجَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ، وَسَيْفُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ مُعَلَّقٌ بِشَجَرَةٍ، فَاَخَذَ سَيْفَ نَبِيِّ اللهِ ﷺ فَاخْتَرَطَهٗ، فَقَالَ لِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ: اَتَخَافُنِيْ؟ قَالَ: «لَا». قَالَ: فَمَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّيْ؟ قَالَ: «اَللهُ يَمْنَعُنِيْ مِنْكَ». قَالَ: فَتَهَدَّدَهٗ اَصْحَابُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَغَمَدَ السَّيْفَ وَعَلَّقَهٗ، قَالَ: فَنُوْدِيَ بِالصَّلَاةِ، فَصَلّٰى بِطَائِفَةٍ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ تَاَخَّرُوْا، وَصَلّٰى بِالطَّائِفَةِ الْاُخْرٰى رَكْعَتَيْنِ. قَالَ: فَكَانَتْ لِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ اَرْبَعُ رَكَعَاتٍ، وَلِلْقَوْمِ رَكْعَتَانِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او جابر ؓ فرمائي: مونږ د رسول الله ﷺ سره (جهاد دپاره) روان شو تردے چه مونږ ذات الرقاع ته اُورسيدو، جابر وائي چه (زمونږ عادت دا وو چه) کله به مونږ کوم سوري ناکه ونه باندے راغلو نو هغهٔ به مونږ رسول الله ﷺ دپاره پريخودله ( چه هغهٔ د هغے لاندے آرام اُوکړي) (نو په ذات الرقاع کښ دغه شان اُوشوه چه) د مشرکانو نه يو سړے راغلو او د رسول الله ﷺ توره ونے ته زوړنده وه نو دهٔ د نبي کريم ﷺ توره راواخسته او د تيکي(قاش) نه ئے اُوويسته (رسول الله ﷺ په هغه پوهه نهٔ شو يا خو اُودهٔ وو يا د هغهٔ نه غافل وو) او رسول الله ﷺ ته ئے اُووئيل :آيا تهٔ ما نه يريږے؟ نبي ﷺ اُوفرمايل : « نهٔ » (تا نه ولے اُويريږم ځکه چه زما د رب نه

سوا بل څوك نۀ نفع وركولے شي او نۀ نقصان) هغۀ أووئيل : تا به ما نه څوك بچ كوي؟ نبي ﷺ أوفرمايل : ((ما به تا نه الله بچ كوي))، جابرؓ وائي : چه صحابه كرامؓ (كله دا أوليدلو نو) هغۀ له ئے دهمكي وركړه، نو هغۀ توره په تيكي كښې وركړه او (ونے پورے ئے) زوړنده كړه۔ جابرؓ وائي : بيا (دظهر يا عصر) مانځه دپاره اذان (او تكبير) أووئيل شو نو رسول الله ﷺ (اول) يوے ډلے ته دوه ركعاته أوكړل بيا هغوي روستو شو او بلے ډلے ته ئے (هم) دوه ركعاته أوكړل۔ جابرؓ فرمائي: د رسول الله ﷺ دپاره څلور ركعاته شو او د خلقو دوه دوه ركعاته شو۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

**تشريح : بِذَاتِ الرِّقَاعِ** : ددے نه مراد هغه مكان دے چه هغے كښې غزوه د ذات الرقاع واقع شوے وه۔ نو دغه علاقه په نوم د دغه واقعه باندے مسمى شوه۔

**كُنَّا إِذَا أَتَيْنَا** : يعني مونږ چه به كله د پړاؤ آچولو دپاره ځائے كتلو او په يو سورې ناكه ونه به راغلو نو هغه به مو رسول الله ﷺ ته پريخودله چه هغه ترے لاندے دَمه أوكړي۔ نو دغه شان مو أوكړل، نبي ﷺ د ونے لاندے آرام أوكړو او خلق خوارۀ شو۔نو پدے كښې دغه واقعه راپيښه شوه۔

پدے واقعه كښې د نبي ﷺ څو مره بهادري ښكاره شويده او څومره قوي يقين او په مصيبت باندے صبر۔ او د جاهلانو نه صبر او حلم۔

**فَتَهَدَّدَهُ أَصْحَابُ** : ددے الفاظو د ظاهر نه معلوميږي چه صحابه كرام دے قصے ته حاضر وو او دغه أعرابي د صحابه كرامؓ د تهديد او دهمكي په وجه د خپل عزم نه واپس شويدے او حال دا چه داسے نۀ ده بلكه په روايت د بخاري كښې داسے دي : جابرؓ فرمائي : مونږ لږ شان أودۀ شو نو پدے وخت كښې رسول الله ﷺ مونږ ته آواز أوكړو، مونږ د هغه خواته راغلو نو د هغه سره دغه أعرابي ناست وو، رسول الله ﷺ أوفرمايل : دے سړي ما پسے توره راويسته او زۀ أودۀ وم نو رابيدار شوم او دا د هغه په لاس كښې بربنده وه، ما ته ئے أووئيل : تا به ما نه څوك خلاص كړي؟ ما أووئيل : الله، نو دا دے ناست دے، بيا ورته نبي ﷺ سزا ورنكړه۔ نو ددے نه معلومه شوه چه دے حد پورے صحابه كرام دے قصے ته نۀ وو حاضر بلكه نبي ﷺ ورله خبر وركړو په هغه وخت كښې كله ئے راوغوختل او هغوي رابيدار شو۔او په بل روايت د بخاري كښې دي : ((ما أووئيل : الله، نو هغۀ توره په تيكي كښې داخل كړه)) آه۔ څكه كله چه دے اعرابي د نبي ﷺ دا ثابت قدمي أوليدله او پو هه شو چه ددۀ او د نبي ترمينځ حائل واقع شو نو د نبي ﷺ صدق ورته معلوم شو او پو هه شو چه دے ورته رسيدل نشي كولے نو وسله ئے كوزاركړه، او ځان ئے ورته تسليم كړو۔

په روايت د ابن اسحاق كښې دي چه جبرئيل ﷺ هغه له په سينه كښې گوزار وركړو نو توره د هغه د لاس نه پريوته او نبي ﷺ راواخسته او وے فرمايل : تا به ما نه څوك خلاص كړي؟ نو دۀ

اُووئیل : هیڅوك نشته۔ نبی ﷺ ورته اُوفرمایل: څه پاڅه لاړشه خپله مخه کوه۔ کله چه هغه واوریدو، وے وئیل : اَنْتَ خَيْرٌ مِنِّيْ) (ته ما نه غوره ئې) نبی ﷺ اُوفرمایل : زهٔ ستا نه پدے دیر لائق یم (چه تا معاف کړم) بیا روستو هغه سړی اسلام قبول کړو۔ بیا خپل قوم ته راغلو او هغوی ئے اسلام طرفته رادعوت کړل۔ بعض علماء وائی دا دوه واقعے دی۔ لکه دا د واقدیؒ د کلام نه ظاهریږی۔ په اوله واقعه کښ د اعرابی نوم غَوْرَث بن الحارث دے او په بله واقعه کښ واقدیؒ وائی : دُعْثُور دے۔

او په یو بل روایت کښ داسے راغلی دی چه نبی ﷺ هغهٔ اعرابی ته اُووئیل : آیا ته دا گواهی کوے (ان لا اله الا الله وانی رسول الله؟) اعرابی اُووئیل : زهٔ درسره لوظ کوم چه تا سره به جنگ نهٔ کوم او هغهٔ قوم سره به ملگرتیا نهٔ کوم چه تا سره جنگیږی، نو نبی ﷺ پریخودو، هغهٔ خپل قوم ته لاړو او دا ئے اُووئیل: (جِئْتُکُمْ مِنْ عِنْدِ خَيْرِ النَّاسِ)زهٔ تاسو ته د غوره شخص د خوا نه راغلم) د نبی ﷺ اخلاقو پرے اثر اُوکړو۔ او واقدیؒ وائی : چه دغه شخص بیا اسلام هم راوړو۔(او خپل قوم ته ئے د ایمان دعوت ورکړو او دیر خلق د هغهٔ په وجه اسلام ته راغلل) او ددهٔ دُعْثُور نوم وو۔ (الرحیق المختوم ص : ۳۵٤)

فَصَلّٰی بِطَائِفَةٍ : پدے کیفیت کښ نبی ﷺ څلور رکعاته کړیدی او مقتدیانو دوه دوه رکعاته، نو یو مونځ د نبی ﷺ نفل دے او مقتدیان ئے مفترضین دی نو ثابته شوه چه اقتداء د مفترض د متنفل پسے بالکل جائز ده۔ ملاعلی القاریؒ حیران شویدے او وئیلی دی : چه دا حدیث زمونږ د مذهب په قواعدو مشکل دے ځکه که دا په سفر حمل کړے شی نو اقتداء د مفترض د متنفل پسے لازمیږی او دا خو زمونږ په نیز صحیح نهٔ ده، او که په حضر باندے حمل شی نو بیا سلام په هر دوه رکعاتو باندے ئے څنگه کړځولے دے۔ بیا ئے د ځان خلاصولو دپاره وئیلی دی چه دا د نبی ﷺ خصوصیت دے۔ لیکن دا هسے دعوه ده او دلیل د خصوصیت نشته، بلکه د (صلوا کما رأیتمونی اصلی) د وجه نه دا د اُمت دپاره هم قانون دے۔ طحاویؒ پکښ لا دا جنله هم راوُچته کړیده چه دا په هغه وخت کښ شویدے چه فرض په هغه وخت کښ دوه ځل کیدل۔ لیکن دا هم هسے خبره ده۔ علامه ابن حزمؒ فرمائی : دا کار په حدیث د ابوبکره ﷺ کښ شویدے او هغه صلاة الخوف ته حاضر شویدے او هغه د مکے د فتح نه روستو د طائف په کال اسلام قبول کړیدے او ددے نه روستو نبی ﷺ صرف تبوك غزا کړیده نهٔ بله۔ نو څنگه دا په ابتدائی زمانے باندے حمل کړے شی خو داحنافو د مذهب خلاف چه کله حدیث راشی نو د جوابونو یو اَنبار اُولگوی بیا فکر نهٔ کوی چه آیا دا غونډارے په ځائے لگی او که بے ځائے۔ انظر المحلی

(٢٢٧/٤) المرعاة (١٩/٥) علامه سندي فرمائي: (وَلَمْ اَرَ لَهُمْ عَنْهُ جَوَابًا شَافِيًا انتهى)
(ما د احنافو دپاره شافي جواب اُونهٔ موندلو)۔

تنبيه: مخكښې په حديث د يزيد بن رومان كښې هم د ذات الرقاع واقعه ده او دلته په حديث د جابرؓ كښې هم د ذات الرقاع واقعه ده او دواړه كيفيتونه د يو بل نه مختلف دي، ددې څهٔ وجه ده ؟
جواب : بعض ددې وجه دا بيانوي چه په يوه واقعه د غزوهٔ ذات الرقاع كښې دوه ځائې مونځ واقع شويدې، يو ځائې يو شان شويدې نو هغه يزيد بن رومان نقل كړيدې او بل ځائې بل شان شويدې نو هغه جابر نقل كړيدې لهذا هيڅ مخالفت نشته۔ ٢- بعض وائي : غزوه د ذات الرقاع دوه ځل واقع شويده يو ځل په پنځم كال او بل په اُووم كال۔ والله اعلم۔ (المرعاة ١٥/٥)

---

١٤٢٣ (٤) - وَعَنْهُ، قَالَ: صَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ صَلَاةَ الْخَوْفِ، فَصَفَفْنَا خَلْفَهٗ صَفَّيْنِ، وَالْعَدُوُّ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ، فَكَبَّرَ النَّبِيُّ ﷺ وَكَبَّرْنَا جَمِيْعًا، ثُمَّ رَكَعَ وَرَكَعْنَا جَمِيْعًا، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهٗ مِنَ الرُّكُوْعِ، وَرَفَعْنَا جَمِيْعًا، ثُمَّ انْحَدَرَ بِالسُّجُوْدِ وَالصَّفُّ الَّذِيْ يَلِيْهِ، وَقَامَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ فِيْ نَحْرِ الْعَدُوِّ، فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ ﷺ السُّجُوْدَ وَقَامَ الصَّفُّ الَّذِيْ يَلِيْهِ، اِنْحَدَرَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ بِالسُّجُوْدِ، ثُمَّ قَامُوْا، ثُمَّ تَقَدَّمَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ، وَتَأَخَّرَ الْمُقَدَّمُ، ثُمَّ رَكَعَ النَّبِيُّ ﷺ وَرَكَعْنَا جَمِيْعًا، ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهٗ مِنَ الرُّكُوْعِ وَرَفَعْنَا جَمِيْعًا، ثُمَّ انْحَدَرَ بِالسُّجُوْدِ، وَالصَّفُّ الَّذِيْ يَلِيْهِ الَّذِيْ كَانَ مُؤَخَّرًا فِي الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى، وَقَامَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ فِيْ نَحْرِ الْعَدُوِّ، فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ ﷺ السُّجُوْدَ وَالصَّفُّ الَّذِيْ يَلِيْهِ، اِنْحَدَرَ الصَّفُّ الْمُؤَخَّرُ بِالسُّجُوْدِ فَسَجَدُوْا، ثُمَّ سَلَّمَ النَّبِيُّ ﷺ وَسَلَّمْنَا جَمِيْعًا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او جابر ؓ فرمائي : مونږ ته رسول الله ﷺ د خوف مونځ اُوكړو، نو مونږ د هغهٔ نه روستو دوه صفونه جوړ كړل، او دشمن زمونږ او د قبلې ترمينځ وو، نو نبي ﷺ تكبير اُوئيلو او مونږ هم (د هغهٔ سره) تكبير اُووئيلو، بيا هغهٔ (د قراءت نه روستو) ركوع اُوكړه او مونږ ټولو هم (يعنې دواړو صفونو) ركوع اُوكړه، بيا هغهٔ د ركوع نه سر پورته كړو او مونږ ټولو هم پورته كړو بيا هغهٔ او هغهٔ صف چه هغهٔ ته نزدې وو (يعنې اول صف) سجدې ته خكته شو، او روستو صف (په قومه كښې) د دشمن په مقابله كښې اُودريدو، كله چه نبي ﷺ سجده پوره كړه او (هغهٔ

سره) هغهٔ صف چه هغهٔ ته نزدے وو راپورته شو نو روستو صف والا سجدے ته خکته شو بیا هغوی راپورته شو، بیا روستو صف رامخکښ شو او مخکښ صف روستو شو، بیا نبی ﷺ رکوع اُوکړه او مونږ هم تول (دواړه صفونو) رکوع اُوکړهٔ بیا هغهٔ د رکوع نه سرپورته کړو او مونږ هم تولو پورته کړو بیا هغهٔ او هغهٔ صف چه هغهٔ ته نزدے وو کوم چه په اول رکعت کښې روستو وو، سجدے ته خکته شو، او روستو صف د دشمن په مقابل کښې (په قومه کښې) اُودریدو، هرکله چه نبی ﷺ او هغهٔ صف چه هغهٔ ته نزدے وو سجده اداء کړه نو روستو صف سجدے ته خکته شو، نو سجده ئے اُوکړه، بیا نبی ﷺ او مونږ تولو (دواړو صفونو التحیات وئیلو نه روستو) په شریکه سلام واړولو۔ (مسلم)

**تشریح** : په روایت د ابوداود کښې د ابوعیاش الزرقی نه دا زیادت نقل دے : (أَنَّهَا كَانَتْ بِعُسْفَانَ) (دا واقعه په عسفان کښې راپیښه شوه) دا هغه حدیث دے چه د صلاة الخوف ابتداء پکښې ذکر ده او دا واقعه په عُسفان کښې راغلے ده۔ لکه تفصیل ئے په مسلم وغیره کښې راغلے دے چه نبی ﷺ او د هغه صحابه کرام په عمره د حدیبیه کښې په حالت د احرام کښې وو چه مکے ته رانزدے شو (عسفان ته راورسیدل) نو مکے والا پرے خبر شو، هغوی خالد بن الولید په دوه سوه کسانو کښې د دوی پسے راولیږل چه په عُسفان علاقه کښې په صحابه کرامؓ حمله اُوکړی نو دوی موقعے ته انتظار کولو چه ناڅاپی حمله پرے اُوکړی نو نبی ﷺ صحابه کرامؓ ته د ماسپښین مونځ اُوکړو نو مشرکانو آفسوس ښکاره کړو چه آرمان مونږ په دوی باندے په مانځه کښې حمله کړے وے چه صفونه مو ورله دوه ټکړے کړی وے۔نو جبریل ﷺ رسول الله ﷺ ته خبر ورکړو نو رسول الله ﷺ مونږ ته د هغے تذکره اُوکړه۔ بیا مشرکانو اُووئیل : دوی باندے یو مونځ راروان دے چه دوی ته د اُولادو نه هم زیات محبوب دے (یعنی د مازیګر مونځ) په هغے کښې به پرے حمله اُوکړو نو نبی ﷺ صحابه کرام صفونه صفونه جوړ کړل، مشرکانو چه اُوکتل نو حیران شو او موقعه د حملے ورته مِلاؤ نشوه ولله الحمد۔ بیا نبی ﷺ لار بدله کړه او حُدَیبیه طرفته روان شو او آخیر په هغے کښې مشهوره صلح راغله۔

(توضیح الاحکام ۲/۳۷۳) والمرعاة (۵/۱٦)

بیا پدے حدیث کښې چه کوم کیفیت ذکر دے پدے باندے امام شافعیؒ، ابن ابی لیلیٰ او ابویوسفؒ قول کړیدے خوکله چه دشمن په جهت د قبله کښې وی۔ او د امام شافعیؒ په نزد باندے د دویم صف مخکښې کیدل او د اول صف روستو کیدل لکه په روایت د جابر کښې دی، او په خپل حال باندے باقی پاتے کیدل هم جائز دی لکه څنګه د حدیث د ابن عباس (عند البخاری وغیره) نه

ظاهریږی۔ انتهٰی۔

او دواړه حدیثونه یو شان دی صرف په یو کښې تقدیم تاخیر شته او بلکه نشته۔

او دا کیفیت د مخکنو تولو کیفیاتو نه مختلف دے۔او قرآن کښې چه کوم کیفیت ذکر دے ﴿وَلْتَأْتِ طَائِفَةٌ أُخْرىٰ﴾ نو هغه یو کیفیت دے چه کله دشمن د قبلې نه علاوه په بل طرف کښې وی۔ لهذا دا د قرآن خلاف نه دے۔

او ددے کیفیت خلاصه دا ده چه امام خلق دوه صفونه یا زیات جوړ کړی او هغوی ټولو ته یو رکعت اُوکړی تردے چه سجده اُوکړی کله چه امام سجدے ته لاړ شی نو اول صف – چه امام ته نزدے دے – هغهٔ به هم د هغه سره سجده اُوکړی او دویم صف به ولاړ وی څوکیداری به کوی تردے چه امام او اول صف دویم رکعت ته راپورته شی نو کله چه هغه راپورته شی، دا روستنے صف به سجدے ته لاړ شی بیا به دوی د امام سره پیوسته شی او امام او اول صف به ورته ولاړ وی۔ او په دویم رکعت کښې به د امام سره هغه صف سجده کوی کوم چه په اول رکعت کښې څوکیداری کوله او دویم صف به ولاړ وی څوکئ به کوی۔ نو کله چه امام د تشهد دپاره کینی نو څوکئ کونکے صف به سجدے ته راخکته شی او بیا به امام دواړو ته تشهد اُووائی او دواړو ته به په یو ځائے سلام واړوی۔

پدے کیفیت کښې ډیر تنقلات نهٔ دی راغلی ځکه چه دشمن مخامخ دے نو دلته د څوکیدارئ طریقه صرف دا ده چه یوه طائفه به دشمن ته مخامخ ګوری او بله به د امام سره مونځ کوی، خو پدے کښې هم دا شرط دے چه روستو نه به دشمن کمین نهٔ وی نیولے او د دشمن خطره به نهٔ وی۔

**فائده:** د یو مصلحت دپاره دغه شان خلل او اعمال کثیره په مانځه کښې جائز دی دارنګه د یو مصلحت دپاره انتظار هم په مانځه کښې جائز دے۔او د مونځ ډیر اهمیت دے چه په داسے حالت د یره کښې هم نهٔ ساقطیږی۔

## الفصل الثانی

**١٤٢٤ (٥) – عَنْ جَابِرٍ: اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُصَلِّيْ بِالنَّاسِ صَلَاةَ الظُّهْرِ فِي الْخَوْفِ بِبَطْنِ نَخْلٍ، فَصَلّٰى بِطَائِفَةٍ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ، ثُمَّ جَاءَ طَائِفَةٌ أُخْرٰى، فَصَلّٰى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ سَلَّمَ. رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ.**

ترجمه : جابر رضی الله عنه نه روایت دے چه نبی ﷺ په بطن نخله کښې د خوف په حالت کښې خلقو ته د ماسپښین مونځ اُوکړو، نو یوے ډلے ته ئے دوه رکعاته مونځ اُوکړو بیا ئے سلام واړولو بیا بله

دله راغله هغوی ته ئے (هم) دوه رکعاته اُوکړل بیا ئے سلام واړولو۔ (شرح السنه)

**تشریح : بِبَطْنِ نَخْلٍ:** دا د مدینې نه د دوه ورځو په فاصله وراندې یو مقام دے او دا یوه وادی ده چه دے ته ((شَدْخ)) وائی، په هغې کښې به د قیس او بنی فزاره او اَشجع او اَنمار طائفې اُوسیدلې۔ ابن حجرؒ وائی : دا یو ځائے دے د مکې او طائف ترمینځ (القاریؒ) او دا په مدینه کښې نهٔ دے۔بلکه د نجد علاقې نه د غطفان د زمکو نه یوه زمکه ده۔

**ثُمَّ سَلَّمَ :** دا صریح دے چه نبی ﷺ د دوه رکعاتو نه روستو سلام گرځولے دے لکه مخکښې حدیث د ابوبکرۃؓ هم دغه شان تیر شو۔ نو پدے کښې د رسول الله ﷺ څلور رکعاته شو په دوه سلامونو سره، دوه فرض اودوه نفل او د هرې طائفې دوه رکعاته شو فرض۔ او پدے باندے حسن بصریؒ، شافعیؒ او احمدؒ قول کړیدے۔

**درجة الحديث :** اسناده صحيح : اخرجه النسائی (١٧٨/٣) والدارقطنی فی السنن (٢/ ٦٠) رقم (١٠) والبيهقی (٢٥٩/٣) وقال انه اختلف عليه فی اسناده۔

## الفصل الثالث

**١٤٢٥ (٦) – عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ : اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ نَزَلَ بَيْنَ ضَجْنَانَ وَعُسْفَانَ، فَقَالَ الْمُشْرِكُوْنَ: لِهٰؤُلَاءِ صَلَاةٌ هِيَ اَحَبُّ اِلَيْهِمْ مِنْ آبَائِهِمْ وَاَبْنَائِهِمْ، وَهِيَ الْعَصْرُ، فَأَجْمِعُوْا اَمْرَكُمْ، فَتَمِيْلُوْا عَلَيْهِمْ مَيْلَةً وَاحِدَةً، وَاِنَّ جِبْرِيْلَ اَتَى النَّبِيَّ ﷺ فَاَمَرَهُ اَنْ يَقْسِمَ اَصْحَابَهُ شَطْرَيْنِ، فَيُصَلِّيْ بِهِمْ، وَتَقُوْمُ طَائِفَةٌ اُخْرٰى وَرَائَهُمْ وَلْيَأْخُذُوْا حِذْرَهُمْ وَاَسْلِحَتَهُمْ، فَتَكُوْنُ لَهُمْ رَكْعَةٌ وَلِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ رَكْعَتَانِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ.**

---

ترجمه : د ابو هریره ؓ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ د ضَجْنان او عُسْفان (دوه علاقو) ترمینځ کوز شو نو مشرکانو (خپل مینځ کښې) اُوئیل: چه ددے مسلمانانو یو مونځ دے چه هغهٔ دوی ته د پلارانو او ځامنو نه (هم) زیات محبوب دے، او هغهٔ د مازیگر مونځ دے، نو کلکه اراده اُوکړئ، (د خپل مقصد (جنگ) دپاره تیار شئ) او په دوی باندے (د مانځه په حالت کښې) په یو ځل حمله اُوکړئ، او جبریل ؑ (هم) نبی ﷺ ته راغلو او دا حکم ئے ورته اُوکړو چه خپل صحابهؓ دوه حصے تقسیم کړی، یوے ډلے ته مونځ اُوکړی او بله ډله دے دهغوی شاته (د دشمن د مقابلے دپاره) ولاړه وی (دغه شان دویمے حصے ته دے مونځ اُوکړی او اوله حصه دے د دشمن مقابلے دپاره ولاړه وی) او (دا ټول مونځ کونکی) دے د دفاع سامان او اسلحه اُونیسی نو (پدے

طریقه به) د مقتدیانو دپاره (د امام سره) یو یو رکعت شی او د رسول الله ﷺ دپاره به دوه رکعاته شی۔ (ترمذیؒ، نسائیؒ)

**تشریح : ضَجْنَانَ** : دا د مکے او مدینے ترمینځ یو غر، یا یو ځائے دے۔ واقدیؒ وائی: ددے او د مکے ترمینځ (۲۵) میله لاره ده۔ او **عُسْفَان** : د مکے نه دوه پړاوه وړاندے یو ځائے دے۔ علامه جزریؒ فرمائی : دا د مکے او مدینے ترمینځ یو جامع کلے دے۔ نن صبا پکښې مدارس او حکومتی دفاتر وغیره آباد دی، او په هغه لاره کښې دے چه نن صبا ورته طریق الهجرة وائی او هغه د مکے او د مدینے ترمینځ شاتٔ کښ لاره ده، او د مکے نه شمالی طرفته اتیا (۸۰) کیلو میټر فاصله باندے وړاندے پروت دے۔ (توضیح الاحکام ۲/۳۷۳)

**فَتَكُوْنُ لَهُمْ رَكْعَةٌ**: پدے کښې دوه احتماله دی (۱) یو دا چه مقتدیانو دپاره یو یو رکعت د امام سره اُوشو او یو یو به ځان له پوره کړی۔ (۲) دویم ظاهر احتمال دا دے چه مقتدیان به صرف یو یو رکعت باندے اکتفاء اُوکړی او سلام به واړوی او امام به دوه رکعاته اُوکړی۔ او دا خصوصیت د صلاۃ الخوف دے۔

**درجة الحديث** : اسناده صحیح : اخرجه النسائی (۱/۲۳۰) والترمذی فی التفسیر وقال حدیث حسن۔ والحدیث اسناده صحیح فان له شاهداً من حدیث جابر عند احمد (۳/۳۷٤) ورجاله ثقات۔

**تکمیل المسائل** : (۱) – د ماښام مونځ به څنګه کوی؟ پدے کښې اتفاق دے چه په ماښام کښې قصر نۀ کیږی او په احادیثو کښې په حالت د خوف کښې ددے څه خاص کیفیت نۀ دے راغلے۔ نو ددے وجه نه پکښې د ائمه ؒ اختلاف واقع شویدے چه کومه طریقه پکښې اُولیٰ او افضل ده ؟۔ ۱– احناف او مالکیه وائی : امام به اولے طائفے ته دوه رکعاته اُوکړی او دویمے طائفے ته یو رکعت۔ ۲– او امام شافعیؒ او احمدؒ جائز کړیدی چه امام اولے طائفے ته یو رکعت او دویمے ته دوه رکعاته اُوکړی ځکه چه پدے طریقه باندے علی ؓ عمل کړیدے۔ (فقه السنة) ونیل الاوطار (٤/۱۰) والمغنی (۲/۲٦۲) والمجموع (٤/٦۳۷) وبلوغ الامانی (۷/۹) والروضة الندیة (۱/۱٤٦) وفتح الباری (۳/۳٦۱)

(۲)– آیا په ماښام کښې په یو رکعت باندے اکتفاء د مقتدیانو جائز ده ؟۔ نو د عموم د احادیثو نه ددے جواز معلومیږی او دارنګه د هغه آثارو د صحابه کرامؓ نه چه ابن حزمؒ په محلی (۳/۲۳۵) کښې ذکر کړیدی جواز معلومیږی۔ لیکن حافظ ابن حجرؒ او شوکانیؒ وغیره فرمائیلی دی چه اجماع پدے واقع شویده چه په صلاۃ المغرب کښې قصر نشی راتلے، ابن حزمؒ وائی : خامخا به درے رکعاته کوی۔ والله اعلم۔ (راجع فتاوی الدین الخالص (٦/٥۳٤)

(۳) مسئله : آیا په صلاة الخوف کښې د دواړو طائفو اِستواء په عدد کښې ضروری ده ؟ نو صحیح دا ده چه مساوات ضروری نهٔ دی بلکه د اَمیر خوښه ده چه څومره کسان څوکئ ته اُودروی او څومره ځان سره مانځه ته اُودروی۔ (المحلی (۳/۲۳۲) والمغنی (۲/۲۵۳) وطرح التثریب (۳/ ۱۳۰) وفتح الباری (۲/ ۳٤٥) وسبل السلام (۲/ ۷۳) وبلوغ الامانی (۷/ ۱۲)

(٤) مسئله : مطلوب (چاپسې چه دشمن راروان وی) په سورلئ په اشاره هم مونځ کولے شی او دا تقریباً اتفاقی خبره ده، او دلیل پرے آیت دے ﴿ فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا ﴾ او هرچه طالب دے (چه دشمن پسے روان وی) نو دا که په نزول باندے قادر وی کوزیږی به او که ددهٔ نه د دشمن د فوت کیدو یَره وه په کوزیدو کښې یا یره وه چه که دا کوز شی نو دشمن ورته راواپس کیږی بیا په سورلئ باندے هم جائز دے۔ او دلیل پدے باندے واقعه د عبد الله بن انیسؓ ده چه دهٔ په لاره مونځ په سورلئ باندے کړے وو کله چه نبی ﷺ د خالد بن سفیان الهذلی پسے (عرفات طرفته) لیږلے وو۔ دارنګه امام بخاری نور دلائل هم راوړی دی۔

(٥) مسئله : که سړے په مانځه باندے په حالت د خوف کښې قادر وی په سورلئ یا پیاده اګرکه شدت خوف وی نو هغه باندے واجب دی چه مونځ به نهٔ روستو کوی بلکه په همدغه حالت کښې به د خپل وسع مطابق مونځ کوی او که بالکل قادر نهٔ وی نو بیا به مونځ روستو کوی لکه منځکښې حدیث د انسؓ او ابو موسی اشعریؓ تیر شو چه دوی د تُستر په قلعه فتح کولو مصروف وو او د فجر مونځ ئې د نمر راختلو نه روستو اُوکړو۔ او دیته د امام بخاریؒ میلان دے۔

دارنګه کوم انسان چه طالب د دشمن وی او خطره وی چه دشمن ترے فوت کیږی که مانځه ته کوز شی نو هغه دپاره هم تاخیر د مانځه جائز دے۔ دلیل حدیث د ابن عمرؓ دے چه صحابه کرامؓ ته نبی ﷺ اُوفرمایل : ((لَا يُصَلِّيَنَّ اَحَدٌ مِنْكُمْ اِلَّا فِيْ بَنِيْ قُرَيْظَةَ)) (بنو قریظه ته به مونځ رسوئ) نو بعض صحابه کرامؓ مونځ قضاء کړو او بنو قریظه کښې ئې اُوکړو او بعضو په لاره اُوکړو او نبی ﷺ د دواړو تائید اُوکړو) (فتح الباری ۲/ ۳٤۹) وفتاوی الدین الخالص (٤/ ٤۲)

(٦) مسئله : که په صلاة الخوف کښې جنګ شروع شو نو آیا مونځ باطلیږی ؟ نو ظاهر احادیثو دا دے چه مونځ نهٔ باطلیږی ځکه چه دا ضرورت دے او الله په صلاة الخوف کښې ډیر څیزونه مباح کړیدی او نبی ﷺ پکښې ناشنا کارونه کړیدی نو دے کښې به د ځان نه مونږ چون وچرا نهٔ کوو چه دا د اُصولو خلاف دے۔ بلکه دا د ﴿ فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ ﴾ موافق دے۔ (السیل الجرار ۱/ ۳۱۳) او صلاة الخوف یواځې هم کیږی۔

(۷) مسئله : بعض خلقو کښې دا مشهوره ده چه وائی : کله چه جنګ سخت شی نو مجاهد

په صرف سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اکبر وائی او دهٔ باندے نور هیڅ شے نشته. لکه دا خبره امام سفیان الثوریؒ، عطاءؒ او سعید بن جبیرؒ او ابو البختریؒ کریده. لیکن پدے قول باندے هیڅ دلیل نشته. شاذ اقوال دی. صحیح دا ده چه که ممکن وه نو مونځ به په خپل وخت کښې کوی ورنه تاخیر به کوی. امام بخاریؒ په دغه اقوالو رد کوی فرمائی: (وَلَا يُجْزِئُهُمُ التَّكْبِيرُ) (۲۴۸/۲ بشرح الفتح) (تکبیر د دوی نه نهٔ جائز کیږی) دا لوی لوی علماء او تابعین دی لیکن خبره ئے کله کله خطاء کیدے شی ځکه احادیث به ورته نهٔ وی رسیدلی. نو دا رد دے په تقلید باندے. فتدبر.

(۸) په هر قسم خوف کښې صلاۃ الخوف کول جواز لری، که د دشمن خطره وی او که د اُور، یا سیلاب، یا د ځَرنده، یا غلا وغیره. (المحلی۳/۲۳۲) طرح التثریب (۳/۱۴۹) والسیل الجرار (۱/۳۱۲) والانصاف (۲/۳٦۱) والمجموع (۴/٦۴۸) فقه السنة (۱/۲۴۷)

ooooooooo

# ٤٧- باب صلاة العيدين

## د اخترونو د مانځه بيان

عِيْد د عَوْد نه دے واپس کيدو ته وائي او دا هم په کال کښې راواپس کيږي۔ عرب هرے ورځے د سرور او خوشحالئ ته عيد وائي او په اسلام کښې خاص ورځے ته عيد وائي۔ د هر امت دپاره خپل اخترونه دي چه په يو وخت کښې يوه عظيمه کارنامه شوي وي نو هغه چه کله راواپس شي دوي پکښې اخترونه او خوشحاليانے کوي او هغه مناسبت او کارنامه پکښې يادوي او د هغے په راتلو باندے خوشحالي ښکاره کوي ليکن مسلمانانو ته الله تعالىٰ صرف دوه ورځے د اختر ورکړي دي چه يو ته عيد الفطر وائي او بل ته عيد الاضحى وائي۔ چه دا د عبادت او شکر او د سرور او خوشحالئ ورځے دي او يوازے عبادت نه دے او يوازے عادت هم نه دے بلکه پدے کښې خيرونه د دنيا او آخرت راجمع دي۔ دا وجه ده شريعت پکښې خوشحاليانے او خوراکونه او مبارکيانے او ملاقاتونه هم جائز کړيدي او دغه شان عبادتونه چه مونځونه، صدقات الفطر، تکبيرونه، اضحيه او وينے تويه ول وغيره۔ او پداسے اجتماعاتو کښې د دنيا او آخرت مصالح راجمع دي پدے وجه الله دا مقرر کړيدي او دا د اسلام کمال دے، چه بنده ته په دنيا کښې خوشحالي هم ورکوي او آخرت ئے هم برابروي۔

شاه ولي الله الدهلويؒ په حجة الله (٢/ ٣٠) کښې فرمائي : د هر قوم دپاره د هغوي د ديني شعار د پوره کولو دپاره يوه داسے ورځ شته چه په هغے کښې دوي ټول راجمع کيږي او د لهو او لعب کولو سره اظهار د سرور او خوشحالئ کوي نبي ﷺ چه مدينے ته تشريف راوړو نو دا ئے اوليدل وے فرمايل : قَدْ أَبْدَلَكُمُ اللهُ بِهِمَا خَيْرًا مِنْهُمَا (تاسو ته الله ددے جاهليت د ورځو په بدله کښې دوه ورځے بهترے درکړے) او د هغوي دغه دوه ورځے يوم النيروز والمهرجان وے۔ نو ددے دوه ورځو په بدله کښې الله داسے دوه ورځے ورکړے چه په هغے کښې د تجمل (ډول کولو) سره سره د ذکر او طاعت دروازے هم کولاوے کړے۔ يا پدے وجه چه د مسلمانانو اجتماع خالص د لعب دپاره نه شي، او چونکه پدے ورځ کښې مقصود اظهار د شعائر الله او اعلاء د کلمة الله او د اسلام شان وشوکت پوره کول دي پدے وجه د ماشومان او زنانو راوتل هم مستحب شويدي۔ او دغه شان د تلو راتلو دوه لارے اختيارولو حکم شويدے دے دپاره چه په دواړو لارو کښې د اسلام شوکت

ښكاره شي او د الله نوم په هر ځائے کښې پورته کړے شي۔ او چونکه اصل عيد زينت دے پدے وجه ښائسته لباس اغوستل مستحب شويدی۔ انتهیٰ۔

ددے وجه نه د ځان نه د زمانے او مکان تعظيم نشته کوم چه شريعت کښې نه وی راغلے لکه څوك عيد ميلاد النبی (د نبی ﷺ د پيدائش د ورځے تعظيم کوی) بعض خلق د اسراء او معراج ورځ مناووی۔ بعض خلق د جنګ بدر او فتح د مکه او د هجرت وغيره جشنونه مناووی دا په اسلام کښې نشته۔ او ديته ثواب وئيل عظيم بدعت دے او قبيحه ګناه ده، که څوك ددے ترديد نشی کولے نو هغه باندے لازم دی چه داسے مجلسونو ته به نۀ حاضريږی ځکه چه د مبتدعينو جماعت زياتول منع دی۔

**فائده :** علامه سيوطیؒ فرمائی : عيدين او صلاة الاستسقاء او خسوف او کسوف ددے امت د خصوصياتو نه دی چه مخکنو امتونو ته دا نۀ وو ورکړے شوی۔ والله اعلم۔

## مسائل العيد : ١- حکم صلاة العيد ؟

پدے کښې اختلاف دے چه دا اختر مونځ سنت دے، فرض عين دے او که فرض کفايه دے؟۔

١- مالکيۃ او شافعيۃ وائی : سنت مؤکد دے۔ او په قول د نوویؒ دا قول د جمهور و علماؤ دے۔ ٢- حنابله وائی : فرض کفايه دے۔ کله چه ئے څه خلق اوکړی د باقيو نه ساقطيږی لکه د جهاد او صلاة الجنازه په شان۔ ٣- او احناف وائی : واجب دے، په چا چه د جُمعے مونځ واجب دے نو په هغه باندے صلاة العيد هم واجب دے۔ سره د هغه شرائطو نه چه د جُمعے دپاره ذکر شو سویٰ د خطبے نه ځکه خطبه د هغوی په نيز سنت ده۔ ٤- بل روايت د امام احمدؒ نه دا دے چه دا فرض عين دے۔

حاصل د اختلاف راجع دے دوه قولونو ته يو دا چه سنت دے بل دا چه واجب او فرض دے۔

**د سنيت دلائل :** ١- دليل : نبی ﷺ په مدينه کښې پدے باندے مواظبت کړے او په سفر کښې به ئے دا مونځ نۀ کولو لکه منیٰ کښې ئے نۀ دے کړے۔ نو که چرته واجب او فرض وے نو نۀ به ئے ترك کولے ځکه واجبات سفراً او حضراً نشی ترك کولے۔

**٢- دليل :** د صحيحينو حديث مخکښې کتاب الايمان کښې تير شوے چه يو اعرابی د نجد والو نه راغے د نبی ﷺ نه ئے د اسلام د احکامو متعلق تپوس اُوکړو نو هغه ورته بيان اوفرمايلو بيائے ورته اوفرمايل : (خَمْسُ صَلَوَاتٍ فِى الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ فَقَالَ: هَلْ عَلَىَّ غَيْرُهُنَّ؟ قَالَ : لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ۔ الحديث) نو دا حديث دليل دے چه په ورځ او شپه کښې د پنځو مونځونو نه علاوه بل مونځ

فرض او واجب نشته.

**دلائل د وجوب** : ١- نبي ﷺ دا دواماً كړې او په عمر كښ ئې هيڅ كله نۀ دې ترك كړې دارنګه اختر مانځه ته په وتلو باندې امر راغلے دے دا لا څه چه زنانو (پيغلو او بوډاګانو او پرده نشينو) ته هم حكم شوے چه دوي د اختر مانځه ته راوځي او دومره مبالغه پدے حكم كښ شويده چه د كومے زنانه څادري نۀ وي نو هغې ته دې هغه زنانه څادري وركړي چه د هغې سره زياتي پرته وي او دا حكم ئې لا په جُمعه كښ ندے كړے. او نۀ په نورو فرائضو كښ. (واختار هذا القول الشوكاني في النيل٣/٣٨٢)

**٢-دليل** : په قرآن كښ امر په صلاة العيد راغلے دے ﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ﴾ لكه ائمه د تفسير وائي : ددے نه مراد صلاة العيد دے او وانحر نه مراد قرباني ده. (الروضة الندية ص : ١٤٠) ليكن علامه ابن العربيؒ په تفسير احكام القرآن (١٩٨٦/٤) كښ پدے دليل رد كړے چه ددے نه د اختر مونځ اخستل مناسب نۀ دي ځكه چه دا سورت مكي دے او د اختر مونځ په مدينه كښ مشروع شويدے. وكذا في فتح البيان (٥٦٣/٧)

**٣-دليل** : بل دليل د وجوب دا دے چه دا مسقط دے صلاة الجمعه له كله چه دواړه په يو ورځ راشي. مخكښ حديث تير شو چه د اختر مونځ څوك اوكړي هغه باندې د جُمعې مونځ واجب نۀ دے. او نوافل خو فرائض نشي ساقطولے لهذا معلومه شوه چه دا مونځ فرض دے. او دا قول علامه شوكانيؒ او امير صنعانيؒ اوصديق حسن خانؒ او شيخ البانيؒ او شيخ تقي الدين ابن تيميه او شيخ عبد الله البسام راجح كړيدے. چه صلاة العيد واجب دے.

(السيل الجرار ٣١٥/١) نيل الاوطار (٣٨٢/٣) سبل السلام (٦٧٧/٢) الروضة الندية (٣٥٨/١) تمام المنة : (٣٤٤) توضيح الاحكام (٣٨٨/٢)

دوي جواب كوي د اول دليل نه چه نبي ﷺ په سفر كښ ځكه پريخے دے چه دا ترك د مناسكو د حج نه دے. نو هلته به ترك كولے شي لكه څنګه چه جُمعه ئې په سفر كښ ترك كړيده لهذا د سفر احكام جدا دي د حضر نه.

او د حديث د اعرابي نه جواب كوي چه پدے كښ په عدم وجوب باندې هيڅ دليل نشته ځكه چه ددے پنځه مونځونو نه مراد هغه دي چه په ورځ او شپه كښ مكرر كيږي لكه د سوال د اعرابي او جواب د نبي ﷺ نه معلوميږي. او هرچه د اختر مونځ دے نو دا دے واجب شي ديته دغه حديث نۀ دے شامل ځكه چه هغه په هره شپه او ورځ كښ نۀ واپس كيږي بلكه كال كښ يو كرت وي. احتياط پدے كښ دے چه دا مونځ واجب شي ځكه دا د ظاهري شعائرو د اسلام نه

دے نو کول ئے پکار دی۔

او حنابلہ وائی : فرض کفایہ ځکہ دے چہ د فصل لربك وانحر نہ وجوب معلومیږی او د الا ان تطوع نہ عدم وجوب معلومیږی لهذا متعین شوہ چہ دا بہ فرض کفایہ وی۔ لیکن دا قول ضعیف دے۔ ځکہ چہ د نصوصو د تعارض نہ فرض کفایہ څنگہ ثابتیدے شی؟ فتدبر۔

او احناف چہ د اختر دپارہ د کومو شرائطو قائل دی پہ هغے باندے هیڅ اَثَارَةٌ مِنْ عِلْمٍ نشتہ۔ راجع المرعاة (٥/٢٢)

**المسئلة الثانية** : اختر مونځ پہ کوم کال مشروع شوے؟ بعض علماء فرمائی : چہ عید د هجری سنے پہ اول کال مشروع شویدے۔ او دا قول پہ اوجز المسالك (٢/٢٣٦) او الدر المختار کښی ذکر کړے شویدے۔لیکن دا قول ضعیف دے۔ ۲- مگر جمهور اهل نقل پدے باندے متفق دی (لکہ ابن حبانؒ وغیرہ وئیلی دی) چہ اول اختر نبی ﷺ عید الفطر کړیدے پہ دویم کال د هجرت باندے او پہ همدے (۲ هـ) کال پہ شعبان کښی د رمضان روژے فرض شوے۔ او بعض وائی : عید الاضحیٰ هم پہ دغہ دویم سن هجری کښی مشروع شوے وو۔

عیدین باندے علامہ فریابی متوفی (۳۰۱ هـ) «احکام العیدین» کتاب لیکلی دے۔

## الفصل الاول

**١٤٢٦ (١)** - عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَالْأَضْحَى إِلَى الْمُصَلَّى، فَأَوَّلُ شَيْءٍ يَبْدَأُ بِهِ الصَّلَاةُ، ثُمَّ يَنْصَرِفُ، فَيَقُومُ مُقَابِلَ النَّاسِ، وَالنَّاسُ جُلُوسٌ عَلَى صُفُوفِهِمْ، فَيَعِظُهُمْ، وَيُوصِيهِمْ، وَيَأْمُرُهُمْ، وَإِنْ كَانَ يُرِيدُ أَنْ يَقْطَعَ بَعْثًا قَطَعَهُ، أَوْ يَأْمُرَ بِشَيْءٍ أَمَرَ بِهِ، ثُمَّ يَنْصَرِفُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : ابوسعید خدری ﷺ فرمائی: نبی ﷺ بہ د وړوکی او غټ اختر پہ ورځ عیدگاه تہ وتلو، نو اول شے چہ پہ هغے بہ ئے ابتداء کولہ (د خطبے نہ مخکښی) مونځ وو، بیا بہ د مانځہ نہ راوگرځیدو او د خلقو مخامخ بہ اودریدو او خلق بہ پہ خپلو صفونو کښی ناست وو، نو هغوی تہ بہ ئے وعظ (نصیحت) اوکړو، وصیت او حکمونہ بہ ئے اوکړل او کۀ ارادہ بہ ئے وہ چہ یو فوج (جهاد تہ) اولیږی نو د هغے د روانولو حکم بہ ئے اوکړو۔او یا بہ ئے (د خلقو د معاملاتو نہ) د څۀ شی حکم کولونو د هغے حکم بہ ئے اوکړو، بیا بہ (کور تہ) راواپس کیدو۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

**تشریح** : **إِلَى الْمُصَلَّى** : دا عیدگاه د نبی ﷺ د باب المدینہ نہ بهر ځائے وو او ددے او د مسجد

د دروازے ترمینځ زر گز فاصله وه۔ لکه دا خبره عمر بن شبه په اخبار المدینه کښې د امام مالك شاګرد ابوغسان الکنانیؒ نه نقل کړیده۔
بیا سنت دا ده چه خلق به په اخترونو کښې عیدګاه ته اُوځی او په مساجدو کښې د اختر مونځ کول خلاف السنة دی مګر که عذر د باران وی یا صحراء کښې ځائے نۀ ملاویږی نو بیا مسجد کښې هم جواز لری۔ او دلیل دا دے چه نبی ﷺ علی الدوام مسجد نبوی (سره د افضلیت نه) ترك کړیدے او بهر عیدګاه ته راوتے دے۔ صرف یو کرت باران وو نو په مسجد کښې ئے اوکړو لکه دا روایت به روستو راشی په سند کښې ئے مقال هم دے۔ او دا مذهب د احناف، حنابله او مالکیه ؤ دے اګرکه مسجد واسع وی هم وتل افضل دی۔ او شوافع وائی : د اختر مونځ په مسجد حرام او بیت المقدس کښې افضل دے د صحراء نه ځکه دا ډیر اشرف مقامات دی او بله دا چه دا فراخه ی او دارنګه باقی مساجد هم غوره زمکے دی د صحراء په نسبت نو په مساجدو کښې افضل دے د صحراء نه۔ نو کله چه یو مسجد کولاؤ وی او خلق پکښې ځائیږی نو بیا وتل صحراء ته نۀ دی پکار۔ حافظ ابن حجرؒ د امام شافعیؒ قول نقل کړیدے او بیا ئے وئیلی دی چه ددے قول تقاضا دا ده چه علت په خروج الی الصحراء کښې تنګی او فراخی ده۔ که مسجد فراخه وو نو مسجد کښې مونځ بهتر دے او که مسجد تنګ وو نو بیا صحراء ته وتل جائز دی۔ لیکن علامه شوکانیؒ پرے رد کړیدے چه دا علت ګرځول هسے تخمین دے او د نبی ﷺ د تأسی او اقتداء نۀ کولو نه دا عذر نشی جوړیدے۔ ځکه چه صحراء ته په وتلو باندے نبی ﷺ او د هغه نه روستو د هغه خلفاؤ مواظبت کړیدے۔ او هر چه دا دلیل نیول چه نبی ﷺ په مکه کښې بهر نۀ دے کړے نو ددے جواب دا دے چه هلته عذر موجود دے چه بهر مقامات د مسجد حرام نه فراخه نۀ دی۔ بله دا چه مسجد نبوی کښې مونځ بهتر دے او بیا هم نبی ﷺ هغے کښې مونځ پریښے دے او بهر وتلے دے نو دا دلیل دے چه عیدګاه ته وتل ضروری دی او ددے خلاف بغیر د ضرورت نه خلاف سنت دے۔او پدے باندے اجماع د مسلمانانو ده په هر دور کښې او په هر ملك کښې چه عیدګاه ته به اُوځی اګرکه مسجد کښې خلق ځائیږی۔ او د بعضو خلقو دا خبره کول چه په هغه زمانه کښې په مسجد نبوی کښې خلق نه ځائیدل ځکه بهر وتل نو دا خبره غلطه ده ځکه چه په هغه زمانه کښې ډیر مساجد وو مسجد القبلتین، مسجد قباء، مسجد النبوی نو پکار ده چه نبی ﷺ دے مساجدو والو ته حکم کړے وے چه خپل خپل مسجد کښې مونځونه کویٔ لکه نن صبا چه دغه شان کار کیږی نو هرکله چه نبی ﷺ دوی خپلو مساجدو کښې مونځونو ته پرے نۀ خودل بلکه دے ټولو ته ئے د راوتو حکم اوکړو، دا دلیل دے چه صرف عیدګاه کښې مونځ کول سنت

دی۔ او پدے باندے شیخ البانیؒ د بعض مبتدعینو په رد کښې یوه رساله لیکلې ده چه نوم ئې دے: ((صَلَاةُ الْعِیْدَیْنِ فِی الْمُصَلّٰی)) هغې ته رجوع اوکړه۔ (وراجع المرعاة (۵/۲۳) والنیل (۳/۳۶۱))

**فَأَوَّلُ شَیْءٍ یَّبْدَءُ بِهٖ** : دا څکه وائی چه مروان بن الحکم به د اختر خطبه د مانځه نه مخکښې وئیله لکه امام مسلم د طارق بن شهاب نه همدا نقل کړیدی۔ نو ابو سعیدؓ پدے حدیث بیانولو کښې په هغه باندے رد کوی۔ او دے خبرے ته علامه عراقیؒ صواب (حقه) وئیلے ده۔ لیکن علامه شوکانیؒ فرمائی: د بعض صحیح روایاتو نه معلومیږی چه د مانځه نه مخکښې خطبه عمر فاروقؓ وئیلے ده مگر قاضی عیاضؒ، ابن العربیؒ، او عراقیؒ وئیلی دی چه دا خبره د عمرؓ نه په صحیح سند نۀ ده ثابته لیکن حافظؒ وائی: د دوی خبره کښې نظر دے څکه عبد الرزاق او ابن ابی شیبه دواړو باسناد صحیح نقل کړیدی۔

لینکن ددے معارض حدیث د ابن عباس او حدیث د ابن عمرؓ دے کوم چه مخکښې هغه ذکر کړیدی بیا وائی: چه پدے کښې به جمع اوکړو او هغه دا چه خطبه نادراً عمر فاروق مخکښې کړیده او عام سنت طریقه دا ده چه مونځ به مخکښې کوی۔ او که جمع اونکړو نو د صحیحینو روایت ته به ترجیح وی چه په هغې کښې تقدیم د صلاۃ دے په خطبه باندے۔

○ او ابن منذرؒ د حسن بصریؒ نه په صحیح سند نقل کړیدی چه اول خطبه د مانځه نه مخکښې عثمانؓ وئیلے ده، چه په یو موقعه کښې ئې خطبه د مانځه نه روستو وئیله نو څه خلق ئې اولیدل چه مونځ ترے فوت شوے وو نو بیا ئې خطبه د مانځه نه مخکښې کړه۔ حافظ عسقلانیؒ فرمائی: احتمال لری چه عثمان دا کار احیاناً کړے وی۔ ○ او عبد الرزاق د زهریؒ نه نقل کړیدی چه اول خطبه د مانځه نه مخکښې معاویهؓ وئیلے ده۔ او دا روایت امام شافعیؒ هم نقل کړیدے۔ او د مسلم د روایت نه معلومیږی چه د مانځه مخکښې خطبه وئیل د مروان بن الحکم ایجاد دے۔○ او ابن المنذر د ابن سیرینؒ نه نقل کړیدی چه اول دا کار زیاد کړیدے په بصره کښې۔ قاضی عیاضؒ فرمائی: ددے دواړو اثرینو او د اثر د مروان ترمینځ هیڅ مخالفت نشته څکه چه زیاد او مروان دواړه د معاویه د طرفنه عاملان وو نو کیدے شی چه معاویهؓ ددے کار ابتداء کړی وی او دے عاملانو د هغه اتباع کړی وی والله اعلم۔ نو د عثمان د تقدیم سبب جدا دے او د مروان د تقدیم سبب جدا دے۔ عثمان د خلقو مصلحت ته کتل او د مروان خطبے ته به چا نور نه کیخودلو پدے وجه هغه خطبه رامخکښې کړه۔ نو دۀ د خپل ځان د مصلحت خیال اوساتو۔ دارنګه حافظ فرمائی: عثمان یو کرت نیم دا کار اوکړو او بیا مروان په هغې باندے مواظبت اوکړو۔ نو ددے وجه نه ددے نسبت مروان ته کیږی۔

نيل الاوطار (۳/۳٦۱) (المرعاة ٥/٢٦) فتح البارى المغنى (٢/٣٨٤)

**مسئله**: كه څوك د مانځه نه مخكښې خطبه اووائي نو څه حكم دے؟ (١) امام شافعيؒ فرمائي: مونځ ئے فاسد دے سره د خطبے نه او د مانځه نه پس به اعاده د خطبے كوى۔(بلوغ الامانى ٦/١٢٨) والمجموع)

(٢) جمهور علماء فرمائي: مونځ نۀ فاسديږى ځكه مونځ جدا عمل دے او خطبه جدا نو په خطبه كښې ئے خلاف السنة اُوكړو او سخت ګناهګار دے۔ علامه ابن المنذرؒ فرمائي: پدے باندے د علماؤ اجماع ده چه خطبه د مانځه نه روستو ده او تقديم ئے جائز نۀ دے او هرچه مونځ دے نو هغه اتفاقاً صحيح دے۔ علامه باجيؒ فرمائي: ابوسعيد خدرى چه په تقديم د خطبه كښې په مروان باندے كوم انكار كړے نو دا دلالت په كراهت كوى نۀ په فساد باندے ددے وجه نه هغه به د مروان سره د اختر مونځ ته حاضريدو نو كه خطبه د صحت د مانځه دپاره شرط وے نو بيا به نۀ حاضريدے۔ ملا علي القاريؒ د ابن الهمامؒ نه نقل كړيدى چه كه خطبه قبل الصلاة اووائى نو مخالف د سنت دے او خطبه به نۀ راګرځوى۔

۲- **فائده**: عيدګاه ته به منبر نشي وړے بلكه په ولاړه به خطبه وائي لكه نبي ﷺ به كله خطبه په اوښه باندے وئيله او كله به ئے يو صحابي ته تكيه لګولو سره خطبه وئيله۔

بيا په بخارى كښې ددے حديث په آخر كښې داسے راغلى دى: ابوسعيد خدرى رضي الله عنه فرمائي: پدے طريقه باندے خلق وو تردے چه زۀ د مروان سره په عيد الفطر يا اضحىٰ كښې راووتم په كوم وخت چه هغه د مدينے امير وو۔ نو كله چه مونږ مصلى ته راغلو نو څه ګورو چه منبر وو چه كثير بن الصلت جوړ كړے وو۔ پدے وخت كښې مروان اراده اوكړه چه منبر ته د مانځه نه مخكښې اوخيژى نو ما د جامے نه راخكلو، هغه زۀ راخكلم او پورته شو د مانځه نه مخكښې ئے خطبه اووئيله، ما ورته اووئيل: (غَيَّرْتُمْ وَاللهِ) (قسم په الله! تاسو نبوى طريقه بدله كړه) هغه اووئيل: (يَا اَبَاسَعِيْدٍ! قَدْ ذَهَبَ مَا تَعْلَمُ) (دا ته چه كومه خبره پيژنے ددے وخت تلے دے) ما ورته اووئيل: (مَا اَعْلَمُ وَاللهِ خَيْرٌ مِمَّا لَا اَعْلَمُ) (ما ته چه كومه طريقه معلومه ده قسم په الله! دا غوره ده د هغه طريقے نه چه ما ته نۀ ده معلومه) هغه اووئيل: دا خلق مونږ ته د مانځه نه روستو نه كينى نو ځكه ما د مانځه نه مخكښې خطبه اووئيله۔ انتهىٰ۔

---

١٤٢٧ (٢) — وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ الْعِيْدَيْنِ غَيْرَ مَرَّةٍ وَلَامَرَّتَيْنِ بِغَيْرِ اَذَانٍ وَلَااِقَامَةٍ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : او جابر بن سمره ﷺ فرمائي: ما د رسول الله ﷺ سره د دوارو اخترونو مونځ بغير د اذان او اقامت نه يو كرت او دوه كرت نۀ (بلكه بيشماره ځل) كړيدے". (مسلمؒ)

**تشريح** : دا حديث دليل دے چه د عيدين دپاره اذان او اقامت او هيڅ شے نشته. علامه ابن قدامةؒ فرمائي : پدے باره كښې هيڅ عالم اختلاف نۀ دے كړے مګر دا چه د ابن الزبيرؓ نه نقل دی چه هغه د عيد دپاره اذان او اقامت كړيدے. او بعض وائي چه اول اذان د اختر دپاره ابن زياد پيدا كړو).

ليكن علامه ساعاتيؒ فرمائي : صحيح دا ده چه ابن الزبير ته اول كښې مسئله نۀ وه معلومه نو هغه قياس اوكړو په باقي مونځونو بيا چه كله عبد الله بن عباسؓ ورته دا خبر اوليږلو چه اختر دپاره رسول الله ﷺ اذان نۀ دے كړے نو هغه اُونكړو. (صحيح مسلم عن عطاء) الفتح الرباني وبلوغ الاماني (٦/٣٧- ١٣٨) بيا ابن قدامةؒ فرمائي : زمونږ بعض حنابله وائي: داسے آواز به كوي : اَلصَّلَاةُ جَامِعَةٌ) او دا قول د شافعيؒ دے، ليكن سنت د رسول الله ﷺ لائق د تابعدارئ دی انتهیٰ.

او همدا خبره صحيح ده ځكه چه په صحيح مسلم كښې عطاء د جابرؓ نه نقل كړيدی :(لَا اَذَانَ لِلصَّلَاةِ يَوْمَ الْعِيدِ وَلَا اِقَامَةَ وَلَا شَيْءَ) (د اختر مانځه دپاره نۀ اذان شته او نۀ اقامت اونۀ هيڅ شيے) نو دلته نفي د هر شي شويده نو كه (اَلصَّلَاةُ جَامِعَةٌ) وئيل جائز وے نو جابرؓ به عمومي نفي نۀ كولے.
(زاد المعاد) الفتح الرباني (٦/١٣٨)

حديث دليل دے چه ترك د نبي ﷺ يو فعل لره دليل دے په عدم فعل باندے نو دا ترك سنت دے او فعل به بدعت وي. نو نبي ﷺ اذان او اقامت د اختر دپاره نه دے كړے لهٰذا نۀ كول سنت دي او كول ئے بدعت دے. نو داسے وينا صحيح نۀ ده چه منع ئے هم ترے نه ده كړے بلكه عدم فعل په باب د عباداتو كښې دليل د عدم جواز وي. او دا قاعده د بدعاتو په رد كښې ډيره مهمه ده.

**حكمت** : د اذان او اقامت نۀ كولو حكمت دا دے چه هركله د اختر په ورځ باندے عيدګاه ته د وتلو دواعي او اسباب زيات وو چه ماشومان او غټو اوزنانو تولو ته معلوم وو چه پدے ورځ خلق مانځه له عيدګاه ته ځي نو اذان او اقامت ته ضرورت پاتے نشو ځكه چه دا دواړه د غافلانو د تنبيه دپاره كيږي او دلته خو خلق مانځه ته تيار دي.

---

۱٤۲۸ (۳) – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَاَبُوْبَكْرٍ وَعُمَرُ يُصَلُّوْنَ الْعِيْدَيْنِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : او ابن عمر ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ او ابوبكر صديق او عمر فاروق به د اخترونو مونځونه د خطبے نه مخكښې كول. (بخاريؒ ومسلمؒ).

**تشريح :** ابوبكر او عمر په اكثرو احاديثو كښې د نبي ﷺ سره يو ځائے ذكر كوي وجه دا ده چه پدے كښې تاكيد كوي چه دا سنت د نبي دى خو شيخينو پرے عمل هم كړے دے او هيچا پرے اعتراض نۀ دے كړے نو دا ګويا كښې اجماع ده۔ او دا مطلب نۀ دے چه دا دواړه د نبي ﷺ په شان په تشريع كښې شريك دى۔

بيا دا حديث صريح دليل دے چه د اختر خطبه د مانځه نه روستو وئيل سنت عمل دے او دا د نبي ﷺ او خلفاؤ دائمي عمل دے، په روايت د ابن عباسؓ كښې ورسره عثمانؓ هم ذكر دے۔ (اخرجه الجماعة الا الترمذي) او ددے مقدم كول بدعت دے۔ او تحقيق مخكښې تير شو۔

---

۱۴۲۹ (٤) – وَسُئِلَ ابْنُ عَبَّاسٍ: أَشَهِدْتَّ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ الْعِيْدَ؟ قَالَ: نَعَمْ، خَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَصَلّٰى، ثُمَّ خَطَبَ، وَلَمْ يَذْكُرْ اَذَانًا وَلَا اِقَامَةً، ثُمَّ اَتَى النِّسَاءَ فَوَعَظَهُنَّ وَذَكَّرَهُنَّ، وَاَمَرَهُنَّ بِالصَّدَقَةِ، فَرَاَيْتُهُنَّ يَهْوِيْنَ اِلٰى آذَانِهِنَّ وَحُلُوْقِهِنَّ يَدْفَعْنَ اِلٰى بِلَالٍ، ثُمَّ ارْتَفَعَ هُوَ وَبِلَالٌ اِلٰى بَيْتِهٖ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه :** او د ابن عباس ؓ نه تپوس اوشو: آيا تۀ د رسول الله ﷺ سره اختر ته حاضر شوے ئے؟ هغۀ اوفرمايل : "آو۔ (بيا هغۀ تفصيل بيان كړو چه) رسول الله ﷺ (عيدګاه) ته راووتو خلقو ته ئے (اول) مونځ اوكړو بيا ئے خطبه اووئيله او ابن عباسؓ (پدے تفصيل كښې) د تكبير او اذان ذكر اُونۀ كړو، بيا رسول الله ﷺ زنانو طرف ته راغلو او هغوى ته ئے وعظ (او نصيحت) اوكړو او د دين احكام ئے ورته رایاد كړل او هغوى ته ئے د صدقے وركولو حكم اوكړو، نو ما زنانه اوليدلے چه خپل لاسونه ئے غوګونو او مريو طرف ته (د زيوراتو لرے كولو دپاره) اوګدول، او بلال ته ئے وركول (دے دپاره چه هغۀ ئے په فقراء او مساكينو تقسيم كړى) بيا رسول الله ﷺ او بلال خپل كور ته تشريف راوړو"۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)

**تشريح :** ثم خطب: دا دليل دے چه د اختر خطبه مشروع ده او پدے كښې دا خبره نشته چه دوه خطبے دى د جمعے په شان او نۀ دا چه د هغے په مينځ كښې كيناستل دى۔ او پدے كښې اختلاف دے چه د عيد دپاره څو خطبے دى؟

۱ – جمهور ائمه كرام فرمائى : دوه خطبے دى۔ دوى قياس كوى په جمعه باندے ليكن كوم احاديث چه پدے باب كښې راغلى دى هغه ټول ضعيف دى۔ لكه حديث د جابر كښې دى : (خَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَوْمَ فِطْرٍ اَوْ اَضْحٰى فَخَطَبَ قَائِمًا، ثُمَّ قَعَدَ قَعْدَةً ثُمَّ قَامَ) (ابن ماجه (۱۲۹۹) دا روايت ضعيف

منکر سنداً او متناً دے کما قال الشیخ الالبانیؒ فی ضعیف ابن ماجه (۲٦۵) او محفوظ دا ده چه دا په جُمعه کښ وو۔ (قال البوصیری : رواه النسائی فی الصغری من حدیث جابر الا قوله : یوم فطر او اضحی، واسناد ابن ماجه فیه اسماعیل بن مسلم وقد اجمعوا علی ضعفه وابوبحر ضعیف انتهیٰ) ۔۲- حدیث د سعد بن ابی وقاصؓ : (اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ صَلّٰی الْعِیْدَ بِغَیْرِ اَذَانٍ وَّلَا اِقَامَةٍ وَکَانَ یَخْطُبُ خُطْبَتَیْنِ یَفْصِلُ بَیْنَهُمَا بِجَلْسَةٍ) (کشف الاستار للبزار ۱/۳۱۵) رقم (٦۵۷)

هیثمیؒ په مجمع الزوائد (۲۰۳/۲) کښ فرمائی : (رواه البزار وجادةً وفی اسناده من لم اعرفه انتهیٰ. وفی سنده عبد الله بن شعیب شیخ البزار وهو واهٍ کما قاله الذهبی راجع تمام المنة (۳۴۸) شیخ البانیؒ فرمائی : دا حدیث نهٔ صحیح دے او نهٔ حسن۔

۳- روایت د ابن مسعودؓ دے : (مِنَ السُّنَّةِ اَنْ یُّخْطَبَ فِی الْعِیْدَیْنِ خُطْبَتَیْنِ، فَیَفْصِلُ بَیْنَهُمَا بِجُلُوْسٍ) رواه الشافعی) **جواب** : امام نوویؒ په "خلاصه" کښ فرمائی :

(ضَعِیْفٌ غَیْرُ مُتَّصِلٍ وَلَمْ یَثْبُتْ فِیْ تَکْرِیْرِ الْخُطْبَةِ شَیْءٌ وَلٰکِنَّ الْمُعْتَمَدَ فِیْهِ الْقِیَاسُ عَلَی الْجُمُعَةِ انتهی)

دا روایت ضعیف غیر متصل دے او د دوه خطبو په وئیلو کښ هیڅ حدیث نهٔ دے ثابت لیکن قابل اعتماد خبره پدے کښ قیاس دے په جمعه باندے آه۔ نصب الرایة (۲۲۱/۱) والتلخیص الحبیر (۸٦/۱) ○ او په المجموع (۲۲/۵) کښ فرمائی : حدیث د عبید الله بن عبدالله کوم چه امام شافعی روایت کړے ضعیف دے او سره د ضعف نه پدے کښ هیڅ دلیل نشته ځکه عبید الله تابعی دے او تابعی چه کله "من السنة" لفظ اووائی : نو پدے کښ د علماؤ دوه قوله دی اصح دا دهٔ چه دا موقوف وی او دویم دا چه دا مرفوع مرسل وی او په دواړو قولونو دا اثر ضعیف دے۔ ملخصاً۔ لیکن ددے سره بیا هم نوویؒ په استحباب د دوه خطبو قائل دے ځکه پدے باب کښ په جمعه باندے قیاس کوی۔

صحیح ابن خزیمه کښ امام ابن خزیمهؒ یو عام حدیث ذکر کړے چه په هغے کښ دوه خطبے ذکر دی لیکن هغے کښ ذکر د عید نشته۔ خلاصه دا شوه چه په ضعیف یا منکر حدیث باندے استحباب نهٔ ثابتیږی ځکه استحباب حکم شرعی دے ددے دپاره قوی دلیل ضروری دے۔ او په قیاس باندے دوه خطبے ثابتولو ته حاجت نشته ځکه قیاس خو د ضرورت په وخت کښ کیږی او دلته هیڅ حاجت نشته۔ او په عباداتو کښ د قیاس دپاره هیڅ دخل نهٔ وی۔ لهذا د دوه خطبو دپاره صحیح دلیل نشته۔

۲- **قول ثانی** د بعض محققینو دے چه د عیدینو دپاره صرف یوه خطبه مشروع ده. او دا قول شیخ البانیؒ وغیره غوره کړے۔ دلیل دا دے چه د دوه خطبو په باره کښ صحیح نقل نشته۔

**۲- دلیل** دا چه د نبی کریم ﷺ او د بعض صحابه کرامو (مغیره بن شعبه، عثمان بن عفان، علی بن ابی طالب رضی الله عنهم) نه دا ثابت دی چه هغوی به کله نا کله د اختر خطبه په راحله (اوښه) باندے وئیله او دا قانون دے چه په اوښه باندے کیناستل پاڅیدل نهٔ کیږی۔ لهذا دوه خطبے نهٔ وئیلے کیږی۔ لکه دغه احادیث په ابن ابی شیبة (۱۸۹/۲) ابی یعلی الموصلی (۴۰۲/۲) وابن حبان (۲۱۰/۴) واحکام العیدین للفریابی ص (۱۳۹) والمحاملی (۱۳۳) ومجمع الزوائد (۲۰۵/۲) کښ موجود دی او اسانید ئے صحاح دی۔ نو دا آثار او مرفوع حدیث دلیل دے چه یوه خطبه وئیل پکار دی۔

**۳-دلیل :** دا ټول احادیث الباب دلیل دے ځکه پدے کښ محض د خطبے کولو ذکر دے چه د یو کرت خطبے دپاره خو دلیل دے لیکن : دوه خطبو دپاره واضح دلیل کیدل پکار دی چه هغه په هیڅ صحیح حدیث سره ثابت نهٔ دے۔ نو که دوه خطبے مستحب وے نو پدے روایاتو د باب کښ به ضرور د هغے تذکره کیدلے لکه څنګه چه د جُمعے د خطبے په باب کښ د دوه خطبو تذکره کیږی۔ لیکن که ددے سره سره څوك دوه خطبے اووائی نو هغه ته به بدعتی نشی وئیلے ځکه چه ضعیف دلائل په دوه خطبو کښ هم موجود دی، او بله دا چه د اختر خطبه اوریدل واجب هم نهٔ دی بلکه مستحب دی۔

**تنبیه:** بعض فقهاؤ لیکلی دی چه مستحب دا ده چه د اختر خطبه په تکبیراتو شروع کړی لیکن دا خبره ضعیفه ده او دے باره کښ هیڅ صحیح حدیث نهٔ دے ثابت۔ شیخ عبد الرحمن ناصر السعدی په المختارات ص (۷۸) کښ فرمائی: صحیح دا ده چه ټولے خطبے که د جُمعے وی او که د عیدینو وغیره وی– په الحمد سره به شروع کوی۔ ځکه د نبی ﷺ نه دا ندی ثابت چه هغه بغیر د الحمد نه په بل څه شروع کړی وی۔انتهیٰ۔ او د عبید الله بن عبد الله بن عتبه بن مسعود نه چه دا نقل دی: چه په اوله خطبه کښ به اووه تکبیرات اوکړی)) نو دا اثر دے او ضعیف دے امام شافعی (۲۱۱/۱) او بیهقی (۲۹۹/۳) راوریدے۔ او سره د ضعف نه د تابعی قول ((من السنة)) مرفوع حدیث نهٔ وی۔

**ثُمَّ اَتَى النِّسَآءَ :** نبی ﷺ چه کله سړو ته خطبه اوکړه نو زنانه جدا ځائے کښ وے هغوی دا خطبه وانهٔ وریدله نو هغوی ته راغلو او بلال ورسره وو هغوی ته ئے هم خطبه اوکړه او په خطبه کښ ئے هغوی ته وعظ او نصیحت اوکړو او د نواهی او اوامرو تذکره ئے ورته اوکړه او خصوصاً په صدقه ئے ورته حکم اوکړو ځکه چه دا د جهنم اُور د انسان نه زائله کوی او زنانه په اُور کښ زیاتے لیدلے شویدی۔

يَهْوِيْنَ : دا په فتحه د ياء او كسره د واو، د هُوِيّ نه دے او په ضمه د ياء د اهواء نه دے په معنىٰ د قصد سره۔ بعض وائي : يهوين په معنىٰ د يَمْدُدْنَ سره دے (اى يَمْدُدْنَ بِأَيْدِيْهِنَّ اِلَيْهَا) (لاسونه ئے غوږونو ته اوگده كړل)۔

**فوائد الحديث :** (۱) پدے حديث باندے هغه علماؤ استدلال كړے چه د زنانه مخ او لاسونو ته عورت نهٔ وائي ځكه دلته بلال او ابن عباس د زنانو غوږونو ته كتلى دى۔

(۲) حديث كښ راغلى دى (لَا تُنْفِقُ امْرَأَةٌ شَيْئًا مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا اِلَّا بِاِذْنِ زَوْجِهَا) (صحيح الجامع الصغير ۱۷۸۹) چه ښځه به د خاوند د اجازے نه بغير د هغه د كور نه هيڅ شے نهٔ خرچ كوى) او دلته حديث كښ زنانو بغير د اجازت د خاوندانو نه صدقه كړيده ځكه خاوندان ئے جدا ځائے كښ وو۔ نو ددے جواب دا دے چه دا حديث دلالت په جواز كوى چه كله مال د زنانه خپل ملكيت وى او حديث د منع دلالت كوى په خلاف اولىٰ باندے۔ ۲- يا دا چه حديث د منع محمول دے په عطيه عرفيه باندے چه پردو خلقو ته وركولے شى ځكه بيا پدے سره د زوجيت زندگى خرابيږى او هرچه صدقه ده نو هغه جائز ده د خپل مال نه۔ ۳- يا دا چه دلته د صدقه نه مراد فرضى زكاة دے او جواز په نفلى صدقه كښ دے۔ ٤- بعض وائي : حديث د منع د احاديث الجواز سره مقاومت نشى كولے نو تطبيق او جمع ته ضرورت نشته۔

(۳) حديث دليل دے چه د اختر مونځ ته به زنانه هم حاضريږى اگركه مونځ نهٔ كوى۔

---

۱۴۳۰ (۵) - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ صَلّٰى يَوْمَ الْفِطْرِ رَكْعَتَيْنِ لَمْ يُصَلِّ قَبْلَهُمَا وَلَا بَعْدَهُمَا.

**ترجمه :** او ابن عباس ﷺ نه نقل شوى دى چه "نبى ﷺ د وړوكى اختر په ورځ دوه ركعاته مونځ اوكړو چه د هغے نه مخكښ او روستو ئے هيڅ (نفل) مونځ اُونهٔ كړو"۔

**تشريح :** په حديث كښ دا مسئله ده چه د اختر په ورځ به په عيدگاه او د مانځه په ځائے كښ نوافل نهٔ كوى، نهٔ قبل الصلاة او نهٔ بعد الصلاة او هرچه كور دے نو په كور كښ روستو د مانځه نه نوافل كول جائز دى۔ دليل دا دے چه على ﷺ يو سړے په عيدگاه كښ اوليدو چه د اختر د مانځه نه مخكښ ئے مونځ كولو، هغه منع كړو، نو دهٔ اووئيل : اے امير المؤمنين ! ما ته پته ده چه الله په مانځه باندے عذاب نهٔ وركوى۔ (نو ته ځنگه ما منع كوے؟) نو على ﷺ اوفرمايل : تا له الله عذاب په مانځه نهٔ دركوى بلكه پدے وجه ئے دركوى چه ته د سنت خلاف كوے۔ شرح المجمع وضياء النور ص (۱۲۷) او دغه شان جواب د حذيفه ﷺ نه هم نقل دے چه د ماز يگر مانځه

نـه ډیر روستو (ناوخته) یو سړي مونځ کولو حذیفةؓ منع کړو نو هغه سړي اووئیل : آیا ما له به الله پـه مـانـځـه عـذاب راکـوی؟ حـذیفـه ورتـه اوفرمایل : تا لـه الله پـه مخالفت د سنت عذاب درکوی۔(کذا فی فوائد ابی الشیخ – عمدة القاری: ۸/٦)

○ مسند دارمی (۱/۱۲٦) مصنف عبد الرزاق (۵۲/۳) او سنن کبریٰ للبیهقی (۲/٤٦٦) کښې په صحیح سند سره د سعید بن المسیبؒ نه نقل شویدی چه ده یو سړے اولیدو چه د صبا د راختلو نه پس ئے ډیر مونځونه کول هغه منع کړو۔ سړي اووئیل : اے ابو محمد ! آیا ما له الله په مانځه کولو عذاب راکوی ؟ هغه ورته اوفرمایل : نهٔ ! لیکن تا له د سنت په خلاف کولو عذاب درکوی۔ (ارواء الغلیل ۲/۲۳٦) التمهید (۲۰/۱۰۵)

○ او پـه کـور کـښې کـولو دپاره دلیل حدیث د ابو سعید الخدری ﷺ دے : (كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَا يُصَلِّيْ قَبْلَ الْعِيْدِ شَيْئًا فَإِذَا رَجَعَ إِلَى مَنْزِلِهٖ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ) (سنن ابن ماجه ۱/٤۱۰) رقم (۱۲۹۳) ومسند احمد مع الفتح الربانی ٦/۱۲۸) وصحیح ابن خزیمة (۱٤٦۹) والارواء (۳/۱۰۰ بلوغ المرام) (اسناده حسن) (رسول الله ﷺ به د اختر مانځه نه مخکښې هیڅ مونځ نه کولو خو چه کله به کور ته واپس شو نو دوه رکعاته به ئے کول) او پدے خبره کښې جمع د تولو دلائلو ده۔ راجع سبل السلام (۱/۵۹)

**اختلاف المذاهب** : ۱ – امام احمد بن حنبل فرمائی : د امام او مقتدی دواړو دپاره د اختر د مـانـځـه نـه مـخکښې او روستو نفل مکروه دی برابره ده که مونځ کونکے په عیدگاه کښې وی او که په مسجد کښې او دا مذهب د ابن عباس، ابن عمر، او ډیرو صحابه کرامو دے۔

۲ – امام مالك فرمائی : په عیدگاه کښې نفل قبل الصلاة او بعد الصلاة دواړه د امام او مقتدی دپاره مکروه دی الا دا قول د اکثرو حنابلو دے۔ او که په مسجد کښې وی نو پدے کښې د هغه نه دوه روایته دی یو دا چـه مـنـع دی لکه د عیدگاه په شان۔ دویم دا چه مخکښې د ناستے نه او روستو د مانځه نه جائز دی۔

۳ – امام شافعیؒ د مقتدی او امام فرق کوی۔ د امام دپاره بعد الحضور نوافل قبل الصلاة او بعد الصلاة دواړه مکروه دی ځکه دا په ډیر اهم کارونو مشغول وی او دا د سنت مخالفت هم دے۔ بله دا چه که امام په مانځه مشغول شی نو د مقتدیانو به دا وهم راشی چه دا کار ګنئے سنت دے۔ او هرچه مقتدی دے نو هغه دپاره مطلقاً قبل الصلاة او بعد الصلاة چه خطبه نهٔ اوری نوافل کول جائز دی۔ (المجموع ۵/۱۲) حلیة العلماء باب صلاة العیدین ۲/۳۰۲)

٤ – احناف وائی : قبل الصلاة مطلقاً مکروه دی او بعد الصلاة په کور کښې جائز دی نهٔ په عیدگاه کښې۔

**دلائل :** د احمدؒ د مذهب دپاره دليل دا حديث الباب دے چه نبي ﷺ به قبل الصلاة او بعد الصلاة مونځ نۀ کولو او معنیٰ دا ده چه په عيدګاه کښې به ئے نۀ کولو۔ حافظ ابن حجرؒ فرمائي : حاصل دا دے چه د اختر مونځ نه مخکښې او روستو سنت نۀ دي ثابت او هرچه مطلق نفل دي نو پدے کښې په خاص دليل سره منع نۀ ده ثابته مګر هله چه په وخت د کراهت کښې وي په ټولو ورځو کښې نو بيا مکروه دي انتهیٰ۔

علامه شوکانيؒ فرمائي : دا صحيح کلام دے او په مقتضی د دلائلو برابر روان دے۔ ځکه پدے باب کښې داسے څه دليل نشته چه مطلق نفل منع کړي او نۀ هغه څه منع کړي چه هغے باره کښې خصوصي دليل راغلے وي لکه تحية المسجد شو چه کله د اختر مونځ په مسجد کښې کوي۔ آؤ په التلخيص الحبير کښې يو حديث د ابن عمر په حواله د مسند احمد مرفوعاً راغلے دے (لَا صَلَاةَ يَوْمَ الْعِيْدِ قَبْلَهَا وَلَا بَعْدَهَا) که دا حديث صحيح وي نو بيا به دا دليل د مطلقاً منع شي ځکه دا نفي په قوت د نهي کښې ده ليکن ددے سند کتل پکار دي۔ انتهیٰ۔ نيل الاوطار (۳۷۳/۳)

او ددے په شان حديث د عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده نه هم ثابت دے۔ (المغنی ۲۸۲/۳)

نو ددے نه هم کيدے شي چه عيدګاه کښې نفي د مانځه مراد وي۔ وجه دا ده چه د نبي ﷺ نه په کور کښې دوه رکعاته صحيح ثابت دي۔ او په عيدګاه کښې قبل الصلاة او بعد الصلاة مونځ ځکه منع شو چه يو خو پدے کښې اقتداء د عمل د رسول الله ﷺ او د هغه د صحابه کرامو ده او دويم دا چه مونځ کونکے په مانځه او په انتظار د مانځه کښې مشغول دے او دا اهم دے نو نور مونځونو کولو ته حاجت نشته او هرچه ماسویٰ د عيدګاه ده نو هلته دا امور نشته۔ او د نفل مانځه اجازه شريعت هر وخت ورکړے ده سویٰ د اوقات ثلاثو نه۔ (المغنی ۲۸۳/۳)

---

۱۴۳۱ (٦) - وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ، رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: أُمِرْنَا أَنْ نُخْرِجَ الْحُيَّضَ يَوْمَ الْعِيْدَيْنِ، وَذَوَاتِ الْخُدُوْرِ، فَيَشْهَدْنَ جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِيْنَ وَدَعْوَتَهُمْ، وَتَعْتَزِلُ الْحُيَّضُ عَنْ مُصَلَّاهُنَّ، قَالَتِ امْرَأَةٌ : يَارَسُوْلَ اللّٰهِ! إِحْدَانَا لَيْسَ لَهَا جِلْبَابٌ؟ قَالَ: «لِتُلْبِسْهَا صَاحِبَتُهَا مِنْ جِلْبَابِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** او اُمِّ عطيه رضی الله عنها فرمائي: مونږ ته رسول الله ﷺ دا حکم کړے چه مونږ د اختر په ورځ حائضے زنانه (يا بالغے) او پرده نشينے جينکۍ (عيدګاه ته) راوباسو، چه د مسلمانانو جماعت او د هغوي دعاګانو ته حاضرے شي، او کومے زنانه چه حائضے دي هغوي به د عيدګاه نه

جدا وي، يوې زنانه اووئيل يارسول الله ! چه زمونږ د يوې زنانه پړونے نهٔ وي؟ (نو څهٔ به كوي؟)
نبي ﷺ اوفرمايل : "ددې ملګرې دې، دې ته پړونے وركړي!". (بخاري ومسلم)

**تشريح : الْحُيَّضَ** : جمع د حائض ده هغه زنانو ته وائي چه في الحال ئې حيض راغلے وي۔

**وَذَوَاتِ الْخُدُوْرِ** : خدور جمع د خِدر ده دا هغه پردې ته وائي چه په طرف د كوټه كښې وي او پيغله د هغې نه شاته كيني۔ نو پدې كښې به باكره جينۍ كيناستله او هغې ته به ئې مخدره وئيله۔ او خدر كوټنۍ ته هم وائي۔ په يو روايت كښې دي : تخرج العواتق وذوات الخدور ۔

عواتق جمع د عاتق ده۔ هغه پيغله چه اُوس بلوغ ته رسيدلې وي يا بلوغ ته نزدې وي۔

**وَتَعْتَزِلُ الْحُيَّضَ** : دا خبر دے په معنى د امر دے يعني حائضې زنانه دې جدا شي د عيدګاه نه او مونځ ته دې نهٔ نزدې كيږي۔ علامه خطابيؒ فرمائي : تمامو زنانو ته نبي ﷺ عيدګاه ته د تلو حكم اوكړو، دے دپاره چه دكومو زنانو څه عذر نهٔ وي نو هغوي به مونځ اوكړي او د كومو زنانو چه څه عذر وي نو هغوي ته به د مانځه او دعا بركت اورسي" نو پدې كښې خلقو ته ترغيب وركړے شويدے چه مونځونو كښې شريك شي او د وعظ او نصيحت او ذكر مجالسو كښې حاضر شي او د علماء او صلحاؤ قرب حاصل كړي دے دپاره چه د هغوي د مجلس بركت ورته اُورسي۔

دا حديث دليل دے چه دا اختر مونځ د اسلام د ښكاره شعائرو نه دے لهذا دے مانځه ته حاضريدل واجب دي۔

**قَالَتِ امْرَأَةٌ** : په روايت د بخاري او مسلم كښې راغلي دي چه دا تپوس كونكې زنانه خپله ام عطيه ده۔

**جِلْبَابَ** : دا هغه څادر دے چه زنانه پرې ځان پټوي كله چه بهر ته اووځي۔ (پړونے)۔

**لِتُلْبِسْهَا** : دا د باب إفعال نه دے يعني خپلې ملګرې ته دې يو پړونے وركړي چه هغه پكښې د اختر مانځه ته لاړه شي نو دا حكم د استحباب او ترغيب دپاره دے چه اے زنانه ! لكه ته چه څنګه د اختر مانځه ته په تلو كښې خير او بركت د هغه مجلس حاصلوې نو تا له پكار دي چه ستا ملګرې هم محرومه نشي هغې له هم د تلو اسباب برابركړه څادر پړونے برقع وركړه چه دے بركاتو ته حاضره شي۔ نو دا حديث دليل دے چه زنانه كه ځوانې وي او كه زړې وي د اخترونو مونځونو او عيدګاه ته حاضريدے شي او دا كار ورله مستحب دے۔ ترڅو پورې چه زنانه په عدت كښې نهٔ وي او يا دهغې په وتلو كښې فتنه نهٔ وي او پدې وتلو كښې به د الله د حدودو لحاظ ساتي لكه عطر او خوشبوئي او ميك اَپ شكپ به نهٔ كوي۔

او پدې كښې رد دے په مذهب د احنافو چه هغوي عيدينو ته د پيغلو او ځوانو جينكو وتل

مکروه گنړی لکه ابن همامؒ وائی : (وَتَخْرُجُ الْعَجَائِزُ لِلْعِيدِ لَا الشَّوَابُّ) (بوډئ گانې وتې شي نۀ ځوانې) او حال دا چه حدیث کښې هیڅ فرق نۀ دے راغلے۔

بیا پدے حکم کښې **اصحاب المذاهبو** ډیر اختلافات کړیدی (۱) یو دا چه دا وتل د زنانو اخترونو ته مستحب دی او امر د استحباب دپاره دے او دوی فرق د بوډئ او ځوانې نۀ کوی او دا قول د ابوحامدؒ دے د حنابلو نه او د جرجانیؒ دے د شوافعو نه او دا ظاهر دے د اطلاق د امام شافعیؒ نه۔ ۲- قول ثانی : تفرقه بین الشابة والعجوز۔ دا مذهب د جمهورو شوافعو دے۔ او دا مذهب د احنافو هم دے کما مرّ۔ ۳- قول ثالث : دا خروج جائز دے او مستحب نۀ دے مطلقاً۔ او دا ظاهر کلام د امام احمدؒ دے کوم چه ابن قدامةؒ په المغنی (۲/۳۷۵- ۳۷۶) کښې نقل کړیدے۔

٤- قول رابع : دا خروج مکروه دے۔ دا امام ترمذیؒ د سفیان الثوریؒ او ابن المبارکؒ نه نقل کړیدے او دا قول د مالك او ابویوسفؒ دے۔ او ابن قدامةؒ د نخعیؒ او یحیی بن سعید الانصاریؒ نه نقل کړیدے۔ ۵- الخامس : په زنانو باندے دا حق دے چه اخترونو ته به اوځی۔ دا قول قاضی عیاضؒ د ابوبکر او علی او ابن عمرؓ رضی الله عنهم نه نقل کړیدے۔

ابن ابی شیبه د ابوبکر او علی رضی الله عنهما نه نقل کړیدی چه وائی : (حَقٌّ عَلٰى كُلِّ ذَاتِ النِّطَاقِ الْخُرُوْجُ إِلَى الْعِيْدَيْنِ) (هر کمربند والا زنانه باندے دا حق دے چه اخترونو ته به اوځی) حافظ وائی : دا حدیث مرفوع هم نقل دے باسناد لا بأس به۔ اخرجه احمد وابویعلی وابن المنذر۔ او حق کښې دوه احتماله دی یو وجوب او دویم مؤکد استحباب۔ انتهیٰ۔ پدے مذاهبو کښې د کراهت مذهب غلط دے۔ لکه علامه شوکانیؒ فرمائی : (وَالْقَوْلُ بِكَرَاهَةِ الْخُرُوْجِ عَلَى الْإِطْلَاقِ رَدٌّ لِلْأَحَادِيْثِ الصَّحِيْحَةِ بِالْآرَاءِ الْفَاسِدَةِ، وَتَخْصِيْصُ الشَّوَابِّ يَأْبَاهُ صَرِيْحُ الْحَدِيْثِ الْمُتَّفَقِ عَلَيْهِ وَغَيْرِهِ انتهى) (مطلقاً د زنانو په وتلو باندے د کراهت قول کول صحیح احادیث په فاسدو آراء باندے رد کول دی او خاصکر ځوانو جینکو دپاره وتل مکروه گنړل د صریح متفق علیه وغیره حدیث نه مخالف دی۔ انتهیٰ۔(بلوغ الامانی ٦/۱۲۷)

بیا د کراهت دپاره استدلال کول په قول د عائشه رضی الله عنها چه هغه فرمائی : که رسول الله ﷺ د زنانو د راپیدا کړو کارونو زمانه موندلے وے نو ضرور به ئے د دوی د وتلو نه منع کړے وے لکه څنگه چه د بنی اسرائیلو زنانه منع شوے وے۔- دا استدلال د اته وجوهاتو نه مردود دے چه هغه وجوه علامه ابن حزم په المحلی (٤/۲۰۰) کښې او علامه حافظ په فتح الباری کښې تفصیلاً ذکر کړیدی۔ یو دا چه مقصود د عائشهؓ دا دے چه زنانه په غلطه طریقه خروج کوی، زینت او فتنه د هغې نه پیدا کیږی نو عائشه په دے باندے رد کوی او کله چه زنانه په حیاء او پرده

كښې بغير د زينت ښكاره كولو نه سيده ساده انداز كښې عيدگاه ته حاضرېږي چه هغې كښې د زنانو جدا انتظام وي يا مسجد كښې بېل ځائے وي نو حاضريدل بالكل جائز دي۔

۲- ابن حزمؒ فرمائي : د عائشےؓ د قول نه كراهت نۀ ثابتيږي ځكه دے خپل گمان ذكر كړيدے كه چرته داسے وے نو داسے به شوي وے ځكه (لَوْ) (كچرته) كلمه په احكام شرعيه ؤ كښې كار نۀ وركوي۔ ۳-الله تـه خو د مخكښې نه معلومه وه چه زنانه به دا كار كوي نو هغه ولے نبي ﷺ ته وحي نۀ كوله چه نبي ﷺ د مخكښې نه منع كړے وے هركله چه هغه منع اونكړه نو دليل شو په جواز۔ ٤- دا پته نۀ لگي چه په زمانه د عائشےؓ كښې زنانو څه پيدا كړي وو ظاهر دا دے چه خوشبوئي لگول او زينت او تبرج الجاهليت سره راوتل وو نو دا خو تولو زنانو نۀ وو پيدا كړے نو پكار ده چه د بعضو په باره كښې دا حكم شي نۀ د تولو زنانو دپاره نو تولے زنانه ددے عظيم خير نه محرومول بغير د الله او د رسول د حكم نه صحيح نۀ دي۔ نو پدے سره د تولو زنانو چه هغوي اگركه په ساده انداز كښې راوځي منع كول نۀ ثابتيږي۔

۵- دلرنگه د نبي ﷺ په زمانه د بعضو خلقو نه زنا هم واقع شوے وه او ددے نه لوئي فساد او فتنه نشته او سره ددے نه بيا هم نبي ﷺ سړي او زنانه مساجد او عيدگاهونو ته د راتلو نه منع نۀ كړے۔

٦- هركله چه ددے فساد په وجه زنانه د مسجد نه منع كيږي نو پكار ده چه د بازار نه هم منع شي نو دا باطل پرست ولے زنانه د نورو طرقو نه نۀ منع كوي۔بلكه امام ابو حنيفه رحمه الله خو د زنانه دپاره يواځے سفر كول هم مباح كړيدي او په دشتو او بيابانونو كښې گرځيدل په مسافت د دوه نيمو ورځو او دا ئے ورله مكروه نۀ دي گنړلي۔

۷- مقلدينو د عائشےؓ خلاف هم كړے او د نص خلاف هم ځكه چه عائشهؓ په دے قول سره د زنانو په منع كولو قائل نۀ وه او نۀ ئے داسے وئيلي دي چه (اِمْنَعُوْهُنَّ لِمَا اَحْدَثْنَ) (دا زنانه ددے زينت او خوشبوئي استعمالولو په وجه منع كړئ) بلكه هغے صرف دا خبر وركړے چه كه نبي ﷺ ژوندے وے نو منع به ئے كړے وے ليكن هغه خو منع نۀ ده كړے لهذا مونږ هم وايو چه منع نشته او نۀ كراهت نو مقلدينو ته هيڅ حاصل نشو مگر خلاف د عائشےؓ او خلاف د سننو۔ لهذا د عائشےؓ قول د دوي د قول دپاره ثبوت نشو۔ نو دا خبره كول چه عائشےؓ ددے نه منع كړيده په هغے باندے دروغ شو۔(المحلي ۱۳۳/۳)

بعضو پكښې د نسخ دعوي كړيده چه دا حكم منسوخ دے لكه دا كار طحاويؒ كړے، او بيا د هغه نه مقلدينو شراحو نقل كړيدے۔ وائي چه دا اجازت په ابتداء د اسلام كښې وو چه مسلمانان كم وو نو نبي ﷺ د زنانو په وتلو حكم اوكړو چه د دشمنانو په نظر كښې زيات ښكاره شي او

هغوی د مسلمانانو نه اوبریږی۔ او هرچه نن صبا زمانه ده نو دے ته ضرورت پاتے نۀ دے۔
**جواب** : دا هسے خبره ده، کفار په زنانو باندے یرول د غیرت خلاف خبره ده۔ "خلق توره په ښځو نۀ وهی"۔ او دا د امام طحاویؒ هسے یو خیالی گمان دے او نسخ په احتمال او گمان باندے نۀ ثابتیږی۔ بله وجه دا ده چه د حدیث د ابن عباسؓ نه معلومیږی چه ابن عباسؓ د زنانو وتلو ته حاضر شوے او ابن عباسؓ وړوکے وو او دا پس د فتح د مکے نه وو۔ او دغه زمانه کښ اسلام قوی، شوے وو نو د طحاویؒ مراد پوره نۀ شو۔ ○ بله دا چه د طحاویؒ دغه علت د صریح حدیث مخالف دے چه په دے حدیث کښ علت دا ذکر شو چه خیر او دعاگانو د مسلمانانو ته به حاضری شی او ددے ورځے برکت به ورته حاصل شی۔ فتدبر۔ نو پیغمبری علت پریخودل او د ځان نه ۔ مذهب د تقویت دپاره علت راویستل د حدیث ورانول دی۔
صحیح دا ده چه د زنانو دپاره عیدینو ته حاضریدل بالکل جائز بلکه کللك سنت دی نبی ﷺ په کښ تشدد کړے۔ امام بخاریؒ داسے دلیل نیولے چه (هذا عیدنا اهل الاسلام) الفاظ زنانه او سړو دواړو ته شامل دی۔ نو ښځے هم اختر ته وتلے شی خو په خپل خاص شرطونو سره لکه حدیث کښ دی : (وَلْيَخْرُجْنَ تَفِلَاتٍ)(ساده انداز کښ دے اووځی چه خوشبوئی ئے نۀ وی لګولی، او کله چه فتنه پردازه زنانه وی نو د هغے دپاره علیٰ کل حال وتل صحیح نۀ دی۔
دا هم هغه مسئله ده چه فقه حنفی پکښ د صحیح حدیث مخالف راغلے ده۔
۲- حائضه زنانه د دعاء او د ذکر الله نه نۀ ده منع شوے۔
۳- عیدګاه د مسجد په حکم کښ ده ددے وجه نه حائضه مسجد ته نشی تلے نو دغه شان عیدګاه ته به هم نۀ داخلیږی بلکه جدا ځائے کښ به وی۔
٤- د اختر ورځے فضیلت ثابت شو او دا په اجابت د دعاء کښ د امید ورځ ده۔(توضیح الاحکام ۲/۳۸۸)
٥- حدیث دلیل دے چه زنانو دپاره د اختر مونځ بهتر دے اگرکه په کور کښ وی۔ مګر راوتل ضروری دی او ددے دپاره به په عیدګاه کښ اهتمام کولے شی۔

---

۱٤۳۲ (۷) - وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ اَبَابَكْرٍ دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا جَارِيَتَانِ فِيْ اَيَّامِ مِنًى تُدَفِّفَانِ وَتَضْرِبَانِ، وَفِيْ رِوَايَةٍ: تُغَنِّيَانِ بِمَا تَقَاوَلَتِ الْاَنْصَارُ يَوْمَ بُعَاثٍ، وَالنَّبِيُّ ﷺ مُتَغَشٍّ بِثَوْبِهِ، فَانْتَهَرَهُمَا اَبُوْبَكْرٍ، فَكَشَفَ النَّبِيُّ ﷺ عَنْ وَجْهِهِ، فَقَالَ: « دَعْهُمَا يَا اَبَابَكْرٍ! فَاِنَّهَا اَيَّامُ عِيْدٍ» - وَفِيْ رِوَايَةٍ:« يَا اَبَا بَكْرٍ! اِنَّ لِكُلِّ قَوْمٍ عِيْدًا وَهٰذَا عِيْدُنَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: او عائشه رضى الله عنها فرمائي: د مِنیٰ په ورځو کښې (کومو ورځو کښې چه حُجاج په مِنیٰ کښې قيام کوي چه هغې ته ايام تشريق وائي) ابوبکر صديق د هغې کورته راداخل شو او د هغې سره دوه جينکئ وې، دف (تمبل) ئې وهلو، په يو روايت کښې دي : جينکو (هغهٔ اشعار) وئيل چه انصارو د بُعاث (د جنګ متعلق) وئيلی وو، او نبي ﷺ (په دغه وخت کښې) کپړه اغوستې وه (پروت وو) نو ابوبکر صديق دا دواړه جينکئ اُورټلې، (منع ئې کړلې) نو رسول الله ﷺ خپل مخ مبارك ښکاره کړو وې فرمايل : "اې ابوبکر! دا پريږده (څهٔ ورته مهٔ وايه!) ځکه دا ورځې د اختر (يعنې د خوشحالئ) ورځې دي"۔ او په يو بل روايت کښې دي : چه رسول الله ﷺ اوفرمايل :"ابوبکر! د هر قوم يو اختر وي او دا زمونږ اختر دې"۔ (بخاريٌ ومسلمٌ)

**تشريح :** **تُدَفِّفَانِ :** دُف چمبې او تمبل وهلو ته وئيلې شي۔

**يَوْمَ بُعَاثٍ :** بُعاث يو ځائے دې چه د مدينې نه د دوه شپو په فاصله کښې دې او دا د اَوس قبيلې يوه قلعه وه، بعض وائي : دا يو ځائے دې په ديار بني قريظه کښې چه په هغې کښې د هغوی مالونه وو۔ او يوم بعاث مشهور جنګ وو د جاهليت د جنګونو نه چه د اوس او د خزرج قبيلې ترمينځ راغلې وو او په دې کښې ډير زيات قتلونه شوي وو او په دې کښې اوس قبيلې غلبه کړې وه په خزرج باندې او دا جنګ د يو سل شلو (۱۲۰) کالو پورې وو، وخت په وخت به تازه کيدو، تردې چه اسلام راغلو نو الله د نبي ﷺ په برکت سره د هغوی ترمينځ الفت پيدا کړو لکه دا ابن اسحاق وغيره ذکر کړيدي۔

**تُغَنِّيَانِ:** (اشعار ئې وئيل) مطلب دا دې چه جينکو هغه اشعار وئيل چه په هغې کښې د شجاعت او بهادرئ مضمون وو او انصارو چه په بعاث کښې کوم جنګ کړې وو د هغې متعلق ئې وئيل لکه چه دا د بهادرانو عادت دې چه د جنګ په موقع کښې په خپل شجاعت او بهادرئ باندې مشتمل اشعار په ډير فخر سره وائي، نو دې جينکو د عربو هغه اشعار لوستل۔

او د جينکو دا اشعار د فواحش او حسن او عشق په هغه مضامينو مشتمل نهٔ وو چه د هغې لوستل معيوب او ممنوع وي بلکه دا د جنګ او قتال، د کارنامو او د معرکې په بهادرانه داستانونو او د ميدان جنګ په ګرماګرم کهانيانو باندې مشتمل وو چه د هغې لوستلو سره په اشاعتِ دين کښې مدد ملاويدو پدې طريقه چه دوی مومنانو ته د کافرانو سره په جهاد کولو ترغيب ورکولو ورنه د هغه جينکو څه مجال وو چه د عائشه صديقه په موجودګئ کښې او د رسول الله ﷺ په مخ کښې هغوی ناکاره او معيوب اشعار لوستلو جرأت کړې وې۔ معلوميږی چه دا بهادرانه او د جنګ متعلق تاريخي اشعار وو چه د هغې لوستل د شريعت خلاف نهٔ وو۔

لکه د بخاري په روايت کښې د "تغنيان" لفظ نه روستو دا الفاظ هم راغلي دی : (وَلَيْسَتَا بِمُغَنِّيَتَيْنِ) يعني دے جينکو چه دا اشعار لوستل نو د دوی پيشه او کسب اشعار لوستل او ګانے وئيل نۀ وو چه څوك په کښې زيات ښه اشعار او ګانه وائي او د ګانو او شعر ګوئي په فن کښې مشهوره وی او د خپلو اشعارو په ذريعه د فاسدو خيالاتو او نفساني خواهشاتو د راپيدا کولو سبب جوړ شي او د فتنے او فساد باعث شي بلکه په ساده انداز کښې ئے په شرافت سره اشعار لوستل۔ نو ددے نه د ګانو بجانو والا استدلال نۀ صحيح کيږی۔

فَانْتَهَرَهُمَا أَبُوبَكْرٍ: ددے تفصيل په بل روايت د بخاري کښې داسے دے چه ابوبکر صديق هغوی ته اوفرمايل: چه د رسول الله ﷺ په کور کښې تاسو د شيطان مزمار (باجه) وهئ؟ ګويا کښې ابوبکر صديق هغوی ته تنبيه ورکړه او ددے کار نه ئے منع کړے، او ددے جينکو باجے ته ئے شيطاني باجه اووئيله چه لکه څنګه شيطان په خپل کوشش سره د انسانانو عملي زندګی د نيکو کارونو نه اړوی او په بدو کارونو کښې ئے مشغول کوی نو دغه شان باجه هم انساني زړونه د الله د ياد نه اړوی او په لهوولعب او ناجائز خواهشاتو کښې ئے مشغول کوی۔ او ابوبکر صديق ﷛ چه په دے جينکو دا انکار اوکړو دا په دے وجه چه هغه د غناء او تنګ ټکور او لهو په باره کښې حديثونه اوريدلی وو او دا ګمان ئے وو چه نبی ﷺ تکيه لګولے ده او ددے جينکو ددے کار نه خبر نۀ دے نو څکه ئے انکار اوکړو حالانکه نبی ﷺ دا اشعار اوريدل خو ددے موقع (اختر) په مناسبت ئے ددے معمولي لهو اجازت ماشومانو جينکو ته ورکړو چه پدے کښې څه نقصان نۀ راځي۔ او دا د اسلام سماحت او فراخي ده۔

إِنَّ لِكُلِّ قَوْمٍ عِيدًا : ددے مطلب دا دے چه لکه څنګه د مخکنو امتونو او غير مسلمو دپاره د خوشحالئ او سرور او د اختر يوه خاص ورځ وی لکه د مجوسو دپاره ((نوروز)) يوه خاص ورځ ده چه په هغے کښې دوی خپل عيد (اختر) مناووی، دغه شان د مسلمانانو دپاره هم الله د خوشحالئ او سرور دوه ورځے مقرر کړيدی چه هغه وړوکے او لوئی اختر دے۔

او دا مشابهت صرف د تمثيل حد پورے دے او د هغوی د معتقداتو او افعالو سره مشابهت مقصود نۀ دے يعني ددے مطلب دا نۀ دے چه لکه څنګه غير مسلم د خپل عيد او خوشحالئ په ورځ غلط غلط کارونه کوی نو دغه شان مسلمان هم د اختر په ورځ غلط کارونه کولے شی۔ نۀ بلکه زمونږ په دين کښې به د اخترونو په ورځ د کفارو سره مشابهت نشی کولے لکه پدے ورځ څوك د چرګو اندے جنګوی، څوك فلمونه او فاحش کارونه کوی او څوك ډيګونه او ګانے بجائے غږوی حال دا چه دا په اسلام کښې حرام دی۔

## د حديث نه د اهل سماع غلط استدلال

ددے حديث نه اهل سماع ته زبردست غلط فهمی لگيدلے ده، ددے حديث نه د رباب او ستار د ساز سره قوالي وغيره مباح او د هغے اوريدل جائز گنړی، حالانکه قطعاً د حديث مفهوم او مطلب دا نۀ دے کوم چه اهل سماع مراد کړے بلکه که د انصاف په نظر سره اوکتلے شی او د تعصب او هټ دهرمیٔ نه کار وانخستے شی او صاف طور سره د حديث مفهوم ته اوکتے شی نو هغه دا دے چه " ابوبکر صديق ﷺ دغه جينکیٔ اشعار وانديے د خوش آوازیٔ او دف (تمبل) نه پدے وجه منع کړے چه د هغه په نزد گانا بجانا (اشعار واندے خوش آوازی کول) مطلقاً معيوب او ممنوع وو، دارنګه هغه دا گمان اوکړو چه رسول الله ﷺ دا جينکیٔ ددے کار نه پدے وجه ندی منع کړی چه هغه اوده دے او هغه ته دا ندی معلوم چه دلته څه کيږی لګيا دی؟ حالانکه ابوبکر صديق ﷺ ته دا معلوم نۀ وه چه رسول الله ﷺ پدے ورځ باندے لږ شان معمولی طور سره د اشعار ووئيلو اجازت ورکړے وو چه هغه په حقيقی گانو بجانو او لهو او لعب کښې شمار نۀ وو۔

لهذا ددے حديث نه صرف دومره قدر ثابتيږی چه د اختر په ورځ يا د بلے يوے خوشحالیٔ مثلاً واده او نکاح په موقعه خوشحالی مناوول مباح دی او په هغے کښې د ماشومانو جينکو تمبل وهل او جائز اشعار لوستل مباح دی۔ او دا هم هله چه د شريعت د حدودو نه لاندے وی۔ نو ددے نه گانا بجانا او سماع او قوالی او گند بلا د مباح والی اثبات ډير غلط کار دے۔ او بل طرفته د منع دلائلو ته فکر نۀ کوی چه دا کارونه د منافقت علامه خودلے شويده۔ او دا گانے بجانے سماع او قوالی وغيره اوريدل او وئيل په څلور مذهبه ناروا او حرام کار دے۔

حافظ په فتح الباری کښې فرمائی : پدے حديث باندے يو جماعت د صوفياؤ استدلال کړے چه غناء (ټنګ ټکور) او د هغے اوريدل په آلاتو او غير آلاتو سره جائز دے ليکن ددے استدلال د ترديد دپاره د عائشے رضی الله عنها پدے قول سره تصريح کافی ده چه فرمائی : (وَلَيْسَتَا بِمُغَنِّيَتَيْنِ) (يعنی دا جينکیٔ گانے بجانے والا او د دمو په شان خوش آوازی کونکے نۀ وے) نو عائشهٔ د هغوی نه نفی د حقيقی غناء اوکړه ځکه غناء په عربی لغت کښې آواز پورته کولو او خوش آوازی کولو ته وائی۔ او حُدی خوانی ته هم وائی۔ او ددے ويونکی ته (مُغَنِّی) سرود ويونکے او گانا بجانا ويونکی ته وائی۔ بلکه مغنی هغه چا ته وائی چه پدے کښې ناز او نخرے کوی او د خلقو شوقونه راپورته کوی چه په هغے کښې تعريض وی فواحشو ته يا پکښې صراحةً فواحش وی نو دا قسم غناء چه په هغے کښې د زنانو د محاسنو او د شرابو وغيره صفت ذکر وی، ددے په حرمت کښې هيڅ قسم اختلاف نشته۔ ليکن ډير خير ته منسوب خلق چه په هغوی باندے

نفساني خواهشات غالبه وي د هغوي نه داسے کارونه او نخرے صادريږي لکه د ماشومان او ليونو په شان، په ناز او نخرو سره ګډاګانے او رقصونه کوي او د بعض خلقو بے حيائي خو دے درجے ته رسيدلي وي چه دا کارونه ئے د قربت او عمل صالح نه ګرځولي وي۔ او وائي چه دا کار بهترين حالات رامينځ ته کوي ليکن دا په حقيقت کښ دے وقوفو قول دے او د زندقت د آثارو نه دے۔ والله المستعان انتهیٰ۔

امام نوويؒ فرمائي : د علماؤ په غناء کښ اختلاف دے۔ د اهل حجازو نه يو جماعت ددے په اباحت قائل دی او دا يو روايت د مالکؒ نه دے او ابوحنيفةؒ او اهل العراقؒ ديته حرام وائي او په مذهب د شافعيؒ کښ دا مکروه دی او دا مشهور مذهب د امام مالکؒ دے۔ د جواز قائلين پدے حديث دليل نيسي ليکن نور ورته جواب ورکوي چه دا غناء په باره د شجاعت، قتل او جنګي مهارت وغيره کښ وه چه په هغے کښ څه فساد نشته په خلاف د هغه غناء نه چه مشتمل وي په هغه خبرو چه نفسونه په شر او قبيح کارونو باندے برانګيخته کوي۔ قاضي عياضؒ وئيلي دی : د دواړو جينکو غناء د جنګي اشعارو او په بهادرئ باندے د فخر او فتح او غلبے په باره کښ وه او پدے سره جينکئ په شر نۀ راپورته کيږي او د دوی دا اشعار وئيل د هغه غناء نه شمار نۀ وو کوم چه مختلف فيه ده۔ بلکه دا خو صرف په اشعار وئيلو باندے آواز پورته کول وو، ددے وجه نه عائشہؓ اوفرمايل : چه دا دواړه جينکئ سرود ويونکے نۀ وے يعني دا ګانے او اشعار وئيل د دوی عادت نۀ وو لکه څنګه چه دمے دا کار کوي چه شوقونه او عشق او فواحش او بنائست وغيره په خپلو اشعارو کښ ذکر کوي چه پدے سره خلق په فتنه کښ اچوي او عرب نفس اشعار لوستلو ته غناء وائي او دا هغه مختلف فيه غناء نۀ ده، بلکه دا مباح ده او صحابه کرامؓ د عربو غناء (اشعار لوستل) چه هغه صرف ترنم او په اشعارو خوش آوازي وي جائز ګنړلے ده او دارنګه هغوي حُدی خواني د نبیﷺ په حضور کښ کړے ده نو کوم شے چه پدے طريقه وي هغه حرام نۀ دے۔ انتهیٰ کلام النوويؒ۔

ددے مسئلے تفصيل به په کتاب النکاح کښ راشي ان شاء الله تعالیٰ۔ وانظر نيل الاوطار في آخر ابواب السبق ودليل الطالب، وهداية السائل للعلامة صديق حسن خان البوفالي۔

**تنبيه:** په کوم رواياتو کښ چه د دف (تمبل) وهلو جواز راغلے دے په نکاح او اخترونو وغيره کښ نو ددے نه د نورو آلاتو اباحت نه معلوميږي لکه رباب او ستار او باجے وهل شو۔

**فوائد الحديث** : ۱- حديث دليل دے چه د اخترونو په شپو او ورځو کښ په جائز خواهشاتو سره په اهل وعيال باندے فراخي راوستل جائز دي چه د هغوي بدن له راحت اورسي

یائے روح تازه شی۔ اگرکه ددے نه اعراض کول اولیٰ دی۔

۲- په اخترونو کښې خوشحالی کول او د هغې اظهار کول د دین د شعار دے۔ ۳- لور باندے داخلیدل جائز دی کله چه هغه د خپل خاوند سره ناسته وی کله چه پدے کار عادت وی او پلار د خاوند په حضور کښې خپلې لور ته ادب ورکولے شی ځکه چه تادیب وظیفه د پلارانو ده۔

٤-د اهل خیر او پاکو خلقو مواضع او ځایونه په د لهو او لغو نه پاك ساتلے شی اگرکه په هغې کښې گناه نهٔ وی، مگر که هغوی اجازت اوکړی نو بیا جائز ده۔

۵- شاگرد چه کله د خپل شیخ په مجلس کښې یو مکروه او بد کار اُووینی نو په جلتئ سره به د هغې انکار کوی او فتوی به د خپل شیخ نه نهٔ اخلی بلکه دا د هغه ادب دے او د هغه د احترام رعایت دے او د هغه د منصب تعظیم دے۔ ٦- شاگرد د خپل شیخ په حضور کښې فتویٰ ورکولے شی کومه ئے چه د استاذ نه معلومه کړے وی۔ ۷- دلته دا احتمال هم شته چه ابوبکر صدیق دا گمان کړے وی چه نبی ﷺ اودهدے نو هسے نه چه د جینکو په آوازونو هغه رابیدار نشی نو لورته ئے غصه اوکړه دے دپاره چه دا ذریعه بنده شی۔

۸- حدیث دلیل دے چه د جینئ آواز اوریدل اگرکه وینځه نهٔ وی جائز دی ځکه نبی ﷺ په ابوبکرؓ باندے د هغې په اوریدو انکار اونکړو بلکه د هغه په انکار ئے انکار اوکړو۔ او دغه جینکئ همغه شان لگیا وے تردے چه عائشےؓ ورته په وتلو اشاره اوکړه لیکن دا یاد ساتل پکار دی چه دا جواز به هله وی چه کله د فتنے نه امان وی ۔

۹- د عربو دف (تمبل) ساده تمبل وو نو پدے کښې گونگری اچول او نور آوازونه د آلاتو یو ځائے کول او یا ډیکونه او تایفونه لگول صحیح نهٔ دی۔

۱۰- د منیٰ ورځو ته ئے ایام العید اوویل ددے نه دا ثابتیږی چه د صلاة العید قضاء پدے ورځو کښې جائز ده کله چه د چا نه د اختر مونځ فوت شی۔ هذا کله فی فتح الباری وبلوغ الامانی ٦/١٦٦)۔

۱۱- امام بخاریؒ د عیدنا اهل الاسلام نه دلیل نیولے دے چه د اختر مونځ په بانډو او ښاریو والا او سړی او زنانو ټولو باندے واجب دے ځکه چه دا ټول اهل الاسلام دی او په هر مسلمان دا مونځ لازم دے لهذا ددے دپاره هغه شرطونه نشته کوم چه مقلدینو د جُمعے دپاره وئیلی دی۔

---

۱٤۳۳ (۸) ـ وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَا يَغْدُوْ يَوْمَ الْفِطْرِ حَتّٰى يَاْكُلَ تَمَرَاتٍ، وَيَاْكُلُهُنَّ وِتْرًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** : او انس ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ به د وروكي اختر په ورځ (عيدگاه ته) سحر كښې نهٔ وتلو تردے چه يو څو كجورے به ئے اوخورے او دا به ئے تاك خوړلے))۔ (بخاريؒ)۔

**تشريح** : يعني نبي ﷺ بـه د وروكي اختر په ورځ عيدگاه ته د مانځه دپاره نه وتلو مگر هله چه تاك كجورے به ئے اوخوړلے يعني درے، پنځه، اووه يا كم او زياتے او دا كار به ئے هميشه كولو او دا خبره د تـولـو علماؤ ترمينځ اتفاقي ده ابن قدامه وائي : پدے كښې مونږ ته هيڅوك مخالف نه دے معلوم۔ (بلوغ الاماني٦/١٣٠) ددے حكمت علماؤ دا بيان كړے چه د مانځه نه مخكښې څكه خوراك پكار دے چه څوك دا گمان اُونكړي چه تر د اختر د مانځه پورے روژه ساتل به لازم وي۔ نو دا كارئے د سد الذريعه په طور كړے۔ ٢- بعض وائي : په روژه كښې امساك واجب وو او به اختر كښې كوجه كول واجب دي نو سحر وختي ئے روژه ماته كړه چه د الله په حكم عملي كولو باندے جلتي اوكړے شي، ددے وجه نه د مرغ د اندازے پورے ئے اونهٔ خوړے بلكه صرف د الله د حكم تعميل ته جلتي كول مقصد وو۔

او په كجورو خوړلو كښې حكمت دا دے چه دا د هغه زماني خوراك وو ٢- يا دا چه كجورو كښې خوږ والے وي او خوږوالے نظر قوي كوي خاص طور سره چه كله معده خالي وي نو د نظر د تقويت دپاره دا ډير تاثير لري لهذا د روژو په وجه چه كوم ضعف راغلے وي نو كجورے د خپل اثراتو په وجه هغه ختموي۔ شيخ عبد الله البسامؒ د دكتور قبانيؒ د كتاب ((الغذاء لا الدواء)) نه نقل كوي چه كجوره كښې ډير داسے غذائي مواد دي چه هغه د انسان دپاره ضروري دي۔ او پدے كښې رنگارنگ سكري (خواږه) مواد دي چه تقريباً اوويا فيصدو ته رسيږي۔ او دا سُكري مواد چه په كجوره كښې موجود دي نو دا ډير زر راخكلے شي او په آسانئ سره هضميږي او دائرك ويني او عضلاتو ته ورځي او هغے ته قوت وربخي۔ او د رسول الله ﷺ دا سنت جديد طب هم صحيح كړيدے څكه چه د روژه دار د جسم په خلاياو كښې چه كوم سُكر (شوگر) موجود وي هغه د روژے په وجه ختميږي او په وينه كښې نسبت د شوگر د خپل معتاد حد نه خكته كيږي ددے وجه نه دا ضروري ده چه مونږ په وخت د افطار كښې خپل اجسامو ته زيات مقدار شوگر اورسوو، او معده دا طاقت لري چه كوم مواد سُكري په كجوره كښې موجود دي هغه په نيمه گينټه كښې هضم كړي نو كله چه په وينه كښې د شوگر په وجه جوش پيدا شي او خلايه د جسم پوره شي نو بدن ته نشاط ملاويږي۔ (توضيح الاحكام ٢/٣٨٦)

٣- دارنگه خوږ والے د ايمان د تقاضا موافق دے، ددے وجه نه علماء كرامؒ ليكي : څوك چه په خوب كښې خواږه خوړل اوويني نو هغه ته به حلاوتِ ايمان (يعني د ايمان خوږوالے) نصيب

کیږي، دارنګه خوږ والې زړهٔ نرموي، ددې وجه نه بعض تابعینو به په هر خوږ شي سره افطار مستحب ګڼړلو لکه معاویه بن قرةؒ او ابن سیرینؒ وغیره به په شهدو سره افطار افضل ګڼړلو. خو دا د هغه چا په حق کښې ده چه ګجورې ورته ملاوېږي او که ګجورې نۀ وي نو بیا په هر څه سره روژه ماتول جائز دي.(بلوغ الامانی ٦/١٣٠)

او په تاك استعمالولو کښې حکمت دا دې چه په هر کار کښې د تاك رعایت ساتل الله ته غوره دي پدې وجه رسول الله ﷺ به په هر کار کښې د تاك لحاظ ساتلو.

---

١٤٣٤ (٩) – وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا كَانَ يَوْمُ عِيدٍ خَالَفَ الطَّرِيقَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** : او جابرؓ فرمائي :کله چه به د اختر ورځ شوه نو نبي ﷺ به (عیدګاه ته تلو کښې) لاره کښې فرق کولو. (بخاريؒ).

**تشریح** : حدیث نه ثابته شوه چه د اختر مانځه دپاره په یوه لاره تلل او په بله لاره راواپس کیدل د امام او مقتدي دواړو دپاره مستحب دي، دې دپاره چه د نبي ﷺ اقتداء اوکړې شي. او دا قول د اکثر اهل علمو دې. اوس ددې څه حکمت دې؟ نو پدې کښې مختلف اقوال دي. حافظ فرمائي چه شلو ته رسیږي: ١– دې دپاره چه دواړه لارې او دواړو لارو باندې موجود بنات او انسانان مونځ کونکي له د قیامت په ورځ د عبادت ګواهي اوکړي.

٢– یا دا چه په هره لاره باندې د الله د ذکر او تکبیرونو اظهار اوشي. ٣– یا دا چه منافقان او یهودیان غصه شي. ٤– یا دا چه مسلمانانان زیات ښکاره شي. ٥– یا په مختلفو خلقو سلامونه واچولې شي، صله رحمي اُوکړې شي، هغوی ته د نبي ﷺ په تیریدو تبرك ملاؤ شي او د هغوی حوائج پوره کړي.٦– یا په هره لاره کښې بیل بیل ملائك وي نو اراده ئې اوکړه چه هره دلـه دې بنده له د عبادت ګواهي اوکړي. ٧– یا تغیر الحال ته اشاره ده، دپاره د فال نیولو چه په یو لار کښې ګناهونه پریخودې شي او په بله لاره کښې انسان ته د الله رضا حاصله شوه. حافظ ابن قیمؒ فرمائي : صحیح دا ده چه ددې تولو وجوهو د وجه نه ئې دا کار کړې دې. آه. او که هره وجه وي خو اقتداء د رسول الله ﷺ پکښې ضرورده.

صاحب د ((المبدع)) ابن مفلح المقدسيؒ لیکي : ظاهر دا ده چه لاره بدلول په اخترونو کښې د یو خاص مقصد دپاره جائز شویدي نو پدې پورې به بل شے نښي پیوسته کولې. آه.

۱٤۳٥ (۱۰) - وعَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: خَطَبَنَا النَّبِيُّ ﷺ يَوْمَ النَّحْرِ فَقَالَ: «إِنَّ أَوَّلَ مَا يُبْدَأُ بِهِ فِي يَوْمِنَا هٰذَا أَنْ نُصَلِّيَ، ثُمَّ نَرْجِعَ فَنَنْحَرَ، فَمَنْ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدْ أَصَابَ سُنَّتَنَا، وَمَنْ ذَبَحَ قَبْلَ أَنْ نُصَلِّيَ، فَإِنَّمَا هُوَ شَاةُ لَحْمٍ عَجَّلَهُ لِأَهْلِهِ، لَيْسَ مِنَ النُّسُكِ فِي شَيْءٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

**ترجمه :** او براء بن عازب ﷺ فرمائی : مونږ ته د لوئی اختر په ورځ نبی کریم ﷺ خطبه اوونیله (په خطبه کښې ئے) اوفرمایل : «زمونږ پدے نن ورځ چه په اول شی ابتداء کولے شی، هغهٔ دا چه مونږ مونځ اوکړو، بیا واپس شو او قربانی اوکړو، چا چه دغه شان کار اوکړو (چه قربانی نه مخکښې ئے د مونځ او خطبے نه فراغت حاصل کړو) نو هغهٔ زمونږ د سنت موافق کار اوکړو او چا چه زمونږ د مانځه نه مخکښې قربانی اوکړه نو دا د غوښے ګډ دے چه خپل کور والا دپاره ئے جلتیٔ سره (ذبح) کړے دے، او د قربانیٔ نه هیڅ شے نهٔ دے»۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

**تشریح :** «دا د قربانیٔ نه نهٔ دے» ددے وجه دا ده چه د عبادت دپاره خپل وقت وی کله چه هغه وخت نه مخکښې روستو اوکړے شی هغه عبادت نهٔ وی۔ او هغه شان اجرئے نهٔ وی۔

نو حدیث نه دا معلومه شوه چه قربانی به د امام سره د مانځه نه روستو کولے شی او نه چا د مانځه نه مخکښې اوکړه نو د هغه قربانی اونشوه بلکه هسے غوښه ورته ملاؤ شوه نو که وس ئے کیږی د مانځه نه روستو به بله قربانی کوی او که وس ئے نهٔ کیدو نو په دغه قربانی اکتفاء صحیح نهٔ ده بلکه هغه ضائع ده۔ یعنی د قربانی ثواب ئے نهٔ کیږی او ذمه ئے نهٔ ده فارغه۔

**خلاف العلماء :** قربانی به په کوم وخت کولے شی؟ پدے کښې د علماؤ اختلاف دے :

(۱) امام شافعیؒ او داودؒ او نور علماء وائی : وقت د اضحیه د طلوع الشمس نه روستو داخلیږی او چه دومره خت تیر شی چه په هغے کښې د اختر مونځ او دوه خطبے اوونیلے شی۔ نو که ددے وخت نه روستو قربانی کوی نو جائز ده، برابره ده که امام مونځ کړے وی او که نهٔ؟ او دارنګه اضحیه کونکی مونځ کړے وی او که نهٔ او برابره ده که د اهل الامصار نه وی او که د اهل القریٰ او بوادی او مسافرو نه وی۔ او برابره ده چه امام خپله اُضحیه ذبح کړی وی او که نه۔ نو دده په نیز باندے وخت له اعتبار دے۔ نه مانځه له۔ نو پس د دخول د وخت نه قربانی کول جائز دی۔

(۲) امام ابو حنیفهؒ وائی : دکلو او باندو والو په حق کښې وخت د قربانیٔ د طلوع الفجر نه شروع کیږی او د ښار والو په حق کښې هله وخت داخلیږی چه کله امام مونځ او خطبه اوکړی نو که ددے نه مخکښې څوك ذبح اوکړی جائز به نهٔ وی۔

(۳) امام مالك وائي : د امام د مانځه او خطبي او ذبح نه روستو ئې وخت داخليږي، كه چا ددے دريے واړو نه مخکښې اوکړه، دا قرباني غلطه ده۔ د امام د مانځه او خطبي او ذبح انتظار به کولے شي۔ او د کلو خلق به د نزدے امامانو د حال تلاش کوی۔ دليل دا وائي : حديث د مسلم او احمد کښې دی : جابرؓ فرمائي : مونږ ته په مدينه کښې رسول الله ﷺ د يوم النحر مونځ اوکړو، څه کسانو مخکښې قرباني اوکړه او دا گمان ئے اوکړو چه نبي ﷺ به قرباني کړی وی نو نبي ﷺ هغه چا ته حکم اوکړو چه مخکښې ئے قرباني کړے وه- چه بله قرباني اوکړی او دوی دے قرباني نۀ کوی تردے چه نبي ﷺ قرباني اوکړی)) (احمد ومسلم باب سن الاضحية) انظر الاستذكار (٢٢٣/٥) التمهيد () بداية المجتهد (٢٥٠/١) نيل الاوطار)

(٤) امام احمدؒ وائي : د امام د مانځه نه مخکښې ذبح د اضحيه جائز نۀ ده ليکن د هغه د ذبح نه مخکښې او د مانځه نه روستو جائز ده۔ او په دے حکم کښې کلي او ښاندے او ښارونه برابر دی۔ او دا قول د حسن بصريؒ، اوزاعيؒ او اسحاق بن راهويهؒ دے۔ حافظ فرمائي: دا يو قول د شوافعو دے او دا په اعتبار د دليل سره قوی دے۔ انتهى۔

(٥) امام ثوريؒ فرمائي : د امام د مانځه نه روستو قرباني جائز ده او مخکښې د خطبي نه او مينځ د خطبه کښې هم جائز ده۔

(٦) ربيعةؒ وائي : د چا امام چه نۀ وی که هغه د نمر خاته نه مخکښې ذبح اُوکړی نو جائز نۀ ده او که د طلوع الشمس نه روستو اُوکړی نو جائز ده۔ المجموع للنووی (٣٨٩/٨) وشرح مسلم۔

پدے کښې راجح قول د امام مالك دے چه هغه وائي : د امام انتظار به کولے شي او د هغه نه مخکښې به قرباني نشي کولے دا هله چه کله امام موجود وی او د امام نه مراد د ښار حاکم او والي او گورنر دے، اوکه حاکم وقت نۀ وی موجود يا موجود وی ليکن هغه ذبح نۀ کوی يا ذبح کوی ليکن خلقو ته د هغه د ذبح پته نۀ لگي نو ظاهره دا ده چه دهر اُضحيه کونکي خپل مونځ له اعتبار دے نو د خپل مانځه نه مخکښې به ذبح نۀ کوی۔ دليل دا دے چه براء بن عازب ﷺ فرمائي :(خَطَبَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ فِيْ يَوْمِ نَحْرٍ فَقَالَ: لَا يَذْبَحَنَّ اَحَدُكُمْ حَتّٰى يُصَلِّيَ ......) الحديث (البخاری ومسلم والترمذی) جامع الاصول (٣٤٥/٣) ونيل الاوطار (٢١٥/٥) (رسول الله ﷺ مونږ ته د لوئي اختر په ورځ خطبه کښې اوفرمايل : په تاسو کښې دے څوك ذبح تر هغه وخت نۀ کوی چه مونځ ئے نۀ وی کړے) (بخاری ومسلم)

او علامه مبارکفوريؒ په مرعاة المفاتيح (٤٣/٥) کښې د امام احمدؒ قول مختار کړيدے چه دا د احاديثو د ظاهر موافق دے ځکه چه احاديث متفق دی په دے چه ذبح د مانځه پورے پيوسته

ده۔ په غير د فرق نه په مابين د اهل القرىٰ او اهل الامصار کښې۔ او د جابرؓ د حديث نه جواب کوی چه جمهورو پدے کښې دا تاويل کړے چه مقصود د نبی ﷺ د دوی منع کول وو د هغه تعجيل نه چه مونځ قبل الوقت ادا شی۔ ليکن دے تاويل ته ضرورت نشته۔

او د هغه چا سره هيڅ دليل نشته چه هغوی ذبح د قربانی د طلوع الشمس نه روستو جائز گنړی لکه ربيعة الرأیؒ شو۔ يا هغه څوك چه کلو والو دپاره ئے د طلوع الفجر نه روستو جائز گنړی لکه امام ابوحنيفةؒ شو او کوم حديث کښې چه دی چه يوم النحر د ذبح ورځ ده نو ددے نه استدلال صحيح نهٔ دے ځکه چه دا يو عام حديث دے او احاديث ددے باب خاص دی او دا مسلمه قاعده ده چه ((اَلْعَامُ يُبْنیٰ عَلَى الْخَاصِ)) (خاص به په عام باندے مقدم وی)۔

**نُسُك :** عامه معنیٰ ئے د عبادت ده۔ ناسك عابد ته وائی او خاصه معنیٰ ئے د ذبيحے او وينے تويولو ده

---

**۱٤۳٦ (۱۱)** – وَعَنْ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْبَجَلِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: (( مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلَاةِ فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا أُخْرىٰ، وَمَنْ لَمْ يَذْبَحْ حَتّٰى صَلَّيْنَا، فَلْيَذْبَحْ عَلَى اسْمِ اللهِ )). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

**ترجمه :** او جندب بن عبد الله بَجَلی رضی الله عنه فرمائی: رسول الله ﷺ فرمايلی دی: (( چا چه د مانځه نه مخکښې قربانی ذبح کړه نو (دا قربانی قبوله نهٔ ده، بلکه) هغهٔ دے د هغے په ځائے بل څاروے ذبح کړی، او چا چه قربانی نهٔ وی ذبح کړی تردے چه مونږ مونځ اوکړو نو هغهٔ دے په بسم الله وئيلو سره قربانی ذبح کړی ))۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

**تشريح :** دا حديث هم دليل دے چه د مانځه نه مخکښې قربانی جائز نهٔ ده او د امام د قربانی نه روستو به قربانی کولے شی۔ او د قربانی په وخت کښې به بسم الله وئيلے شی۔ دا حديث هم د اضحيه د وجوب دپاره دليل دے ځکه دلته ئے په بله قربانی کولو حکم کړے۔ لکه روستو ئے حکم راځی۔ ليکن څوك چه د وجوب قائل نهٔ دی هغوی وائی دا امر د سنت حاصلولو دپاره دے يعنی که څوك قبل الصلاة ذبيحه اوکړی نو هغه نهٔ ده شوے نو که اراده د سنت حاصلولو لری نو هغه له پکار دی چه بله ذبيحه د هغے په ځائے اوکړی۔

بيا د شريعت عجيب حکمونه وی که نيمه گينټه مخکښې څوك قربانی اوکړی چه لا مونځ نهٔ وی شوے نو قربانی جائز نهٔ ده او که روستو ئے اوکړی نو قربانی ئے صحيح ده ځکه د قربانی خپل وخت دے د هغے نه مخکښې والے شريعت نهٔ منی نو پدے کښې به بنده خپل عقل نهٔ

استعمالوى چه څه وجه ده چه لګ وخت مخکښ اوشى نو نۀ کيږى او که روستو اوشى نو صحيح ده ځکه مقصود د شارع بندګان د خپل شرع تابع کول دى۔

---

١٤٣٧ (١٢) – وَعَنِ الْبَرَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلَاةِ فَإِنَّمَا يَذْبَحُ لِنَفْسِهِ، وَمَنْ ذَبَحَ بَعْدَ الصَّلَاةِ فَقَدْ تَمَّ نُسُكُهُ وَأَصَابَ سُنَّةَ الْمُسْلِمِيْنَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

**ترجمه :** او براء بن عازب ؓ فرمائى: رسول الله ﷺ فرمايلى دى :« چا چه د مانځه نه مخکښ (د قربانى ځاروے) ذبح کړو، نو هغۀ ځانله (د خوراك دپاره) ذبح اوکړه (د قربانى ثواب ئے اونۀ شو) او چا چه د مانځه نه روستو ذبح اوکړه، نو د هغۀ قربانى مکمل شوه، او د مسلمانانو د طريقے موافق کارئے اوکړو »۔ (بخارىؒ ومسلمؒ)

**تشريح :** يعنى څوك چه د مانځه نه مخکښ قربانى اوکړى نو هغه ځانله ذبح اوکړه غوښه ده اوبه ئے خورى ليکن نسك او شرعى اضحيه نۀ ده، هيڅ ثواب د اضحيه ورته نۀ ملاويږى او ذمه ئے هم نۀ فارغه کيږى۔ دا حديث په ظاهر کښ د امام احمدؒ او د هغه د موافقينو دليل دے چه دلته ئے ذبح معلق کړيده د مانځه پورے او د امام د قربانى شرط پکښ نشته ليکن نور احاديث صريح دى پدے چه د امام د قربانى نه مخکښ به قربانى نشى کولے کله چه امام حاضر وى۔ او دا صريح رد دے په قول د امام شافعىؒ باندے چه هغه وائى : وقت د اُضحيه د مانځه سره متعلق نۀ دے۔

---

١٤٣٨ (١٣) – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَذْبَحُ وَيَنْحَرُ بِالْمُصَلّٰى. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

**ترجمه :** او ابن عمر ؓ فرمائى: رسول الله ﷺ به په عيدګاه کښ ذبح او نحر کولو۔ (بخارىؒ)۔

**تشريح :** مطلب دا دے چه رسول الله ﷺ به ګډان او غواګانے ذبح کولے او اوښان به ئے نحر کول او دا کار به ئے په عيدګاه کښ د مانځه نه روستو کولو، دے دپاره چه خلقو ته پدے سره ترغيب ورکړى او خلق د هغه اقتداء اوکړى او د هغه نه طريقه د ذبح ايزده کړى۔

نو حديث نه معلومه شوه چه ذبح او نحر په عيدګاه کښ مستحب ده او حکمة پکښ دا دے (١) چه فقراء ئے اُووينى نو د اضحيه د غوښے نه به څه حصه ځانله په آسانئ سره حاصله

کړی۔(۲) یا دا چه اُضحیه عبادتِ عامه دے نو ددے اظهار افضل دے، ځکه پدے کښ د اُضحیه طریقه په خلقو کښ رائج کول دی۔ او بله دا چه خلقو ته پته اولګی چه امام قربانی اوکړه نو بس موتږ دپاره هم قربانی کول جائز شو۔

بیا په اوښانو کښ نحر کولے شی او نحر دیته وائی چه اوښ په ولاړه باندے په مرئ کښ په سُمبه یا چاړه باندے نیغ اووهی د هغه نه وینه روانه وی تردے چه راپریوزی بیا ذبح کړے شی۔ او د اوښانو نه علاوه د نورو حیواناتو د حلالولو دپاره صرف ذبح ده۔

## الفصل الثانی

۱۴۳۹(۱۴) - عَنْ اَنَسٍ، قَالَ: قَدِمَ النَّبِيُّ ﷺ الْمَدِيْنَةَ، وَلَهُمْ يَوْمَانِ يَلْعَبُوْنَ فِيْهِمَا، فَقَالَ: «مَا هٰذَانِ الْيَوْمَانِ؟» قَالُوْا: كُنَّا نَلْعَبُ فِيْهِمَا فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «قَدْ اَبْدَلَكُمُ اللّٰهُ بِهِمَا خَيْرًا مِنْهُمَا: يَوْمَ الْاَضْحٰى، وَيَوْمَ الْفِطْرِ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

---

**ترجمه** : انس ؓ فرمائی: نبی ﷺ مدینے ته راغلو او د مدینے والو دپاره دوه ورځے وے چه هغوی به پکښ لوبے کولے، نبی ﷺ اوفرمایل: «دا دوه ورځے څنګه دی؟» صحابه کرامؓ عرض اوکړو: پدے دوه ورځو کښ به مونږ په جاهلیت کښ لوبے کولے۔ رسول الله ﷺ اوفرمایل: «الله تاسو ته ددے په بدله کښ ددے نه غوره دوه ورځے درکړے چه هغهٔ د قربانی اختر ورځ او د وړوکی اختر ورځ ده»۔ (ابوداوؒد)

**تشریح** : د جاهلیت په زمانه کښ داهل مدینه دپاره دوه ورځے مقرر وے چه په هغے کښ به هغوی په لهو ولعب کښ مشغول کیدل او خوشحالی به ئے مناوولے چه دهغے نه یوه ورځ د نیروز (چه اصل کښ د فارسئ لفظ "نوروز" نه عربی شویدے) ورځ وه او بله «مهرجان» وه۔ نوروز د کال اوله ورځ وه او دا اوله هغه ورځ وه چه نمر به پکښ برج حمل ته اوریدو۔ او دا د شمسی کال اوله ورځ وه او اوله ورځ د ربیع (سپرلی) ده۔ لکه څنګه چه ابتداء د محرم د قمری کال اوله ورځ ده۔ او مهرجان د نوروز مقابل کښ اوله ورځ د میزان وه او دا اوله ورځ د خریف (منی) ده، چونکه پدے دواړو ورځو کښ په آب وهوا معتدله وه، نهٔ به ګرمی وه نهٔ یخنی او شپه او ورځ به هم برابرے وے پدے وجه قدیم حکماؤ دا ورځے د خپلے زمانے والو د خوشحالی مناوولو دپاره مقرر کړے وے۔ او د عوامو خلقو کښ د حکماؤ د عقلونو په کمال باندے اعتماد وو نود هغوی تقلید ئے پدے باره کښ شروع کړو۔ همدغه رسم او عادت په خلقو کښ راروان وو،

مجوسيانو دا ورځې خپل اختر ګڼلې وو، تردې چه کله اهل مدينه اسلام کښې داخل شو نو په ابتداء کښې د زوړ عادت مطابق پدې ورځو کښې به ئې د مخکښې زمانې په شان خوشحالي مناووله. رسول الله ﷺ چه کله ددې ورځو حقيقت اوتپوسلونو ددې هيڅ حقيقت بيان نۀ کړې شو صرف داسې اووئيل شو چه دا زمونږ پخوانئ رارواني طريقه ده او پدې ورځو کښې مونږ خوشحالي کوو. نو رسول الله ﷺ اوفرمايل : د کفارو ددې ورځو سره ستاسو تعلق نۀ دې پکار بلکه الله تعالیٰ تاسو له ددې ورځو نه بهترينې ورځې په بدله کښې درکړې چه هغه دوه ورځې د اخترونو دي. نو پدې کښې خوشحالي کول او خاصکر د اخترونو مونځونه او قربانيانې او نور ديني کارونه کول عبادت هم دې او خوشحالي هم ده.

او پدې کښې اشاره ده چه مسلمان له پکار دي چه هغه حقيقي عيد او د خوشحالي ورځ د عبادت ورځ مناؤ کړي، او مسلمان به فضول خوشحالي نۀ کوي بلکه د هغه خوشحالي به د الله په بندګئ کښې وي اګرکه ددې سره سره د دنيا نه هم خوند اخستې شي خو دا به مقصد نۀ ګرځوي، د الله بندګي به پرې نۀ خرابوي. نوکه چا د اخترونو په ورځو کښې د اسلام خلاف کارونه او ګناهونه او فحاشيانې اوکړې نو هغه د اختر مقصد ونۀ پيژندلو بلکه هغه دپاره داسې خوشحالي کول سراسر عيب دې.

بيا دا حديث په ډير بليغ انداز کښې دا ښکاره کوي چه د غير مسلمو د اخترونو او رواجونو تعظيم کول او په هغې کښې خوشحالي کول او د هغوي رسمونه خپلول حرام دي. دارنګه د غير مسلمو په عيد او تهوار کښې د شرکت او حاضري کولو ممانعت هم ظاهريږي. حافظ په فتح الباري کښې فرمائي : ددې حديث نه دا استنباط کيږي چه د مشرکانو په اخترونو کښې خوشحالي کول او د هغوي سره مشابهت کول حرام دي. او بعض علماؤ خو دا دومره سخت ګڼلې دې چه پدې عمل ئې د کفر حکم لګولې دې لکه ابوحفص کبير حنفيؒ فرمائي : څوك چه د «نوروز» د تعظيم او توقير په طور يو مشرك ته پدې ورځ اګۍ (اګئ) په تحفه کښې ورانديې کړي. (لکه دا د مشرکانو پدې ورځ طريقه ده) نو هغه کافر کيږي او د هغه ټول اعمال بربادېږي. انتهیٰ. وکذا في الدر المختار (۷/۳٤٦)

قاضي ابوالمحاسن حسن بن منصور الحنفي فرمائي : څوك چه پدې ورځ هغه څيزونه واخلي چه په نورو ورځو کښې ئې نۀ اخلي (لکه د لوبو څيزونه او د مټيانو نه جوړ شوي ګلونې اخلي) يا په دې ورځ چا ته تحفه ليږي او پدې سره د هغه مقصد ددې ورځې تعظيم وي لکه څنګه چه مشرکان ددې ورځې تعظيم کوي نو دا شخص کافر کيږي، او که څوك ئې محض د خپل استعمال يا د فائده

اخستـلـو یا د خپل عادت مطابق چا ته د هدیه لیږلو په نیت اخلی او د ورځې تعظیم ئې فکر کښې نهٔ وی نو بیا نهٔ کافر کیږی البته دا کار هم مکروه دے ځکه پدے کښې د کافرانو سره مشابهت کیږی نو ددے نه هم ځان ساتل پکار دی۔

دارنګه فقه حنفی کښې لیکی چه په خاص طور د نیروز او مهرجان د ورځو روژے نیول هم مکروه دی کله چه د مخکښې او روستو ورځو روژه نهٔ نیسی۔ (بدائع الصنائع)

په "تجنیس" کښې ذکر شوی دی چه زمونږ مشائخ او علماء پدے متفق دی چه چا د کفارو د معتقداتو او معاملاتو نه د یو څیز د ښه کیدو عقیده اوساتله نو هغه په جنودو د کفر کښې داخلیږی، نو پدے باندے دا مسئله هم قیاس کیدے شی چه که څوك د یو داسے خواهش پرست او مبتدع انسان مثلاً د شریعت ښکاره خلاف ورزی کونکی نام نهاد صوفیاؤ د کوم کلام یا دکوم قول په باره کښې نیك خیال اوساتی او دا اووائی چه دا کلام معنوی دے یا دا اووائی چه فلانے قول داسے دے چه د هغے معنی صحیح ده نو که په حقیقت کښې هغه کلام او قول کفری وی نو د هغے په باره کښې نیکه عقیده ساتونکے او هغے ته صحیح ویونکے هم کافرکیږی۔ دغه شان په « نوادر الفتاوی » کښې منقول دی چه څوك د غیر مسلمو رسومات ښه ګنړی هغه کافر کیږی۔ «عمدة الاسلام » کښې لیکی : څوك چه د کافرو رسومات ادا کوی مثلاً په نوی مکان کښې غواء غویی او آس له زیړ او سور رنګ ورکړی یا بندونو والا بند واچوی نو دا کافر کیږی۔ حاصل دا چه د هغه معتقداتو او رسوماتو نه قطعاً احتراز کول پکار دی چه د هغے د اسلام او دشریعت د دور سره هیڅ واسطه نهٔ وی بلکه د هغے بنیاد خالص په غیر اسلامی او غیر شرعی څیزونو باندے وی۔ اوګوره تفصیل دپاره مظاهر حق شرح مشکوة المصابیح (۹۳۹/۱)

دغه شان که څوك د عاشورے په ورځ خوشحالی مناووی نو د خوارجو سره مشابهت کیږی او که پدے ورځ د غم او د درد څیزونه ښکاره کوی نو د روافضو سره مشابهت راځی لهذا ددے دواړو خبرو نه ځان ساتل پکاردی۔

د نوروز د تعظیم او توقیر په سلسله کښې روافض (شیعه ګان) د مجوسیانو سره شریك دی او ددے سبب دا بیانوی چه پدے ورځ عثمان غنی ﷺ شهید شوے دے او علی ﷺ ته خلافت ورکړے شویدے۔

ابن حجر مکیّ لیکی : پدے نقصان کښې اهل مصر (مصریان) او د هغوی په شان خلق واقع دی ځکه چه ډیر مصریان د یهود او نصاراؤ سره د هغوی په اخترونو کښې د هغوی د تعظیم په طریقه موافقت کوی مثلاً د کفارو په شان پدے ورځو کښې په خوراك څکاك او زینت کښې فراخی پیدا کوی، ددے وجه نه ابن الحاج المالکی په « المدخل» کښې په هغوی باندے ښکاره

انکار کریدے او د یہود او نصاراو سرہ د مسلمانانو د موافقت طریقے ئے بیان کریدی۔ (المرقاة)
دغه شان د هندوستان، پاکستان او افغانستان ډیر مسلمانان د جهالت په وجه د کفارو هندوانو، شیعه گانو او عیسیانو او مجوسیانو سره د هغوی په اخترونو او میلوکښې مشابهت کوی۔ فالی الله المشتکیٰ۔ راجع للتفصیل مرعاة المفاتیح (۵/۴۵)

**درجة الحدیث** : اسناده صحیح : اخرجه احمد (۳/۱۰۳) وابوداود (۱۱۳۴) والنسائی (۳/۱۷۹-۱۸۰)

۱۴۴۰ (۱۵) - وَعَنْ بُرَيْدَةَ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ لَا يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ حَتَّى يَطْعَمَ، وَلَا يَطْعَمُ يَوْمَ الْأَضْحَى حَتَّى يُصَلِّيَ، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَه، وَالدَّارِمِيُّ.

---

**ترجمه** : او بریده ﷺ فرمائی : نبی ﷺ به د وړوکی اختر په ورځ (عیدگاه ته) نهٔ وتلو تردے چه خوراك به ئے اوکړو او د غټ اختر په ورځ به ئے خوراك نهٔ کولو تردے چه مونځ به ئے اوکړو۔ (ترمذیؒ، ابن ماجهؒ، دارمیؒ)

**تشریح** : **اَلْاَضْحٰی**: جمع د اَضْحَاةٌ ده، هغه گډ ته وائی چه قربانی پرے کولے شی۔ یعنی د قربانئ ورځ۔ او ددے وجه نه دے ورځے ته یوم الاضحیٰ اوویلے شوه چه پدے کښې گډان وغیره قربانی کیږی۔

دا حدیث دلیل دے چه په وړوکی اختر کښې د مانځه نه مخکښې خوراك پکار دے چه د الله امر ته جلتی اوکړے شی او په لوئی اختر کښې د مانځه نه روستو خوراك سنت دے حکمت دا دے چه پدے ورځ باندے قربانی کولے شی او د قربانی مبارکه غوښه وی نو پکار ده چه په هغې باندے ابتداء اوکړے شی۔ دارنگه د لوئی اختر نه مخکښې روژه نهٔ وی نو د مانځه نه مخکښې خوراك ته ضرورت نشته۔ امیریمانیؒ فرمائی: هرکله چه الله تعالیٰ بندگانو ته کرامت ورکړو چه دوی له ئے د اُضحیه ذبح کول مشروع کړل نو اَهمه دا ده چه ددے اُضحیه په غوښه ابتداء اوکړے شی، دے دپاره چه د الله په نعمت شکریه اوکړے شی چه هغه بندگانو له هغه قربانی جائز کړه چه هغه د دنیا دخیرونو او د ثواب د آخرت دپاره جامع ده۔

امام احمدؒ فرمائی : په لوئی اختر کښې د ذبح نه روستو خوراك مستحب دے د هغه چا دپاره چه هغه قربانی کوی او که دچا قربانی نهٔ وی نو مخکښې خوراك کولو کښې هیڅ باك نشته۔ (ابن قدامهؒ)

**درجة الحدیث** : اسناده صحیح : اخرجه ابوداود الطیالسی (۸۱۱) واحمد (۵/۳۵۲) والدارمی

(۳۷۵/۱) والترمذی (۵۴۲) وابن ماجه (۱۷۵۶) وابن حبان (۵۹۳) ورجاله ثقات غیر ثواب بن عتبة وقد روی عنه جماعة ووثقه غیر واحد)

---

۱۴۴۱ (۱۶) - وَعَنْ كَثِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَبَّرَ فِي الْعِيدَيْنِ فِي الْأُولَىٰ سَبْعًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ، وَفِي الْآخِرَةِ خَمْسًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَه، وَالدَّارِمِيُّ.

ترجمه : او کثیر بن عبد الله د خپل پلار نه هغهٔ د خپل نیکه نه روایت نقل کوی چه نبی ﷺ په اخترونو کښې (په مانځه کښې) په اول رکعت کښې د قراءت نه مخکښې اووه تکبیره اووئیل، او په دویم رکعت کښې ئے د قراءت نه مخکښې پنځه تکبیرات اووئیل". (ترمذیؒ، ابن ماجهؒ، دارمیؒ).

**تشریح :** د کثیر نیکه عمرو بن عوف المزنی ابوعبد الله الصحابی دے۔

پدے کښې اختلاف دے چه تکبیرات العیدین څو مره دی ؟ (۱) احمدؒ، شافعیؒ، مالكؒ فرمائی : په اول رکعت کښې د قرائت نه مخکښې اووه (۷) او په دویم کښې د قراءت نه مخکښې پنځه تکبیرونه وئیلے شی۔ او دا قول د عمر فاروق، علی بن ابی طالب، ابو هریره، ابوسعید، جابر، ابن عمر، ابن عباس، ابوایوب، زید بن ثابت او عائشه رضی الله عنهم او د مدینے د فقهاءِ سبعه او عمر بن عبد العزیز، امام زهری، امام مکحول، امام اوزاعی او امام اسحاق رحمهم الله وغیرهم نه منقول دے۔

مګر پدے کښې شافعیؒ، اوزاعیؒ، اسحاقؒ او ابن حزمؒ فرمائی : چه اووه په اول رکعت کښې د تکبیرة الاحرام سره دی۔

(۲) د امام ابوحنیفةؒ مذهب دا دے چه په اول رکعت کښې د تکبیر تحریمه نه روستو د قراءت نه مخکښې درے تکبیرونه او په دویم رکعت کښې د قراءت نه بعد درے تکبیرونه وئیلے شی۔ او دا به د تکبیر تحریمه او د تکبیر د رکوع نه علاوه وی۔ (المجموع ۲۰/۵) الام (۳۹۵/۱) المغنی (۲۷۰/۳) بدائع الصنائع (۲۷۷/۱) المبسوط (۴۰/۲) بدایة المجتهد (۱۷۱۳۱) المرعاة (۴۶/۵)

امام شوکانیؒ پدے مسئله کښې د فقهاء کرامو لس مختلف اقوال په نیل الاوطار (۳۶۲/۳) کښې نقل کړیدی۔ راجح قول د جمهورو دے او دیته امام شوکانیؒ هم ترجیح ورکړیده۔ (۳۷۰/۳).

(عبد الرحمن مبارکفوریؒ) هم ددے قائل دے۔ (تحفة الاحوذی ۱۰۷/۳)

(د امیر صنعانیؒ) په نیز پدے باندے عمل زیات درست دے۔ (سبل السلام ۶۸۱/۲)

(علامه صديق حسن خانؒ) هم دغه موقف لري. (الروضة الندية (٣٥٨/١)

**دلائل القول الاول : ١-دليل :** دا حديث الباب (كَبَّرَ فِى الْعِيدَيْنِ سَبْعًا فِى الْأُولَى قَبْلَ الْقِرَاءَةِ وَ فِى الآخِرَةِ خَمْسًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ) ددې كيفيت په باره كښې دا صريح دليل دے. په روايت د ابوداودؒ كښې دى : (سِوَى تَكْبِيرَتَيِ الرُّكُوعِ) (په هر ركعت كښې د ركوع د تكبيرونو نه علاوه دى) او پدے كښې رد دے په بعض علماؤ چه هغوى د عيد الاضحىٰ او د عيد الفطر په تكبيراتو كښې فرق كوى.

**٢- دليل :** عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده نه روايت دے : چه نبى ﷺ اوفرمايل : (اَلتَّكْبِيرُ فِى الْفِطْرِ سَبْعٌ فِى الْأُولَى وَخَمْسٌ فِى الْأُخْرَى وَالْقِرَاءَةُ بَعْدَهُمَا كِلْتَيْهِمَا) (د عيد الفطر په اول ركعت كښې اووه تكبيرونه او په دويم ركعت كښې پنځه تكبيرونه وئيلے شى او قراءت به ددے دواړو نه بعد كيږى. (حديث حسن : صحيح ابى داود ١٠٢٠) كتاب الصلاة باب التكبير فى العيدين، ابوداود (١١٥١) ابن ماجه (١٢٧٨) احمد (١٨٠/٢) دارقطنى (٤٨/٢) البيهقى (٢٨٥/٣) امام ترمذىؒ نقل كريدى چه امام بخارىؒ دېته صحيح وئيلے دے. (العلل الكبير ص٩٣،٩٤) (١٥٤) شيخ محمد صبحى حلاقؒ دے ته د شواهدو په وجه صحيح وئيلے دے. (التعليق على سبل السلام (٦٧٩/٢) وقال الحافظ العراقى : اسناده صالح وكذا فى الارواء (١٠٩/٣) والمرعاة (٤٧/٥) والنيل)

**٣- دليل :** د ابن عمر آزاد كړى غلام نافعؒ وائى : ((زهٔ ابو هريرةؓ ته په اضحىٰ او فطر كښې حاضر شوم نو هغه په اول ركعت كښې اووه تكبيرونه د قرائت نه مخكښې او په دويم ركعت كښې پنځه تكبيرونه د قرائت نه مخكښې اوكړل)) (ابن ابى شيبة (٢١٥/٢) والبيهقى (٢٨٨/٣) واخرجه مالك (١٨٠/١) والفريابى فى احكام العيدين (١٣٤) وزاد البيهقى : (وهى السنة) (يعنى هدا سنت عمل دے) واسناده صحيح. عون المعبود (١٠٣/٣) وتعليق مسند احمد لشعيب الارناووط (٣٥٦/٢) مسند ابى هريرة)

**٤- دليل :** د ابن عباس رضى الله عنهما حديث دے : ((اَنَّهُ كَانَ يُكَبِّرُ فِى الْعِيدِ سَبْعَ تَكْبِيرَاتٍ بِتَكْبِيرَةِ الْاِفْتِتَاحِ، وَفِى الآخِرَةِ سِتًّا بِتَكْبِيرَةِ الرَّكْعَةِ، كُلُّهُنَّ قَبْلَ الْقِرَاءَةِ))

(عبد الله بن عباس رضى الله عنهما به د اختر په مانځه كښې اووه تكبيرونه د تكبير افتتاح سره وئيل او په دويم ركعت كښې به ئے شپږ تكبيرات وئيل سره د تكبير د ركوع نه او دا ټول به د قرائت نه مخكښې وو). (ابن ابى شيبة ١٧٣/٢) والفريابى (١٣٦) والبيهقى (٢٨٩/٣) واسناده صحيح (ارواء الغليل ١١١/٣)

**٥-** طحاوىؒ (٣٩٩/٢) د ابن عمرؓ نه نقل كړيدى چه هغه به هم اووه او پنځه تكبيرونه وئيل. وهو حديث صحيح.

**٦-** دغه شان اووه او پنځه تكبيرونه د عثمان رضى الله عنه نه هم نقل دى.

(مسند احمد مع الفتح الربانی ۱۴۳/۶)

**خلاصه** دا چه ددې کیفیت متعلق زیات احادیث وارد دي، او پدې باندې د اکثرو مسلمانانو عمل دې او دا قول سید سابق صاحبؒ په فقه السنة (۲۶۹/۱) کښې او علامه احمد عبد الرحمن البنا په بلوغ الامانی (۱۴۴/۶) کښې او ابن الجوزیؒ په التحقیق او ابن قدامهؒ په المغنی (۱۳۷/۳) او صاحب د فتح المالك (۲۴۶/۳) کښې او شاه ولی الله الدهلوی په حجة الله البالغة (۳۱/۲) کښې او شیخ الاسلام ابن تیمیةؒ په فتاوی (۳۶۲/۲۰) کښې راجح ګرځیدلې. امام نوویؒ وائی دا قول د اکثرو علماؤ دې.(المجموع (۲۵/۵)).

**دلیل القول الثانی : ۱ - دلیل :** قاسم بن ابی عبد الرحمنؒ فرمائی : ما ته بعض صحابه کرامو حدیث بیان کړې چه : نبی ﷺ مونږ ته د اختر مونځ اوکړو نو څلور څلور تکبیرونه ئې اوویل بیا ئې مخ راواګرځولو کله چه راواګرځیدلو وې فرمایل : دا تکبیرونه د جنازې د تکبیرونو په شان مه هیروئ او په خپلو ګوتو ئې اشاره اوکړه او غټه ګوته ئې راښکته کړه - یعنی د اختر په مانځه کښې) (قال الطحاوی ۲۴۵/۴) والالبانی فی السلسلة الصحیحة (۴۹۶/۶) رقم (۲۹۹۷) هذا اسناد حسن) وفی سنده وضین بن عطاء وثّقه احمد وابن معین وتکلم فیه ابوحاتم فقال : نعرف وننکر فمثله لاینحط عن درجة الحسن.

**۲ - دلیل :** د ابو هریرهؓ جلیس (ملګرې) ابوعائشة فرمائی : سعید بن العاصؓ د ابو موسی الاشعری او حذیفه بن الیمان نه تپوس اوکړو: (کَیْفَ کَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ یُکَبِّرُ فِی الْاَضْحٰی وَالْفِطْرِ؟) .(نبی ﷺ به په لوئی او وړوکی اختر کښې څنګه تکبیرونه وئیل؟) ابوموسیؓ اوفرمایل : (کَانَ یُکَبِّرُ اَرْبَعًا تَکْبِیْرَةً عَلَی الْجَنَائِزِ) (څلور تکبیرونه به ئې د جنازې د مانځه په شان وئیل) (یعنی سره د تکبیر تحریمه او تکبیر د قیام نه) حذیفهؓ اوفرمایل : ابوموسیٰ رښتیا وائی. ابوموسیٰ اوفرمایل : دغه تکبیرونه به ما په بصره کښې وئیل کله چه زهٔ په بصرې والو والي مقرر وم. ابوعائشة فرمائی : زهٔ ددې قصې په وخت د سعید بن العاص په مجلس کښې حاضر وم. (ابوداود ۱۷۰/۱) ومسند احمد مع الفتح الربانی (۱۴۲/۶) دا حدیث د مخکني حدیث شاهد دې. بعضو روایاتو کښې پدې قصه کښې داسې دي چه حذیفه او ابوموسی دا فتوی ابن مسعودؓ ته اوسپارله نو هغه دغه فتویٰ ورکړه. (بلوغ الامانی ۱۴۳) والسلسلة الصحیحة (۱۲۶۱/۶) وجلاء الافهام (۲۴۵) دا روایت اګر که ضعیف دې لیکن د نورو روایاتو په وجه ئې تائید کیږي.

**۳ - دلیل :** دغه شان قول د ابن مسعودؓ نه هم نقل دې.

(عبد الرزاق ۵۶۸۶) بلوغ الامانی (۱۴۳/۶)

٤- **دلیل :** دغه شان عمل د ابن عباسؓ نه هم نقل دے۔ ابن ابی شیبة (۱۷۲/۲) عن عبد الله بن الحارث واسناده صحیح۔

او دا عمل د صحابه کرامؓ دے او رأی له پدے باب کښې دخل نشته نو ضرور به ئے نبیﷺ لیدلے وی۔ لهذا ثابته شوه چه دواړه کیفیتونه جائز دی۔ اګرکه اول کیفیت زیات غوره دے ځکه مرفوع احادیث پکښې زیات دی او صحیح هم دی او د دویم کیفیت روایات د هغے نه د سند په لحاظ کمه درجه کښې دی او د صحابه کرامؓ اعمال دی۔ لهذا دواړو باندے عمل کولو سره سنت باندے عمل حاصلیږی او پدے کښې د تعصب کولو هیڅ دخل نشته لکه دا خبره علامه البانیؒ په "الصحیحه" کښې تفصیلاً ذکر کړیده۔

علامه عبد الحی اللکهنویؒ په التعلیق الممجد ص (۱۳۸) کښې فرمائی : دا اختلاف چه په مرفوع او موقوف آثارو کښې راغلے دے دا اختلاف په مباح کښې دے لکه دیته امام محمد اشاره کړیده۔ نو هیچا دپاره دا جائز نهٔ دی چه د خپلے رائے نه مخالف طرف والا سره سختی او ضد اوکړی۔ او پدے باره کښې د امامانو اختلاف په راجح کښې دے۔ انتهیٰ۔

صاحب د العرف الشذی ص (۲٤۱) فرمائی : "دولس تکبیرونه وئیل هم زمونږ په نیز جائز دی ځکه په "هدایه" کښې دی چه امام ابویوسفؒ پدے باندے عمل کړیدے کله چه هارون الرشید هغه ته حکم اوکړو نو که دا ناجائز وے هغه به پدے ناجائز کار کښې د ولی الامر تابعداری نهٔ کولے۔ددے نه معلومیږی چه ابویوسفؒ ددے په جواز قائل دے"۔آهـ۔

صاحب د مرعاۃ فرمائی : "په اول کیفیت عمل کول اولیٰ او افضل دی (۱) وجه دا ده چه پدے باره کښې مرفوع احادیث ډیر راغلی دی، بعض صحیح او بعض حسن دی او باقی د هغے مؤید دی۔ او دویم کیفیت کښې مرفوع حدیث نهٔ دے راغلے مګر حدیث ابو موسی الاشعری کوم چه راروان دے او هغه ضعیف غیر صالح للاحتجاج دے او حدیث د وضین بن عطاء چه طحاوی راوړے هغه هم ضعیف دے۔ (زهٔ وایم : لیکن راجح دا ده چه مؤیدات ئے شته نو حسن درجے ته رسی کما مرّ) (۲) دویم دا چه پدے باندے ابوبکر، عمر، عثمان او علی رضی الله عنهم عمل کړیدے، نو دا ډیر مؤکد وی د هغے نه چه خلفاء راشدینو پرے عمل نهٔ وی کړے۔ کما قال الحازمیؒ فی الاعتبار۔انتهیٰ۔ (۳) دارنګه پدے باندے عمل د حرمینو دے۔ او د دوی عمل ضرور په غیر باندے راجح وی۔

وانظر تفصیل المسئلة فی الفتاوی الدین الخالص (۲۸۰/٦) واحسن التفصیل فی المرعاۃ (۵/٤٦-۵۳)

## د تکبیراتو متعلق مسائل :

**حکم التکبیرات** : ابن قدامة فرمائی : دا تکبیرات سنت دی او واجب نهٔ دی، که تکبیرات ترے هیر شو او قرائت ئې شروع کړو نو ورته نهٔ به واپس کیږی قاله ابن عقیل- ځکه دا سنت دی نو په قرائت کښې د شروع کیدو نه پس به ورته نهٔ واپس کیږی لکه د دعاء د استفتاح په شان. "قاضی" وائی : پدے کښې بله وجه دا ده چه تکبیراتو ته به بیرته رجوع کوی ځکه دا ورته په خپل محل کښې (چه قیام دے) راياد شویدی نو هغه شان به ئې وائی لکه څنګه چه د قرائت د شروع نه مخکښې ئې وئیل- ۲- احناف وائی : دا تکبیرات واجب دی لکه بدائع الصنائع وغیره کښې دی- ابن عابدينؒ وائی: هر تکبیر مستقل واجب دے-

۳- شوافع وائی : هر تکبیر سنت مؤکد دے، کله چه امام یا منفرد یو تکبیر ددے نه پریدی نو سجده سهو به کوی او په مقتدی باندے په ترك د سنن کښې هیڅ نهٔ دی لازم اګرکه قصداً وی ځکه امام ئې وئیلی دی-او حدیث د مسلم دے (فَمَنْ زَادَ اَوْ نَقَصَ فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ) لهذا په ترك د سنن باندے هم سجده سهو شته- او دا قول د امام مالك دے فرمائی : چا چه د اختر یو تکبیر پریخودو نود سهوے دوه سجدے به کوی (انظر احکام العیدین للفریابی ص (۲۰٦) والمدونة الکبری (۱/ ۱۷۰) والاوسط لابن المنذر (۲۲۳) ○ او که چا قصداً دا تکبیرات پریخودل نو په هغه باندے سهو نشته مګر د مخالفت د سنت په وجه ګناهګار شو-

○ علامه شوکانیؒ فرمائی : عدم وجوب ظاهر دے ځکه چه داسے څه دلیل نهٔ دے موجود چه دلالت په وجوب اوکړی-(نیل الاوطار ۳/ ۳۷۰)

**المسئلة الثانية** : د دعاء الاستفتاح محل کوم دے؟ ۱- ابن قدامةؒ لیکی : دعاء الاستفتاح به د تکبیر اولیٰ نه پس وائی بیا به تکبیرات العید اووائی- بیا تعوذ، بیا قرائت او دا مذهب د امام شافعیؒ (او دغه شان د احنافو هم دے لکه چه د هغوی د فروعونه معلومه ده او همدا راجح دے) ۲- د امام احمدؒ نه یو روایت دا دے چه استفتاح به د تکبیراتو نه روستو وی او دا قول د اوزاعیؒ هم دے- ځکه دا قانون دے چه استفتاح پسے تعوذ وی او هغه خو د قرائت نه مخکښې وی- لیکن راجح قول اول دے ځکه چه استفتاح ددے دپاره مشروع شوے ده چه مونځ په هغے باندے شروع شی نو دا په اول د مانځه کښې پکار ده- لکه د باقی مونځونو په شان- او استعاذه د قرائت دپاره ده نو دا به د قرائت تابع وی نو دا به هله وی چه کله په قرائت باندے ابتداء کیږی ځکه آیت دے ﴿فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ﴾ النحل : ۹۸) لهذا استعاذه به د قرائت نه مخکښې وی- لیکن که چا په دویم قول عمل اوکړو هم جائز ده-

**المسئلة الثالثة** : آيا دا تكبيرات به متوالى (پرله پسې) وائي او كه مينځ كښې كوم ذكر شته؟ -

(۱) امام احمدؒ او شافعيؒ وائي : مينځ كښې څه ذكر كول مستحب دي- ابن قدامة فرمائي: كله چه د استفتاح نه فارغ شي نو د الله حمد او ثناء به اووائي او په نبي ﷺ به درود اووائي بيا به دا كار د هر دوه تكبيرونو ترمينځ كوي- او پدې كښې به ((سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ لِلهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ)) وائي : بعض وائي : ((لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ)) به وائي- بعض وائي ؛ ((اَللهُ أَكْبَرُ كَبِيْرًا وَالْحَمْدُ لِلهِ كَثِيْرًا وَسُبْحَانَ اللهِ بُكْرَةً وَأَصِيْلاً )) به وائي- (و كذا في النيل ۳/۳۷۰)

**دليل** : د ابن مسعود ؓ نه نقل دي چه (يَحْمَدُ اللهَ وَيُثْنِيْ عَلَيْهِ وَيُصَلِّيْ) ذكره الخلال) (د الله حمد او ثناء او درود به وائي) (زاد المعاد (۱/٤٢٧) وجلاء الافهام ص (٢٤٥)

(۲) امام ابوحنيفةؒ، مالكؒ او اوزاعيؒ فرمائي : مينځ كښې به هيڅ كلمات نۀ وائي بلكه متوالي به ئې وائي- او د امام مالكؒ نه دا هم نقل شويدي چه ددې تكبيراتو ترمينځ به فاصله په سكوت سره كوي- (النيل)

او دا قول راجح دې-○ حافظ ابن قيم الجوزيةؒ فرمائي : ((يَسْكُتُ بَيْنَ كُلِّ تَكْبِيْرَتَيْنِ سَكْتَةً يَسِيْرَةً وَلَمْ يُحْفَظْ عَنْهُ ذِكْرٌ مُعَيَّنٌ بَيْنَ التَّكْبِيْرَاتِ الخ) (د هر دوه تكبيرونو ترمينځ به معمولى شان سكته كوي او د نبي ﷺ نه د تكبيراتو ترمينځ هيڅ معين ذكر نۀ دې ثابت اگركه د ابن مسعودؓ نه ثابت دې چه هغه وئيلي دي حمد او ثناء او درود به وائي)-

ليكن د ابن مسعودؓ نه دا هم ثابت دي هغه فرمائي : ((إِنَّ بَيْنَ كُلِّ تَكْبِيْرَتَيْنِ قَدْرَ كَلِمَةٍ)) (طبراني في المعجم الكبير (۸/٢٤٦) وعبد الرزاق (۳/٢٩٦) وكذا في التلخيص الحبير (۲/۸٥) ومجمع الزوائد (۲/٢٤١) (د هر دوه تكبيرونو ترمينځ اندازه د يوې كلمې سكته ده)- (وفي سنده عبد الكريم ضعيف)

○ علامه رافعيؒ فرمائي: د هر دوه تكبيرونو ترمينځ به د يو معتدل آيت په مقدار اُودريږي او دا د ابن مسعودؓ نه قولًا او فعلًا روايت شويدې- (المرعاة (٥/٥٤)

**خلاصه** :تكبيرات به متوالى (پرله پسې) وائي او مينځ كښې به معمولى شان فاصله كوي او ذكر پكښې نۀ وئيل افضل او اولىٰ دي ځكه چه عام مرفوع احاديثو كښې د نبي ﷺ نه ددې ترمينځ څه خاص ذكر نۀ دې ثابت او دا قول علامه مباركفوريؒ په المرعاة (٥/٥٤) كښې راجح كريدې- او د ابن مسعودؓ نه ذكر ثابت دې نو كه چا دغه مخكښې مذكور الصدر ذكرونه اُولوستل نو جائز به وي- ليكن لوستل ئې نۀ دي پكار- ځكه چه د رسول الله ﷺ نه ئې صراحةً نقل نشته-

**المسئلة الرابعة** : ددے تکبیراتو سره رفع الیدین شته او که نه؟ (١) عطاء، اوزاعیؒ، ابوحنیفهؒ، امام شافعیؒ او احمدؒ فرمائی: مستحب دی چه ددے سره رفع الیدین اوکړے شی. (٢) مالكؒ، ثوریؒ، ابن ابی لیلیٰ او ابویوسفؒ فرمائی : د تکبیرة الاحرام نه علاوه به رفع الیدین نهٔ کوی. (بلوغ الامانی ٦/١٤٥) والنیل والمرعاة وشرح مسلم)

**دلیل** : د اول قول دپاره دلیل : اثر د عمر فاروق ﷺ دے : (اَنَّهٗ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ مَعَ كُلِّ تَكْبِيرَةٍ فِي الْجَنَازَةِ وَفِي الْعِيدِ) بیهقی (٣/٢٩٣) والاثرم)

**الجواب**: دا اثر ضعیف دے په سند کښې ئے ابن لهیعه ضعیف دے او د ابن لهیعه شاګرد ولید بن مسلم کثیر التدلیس دے.

٢- **دلیل** : د ابن عمر رضی الله عنهما اثر دے : چه هغه به د هر تکبیر سره رفع الیدین کول. دا اثر امام ابن القیمؒ په زاد المعاد (١/٤٤٣) کښې نقل کړے. ددے اثر متعلق شیخ البانیؒ فرمائی : (لَمْ اَجِدْهُ اِلَى الْآنَ) تر اوسه پورے ماته داسے کوم اثر نهٔ دے ملاؤ شوے).

○ امام مالكؒ فرمائی : (لَمْ اَسْمَعْ فِيهِ شَيْئًا) (ددے متعلق ما هیڅ نهٔ دی اوریدلی) (تمام المنة ص : ٣٤٩) ارواء الغلیل (٦٤٠) المجموع (٥/٢٦) والمدونة الکبریٰ (١/١٦٩)

٤- بعض د ((لَا تُرْفَعُ الْاَيْدِيْ اِلَّا فِيْ سَبْعَةِ مَوَاطِنَ)) روایت پیش کوی لیکن هغه ضعیف دے. زیلعیؒ په نصب الرایه (١/٣٩٠) کښې فرمائی : دا حدیث پدے الفاظو غیر محفوظ دے او په مشهور روایت کښې ورسره عیدین نهٔ دی ذکر. لهذا دا مرسل او غیر محفوظ (ضعیف) روایت دے. او زیلعیؒ صاحب دا روایت د معنیٰ په لحاظ هم باطل ګرځولے دے.

٥- بعض علماء د عموماتو نه دلیل نیسی چه نبی ﷺ به قبل الرکوع تکبیراتو کښې رفع الیدین کول. لیکن دا په باره د عام مانځهٔ کښې دی. نهٔ په باره کښې د تکبیراتِ زوائد د عیدینو کښې. او په یو خاص عبادت کښې په عموماتو باندے استدلال کولو نه بدعات پیدا کیږی. صحیح دا ده چه د اخترونو په مونځونو کښې په تکبیرات زوائدو کښې د رفع الیدین په باره کښې هیڅ صحیح مرفوع حدیث نهٔ دے ثابت او موقوف روایات هم ضعیف دی لهذا پدے مقام کښې رفع الیدین نهٔ دی پکار. علامه ابن حزمؒ په مُحلیٰ کښې فرمائی : په عیدینو کښې رفع الیدین د رسول الله ﷺ نه ندی ثابت او احناف ئے کوی او په عام مونځونو کښې په سنت کښې ثابت دی او احناف ئے نهٔ منی نو دوی حقائق او سنن عکس کړیدی. المحلی (٢/٢٩٦)

او دا قول علامه مبارکفوریؒ په المرعاة (٥/٥٤) کښې راجح کړیدے او دا ئے وئیلی دی چه پدے باره کښې هیڅ صحیح صریح او ضعیف مرفوع حدیث نشته. راجع فتاوی الدین الخالص

(٨٨/٤) و(٢٨١/٦)

**درجة الحديث** : اسناده صحيح بشواهده : اخرجه الترمذی (٥٣٦) وابن ماجه (١٢٧٩) والدارقطنی (٢/٤٨رقم ٣) وقال الترمذی حسن ولكن الاسناد ضعيف فيه كثير بن عبد الله وهو متهم۔

---

**١٤٤٢ (١٧) - وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، مُرْسَلًا، اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ وَاَبَابَكْرٍ وَعُمَرَ كَبَّرُوْا فِي الْعِيْدَيْنِ وَالْاِسْتِسْقَاءِ سَبْعًا وَخَمْسًا، وَصَلُّوْا قَبْلَ الْخُطْبَةِ، وَجَهَرُوْا بِالْقِرَاءَةِ. رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.**

---

**ترجمه** : او جعفر بن محمدؒ نه په طريقه د ارسال نقل دی چه نبی ﷺ او ابوبکر او عمرفاروق رضی الله عنهما په اخترونو او استسقاء کښې اووه تکبيرونه (په اول رکعت کښې) او پنځه (په دويم رکعت کښې) وئيلی دی، او (په اختر کښې ئې) د خطبې نه مخکښې مونځ کړيدے، او (په هغې کښې ئې) قراءت په اوچت آواز کړيدے"۔ (شافعیؒ)۔

**تشريح** : جعفر بن محمد بن علی بن الحسين بن علی بن ابی طالب الهاشمی ابوعبد الله المدنی المعروف بالصادق ددهٔ مور ام فروة بنت القاسم بن محمد بن ابی بکر ده چه ام فروه د اسماء بنت ابی بکر لور ده۔ دهٔ به وئيل زهٔ د ابوبکر د دوه طرفونو نه څوی يم۔ ددهٔ پلار محمد الباقر ددهٔ استاذ هم دے۔ د امام مالك، ابوحنيفه، سفيانانو استاذ دے۔صدوق، فقيه، ثقه امام دے۔ امام مالك وائی : زهٔ به ددهٔ خواته څه زمانه ورتلم نو ما به په درے خصلتونو موندلو يا به په مانځه ولاړ وو يا به روژه وو يا به ئې د قرآن تلاوت کولو۔او هميشه به ئې په حالت د طهارت کښې احاديث بيانول۔په سنه (١٤٨ هـ) کښې د (٦٨) کالو په عمر وفات شويدے او په بقيع کښې د خپل پلار محمد الباقر او د نيکه علی زين العابدين سره دفن شويدے۔ او دا حديث ئې مرسل نهٔ دے بلکه منقطع بلکه معضل دے۔

**وَجَهَرُوْا بِالْقِرَاءَةِ** : دا روايت دليل دے چه د اختر په مانځه کښې جهر سنت عمل دے ابن المنذرؒ فرمائی: اکثر اهل علم قرائت په جهر سره گڼړی۔

او دا روايت اگرکه ضعيف دے ليکن د نورو رواياتو نه معلوميږی چه نبی ﷺ به په اختر کښې جهر کولو، او کومو صحابه کرامو چه د نبی ﷺ د قرائت اخبار ورکړے دے نو د هغې نه هم معلوميږی چه دے صحابه کرامو اوريدلے دے۔صحيح مسلم کښې دی : ابوواقد الليثی رضی الله عنه فرمائی : نبی ﷺ به په اضحیٰ او فطر کښې «سورة ق او اقتربت الساعة» لوستل۔ او په مسند احمد او ابن ماجه کښې د سمره بن جندب ﷺ حديث کښې دی : نبی ﷺ به په عيدينو

کښې «سبح اسم ربك الاعلىٰ او هل اتاك حديث الغاشيه» لوستل۔ ابن عبد البرؒ فرمائي : د نبي ﷺ پدے عمل باندے متواتر روايات راغلي دي۔

(توضيح الاحكام ٢/٣٩٨) (بلوغ الامانى ٦/١٤٥)

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف جداً : اخرجه الشافعي في المسند (٤٥٧) وعبد الرزاق (٣/٢٩٢ رقم ٥٦٧٨) ومع اعضاله ضعيف جداً فيه ابراهيم بن محمد وهو ابن ابى يحيىٰ الاسلمي وهو متهم۔

---

**١٤٤٣ (١٨) – وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ، قَالَ: سَأَلْتُ اَبَامُوْسٰى وَحُذَيْفَةَ : كَيْفَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُكَبِّرُ فِي الْاَضْحٰى وَالْفِطْرِ؟ فَقَالَ اَبُوْمُوْسٰى: كَانَ يُكَبِّرُ اَرْبَعًا تَكْبِيْرَهُ عَلَى الْجَنَائِزِ. فَقَالَ حُذَيْفَةُ :صَدَقَ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.**

**ترجمه** : او سعيد بن العاص ؓ فرمائي: ما د ابو موسىٰ او حذيفه رضى الله عنهما نه تپوس اُوكړو چه رسول الله ﷺ به په غټ اختر او وړوكي اختر كښې څنګه (او څومره) تكبيرونه وئيل؟ ابو موسى ؓ اُوفرمايل : "رسول الله ﷺ به څلور تكبيرونه وئيل لكه څنګه چه په جنازو به ئے وئيل، نو حذيفه ؓ (د ابو موسى په تصديق كښې) اُوفرمايل : "ابو موسىٰ اشعريؓ رښتيا اووئيل"۔ (ابو داودؒ)

## تعارف د سعيد بن العاص ؓ

سعيد بن العاص بن امية الاموى د هجرت په كال پيدا شويدے ددهٔ پلار په بدر كښې كافر مړ شو او نيكهٔ ئے ابو اُحيحه د بدر نه مخكښې مشرك وفات دے او دا سعيد د قريشو د اشرافو او فصحاؤ نه دے، پدے وجه عثمان ؓ د كتابت د قرآن ذمه واري د نورو ملګرو سره دهٔ ته هم دعوت وركړو۔ او دا ډير حليم او وقار والا وو، ابن سعدؒ ليكي : نبي ﷺ چه وفات كيدو نو سعيد د نهو كالو په عمر وو۔ او په صحابه كرامو ؓ كښې حساب دے څكه چه نبي ﷺ ئے ليدلے دے۔ او په جنګ جمل او صفين كښې ئے شركت نهٔ دے كړے۔ او د عثمان ؓ د طرفنه د كوفے ګورنر او د معاويه د طرفنه د مدينے ګورنر پاتے شويدے۔ د طبرستان غزا ئے اُوكړه نو هغه ئے فتح كړو او د جرجان په غزا كښې ددهٔ په لښكر كښې د حذيفه په شان لوئي لوئي صحابه كرام موجود وو۔ دا په عرصه مقام كښې په خپل قصر كښې وفات دے چه د مدينے نه د درے ميلو په فاصله كښې دے۔ او په بقيع كښې په سنه (٥٨) كښې دفن شو۔

**تشريح** : پدے روايت كښې اختصار شويدے اصل كښې داسے دے : وَعَنْ اَبِىْ عَائِشَةَ جَلِيْسِ اَبِىْ هُرَيْرَةَ اَنَّ سَعِيْدَ بْنَ الْعَاصِ سَأَلَ اَبَامُوْسَى الْاَشْعَرِىَّ الخ)

لكه مخكښې په دلائلو كښې هم دغه شان تير شو۔

دے حديث باندے احنافو استدلال كړيدے چه تكبيرات د عيدينو درے درے دي۔ ليكن سند ئے د عام علماؤ په نيز ضعيف دے۔ لهذا اووه او پنځه تكبيرات افضل دي۔ كما مرّ۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : اخرجه احمد فى المسند (٤/٤١٦) وابوداود (١١٥٣) والبيهقى (٣/٢٨٩) وفى اسناده ابوعائشة مجهول وقد تفرد برفع هذا الحديث كما قال ابن حزم، وابن القطان، ووقفه جماعة من الثقات على ابن مسعود وهم علقمة والاسود عند عبد الرزاق كما فى نصب الراية (٢١٣) وعبد الله بن قيس عند الطحاوى فى شرح الآثار وكردوس عند ابن ابى شيبة، كما فى الجوهر النقى، فعلى هذا فزيادة الرفع منكرة، والموقوف هو المحفوظ وزيادة الرفع انما تقبل اذا كان راويها ثقة حافظاً ثبتاً، وبشرط ان لا تكون شاذة والامر ههنا ليس كذلك، وايضاً فى سنده عبد الرحمن بن ثابت بن ثوبان الدمشقى وهو متكلم فيه المرغاة (٥/٥٦)

---

**١٤٤٤ (١٩) – وَعَنِ الْبَرَاءِ، اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نُوْوِلَ يَوْمَ الْعِيْدِ قَوْسًا فَخَطَبَ عَلَيْهِ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.**

---

**ترجمه** : او د براء بن عازب ﷛ نه روايت دے چه "نبى ﷺ ته د اختر په ورځ لينده وركړے شوه نو هغهٔ (په هغے باندے تكيه لګولو سره) خطبه اوويله"۔ (ابوداودؒ)

**تشريح**: دا روايت ضعيف دے ليكن د نبى ﷺ نه د خطبے په حالت كښې دارنګه په علم حالت كښې په جُمعو، سفرونو او اخترونو كښې آمسا باندے تكيه وهله او هغه به ئے په لاس كښې نيولے وه لكه په حديث د حكم بن حزن كښې راغلى دى هغه فرمائى : مونږ د جُمعے مانځه ته د نبى ﷺ سره حاضر شو نو نبى ﷺ پاڅيدو چه په امسا يا لينده باندے ئے تكيه وهلے وه"۔ (اسناده حسن كما فى التلخيص الحبير (٢/٦٤) وشعيب الارناووط فى تعليق زاد المعاد (١/٤١٥) وحسنه الالبانى فى ابى داود رقم (١٠٩٦) ليكن پدے كار باندے نبى ﷺ هميش والے نهٔ دے كړے۔ او پدے كښې هم د منبر قيد نشته لهذا په منبر باندے دپاسه آمسا نيولو كښې صحيح حديث نشته۔ لهذا طريقه دا شوه چه نبى ﷺ به چه كله منبر نهٔ وو جوړ نو د خطبے په وخت كښې به ئے آمسا په لاس كښې نيوله او كله چه منبر جوړ شو نو بيا به ئے نهٔ نيوله، او د اختر په ورځ كښې چونكه منبر نهٔ وى بلكه امام په زمكه ولاړ وى نو آمسا نيول پكار دى۔ راجع زاد المعاد (١/٤١٤) والسلسلة الضعيفة (٢/٣٨١)۔ او حكمت په كښې دا دے چه خطيب په عبث او لوبو مشغول نشى او لاس ئے په آرام شى۔ راجع فتاوى الدين الخالص (٦/٢٠٦)

نوول : دا د باب مفاعله (مناوله) نه د مجهول صيغه ده، يا د باب تفعيل نه د ماضى مجهول صيغه ده مينځ كښې واو پكښې نشته. لكه دا په بعض نسخو د ابوداود كښې راغلے ده. نول معنى ده يو شے يا عطيه وركول.

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف اخرجه ابوداود (١١٤٥) وفى اسناده ابو شهاب واسمه يحيى بن ابى حية قال الحافظ : ضعفوه لكثرة تدليسه)

**١٤٤٥ (٢٠) - وَعَنْ عَطَاءٍ، مُرْسَلًا، اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ إِذَا خَطَبَ يَعْتَمِدُ عَلٰى عَنَزَتِهِ اعْتِمَادًا. رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.**

**ترجمه** : او عطاء رحمه الله په طريقه د ارسال روايت كوى چه نبى ﷺ به كله خطبه وئيله نو په خپله امسا به ئے اعتماد (تكيه) لګوله. (شافعیؒ).

**تشريح**: عنزه هغه وړوكے نيزے ته وائى چه په سر كښې ئے اوسپنه وى. د نبى ﷺ نه دا ثابته ده چه هغه به كله خطبه وئيله نو كله ناكله به ئے آمسا ته تكيه لګوله. او هغه به ئے په لاس كښې وه، زور به ئے پرے كولو. حافظ ابن حجرؒ او د هغه په تابعدارئ كښې علامه شوكانیؒ ددے روايت متعلق وئيلى دى چه دا روايت ضعيف دے ځكه پدے كښې ((ليث)) راوى ضعيف دے. شيخ البانیؒ فرمائى : دا روايت مرسل صحيح دے. ځكه په روايت د بيهقیؒ كښې په دوه طريقو ثابت دے او په هغے كښې ليث راوى نشته. راجع السلسلة الضعيفة (٢/٤٦٣) رقم (٩٦٤).

او كله نا كله به نبى ﷺ په خطبه د عيد كښې په بلال ﷺ باندے تكيه لګوله. (مسلم ١/٢٨٩) دارمى (١/٣٧٧)

**درجة الحديث** : اسناده صحيح مرسل: اخرجه الشافعى فى الام (١/٢١١) (٤٢٢) وفى مسنده (٦/١١٠) وفى سنده ليث ضعيف ولكن اخرجه البيهقى (٣/٣٠٦) باسناد مرسل صحيح ليس فيه ليث. كما قال الالبانى فى الضعيفة (٢/٤٦٣) رقم (٩٦٤)

---

**١٤٤٦ (٢١) - وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: شَهِدْتُ الصَّلَاةَ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ فِي يَوْمِ عِيدٍ، فَبَدَأَ بِالصَّلَاةِ قَبْلَ الْخُطْبَةِ، بِغَيْرِ اَذَانٍ وَلَا اِقَامَةٍ، فَلَمَّا قَضَى الصَّلَاةَ قَامَ مُتَّكِئًا عَلٰى بِلَالٍ، فَحَمِدَ اللّٰهَ وَاَثْنٰى عَلَيْهِ، وَوَعَظَ النَّاسَ، وَذَكَّرَهُمْ، وَحَثَّهُمْ عَلٰى طَاعَتِهِ ثُمَّ قَالَ: وَمَضٰى اِلَى النِّسَاءِ وَمَعَهُ بِلَالٌ فَاَمَرَهُنَّ بِتَقْوَى اللّٰهِ، وَوَعَظَهُنَّ، وَذَكَّرَهُنَّ. رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.**

**ترجمه** : او جابر ﷺ فرمائى: زۀ د اختر په ورځ د نبى ﷺ سره مانځۀ ته حاضر شوم، نو هغۀ

د خطبې نه مخکښې بغیر د اذان او اقامت نه مونځ اوکړو، هرکله چه مونځ ئې اداء کړو نو په بلال باندې تکیه لګولو سره پاځیدو، د الله حمد ئې اوویلو او د هغهٔ صفتونه ئې بیان کړل، او خلقو ته ئې وعظ او نصیحت اوکړو، او د دین احکام ئې ورته یاد کړل، او په خپل طاعت ئې تیزی (ترغیب) ورکړهٔ، او زنانو طرف ته لاړو او د هغهٔ سره بلال وو نو هغوی ته ئې د الله په تقوی حکم اوکړو او نصیحت ئې ورته اوکړو او دینی احکامات ئې ورته بیان کړل"۔ (نسائیؒ)۔

**تشریح : وَذَكَّرَهُمْ** : دا یا عطف تفسیر دے د وعظ دپاره یعنی خلقو ته ئې د نصیحت خبرې اوکړې۔ بعض وائی : وعظ نه مراد نصیحت کول په امر بالمعروف او نهی عن المنکر سره او د تذکیر نه مراد خلقوته د قیامت، جنت او جهنم واقعات ذکر کول دی۔

امام راغبؒ لیکی : وعظ وائی : ((زَجْرٌ مُقْتَرِنٌ بِتَخْوِيفٍ) هغه زجر او زورنے ته وائی چه تخویف ورسره وی) خلیل بن احمدؒ فرمائی : (هُوَ التَّذْكِيرُ بِالْخَيْرِ فِيمَا يَرِقُّ لَهُ الْقَلْبُ) (د خیر په زړهٔ نرمونکو خبرو باندې خلقو ته نصیحت کولو ته وائی)۔

**وَمَضَى إِلَى النِّسَاءِ** : زنانو طرفته ځکه لاړو چه هغوی بیان نهٔ وو اوریدلے نو مطالبه ئې اوکړه چه مونږ ته هم بیان اوکړې شی ځکه آواز پورته کونکی آلات نهٔ وو۔

**درجة الحديث** : اسناده صحیح علی شرط مسلم : اخرجه احمد (۳۱۸/۳) والنسائی (۱۸٦/۳)

---

**۱۴۴۷ (۲۲) – وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا خَرَجَ يَوْمَ الْعِيدِ فِي طَرِيقٍ رَجَعَ فِي غَيْرِهِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ.**

ترجمه : او ابو هریره رضی الله عنه فرمائی : نبی ﷺ به چه کله د اختر په ورځ په یوه لاره (عیدگاه طرفته) اووتلو نو په بله لاره به راواپس کیدو"۔ (ترمذیؒ، دارمیؒ)۔

ددې حدیث تشریح د (۹) نهم حدیث لاندې اوګوره او د لارو د بدلولو وجوهات هم هلته ذکر شویدی۔

**درجة الحديث** : اسناده صحیح : اخرجه احمد (۳۳۸/۲) والدارمی (۳۷۸/۱) والترمذی (۵۴۱) وابن ماجه (۱۳۰۱)

**۱۴۴۸ (۲۳) – وَعَنْهُ، أَنَّهُ أَصَابَهُمْ مَطَرٌ فِي يَوْمِ عِيدٍ، فَصَلَّى بِهِمُ النَّبِيُّ ﷺ صَلَاةَ الْعِيدِ فِي الْمَسْجِدِ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَه.**

ترجمه : او ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دے چه (یو ځل) خلقو ته د اختر په ورځ باران اورسیدو نو

نبي ﷺ هغوي ته په مسجد كښ د اختر مونځ اُوكړو". (ابوداوّد، ابن ماجة)

**تشريح** : د حديث مطلب دا دے چه رسول الله ﷺ به د اختر مونځ په صحراء كښ كولو ليكن په يوه موقعه كښ د اختر په ورځ باران اوشو نو په عيدگاه كښ چقړے جوړے شوے لهذا رسول الله ﷺ خلقو ته د اختر مونځ په مسجد كښ اوكړو نو دا د ضرورت حالت وو ورنه په مساجدو كښ د اخترونو مونځونه كول بدعت دے پدے شرط چه په عيدگاه كښ كولو باندے قدرت لرى.

دغه شان واقعه د عمر فاروق د خلافت په دور كښ هم راغلے وه چه باران اوشو نو عمر رضى الله عنه خلق په مسجد كښ راجمع كړل او هلته ئے ورته مونځ اوكړو بيا منبر ته اودريدو وے فرمايل : اے خلقو ! رسول الله ﷺ به خلق د مانخه دپاره عيدگاه ته راويستل ځكه دا هغوى ته آسانه وه او فراخى وه او مسجد كښ به تكليف وو خو كله چه باران وى بيا مسجد بهتر دے. (بيهقى ۳/۳۱۰)

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : اخرجه ابوداود (۱۱٦۰) وابن ماجه (۳۷۸/۱) وفيه عيسى بن عبد الاعلى مجهول وشيخه ابويحيى عبيد الله بن عبد الله بن موهب مجهول الحال قال الحافظ : هذا اسناد لين (بلوغ المرام) فتصحيح الحاكم واتباع الذهبى له فيه و كذا النووى غير صحيح.

---

۱٤٤۹(۲٤) - وَعَنْ اَبِي الْحُوَيْرِثِ، اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَتَبَ اِلٰى عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ وَهُوَ بِنَجْرَانَ اَنْ عَجِّلِ الْاَضْحٰى، وَأَخِّرِ الْفِطْرَ، وَذَكِّرِ النَّاسَ. رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.

---

ترجمه : او ابوالحويرث ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ عمرو بن حزم ته - چه هغهٔ په نجران كښ وو- دا (د چا په ذريعه) اوليكل چه د لوئى اختر مونځ په جلتئ سره كوه او د وړوكى اختر مونځ په تاخيرسره كوه ا او خلقو ته (په خطبه كښ) نصيحت كوه". (شافعیّ).

**ابوالحويرث** ددهٔ نوم عبد الرحمن بن معاوية بن الحويرث انصارى مدنى تبع تابعى دے په كنيه مشهور دے، حافظ وائي : صدوق سيء الحفظ د طبقه سادسه نه تبع تابعى دے نو ددهٔ حديث مرسل وى.

**عمرو بن حزم** مشهور انصارى صحابى دے اوله غزوه ئے خندق ده د پنځلس كالو په عمر كښ وو او رسول الله ﷺ په نجران باندے گورنر مقرر كړے وو. او باقى ترجمه مخكښ ذكر شويده.

**تشريح** : حديث نه معلوميږى چه د لوئى اختر مونځ وختى پكار دے او د وړوكى اختر مونځ كښ تاخير پكار دے وجه دا ده چه په لوئى اختر كښ انسان ته روستو قربانى وربه غاړه وى، او

خلق د قربانی وخت پورے روژه وی نو که مونځ او خطبه روستو شی، بیا به خلقو ته تکلیف شی خاصکر که د قربانئ غوښه باندے روژه ماتوی لکه ځنګه چه دا سنت عمل دے نو بیا به هغه ډیره روستو شی۔ مسلمان ته به تکلیف اُورسی۔
او په وړوکی اختر کښ دا تکلیف نۀ وی لهٰذا هغه د غټ اختر په نسبت لګ روستو کول پکار دی۔
**بیا د اختر** د مانځه دپاره معین وخت څه دے؟ نود احادیثو نه معلومیږی (لکه روستو متصل حدیث کښ راځی) چه د زوال نه به ئے نۀ اړوی۔ او هرچه اول وخت دے (۱) نو شوافع وائی : اول وخت د اختر د مانځه د نمر د راختلو د ابتداء نه دے اګرکه پوره نۀ وی راختلے ځکه د اختر مونځ سببی مونځ دے نو ددے دپاره مکروه خت نشته۔ اګرکه مسنون دا ده چه د نمر د یو نیزه پورته کیدو نه روستو مونځ اوکړی دے دپاره چه د اختلاف نه اُوځی۔ (۲) مالکیه او حنابله او حنفیه وائی : اول وقت ئے د هغه وخت نه شروع دے چه نفل جائز شی چه هغه نمر یوه نیزه پورته شی تر زوال نه مخکښ پورے۔ او همدا قول راجح دے۔
**دلیل** دا دے چه احمد، ابوداود، ابن ماجه، حاکم او بیهقیؒ د یزید بن خمیر نه نقل کوی چه عبد الله بن بُسر رضی الله عنه د خلقو سره په وړوکی یا لوئی اختر کښ راووتو نو د امام ناوخته راوتل ئے بد اوګڼړل او وے اوفرمایل : چه مونږ به (د نبی ﷺ په زمانه کښ) پدے وخت کښ (د مانځه نه) فارغ شوی وو او دا وخت د تسبیح (یعنی صلاة الضحیٰ) وو۔
حافظ فرمائی : دا هغه وخت دے چه مکروه وخت ختم شی او په یو صحیح روایت د طبرانی کښ دی : دا وخت د صلاة الضحیٰ وو۔
**درجة الحدیث:** اسناده ضعیف : اخرجه الشافعی فی المسند (٤٤٢) وفی الام (۱/۲۳۲) والبیهقی فی الکبریٰ (۳/۲۸۲) وفی اسناده ابراهیم بن محمد المتقدم۔

---

۱٤٥٠ (۲٥) - وَعَنْ اَبِیْ عُمَیْرِ بْنِ اَنَسٍ، عَنْ عُمُوْمَةٍ لَهٗ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِیِّ ﷺ اَنَّ رَکْبًا جَاؤُوْا اِلَی النَّبِیِّ ﷺ یَشْهَدُوْنَ اَنَّهُمْ رَاَوُا الْهِلَالَ بِالْاَمْسِ، فَاَمَرَهُمْ اَنْ یُّفْطِرُوْا، وَاِذَا اَصْبَحُوْا اَنْ یَّغْدُوْا اِلٰی مُصَلَّاهُمْ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ، وَالنَّسَائِیُّ.

**ترجمه** : او ابوعمیر بن انس رحمه الله د خپلو ترونو نه چه هغهٔ د نبی ﷺ صحابه کرام وو۔ دا روایت نقل کوی چه یوه قافله نبی کریم ﷺ ته راغله چه دا شهادت ئے کولو چه دوی پرون ورځ سپوږمئ لیدلے وه، نو نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ته حکم اوکړو چه افطار اوکړی او کله

چه سبا کړی نو عیدګاه ته (د مانځه دپاره) لاړ شی"۔ (ابوداوۨ، نسائیؒ)

**تشریح : عُمُوْمَةٍ** : جمع د عم ده لکه بعولة جمع د بعل ده۔

په روایت د طحاوی کښې راغلی دی چه دوی دا ګواهی بعد الزوال ورکړه۔ نو دا حدیث دلیل دے چه د اختر مونځ تر زوال پورے کیږی ولے که بعد الزوال هم کیدلے شوے نو نبیﷺ به سبا ته نۀ روستو کولے۔ وهو قول احمدؒ وابی حنیفةؒ او دا دلیل دے چه دِ وړوکی اختر دوه ورځی دی یو اصلی او بله عارضی او اضطراری که ضرورت وی نو په دویمه ورځ هم مونځ کیږی۔ او دا به اداء وی او قضاء به ورته نشی وئیلے۔ کما قال الشوکانیؒ۔ (٢) امام مالك او ابوثورؒ فرمائی : که خلق په اختر بانـدے قبل الزوال خبر شو نو مونځ به کوی او که بعد الزوال خبر شو نو بالکل مونځ نشته نۀ نن او نۀ سبا له ځکه دا دیو وقت عمل دے نو په بل وخت کښې به نشی کولے او دغه شان قول خطابیؒ د امام شافعیؒ نه هم نقل کریدے۔ (نو دے علماؤ پدے حدیث باندے عمل نۀ دے کړے) لیکن بیا ئے وئیلی دی چه (سُنَّةُ النَّبِيِّ ﷺ اَوْلٰى بِالْاِتِّبَاعِ وَحَدِيْثُ اَبِيْ عُمَيْرٍ صَحِيْحٌ فَالْمَصِيْرُ اِلَيْهِ وَاجِبٌ آه) (نیل الاوطار٣/٣٨٢) (یعنی د نبیﷺ د سنتو اتباع ډیره لائق ده او حدیث د ابوعمیرؓ صحیح دے نو هغے ته رجوع پکار ده) (چه په هغے په دویمه ورځ باندے مونځ کول ذکر دی) احناف پکښې لا دا وائی چه که په دویمه ورځ ئے اونکړو نو په دریمه ورځ به ئے قبل الزوال اوکړی خو که په دریمه ورځ ئے قبل الزوال اونکړو نو بیا ساقط دے برابره ده که د عذر د وجه نه وی او که د غیر عذر نه وی۔ کما فی شرح القدوری۔ قاله الشوکانی۔ لیکن په دریمه ورځ باندے کیدو کښې حدیث نۀ دے ثابت۔

**اَنْ يُفْطِرُوْا** : کله چه انسان ته خبر اوشو چه میاشت د اختر اولیدے شوه نو که څوك روژه وی هغوی به روژه سمدستی ماتوی که هر وخت وی او مونځ به سبا له کوی کله چه زوال نه پس خبر شی۔ او که د زوال نه مخکښې خبر اُوشو نو بیا به په همدغه ورځ مونځ کولے شی۔

دا حدیث دلیل دے چه د میاشتے د لیدلو په باره کښې اختلاف د مطالعو له اعتبار نشته دے قافلے ته نبی ﷺ دا اُونۀ وئیل چه مونږ لا نۀ ده لیدلے، ځکه چه زمونږ خپل لیدل دی او ستاسو خپل لیدل دی بلکه د هغوی په لیدلو ئے اکتفاء اُوکړه او د هغوی لیدل ئے معتبر اُوګرزول۔

**درجة الحديث** : اسناده صحیح : اخرجه احمد (٥/٥٧) وابوداود (١١٥٧) والنسائی (٣/١٨٠) وابن ماجه (١٦٥٣) والبیهقی (٣/٣١٦)

## الفصل الثالث

١٤٥١ (٢٦) — عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِيْ عَطَاءٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ،

قَالَا: لَمْ يَكُنْ يُؤَذَّنُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَلَا يَوْمَ الْأَضْحٰى، ثُمَّ سَأَلْتُهُ- يَعْنِيْ عَطَاءً- بَعْدَ حِيْنٍ عَنْ ذٰلِكَ، فَأَخْبَرَنِيْ، قَالَ: أَخْبَرَنِيْ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ أَنْ لَا أَذَانَ لِلصَّلَاةِ يَوْمَ الْفِطْرِ، حِيْنَ يَخْرُجُ الْإِمَامُ، وَلَابَعْدَ مَا يَخْرُجُ، وَلَاإِقَامَةَ، وَلَانِدَاءَ وَلَاشَيْءَ، لَانِدَاءَ يَوْمَئِذٍ وَلَا إِقَامَةَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : ابن جريج فرمائي : ما ته عطاء د ابن عباس او جابر بن عبد الله نه خبر راکړے چه دواړو فرمايلي دي :(د نبي ﷺ په زمانه کښې) د وړوکي او لوئي اختر په ورځ به اذان نهٔ کيدو، ابن جريج فرمائي: بيا څهٔ وخت روستو ما د هغهٔ يعني عطاء نه ددے په باره کښې تپوس اوکړو، نو هغهٔ راته اوفرمايل : ما ته جابر بن عبد الله خبر راکړے چه د وړوکي اختر په ورځ د (اختر) مانځه دپاره اذان نهٔ شته نهٔ د امام د راوتو په وخت کښې او نهٔ پس د هغے نه چه راووځي، او نهٔ اقامت شته او نهٔ بل آواز، او نهٔ هيڅ شے، نهٔ په دغه ورځ اذان شته او نهٔ اقامت“۔ (مسلمؒ)

تشريح : ابن جريج ددهٔ نوم عبد الملك بن عبد العزيز بن جريج الاموي اصل ئے رومي دے د بنو اميه آزاد کړه غلام دے، ثقه، فقيه فاضل محدث دے او دهٔ به تدليس او ارسال کولو۔ په سنه (۱۵۰ هـ) کښې وفات شو۔

وَلَانِدَاءَ وَلَاشَيْءَ : دا دليل دے چه د اختر مانځه نه مخکښې خطبه وئيل مشروع نهٔ دي بلکه د بدعاتو نه شمار دي او د بنو اميه ؤ ايجاد کړه عمل دے۔

لَمْ يَكُنْ يُؤَذَّنُ : دا دليل دے چه دين کښې عقل نهٔ چليږي بلکه دين به په نقل بناء وي نبي ﷺ د اختر مانځه دپاره اذان او اقامت نهٔ دے کړے نو بس همدغه دين دے۔

حِيْنَ يَخْرُجُ : ددے نه مراد په اول وقت کښې اذان کول دي او بعد ما يخرج : نه مراد د مانځه دپاره راوتلو وخت کښې اذان دے نو دواړو وقتونو کښې نهٔ دے ثابت۔

---

۱۴۵۲ (۲۷) – وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ كَانَ يَخْرُجُ يَوْمَ الْأَضْحٰى وَيَوْمَ الْفِطْرِ فَيَبْدَأُ بِالصَّلَاةِ فَإِذَا صَلّٰى صَلَاتَهُ، قَامَ فَأَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ، وَهُمْ جُلُوْسٌ فِيْ مُصَلَّاهُمْ فَإِنْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ بِبَعْثٍ ذَكَرَهُ لِلنَّاسِ، أَوْ كَانَتْ لَهُ حَاجَةٌ بِغَيْرِ ذٰلِكَ أَمَرَهُمْ بِهَا، وَكَانَ يَقُوْلُ: تَصَدَّقُوْا، تَصَدَّقُوْا، تَصَدَّقُوْا، وَكَانَ أَكْثَرَ مَنْ يَتَصَدَّقُ النِّسَاءُ. ثُمَّ يَنْصَرِفُ، فَلَمْ يَزَلْ كَذٰلِكَ حَتّٰى كَانَ مَرْوَانُ بْنُ الْحَكَمِ، فَخَرَجْتُ مُخَاصِرًا مَرْوَانَ حَتّٰى أَتَيْنَا الْمُصَلّٰى،

فَإِذَا كَثِيرُ بْنُ الصَّلْتِ قَدْ بَنَى مِنْبَرًا مِنْ طِينٍ وَلَبِنٍ، فَإِذَا مَرْوَانُ يُنَازِعُنِي يَدَهُ، كَأَنَّهُ يَجُرُّنِي نَحْوَ الْمِنْبَرِ وَأَنَا أَجُرُّهُ نَحْوَ الصَّلَاةِ فَلَمَّا رَأَيْتُ ذٰلِكَ مِنْهُ قُلْتُ: أَيْنَ الْإِبْتِدَاءُ بِالصَّلَاةِ؟! فَقَالَ: لَا يَا أَبَا سَعِيدٍ! قَدْ تُرِكَ مَا تَعْلَمُ. قُلْتُ: كَلَّا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا تَأْتُونَ بِخَيْرٍ مِمَّا أَعْلَمُ، ثَلَاثَ مِرَارٍ، ثُمَّ انْصَرَفَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: او د ابو سعيد خدري ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ به د غټ اختر او وړوکي اختر په ورځ (عيدگاه ته) راوتلو نو (د خطبے نه مخکښ) په مانځه به ئے شروع اوکړه، کله چه به ئے مونځ پوره کړو نو پابه ځيدو او خلقو ته به متوجه شو او هغوی به په خپلو ځايونو د مانځه کښ ناست وو، (تقرير به ئے اوکړو) نو کۀ د لښکر ليږلو ته به ضرورت وو نو خلقو ته به ئے هغۀ ذکر کړل (او لښکر به ئے اوليږلو) او کۀ (د مسلمانانو د فائدے دپاره) بل کوم حاجت به وو نو په هغے به ئے حکم اوکړو، او نبی ﷺ به (په خپله خطبه کښ) فرمايل: "صدقے ورکړئ، صدقے ورکړئ، صدقے ورکړئ!" او په صدقه ورکونکو کښ به زنانو ډيرے صدقے ورکولے. دغے نه روستو به (خپل کور ته) واپس راتلو (د نبی ﷺ او د خلفاء اربعه ؓ په دور خلافت کښ) همدغه طريقه روانه وه (چه خطبه به د مانځه نه روستو وئيلے شوه او خطبه به په منبر نۀ بلکه په زمکه ودريدو سره وئيلو شوه) ترڅو چه (د امير معاويهؓ د جانب نه د مدينے حاکم) مروان بن حکم مقرر شو. (ابو سعيدؓ فرمائی) (يوه ورځ) زۀ (د اختر په ورځ) د مروان بن حکم سره پداسے حال کښ (عيدگاه ته) راووتلم چه ما د هغۀ لاس په خپل لاس کښ نيولے وو، ترڅو چه مونږ عيدگاه ته راغلو نو څۀ گورو چه کثير بن صلت د ختو او کچه خښتو نه يو منبر جوړ کړے وو، نو اچانک مروان ما نه خپل لاس راخکلو، گويا کښ زۀ ئے منبر طرف ته راخکلم، (چه د مانځه نه مخکښ خطبه اووائی) او ما هغۀ لره مانځه طرف ته راخکلو، هرکله چه ما دا اوليدل (چه هغۀ ضرور خطبه مخکښ وائی) نو ما اووئيل چه د اختر د مونځ مخکښ اداکولو هغۀ فعل څه شو؟ (چه په هغے به د نبی ﷺ او د خلفاء راشدينو په زمانه کښ عمل کيدو) مروان اووئيل چه "اے ابو سعيد! داسے نۀ ده (يعنی جگړے پريده) تا ته چه کومه خبره معلومه ده هغۀ اوس پريخودلے شويده (يعنی زۀ د مصلحت په خاطر خطبه د مانځه نه مخکښ کوم) ما ورته اووئيل: "هيچرے نۀ ده! قسم په هغۀ ذات چه د هغۀ په لاس کښ زما روح دے، تاسو د هغۀ څيز نه غوره نۀ شئ راوړے کوم چه ماته معلوم دے". ما دا خبره درے کرته اوکړه، بيا مروان (منبر طرف ته) واوړيدو. (يا ابو سعيد خدري د عيدگاه نه لاړو)" (مسلم).

**تشریح:** زنانو به صدقه ځکه زیاته کوله چه نبی ﷺ به هغوی ته زیات ترغیب او تیزی ورکوله په صدقه کولو باندې ځکه چه هغوی ئې په اُور کښې زیاتې لیدلې وې د خاوندانو د ناشکرئ او خبره نهٔ منلو په وجه او د ډیرو شکایتونو او لعنتونو وئیلو په وجه او د اُور نه د خلاصیدو دپاره ښه نسخه صدقه کول دی نو ځکه زنانو صدقې زیاتې کولې چه د اُور نه ورته خلاصې ملاؤ شی۔ او نبی ﷺ د صدقې او خیرات کولو د تاکید دپاره درې کرت دا جمله "تصدقوا" اوفرمایله یا دا چه دا درې حالتونو ته اشاره ده۔ ۱ – صدقه ورکړئ د خپل ژوند دپاره ۲ – صدقه ورکړئ د خپل موت دپاره۔ ۳ – صدقه ورکړئ د خپل آخرت دپاره چه په دې درې واړو حالتونو کښې درباندې الله رحم اوکړی۔

**مُخَاصِرًا** : مخاصره دېته وائی چه دوه کسان د یو بل نه داسې لاس تاؤ کړی چه د یو بل د تشو سره ئې لاس لګی۔ یعنی دواړه شریك جوخت جوخت روان وو۔

**تعارف د مروان بن الحکم** : مروان بن الحکم بن ابی العاص بن امیة القرشی ابوعبد الملك الاموی په دویم هجری کښې پیدا دې او د عثمان بن عفانؓ د ترهٔ ځوی دې۔ ابن عبد البرّ فرمائی: نبی ﷺ ئې پدې وجه نهٔ دې لیدلې چه دا په وړوکوالی کښې طائف ته تلې وو چه نهٔ پو هیدلو۔ ځکه چه ددهٔ پلار حکم رسول الله ﷺ طائف ته شړلې وو کوم چه روستو په فتح د مکه کښې مسلمان شو او په طائف کښې تر خلافت د عثمان پورې اوسیدو بیا د عثمان په خلافت کښې مدینې ته د خپلو اولادو سره راغلو نو پلار د مروان وفات شو بیا عثمان د مروان نه مطالبه اوکړه چه زما کاتب جوړ شه او د ځان سره ئې نزدې کړو تردې چه مروان په عثمان باندې غلبه اوکړه او په عثمان باندې ددهٔ په وجه تهمتونه اُولګیدل او دا د عثمان د قتل دپاره سبب اوګرځیدو بیا په جنګ جمل کښې د عائشهؓ سره وو او بیا په صفین کښې د معاویهؓ ملګرې وو بیا ورته د معاویهؓ د طرفنه د مدینې ګورنري ملاؤ شوه په هغې کښې وو تردې چه د یزید بن معاویه د خلافت په اواخلو کښې عبد الله بن زبیر دوی اوویستل نو ددې د وجه نه واقعه د ((حَرَه)) پیدا شوه۔ او په شام کښې اوسیدو تردې چه معاویه بن یزید بن معاویه وفات شو نو بعض شام والو ددهٔ سره بیعت اوکړو په سنه (٦٤) کښې چه اوګده واقعه ده، بیا ددهٔ او د ضحاك بن قیس جنګ راغلو چه دا امیر وو د ابن الزبیر د طرفنه نو مروان خپله بدله واخسته او ضحاك ئې قتل کړو نو بادشاهی د شام ورته ملاؤ شوه بیا مصر ته متوجه شو نو په هغې ئې هم غلبه اوکړه تردې چه ناڅاپی مرګ پرې راغلو نو خپل ځوی عبد الملك ئې ولی عهد مقرر کړو نو د مروان خلافت نهه میاشتې وو او په اول د رمضان کښې په سنه (٦٥) کښې د (٦٣) کالو په عمر وفات شو۔

مروان كښې فسق موجود وو ليكن بل طرفته د فقهاؤ نه هم حساب دے۔ عروة بن الزبير فرمائي : مروان په باب د حديث كښې متهم نهٔ دے۔ ددے وجه نه دا د صحيح بخاري راوي دے نو په باب د روايت كښې ئے خبره منظوره ده، ځكه د بدعتي او فاسق روايت هم معتبر وي۔ او دهٔ باندے علماؤ دا عيب لګولو چه دهٔ په جنګ جمل كښې طلحه رضى الله عنه په غشي ويشتلے وو او هغه ئے شهيد كړے وو او بيا ئے د خلافت د طلب كولو دپاره توره راوخكله تردے چه مشهورے كارنامے ئے د لاس نه صادرے شوے۔ حافظؒ فرمائي : د طلحهؓ په قتل كښې ئے تاويل كولو۔ او ددهٔ نه به سهل بن سعد رضى الله عنه او عروه او على بن الحسين او ابوبكر بن عبد الرحمن بن الحارث احاديث نقل كول په هغه وخت كښې چه دا په مدينه باندے امير وو او ددهٔ نه په خلافت كښې د ابن الزبيرؓ سره جنګونه نه وو سرزد شوي۔ او امام مالكؒ او باقي علماء دده په حديث او رأيه باندے اعتماد كوي سویٰ د امام مسلم نه۔ انتهیٰ۔

كثير بن الصلت الكندي المدني ثقة من كبار التابعين۔ دا تابعي دے د نبي ﷺ په زمانه كښې پيدا شويدے او د هغه سره ئے شرف د ملاقات نهٔ دے حاصل شوے۔ صاحب د جامع الاصول په صحابه كرامؓ كښې شمار كړے ليكن اول قول صحيح دے۔ ددهٔ نوم قليل وو عمر فاروق ورله كثير كيخودلو۔ ددهٔ كور د عيدګاه په خوا كښې وو، د عيدګاه قبلے طرف ته وو او دا كور اول كښې د وليد بن عتبه وو بيا په كثير مشهور شو۔ او دهٔ دا منبر د نبي ﷺ د زمانے نه روستو په امر د مروان باندے جوړ كړے وو او دا هم د بدعاتو نه دے چه په عيدګاه كښې په منبر باندے خطبه اووئيلے شي بلكه نبي ﷺ به كله خطبه په ولاړه وئيله بلال ته به ئے تكيه وهلے وه۔

نو د بنو اميه ؤ دوه بدعات وو يو به ئے خطبه قبل العيد لوستله ځكه د بادشاهانو نه به خلق تنګ وو نو د هغوی خبرے اوريدو ته به تيار نهٔ وو نو خطبه ئے مخكښې كړه په سنت كښې ئے ورته ګټ ګټ اوكړو، ابوسعيد خدريؓ پرے رد اوكړو چه په مانځه باندے ابتداء سنت ده او هغه تا اونكړه يعني د سنت مخالفت دے اوكړو، هغه ورته اووئيل : قَدْ تُرِكَ مَا تَعْلَمُ۔ دا كومے خبرے چه تا ته معلومے دي نو هغه اوس پريخودے شويدي يعني كه په سنت باندے عمل اوكړو بيا زمونږ خطبه څوك نهٔ اوري، ځكه په حديث باندے عمل نشو كولے، همدا جواب بعينه مقلدين او باطل پرست هم كوي چه اوس ددے مسئلو وخت نهٔ دے، خلق پدے باندے عمل نشي كولے۔ نو ابوسعيدؓ ورته اوفرمايل : ما ته چه څه معلوم دي چه هغه د رسول الله ﷺ او د هغه د خلفاء راشدينو تابعداري ده نو ددے نه به تاسو خير رانهٔ وړئ۔

ثم انصرف : ١ – بيا ابوسعيدؓ د مروان نه واوريدو مانځه طرفته او د هغه خطبه كښې شريك

نشو۔ ۲ – ددې معنی احتمال هم شته چه بیا مروان منبر طرفته راغلو دې دپاره چه خطبه اووائی او د ابوسعید خدریؓ خبره ئې اونۀ منله چه اول دې مونځ اوکړې شی بیا خطبه۔

**فوائد الحديث** : (۱) خطبه په زمکه باندې سنت ده نۀ په منبر باندې۔

د صحیح بخاری په یو روایت کښې دی :((أَوَّلُ مَنِ اتَّخَذَ الْمِنْبَرَ فِيْ مُصَلَّى الْعِيْدِ مَرْوَانُ)) (بخاری :۹۵٦) (په عیدګاه کښې اول منبر ساتونکے مروان دے)۔

(۲) حدیث دلیل دے چه علماء به په امراء او بادشاهانو انکار کوی کله چه هغوی داسې کار اوکړی چه د سنت خلاف وی۔ (۳) د عالم دپاره د خپلې خبرې په صدق باندې قسم کول جائز دی او دارنګه په احکامو کښې بحث کول۔ (٤) او عالم دپاره خلاف الاولیٰ باندې عمل کول جائز دی کله چه د وقت حاکم او بادشاه د هغه سره په اولیٰ باندې موافقت نۀ کوی، څکه ابوسعیدؓ مانځه ته حاضر وو او د هغه نه اونۀ ګرځیدو۔

(۵) نو دا دلیل دے چه مونځ او خطبه جدا جدا عملونه دی او یو د بل دپاره شرط نۀ دے نو که خطبه چا مخکښې کړه نو مونځ جائز دے۔ اګرکه په خطبه مخکښې کولو کښې بدعتی دے۔

(٦) عملی بدعتی امام پسې مونځ کیږی خاصکر کله چه بادشاه وی۔

**تنبيه** : مصنفؒ پدې مقام کښې ډیر احادیث ترک کړیدی چه په هغې کښې د عیدینو احکام ذکر دی نورو علماؤ راجمع کړیدی، مختصراً هغه بیانوو۔

**مسائل العيد : ۱ – المسئلة الاولیٰ** : د اختر په ورځ یو بل ته مبارکی ورکول او د مانځه نه روستو معانقه (غاړې ملاوول) څه حکم لری؟ نو د صحابه کرامو نه دا ثابت دی چه هغوی به یو بل ته داسې وئیل :((تَقَبَّلَ اللّٰهُ مِنَّا وَمِنْكَ)) (تمام المنة ص(۳۵۵) محمد بن زیادؒ فرمائی : زۀ د ابوامامة الباهلی ؓ وغیره صحابه کرامو سره وم نو هغوی چه به کله د – عیدګاه – نه راواپس کیدل بعضو به بعضو ته دغسې وئیل۔ (قال احمد اسناده جید) الجوهر النقی (۳/۳۱٦)

○ او دغه شان روایت جبیر بن نفیر نقل کړیدې د صحابه کرامو نه۔ حافظ ابن حجرؒ فرمائی : (اسناده حسن کذا فی الفتح (۲/۳۵۷) والمغنی (۲/۲۵۰) او دغه شان روایات فتاوی الدین الخالص (٦/۳۱۱) کښې اوګوره۔

او هرچه مصافحه او غاړې ملاوول دی د مانځه نه روستو نو دا دوه قسمه دی۔ (۱) یو د ورانده نه راغلو میلمنو سره نو دا جائز ده۔(۲) دویم مصافحه او معانقه هغه ده چه خوا کښې ورسره ناست وی مخکښې نه ئې لیدلې وی مصافحه ئې کړی وی او د مانځه نه روستو مصافحه او غاړې ملاووی او دا ئې عادت جوړ کړې وی نو دا بدعت دے احتراز ترې پکار دے۔ او په شامی

(۳٤٦/٥) كښې ئې دے عمل ته د روافضو سنت وئيلے دے او وئيلي دي چه على كل حال دا كار بدعت دے ځکه چه صحابه کرامؓ د مانځه نه روستو مصافحے نۀ دي کړي او د ابن الحاج مالکیؒ نه ئې نقل کړي چه هغه په ((مدخل)) کښې ليکلي دي چه دا کار د بدعاتو نه دے۔او علامه شاطبیؒ په (( موافقات )) کښې دے کار ته مکروه وئيلے دے چه د مانځه نه روستو مصافحه کوي۔ ملاعلی القاریؒ هم دے کار ته بدعت وئيلے دے۔ (المرقاة ۳٦٨/١) نفس مصافحه خو سنت عمل دے ليکن ددے وخت پورے خاص کول ئې بدعت دے۔

**المسئلة الثانية :** په اخترونو کښې د تکبيراتو وئيلو متعلق بعض احکام دادي :

(۱) د تکبيراتو څه حکم دے ؟ نو جمهور علماء دے ته سنت وائي، ليکن راجح دا ده چه دا واجب دي۔ دلائل دا دي آيت کښې دي : ﴿ لِتُكَبِّرُوا اللهَ عَلٰى مَا هَدَاكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴾ ﴿ وَاذْكُرُوا اللهَ فِيْ أَيَّامٍ مَعْدُوْدَاتٍ، فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ...... ﴾ دا آيت اگرکه اول مخاطب پدے سره حجاج کرامؒ دي ليکن نور خلق هم پکښې د عموم د الفاظو د وجه نه دا خل دي لکه دا قول د عام اهل علمو دے کما قال القرطبی (۳/۳) او پدے باندے عمل د مسلمانانو دے۔

○ **آيا دا تکبيرات** به په جهر سره وائي ؟ نو صحيح دا ده چه په عام اوقاتو کښې او عيدگاه ته د راوتو په وخت کښې به پدے باندے جهر کولے شي۔ **دليل :** نافعؒ فرمائي : عبد الله بن عمرؓ به چه کله د ورکي اختر او لوئي اختر په سحر وخت کښې وتلو نو په تکبير به ئې جهر کولو تردے چه عيدگاه ته به راغلو بيا به ئې تکبيرونه وئيل تردے چه امام به راغلو (الدارقطنی ٤٥/٢) رقم (٨) باسناد صحيح ارواء الغليل (١٢٢/٣ رقم ٦٥٠) ابن ابی شيبة (٢/ ١٦٤) والبيهقی (٢٧٩/٣)

○ د اوزاعیؒ او مالك بن انسؒ نه تپوس اوشو چه تکبير به په اخترونو کښې په جهر سره وائي ؟ نو هغوی اوفرمايل : آؤ۔ عبد الله بن عمر رضی الله عنهما به په ورکي اختر کښې دا راښکاره کول تردے چه امام راووځي۔

○ امام بخاریؒ تعليقاً په صيغه د جزم سره د ابن عمرؓ او ابو هريرةؓ نه ذکر کړيدي چه هغوی دواړه به (د ذی الحجې) په لسو ورځو کښې بازار ته وتل او د دوی په تکبيرونو به خلقو تکبيرونه وئيل۔ صحيح بخاري (١٣٢/١) الارواء (١٢٤/٣) رقم (٦٥١)

= **الجهر بها :** دا تکبيرونه د مانځه نه روستو په جهر سره لوستل د علیؓ نه نقل دي چه هغه به داسے تکبير وئيلو چه د لارے خلقو به واوريدلو۔ (منار السبيل لابن ضويان ١٥٣/١) وقال الشيخ فی الارواء (١٢١/٣) لم اقف عليه ولکن سياتی بعض الآثار فی ذلك ان شاء الله۔

**الفاظ التکبير:** پدے کښې صحيح خبره دا ده چه شريعت پدے باب کښې معين الفاظ نۀ دي

مقرر کړی، بلکه هرهغه ذکر چه په هغې کښې تعظیم او تمجید د الله وی مسلمان هغه لوستې شی مګر د صحابه کرامو نه چه کوم اذکار نقل دی هغه علیٰ کل حال افضل دی۔

○ نبی ﷺ د حدادینو (اینګرانو) په لاره تیریدو نو تهلیل او تکبیر به ئې وئیلو۔ (بیهقی ۳/۷۹) وابن ابی شیبة (۲/۱٦٤) وهو ثابت موقوفاً علی ابن عمر ومرفوعاً وسیأتی۔

○ عبد الله بن عباس به داسې وئیل :(( اَللّٰهُ اَكْبَرُ كَبِيْرًا، اَللّٰهُ اَكْبَرُ كَبِيْرًا، اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَأَجَلُّ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ )) (ابن ابی شیبة (۲/۱٦۸) بسند صحیح وصلاة العیدین للمحاملی (۲/۱٤۳)

○ د ابن مسعود نه په صحیح سند نقل دی چه هغه به په ایام التشریق کښې داسې وئیل : (( اَللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ )) (ابن ابی شیبة ۲/۱٦۷) والدارقطنی) نصب الرایة (۲/۲۲٤) وقال سنده جید) په یو صحیح روایت کښې دی چه په اول کښې ئې تکبیرونه درې ځل وئیل)۔ او دا ذکر د عمر فاروق نه هم نقل دې۔ (فقه السنه) او دغه شان د علی نه نقل دی۔ په سند کښې ئې شریك راوی دې چه هغه په متابعاتو کښې حسن الحدیث دې۔

○ فتح الباری (۲/۳۷۰) کښې حافظ فرمائی : ډیره صحیحه صیغه هغه ده چه عبد الرزاق په صحیح د سلمان نه نقل کړیده هغه فرمائی : (کبروا: اَللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ، اَللّٰهُ اَكْبَرُ كَبِيْرًا) وفقه السنة (۱/۲۸٥)

دې تولو اذکارو کښې هر قسم لوستل جواز لری لکه دا خبره شیخ الاسلام ابن تیمیة او سید سابق صاحب غوره کړیده چه پدې باب کښې کوم اذکار راغلی دی هغه تول جائز دی۔ (مجموع الفتاوی (۲٤/۲٤۲) وفقه السنة)

**وقت التکبیرات** : پدې باره کښې صحیح روایت هغه دې چه د علی نه نقل دې چه هغه به د عرفې د ورځې د سهر مانځه نه تر د ایام التشریق د آخری ورځې د مازیګر مانځه پورې او د مازیګر مانځه نه روستو پورې به ئې تکبیرات وئیل۔(ابن ابی شیبة (۲/۱٦٥) والبیهقی (۳/۳۱٤)

○ او دغه شان عمل د عمر بن الخطاب، عبد الله بن مسعود، او عبد الله بن عباس رضی الله عنهم نه نقل دې۔ (مصنف عبد الرزاق (۲/٦٦) والحاکم (۱/۲۹۹) (۳۰۰)

شیخ الاسلام حافظ ابن تیمیة فرمائی : په تکبیراتو کښې اصح قول همدا دې چه پدې باندې جمهور سلف او فقهاء صحابه کرامؓ او د تابعینو امامان روان دی چه د عرفې د ورځې د صلاة الفجر نه تر اخیری ورځې د ایام التشریق پورې اولوستې شی ځکه په سنن کښې روایت دې چه د عرفې ورځ او یوم النحر او ایام التشریق زمونږ د مسلمانانو عید دې او دا د خوراك څکاك او د الله د ذکر ورځې دی الخ۔ مجموع الفتاوی (۲٤/۲۲۰) والملخص الفقهی (۱/۱۹۲) او همدا قول علامه مقبلیؒ

په ((المنار)) (۲۵۹/۱) کښ غوره کړيدے۔

عبد الله بن عباس رضي الله عنهما ددے آيت ﴿ وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ فِي أَيَّامٍ مَعْلُومَاتٍ ﴾ الحج (۲۸) (او خلق په معلومو ورځو کښ د الله نوم ياد کړي) په تفسير کښ وئيلي دي چه ددے ايام معلومات نه مراد د ذي الحجے لس ورځے دي۔ (بخاري ۹٦۹)

○ د عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه مروي دي چه رسول الله ﷺ اوفرمايل : (( مَا مِنْ أَيَّامٍ أَعْظَمَ عِنْدَ اللَّهِ سُبْحَانَهُ وَلَا أَحَبَّ إِلَيْهِ الْعَمَلُ فِيهِنَّ مِنْ هَذِهِ الْأَيَّامِ الْعَشْرِ فَأَكْثِرُوا فِيهِنَّ مِنَ التَّهْلِيلِ وَالتَّكْبِيرِ وَالتَّسْبِيحِ وَالتَّحْمِيدِ )) (احمد ۷۵/۲ وصححه شعيب الارناووط في تعليق مسـ احمد و احمد عبد الرحمن البنا في بلوغ الاماني ۱٦۸/٦ من حديث ابن عباس) عبد بن حميد (۸۰۷) (شعب الايمان (۳۵٤/۳) بسند صحيح وله شاهد من حديث ابن مسعود رواه الطبراني باسناد صحيح انظر (اتحاف الخيرة المهرة (٤۸/۳)

(داسے هيڅ ورځے نشته چه په هغے کښ عمل کول د الله په نيز ددے لسو ورځو نه زيات عظمت والا او پسنديده وي ، لهذا پدے کښ په کثرت سره لا اله الا الله، الله اکبر، سبحان الله او الحمد لله وايئ)۔

دا هم دليل دے چه په لسو وارو ورځو کښ تکبيرات وئيل پکار دي۔

○ امام بخاريؒ فرمائي : د ذي الحجے په لسو ورځو کښ به عبد الله بن عمر او ابو هريره رضي الله عنهم بازار ته وتل او تکبيرونه به ئے وئيل او خلقو به هم د هغوي د تکبيرونو سره تکبيرونه وئيل۔ (بخاري (۹٦۹)

**د تکبيراتو تکرار :** د مانځه نه روستو درے کرته په جهر سره وئيلو باره کښ هيڅ دليل نۀ دے موجود ليکن د احاديثو نه معلومه ده چه په لاره او بازارونو کښ به ئے مکرر وائي، هرڅومره کرت چه وي شمار پکښ نشته۔ په فتاوي اللجنه (۳۰۹/۸) کښ هم دغه شان فتوئ ده چه الله په ايام التشريق کښ مطلقاً ذکر باندے حکم کړيدے او په قرآن او په سنت نبوي کښ د پنځو مونځونو نه روستو ددے تحديد د معين عدد او د کيفيت بيان نۀ دے راغلے، بلکه هرڅومره کرت چه ئے وائي وئيل پکار دي۔

○ دا هر چا له وئيل پکار دي سړي او ښځے، مسافر او مقيم ټول مسلمانان پدے کښ برابر دي۔ دا رنګه جماعت وي او که يواځے مونځ کونکے وي، فرض وي او که نفل۔ په احاديثو کښ د فرضو قيد نشته بلکه دا د علماؤ آراء دي چه هيڅ صحيح دليل پرے نشته۔

بخاري (۱۳۲/۱) (( باب التکبير ايام منیٰ )) کښ ذکر کړيدي چه ابن عمر به په خپله خيمه کښ په منیٰ کښ تکبير وئيلو او مسجد والو به واوريدو نو هغوي به (هم) تکبيرونه اووئيل او

بازار والو به هم تكبير شروع كړو تردې چه منی په په تكبيرونو اوشرنگيده او عبد الله بن عمر رضی الله عنهما به په منیٰ كښې په دغه ورځو كښې تكبيرونه وئيل، او د مونځونو نه روستو او په بستره او خيمه او مجلس كښې او په روانه او دغه تولو ورځو كښې. ○- او ميمونه رضی الله عنها به د اختر په ورځ تكبيرونه وئيل او زنانو به د ابان بن عثمان او عمر بن عبد العزيز نه روستو په شپو د تشريق كښې د سړو سره په مسجد كښې تكبيرونه وئيل.

○ ام عطيه رضی الله عنها فرمائی : ((كُنَّا نُؤْمَرُ اَنْ نَخْرُجَ يَوْمَ الْعِيْدِ حَتّٰى نُخْرِجَ الْبِكْرَ مِنْ خِدْرِهَا حَتّٰى نُخْرِجَ الْحُيَّضَ فَيَكُنَّ خَلْفَ النَّاسِ فَيُكَبِّرْنَ بِتَكْبِيْرِهِمْ وَيَدْعُوْنَ بِدُعَائِهِمْ يَرْجُوْنَ بَرَكَةَ ذٰلِكَ الْيَوْمِ وَطُهْرَتَهٗ)) (بخاری ١٣٢/١) (ح٩٢٨) (مونږ ته به دا حكم وو چه د اختر په ورځ پيغلې د خپلو پردو او حائضې راوباسو چه دوی د خلقو نه روستو د هغوی په تكبيرونو سره تكبير اووائی او د هغوی په دعاگانو دعا اوكړی او د دغه ورځې د بركت او پاكئ امید اوساتی).

حافظ ابن حجرؒ فرمائی : دا آثار مشتمل دی په وجود د تكبير باندې په دغه ورځ كښې روستو د مونځونو او نورو احوالو كښې او پدې كښې د علماؤ د ځايونو په باره كښې اختلاف شته، بعضو تكبير د مونځونو نه روستو پورې خاص كړې، او بعضو صرف د فرائضو پورې خاص كړې نۀ د نوافلو پورې او بعضو د سړو پورې خاص كړې نۀ د ښځو پورې او د جماعت پورې نۀ د منفرد پورې او د ادائی مانځه پورې نۀ د قضائی پورې او د مقيم پورې نۀ د مسافر پورې او د ښار اوسيدونكی پورې نۀ د باندې او كلی اوسيدونكی پورې ليكن د بخاریؒ د غوره كولو نه دا ښكاريږی چه تكبير به دا تول خلق وائی او هغه احاديث او آثار چه ئې ذكر كړيدی هغه ئې تائيد كوی.

بيا فرمائی : علماؤ اختلاف كړې ددې په ابتداء او انتهاء كښې، بعض وائی : د صبا د ورځې ، عرفې نه او بعض وائی : د ظهر نه او بعض وائی د عصر نه او بعض وائی د صبا د ورځې د اختر نه او بعض وائی د دويمې ورځې د ظهر پورې دی او بعض وائی د ايام التشريق د آخری ورځې د صبا پورې دی او بعضې وائی : تر ظهر د دغه ورځې پورې او بعض وائی : تر عصر د دغه ورځې پورې. ليكن پدې باره كښې د نبی ﷺ نه حديث نۀ دې ثابت او د صحابه كرامؓ نه پكښې د علی او ابن مسعود رضی الله عنهما صحيح قول ثابت دې. (لكه چه مخكښې ذكر شو)

(فتح البارى (١٤١/٣) ونيل الاوطار (٣٨٨/٣)

او همدا قول حق دې. الله فرمائی : ﴿وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِيْٓ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ﴾ ﴿فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَذِكْرِكُمْ اٰبَآءَكُمْ اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا﴾ نو الله پدې ورځو كښې مطلقاً په ذكر باندې حكم كړې په هر حالت كښې چه وی. زاد المعاد (٤٤٩/١) فقه السنة (٢٨٥/١)

علامه شوکانیؒ فرمائی : ظاهر دا ده چه د تکبیراتو د تشریق استحباب د مونځونو پورې خاص نهٔ دې بلکه دا د دغه ورځو په هر وخت کښې مستحب دی لکه پدې باندې آثار او احادیث دلالت کوی۔ او دغه شان تحقیق علامه صدیق حسن خان په الروضة الندية (۱/ ۱٤٤) کښې کړیدې۔

○ دا تکبیرات د وړوکی اختر په شپه او ورځ کښې هم شته او ددې وخت په سنت مطهره کښې د غروب الشمس نه تر مانځه د اختر پورې دې او بعض وائی د خلقو د راوتو نه تر مانځه پورې دې۔ لیکن اول قول ډیر صحیح دې۔(۱) ځکه چه الله فرمائی : ﴿وَلِتُكَبِّرُوا اللهَ عَلٰى مَا هَدٰكُمْ﴾ (البقره) دا آیت په باره د روژو کښې راغلې دې۔ (۲) دویم دا چه عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه مروی دی چه هغه به په دوارو اخترونو کښې د مسجد نه وتو او تکبیرونه به ئې وئیل تر دې چه عیدگاه ته به راغلو او تکبیرونه به ئې وئیل تردې چه امام به راووتو)) (الدارقطنی ۲/ ٤٤) باسناد صحیح)

۳- ابوعبد الرحمن السلمیؒ فرمائی : صحابه کرامؓ به په وړوکی اختر کښې د لوئی اختر نه زیات تکبیرونه وئیل۔ (الدارقطنی)

٥- بیهقی (۳/ ۱۷۹) کښې دغه شان د ابن عمرؓ نه نقل دی۔

٦- ډیر صریح روایت په کښې هغه دې چه ابن ابی شیبه (۲/ ۱٦٤) نقل کړیدې۔ امام زهریؒ فرمائی : ((نبی ﷺ به په یوم الفطر کښې راوتو او تکبیر به ئې وئیلو تردې چه عیدگاه ته به راغلو او تردې چه مونځ به ئې ختم کړو نو کله چه به ئې مونځ ختم کړو تکبیر به ئې بس کړو)) شیخ البانیؒ په الصحیحة (۱/ ۲۷۹) رقم (۱۷۱) کښې فرمائی : ددې سند صحیح دې۔ خو مرسل دې لیکن ددې دپاره شاهد متصل شته چه په هغې سره قوی کیږی او هغه په بیهقی (۳/ ۲۷۹) کښې راغلې دې۔ عبد الله بن عمر العمری د نافع نه هغه د ابن عمر نه نقل کوی چه رسول الله ﷺ به په دوارو اخترونو کښې د فضل بن عباس، عبد الله بن عباس، علی، جعفر، حسن، حسین، اسامه بن زید، زید بن حارثه او ایمن بن ام ایمن رضی الله عنهم سره وتلو او په تکبیر او تهلیل به ئې آواز پورته کړو او د حدادینو (اینگرانو) په لاره به تیریدو تردې چه عیدگاه ته به راغلو او کله چه فارغ شو نو بیا به په لاره د موچیانو راتلو تردې چه کور ته به راورسیدو))۔(ددې رجال ثقات دی رجال د مسلم دی سوئ د عبد الله بن عمر العمری المکبر ذهبیؒ وائی : صَدُوْقٌ فِیْ حِفْظِهٖ شَیْءٌ) نو دا د استشهاد دپاره صلاحیت لری ځکه ضعف ئې د تهمت په وجه نهٔ دې بلکه د حفظ د وجه نه دې نو دا ضعف معمولی دې لهذا دا د زهریؒ مرسل روایت دپاره قوی شاهد گرځی نو پدې سره حدیث صحیح گرځی۔

○ پدې تکبیراتو کښې به اجتماعی شکل نشی اختیارولې بلکه هرڅوك به ځانله ځانله اذکار

كوى او پدے مقام كښې جهر هم جائز دے۔ لكه د مخكښې حديث نه معلومه شوه۔
راجع فتاوى الدين الخالص (٣٢٩/٦) والسلسلة الصحيحة (٢٧٩/١)

ددے تكبيرونو وئيل تقريباً اجماعى مسئله ده مگر ابراهيم نخعىؒ په تكبيراتو د تشريق كښې په بازار كښې وئيل او پدے باندے جهر كولو ته د حائكينو (جولاگانو) عمل وئيلے دے۔ ليكن قول ئے صحيح نهٔ دے۔ (انظر فتاوى الهندية (٣١٩/٥)

**المسئلة الثالثة** : فقهاؤ ليكلى دى چه خطبه د عيدينو به په تكبير شروع كولے شى نو دا خبره ضعيفه ده بلكه سنت كښې ددے خلاف راغلے دے، ځكه نبى ﷺ تولے خطبے په الحمد سره شروع كړيدى۔ البته په مينځ د خطبه كښې تكبيرونه وئيل جائز دى لكه په ابن ماجه كښې په ضعيف سند سره د سعد بن قرظ المؤذن نه نقل دى چه نبى ﷺ به د خطبے په مينځ كښې تكبير وئيلو او د اختروس په خطبه كښې به ئے زيات وئيلو) (مرعاة المفاتيح ٧٠/٦)

٤- **مسئله** : د اخترونو د خطبے آوريدل سنت دى كه څوك دا وانهٔ وري نو گناهگار نهٔ دے۔ دليل دا دے چه عبد الله بن السائب ؓ فرمائى : زهٔ د رسول الله ﷺ سره د اختر مانځه ته حاضر شوم كله چه هغه مونځ ختم كړو وے فرمايل :((مونږ خطبه وايو كه د چا خوښه وى چه خطبے ته كينى نو كيناستل ورله پكار دى او كه د چا خوښه وى چه لاړ شى نو لاړ دے شى))۔

(صحيح : صحيح ابى داود (١٠٢٤) كتاب الصلاة باب الجلوس للخطبة، ابوداود (١١٥٥) ابن ماجه (١٢٩٠) النسائى (١٨٥/٣) ابن خزيمة (١٣٦٢) بيهقى (٣٠١/٣)

مجد بن تيمية فرمائى : پدے حديث كښې ددے خبرے بيان دے چه خطبه سنت ده ځكه كه واجب وے نو كيناستل به ورته واجب وے۔ شوكانىؒ فرمائى : د اختر مانځه ته واجب ويونكى او نور علماء پدے متفق دى چه خطبه د اختر واجب نهٔ ده او ددے په وجوب باندے ماته هيڅ قائل نهٔ دے معلوم۔ انتهىٰ۔(نيل الاوطار ٣٧٧/٣)۔

OOOOOOO

# ٤٨- باب فى الاضحية

## د قربانئ بيان

اُضحية د همزے ضمه او كسره دواړه جائز دى - هغه حيوان ته وائى چه د اختر په ورځ د ضُحىٰ (چاشت) په وخت ذبح كولے شى، په طريقه د قربت او ثواب، بيا پكښې فراخى شوے تردے چه په هغه حيوان ئے هم اطلاق كيږى چه د ورځے په آخر كښې ذبح شى. امام اصمعىؒ وائى : پدے كښې څلور لغات دى : اُضْحِيَّةٌ، اِضْحِيَّةٌ، جمع ئے اضاحى راځى ○ ضَحِيَّةٌ، ددے جمع ضحايا راځى لكه هَدِيَّةٌ او هدايا. ○ اَضْحَاةٌ جمع ئے اضحىٰ ده لكه اَرْطَاةٌ او ارطىٰ.

اضحيه په كتاب او سنت او د مسلمانانو په اجماع سره ثابته ده. ○ كتاب الله لكه ﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ﴾ يعنى د اختر مونځ اوكړه او قربانى اوكړه) لكه دا د مفسرينو يو عظيم جماعت وئيلى دى. ○ سنت كښې خو ددے په باره كښې ډير احاديث راغلى دى چه هغه ټول په مشروعيت د اضحيه دلالت كوى او دا احاديث په اعتبار د معنىٰ سره متواتر دى. ○ او اجماع دا ده چه په اضحيه كښې د هيڅ مسلمان اختلاف نشته چه دا يو افضل عمل دے او پدے باندے د نبى ﷺ د زمانے نه تر نن وخت پورے د مسلمانانو عمل راروان دے او دا د ابراهيم ﷺ سنت دى. ﴿وَفَدَيْنَاهُ بِذِبْحٍ عَظِيمٍ﴾

**د قربانئ حكم :** البته په حكم كښې ئے اختلاف دے چه دا سنت ده او كه واجب ؟.

(۱) د اكثرو اهل علمو رأيه دا ده چه دا سنت مؤكد ده او واجب نۀ ده، او دا د ابوبكر، عمر، بلال، ابومسعود البدرى رضى الله عنهم نه روايت شوے او دا د ابن المسيب، علقمه، اسود، عطاء، الشعبى، شافعى، احمد، اسحاق، ابوثور، ابن المنذر، ابويوسف، محمد فى رواية، داود، او امام بخارى رحمهم الله قول دے. امام ابن حزمؒ فرمائى : « د هيڅ صحابى نه دا صحيح نۀ ده ثابته چه هغه اُضحيه ته واجب وئيلى وى ». (المحلى ۷/۳۵۸) او ابن حزمؒ د بعض صحابه كرامو اقوال پيش كړيدى چه په عدم وجوب دلالت كوى.

(۲) امام ابوحنيفه، ليث، ازواعى، ثورى، ربيعه او مالك رحمهم الله وائى : اُضحيه په مالدار باندے واجب ده، او مشهور مذهب د ابوحنيفهؒ دا دے چه په هغه مقيم واجب ده چه مالك د

نصاب وی، نو په مسافر باندے نشته او په غیر د مالك د نصاب نشته۔ (٣) یو روایت د امام شافعیؒ نه دا دے چه په عام حالت کښې سنت ده او په غنی باندے واجب ده۔

(تحفة الاحوذی (٥/٧٩) التمهید (٢٣/١٨٩) مرقاة المفاتیح (٥/١٨٦) باب العتیرة) نصب الرایة کتاب الاضحیة)

**د وجوب دلائل : ١-دلیل :** آیت کښې دی : ﴿فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ﴾ (پدے کښې امر دے په نحر کولو باندے) او امر د وجوب او فرضیت دپاره دے کله چه د وجوب نه قرینه مانعه نهٔ وی۔

نور علماء جواب ورکوی چه دلته امر دے خبرے ته متوجه دے چه رب خاص کړئ په نحر کولو سره او اصنامو دپاره نحر مه کوئ او دا مطلب نهٔ دے چه اضحیه او نحر واجب دے۔ (یعنی که څوك قربانئ کول غواړی نو خاص الله له به ئے کوی نهٔ اصنامو له) مگر ظاهر دا ده چه آیت کښې دیر تفاسیر دی او د وجوب معنی ترے هم فهمیږی یعنی قربانی واجب ده او بیا به دا قربانی الله دپاره کولے شی۔ لهذا د تخصیص معنیٰ په صورت د وجوب کښې هم حاصلیدے شی۔

**٢- دلیل :** ابو هریره رضی الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ اُوفرمایل : (مَنْ كَانَ لَهُ سَعَةٌ وَلَمْ يُضَحِّ فَلَا يَقْرَبَنَّ مُصَلَّانَا) (ابن ماجه (٢/٢٠٠) رقم (٣١٢٣) احمد (٢/٣٢١) والحاکم (٢/٣٨٩) واسناده حسن) (څوك چه فراخی مومی او قربانی اونکړی نو زمونږ (د مسلمانانو) عیدگاه له دے نهٔ راځی) دا قسم وعید په وجوب باندے دلالت کوی۔

لیکن حافظ ابن حجرؒ فرمائی : رجال ددے روایت ثقات دی مگر ددے په مرفوع او موقوف کیدو کښې اختلاف دے اشبه بالصواب دا خبره ده چه موقوف شی، لکه دا طحاویؒ وغیره وئیلی دی او سره ددے نه دا په وجوب کښې صریح نهٔ دے۔ انتهیٰ۔

**٣- دلیل :** مخنف بن سلیم رضی الله عنه فرمائی : مونږ د نبی ﷺ سره په عرفات کښې ولاړ وو نو وے فرمایل : ((يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ عَلَى كُلِّ أَهْلِ بَيْتٍ فِيْ كُلِّ عَامٍ أُضْحِيَةً وَعَتِيْرَةً، أَتَدْرُوْنَ مَا الْعَتِيْرَةُ ؟ هِيَ الَّتِيْ يُسَمِّيْهَا النَّاسُ الرَّجَبِيَّةَ)) اخرجه احمد والاربعة باسناد قوی (حافظ عسقلانی) (ابن ماجه (٢/٢٠٠) رقم (٣١٢٥) ابوداود (٢/٥٣٧) رقم (٢٧٨٨) باب ایجاب الاضاحی) ترمذی (٢/٩٣) رقم (١٥٧١)

(اے خلقو ! په هر کور والا باندے په هر کال کښې اضحیه او عتیره لازم ده تاسو پوهیږئ عتیره څه شے دے دا هغه ده چه خلق ورته رجبیه وائی)۔

حافظ عسقلانیؒ جواب کوی چه دا صیغه په وجوب مطلق باندے دلالت نهٔ کوی۔ دویم دا چه پدے کښې عتیره هم ذکر ده او هغه خو واجب نهٔ ده بالاتفاق۔

لیکن **جواب** دا دے چه د عتیرے منسوخ کیدل د اُضحیه منسوخ کیدو له مستلزم نهٔ دی، عتیره منسوخ ده او تاسو بیا هم اُضحیه مستحب گنړئ۔

ابن قدامة فرمائي : حديث د ابو هريرةؓ او حديث د مخنف بن سليمؓ دواړه په تاكيد الاستحباب دلالت كوي داسې دي لكه حديث كښې دي : (غُسْلُ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلٰى كُلِّ مُحْتَلِمٍ) يا (مَنْ أَكَلَ مِنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ فَلَا يَقْرَبَنَّ مُصَلَّانَا) (المغنى)

٤- **دليل** : انس بن مالكؓ فرمائي : نبي ﷺ په يوم النحر كښې اوفرمايل :((مَنْ كَانَ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلَاةِ فَلْيُعِدْ فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ :يَارَسُوْلَ اللهِ الحديث)) (بخاري٢/٨٣٢) رقم (٥٥٦١) (چا چه د مانځه نه مخكښې قرباني كړې وي نو هغه دې (د مانځه نه پس) دوباره اوكړي) نو د نبي ﷺ د قرباني په دوباره كولو باندې حكم كول دليل دې چه قرباني واجب ده۔

٥- **دليل** : براء ؓ فرمائي : ابوبردهؓ د مانځه نه مخكښې ذبح اوكړه نبي ﷺ ورته اوفرمايل :(أَبْدِلْهَا، فَقَالَ : لَيْسَ عِنْدِيْ إِلَّا جَذَعَةٌ......) (بخاري٢/٨٣٤) رقم (٥٥٥٧) (ددې په بدله كښې بله قرباني اوكړه) نو دلته په بدلولو باندې حكم كول دليل دې چه قرباني واجب ده۔او همدا ظاهره ده۔ ددې نه جواب كوي چه دلته شرط د أضحيه بيانول مقصود دي چه كه څوك أضحيه كوي نو شرط دا دې چه بعد الصلاة به وي۔ ليكن دې تاويل ته ضرورت نشته۔ بلكه اصل أضحيه لازم ده څكه حكم كوي په اعاده او بدلولو د أضحيه باندې۔لكه چه دا خبره ابن عبد البرؒ په التمهيد كښې كړيده۔التمهيد (٢٣جزء/١٨٩)

**دلائل السنية** : ١- **دليل** : حديث كښې دي :((إِذَا دَخَلَ الْعَشْرُ الْأَوَّلُ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ وَأَرَادَ أَحَدُكُمْ أَنْ يُضَحِّيَ فَلَا يَأْخُذَنَّ شَعْرًا الحديث)) (د ذى الحجې اوله عشرة چه كله داخله شي او په تاسو كښې د يو تن اراده وي چه قرباني اوكړي نو ويښته او نوكونه دې نۀ پريكوي) (مسلم) وائي : چه دلته ئې اضحيه ارادې ته سپارلې ده (چه د يو تن اراده وي) نو دا دليل دې چه أضحيه واجب نۀ ده۔ ليكن جواب دا دې چه اراده منافي د وجوب نۀ ده، څكه د فرضي حكم هم اراده كولې شي۔ بله دا چه دلته اراده متوجه ده روستو حكم ته چه هغه ويښته او نوكونه پريكول دي۔ نو معنیٰ دا ده چه كله د يو تن اراده د اضحيه وي نو هغه به نوكونه او ويښته نۀ پريكوي او كه د غربت د وجه نه ئې اراده نۀ وي (څكه بيا پرې لازم نۀ ده) نو نوكونه پريكول ورله جائز دي۔ او دا مطلب نۀ دې چه أضحيه واجب نۀ ده۔ او پدې باندې ډير احاديث دلالت كوي په (المطالب العالية (٢/٢٨٣) او ابوداود (٢/٢٢) كښې اوګوره۔

٢- **دليل** : شعبيؒ فرمائي : (( إِنَّ أَبَابَكْرٍ وَعُمَرَ شَهِدَا الْمَوْسِمَ فَلَمْ يُضَحِّيَا )) (ابوبكر او عمر رضي الله عنهما موسم د حج ته حاضر شوي وو او قرباني ئې نۀ وه كړې) (المطالب العالية ٢/٢٨٨) كنز العمال (٥/٢١٩)اتحاف الخيرة المهرة (٥/١٢١١) امام بيهقيؒ داسې نقل كړيدي چه ابوبكر او عمرؓ

به قرباني نهٔ كوله پدے وجه چه ددے دوارو په ليدلو څوك دا گمان اُونكړي چه قرباني واجب ده۔مرعاة المفاتيح (٧٢/٥) تحفة الاحوذي (١٦٠/٤)

٢- او دغه شان د ابن عباس، بلال، ابومسعود او ابن عمر رضي الله عنهم نه ئے هم نقل كړيدی- (البيهقي)

٣- ابراهيم نخعيؒ فرمائي : (( كَانُوْا يَحُجُّوْنَ وَمَعَهُمْ اَوْرَاقُهُمْ وَذَهَبُهُمْ فَلَا يُضَحُّوْنَ )) مصنف عبد الرزاق (٣٨٢/٤) اتحاف الخيرة المهرة (١٢١/٥) (صحابه كرامو به حجونه كول او د هغوی سره به پيسے موجودے وے او بيا به ئے هم اُضحيه نهٔ كوله)

ليكن جواب دا دے چه ډير امكان شته چه صحابه كرامو دا اراده كړی وی چه دوی مسافر دی او په مسافرو باندے اُضحيه نشته يا دا دهغه چا په حق كښ دی چه د هغه وسع نهٔ كيږی او په تكلف سره اُضحيه كوی نو بيا لازم نهٔ ده۔

علامه شوكانيؒ د وجوب قول دپاره د لائل ذكر كولو نه روستو فرمائي : ددے دلائلو نه تا ته اندازه اولگيده چه د اقل علماؤ خبره حقه ده چه اُضحيه واجب ده۔ ليكن دا وجوب مقيد دے په وسع او فراخئ باندے نو د چا وسع چه نهٔ وی په هغه باندے اُضحيه نشته انتهیٰ۔(السيل الجرار٤/ ٧٦) باب الاضحية) ليكن دے كښ دا خبره ياد ساته چه د وسع نه مراد نصاب نهٔ دے بلكه چه څه نا څه گذاره ئے روانه وی چه د بل چا د سوال نه بچ وی او د قرباني د اخستو وسع ئے كيږی نو هغه باندے قرباني لازم ده۔

## آيا په مسافر باندے اضحيه شته ؟

پدے كښ راجح قول دا دے چه په سفرونو كښ اُضحيه واجب نهٔ ده البته مستحب ضرور ده۔

دليل دا دے ثوبان ﷺ فرمائي : (( رسول الله ﷺ په سفر كښ اُضحيه اوكړه بيا ئے اوفرمايل : اے ثوبان ! مونږ دپاره ددے گډ غوښه برابره كړه نو ما به هميشه د هغې نه (وخت په وخت) خوراك كولو تردے چه مدينے ته راورسيدو))۔

(مسلم ١٥٩/٢) ابوداود (٢٢/٢) باب المسافر يضحی) البيهقي (٢٩٥/٩)۔

او روستو حديث د ابن عباس رقم (١٧) كښ راځی۔

او د حاجی صاحب په هديه باندے قرباني كول د اُضحيه په ځائے قائمقام دی ددے وجه نه عام صحابه كرامؓ په حج كښ جدا اُضحيه نهٔ ده كړے۔ بلكه هديه به ئے كافی گڼرله د اُضحيه نه لكه چه دا خبره حافظ ابن قيمؒ اختيار كړيده۔ (زاد المعاد)

تنبيه : هركله چه قرباني لازم شوه نو قرباني په ځائے باندے د هغې په قيمت باندے صدقه

كول د قربانى د طرف نه نۀ كافى كيږى ځكه دا په هيڅ سند اگركه ضعيف وى د نبى ﷺ او خلفاء راشدينو نه چرے نۀ دى نقل چه هغوى اُضحيه نۀ وى كړى او صدقه ئے په اُضحيه غوره كړى وى۔ بلـه دا چه كه د اُضحيه په ځائے صدقه وركړے شى نو پدے كښې عظيم شعار د شعائر اسلاميه نه ترك كيږى لهذا وينه تويه كول ضرورى دى۔

**مسئلة** : اضحيه د ائمه اربعه وغيره عام امت په نيز په بهيمة الانعام حيواناتو كيږى (چه خوراك بيرته راوپس كوى) او ددے نه ماسوئ باندے نۀ كيږى مثلاً (١) په صحرائى حيواناتو نۀ كيږى (٢) په چرگانو، چنچڼرو باندے نۀ كيږى۔ خلاف ثابت دے امام ابن حزم رحمه الله لره چه هغه په چنچڼرو باندے قربانى جائز گڼرى هغه د بعض صحابه كرامو اقوال ذكر كړيدى چه بلال ﷺ به په چرگ باندے قربانى كوله۔ ليكن د جمهورو قول راجح دے۔ وجه دا ده چه د نبى ﷺ نه د گډ نه خكته حيوان باندے قربانى نۀ ده ثابته۔ لهذا د نص سره به اُودريدل كيدے شى۔

او هرچه ميخه (جاموس) ده نو اهل لغت وائى چه دا كالبقر (د غوا پشان) ده۔ دا يوه نوعه د بقر ده۔ نو پدے باندے هم جائز ده لكه ددے دلائل به روستو راشى ان شاء الله تعالىٰ۔

## الفصل الاول

۱٤٥٣ (١) - عَنْ اَنَسٍ، قَالَ : ضَحّٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِكَبْشَيْنِ اَمْلَحَيْنِ اَقْرَنَيْنِ، ذَبَحَهُمَا بِيَدِهٖ وَسَمّٰى وَكَبَّرَ، قَالَ: رَاَيْتُهٗ وَاضِعًا قَدَمَهٗ عَلٰى صِفَاحِهِمَا وَيَقُوْلُ: « بِسْمِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : انس ﷺ فرمائى: رسول الله ﷺ په دوه گډانو چه تور او سپين رنگى او خكرونو والا (يعنى اوږده خكرونو يا روغ خكرونو والا) وو دواړه ئے په خپل لاس ذبح كړل او بسم الله او الله اكبر ئے اوويلو"۔ انس فرمائى: "ما نبى ﷺ اوليدلو چه خپل قدم مبارك ئے د هغوى په مخ باندے كيخودو او داسے ئے وئيل : "بسم الله والله اكبر" (د الله په نوم ئے ذبح كوم او الله د هرڅه نه لوئى دے) (بخارى ومسلم)

**تشريح** : ضَحّٰى د تضحيه نه دے په معنى د قربانى كولو سره۔ په بل روايت كښې دى : (كَانَ يُضَحِّىْ) نو دا دليل دے چه نبى ﷺ به هميشه دا كار كولو نو پدے كښې دليل دے د هغه علماؤ چه هغوى وائى په گډ باندے قربانى كول افضل دى ځكه نبى ﷺ په هغه شى دوام نۀ كوى چه هغه افضل نۀ وى۔لكه ددے مسئلے تفصيل به روستو راشى ان شاء الله۔

او كَبْشَيْنِ كښې اشاره ده چه اُضحيه كښې عدد او شمار افضل دے لكه چه شوافعو وئيلى دى

چه په اوه گډانو قربانی کول افضل دی د اوښ نه. ځکه پدے کښې وینه زیاته توییږی او ددے ثواب ددے په حساب سره زیاتیږی.

**فوائد الحدیث** :(۱) په گډ باندے قربانی افضل ده. (۲) په دوه گډانو سنت طریقه ده. (۳) نر گډ باندے زیاته افضل ده. وجه دا ده چه ددے حسن زیات وی او غوښه ئے مزیداره وی.

(٤) اَمْلَحَیْنِ : یعنی تور او سپین چه سپینوالے پکښې اکثر وی. (مالکین) برگ بروگ یعنی ښائسته. (٥) شوافع وائی : تك سپین ډیر افضل دے ځکه چه املح معنی ده خالص سپین. بعض وائی املح هغه ته وائی چه تور وی لیکن دپاسه پرے سور والے وی. بعض وائی : هغه دے چه سپینوالے ئے سور والی سره شریك شوے وی. او دا شکل ئے پدے وجه غوره کړو چه دا ښائسته وی او غوښه ئے هم مزیداره وی لهذا غوره حیوان باندے ذبح کول افضل دی.

اَقْرَنَیْنِ : یعنی د هر یو دوه دوه معتدلے ښکرے وے. (حافظ). اقرن هغه گډ ته وائی چه ښائسته ښکرے لری) (نوویؒ) بعض وائی : اوږدو او غټو ښکرو والا وو. بعض وائی : روغو ښکرو والا مراد دی. نو ددے نه استحباب د ښکرور گډ معلومیږی.

ذَبَحَهُمَا بِیَدِهٖ : چا ته چه آداب د ذبح معلوم وی او په هغے باندے پوهیږی او قادر وی نو هغه له پخپله ذبح کول مستحب دی.

وَسَمّٰی وَکَبَّرَ : یعنی بسم الله والله اکبر ئے اوویل. الله اکبر ویل د ټولو علماو په نزد مستحب دی، هیڅ اختلاف پکښې نشته. (ابن قدامةؒ) او هرچه بسم الله ده نو د مالك ثوریؒ، ابوحنیفةؒ په نیز د ذبح د صحت دپاره شرط ده لیکن که هیره شی بیا ساقطیږی او دا مشهور مذهب د احمدؒ دے او دا قول د ابن عباس رضی الله عنه نه هم منقول دے. ۲ - د امام احمدؒ نه یو روایت دا دے چه بسم الله ویل مستحب دی او واجب نهٔ ده . او دا قول د امام شافعیؒ دے. لیکن راجح قول د جمهورو دے.

او دے سره (اَللّٰهُمَّ هٰذَا مِنْكَ وَلَكَ) ویل هم مستحب دی. (صحیح مسلم).

او په وخت د ذبح کښې په نبی ﷺ باندے درود ویل مستحب نهٔ دی او دا قول د جمهورو دے او امام شافعیؒ ویلی دی مستحب دے. لیکن راجح قول د جمهورو دے. ځکه صحیح نقل ئے نشته.

صِفَاحِهِمَا : جمع دِ صَفْح ده، اړخ ته وائی، بعض وائی : جمع د صَفْحَة ده د مخ پلنوالی ته وائی. بعض وائی : صفحه د هر شی اړخ ته وائی. جمع ئے ذکر کړه ځکهٔ په یو جانب باندے د نبی ﷺ قدم کیخودل داسے دی لکه په بل اړخ چه هم وی خو یو ورته نږدے وی او بل ترے لانډے وی. یا دا چه جمع چه کله ضمیر د تثنیه ته مضاف شی نو بیا توزیع علی الافراد مراد وی یعنی د هر یو په مخ ئے قدم ایخے وو.

او دا قدم ايخودل ددے دپاره وو چه ذبيحه خپل سر اُونۀ خوزوي نو پوره طريقے سره به ذبح اُونۀ شي يا دا چه ضرر به ورته اُورسوي يا به نجاست ورته اُورسي۔

نو حديث دليل دے چه د ذبيحے په ښي مخ باندے قدم كيخودل مستحب دي او پدے كښ اتفاق دے چه د ذبيحے اروتل به په گس طرف وي او په ښي مخ به ورته خپه اړدي، چه په ذبح كښ ورته آساني شي ځكه ښي لاس ته دا حالت ښه برابر وي، او سر به ئے ورله په گس لاس اونيسي۔ (حافظ)۔

۱۴۵۴ (۲) – وَعَنْ عَائِشَةَ: اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ اَمَرَ بِكَبْشٍ اَقْرَنَ، يَطَأُ فِيْ سَوَادٍ وَيَبْرُكُ فِيْ سَوَادٍ وَيَنْظُرُ فِيْ سَوَادٍ، فَاُتِيَ بِهٖ لِيُضَحِّيَ بِهٖ، قَالَ: «يَا عَائِشَةُ! هَلُمِّي الْمُدْيَةَ»، ثُمَّ قَالَ: «اِشْحَذِيْهَا بِحَجَرٍ»، فَفَعَلْتُ، ثُمَّ اَخَذَهَا وَاَخَذَ الْكَبْشَ، فَاَضْجَعَهٗ، ثُمَّ ذَبَحَهٗ، ثُمَّ قَالَ: «بِسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ تَقَبَّلْ مِنْ مُحَمَّدٍ وَآلِ مُحَمَّدٍ، وَمِنْ اُمَّةِ مُحَمَّدٍ». ثُمَّ ضَحّٰى بِهٖ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

**ترجمه** : اود عائشه رضی الله عنها نه روايت دے چه رسول الله ﷺ (چا ته) د يو خكرور گډ (په راوستلو) حكم اوكړو چه هغۀ په توروالی كښ مزل كولو (يعني د هغۀ خپے تورے وے) او په توروالی كښ كيناستو (يعني د هغۀ خيټه او سينه توره وه) او په تور والي كښ به ئے كتل (يعني د سترگو گردئے تور وو) نو هغۀ راوستے شو دے دپاره چه نبی ﷺ په هغے باندے قرباني اوكړي، نو وے فرمايل: «اے عائشے ! چاړۀ راوړۀ !»۔ بيا ئے اوفرمايل : «چاړۀ په كاڼړي تيرۀ كړۀ» عائشۀ وائي ما هغه شان اُوكړل۔ دے نه روستو بيا نبی ﷺ هغۀ چاړه راواخسته او گډ ئے راونيولو او په ددۀ ئے څملولو او بيا ئے د ذبح كولو اراده اوكړه، او بيائے (د ذبح په وخت) اووئيل : "بسم الله الخ" (د الله په نوم ئے ذبح كوم اے الله ! دا د محمد او د آل محمد او امتِ محمد (ﷺ) د طرف نه قبول كړۀ ، بيائے په هغے باندے قرباني اُوكړه (ذبح ئے كړو) "۔ (مسلم)

**تشريح** : يعني نبی ﷺ په داسے گډ باندے قرباني اوكړه چه خپے او ركبتين (يا خيټه او ځايونه د كيناستو) او د سترگو گير چاپيره اطرافو كښ ئے تور والے وو، او باقي بدن ئے سپين وو۔ (خطابیؒ)

حديث دليل دے چه په دغه شان صفت والا گډ باندے قرباني مستحب ده۔

**هَلُمِّي** : دا لفظ حجازين د واحد تثنيه او جمع، مذكر او مؤنث دپاره يو شان استعمالوي او بنوتميم هر يو دپاره جدا جدا صيغه ترے جوړوي هلم، هلموا، هلمي۔ او دلته د بنوتميم په نيز وئيل شويدے۔ او (قُلْ هَلُمَّ شُهَدَاءَ كُمْ) (معنى ئے ده : راوړه) دا د حجازينو د استعمال مطابق دے۔

الْمُدْيَةَ : (چاړه) دیته سکین او موسیٰ هم وائی۔
اِشْحَذِيْهَا : یعنی دا چاړه تیره کړه ځکه د حیواناتو سره احسان دا دے چه د هغه په ذبح کولو کښې چاړه تیره شی، چه روح ترے زر اُوځی او زیات تکلیف ورته ملاؤ نشی۔
ددے روایت په سیاق کښې تقدیم او تاخیر دے اصل داسے دے : هغه ئے په ډډۀ سملولو بیا ئے په ذبحه کښې شروع اوکړه پداسے حال کښې چه بسم الله ویونکے وو۔الخ (نوویؒ)۔
ثُمَّ ضَحّٰى بِهٖ: یعنی د خلقو دپاره ئے خوراك اوګرځولو چه هغوی پرے روژه ماته کړی۔
اَللّٰهُمَّ تَقَبَّلْ مِنْ مُحَمَّدٍ الخ ددے نه استحباب ددے قول معلومیږی چه په وخت د ذبح کښې اووائی :((اَللّٰهُمَّ هٰذَا مِنْكَ وَاِلَيْكَ تَقَبَّلْ مِنِّیْ)) او دا قول د حنابله او حسن بصری او یو جماعت دے او امام ابوحنیفهؒ دیته مکروه وائی۔ امام مالكؒ پکښې وائی : صرف((اَللّٰهُمَّ مِنْكَ وَاِلَيْكَ)) وئیل مکروه او بدعت دے۔ (نووی شرح مسلم باب استحباب الضحیة وذبحها) روضة الطالبین (۱/ ۳۰٤) الام للشافعی (۲/۲٦۳) المجموع (۸/٤۰۷) المغنی)لیکن د حنابلو قول راجح دیؒ د وجه د حدیث د مسلم نه لکه چه مخکښې ذکر شو۔
وآل محمد : دا دلیل دے چه یو ګډ د ټول کور والو د طرفنه کافی کیږی د بیل بیل قربانی کول واجب نۀ دی ځکه چه ټول شریك وی۔ علامه خطابیؒ په معالم السنن کښې فرمائی : تقبل من محمد وآل محمد دلیل دے چه یو ګډ د سړی او د هغه د اهل بیت نه کافی کیږی اګرکه زیات وی۔او دا قول د مالك، شافعی، احمد بن حنبل، لیث، اوزاعیؒ او اسحاق بن راهویهؒ دے او دا د ابن عمر او ابو هریره رضی الله عنهما نه منقول دے۔ او ترمذیؒ هم دغسے باب لګولے دے: (بَابُ الشَّاةِ الْوَاحِدَةِ تُجْزِئُ عَنْ اَهْلِ الْبَيْتِ– وَالْعَمَلُ عَلٰى هٰذَا عِنْدَ بَعْضِ اَهْلِ الْعِلْمِ وَهُوَ قَوْلُ اَحْمَدَ وَاِسْحَاقَ الخ) ۲ – او امام ثوریؒ او ابوحنیفهؒ وائی : یو ګډ صرف د یو تن نه کافی کیږی لیکن دا حدیث د هغوی ﷺ قول رد کوی۔ او دا تاویل کول چه آل ئے ځان سره په ثواب کښې شریك کړے وو خلاف الظاهر دے۔ دا حکم د قیاس خلاف دے چه یو طرفته وائی یو ګډ د یو تن نه کافی کیږی او بل طرفته وائی چه د ټول کور والو د طرفنه هم کافی کیږی لیکن دا د شریعت خبره ده دے ته تسلیمیدل د مسلمان کار دے۔ او د نسخ او تخصیص خبره هم مردوده ده۔ لکه چه طحاویؒ کړیده ځکه دا مجرد دعویٰ ده چه هیڅ دلیل پرے نشته۔
او علامه جمال الدین زیلعیؒ په نصب الرایه کښې هغه روایات راوړیدی چه دلالت کوی په دے چه یوه قربانی د کور والو نه کافی کیږی۔ او مبارکفوریؒ په تحفة الاحوذی کښې هم ذکر کړیدی۔
۱ – عبد الله بن هشام فرمائی : (كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُضَحِّیْ بِالشَّاةِ الْوَاحِدَةِ عَنْ جَمِيْعِ اَهْلِهٖ) (حاكم

بسند صحيح و كذا قاله السندی) (تحفة الاشراف (١٤٨/٩) (رسول الله ﷺ به یو ګډ د ټول کور والو د طرفنه قرباني کولو)۔ ٢- دا حديث الباب واضح دليل دے كما مرّ۔

٣- عطاء بن يسارؒ وائي : ما د ابوايوب انصاري ﷺ نه تپوس اوکړو چه په تاسو صحابه کرامو کښې به قرباني څنګه کيدله ؟ هغه اوفرمايل : (كَانَ الرَّجُلُ فِيْ عَهْدِ النَّبِيِّ ﷺ يُضَحِّيْ بِشَاةٍ عَنْهُ وَعَنْ اَهْلِ بَيْتِهِ، فَيَاْكُلُوْنَ وَيُطْعِمُوْنَ ثُمَّ تَبَاهَى النَّاسُ فَصَارَ كَمَا تَرىٰ) (د نبي ﷺ په زمانه کښې به يو سړي په يو ګډ باندے د خپل ځان او کور والو د طرفنه قرباني کوله نو خپله به ئے هم خوړل او خلقو ته به ئے هم ورکول بيا خلقو په يو بل باندے فخرونه شروع کړل چه حال ئے تا ته معلوم دے۔(يعني ديرے قربانيانے د فخر دپاره کوي) (ابن ماجه باب من ضحى بشاة عن اهله (٢٠٣/٢) رقم (٣١٤٧) الترمذي (٢٦٧/١) وهو حديث صحيح والبيهقي (٦٨/٩)

٤- ابن ابي الدنيا د علي ﷺ نه روايت نقل کړے چه هغه به يوه قرباني د خپل کور والو د طرفنه کوله۔(كنز العمال ٢٢٤/٥) (١٢٦٨٦) راجع فتاوى الدين الخالص (٣٣٤/٦)

امة محمد : يو ګډ د ټول امت نه کافي کيدل او دارنګه قرباني د غير د طرفنه کول دا خصوصيت د نبي ﷺ دے، او هميشه هم نبي ﷺ دا کار نۀ دے کړے لهذا د کور والو نه علاوه بل چا نه يوه قرباني نۀ کافي کيږي۔ دا وجه ده صحابه کرامؓ به د امت دپاره قرباني نۀ کوله بلکه صرف د خپل کور والو د طرفنه به ئے کوله۔ لکه دا خبره علامه شيخ مبارکفوريؒ ذکر کړيده۔(تحفة الاحوذي ١٥٩/٤)

١٤٥٥ (٣) - وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«لَا تَذْبَحُوْا اِلَّا مُسِنَّةً، اِلَّا أَنْ يَّعْسُرَ عَلَيْكُمْ، فَتَذْبَحُوْا جَذَعَةً مِنَ الضَّأْنِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « (په قرباني کښې) تاسو صرف مسنه حيوان ذبح کړئ مګر که د مسنے ذبح کول درته ګران وي نو بيا د بيزو يا ګډانو نه جذعه ذبح کړئ »۔ (مسلمؒ)

**تشريح** : حديث کښې مسئلے دي :

١- **اوله مسئله** : دا چه د مسنه څه معنیٰ ده ؟ نو ددے دوه معاني دي (١) يوه مرجوحه ده او هغه دا چه مُسنه دوه کليزے ته وائي چه دوه کاله ئے پوره شوي وي لکه دا معنیٰ په فقه حنفي کښې بعض احنافو لکه ابن عابدين او علامه سندیؒ کړيده۔ نۀ محققينو۔

(٢)- دويمه معنیٰ غوره دا ده چه «اَلْمُسِنَّةُ مَا نَبَتَ لَهَا اَسْنَانٌ» (چه د پيو غاښونه ئے وتلي وي او

نوز راختلي وي) او دا تقريباً د تولو اهل لغتو معنى ده۔ لكه از هريّ، علامه جزريّ په النهاية (١١٨/٢) كښې، صاحب القاموس، صاحب المصباح، ابن قتيبه، ابن التين د داوديّ نه دغه معنى نقل كړيده۔

از هريّ فرمائي :(( وَلَيْسَ مَعْنَى أَسْنَانِهَا كِبَرُهَا كَالرَّجُلِ، وَلٰكِنْ مَعْنَاهُ طُلُوْعُ سِنِّهَا فِي السَّنَةِ الثَّالِثَةِ. اِنْتَهٰى))۔(د اسنانو والا كيدو نه مراد د عمر غټ والے نهٔ دے لكه په سړو كښې چه په دغه معنى استعمال دے بلكه ددے معنى د غاښ راوتل دي)۔ شيخ عبد الحق دهلويّ په اشعة اللمعات (٦٣٩/١) كښې همدغه معنیٰ ذكر كړيده فرمائي :(( وجه تسميه بمسنه آن است كه وي مي اندازد دو دندان پيش را كه آن را ثنايا گويند در اين عمر))۔

علامه سنديّ هم فرمائي : (مُسِنَّةٌ : اِسْمُ فَاعِلٍ مِنْ اَسَنَّتْ اِذَا طَلَعَ سِنُّهَا وَذٰلِكَ بَعْدَ السَّنَتَيْنِ لَا مِنْ اَسَنَّ الرَّجُلُ اِذَا كَبِرَ) (٨٣/٦) والمرعاة (٧٧/٥) او همدا معنى په لسان العرب، تاج العروس (٢٤٣/٩) او زمخشري په الفائق (٣٠٦/٩) كښې او امام ابن عبد البرّ په تمهيد او زرقانيّ په خپله شرحه كښې او علامه ثعالبيّ په فقه اللغة ص (١٠٤) كښې كړيده۔ او همدا معنیٰ د امام محمدؒ نه په كتاب الآثار كښې نقل ده۔ او د امام شعبيّ نه ابو عبيدؒ په كتاب الاموال ص (٣٨٤) كښې نقل كړيده۔

حافظ په فتح الباري (٢٠/١٦) كښې فرمائي : (( قَالَ اَهْلُ اللُّغَةِ :اَلْمُسِنُّ الثَّنِيُّ الَّذِيْ يُلْقِيْ سِنَّهُ الخ) (يعنى ثنى هغه مسن ته وائي چه د وړوكوالي غاښونه گوزار كړي او دا په اوښانو كښې په شپږم كال وي او په چيلو او غواگانو كښې په دريم كال وي) انتهىٰ۔ او همدغه شان خبره امام نوويّ په شرح مسلم كښې كړيده) نو د مسنه دوه معاني دي (١) يو دا چه دوه كالو ته رسيدلي وي۔ (٢) دويم هغه چه غاښونه ئې راوتلي وي او دا دويمه معنى د اكثرو اهل لغت ده۔ دارنگه يو حديث تفسير د بل حديث وي نو د مسنه تفسير په ثني سره شويدے او ثني په اتفاق د علماؤ سره هغه حيوان ته وائي چه د وړوكوالي غاښونه ئې ارتولي وي۔ او ثني بعينهٖ مُسن دے نو دا تفسير شو دپاره د مسن۔ اُوس كه د يو حيوان دوه كاله پوره نهٔ وي او غاښونه ئې راختلي وي نو قرباني پرے كيږي، او كه دوه كاله ئې پوره وي ليكن دوه غاښونه ئې نهٔ وي راختلي نو قرباني پرے نهٔ كيږي۔ غاښونه شرط دے، عُمر شرط نهٔ دے۔ او همدا قول غوره دے۔ او په همدے كښې احتياط دے۔

**المسئلة الثانية** : اُضحيه په غواگانو، اُوښانو او غنم سره جائز ده او د غنم دوه قسمه دي (١) يو معز (چيلي) (٢)- او ضأن (گډان) او جاموس خو قسم د بقر دے۔ نو په دے اقسامو كښې په مسنه يعنى (ثني- دوه غاښي) باندے قرباني جائز ده۔ او مُسنه د هريو جدا جدا وي نو مسنه په اُوښانو كښې هغه ده چه پنځه كاله ئې پوره شوي وي او په شپږم كال كښې شروع وي او مُسنه د بقر

نه هغه ده چه د هغه دوه کاله ئے پوره وی او په دریم کښ شروع شوی وی۔ او مسنه د غنم نه (ګډان وی او که بیزے) هغه ده چه یو کال ئے پوره وی او په دویم کال کښ شروع شوی وی، دا صاحب نهایه د از هریؒ نه نقل کړیدی۔ او جو هریؒ وغیره وائی : یَكُوْنُ ذٰلِكَ فِی الظِّلْفِ وَالْحَافِرِ فِی السَّنَةِ الثَّالِثَةِ وَفِی الْخُفِّ فِی السَّادِسَةِ) (یعنی مسنه په ګلو بیزو او غواګانو کښ په دریم کال کښ وی یعنی په دریم کال نوی غاښونه راخیژوی او په اوښانو کښ په شپږم کال)۔

لیکن دے تولو کښ د غاښونو لحاظ ضروری دے کما مرّ، او عام طور سره د غواګانو په دوه کالو کښ غاښونه راخیژی نو ځکه د آسان والی دپاره خلق په کلونو حساب کوی ورنه غاښونه ضروری دی۔ لهذا پدے اقسامو قربانی به هله جائز وی چه غاښونه ئے راختلی وی۔

۳- **دریمه مسئلة** : د جذعے معنیٰ : دا ابتدائی عمر د حیوان دے چه کله قوی او ځوان وی۔

او په ګډانو کښ د جذعه مقدار څه دے؟ نو پدے کښ څو اقوال دی : (۱) مَا تَمَّ لَهُ سَنَةٌ وَهُوَ قَوْلُ الْاَكْثَرِ) دیته وائی چه یو کال ئے پوره شوے وی او دا قول د اکثرو علماؤ دے۔ (۲) احناف او حنابله وائی : (مَا تَمَّ لَهُ سِتَّةُ اَشْهُرٍ) چه شپږ میاشتے ئے پوره شوی وی۔ (۳) بعض وائی اته میاشتو والا۔ (٤) بعض وائی : لس میاشتو والا ته وائی۔ (٥) امام ترمذیؒ د وکیعؒ نه نقل کړیدی چه دا شپږ یا اووه میاشتو والا ته وائی۔ (٦) د ابن الاعرابیؒ نه نقل دی چه که مور او پلار ئے ځوانان او قوی وی نو د شپږو میاشتو نه تر اووه میاشتو والا ته وائی۔ او که مور او پلار ئے بوډاګان وی نو د اته میاشتو نه تر لسو میاشتو والا ته وائی۔ او په ګډانو کښ جذع په جلتئ سره راځی د بیزو نه۔انتهیٰ ۔ **راجح** دا ده چه جذع هغه ده چه یو کال ئے پوره شوے وی ځکه دا معنیٰ د اهل لغتو په نیز مشهوره ده او اکثر اهل لغت په همدے دی او په همدے کښ احتیاط دے۔ او علامه شوکانیؒ هم صحیح کړیدے۔ وکذا فی القاموس الفقهی (۱/٥۹) ۔

بعضو دا شرط لګولے دے چه جذع من الضأن به دومره عظیم الجثه وی چه که د یو کال والا سره په رمه کښ روان وی نو تمییز ئے نشی کیدے۔

او هر چه جذعه په بیزو کښ ده نو دا هغه ده چه یو کال ئے پوره شوے وی او په دویم کال کښ داخله شوی وی، او په غواګانو کښ هغه ده چه دریے کاله ئے پوره شوی وی او په اوښانو کښ هغه ده چه په پنځم کال کښ داخله شوی وی۔ (قاله الحافظ فی الفتح ۱٦/۷)

٤- **مسئله** : پدے حدیث کښ اشکال او اختلاف د علماؤ۔ (۱) ائمه اربعهٔ وائی : جذع د ګډانو نه جائز ده برابره ده که مسنه وغیره نور حیوانات ملاویږی او که نه۔(طرح التثریب (٤/۷۱) وفتح الباری) (۲) او د ابن عمرؓ او امام زهریؒ نه نقل دی (او دا قول د ابن حزمؒ هم دے او هغه د سلفو

د يو جماعت نه نقل کړے) چه جذع په قربانۍ کښې مطلقاً نهٔ دے جائز که د ګډانو نه وی او که د غیر نه وی۔ (۳) او عطاءؒ او اوزاعیؒ وائی : جذع د ټولو اجناسو نه جائز دے مطلقاً۔ لیکن دا قول د حدیث خلاف دے۔لکه روستو راځی۔

قول ثانی والا استدلال کوی پدے حدیث باندے چه دلته ئے د مسنه د نهٔ موجودیدو په وخت جذع جائز کړیدے دا دلیل دے چه په حالت د یُسر کښې جذع من الضأن جائز نهٔ دے۔

لیکن جمهور علماء دا حدیث په افضلیت او استحباب باندے حمل کوی۔ او داسے معنی کوی : (يُسْتَحِبُّ لَكُمْ اَنْ لَا تَذْبَحُوا اِلَّا مُسِنَّةً فَاِنْ عَجَزْتُمْ فَاذْبَحُوا جَذَعَةً مِنَ الضَّأْنِ)(تاسو له دا مستحب ده چه صرف مسنه ذبح کړئ خو که د مسنه نه عاجز شوئ نو بیا د ګډانو نه جذع ذبح کول درله جائز دی) امام نوویؒ فرمائی : پدے حدیث کښې دا تصریح نشته چه جذع من الضأن منع دے او هغه بالکل جائز نهٔ دے بلکه د امت اجماع ده پدے چه دا حدیث په خپل ظاهر نهٔ دے ځکه جمهور علماء جذع من الضأن جائز ګڼړی برابره ده که سوئ ددے نه بل موجود وی او که نهٔ۔او ابن عمرؓ او زهریؒ جذع ناجائز ګڼړی که غیر موجود وی او که نهٔ نو ددے حدیث تاویل متعین شو چه حمل شی په استحباب باندے۔انتهیٰ۔ وانظر طرح التثريب (٦/٦٠)

## احادیث جواز الاضحية بالجذع : بل طرفته ډیر دلائل دی چه جذع د ګډانو جائز دے۔

۱- عقبه بن عامر فرمائی : «مونږ د رسول اللهﷺ سره د ګډانو په جذع اُضحیه اُوکړه» (نسائي (۲/۲۰۳) والبيهقي (۹/۲۷۰) ورجاله ثقات قال الحافظ في الفتح : اسناده قوى، وضعفه ابن حزم ولكن قوله ضعيف وانظر السلسلة الضعيفة (۱/۸۹) والمرعاة (٥/٨٠)

۲- عاصم بن كليب عن ابيه مرفوعاً روایت کوی : «اِنَّ الْجَذَعَ يُوَفِّي مِمَّا يُوَفِّي مِنْهُ الثَّنِيُّ» (نسائي ۲/۲۰۳) والحاكم (٤/٢٢٦) وصححه) وقال ابن حزم اِنَّهُ فِي غَايَةِ الصِّحَّةِ (وابوداود : ۲/۳۱) (۲۷۹۹) وابن ماجه (۲/۲۷۵) رقم (۳۱٤٠) والبيهقي (۹/۲۷۰) وفي رواية النسائي : اِنَّ الْجَذَعَةَ تُجْزِئُ مَا تُجْزِئُ مِنْهُ الثَّنِيَّةُ (یعنی : جذع د ثنی (دوه غاښی) په ځائے کافی کیږی)۔

۳- حدیث د ابو هریره ﷺ مرفوعاً دے : (نِعْمَتِ الْاُضْحِيَةُ الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ) (ترمذی رقم (۱۵۵۰) بيهقي (۹/۲۷۱) واحمد (۲/٤٤٤) وفي اسناده ضعف كما قال الحافظ في الفتح (۱۰/۱۲) والارواء (۱۱٤۳) والسلسلة الضعيفة رقم (٦٣) ومعناه صحيح۔ (یعنی : ښه اضحیه د ګډانو نه جذع دے)۔

٤- حدیث : د ام هلال بنت بلال عن ابيها مرفوعاً روایت کوی : (يَجُوزُ الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ اُضْحِيَةً) (احمد، ابن ماجه، ابن جرير الطبري، طبراني في الكبير والبيهقي) رجال اسناده بعضهم ثقة وبعضهم صدوق، وبعضهم مقبول) (شوكاني) رجاله ثقات (هيثمي) وفي سنده ام محمد مجهولة) (سلسلة رقم (٦٥)

(د ګډانو نه جذع (بوکلنۍ) په اُضحيه کښې کافي کيږي)
دا احاديث دليل دے چه په جذع د ګډانو قرباني کيږي۔ لهذا پدے تحقيق سره اشکال ختم شو چه پدے حديث الباب کښې د جذع من الضأن جواز مقيد دے په نۀ موجوديدو د مُسنه باندے او په دے احاديثو کښې چه مونږ ذکر کړل جواز مطلقاً دے۔ نو جواب اُوشو چه مستحب دا ده چه مُسنه باندے قرباني اوکړے شي، ليکن که څوك په جذع من الضأن قرباني کوي بالکل جواز لري۔ او دغه احاديث ئے دلائل دي۔
البته د نورو حيواناتو په جذع باندے قرباني نۀ ده جائز۔دليل دا دے چه صحيح بخاري (٨٣٣/٢، ٨٣٤) رقم (٥٥٥٦) او مسلم (١٥٤/٢) کښې دي : براء بن عازب ﷺ فرمائي : ((زما ماما ابوبرده د مانځه نه مخکښې قرباني اوکړه نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمايل : (تِلْكَ شَاةُ لَحْمٍ) (دا قرباني اونشوه بلکه هسے د ګډ غوښه درته ملاؤ شوه) نو ده اووئيل : يارسول الله ! زما سره جذعه د چيلو ده؟ نبي ﷺ اوفرمايل :(ضَحِّ بِهَا، وَلَا تَصْلُحُ لِغَيْرِكَ) (قرباني پرے اوکړه ليکن دا ستا نه سوا بل چا له جائز نۀ ده۔ او په بل روايت کښې دي: (اذْبَحْهَا وَلَنْ تُجْزِئَ عَنْ أَحَدٍ بَعْدَكَ) (ذبح ئے کړه ليکن ستا نه روستو د بل چا نه دا نۀ جائز کيږي) بل روايت کښې دي : ((وَلَا تُجْزِئُ جَذَعَةٌ عَنْ أَحَدٍ بَعْدَكَ) (اللفظ لمسلم) (جذعه ستانه روستو د هيچا دپاره جائز نۀ ده)
نو پدے کښې په مذهب د اوزاعیؒ او عطاء باندے رد راغلو کما مرّ۔

---

١٤٥٦ (٤) – وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ أَعْطَاهُ غَنَمًا يَقْسِمُهَا عَلَى صَحَابَتِهِ ضَحَايَا، فَبَقِيَ عَتُودٌ، فَذَكَرَهُ لِرَسُولِ اللهِ ﷺ فَقَالَ: «ضَحِّ بِهِ أَنْتَ». وَفِي رِوَايَةٍ: قُلْتُ: يَارَسُولَ اللهِ! أَصَابَنِي جَذَعٌ، قَالَ: «ضَحِّ بِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : او د عقبه بن عامر ﷺ نه روايت دے چه نبي ﷺ دۀ ته ګډے بيزے ورکړے چه په خپلو ملګرو باندے ئے په طريقه د قرباني تقسيم کړي، (نو هغۀ تقسيم کړل) تقسيم نه روستو د چيلۍ يو بچے باقي پاتے شو، نو هغۀ رسول الله ﷺ ته هغه ياد کړو نو نبي ﷺ اوفرمايل : "تۀ پدے باندے قرباني اوکړه"، او په يو روايت کښې دي : ما اووئيل : يارسول الله ! ما ته د ګډ يو بچے رارسيدلے دے؟ (پدے څۀ اوکړم) نبي ﷺ اوفرمايل : "تۀ پدے باندے قرباني اُوکړه"۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

**تشريح** : نبي ﷺ چه دا ګډے بزے تقسيمولے نو کيدے شي چه دا د هغه خپلے وے يا د عقبه وے ليکن ظاهر دا ده چه دا ضمير نبي ﷺ ته راجع دے نو دا بيا د نبي ﷺ مِلکي ګډے بزے وے

او صحابه کرامو ته ئې بطور احسان ورکولې یا دا چه دا د مال فيء ګډې بزې وې لکه دې ته امام قرطبیؒ میلان کړیدې چه ددې حدیث نه ئې دا معلومه کړیده چه د امام (خلیفه) دپاره مناسب دی چه په کمزورو خلقو باندې د بیت المال نه قربانیانې تقسیم کړي.

عَتُوْدٌ : دا صرف د بزو (چیلو) په اولادو کښې استعمالیږي کله چه په هغې باندې کال تیر شي او قوي شي او خپله څریدلې شي (کذا في النهاية و كتب اللغة) (المصباح المنير ١٨٤/٤) جمع ئې أَعْتِدَة او عِتْدَان راځي. ابن بطالؒ وئیلي دي چه دا د پنځو میاشتو چیلي ته وائي.

دلته رسول الله ﷺ دې صحابيؓ ته اجازت ورکړې دې چه په عتود (د چیلي په بچي) باندې قرباني اوکړه. نو دا حکم د رسول الله ﷺ ددهٔ پورې خاص دې ځکه په روایت د بیهقي کښې داسې الفاظ زیات دي : (وَلَا رُخْصَةَ فِيْهَا لِاَحَدٍ بَعْدَكَ) (پدې کښې ستا نه روستو هیچا ته رخصت نشته).

نو دا زیادت که محفوظ شي لکه حافظ عسقلانيؒ وئیلي دي نو صریح دې چه عتود (۱، بزې په بچي) او په جذع د چیلو باندې که کال پوره شوې وي او که اکثر کال پرې تیر شوې وي خو قرباني جائز نهٔ ده. نو پدې کښې رد دې په احنافو باندې چه هغوي وائي : د چیلو په بچي باندې چه کال تیر شوې وي قرباني جائز ده. حال دا چه دا خصوصیت ددې صحابيؓ دې. لکه څنګه چه په حدیث د ابوبردهؓ کښې راغلي دي چه هغه ته نبي ﷺ په جذع د چیلو کښې رخصت ورکړو او دا ئې ورته اوفرمایل :(وَلَنْ تُجْزِئَ عَنْ اَحَدٍ بَعْدَكَ) (ستا نه روستو هیچا له جذع د چیلو جائز نهٔ دې) لکه دا حدیث مخکښې تیر شو. لهذا دواړو صحابه کرامو دپاره خصوصیت شو. نو ثابته شوه چه عتود او جذع (یو کلنې) د بیزو باندې قرباني نهٔ کیږي ترڅو چه ئې د پیو غاښونه نهٔ وي ارتولي او ثني ترې نهٔ وي جوړ شوې او کیدې شي چه دغه عتود هم ثني درجې ته رسیدلې وي ځکه ئې ورته دغه رخصت ورکړو. او همدا حق قول دې. راجع فتاوى الدين الخالص (٣٤٦/٦) وجامع الفقه (٥٤٣/٣)

---

١٤٥٧ (٥) - وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ يَذْبَحُ وَيَنْحَرُ بِالْمُصَلّٰى. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** : او ابن عمر ؓ فرمائي: "نبي ﷺ به په عید ګاه کښې (د قرباني حیوان) ذبح او نحر کولو". (بخاريؒ).

**تشریح** : یعني نبي ﷺ نه ذبح د ګډانو او غویانو او نحر د اوښانو په عیدګاه کښې نقل دې، نو دا دلیل دې چه نبي ﷺ د ګډانو نه علاوه نورو چارپیانو باندې هم قرباني کړیده. او مخکښې

حديث د انسؓ (كَانَ يُضَحِّيْ بِكَبْشَيْنِ) د دوام دپاره نهٔ دے۔ بنا پدے باندے دا دليل نهٔ دے چه په گډانو باندے قرباني كول افضل دي۔

بيا دا حديث مخكښ د باب صلاة العيد د فصل اول په آخر كښ ذكر شو او دلته ئے بيا ذكر كړو۔ وجه دا ده چه مخكښ ذكر كولو كښ د ذبح وقت خودل مقصود وو ځكه كله چه په عيدگاه كښ ذبح كوي نو معلوميږي چه دا ذبح به د مانځه نه روستو وي نهٔ مخكښ۔ او دلته مقصود مكان د ذبح ښودل وو چه په عيدگاه كښ ذبح كول د امام دپاره مستحب دي۔ دے دپاره چه د اسلام ددے شعار اظهار اُوشي۔

---

**۱٤٥٨ (٦) - وَعَنْ جَابِرٍ، اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ: « اَلْبَقَرَةُ عَنْ سَبْعَةٍ وَالْجَزُوْرُ عَنْ سَبْعَةٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ، وَاَبُوْدَاوٗدَ، وَاللَّفْظُ لَهٗ.**

**ترجمه :** او د جابر ﷺ نه روايت دے چه نبي ﷺ فرمايلي دي :« يوه غوا د اووه كسانو د طرف نه او اوښ د اووه كسانو د طرف نه (كافي) دے»۔

**تشريح:** دا حديث په مسلم كښ په مختلف الفاظو ثابت دے۔ بعضو كښ دا دي : (نَحَرْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ الْبَدَنَةَ عَنْ سَبْعَةٍ وَالْبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ). واخرجه البيهقي ايضاً (۹/۲۹٥) او دغه شان نور الفاظ دي چه دا ټول په باره د هدي كښ راغلي دي ليكن مصنف بغويؒ دا په باب د اضحيه كښ راوړيدي شو وجه يا خو دا ده چه دهٔ د الفاظو عموم ته كتلي دي نو دا په اضحيه باندے هم صادقيږي او يا دا چه په اضحيه كښ اشتراك او د بدنے او د بقرے د اوو كسانو نه په اضحيه كښ كافي كيدل په هدي باندے قياس سره ثابت دي۔ ليكن كله چه نص موجود وي نو قياسونو ته ضرورت نشته او د اُضحيه په باره كښ روستو حديث د ابن عباس په فصل ثاني كښ راروان دے۔

**په بدنه (اوښ) كښ د اشتراك متعلق اختلاف دے :**

(۱) امام شافعيؒ، احمدؒ او ابو حنيفةؒ فرمائي : دا د اوو (۷) كسانو د طرفنه كافي كيږي لكه د هدي په شان۔

(۲) او سعيد بن المسيب، اسحاق بن راهويه او امام ابن خزيمةؒ فرمائي : دا د لسو په ځائے كافيږي، يعني لس كسان پدے كښ شريك كيدے شي۔ او علامه شوكانيؒ د دواړو قسمه احاديثو جمع داسے كړيده چه دا حديث الباب وغيره نور احاديث په باره د هدي كښ دي نو په

هدی کښې بدنه او بقره دواړه يو شان دی چه د اُوو نه زيادت پکښې نهٔ دے پکار، ځکه زيادت نقل نهٔ دے۔ او هرچه اُضحيه ده نو په هغے کښې په بدنه يعنې اُوښ کښې لس کسان شريك كيدل جائز دی د وجه د حديث د ابن عباسؓ نه چه په فصل ثانی کښې راځی ان شاء الله۔ او همدا حقه خبره ده۔ او پدے سره تطبيق د ټولو احاديث راځی۔ نو دلته چه اووه کسان شريك كيدلو جواز ذکر شويدے دا ددے نفی نکوی چه په اُضحيه کښې به په بدنه کښې د اوو نه زيادت جائز نهٔ وی، ددے مثال داسے دے چه په يوه موقعه کښې دوه کسان په بقره کښې شريك شی نو دا نفی ددے نهٔ کوی چه اووه کسان شريك كيدل به ناروا وی۔ راجع المغنی (۹۷/۱۱) والفتح الربانی (۸۷/۱۳) والشوكانی والمرعاة)

## په بدنه کښې د لسو کسانو د شرکت د جواز دلائل :

په بدنه (اوښ، اوښه) کښې لس کسان شريك كيدو باره کښې ډير دلائل دی۔ بعض دا دی :

۱-حدیث د ابن عباسؓ دے چه په فصل ثانی کښې راځی (فَاشْتَرَكْنَا فِي الْبَقَرَةِ سَبْعَةً وَفِي الْبَعِيْرِ عَشَرَةً) (ترمذی (۲۷٦/۱) والنسائی (۲۰٤/۲) وابن ماجه (۳۱۳۱) واحمد (۲۷٥/۱) والحاکم (۲۳۰/٤) وقال صحيح على شرط البخاری ووافقه الذهبی وهو كما قالا۔ وشرح السنة (٦۲۸/۲)

۲- د عبد الله بن مسعودؓ نه مرفوعاً ثابت دی، رسول الله ﷺ فرمائی : (اَلْجَزُوْرُ فِي الْأَضْحٰى عَنْ عَشَرَةٍ) (طبرانی فی الكبير- مجمع الزوائد ۲۰/٤) (اوښ په قربانئ کښې د لسو نه کافی کیږی) ددے په سند کښې عطاء بن السائب دے چه په آخر کښې پرے اختلاط راغلے ليکن ددهٔ روايت په متابعات او شواهدو کښې کار ورکوی۔

۳- **دليل** : حسن بن علی رضی الله عنهما فرمائی :((اَمَرَنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَنْ نَلْبَسَ اَجْوَدَ مَا نَجِدُ وَاَنْ نَتَطَيَّبَ بِاَجْوَدِ مَا نَجِدُ، وَاَنْ نُضَحِّيَ بِاَسْمَنِ مَا نَجِدُ، اَلْبَقَرَةُ عَنْ سَبْعَةٍ، وَالْجَزُوْرُ عَنْ عَشَرَةٍ...... الحديث) (الحاکم ۲۳۰/٤) قال الهيثمی : فيه عبد الله بن صالح، قال عبد الملك بن شعيب هو ثقة مأمون، وضعفه احمد وجماعة)آه۔ وقال الحاكم : لولا جهالة اسحاق بن بزرج لحكمت للحديث بالصحة) لكن قال صاحب المرعاة (۱۰۲/٥) قلت : ليس بمجهول، فقد ضعفه الازدی ووثقه ابن حبان ذكره فی التلخيص (۱٤۳) وذكره ابن ابی حاتم بروايته عن الحسن ورواية الليث عنه فلم يذكر فيه جرحاً كذا فی اللسان (۳٥۳/۱) (رسول الله ﷺ امر کړے چه مونږ ښائسته جامے، مزيداره خوشبوئی استعمال کړو او قربانی په چاق حيوان اوکړو، غوا د اُووه کسانو د طرفنه او اوښ د لسو کسانو د طرفنه۔ الی آخر الحديث)۔

٤-**دليل**: رافع بن خديج ؓ فرمائی :((كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يَجْعَلُ فِي قَسْمِ الْمَغَانِمِ عَشْرًا مِنَ الشَّاءِ بِبَعِيْرٍ) (شيخان، نسائی، والمشكوة ۳٥۷/۲) (نبی ﷺ به د غنيمتونو په تقسيم کښې لس ګډان د يو

اوښ سره برابرول) نو دا ټول احادیث دلیل دے چه اوښ د لسو کسانو د طرفنه په اُضحیه کښ کافی کیږی)۔

۱٤٥۹ (۷) – وَعَنْ اُمِّ سَلَمَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ:« اِذَا دَخَلَ الْعَشْرُ وَاَرَادَ بَعْضُكُمْ اَنْ يُّضَحِّيَ فَلَا يَمَسَّ مِنْ شَعْرِهٖ وَبَشَرِهٖ شَيْئاً ». وَفِيْ رِوَايَةٍ:« فَلَا يَأْخُذَنَّ شَعْرًا، وَلَا يَقْلِمَنَّ ظُفُرًا »، وَفِيْ رِوَايَةٍ: «مَنْ رَأٰى هِلَالَ ذِي الْحِجَّةِ، وَاَرَادَ اَنْ يُّضَحِّيَ، فَلَا يَأْخُذْ مِنْ شَعْرِهٖ وَلَا مِنْ اَظْفَارِهٖ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : ام سلمه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی:« کله چه لس ورځے د (ذی الحجے) داخلے شی او ستاسو نه بعض کسان د قربانی کولو اراده لری نو هغۀ دے د خپلو ویښتو او بدن نه څۀ نۀ اخلی »۔ او په یو روایت کښ دی :« هغۀ دے ویښته بالکل نۀ اخلی، او نۀ دے نوکونه پریکوی »۔ او په یو بل روایت کښ دی : « چا چه د ذی الحجے میاشت اولیدله او اراده لری چه قربانی اوکړی نو هغۀ دے (د قربانی ذبح کولو پورے) د خپل ویښتو او نوکونونه څۀ نۀ اخلی »۔ (مسلم)

**تشریح** : دے حدیث کښ دا مسئله ده چه څوك د اُضحیه اراده لری نو هغه له پکار دی چه : اول د ذی الحجه نه به تر د اُضحیه ذبح کولو پورے یعنی لسو ورځو کښ به د بدن نه نوکونه او ویښته وغیره نۀ اخلی۔ لیکن پدے کښ اختلاف دے : ۱- **سعید بن المسیبؒ ربیعهؒ احمدؒ** اسحاقؒ، داودؒ او بعض اصحاب الشافعیؒ وائی : د ویښتو او نوکونو وغیره اخستل حرام دی تردے چه قربانی اوکړی۔ او پریخودل ئے د واجباتو نه دی۔ **دلیل** ئے دا حدیث د ام سلمه رضی الله عنها دے چه پدے کښ نهی راغلے ده او نهی ظاهر ده په تحریم کښ څکه دلته (فَلَا يَأْخُذَنَّ) نهی تاکید دپاره ده۔ ۲- **امام شافعیؒ** او د هغه اصحاب وائی : دا مکروه دی په کراهت تنزیهی سره او حرام نۀ دی۔

**دلیل** : استدلال کوی په حدیث د عائشه رضی الله عنها چه هغه فرمائی : ((اِنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يَبْعَثُ بِهَدْيِهٖ وَلَا يُحَرِّمُ عَلَيْهِ شَيْءٌ اَحَلَّهُ اللهُ لَهٗ حَتّٰى يَنْحَرَ هَدْيَهٗ)) (متفق علیه)

امام شافعیؒ فرمائی : هرکله چه د هدی په لیږلو سره په انسان باندے هیڅ حلال شے حرام نۀ دے نو په اراده د اُضحیه خو به په طریق اولیٰ سره په دۀ باندے جائز څیزونه نۀ حرامیږی۔ (المجموع ۳۸٦/۸) والمرعاة (۸۷/۵) نو امام شافعیؒ دا حدیث مُقتَضِی اوګرځولو ددے دپاره چه حدیث الباب (حدیث ام سلمهؓ) حمل دے په کراهت تنزیهی باندے۔ (یعنی نوکونه وغیره

اخستل جائز دی لیکن اخستل ئے بنه نه دی۔)

**جواب :** ۱- امام شوکانیؒ فرمائی:((پته دې نۀ وی چه حدیث د ام سلمهؓ اخص مطلقاً دې د حدیث د عائشهؓ نه او دا قانون دې چه علم حدیث به په خاص حدیث باندې حمل او بناء وی))۔

علامه ابن قدامه رحمه الله په المغنی (٦١٩/٨) کښې فرمائی :((حدیث د عائشهؓ عام دې او حدیث د ام سلمهؓ خاص دې او د خاص تقدیم په علم باندې واجب دې پدې طریقه چه عام به حمل شي په ماسوئ د هغه څه باندې چه خاص حدیث ورته شامل دې))۔ (یعنی د نوکونو او وېښتو وغیره اخستو نه علاوه نور څیزونه استعمالول مثلاً خوشبو لګول، زنانه سره تعلقات کول او ګنډلې شوې جامې وغیره استعمالول ورله د هدیه د لیږلو د وخت نه تر ذبح کولو پورې جائز وو)۔

۲- دویم جواب دا دې چه په هغه حدیث کښې حکم د هدي دې او دلته نبی ﷺ د اُضحیه متعلق حکم بیانوی۔ لهذا حدیث د عائشهؓ د محل د نزاع نه بهر دې۔ او راجح قول دا دې چه په حاجي باندې اُضحیه نۀ ده لازم ځکه د صحابه کرامو نه ئے نقل نشته۔ لکه دا قول ابن القیمؒ راجح کړیدې۔(زاد المعاد)

۳- یا دا چه حدیث د ام سلمهؓ مقدم دې پدې وجه چه عائشه د نبی ﷺ د فعل نه خبر ورکوی او ام سلمهؓ د قول نه خبر ورکوی او دا مُسلّم اصول دی چه کله تعارض راشي د فعل او قول نو قول به په فعل مقدم کولې شي ځکه امکان شته چه فعل د نبی ﷺ پورې خاص وی۔ انتهیٰ (المغنی ٦١٩/٨) والشرح الکبیر۔

(۳) او یو روایت د شافعیؒ نه دا دې چه نوکونه نه اخستل او حلق او تقصیر نۀ کول مستحب دی۔ ٤- د **امام ابوحنیفه**ؒ په نیز دا کارونه مباح دی نۀ مکروه دی او نۀ مستحب دی۔ لیکن دا احادیث د هغوی په قول باندې رد کوی۔

(۵) د امام مالكؒ نه درې اقوال دی: ○ مباح دی۔ ○ مکروه دی۔ ○ په نفلی قربانی کښې اخستل حرام دی او په فرضی کښې واجب دی۔ (شرح مسلم للنوویؒ ۳۸٦/۸)

**راجح قول** اول دې (د سعید بن المسیبؒ او د احمدؒ وغیره علماؤ) ځکه دا حدیث الباب پکښې نص صریح دې چه تاویل نۀ قبلوی او چا چه دې ته مباح یا مکروه وئیلی دی نو د هغوی دپاره هیڅ دلیل نشته۔ بلکه د نبی ﷺ دومره تاکیدی کلمات څنګه په مباح حمل کیدې شي او بیا په کراهت بلکه دیته مکروه وئیل د حدیث د ظاهر مخالفت دې نو بیا ذهن ته دا سوال راځی دې چه لوئی علماؤ ولې داسې مخالفت د حدیث کولو؟ نو ددې جواب دا دې چه دې علماؤ قصداً د احادیثو خلاف نۀ دې کړې او نۀ د دوی دا اراده شته چه مونږ د احادیثو خلاف په خپل ذهن سره

اوكړو بلكه حقيقت دا دے چه دوى نه به د يوے مسئلے متعلق تپوس اوشو او دوى ته به پكښې حديث نۀ وو رسيدلے نو د خپل ذهن مطابق جواب به ئے وركړو چه هغه به د حديث مخالف وو نودوى پدے كار گناهگار نۀ دى ليكن كه څوك د حديث د ښكاره كيدو نه پس د دوى په دے خطاء خبره كښې تابعدارى كوى نو دا به مجرم او گناهگار وى۔

او كومو احنافو چه د خپل مذهب په مدافعت كښې ددے حديث نه جوابونه كړيدى نو هغه هم مخدوش او ضعيف دى ○ لكه طحاوىؒ وائى : دا حديث موقوف دے آمـ او دارقطنىؒ هم دا خبره كړيده۔ ددے جواب دا دے چه دا حديث اگركه بعضو راويانو موقوف كړيدے په ام سلمه رضى الله عنها باندے ليكن اكثرو راويانو په صحيح احاديثو كښې مرفوع هم ذكر كړيدے۔ لكه هغه اسانيد تفصيلاً په مسلم او نسائى كښې ذكر دى۔ لهذا اصل د حديث مرفوع دے او ام سلمه د مرفوع حديث مطابق فتوىٰ وركړيده۔ نو ځكه بعضو موقوف ذكر كړيدے۔

تنبيه : دا حكم په باره د هغه چا كښې دے چه اراده د قربانى لرى او مال وغيره ورسره وى چه قربانى پرے واخلى۔ نو هغه دپاره د بدن نه په لسو ورځو كښې څه اخستل نۀ دى جائز۔ او كه څوك اراده د قربانى نۀ لرى نو هغه دپاره ئے اخستل جائز دى۔ البته كه يو انسان دا طمع لرى چه قربانى به اوكړم او فى الحال ورسره هيڅ نۀ وى نو د هغه دپاره هم د بدن نه څه اخستل ښه نۀ دى نو كه اُضحيه ورته ملاؤ شوه نو لا ښه او كه ملاؤ نشوه نو د قربانى په ځائے دے د مانځه نه روستو نوكونه او ويښته واخلى دا به ددۀ دپاره د قربانى په ځائے كافى شى لكه دا مسئله د بل حديث نه معلوميږى۔

۱٤٦٠ (٨) – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« مَا مِنْ اَيَّامٍ الْعَمَلُ الصَّالِحُ فِيْهِنَّ اَحَبُّ اِلَى اللهِ مِنْ هٰذِهِ الْاَيَّامِ الْعَشْرِ »، قَالُوْا: يَارَسُوْلَ اللهِ! وَلَا الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ ؟ قَالَ: «وَلَا الْجِهَادُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ اِلَّا رَجُلٌ خَرَجَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فَلَمْ يَرْجِعْ مِنْ ذٰلِكَ بِشَيْءٍ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : او ابن عباس ﷺ فرمائى: رسول الله ﷺ فرمايلى دى : « نشته داسے ورځے چه په هغے كښې نيك عمل الله ته (د ذى الحجے) ددے لسو ورځو نه زيات محبوب وى »۔ صحابه كرامؓ عرض اوكړو يا رسول الله ! (ددے ورځو نه علاوه په نورو ورځو كښې) د الله په لاره كښې جهاد كول هم (ددے ورځو د نيك اعمالو برابر) نۀ دى۔ نبى ﷺ اوفرمايل : « جهاد فى سبيل الله هم (پدے ورځو كښې د نيك اعمالو برابر) نۀ دے، مگر د هغۀ شخص جهاد چه هغۀ د خپل جان او

مال سره اووځي او بيا ددے څيزونو نه په هيڅ څيز سره واپس نۀ شي »۔ (نو دا بيا ددے ورځو د نيك اعمالو نه زيات افضل دے)۔ (بخاري)

**تشريح :** د ذي الحجے په لسو ورځو كښ تول اعمال الله ته ډير محبوب دي د باقي ورځونه تردے چه پدے ورځو كښ جهاد هم ډير فضيلت لري ځكه دا هم د اعمال صالحه ؤ نه عظيم عمل دے ليكن پدے ورځو كښ عام اعمالِ صالحه افضل دي د جهاد كولو نه په نورو ورځو كښ۔ يا بعض وائي : جهاد هم پدے ورځو كښ افضل نۀ دے د باقي اعمالونه، وجه دا ده چه پدے ورځو كښ حج كولے شي او په جهاد سره حج فوت كيږي۔

**اِلَّا رَجُلٌ :** دا پدے دويمه معنیٰ سره د جهاد په فضيلت او عظمت شان باندے دلالت كوي چه جهاد داسے مرتبے ته رسيدلے دے چه پدے كښ د زمانے په شرافت او عدم شرافت سره هيڅ فرق او تفاوت نۀ راځي۔ (قاله السندي)۔

د صحابه كرامو په دور كښ به جهاد كښ اعمال او عباداتونه كم كيدل او په خپل كور كلي كښ به عباداتونه زيات كيدل نو ځكه د جهاد تذكره كوي يعني كوم انسان چه پدے ورځو كښ په كور كښ عباداتونه زيات كوي دا غوره دے د هغه مجاهد نه چه جهاد ته لاړ شي ځكه د هغه عباداتونه كم شي۔ په خلاف د زمونږ زمانے نه چه خلق په خپلو كورونو مصروف او مشغول وي په كارونو او چه كله جهاد ته اوځي نو بيا په مورچه او معسكر كښ ناست وي عباداتونو ته اُوزګار شي۔نو مونږ له پدے ورځو كښ جهاد ته تلل پكار دي۔

دے لسو ورځو ته فضيلت پدے وجه وركړے شويدے چه پدے كښ مركزي عباداتونه راجمع شويدي لكه حج، صدقه، روژے، مونځونه وغيره چه دا اعمال په نورو ورځو كښ نۀ راجمع كيږي۔

**اختلاف** دے چه دا لس ورځے د ذي الحجے افضل دي او كه آخري لس ورځے د رمضان افضل دي؟۔ ۱ – بعض وائي : دا لس ورځے ډيرے افضل دي د وجه ددے حديث الباب نه۔

۲ – دويم قول دا دے چه لس ورځے د رمضان افضل دي ځكه په هغے كښ روژه او ليلة القدر ده۔ ليكن تطبيق دا دے چه دا لس ورځے افضل دي ځكه پدے كښ د عرفے ورځ راځي۔ او د رمضان آخري لس شپے افضل دي ځكه چه هغے كښ ليلة القدر راځي۔ لهذا د ورځو په اعتبار سره دا افضل شوے او د شپو په اعتبار د رمضان آخري عشره افضل شوه۔ او دا د نوافل اعمالو په باره كښ اختلاف دے هرچه فرائض دي نو علیٰ كل حال فرضي روژه په رمضان كښ بهتره ده د نفلي روژے نه په دے عشره كښ۔

بيا پدے ورځو كښ كوم اعمال پكار دي نو هغه په روايت د طبراني في الكبير كښ راغلي دي

باسناد رجاله رجال الصحيح د ابن عباسؓ نه مرفوعاً روايت شوى : «مَا مِنْ أَيَّامٍ أَعْظَمُ عِنْدَ اللهِ وَلَا أَحَبُّ إِلَى اللهِ الْعَمَلُ فِيهِنَّ مِنْ أَيَّامِ الْعَشْرِ، فَأَكْثِرُوا فِيهِنَّ مِنَ التَّسْبِيحِ وَالتَّهْلِيلِ وَالتَّحْمِيدِ وَالتَّكْبِيرِ» (يعنى د الله ذكر كول تسبيحات دير وئيل پدے ورځو كښ زيات افضل دى).

## الفصل الثاني

۱۴۶۱ (۹) – وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: ذَبَحَ النَّبِيُّ ﷺ يَوْمَ الذَّبْحِ كَبْشَيْنِ أَقْرَنَيْنِ أَمْلَحَيْنِ مَوْجُوءَيْنِ، فَلَمَّا وَجَّهَهُمَا قَالَ: « إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضَ عَلٰى مِلَّةِ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ، إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ، وَمَمَاتِي لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ، لَا شَرِيكَ لَهُ، وَبِذٰلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ، اَللّٰهُمَّ مِنْكَ وَلَكَ، عَنْ مُحَمَّدٍ وَأُمَّتِهِ، بِسْمِ اللهِ، وَاللهُ أَكْبَرُ»، ثُمَّ ذَبَحَ. رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَه، وَالدَّارِمِيُّ. وَفِي رِوَايَةٍ لِأَحْمَدَ، وَأَبِي دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيِّ : ذَبَحَ بِيَدِهِ وَقَالَ: « بِسْمِ اللهِ وَاللهُ أَكْبَرُ، اَللّٰهُمَّ هٰذَا عَنِّي وَعَمَّنْ لَمْ يُضَحِّ مِنْ أُمَّتِي».

ترجمه : جابر ؓ فرمائى: نبى ﷺ د ذبح (يعنى قربانۍ) په ورځ دوه ګډان خكرور، تور سپين، خصى شوى ذبح كړل نو كله ئې چه دواړه مخ په قبله كړل، داسے اووئيل :« إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضَ عَلٰى مِلَّةِ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ، إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ، وَمَمَاتِي لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ، لَا شَرِيكَ لَهُ، وَبِذٰلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ، اَللّٰهُمَّ مِنْكَ وَلَكَ، عَنْ مُحَمَّدٍ وَأُمَّتِهِ، بِسْمِ اللهِ، وَاللهُ أَكْبَرُ » (ما خپل مخ هغۀ ذات دپاره تابع كړے چه اسمانونه او زمكے ئے پيدا كړى دى، زۀ په ملت (دين ) د ابراهيم ؑ يم چه كلك ولاړ دے په توحيد او نۀ يم د مشركانو نه، يقيناً زما مونځ او زما قربانى او زما مرګ او ژوند خالص د الله رب العالمين دپاره دى چه هيڅ شريك د هغۀ نشته او پدے باندے ما ته حكم شوے او زۀ د تابعدارو نه يم، اے الله ! (دا قربانى) ستا د طرف نه ده او ستا دپاره ده د محمد (ﷺ) او د هغۀ د امت نه (ئے قبوله كړه) صرف په نوم د الله ذبح كوم او الله لوئى دے) ددے نه روستو ئے ذبح كړل، (احمدؒ، ابوداوٗدؒ، ابن ماجهؒ، دارميؒ) او په يو روايت د احمدؒ او ابوداوٗدؒ او ترمذیؒ كښ دى :« په خپل لاس ئے ذبح كړل، او وے وئيل : بِسْمِ اللهِ، اَللهُ أَكْبَرُ، اَللّٰهُمَّ هٰذَا عَنِّي وَعَمَّنْ لَمْ يُضَحِّ مِنْ أُمَّتِي» (اے الله ! دا زما د طرف نه ده او زما د امت نه د هغۀ چا د طرف نه ده چه قربانى ئې نۀ وى كړى).

تشريح : مَوْجُوْئَيْنِ : تثنيه د موجوء ده اسم مفعول دے د وَجأ مهموز اللام نه خصى كولو ته

واتي۔ (د حيوان د اګـو رګـونـه تـكول يا بعينېٖ اګۍ تكول چه د هغې په وجه د هغه شهوت ختم شي) حديث كښې دي : (فَإِنَّهُ لَهُ وِجَاءٌ)۔ دا حـديث دليل دے چه خصي حيوان په قرباني كولو كښې هيڅ مـكـروه نهٔ دے، او بـعـض اهلِ علم ورته مكروه وائي پدے وجه چه په اندام كښې ئے نقصان راغـلے دے ليـكـن دا يَـو داسـے نـقـصـان دے چه عيب نهٔ دے بلكه د خصي كولو په وجه د حيوان غـوښه مزيداره كيږي او بد بوئي ئے ختميږي۔ (خطابيؒ)۔ ليكن دا حديث رد كوي په دغه بعض اهـل عـلمو باندے ځكه چه نبي ﷺ پرے اُضـحـيـه كړيده نو دا تعليل دے په مقابله د نص كښې لهٰذا مقبول نهٔ دے۔

**فَلَمَّا وَجَّهَهُمَا** : يـعـنـي كله ئے چه څملول او چاره ئے پرے راخكله نو په دغه وخت كښې ئے دغه اذكار اوكړل نـو حـديث دليـل دے چـه د اُضـحـيـے د ذبح كولو په وخت دغه دعاګانے وئيل سنت طريقه ده۔او (عن محمد وامته) الفاظ به نهٔ وائي۔ ځكه دا د نبي ﷺ خصوصيت دے چه هغه د خپل امت د طرفنه يوه قرباني كوي او هغوي ته ئے اجر رسي۔ يعني يوه قرباني د نبي د طرفنه او بله د امت د طرفنه۔

**درجة الحديث** : اسـنـاده صـحـيـح : اخـرجـه احمد (٣٧٥/٣) والدارمي (٧٥/٢، ٧٦) وابوداود (٢٧٩٥) وابن مـاجـه (٣١٢١) والحاكم (٢٢٩/٤) وقال صحيح الاسناد ووافقه الذهبي۔ راجع الارواء (١١٣٨)

**١٤٦٢ (١٠) – وَعَنْ حَنَشٍ، قَالَ: رَأَيْتُ عَلِيًّا يُضَحِّي بِكَبْشَيْنِ، فَقُلْتُ لَهُ: مَا هٰذَا؟ فَقَالَ: إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ أَوْصَانِي أَنْ أُضَحِّيَ عَنْهُ، فَأَنَا أُضَحِّي عَنْهُ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ نَحْوَهُ.**

**ترجمه** : او حنش رحمه الله فرمائي: ما علي بن ابي طالب رضي الله عنه اوليـدو چه په دوه ګډانو ئے قرباني كوله، ما ورته اووئيل: "دا څهٔ دي؟" (يعني يوه قرباني كافي ده نو دوو ته څهٔ حاجت؟) هغهٔ اوفرمايل : "يـقـيـنـاً رسول الله ﷺ ما ته دا وصيت كړے چه زهٔ د هغهٔ د طرف نه (بعد الوفات) قرباني اُوكړم، نو زهٔ د هغهٔ د طرف نه قرباني كوم"۔ (ابوداودؒ) او امام ترمذيؒ ددے په شان روايت نقل كړے۔

**تعارف د حنش** رحمه الله: حـنـش بن المعتمر يا حنش بن ربيعة الكناني ابوالمعتمر الكوفي مـن اوساط التـابـعـيـن۔ حـافظ په تقريب كښې وائي : صدوق له اوهام۔ او په تهذيب (٥٨/٣) كښې وائي : ابوداودؒ او عجليؒ ورته ثقه وائي۔ بخاريؒ وائي : (يَتَكَلَّمُوْنَ فِيْ حَدِيْثِهِ) علماء ددهٔ په حديث كښې خبرے كوي۔ نسائيؒ وائي: لَيْسَ بِالْقَوِيِّ۔ابـن حبانؒ وائي :كَـانَ كَثِيْـرَ الْـوَهْـمِ فِي الْأَخْبَارِ يَنْفَرِدُ عَنْ عَلِيٍّ بِـأَشْيَاءِ لَاتُشْبِهُ حَدِيْثَ الثِّقَاتِ حَتّٰى صَارَ مِمَّنْ لَا يُحْتَجُّ بِحَدِيْثِهِ) عقيليؒ، ساجيؒ، ابن الجارودؒ او ابوالعرب

الصقلىّ په ضعفاؤ کښې شمارلے دے۔ ابن حزمؒ ورته په محلی کښې ساقط مطرح وئیلے دے۔

**تشريح :** پدے حدیث کښې مسئله د ایصال ثواب ده چه د بل چا د طرفنه قربانی اوکړے شی او ثـواب ئے هغه ته اُورسولے شی آیا دا کار جائز دے؟ نو پدے کښې تحقیقی خبره دا ده چه زمونږ په دین کښې دے خبرے ته نبی ﷺ او صحابه کرامو دعوت نهٔ دے ورکړے چه د بل چا دپاره عمل کوه او یا د هغه د مرو د طرفنه قربانی کوه او ثواب ئے هغه ته بخه بلکه عمل به ځانله کولے شی او دعاګانے بـه مرو تـه کـولے شی او هرچه دا حدیث دے نو دا د سند په لحاظ ضعیف دے، او که ثابت شی نو بیا دا وصیت صرف علی ؓ ته وو۔ او د نبی ﷺ او د علی ؓ پورے خاص دے دا وجه ده ابوبکر، عمر او عثمان رضی الله عنهم د نبی ﷺ د طرفنه قربانی نهٔ ده کړے۔دارنګه ددے نـه صـرف اجازه ددے مـلاوېږی چه کـه مـور او پـلار یـو بچی ته یا څوك بل خپلوان ته وصیت اوکړی چه زمـا د طرفنه قربانی اوکړه نو هغه له جائز دی چه د هغه د طرفنه قربانی اوکړی او که وصیت ئے نهٔ وی کړے نو ځان ته هغوی له قربانی کول نهٔ دی پکار۔

بیا کـه څـوك د مړی د طـرفـنـه قـربـانی اوکړی مثلًا د مرهٔ مور او پلار دپاره قربانی کښې برخه اونیسی نـو آیـا غـوښـه بـه ئے ځانله خوری او که توله به صدقه کوی؟ (۱) نو بعض علماء وائی. تـوله غوښه به خیرات کوی او ځانله به ئے نهٔ خوری او علامه ابوالحسن المبارکفوریؒ وئیلی دی چه احتیـاط پـه هـمدے خبره کښې دے۔(۲) او بعض وائی:غوښه ځانله هم خوړلے شی او صدقه کولے ئے هم شی۔ د عامے قربانۍ په شان حکم ئے دے۔

**درجة الحديث:** اسناده ضعيف : اخرجه احمد (۱/۱۵۰) وابوداود (۲۷۹۰) والترمذی (۱٤۹۵) وقـال حـديـث غـريـب لا نـعـرفـه الا مـن حـديـث شـريـك آه) وهـو ضعيف لسوء حفظه و كذلك شيخه ابوالحسناء مجهول كما قال الحافظ والذهبى وقد مر الكلام فى حنش۔

---

۱٤٦۳ (۱۱) ــ وَعَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: اَمَرَنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ «اَنْ نَّسْتَشْرِفَ الْعَيْنَ وَالْاُذُنَ، وَاَلَّا نُضَحِّيَ بِمُقَابَلَةٍ، وَلَامُدَابَرَةٍ، وَلَا شَرْقَاءَ وَلَاخَرْقَاءَ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَاَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ، وَابْنُ مَاجَه وَانْتَهَتْ رِوَايَتُهُ اِلٰى قَوْلِهٖ: «وَالْاُذُنَ».

تـرجـمه : او علی ؓ فـرمـائی: مـونږ تـه رسـول الله ﷺ دا حـکـم فرمایلے دے چه (د قربانی حیوان) سترګه او غوږ په ښهٔ طریقه اوګورو، (چه داسے کوم عیب او نقصان نهٔ وی چه د هغے په وجـه قـربـانی درست نهٔ شی او دا حکم ئے هم فرمایلے دے چه) مونږ په هغهٔ حیوان باندے قربانی اونهٔ کړو چه د هغهٔ غوږ د مخکښې نه یا شا طرف نه پریکړے شوے وی، او نهٔ په هغهٔ حیوان چه د

هغه غوږ په اوګدوالي څيرې شوے وي او په ګرد والي (ګولائي) کښې شليدلے وي" (ترمذیؒ، ابوداودؒ، نسائیؒ، دارمیؒ، ابن ماجةؒ) او د امام ابن ماجةؒ روايت په (( والاذن )) باندے ختم شوے دے۔

**تشريح :** ددے ځائے نه روستو د اُضحيه عيبونه بيانوي چه په کوم کوم حيوان باندے قرباني کول جائز نهٔ دي۔ نو قانون پديکښې دا واوره چه په حيوان کښې شپږ عيبونه دي کله چه دا موجود شو نو په هغه حيوان باندے قرباني نهٔ کيږي، ددے نه ماسوئ عقلي شرطونه او عيبونه دي چه مستند دليل ئے نشته۔

**۱ - اول عيب :** (اَلْعَوْرَاءُ الْبَيِّنُ عَوَرُهَا) (هغه شيرئ او ړنده چه ړوند والے او شيرا والے ئے ښکاره وي) ځکه پدے سره د حيوان حسن خرابيږي۔ (۲) دويم هغه عيب چه په غوږونو کښې وي چه د هر طرفنه شليدلے وي نو دا عيب دے لګ وي او که ډير او دا معنیٰ د مقابله، مدابره، شرقاء او خرقاء ده۔ (۳) (اَلْعَرْجَاءُ الْبَيِّنُ ضِلَعُهَا) ګوډوالے چه ښکاره وي۔ (٤) اَلْمَرِيْضَةُ الْبَيِّنُ مَرَضُهَا (هغه مريضه چه آثار د مرض ئے ښکاري لکه خارخ پرے وي يا څرمن ئے شليدلے وي)۔

(٥) اَلْعَجْفَاءَ: (خواره، توپه چه نلي (مغز) پکښې کمزورے وي)۔ (٦) اَلْعَضْبَاءُ دا هغه حيوان دے چه نظرئے ختم شوے وي او سترګه کولاوه پاتے شوې وي۔

ابن حزمؒ پکښې (بَتْرَاءُ) (لکئ پريکړے شوے) زياته کړے ده او روايت د نسائي پيش کوي ليکن هغه روايت ضعيف دے د ابواسحاق السبيعي مدلس په وجه۔

علامه ابن ضويان فرمائي : (( خصي او لکئ پريکړے شوې او خکر ماتل شوې حيوان باندے اُضحيه جائز ده د وجه د عموم د دلائلو نه))۔منار السبيل (۱/۳۷۲)۔

علامه ابن قدامةؒ وائي : (( په لکئ پريکولو سره په حيوان کښې هيڅ نقصان نهٔ راځي نهٔ غوښه کموي او نهٔ مقصود کښې خلل راولي او نهي ددے نه نهٔ ده راغلے لهذا پدے باندے قرباني بالکل جائز ده))۔ المغني (۱۱/۱۰۳)

که ددے شپږو نقصانانو نه علاوه نقصان وي نو حرام نهٔ ده لکه :

(۱) هَتْمَاء، او جَلْحَاء : يعني هغه چه خکرئے نهٔ وي۔(۲) جَمَّاء، او عَرْمَاء يعني هغه چه خکرئے بل خکر ته ماتل شوے وي۔(۳) عَقْصَاء : کوږ خکر والا۔

(٤) عَضْبَاء : چه ښکرئے مات شوے وي۔ (معرفة السنن والآثار۷/۲۱۲)

(٥) عَصْمَاء : يعني هغه چه د خکر غلاف ئے مات شوے وي (فقه السنه ۳/۲٦٥)

(٦) هَجْمَاء : چه آواز ئے نهٔ وي۔ (۷) جَدَّاء : چه غولانځه ئے اوچه شوې وي۔ (المغني ۱۱/۱۰۲)۔ (۸) خصي، او ثَرْمَاء : هغه چه د غاښونو نه ئے ثنيه (مخامخ غاښ) يا رباعي غاښ

پریوتے وی۔ بعض وائی : دا هغه ده چه یو غابښ ئے د بیخ نه پریوتے وی که د هر ځائے نه وی۔

(۹) اَلْمَجْنُوْنَةُ : لیونئ چه څر کولے شی۔ (عون المعبود۳/۵۵)۔

(۱۰) دارنګه که غرے ئے څیری شوے وی نو خیر دے۔ پدے تولو قسمه حیواناتو باندے قربانی جائز ده ځکه چه ددے قسم حیواناتو نه منع او نهی نۀ ده راغلے بلکه نهی صرف د یو څو معلوم حیواناتو نه راغلے ده۔

اَنْ نَسْتَشْرِفَ الْعَيْنَ : استشراف تالاش او جوخت نظر کولو ته وائی۔ او په اصل کښې د بره ځائے نه خکته راخکاره کیدو ته وائی، ماخوذ دے د « شَرَف » نه اوچت مکان ته وائی۔ دارنګه دیته هم وائی چه یو شخص په وروځو لاس کیدی لکه د نمر نه چه سترګے ساتی۔ (جزریؒ فی جامع الاصول)۔ (۲) علامه طیبیؒ وائی : دا د شُرْفَة (بضم الشین وسکون الراء) نه جوړ دے غوره مال ته وائی۔نو معنیٰ دا ده چه مونږ ته رسول الله ﷺ دا حکم کړے دے چه مونږ غوره کړو هغه حیوان چه د کاملے سترګو او غوږونو والا وی۔(مرقاة)۔

(۳) امام شافعیؒ معنیٰ کوی: (مَعْنَاهُ اَنْ نُضَحِّيَ بِوَاسِعِ الْعَيْنَيْنِ، طَوِيْلِ الْاُذُنَيْنِ) (یعنی چه کولاؤ سترګو او اوږدو غوګونو والا وی) ځکه دا اصیل او ښائسته مال وی۔لیکن اول قول مشهور دے۔

بِمُقَابَلَةٍ : دا هغه حیوان ته وائی چه غوږ ئے د مخے طرفنه شلیدلے وی او باقی حصه ئے د مخکښې نه معلق (زوړنده) پاتے وی۔

مُدَابَرَةٍ : هغه ګډے ته وائی چه د شا طرفنه ئے غوږ پریکړے شوے وی او شا طرفته زوړند پاتے شوے وی۔

شَرْقَاءَ : په اوږدو په مینځ باندے غوږ پریکړے شوے۔(نهایه، قاموس)

خَرْقَاءَ : دا هغه حیوان دے چه غوږ ئے ګول سورے شوے وی۔ بعض وائی : شرقاء هغه حیوان دے چه غوږ ئے طولاً پریکړے شوے وی او خرقاء هغه دے چه عرضاً (پلنو باندے) پریکړے شوے وی۔ په روایت د احمد کښې ورسره دا دی : (وَلَا جَدْعَاءَ) دا هغه حیوان ته وائی چه پوزه یا غوږ، یا شونډه ئے پریکړے شوے وی لیکن کله چه مطلق ذکر کړے شی نو پوزه پریکولو پورے خاص وی۔

پدے مذکوره حیواناتو قربانی نۀ ده جائز۔ مګر جمهور علماء وائی : دا نهی د کراهت او تنزیه دپاره ده او که پدے مذکوره حیواناتو کښې چا په یو قسم باندے قربانی اوکړه نو جائز ده۔ صرف بهتره نۀ ده۔ابن قدامه په مغنی (۸/۶۲۶) کښې وائی : دا خبره اجماعی ده مونږ ته په کښې اختلاف نۀ دے معلوم"۔ آه۔ لیکن که دا روایت صحیح شی نو ظاهر دا ده چه نهی د تحریم دپاره ده۔ نو د کوم حیوان په باره کښې چه حدیث صحیح ثابت وی نو هلته به نهی د تحریم دپاره وی۔

لګه تشریح به ئې روستو راشي۔

**درجة الحديث:** اسناده صحيح عند قوم وضعيف عند آخرين: اخرجه احمد (۱/۱۰۸) والدارمي (۲/۷۷) وابوداود (۲۸۰٤) والترمذي (۱٤۹۸) والنسائي (۷/۲۱٦) وابن ماجه (۳۱٤۲-۳۱٤۳) وقال الترمذي: حديث حسن صحيح وقال البخاري لم يثبت رفعه وتبقى في الحديث علة وهي ابواسحاق وهو عمرو بن عبد الله السبيعي وكان اختلط وليس في رواة هذا الحديث من حدّث عنه قبل الاختلاط راجع الارواء (۱۱٤۹) قال الالباني لكن جملة الاستشراف صحيحة كما في صحيح سنن النسائي) ولكن قال المباركفوريؒ: الحديث روى بطريقين الجزء الثاني منه اى النهي عن مقابلة الخ رواه احمد (۱/۹۵،۱۰۵،۱۵۲) والنسائي والحاكم وابن ماجه وروى الجزء الاول اى الامر باستشراف العين والاذن احمد وابن ماجه والحاكم والبيهقي والدارمي وابن ماجه كلا الجزئين لكن من طريقين وهذه الطرق كلها صحيحة الخ (مرعاة المفاتيح ۵/۹٦)

---

**۱٤٦٤ (۱۲) — وَعَنْهُ، قَالَ: نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَنْ نُضَحِّيَ بِأَعْضَبِ الْقَرْنِ وَالْاُذُنِ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه:** او علی کرم الله وجهه فرمائی: رسول الله ﷺ ددے نه منع فرمایلے ده چه مونږ په خکر مات کړے شوی او غوږ پریکړے شوی حیوان باندے قربانی اوکړو۔ (ابن ماجةؒ)۔

**تشریح:** بِأَعْضَبِ الْقَرْنِ یعنی هغه چه خکرئ مات شوے وی او غوږئ پریکړے شوے وی۔ د غوږ پریکړے شوی حیوان په باره کښې خو ډیر صحیح احادیث ثابت دی چه پدے باندے قربانی نهٔ کیږی۔ او هرچه د خکر ماتیدل دی نو بعض علماء وائی چه ددے نه مراد هغه خکر دے چه بهر نه مات وی مګر بل طرفته نور اکثر علماء وائی چه عضباء هغه چیلی ته وائی چه د هغه دننه خکر مات شوے وی او دماغ ئې خکاری۔ او د سعید بن المسیبؒ نه نقل دی چه هغه وائی د نیمائی نه چه خکته مات وی نو دا عضباء ده او که بره مات وی نو دا عضباء نهٔ ده او په عضباء باندے قربانی ناجائز ده۔ علامه شوکانیؒ او عبد الرحمن مبارکفوریؒ دا وائی چه که داخلی مات والے وی نو قربانی جائز نهٔ ده او که خارجی ماتوالے وی نو قربانی پرے جائز ده۔ صاحب د عون المعبود فرمائی: خکر مات شوی حیوان نه چه نهی راغلے ده د هغے نه مراد هغه دے چه خکرئ د بیخ نه مات شوے وی تردے چه دماغ ئې ښکاره شی او که ددے نه کم وی نو بیا صرف مکروه درجه کښې ده او قربانی پرے جائز ده او پدے کښې د ثلث (دریمی حصے) له اعتبار نشته الخ۔ (عون المعبود ۳/۵۵)

ليكن دا اقوال بناء دي پدے چه دا حديث د علي ﷺ صحيح شي ليكن دا روايت ضعيف دے لهذا صحيح قول د جمهورو دے چه وائي : په هر قسم خكر مات شوي حيوان باندے قرباني جائز ده۔ او د خكر د ماتيدو متعلق احاديث ضعيف دي۔ بلكه دلائل ددے په خلاف دي :

د حجيه بن عدیؒ نه نقل دي چه علي ﷺ ته يو سړے راغلو او د مكسورة القرن (خكر مات شوي) حيوان په باره كښ ئے ترے تپوس اوكړو نو علي ﷺ اوفرمايل : (لَايَضُرُّكَ) (تاته هيڅ ضرر نشته) (يعني پداسے حيوان باندے قرباني كولو كښ هيڅ حرج نشته) (ترمذي ١/٢٧٦) ابوداود رقم (٢٨٠٥) احمد (١/٨٣) (١٠١) (١٢٧) ابن ماجه رقم (٣١٤٥) والحاكم (٤/٢٢٤) والبيهقي (٩/٢٧٥) وشرح معاني الآثار (٢/١٤٧)

عبيد بن فيروزؒ وائي : ما براء بن عازب ﷺ ته اووئيل : ((فَإِنِّيْ أَكْرَهُ النَّقْصَ مِنَ الْقَرْنِ وَمِنَ الْأُذُنِ، فَقَالَ: إِكْرَهْ لِنَفْسِكَ مَا شِئْتَ وَلَا تُضَيِّقْ عَلَى النَّاسِ )) (زهٔ د خكر او غوږ نه نقصان بد گنړم، هغه اوفرمايل : څانله چه څه بد گنړے خير دے خو په خلقو باندے تنگي مه راوله) (عون المعبود ٣/٥٥) والمغني (١١/١٠٢) وراجع تحفة الاحوذي (٢/٣٥٧) ونيل الاوطار ٥/٢٠)۔

امام مالكؒ وائي : چه خكر د بيخ نه مات شي او وينه ترے روانه وي نو څكه جائز نهٔ دے چه پدے سره په حيوان كښ عيب پيدا شو او په مَعِيب حيوان باندے اُضحيه مكروه ده۔

**درجة الحديث** : اسناده منكر : اخرجه احمد (٣/٢٣٨) وابوداود (٢٨٠٥) والترمذي (١٥٠٤) وابن ماجه (٣١٤٥) والنسائي (٢/٢٠٤) وفي اسناده جري بن كليب ضعيف وقال ابوحاتم : شيخ لا يحتج بحديثه وثقه ابن حبان والعجلي واشار الحافظ الى تليين حديثه وقد خالف حجية بن عدي ايضاً كما في الترمذي (١/٢٧٦) ومعاني الآثار (٢/١٤٧) وغيرهما۔

---

١٤٦٥ (١٣) – وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ سُئِلَ: مَاذَا يُتَّقَى مِنَ الضَّحَايَا؟ فَأَشَارَ بِيَدِهٖ فَقَالَ: (( أَرْبَعًا: الْعَرْجَاءُ الْبَيِّنُ ظَلْعُهَا، وَالْعَوْرَاءُ الْبَيِّنُ عَوَرُهَا، وَالْمَرِيْضَةُ الْبَيِّنُ مَرَضُهَا، وَالْعَجْفَاءُ الَّتِيْ لَا تُنْقِيْ )). رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه، وَالدَّارِمِيُّ.

ترجمه: او د براء بن عازب ﷺ نه نقل شوي دي چه رسول الله ﷺ نه تپوس اوشو : چه د كومو قرباني والاحيوانانو نه څان ساتل پكار دي؟ نو رسول الله ﷺ په خپل لاس سره اشاره اوكړهٔ وے فرمايل : څلور (قسمه) حيوانات : (١) گوده، چه د هغے گود والے ښكاره وي۔ (٢) هغهٔ كانړه، چه د

هغې کانړې کېدل ښکاره وي۔ (۳) بيمار، چه د هغې بيماري ښکاره وي۔ ٤- داسې خوارۀ چه د هغې په هډوکو کښې نلې نۀ وي"۔ (مالكؒ، احمدؒ، ترمذيؒ، ابوداودؒ، نسائيؒ، ابن ماجةؒ، دارميؒ)

**تشريح :** پدې حديث کښې څلورقسمه اُضحيې ته ناجائز وئيلې شوې ده نو دا دليل دې چه باقي مانده جائز دي۔ کوم چه نورو صحيح احاديثو کښې نۀ وي راغلي۔

لا تـنـقـى : دا د باب افعال (انقاء) نه دې او انقاء د نِقْي نه دې نلى ته وائي۔ يعنى دومره خواره وي چه نلې او مغز ئې پاتې نۀ وي۔

**درجة الحديث :** اسـنـاده صـحـيـح : اخرجه مالك (۲/٤۸۲ رقم (۱) واحمد (٤/۲۸۹) والدارمى (۲/۷٦) وابـوداود (۲۸۰۲) والترمذى (۱٤۹۷) والنسائى (۷/۲۱٤) وابن ماجه (۳۱٤٤) وابن حبان (۱۰٤٦) وقـول ابـن الـمـديـنـى ان سليمان بن عبد الرحمن الدمشقى لم يسمع من عبيد بن فيروز مردود تصريحه بسماعه منه لهذا الحديث عند النسائى وابن ماجه واحمد۔

---

۱٤٦٦ (۱٤) - وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُضَحِّيْ بِكَبْشٍ اَقْرَنَ فَحِيْلٍ، يَنْظُرُ فِيْ سَوَادٍ، وَيَاْكُلُ فِيْ سَوَادٍ وَيَمْشِيْ فِيْ سَوَادٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَاَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه.

تـرجـمـه : او ابـو سعيد خدرى رضی الله عنه فـرمـائي: رسول الله ﷺ بـه پـه داسې ګډ قرباني کوله چه خکـرور، اِينده وو، په توروالي کښې به ئې کتل (يعنى سترګې ئې تورې وې) او په توروالي کښې به ئې خوراك كولو (يعنى خوله ئې توره وه) او مزل به ئې په توروالي کښې کولو (يعنى خپې ئې تورې وې)۔ (ترمذيؒ، ابوداودؒ، نسائيؒ، ابن ماجةؒ)

**تشريح :** اَقْرَنَ يعنى خكرونو والا۔

فَحِيْلٍ: يـعـنـى كامل الخلقة چه اندې ئې نۀ وي پريكړې شوى يعنى اِينده حيوان۔ پدې حديث کـښې اِيـنـده راغـلـو او مخكښې موجوئين (خصي) راغلي دي نو دا په دوه وقتونو حمل دې كله ئې په يو ګډ قرباني كړې او كله په بل۔ نو تعارض نشتـه۔

**درجة الحديث :** اسـنـاده صـحـيـح : اخـرجـه ابـوداود (۲۷۹٦) والترمذى (۱٤۹٦) والنسـائى (۷/۲۲۰، ۲۲۱) وابن ماجه (۳۱۲۸)

---

۱٤٦۷ (۱٥) - وَعَنْ مُجَاشِعٍ مِنْ بَنِيْ سُلَيْمٍ، اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كَانَ يَقُوْلُ: « اِنَّ الْجَذَعَ

يُوَفِّي مِمَّا يُوَفِّي مِنْهُ الثَّنِيُّ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه :** او د بنو سلیم نه د مجاشع ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ به داسے فرمایل: یقیناً جذع (یعنی هغۀ چیلے یا ګډ چه د هغۀ عمر د شپږو میاشتو نه زیات شوے وی) کافی دے د هغۀ شی نه چه کفایت کوی د هغے نه ثنی (دوه غابنیے) "۔ (ابوداودؒ، نسائیؒ، ابن ماجهؒ)۔

**تشریح :** شپږ میاشتینے ګډ او چیلے کارورکوی د هغه حیوان په ځائے چه دوه غابنونو والا وی۔ خو دا په هغه وخت کښ (الا ان یعسر علیکم) یعنی چه د کال ګډ نۀ ملاویږی نو بیا دا هم وړه مۀ ګنړه پدے هم قربانی کیږی۔ لیکن که دوه غابنونو والا ملاویدو نو بیا به جذع نۀ ذبح کوی۔

**درجة الحديث :** اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (٢٧٩٩) والنسائی (٢١٩/٧) وابن ماجه (٣١٤٠) والحاكم فی المستدرك (٢٢٦/٤) والبیهقی (٢٧٠/٩) وقال الحاكم صحیح الاسناد وقال ابن حزم فی المحلی (٢٦٧/٧) انه فی غاية الصحة۔

---

١٤٦٨ (١٦) — وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «نِعْمَتِ الْأُضْحِيَّةُ الْجَذْعُ مِنَ الضَّأْنِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه :** او ابو هریره ﷺ فرمائی: ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلی دی چه فرمایل ئے: «ښه قربانی د ګډانو جذع دے »۔ (ترمذیؒ)

**تشریح :** ددے صفت ئے پدے وجه اوکړو چه خلقو ته دا اوښائی چه دا په اُضحیه کښ جائز دے او هرچه د بزو او چیلو نه جذع دے نو هغه نۀ دے جائز۔

**درجة الحديث :** اسناده ضعيف : اخرجه احمد فی المسند (٤٤٥/٢) والترمذی (١٤٩٩) وقال حديث غريب وفی سنده ابو كباش وهو مجهول (تقريب، لسان) وقال الحافظ فی الفتح (٣٢٩/١٣) فی سنده ضعف الخ۔

١٤٦٩ (١٧) — وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فِي سَفَرٍ، فَحَضَرَ الْأَضْحٰى، فَاشْتَرَكْنَا فِي الْبَقَرَةِ سَبْعَةً، وَفِي الْبَعِيْرِ عَشْرَةً. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ.

**ترجمه :** او ابن عباس ﷺ فرمائی: مونږ د رسول الله ﷺ سره په یو سفر کښ وو نوغټ اختر حاضر شو نو مونږ (د قربانئ) په غوا کښ اووه کسان او په اُوښ کښ لس کسان شریك شو"۔ (ترمذیؒ، نسائیؒ، ابن ماجهؒ) او امام ترمذیؒ وئیلی دی : دا حدیث حسن غریب دے۔

**تشريح** : دا حديث دليل دے چه په سفر كښې هم رسول الله ﷺ قرباني كړے ده نو د احنافو قول ضعيف دے چه وائي په سفر كښې قرباني نۀ ده واجب، قرباني ته واجبه هم وائي او په سفر كښې ئے واجبه نۀ ګڼړي.

بيا د احنافو په نيز دا حديث منسوخ دے ځكه پدے كښې په اوښ كښې د لسو كسانو شراكت راغلے دے او دا د هغوي په نيز جائز نۀ دے نو بس حديث ئے منسوخ كړے او حال دا چه د نسخ هيڅ قسمه دليل نشته. بل طرفته د امام اسحاق بن راهويه او امام ابن خزيمة مذهب دا دے چه په اوښ كښې د لسو كسانو شراكت بالكل جائز دے او همدا قول حق دے. خلافاً للجمهور او دليل د همدغه علماؤ تائيد كوي نۀ د جمهورو.

**مسئله** : بيا دا شراكت عام دے كه څوك د قرباني اراده لري او كه څوك د غوښے خو قرباني د بل نۀ خرابيږي. احناف وائي : ټول به مسلمانان وي او قرباني به پرے واجبه وي او نيت به ئے يو وي ځكه چه اراقت (وينه تويول) يو دے نو نيت به هم يو وي. نور علماء وائي چه شريعت مونږ پدے نۀ يو مكلف كړي چه د خلقو نيتونه به معلوموو او بيا به ورسره شركت كوو. (المجموع ۳۹۸/۸) الفتح الرباني (۴۲/۱۳)

ليكن ددے سره دا خبره ياد ساتل پكار دي چه شركت به د مبتدع او مشرك او حرام خور سره نشي كولے ځكه چه د مشرك او مبتدع سره هجران پكار دے او كه مشرك ذبحه اوكړه نو ذبيحه ئے مرداره ده ليكن كه بيا هم څوك د دوي سره هجران اونكړي نو ګناهګار به وي خو قرباني صحيح ده ليكن مشرك به ذبح نۀ كوي. او هرچه حرام خور دے نو ددۀ نه اجتناب كول لازم دي.

**وهميات** : دلته احنافو ډير وهميات ليكلي دي : (۱) يو دا چه وائي : څرمن د قرباني مالدار، غريب ټولو ته وركولے شي او كه خرڅه ئے كړه نو د زكاة حكم لري مالدار ته به نشي وركولے نو دا خبره بے دليله ده.

(۲) وائي : كه د مړي د طرفته أضحيه كوي نو كه د هغه په امر باندے وي نو بيا به د هغے نه ځانله خوراك نكوي بلكه ټوله به صدقه كوي او كه احساناً د مړي د طرفنه أضحيه كوي نو بيا ترے خوراك كولے شي (رد المحتار ۲۰۷/۵) احسن الفتاوي (۴۹۶/۷) دا مسئله هم بے دليله ده. او دا مخكښې تيره شويده چه د مړي د طرفنه بغير د وصيت د هغه نه قرباني كول صحيح نۀ دي. ليكن كه څوك ئے اوكړي نو خوراك ئے بالكل جائز دے.

(۳) احناف وائي : كه په اووه شريكانو كښې غلام وو يا مدبر وو او اراده د أضحيه لري نو دا قرباني جائز نۀ ده ځكه د غلام او مدبر نيت باطل دے ځكه دا اهل ددے قربت نۀ دي نو د هغه

خصه صرف غوبنه ده څکه جائز نۀ ده۔ رد المحتار (٢٠٧/٥) وبدائع الصنائع) ـ دا مسئله هم خطاء ده بلکه صحيح دا ده چه اُضحيه د سړي او ښځې، غلام او آزاد، مقيم او مسافر ټولو جائز ده او اشتراك ئې هم جائز دې۔ څکه نبي ﷺ چه کله په اُضحيه امر اوکړو او سړے ئې د ښځې نه او غلام ئې د حر نه خاص نکړو نو پدې کښې د څان نه خاص کول نۀ دي جائز۔ راجع المحلى (٣٧/٦)

**مسئلة** : قرباني کله قرباني گرځي؟ نو درې قوله دي : ١- بالاشتراء بنية الاضحية (د قرباني په نيت اخستو سره اُضحيه اوگرځيده او دا قول د امام مالك دې۔ ٢-فرق بين الفقير والغني : احناف وائي : د فقير اضحيه په شراء (اخستو) سره متعين کيږي نو دا په بله اُضحيه بانديے بدلولے هم نشي او ددے د پيو او وړئ نه فائده هم نشي اخستے او که دا کارونه ئې اوکړل نو په ده بانديے ددے قيمت لازم دے۔ او هرچه اُضحيه د غني ده نو هغه په نفس شراء سره نۀ متعين کيږي نو غني هغه په بله بدلولے هم شي او ددے نه او ددے د پيو نه هم فائده اخستے شي او پدے کښې گټه هم کولے شي ليکن که د اخستو نه روستو ئې د اُضحيه دپاره متعين کړه نو بيا ترے فائده نشي اخستے۔ ٣- بالقول : امام احمدؒ او شافعيؒ وائي : اُضحيه د قرباني په نيت سره په شراء (اخستو) سره نۀ متعين کيږي تردے چه په خوله بانديے داسے اووائي : چه دا اُضحيه ده نو په قول بانديے اضحيه گرځي نۀ په نيت۔

٤- راجح قول دا دے چه اُضحيه، اُضحيه نۀ گرځي مگر د اختر په ورځ په ذبح کولو سره۔ او دليل پدے بانديے دا دے چه د ابن عباس رضي الله عنهما نه تپوس اوشو چه يو سړے بدنه يا اُضحيه واخلي بيا ئې خرڅه کړي او د هغې نه څورب (چاق) اخلي نو دا جائز ده ؟ نو هغه پکښې رخصت ورکړو) (طبراني في الاوسط والمجمع (٢١/٤) ورجاله ثقات)

٢- حکيم بن حزام ؓ فرمائي : رسول الله ﷺ دے اوليږلو چه هغه له په يو دينار اُضحيه واخلي نو يوه اُضحيه ئې واخسته او يوه روپئ ئې پکښې گټه اوکړه نو د هغې په ځائے بله اُضحيه واخسته۔ رسول الله ﷺ ته ئې يو دينار او اُضحيه راوسته نو رسول الله ﷺ اوفرمايل : په گډ بانديے اُضحيه اوکړه او روپئ بانديے صدقه اوکړه) (ابوداود، ترمذي وفي سنده انقطاع وفي سند ابي داود رجل مجهول انظر المرعاة (١١٨/٥)او دا په هدْيَه بانديے قياس کول صحيح نۀ دي چه هدي کښې تبديلي جائز نۀ ده نو اُضحيه کښې به هم جائز نۀ وي وجه دا ده چه د هدي او اُضحيه ترمينځ فرق دے په نفلي هدي کښې کله چه په لاره کښې مري او ذبح کړے شي خوراك جائز نۀ دے کما في حديث ناجية الاسلمي (مسلم ٤٢٦/٢) او د اضحيه باره کښې نبي ﷺ فرمائي: (كُلُوْا وَاَطْعِمُوْا وَادَّخِرُوْا) (خورئ او بل له ئې ورکوئ او ځانله ذخيره کوئ) نو په اُضحيه کښې اجازه د خوراك ده۔

لهذا قياس د اُضحيه په هدى باندے قياس مع الفارق دے۔
نو ثابته شوه چه ادنیٰ قربانی په اعلیٰ باندے بدلول جائز دی لیکن برعکس کار به نشی کولے ځکه بهتره اُضحیه کول پکار دی۔
او پدے باندے سوونو مسائل بناه دی۔ مثلاً احناف وائی : که چا قربانی واخسته او بیا ورکه شوه او بیا ئے د هغے په ځائے بله واخسته او مخکنئ هم پیدا شوه نو دواړه به قربانی کوی۔ خلافاً للجمهور۔ جمهور وائی : اختیار دے چه هریو باندے قربانی کوی جائز ده۔ او پدے کښ د غنی او فقیر فرق هم نشته۔ ۲- دارنګه تا یو ګوډ حیوان واخستو بیا د اختر د ورځے نه مخکښ روغ شو نو قربانی پرے جائز ده۔
۳- دارنګه چا یو حیوان روغ واخستو او بیا د اختر ورځے نه مخکښ ورته عیب اُورسی نو پدے باندے اُضحیه جائز نهٔ ده۔ ٤- دارنګه حیوان چا واخستو او پیو والا وی نو د هغے لښل او د هغے نه وړئ شوکول او خوړل او خرڅول ئے جائز دی۔ یا بچے ئے پیدا شی نو د هغه بچی خرڅول هم جائز دی او ذبح کول ئے ضروری نهٔ دی۔ انظر السیل الجرار (٨٣/٤)
او که چا د اُضحیه نذر اوکړو نو بیا ددے حکم د نذر دے نو متعین ده په نذر سره لهذا دا به په مصارفو د نذر کښ مصرف کولے شی او دهٔ له ترے خوراک هم جائز دے۔ انظر المغنی (١١٩/١١)
**درجة الحديث** : اسناده صحيح : اخرجه احمد فی المسند (٢٧٥/١) والترمذی (١٥٠١) وقال حديث ابن عباس حديث حسن غريب لا نعرفه الا من حديث الفضل بن عباس والنسائی (٢٢٢/٧) وابن ماجه (٣١٣١)

**١٤٧٠ (١٨) - وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :« مَا عَمِلَ ابْنُ آدَمَ مِنْ عَمَلٍ يَوْمَ النَّحْرِ أَحَبُّ إِلَى اللّٰهِ مِنْ إِهْرَاقِ الدَّمِ، وَإِنَّهُ لَيُؤْتَى يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِقُرُوْنِهَا وَأَشْعَارِهَا، وَأَظْلَافِهَا، وَإِنَّ الدَّمَ لَيَقَعُ مِنَ اللّٰهِ بِمَكَانٍ قَبْلَ أَنْ يَقَعَ بِالْأَرْضِ، فَطِيْبُوْا بِهَا نَفْسًا ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَه.**

ترجمه : عائشه رضی الله عنها فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «د قربانی په ورځ بنی آدم یو عمل نهٔ کوی چه هغهٔ الله ته ډیر محبوب وی د وینی توییه ولو (یعنی قربانی کولو) نه (یعنی پدے ورځ الله ته وینه توییول د تولو نه زیات خوښ عمل دے) او یقیناً دا (قربانی کښ ذبح شوے حیوان) به د قیامت په ورځ د ښکرو، ویښتو او خپو سره راوستے شی، او د قربانی وینه مخکښ ددے نه چه په زمکه پریوځی (یعنی د ذبح کولو د ارادے په وخت) د الله په دربار کښ

قبليږي، لهٰذا تاسو پدے سره (يعني قرباني كولو سره) خپل نفسونه خوشحاله كړئ (يعني دا په خوشحالئ سره كوئ او زحمت ئے مه گنرئ)»۔ (ترمذيؒ، ابن ماجةؒ)۔

**تشريح :** ددے ځائے نه روستو فضائل د اُضحيه بيانوي۔

**بِمَكَانٍ :** يعني وينه به لا زمكے ته نهٔ وي رسيدلي چه الله ته به مكان د قبوليت ته ورغلي وي۔ نو دا په ډيره خوشحالئ سره كول پكار دي۔ او ددے قرباني توله كچره به په ميزان د حسنٰتو كښں شماروي۔ او د اختر په ورځ باندے د اُضحيه نه لوئي عمل نشته نو كه څوك پدے ورځ صدقے كوي او قرباني نهٔ كوي نو هسے د صدقے اجر به ئے اوشي ليكن د قرباني چه كومه درجه او ثواب دے د هغے نه محروم شو بلكه گناهگار شو كله چه وسع لري او قرباني نهٔ كوي۔

**درجة الحديث :** اسناده ضعيف: اخرجه الترمذي (١٤٣٩) وابن ماجه (١٣٢٦) والحاكم في المستدرك (٤/٢٢١، ٢٢٢) والبيهقي (٩/٢٦١) فيه ابوالمثنى سليمان بن يزيد وهو واهٍ ذكره الذهبي في التلخيص (٤/٢٢٢)

١٤٧١ (١٩) - وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَا مِنْ أَيَّامٍ أَحَبُّ إِلَى اللهِ أَنْ يُتَعَبَّدَ لَهُ فِيْهَا مِنْ عَشْرِ ذِي الْحِجَّةِ، يَعْدِلُ صِيَامُ كُلِّ يَوْمٍ مِنْهَا بِصِيَامِ سَنَةٍ، وَقِيَامُ كُلِّ لَيْلَةٍ مِنْهَا بِقِيَامِ لَيْلَةِ الْقَدْرِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَه. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: إِسْنَادُهُ ضَعِيْفٌ.

---

**ترجمه :** او ابو هريره ؓ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: « نشته داسے ورځے چه الله ته ډير محبوبے وي چه په هغې كښں د الله عبادت اوكړے شي، د لسو ورځو د ذي الحجے نه، ددے د هرے ورځے روژے د يو كال د روژو برابر دي او د هرے شپے قيام (تهجد) ددے د ليلة القدر د قيام برابر دي»۔ (ترمذيؒ، ابن ماجةؒ) او امام ترمذيؒ وئيلي دي: ددے سند ضعيف دے۔

**تشريح :** يعني پدے ورځو كښں عبادت كول په نورو ورځو كښں د عبادت كولو نه الله ته زيات محبوب دي، خصوصاً قرباني كول د نورو اعمالو نه زيات افضل او الله ته محبوب دي، پدے كښں روژے نيول هم بهترين عبادت دے، چه الله ته ډير محبوب دي، دا حديث اگركه د سند په اعتبار ضعيف دے ليكن ددے ورځو ډير فضيلت صحيح احاديثو كښں ثابت دے۔ دا تول اعمال پكښں كول پكار دي۔

**درجة الحديث :** اسناده ضعيف : اخرجه الترمذي (٧٥٨) وابن ماجه (١٧٢٨) وفي اسناده نهاس بن قهم وهو ضعيف كما قال الترمذي وسألت محمد بن اسماعيل يعني البخاري عن هذا الحديث فلم يعرف من غير هذا الوجه مثل هذا - وقد تكلم يحيى بن سعيد في نهاس، واخرجه ابن عدي في الكامل

في ضعفاء الرجال (٢٠٢٢/٧) ضمن ترجمة نهاس بن قهم۔

**١٤٧٢ (٢٠) – عَنْ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: شَهِدْتُ الْاَضْحٰى يَوْمَ النَّحْرِ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ، فَلَمْ يَعْدُ اَنْ صَلّٰى وَفَرَغَ مِنْ صَلَاتِهِ وَسَلَّمَ، فَاِذَا هُوَ يَرٰى لَحْمَ اَضَاحِيَّ قَدْ ذُبِحَتْ قَبْلَ اَنْ يَفْرُغَ مِنْ صَلَاتِهِ، فَقَالَ: «مَنْ كَانَ ذَبَحَ قَبْلَ اَنْ يُصَلِّيَ – اَوْ نُصَلِّيَ – فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا اُخْرٰى»، وَفِيْ رِوَايَةٍ: قَالَ: صَلَّى النَّبِيُّ ﷺ يَوْمَ النَّحْرِ، ثُمَّ خَطَبَ، ثُمَّ ذَبَحَ، وَقَالَ: «مَنْ كَانَ ذَبَحَ قَبْلَ اَنْ يُصَلِّيَ، فَلْيَذْبَحْ اُخْرٰى مَكَانَهَا، وَمَنْ لَمْ يَذْبَحْ فَلْيَذْبَحْ بِاسْمِ اللهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

---

**ترجمه :** جندب بن عبد الله رضی الله عنه فرمائي: زۀ د رسول الله ﷺ سره د لوئی اختر په ورځ قربانی ته حاضر شوم، هغۀ لا د مانځه نه فارغ شوے نۀ وو سلام ئے نۀ وو اړولے چه ناګهانه د قربانو غوښه ئے اوليدله، چه هغۀ د مانځه نه د فارغه کيدو نه مخکښ ذبح شوے وے، نو نبی ﷺ اوفرمايل: «چا چه ذبح کړی وی مخکښ ددے نه چه مونځ اوکړی. يا ئے داسے اوفرمايل: مخکښ ددے نه چه مونږ مونځ اوکړو نو هغۀ دے ددے په ځائے بله قربانی اوکړی» او په يو روايت کښ دی، وے فرمايل: نبی ﷺ د لوئی اختر په ورځ مونځ اوکړو بيا ئے خطبه اووئيله بيا ئے ذبح اوکړه، او وے فرمايل: «چا چه ذبح کړی وی مخکښ ددے نه چه مونځ اوکړی، نو هغۀ دے د هغے په ځائے بله (قربانی) ذبح کړی، او چا چه ذبح نۀ وی کړی نو هغۀ دے په بسم الله وئيلو سره ذبح اوکړی»۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

**تشريح :** فلم يعد : د عَدَا يَعْدُوْ نه دے په معنی د تجاوز سره۔ يعنی د مانځه نه ئے تجاوز اونکړو تردے چه بس فارغ شو نو حديث دليل دے چه د قربانۍ د ذبح اول وخت د اختر د مانځه نه روستو دے او که چا د خپل مانځه نه مخکښ يا د امام د مانځه نه مخکښ ذبح اوکړه نو هغه جائز نۀ ده، بله قربانی به کوی۔

**١٤٧٣ (٢١) – وَعَنْ نَافِعٍ، اَنَّ ابْنَ عُمَرَ، قَالَ: اَلْاَضْحٰى يَوْمَانِ بَعْدَ يَوْمِ الْاَضْحٰى. رَوَاهُ مَالِكٌ. ١٤٧٤ (٢٢) – وَقَالَ: وَبَلَغَنِيْ عَنْ عَلِيِّ بْنِ اَبِيْ طَالِبٍ مِثْلُهُ.**

---

**ترجمه :** او د نافع رحمه الله نه روايت دے چه عبد الله بن عمرؓ فرمايلی دی: «د قربانۍ د ورځے نه روستو د قربانی دپاره دوه ورځے دی» (امام مالکؒ) او امام مالك وئيلی دی چه ما ته د علی بن ابی طالب رضی الله عنه نه هم ددے په شان روايت رارسيدلے دے۔

**تشريح :** پدې حديث كښې دا مسئله ده چه د قربانۍ موده څومره ده ؟ ۱- علامه ابن حزمؒ په المحلی (۳۷۸/۷) كښې ليكلي چه تر آخر د ذی الحجه پورې قربانی جائز ده. دليل دا وائي چه شريعت ابتداء خودلې ده او آخرئ نه دې متعين كړې. او د خپل قول تائيد كښې د دوه علماؤ اقوال پيش كوی چه ابوسلمه بن عبد الرحمن بن عوف او سليمان بن يسار رحمهما الله چه دا دواړه تابعين دی دوی فرمائی : قربانی د محرم مياشتې راختو پورې كيږی. دوی وائی : مونږ ته رارسيدلی دی چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی : قربانی تر ابتداء د محرم پورې جائز ده د هغه چا دپاره چه ددې د تاخير اراده لري. (بيهقی ۲۹۷/۹) مراسيل ابی داود وابن ابی شيبة والدارقطنی) ليكن دا روايت مرسل ضعيف دې. او دا قول ډير ضعيف دې. ۲- **قول ثانی** دا دې چه د قربانی درې ورځې دی. د اختر د ورځې نه دوه ورځې روستو. لكه ددې باب په روايت كښې راغلل. او دا قول نقل شويدې د علی، عمر فاروق، ابن عباس، ابو هريره او انس بن مالك نه كما فی المحلی (۳۷۷/۷). او حافظ ابن قيمؒ په زاد المعاد كښې او ابن قدامةؒ په المغنی كښې د احمدؒ نه نقل كړيدی چه هغه وئيلی دی دا قول دې شماره صحابه كرامو دې.

**دليل** ددې قول دا دې چه ۱- امام قرطبیؒ وئيلی دی : آيت كښې دی : ﴿ وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ فِي أَيَّامٍ مَعْلُومَاتٍ الخ﴾ دلته أيام معلومات جمع قلت ده او متيقن افرادئې درې دی او مابعد د دريو نه غير متيقن دی لهذا په هغې به عمل نۀ كيږی.

۲- دا روايت د ابن عمرؓ دې چه قربانی د لوئی اختر نه علاوه دوه ورځې ده. نو درې ورځې شوې. او دغه شان د علی ﷺ نه هم نقل دی مگر هغه روايت ضعيف دې. او د انس بن مالكؓ نه هم په صحيح سند سره نقل دی. المحلی (۴۰/٦) ليكن صحيح دا ده چه دا درې ورځې مشهورې دی او پدې كښې د زيادت نفی نشته. او بل طرفته احاديث او اقوال د صحابه كرامو موجود دی چه څلورمه ورځ هم قربانی كيږی.

۳- **قول ثالث** : د قربانی ورځې څلور دی. چه د ايام التشريق د آخری ورځې نمر پريوځی نو وخت ختم شو. او دا قول د امام شافعیؒ دې او دا مذهب د امامُ أهلِ مكة عطاء بن ابی رباح، امام اهل دار الهجرة الحسن البصری، امام اهل الشام الاوزاعی، اوعمر بن عبد العزيز، سليمان بن موسیٰ الاسدی فقيه اهل الشام او مكحول –رحم الله الجميع– دې او دا قول د ابن عباس ﷺ دې چه ددې علماؤ نه بيهقی په السنن الكبریٰ (۲۹٦/۹) كښې او ابن حزمؒ په المحلی (۳۷۷/۷) كښې نقل كړيدې. او دا قول شيخ الاسلام ابن تيمية، ابن القيمؒ او ابن المنذرؒ راجح كړيدې. زاد المعاد (۳۱۸/۲) او همدا قول په واقع كښې هم راجح دې.

**دلائل : ١- دليل :** د جُبَير بن مُطْعِم ﷺ نه مرفوعاً ثابت دی :« كُلُّ عَرَفَاتٍ مَوْقِفٌ وَارْفَعُوا عَنْ عُرَنَةَ، وَكُلُّ مُزْدَلِفَةَ مَوْقِفٌ، وَارْفَعُوا عَنْ مُحَسِّرٍ، وَكُلُّ فِجَاجِ مِنًى مَنْحَرٌ، وَكُلُّ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ ذَبْحٌ » (مسند احمد ٨٢/٤) وصحيح ابن حبان رقم (١٠٠٨-موارد)

نو پدے حديث كښ نبی ﷺ ټول ايام التشريق ته د ذبح وخت اوونيلو او ايام التشريق خو د يوم النحر نه علاوه درے ورځے دی لهذا ثابته شوه چه قربانی پدے څلور وارو ورځو كښ جائز ده۔

**اعتراض :** دا حديث منقطع دے د سليمان بن موسى او جبير بن مطعم ترمينځ۔

**الجواب :** ليكن ددهٔ متابع موجود دے۔ عبد الله بن عبد الرحمن بن ابی حسين دے او زيلعیؒ په نصب الرايه (٦١/٣) كښ فرمائی : عبد الله بن عبد الرحمن د جبيرؓ سره ملاقات نهٔ دے شوے ليكن طبرانی د نافع بن جبير عن ابيه نه نقل كريدے نو انقطاع ختمه شوه۔ او د عبد الله د نافع سره ملاقات ثابت دے د هغه شاگرد دے۔ او ددے روايت دپاره بل ضعيف شاهد هم شته په روايت د ابو سعيد خدریؓ ابن عدی په الكامل (٢٣٩٦/٦) كښ راوړيدے كذا فی تعليق زاد المعاد (٣١٨/٢) لشعيب الارناووط وعبد القادر قالا : الحديث صحيح۔ او شيخ البانیؒ ورته په الصحيحه (٢٤٧٦) (٦١٧/٥) كښ حسن او په صحيح الجامع (٤٥٣٧) كښ صحيح وئيلے دے۔

علامه شوكانیؒ فرمائی : حديث د جُبير بن مطعمؓ چه كله ددے صحت ثابت شو نو ددے په تقاضا باندے قول كول واجب دی او پدے كښ زيادت دے د آيت نه نو په دغه زيادت به عمل كولے شی ځكه جمهورو چه كوم دليل اووئيلو نو هغه د لغت نه دليل دے او دا حديث صحيح مرفوع دے نو ددے نه به عدول نشی كيدے او عذر د هغه چا چه پدے حديث قول نهٔ كوی دا دے چه دا حديث ثابت نهٔ دے د هغه په نيز او هرچه مونږ يو نو مونږ ددے صحت ذكر كړو د اهل علمو نه نو په هغه چا واجب دی چه دا دليل اوپيژنی چه پدے به عمل كوی الخ۔

او د صحابه كرامو اقوال متعارض دی او د مرفوع حديث معارض نشته او د يو جماعت د صحابه كرامو اقوال ئے تائيد هم كوی كوم چه په شرح مسلم (١٥٣/١) كښ ذكر دی د علی او جبير بن مطعم او ابن عباس رضی الله عنهم او عطاء او حسن او عمر بن عبد العزيز وغيرهم نه۔ راجع نصب الراية (٦١/٣، وموارد الظمآن (٢٤٩) نو ددے دلائلو نه ثابته شوه چه ايام د ذبح څلور دی۔

**٤-قول رابع** دا دے چه صرف يوه ورځ د اختر د قربانی دپاره ده او دا قول د محمد بن سيرين، حُميد بن عبد الرحمن او ابن ابی سليمان او داود ظاهریؒ دے۔ دليل دا وائی چه حديث د ابوبكره ﷺ كښ دی چه نبی ﷺ په خطبه د حجة الوداع كښ اوفرمايل : (أَلَيْسَ يَوْمَ النَّحْرِ؟ قُلْنَا: بَلَى) (آيا دا ورځ د قربانئ نهٔ ده؟ مونږ اووئيل : ولے نه) نو دلته ئے اضافت د يوم، نحر ته اوكړو او النحر كښ

الف لام جنسي دی نو جنس نحر او ذبح به صرف په دغه ورځ کیږی.

**جواب :** دا اضافت د تخصیص دپاره نۀ دے بلکه ابتداء د نحر ددے ورځے نه کیږی پدے وجه ئے هغے ته اضافت اوکړو. ۲- یا دا چه الف لام په کلام عربی کښې په کثرت سره د کمال معنیٰ دپاره استعمالیږی لکه دا قول د نبی ﷺ (اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ الخ وَالْمُهَاجِرُمَنْ هَجَرَ الحديث) لهٰذا معنیٰ دا ده چه کامل نحر پدے ورځ کیږی او اجازه په روستو ورځو کښې هم شته.

۳- علامه قرطبیؒ وائی : پدے اضافت سره د قربانی دپاره صرف د یو ورځ په متعین کیدو باندے استدلال پدے وجه صحیح نۀ دے چه په قرآن کریم کښې په ایام معلومات جمع سره ئے تعبیر کړیدے، لهٰذا یوه ورځ د قربانئ دپاره خاص نۀ ده.

٤- دارنګه ابن بطالؒ فرمائی : قربانی په أیامو د مِنیٰ کښې فعل د خلفو او سلفو دے او پدے باندے عمل په ټولو امصارو (ښارونو) کښې جاری دے. انتهیٰ.

**درجة الحديث :** اسناده صحيح : اخرجه مالك (٤٨٧/٢) واسناد حديث على بن ابى طالب ضعيف : لانه من البلاغات فهو منقطع.

---

**١٤٧٥ (٢٣) - وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: أَقَامَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِالْمَدِيْنَةِ عَشْرَ سِنِيْنَ يُضَحِّيْ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.**

**ترجمه:** او ابن عمر رضی الله عنه فرمائی: رسول الله ﷺ په مدینه کښې لس کاله پاتے شو چه (هر کال به ئے) قربانی کوله. (ترمذیؒ)

**تشریح :** غرض د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما دا دے چه رسول الله ﷺ په اُضحیه باندے همیش والے کړے لهٰذا دا ضروری ده او پریخودل ئے نۀ دی جائز.

**درجة الحديث :** اسناده حسن : اخرجه الترمذى (٢٨٥/١) واسناده حسن ورجاله ثقات الا ابن أرطاة مدلس وقد عنعنه.

**١٤٧٦ (٢٤) - وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ، قَالَ: قَالَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ : يَارَسُوْلَ اللهِ! مَا هٰذِهِ الْأَضَاحِيُّ ؟ قَالَ: « سُنَّةُ أَبِيْكُمْ إِبْرَاهِيْمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ ». قَالُوْا: فَمَا لَنَا فِيْهَا يَارَسُوْلَ اللهِ؟ قَالَ: « بِكُلِّ شَعْرَةٍ حَسَنَةٌ ». قَالُوْا: فَالصُّوْفُ يَارَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ: « بِكُلِّ شَعْرَةٍ مِنَ الصُّوْفِ حَسَنَةٌ ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه :** او زید بن ارقم رضی الله عنه فرمائی: د رسول الله ﷺ اصحابو اوفرمایل : یارسول الله ! دا

قربانیانې ولې کیږي؟ نبي ﷺ اوفرمایل : ((دا) ستاسو د پلار ابراهیم ﷺ طریقه ده))۔ صحابه کرامو عرض اُوکړو : نو زمونږ دپاره به پدې کښې څه (اجر) وي یا رسول الله ! ؟۔ وې فرمایل : (د کومو حیواناتو چه ویښته وي) د هر ویښته په بدله کښې یوه نیکي ده))۔ صحابه کرامو عرض اوکړو چه : د ((صوف)) (یعنی د ګډ بیزې او د اوښ د وړۍ) په بدله کښې به څۀ ثواب ملاویږي؟ یارسول الله ! ؟۔ وې فرمایل : ((د وړۍ د هر ویښته په بدله کښې یوه نیکي ده))۔ (احمدؒ، ابن ماجهؒ)۔

**تشریح :** ما هذه الاضاحي : یعنی ددې قربانیانو څه مطلب دې آیا دا ددې امت خصوصیت دې او که ددې امت نه پخوانو امتونو کښې هم دا کار رائج وو؟ نو نبي ﷺ جواب ورکړو چه دا د پخوانو شریعتونو نه دي لیکن زمونږ شریعت ئې تائید کړیدې۔ نو هغوی تپوس اوکړو چه زمونږ پکښې څه فائده ده؟ نو نبي ﷺ ورته ددې فضیلت بیان کړو دا روایت اګرکه ضعیف دې لیکن د قرباني ډیر فضائل د احادیثو نه ثابت دي۔

**تتمة البحث :** د ذکوة الجنین (د حیوان په خیټه کښې د بچي د ذبح) متعلق اختلاف دې۔

اول پدې کښې اختلاف دې چه که بچې د خیټې نه ژوندې راووتو نو ذبح کول ئې واجب دي که همداسې مړ شو نو مردار دې۔ او که د خیټې نه مړ راووتو نو بیا اختلاف دې : ١- د امام مالك، شافعي، احمد او صاحبینو (رحمهم الله) په نیز د جنین دپاره د هغه د مور ذبح کافي ده او مستقل ذبح کولو ته ضرورت نشته۔

**دلائل : ١- دلیل :** جابر رضی الله عنه فرمائي : رسول الله ﷺ فرمائي :((ذَكَاةُ الْجَنِيْنِ ذَكَاةُ أُمِّهِ)) (ابوداود، ترمذي، دارمي) (ذبح د بچي په ذبح د مور سره ده) معلومه شوه چه د مور ذبح کافي ده، د بچي مستقل ذبح کولو ته ضرورت نشته۔

**٢- دلیل :** ابوسعید خدري رضی الله عنه فرمائي : مونږ اووئیل:(( يَارَسُوْلَ اللهِ! نَنْحَرُ النَّاقَةَ وَنَذْبَحُ الشَّاةَ فَنَجِدُ فِيْ بَطْنِهَا الْجَنِيْنَ، أَنُلْقِيْهِ أَمْ نَأْكُلُهُ؟ قَالَ: كُلُوْهُ إِنْ شِئْتُمْ فَإِنَّ ذَكَاتَهُ ذَكوةُ أُمِّهِ.)) (ابوداود، ابن ماجه) (اې د الله رسوله ! مونږ اُوښه اوګډ ذبح کړو او د هغې په خیټه کښې بچې اومومو؟ آیا هغه به ګوزاروو او که خورو به ئې ؟ نبي ﷺ اوفرمایل : ((که خوښه مو وي نو خورئ ځکه ددې ذبح د مور په ذبح سره راغله))۔

٣- دارنګه صحیح قیاس هم دا تقاضا کوي ځکه چه ذبح د هر شي د خپل وسع او طاقت مناسب وي لکه اوښ چه کله اوتښتي او نفرتي شي چه په لاس نۀ راځي نو د هغې د ذبح صورت دا دې چه په غشي باندې اوویشتې شي او زخمي شي بس دا ئې ذبح شوه، نو دغه شان چه کله بچې د مور په خیټه کښې وي نو بنده د هغې په ذبح کولو باندې صرف دومره قدرت لري چه د

هغه مور ذبح كړي ځكه چه هغه خيټه كښې وي نو ذبح پكښې نشي راتلې او كله چه د خيټې نه بهر شي نو بيا خو ژوندے نۀ وي۔

٤- دارنګه جنين د خپلې مور د اجزاؤ نه دے نو دا د نورو اجزاؤ په شان حكم لري لكه سينه او كولمے او زړۀ د ذبح په وجه حلال دي، جدا ذبح كولو ته ضرورت نشته نو دغه شان جنين هم د مور په ذبح سره حلال شو۔

۲- **دويم قول:** د امام ابوحنيفةؒ په نيز چه كوم بچے د خيټې نه مړ پيدا شو نو هغه حرام دے۔ د مور په ذبح كولو سره دغه جنين ته مذبوح نشي وئيلے۔ او ددے خوړل به حرام وي۔

**دليل** : آيت كښې دي: ﴿ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ ﴾ او دا بچے چه كله په خيټه كښې مړ شي نو دا هم ميته (مرداره) شوه۔ **جواب** : دا خبره غلطه ده، ځكه چه هركله پيغمبر ديته حلال اووئيلو نو دا د مَيته د حكم نه بهر شو نو ددے حديث باوجود د آيت نه بعيد استدلال كول د قرآن او حديث تكراؤ پيدا كول دي۔ صحيح دا ده چه امام ابوحنيفةؒ ته پدے باره كښې حديث نۀ دے رسيدلے ځكه د هغه دپاره هيڅ تاويل نشته كما ذكر في "الاسرار" (تحفة الاحوذی ٤/١٢٢)۔ نو د امام ابوحنيفةؒ سره پدے مسئله كښې هيڅ دليل نشته۔ حافظ په تلخيص كښې ليكي : علامه ابن المنذر فرمائيلي دي :(( د هيڅ صحابي او عالم نه دا نۀ دي نقل شوي چه په خيټه كښې مړ شوے بچے د مور د ذبح په وجه حلال نۀ دے او خوړل ئے حرام دي مګر پدے كښې صرف امام ابوحنيفةؒ خلاف كړيدے ))۔(عون المعبود ٦/٢٨٨) وتهذيب السنن)

۲- بعض وائي : د امام ابوحنيفةؒ دپاره دليل د ابراهيم نخعيؒ قول دے چه فرمائي :(( لَاتَكُوْنُ ذَكَاةُ نَفْسٍ ذَكَاةَ نَفْسَيْنِ)) (د يو نفس ذبح د دوه نفسونو دپاره نۀ كافي كيږي) علامه ابوالحسنات عبد الحي اللكهنويؒ په التعليق الممجد كښې فرمائي :(( هٰذَا اِسْتِبْعَادٌ بِمُجَرَّدِ الرَّأْيِ فَلَا عِبْرَةَ بِهٖ بِمُقَابَلَةِ النُّصُوْصِ، فَلَعَلَّهَا لَمْ تَبْلُغْهُ اَوْ حَمَلَهَا عَلٰى غَيْرِ مَعْنَاهَا)) (دا استبعاد دے په خالصه رأی سره، د نصوصو په مقابله كښې دے له هيڅ اعتبار نشته، شايد چه هغوی ته به دا حديث نۀ وي رسيدلے يا به ئے په بله معنٰى باندے حمل كړے وي) آهـ (تحفة الاحوذی ٤/١٢٢)

حافظ ابوعمر بن عبد البرؒ فرمائي :((وَاَمَّا قَوْلُ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَزُفَرَ فَلَيْسَ لَهٗ فِيْ حَدِيْثِ النَّبِيِّ ﷺ وَلَا فِيْ قَوْلِ اَصْحَابِهٖ وَلَا فِيْ قَوْلِ الْجُمْهُوْرِ اَصْلٌ)) الاستذكار (٥/٢٦٥)

(د امام ابوحنيفةؒ او زفر دپاره په حديث د نبي ﷺ او په قول د اصحابو د هغه كښې او په قول د جمهورو كښې هيڅ اصل نشته)۔

بعض د امام ابوحنيفةؒ د طرفنه دا جواب كوي چه (( ذَكَاةُ الْجَنِيْنِ ذَكَاةُ اُمِّهٖ)) كښې تاويل دے او

ذكاة منصوب بنزع الخافض دے او كاف تشبيهى حذف دے تقدير د عبارت دا دے : (ذَكَاةُ الْجَنِيْنِ كَذَكَاةِ أُمِّهِ) (يعنى جنين به د مور په شان ذبح كولے شى) ليكن دا تاويل د ډيرو وجو هو نه باطل دے چه هغه حافظ ابن قيمؒ په تهذيب السنن كښې ذكر كړيدى

۱- يو دا چه دا روايت په اتفاق د ائمة هذا الشان (محدثينو) سره په رفع د ذكاة سره نقل دے لكه دا خبره منذرىؒ په تلخيص السنن كښې ذكر كړيده۔ لهذا دا مبتداء او خبر دى او نصب پكښې نهٔ دے محفوظ نو د تشبيه معنىٰ صحيح نهٔ ده۔

۲- دويم دا چه دا تاويل د دويم نمبر حديث مخالف دے ځكه چه په هغے كښې صحابه كرامؓ تپوس كړيدے په باره د مړ شوى بچى كښې چه آيا دا ميته ده، گوزارل ئے پكار دى او كه نهٔ خوراك ئے جائز دے؟ نو نبىﷺ دا د ميتے د حكم نه خارج كړو او دا ئے اوفرمايل : ((فَإِنَّ ذَكَاتَهُ ذَكَاةُ أُمِّهِ)) (دا د مور په ذبح سره ذبح شو) جدا ذبح كولو ته حاجت پاتے نشو۔ او ددے مثال داسے دے (غِذَاءُ الْجَنِيْنِ غِذَاءُ أُمِّهِ) (د بچى خوراك د مور د خوراك نه كافى دے) نو د جنين د ذبح د كيفيت په باره كښې سوال نهٔ وو شوے بلكه د مړ جنين د حلال والى او حرام والى په باره كښې وو نو پكار ده چه جواب مطابق د سوال شى نو نبىﷺ ورته جواب وركړو چه دغه مړ بچے د مور په ذبح كولو سره پاك او حلال دے۔سوال داسے نهٔ وو چه دا بچے څنگه ذبح كړو؟ تردے چه دا عبارت په تشبيه حمل شى چه داسے ئے ذبح كړئ لكه څنگه چه مور ئے ذبح كوئ۔ فتدبر۔حافظ ابن قيمؒ اووه وجو هو سره دا تاويل باطل كړے هغے ته رجوع اوكړه۔

لهذا ثابته شوه چه دا حكم شرعى دے چه د مور په ذبح كولو سره په خيټه كښې مړ بچے هم حلال دے۔

**درجة الحديث** : اسناده موضوع : اخرجه احمد (٣٦٨/٤) وابن ماجه (٣١٢٧) وفى اسنادهما عائذ الله عن ابى داود فالاول منكر الحديث والثانى يضع۔ وقال المنذرى (١٠١/٢) طرقه واهية وعائذ الله هو المجاشعى وابوداود وهو نفيع بن الحارث الأعمى و كلاهما ساقط.

OOOOOOOO

# ٤٩- باب فی العتیرة

## د عتیرے بیان

عتیره او رجبیه یو شے دے، بله فرع ده۔ جاهلیت زمانه کښې به اهل جاهلیت د خپلو بابا گانو په نوم باندے د رجب په میاشت کښې قربانی کوله، هغوی ته به ئے ځانونه نزدے کول۔ کله چه اسلام راغلو نو بیا به مسلمانانو دا د الله په نوم باندے کوله تردے چه په اُضحیه سره منسوخ شوه۔ او دیته به ئے عتیره وئیله۔ (قاله ابوعبیدؒ)۔ ○ امام ترمذیؒ وائی : اشهر حرم (رجب، ذی قعده، ذی حجه محرم) څلور دی پدے کښې چونکه رجب اوله میاشت ده پدے وجه جاهلیت والو به ددے میاشتے د تعظیم په نیت یو حیوان ذبح کولو هغے ته به ئے عتیره وئیله۔ ○ بعض وائی : عتیره یو نذر وو چه کله به د چا مال یو اندازے ته اورسیدو نو داسے نذر به ئے اُوکړو که زما مال دومره اندازے ته اورسیدو نو زهٔ به د هر لسو نه یو په رجب میاشت کښې ذبح کوم۔

د فرع په تفسیر کښې مختلف اقوال دی : ۱- دا د ناقې او گډے اوله نتیجه (بچے) وو چه جاهلیت والو به پدے نیت ذبح کولو چه ددے په وجه په مال کښې برکت پیدا شی او هغه مال کثیر النسل شی دا تفسیر د اکثر اهل لغت او د اهل علمو د یو جماعت دے لکه امام شافعیؒ وغیره کما فی السنن الکبری (۳۱۳/۹)۔

○ ابوداودؒ وائی : بعض وائی : فرع د اوښانو اولنے بچے دے چه دوی به د خپلو آلهو (معبودانو) په نوم ذبح کولو او بیا به ئے هغه خوړلو او څرمن به ئے په ونه اَچوله۔○ د چا اوښان چه به سلو ته اورسیدل نو د خپل صنم (معبود) په نوم به ئے اولنے بچے ذبح کړو او دیته به ئے فرع وئیله۔

خو کله چه اسلام راغلو نو اُضحیه ئے مشروع کړه او رجبیه او عتیره او فرع منسوخ شو۔

### الفصل الاول

۱٤۷۷ (۱) – عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ، قَالَ: «لَا فَرَعَ وَلَا عَتِيْرَةَ »، قَالَ: وَالْفَرَعُ اَوَّلُ نَتَاجٍ كَانَ يُنْتَجُ لَهُمْ، كَانُوْا يَذْبَحُوْنَهُ لِطَوَاغِيْتِهِمْ، وَالْعَتِيْرَةُ : فِيْ رَجَبَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: ابو هریره رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ ارشاد نقل کوی چه هغه فرمایلی: « فرع او عتیره (په

اسلام کښې نشته))، ابو هریرهؓ فرمائي: فرع د حیوان اولنۍ بچې دے چه کافرانو دپاره به پیدا کیدو نو هغهٔ به هغوی د خپلو بتانو په نوم ذبح کولو۔ او عتیره هغهٔ حیوان دے چه په رجب کښې به ذبح کیدو))۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

**تشریح : لَا فَرَعَ :** دا نفي په معنی د نهي ده یعنی دا په اسلام کښې مه کوئ لکه د فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ په شان۔ **قَالَ وَالْفَرَعُ :** بعض وائي دا تفسیر د سعید بن المسیب دے۔ لکه ابوداود کښې ددے تصریح راغلې ده۔ امام خطابیؒ وائي : دا تفسیر د زهریؒ د طرفنه دے۔

**طَوَاغِيتُ :** جمع د طاغوت ده بعض وائي : جمع د طاغیة ده هغه بتانو وغیره ته وائي چه مشرکانو به د هغوی عبادت کولو۔ امام ابوداودؒ د بعضو علماؤ نه دا زیاتی نقل کړیدی چه بیا به ئے خوړلو او غرمن به ئے ورله په ونه باندے ګوزار کړه۔

د بعض احادیثونه د فرع جواز معلومیږی او ددے روایت نه نهي معلومیږی ۔نو تطبیق دا دے :کله چه د حیوان ذبح کول د الله دپاره وی نو بیا نهي نشته که په هره میاشت کښې وی بلکه دا قربت او ثواب دے۔ او حرمت به په هغه وخت کښې وی چه مشابهت د مشرکانو سره کوی، یا ئے د باباګانو په نوم کوی۔ شرح السنة کښې دی : فرع او عتیره به مسلمانانو په ابتداء د اسلام کښې د الله دپاره کوله بیا منسوخ شوه او نهي ترے راغله د وجه د تشبه بالکفار نه۔ او دا قول علی القاریؒ هم کړے۔ لیکن د نسخ دپاره واضح ثبوت نشته د تقدم او تأخر پته نهٔ لګی۔ او نسخ ته رجوع هله کولے شی چه امکان د جمع نهٔ وی او دلته جمع ممکن ده۔ (المرعاة ۱۱۵/۵)

دارنګه د نسخ قول ځکه صحیح نهٔ دے چه د بعض روایاتو نه معلومیږی چه د رسول الله ﷺ نه په حجة الوداع کښې د فرع او عتیره متعلق تپوس اوشو، هغه جواب ورکړو (مَنْ شَاءَ فَرَّعَ وَمَنْ شَاءَ لَمْ يُفَرِّعْ وَمَنْ شَاءَ عَتَرَ وَمَنْ شَاءَ لَمْ يَعْتِرْ) (احمد ۴۸۵/۳) نسائی (۱۹۰/۲) حاکم (۲۳٦/٤) وصححه ووافقه الذهبی فی التلخیص) واقره الحافظ فی الفتح (۵۱٦/۹) (څوک فرع او عتیره کوی او که نهٔ، خپله خوښه ئے ده) نو دا په هغه صورت کښې ده چه د الله دپاره ئے کوی۔ شیخ البانیؒ وائی دے روایت کښې مقال دے د وجه د جهالت د یحیی بن زراره نه لیکن ددے حدیث د معنی دپاره شواهد شته چه هغه حدیث د عمرو بن شعیب عن ابیه جده حسن حدیث دے کما فی ابی داود (۲۸٤۲) والنسائی (۱۸۹/۲)۔ (ارواء الغلیل ٤/ ٤۱۰) کتاب الحج)

۲ ــ بعض وائی : احادیث د جواز حمل دی په استحباب باندے کله چه په صحیح طریقه سره کولے شی او احادیث د منع په نفی د وجوب حمل دی۔ او دا معلومیږی د کلام د امام شافعیؒ نه۔ او دا د شافعیؒ اصحابو قول دے۔ او دا غوره قول دے او د اقوالو ترمینځ معتدل قول دے ځکه

د ډیرو سلفونه د عتیره او فرع کول نقل دی لکه ابن سیرین، ابن عون، وکیع بن عدس کما فی المرعاة (۵/۱۱۳)

۳- بعض وائی : ددے نفی نه مراد دا دے چه دا فرع او عتیره د اُضحیه په شان مؤکد مستحب نهٔ دی او نور هسے صدقه کول بهتر کار دے که په هره میاشت کښې کوی۔(ابن قدامه)

## الفصل الثانی

**۱۴۷۸ (۲)** – عَنْ مِخْنَفِ بْنِ سُلَيْمٍ، قَالَ: كُنَّا وُقُوْفًا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ بِعَرَفَةَ، فَسَمِعْتُهُ يَقُوْلُ: «يَا أَيُّهَا النَّاسُ! إِنَّ عَلٰى كُلِّ أَهْلِ بَيْتٍ فِيْ كُلِّ عَامٍ أُضْحِيَّةً وَعَتِيْرَةً، هَلْ تَدْرُوْنَ مَا الْعَتِيْرَةُ؟ هِيَ الَّتِيْ تُسَمُّوْنَهَا الرَّجَبِيَّةَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ ضَعِيْفُ الْإِسْنَادِ، وَقَالَ أَبُوْدَاوُدَ: وَالْعَتِيْرَةُ مَنْسُوْخَةٌ.

---

**ترجمه :** مخنف بن سلیم ؓ فرمائی: مونږ د رسول الله ﷺ سره په عرفات کښې ولاړ وو نو ما د هغهٔ نه واوریدل چه وے فرمایل : « اے خلقو ! په هر کور والو باندے په هر کال کښې قربانی او عتیره لازم ده، آیا تاسو پوهیږئ چه عتیره څهٔ شے دے؟ عتیره هغهٔ ده چه تاسو ورته رجبیه وایئ»۔ (ترمذیؒ، ابوداودؒ، نسائیؒ، ابن ماجهؒ) او امام ترمذیؒ فرمایلی دی: دا حدیث غریب ضعیف سند والا دے او امام ابوداودؒ فرمائی: عتیره منسوخ ده۔ (دا اوس جائز نهٔ ده)۔

**تعارف د مخنف بن سلیم :** مخنف بن سلیم بن الحارث بن عوف الازدی الغامدی، صحابی دے او په کوفه کښې اوسیدو او علی بن ابی طالب په اصبهان باندے گورنر مقرر کړے وو او ددهٔ سره په جنگ صفین کښې د ازدیانو جنډه وه او دا په واقعه د عین الورده کښې د سلیمان بن صرد په ملګرتیا کښې وتلے وو او بیا په دغه واقعه کښې قتل شو۔ په سنه (۶۴ ھ) کښې۔

**تشریح : إِنَّ عَلٰى كُلِّ أَهْلِ بَيْتٍ :** دا حدیث دلیل دے د وجوب د اُضحیه دپاره۔ چه د نورو دلائلو سره ئے ملګرے کړے نو کار ورکوی۔ او عتیره د نورو دلائلو په وجه واجب نهٔ ده۔ بیا دا دلیل دے چه یو ګډ د ټول کور والو د طرفنه کافی کیږی کما قال السندی فی حاشیة ابن ماجه۔ او امام ترمذیؒ د ابی ایوب انصاریؓ نه نقل کړی چه یو سړی به په یو ګډ د خپل ځان او کور والو د طرفنه قربانی کوله نو پخپله به ئے هم خوړلو او بل باندے به ئے هم خوړولو تردے چه اوس خلقو فخرونه شروع کړل نو اوس ئے دا حال جوړ شوے کوم چه تا ته ښکاری۔ او ترمذی دے حدیث ته حسن صحیح وئیلے دے او وئیلی دی چه پدے باندے عمل دے په نیز د بعض اهل علمو او دا

قول د احمدؒ او اسحاقؒ دے۔او عبد الله بن المبارك پكښې خلاف كړيدے۔

**رَجَبِيَّه** : رجب ته منسوب دے، دا هغه حيوان دے چه په رجب كښې ذبح كولے شي۔

**مَنْسُوْخَةٌ** : امام ابوداودؒ د هغه علماؤ نه دے چه عتيره منسوخ گنړي او قاضي عياضؒ وئيلي دي چه جمهور علماء پدے قول روان دي ليكن حقه دا ده چه د نسخ قول ضعيف دے۔ او راجح هغه دے چه مونږ بيان كړو چه هغه تطبيق د امام شافعيؒ او د هغه د موافقينو دے۔اودا قول د ابوالحسن عبيد الله الرحماني المباركفوريؒ دے چه په مرعاة المفاتيح كښې ئے راجح كړيدے۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن: اخرجه احمد (٤/٢١٥) وابوداود (٢٧٨٨) والترمذى (١٥١٨) والنسائى (٧/١٦٧) وابن ماجه (٣١٢٥) وقال الترمذى هذا حديث حسن غريب لا نعرف هذا الحديث الا من هذا الوجه من حديث ابن عون انتهىٰ ففى نقل المصنف عبارة الترمذى نظر فان عبارة الترمذى لا تدل على تضعيف الحديث صراحةً وقال الحافظ فى بحث حكم الاضحية من الفتح (٢٣/٣٢٣) اخرجه احمد والاربعة بسند قوى انتهىٰ وفى اسناده ابو رملة واسمه عامروهو مجهول لا يعرف قال الذهبى: قال عبد الحق : اسناده ضعيف وقال القطان: وعلته جهالة ابى رملة عامر، وحسنه الالبانى فى صحيح ابى داود (٢٤٨٧) وصحيح ابن ماجه (٣١١٦) لاجل المتابعات والشواهد وكذا فى المرعاة (٥/١١٥)۔

## الفصل الثالث

**١٤٧٩ (٣)** – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «اُمِرْتُ بِيَوْمِ الْاَضْحٰى عِيْدًا جَعَلَهُ اللهُ لِهٰذِهِ الْاُمَّةِ»، قَالَ لَهُ رَجُلٌ: يَارَسُوْلَ اللهِ! اَرَأَيْتَ اِنْ لَمْ اَجِدْ اِلَّا مَنِيْحَةَ اُنْثٰى، اَفَاُضَحِّيْ بِهَا؟ قَالَ: «لَا، وَلٰكِنْ خُذْ مِنْ شَعْرِكَ وَاَظْفَارِكَ، وَتَقُصُّ مِنْ شَارِبِكَ، وَتَحْلِقُ عَانَتَكَ، فَذٰلِكَ تَمَامُ اُضْحِيَّتِكَ عِنْدَ اللهِ». رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** : او عبد الله بن عمرو رضي الله عنه فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «ما ته د قرباني د ورځې د اختر جوړيدو حكم شوے دے، دا ورځ الله تعالىٰ ددے امت دپاره مقرر كړيده»، هغه ته يو سړي عرض اوكړو يا رسول الله ! خبر راكړه كه زۀ سوا د ښځے منيحے نه بل څۀ نۀ مونده كوم نو آيا زۀ به په (هغۀ منيحه) باندے قرباني كوم؟ وے فرمايل: «نۀ ! ليكن د خپل ويښتو، نوكونو نه څۀ پريكړه اوبريت واړۀ كړه او خپل زيرناف ويښته اوخرئيوه، نو دا به د الله په نيز ستا پوره قرباني شي»۔ (ابوداودؒ، نسائيؒ)۔

**تشريح** : دا حديث دليل دے چه چا سره مال نۀ وي او اراده د اُضحيه لري كه الله مال راپيدا كړو نو قرباني به اُوكړم نو هغه له هم پكار دي چه نوكونه وغيره به نۀ اخلي اوكله چه قرباني

اوكړے شي نو بيا دے نو كونه وغيره واخلي نو د الله په نيز به ئے د پوره قرباني ثواب اُوشي۔ او دغه شان قول د سعيد بن المسيبؒ نه هم نقل دے كما في مسلم (١٦٠/٢) انظرهذا الحكم في سبل السلام (٢١٠/١) كتاب الاضاحي۔

ددے حديث مناسبت د عتيره سره نشته نو دا په باب الاضحية كښ راوړل مناسب وو۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف اوحسن: اخرجه ابوداود (٢٨٧٩) والنسائي (٢٠٢/٢) والدارقطني وفي اسنادهم عيسى بن هلال الصدفي وفيه جهالة فقد ذكره ابن ابي حاتم في الجرح والتعديل (٢٩٠/١٣) ولم يذكر فيه جرحاً ولا توثيقاً وانما وثقه ابن حبان وهو معروف بتساهله في التوثيق وضعفه الالباني في ضعيف ابي داود والنسائي وسكت عليه ابوداود والمنذري وقال الحاكم صحيح الاسناد ووافقه الذهبي۔

**تكميل المسائل** : (١) كه د قرباني بچے پيدا شو نو په هغے به څه كوي؟ نو د علي رضي الله عنه نه نقل دي چه هغه به هم د قرباني سره يو ځائے ذبح كولے شي دا تابع د اُضحيه دے۔(رواه الترمذي) او دغه شان قول د ابن عمر رضي الله عنهما نه هم نقل دے۔(رواه مالك في الموطأ باسناد صحيح كما قال النووي في المجموع (٣٦٣/٨) او دا قول د امام شافعيؒ دے۔

دا خبره صرف په افضليت بناء ده ورنه اُضحيه هله اُضحيه گرځي چه ذبح كړے شي يا نذر كړے شي۔ قبل الذبح پرے هرڅه كولے شي۔

(٢) امام ابوحنيفةؒ نه نقل دي چه دا به مساكينو ته وركوي او كه ذبح ئے كړي نو هغه به په مساكينو خيرات كوي او د ذبح د نقصان تاوان به وركوي۔ اول قول غوره دے۔

(٢) د اُضحيه نه پيءَ لشلو او د وريءَ او ويښتو اخستلو څه حكم دے؟ ظاهر دا ده چه كه د بچي د څكلو نه زياتي پاتے شي نو بيا د هغے پيءَ لشل جواز لري او دا فتوي د علي رضي الله عنه ده چه امام بيهقيؒ نقل كړيده۔ او وريءَ او ويښتو پريكولو سره كه هغے ته ضرر رسيدلو نو نهٔ به ئے پريكوي او كه تكليف ورته نهٔ وي او ددے په اخستو كښ مصلحت او فائده وه نو جواز لري۔

راجع فتاوى الدين الخالص (٤٣١/٦)

٣- كله چه انسان د ذبح د قرباني نه مخكښ مړ شي او په هغه باندے قرض وي آيا دغه قرباني به ذبح كولے شي او كه په قرض كښ به خرڅولے شي؟ نو راجح دا ده چه اُضحيه به نشي ذبح كولے كله چه نذر نهٔ وي ځكه مخكښ تير شو چه صحيح دا ده چه اُضحيه هله اُضحيه گرځي چه د اختر په ورځ ذبح كړے شي او قبل الذبح اُضحيه نهٔ گرځي او ده خو لا ذبح كړے نهٔ ده

مخکښې مړ شویدے او قرض حق د بنده دے دا به مقدم وی۔ انظر المرعاة (١٢٠/٥)

٤- د قربانۍ څرمن خرڅول ځان دپاره نۀ دی جائز او خپله ترے فائده اخستل جائز او بل له صدقه کول هم جائز دی۔ حدیث د ابوسعید الخدری ﷺ کښې دی : رسول الله ﷺ فرمائی :(( لَا تَبِيعُوا لُحُومَ الْهَدْيِ وَالْأَضَاحِيِّ وَتَصَدَّقُوا وَاسْتَمْتِعُوا بِجُلُودِهَا وَلَا تَبِيعُوهَا وَإِنْ أُطْعِمْتُمْ مِنْ لُحُومِهَا شَيْئًا فَكُلُوهُ إِنْ شِئْتُمْ)) (حديث مرسل صحيح الأسناد كما قال الهيثمي في المجمع (٢٦/٤)

(د هدی او قربانیانو غوښے مه خرڅوئ او صدقه ترے ورکړئ او د هغے د څرمنو نه ځانله فائده واخلئ او (د ځان د فائدے دپاره ئے) مه خرڅوئ او که تاسو ته ددے د غوښے نه څه حصه اورسیده نو که خوښه مو وی هغه خورئ) او دغه شان فتوی د ابن عباس رضی الله عنه هم ده چه مُصنَّف عبد الرزاق کښې نقل ده۔

نو دا حدیث دلیل دے په دوه مسئلو یو دا چه که څرمن د غوښے سره اوخوړلے شی نو دا جائز ده لکه دا د بعضو خلقو عادت دے او دا هم جائز ده چه د څرمن نه ځانله فائده واخلی لکه غلبیل او بوکه یا مصلیٰ ترے جوړه کړی۔ دویم دا چه د څرمنے او غوښے خرڅول حرام دی۔ او دا معنیٰ د نورو احادیثو نه هم معلومه ده د ابو هریره په مرفوع حدیث کښې دی (( مَنْ بَاعَ جِلْدَ أُضْحِيَّتِهِ فَلَا أُضْحِيَّةَ لَهُ )) (السنن الكبرى ٢٩٤/٩) حاكم (٣٨٩/٢) وفي سنده عبد الله بن عياش اخرج له مسلم في الشواهد وقال ابوحاتم : صدوق ليس بالمتين يكتب حديثه وهو قريب من ابن لهيعة كما في المرعاة (١٢١/٥) فحديثه حسن) او دا څرمن مالدار او غریب تولو ته ورکولے شی او دارنګه په هر مشروع کار کښې ئے هم استعمالولے شی لکه مجاهدینو ته ئے ورکړی یا ئے د مسجد او مدرسے په چنده کښې ورکړی۔ لیکن قصاب ته به ئے په مزدورئ کښې نۀ ورکوی، هاؤ، که قصاب غریب وی نو هغه له ئے د مزدورئ نه علاوه صدقه ورکولے شی۔ راجع لتفصيل المسئلة (فتاوى الدين الخالص (٣٣٩/٦) وتفهيم المسائل للشيخ گوهر رحمان المرداني (١٥٣/١) (١٥١/٣) والمحلى (٥١/٦) والمغنى (١٢/١١)

٥- که قربانی ورکه شی یا غلا کړے شی یا عیبجنه شی نو آیا بله قربانی واجب ده او که نه ؟ نو صحیح خبره دا ده چه د غنی او فقیر فرق ددے په باره کښې نشته بلکه هر هغه څوك چه څه ناڅه فراخی مومی، هغه به قربانی کوی او شارع د قربانی دپاره خاص نصاب نۀ دے وټیلے سویٰ د فراخی نه لکه حدیث کښې دی : (( مَنْ وَجَدَ سَعَةً ، فَلَمْ يُضَحِّ فَلَا يَقْرَبَنَّ مُصَلَّانَا )) (اصحاب السنن)(چا چه فراخی موندله او قربانی اُونکړی نو زمونږ عیدګاه ته دے نۀ راځی) نو دلته کلمه د مَنْ عامه ده هر چا ته شامل ده لهذا چا چه د اُضحیه دپاره حیوان واخستو او بیا ورك شو یا عیبجن شو یا هلاك شو نو که وسع ئے کیده دویمه قربانی به اخلی او که وسع ئے نۀ کیدو نو هیڅ

پرې نشته.

٦- کله چه وخت د اُضحیه فوت شي نو په اُضحیه به څه کوي؟ پدې کښې غوره دا ده چه که د ذبح طاقت لري نو ذبح به ئې کړي او د اُضحیه په شان کار به ورسره کوي. او علامه ابن قدامة په المغني (۱۱/۱۱٦) کښې فرمائي: کله چه وقت د ذبح فوت شي نو که واجبه قرباني وه هغه به ذبح کوي قضاءً او د قرباني په شان کار به ورسره کوي او که نفلي قرباني وي نو که غوښه ئې تقسیم کړه د صدقې ثواب ئې اوشو، نهٔ د قربانۍ او دا قول د امام شافعیؒ دې. بیا فرمائي: د اُضحیې ذبح د مقاصدو د اُضحیه نه یو مقصود دې نو د وقت په فوت کیدو نهٔ فوت کیږي. لیکن راجح دا ده چه اُضحیه واجب ده که د څه ضرورت په وجه روستو شي ذبح کول ئې لازم دي ځکه حکم دې (فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ) (د الله نه ویریږئ څومره چه مو وسع وي).

۷- د اُضحیه په غوښه به څه کوي؟ نو حدیثونو کښې اجازه ده (كُلُوْا وَاَطْعِمُوْا وَادَّخِرُوْا- مسلم ۲/۱۵۸) خپله ئې هم خورئ او صدقه ئې هم کړئ او ځانله ئې اوساتئ).

بعض اهل علم وائي: چه غوښه به درې ځائې تقسیموي یو ثلث به خپله خوري او یو به مساکینو ته ورکوي او یو به خپل اهل دپاره ساتي او دا قول د ابن عمرؓ او بن مسعودؓ نه نقل دې لیکن دا خبره د استحباب ده. ورنه که دیو انسان کور غټ وي او خپله غریب وي نو معمولي شان دې صدقه کړي او باقي تول دې ځانله اوساتي. او خپله ترې خوراك كول هم واجب نهٔ دي ځکه نبي ﷺ پنځه بدنې ذبح کړې او د یو نه ئې هم خوراك ونكړو او دا ئې اوفرمايل: مَنْ شَآءَ اقْتَطَعَ (د چا چه خوښه وي ځانله دې ترې غوښه پريکړي) او دارنګه د ټول خيرات كول هم واجب نهٔ دي. بلکه خپل حال ته ګوره!. او داسې هم نهٔ ده پکار لکه بعض بخیلان مالدار چه ئې کوي کور کښې ډیرې غواګانې ذبح کړي معمولي شان يو څو كيلو خيرات كړي او باقي تول فريزرونو او فريجونو ته ګوزار کړي او ټول کال ئې خوري او د مسکینانو د حال نه الله خبر وي چه د ټکال په ډیره موده کښې هم غوښه اُونهٔ خوري. والله المستعان فلا حول ولا قوة الا بالله العظيم.

دارنګه د قرباني غوښه خرڅول او مزدور ته په مزدورئ کښې ورکول جائز نهٔ دي. حديث کښې ترې منع راغلې ده. بيهقي (۹/۲۹٤)

۸- زنانه هم اُضحیه ذبح کولې شي لکه حديث د بخاري (۲/۸۲۷، ۸۳٤) رقم (۲۳۰٤) (۵۵۰۱) (۵۵۰۲) او اثر د ابي موسى الاشعري ﷺ پرې دلالت كوي. او يوې جارېې (وينځې) کله ذبح کړه نو د نبي ﷺ نه د هغې په باره کښې تپوس اوشو، هغه اوفرمايل: (كُلُوْهَا). (خورئ يعني خوراك ئې جائز دې) (متفق عليه).

۹- احناف وائي : كـله چه ډير خلق په يو حيوان كښې شريك وي نو غوښه به برابر په برابر په وزن تـقسيـموى ځكـه چه غوښه د اموال ربويه ؤ نه ده پدے كښې سود جاري كيږي نو كه چا ته ډيره وركړے شوه دا به سود وي لكه دا خبره ئے په بهشت زيور او الدر المختار (۲۰۲/۵) كښې ذكر كړيده۔ دليل دا وائي : چه دا تقسيم په منزله د بيعے دے او غوښه د اموال ربويه ؤ نه ده نو كه په وزن سره تـقسيم نشي پدے كښې سود راځي۔ ليكن دا خبره ضعيفه ده۔ وجه دا ده چه تقسيم په معنى د بيعے سره نهٔ راځي نهٔ په لغت كښې او نهٔ په شرع كښې بلكه د تقسيم معنىٰ ده (اِفْرَازُ الْحَقِّ مِنْ حَقِّ الْغَيْرِ كما في المغني (۱۲۰/۱۱) (د بل چا د حق نه خپل حق جدا كولو ته تقسيم وائي)۔ ۲- بله دا چه دا خبره هم خطاء ده چه غوښه د اموال ربويه ؤنه ده بلكه صحيح قول دا دے چه سود صرف په اشياء سته ؤاو حبوبو كښې جاري كيږي۔

**اعجوبه** : احناف اول وائي : غوښه كښې سود جاري كيږي نو تقسيم واجب دے بيا رد المحتار كښې ليكي : كه د ځان او ښځې او مشران اولادو دپاره ئے بَدَنَه واخسته او تقسيم ئے نكړه نو څه حكم دے؟ نو وائي چه ظاهر دا ده چه دا تقسيم شرط نهٔ دے ځكه مقصود د اُضحيه نه اراقة الدم (وينه تويه ول) دى او هغه حاصل شويدے۔ (۲۰۲/۲) نو دے تناقض ته اوګوره چه اول وائي : په غوښه كښې سود جاري كيږي بيا وائي كه د اولادو او ښځے ترمينځ شركت وو نو تقسيم ته ضرورت نشته نو آيا د پلار او بچو او ښځې او خاوند ترمينځ سود جائز دے؟ پدے تناقض كښې سوچ اُوكړه۔

۱۰- **آيا د شپے قرباني ذبح كول جائز دي** ؟ نو پدے كښې راجح قول دا دے چه د شپے قرباني ذبح كول جائز دي ځكه چه نبي ﷺ دا ورځے د اختر د اُضحيه دپاره مقرر كړيدي او پدے كښې ئے تخصيص د ورځے د شپے نه نهٔ دے كړے، او ايام لفظ سره شرعاً شپے هم مرادے وي غالباً۔ نو دا تخصيص چه څوك كوي هغه به دليل راوړي او دليل نهٔ دے موجود او دا قول د ابو حنيفةؒ، شافعيؒ، احمدؒ، اسحاقؒ، ابو ثورؒ او جمهورو دے۔

(۲)- د امام مالك مشهور قول او د هغه د اصحابو مذهب دا دے چه د شپے قرباني كول جائز نهٔ دي بلكه دا به هسے غوښه وي او قرباني به نهٔ وي او دا يو روايت د احمدؒ دے۔ علامه شوكانيؒ فرمائي : د كراهت او عدم جواز دپاره دليل پكار دے او هغه نشته او هرچه په حديث الباب كښې تعبير په ايامو شويدے نو دا اګركه په مفهوم لقب سره احتراز كوي د لياليٰ نه ليكن اطلاق د ايام په لياليٰ او د لياليٰ په ايامو په نيز د اهل لغتو متداول او مشهور دے۔ او كوم روايت د ابن عباسؓ كښې چه دي :(اَنَّهُ ﷺ نَهٰى عَنِ الذَّبْحِ لَيْلًا) (طبراني) مجمع الزوائد (۲۳/٤) نو هغه ضعيف دے په سند

كښې ئې سليمان بن سلمه الخبايرى متروك راوى دے او عبد الحق هم ذكر كړيدے او حديث د طبرانى ابن قدامه په مغنى (۱۱/) كښې ذكر كړيدے۔ نو صحيح دا ده چه د شپے ذبح بالكل جائزده مګر كه ذبح د شپے په دے نيت كوى چه مساكين ترے خبر نشى بيا به مكروه وى ځكه په اُضحيه كښې څه نا څه اطعام واجب دے۔ انظر فتاوى الدين الخالص (٦/٣٧٥)

۱۱- آيا خپلے قربانۍ ته حاضريدل واجب دى ؟ جواب دا دے چه دير كسان شريك وى نو د هغوى دپاره قربانى ته حاضريدل مستحب دى مګر واجب نۀ دى، پدے باره كښې دوه حديثونه ضعيف السند ثابت دى چه بيهقى (۲٦۸/۹) او حاكم (رقم (۷۵٦۱) او طبرانى په الاوسط (۲۵۳۰) كښې راوړيدى يو دا چه عمران بن حصين فرمائى رسول الله ﷺ فاطمے ته اوفرمايل :(( يَا فَاطِمَةُ ! قُوْمِىْ فَاشْهَدِىْ أُضْحِيَّتَكِ، فَإِنَّهُ يُغْفَرُ لَكِ بِأَوَّلِ قَطْرَةٍ تَقْطُرُ مِنْ دَمِهَا كُلُّ ذَنْبٍ عَمِلْتِيْهِ الخ))

(اے فاطمے ! خپلے قربانۍ ته حاضره شه ځكه چه په اول څاڅكى د وينى تويدو سره تا ته هره ګناه معاف كيږى) (حاكم بيهقى، طبرانى) حاكمؒ او ابن التركمانىؒ ورته صحيح وئيلے دے ليكن په سند كښې ئې عطية دے او په بل سند كښې ابو حمزه دے دواړه ضعيف دى او شيخ البانىؒ ورته په ضعيفه (۲/۱۲۵) كښې منكر وئيلے دے۔

او د بل روايت په سند كښې ابو الاشد السلمى مجهول راوى دے۔ ليكن بخارى تعليقاً ذكر كړيدى چه ابو موسى اشعرى ﷺ به خپلو لونړو ته حكم كولو چه ذبحه پخپل لاس سره اوكړى (بيهقى ۹/۲۸۳) او نبى ﷺ به خپله اُضحيه پخپله سنبالوله پدے وجه قربانى ته حضور مستحب شو۔ اګركه واجب نۀ دے۔ځكه دلائل ئې ضعيف دى۔

۱۲- **فوائد الاضحية**: بعض خلق (كفار او منكرين حديث) وائى قربانيانے كول اسراف دے، دير مالونه بے ځايه لګى او اقتصاد ته دَهچكه رسى نو دا مالونه تقسيمول پكار دى چه تولو خلقو ته فائده اُوشى؟ ددے جواب دا دے چه شريعت په يو كار حكم اُوكړى نو په هغے كښې بے شماره حكمتونه او فوائد وى چه كله به د انسانانو ذهن هغے ته رسى او كله نۀ او حكمت به ولے نۀ وى آخر دا حكم د كوم ذات دے؟! كوم چه د انسانيت د ذهن نه بالاتر دے، انسانى ذهن ناقص دے او د الله شريعت كامل دے۔

بعض فوائدو ته الله تعالىٰ په قرآن كريم كښې اشاره كړيده **بعض دينى فوائد** دا دى :

۱- پدے كښې اظهار د اخلاص دے او ددے په كولو سره د احسان درجے ته د رسيدلو صفت پيدا كيږى لكه الله فرمائى : ﴿ لَنْ يَنَالَ اللّٰهَ لُحُوْمُهَا وَلَا دِمَائُهَا وَلٰكِنْ يَنَالُهُ التَّقْوٰى مِنْكُمْ، كَذٰلِكَ سَخَّرَنَاهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰاكُمْ وَبَشِّرِ الْمُحْسِنِيْنَ ﴾(الحج)

(الله تـه ددے حیواناتو غوښے او وینه نهٔ رسی لیکن الله ته ستاسو اخلاص رسی، دغه شان مونږ تابع کړیدی دغه حیوانات تاسو له دے دپاره چه تاسو د الله برائی بیان کړئ څنګه ئے چه تاسو ته خودلی دی او زیرے ورکړه احسان کونکو ته).

۲- پدے کښ د الله عبادت دے چه هغه تکبیرونه وئیل او د هغه لوئی والے ذهن کښ راتلل چه انسان د عظیم ذات په نوم باندے داسے قربانی کوی.

۳- د اُضحیه په وخت په انسان کښ اخبات (د عاجزئ) صفت پیدا کیږی (وَبَشِّرِ الْمُخْبِتِيْنَ).

٤- وینه تویه ول یو داسے عبادت دے چه الله ته ډیر محبوب دے او الله پرے خوشحالیږی او دا تهول ښیزونه د الله دی نو د هغه دپاره استعمالول ئے پکار دی او الله بادشاه دے نو په هغه هیڅ اعتراض نشته. دا چارپیان هم د هغه او دا بندګان هم د هغه دی نو هغه پدے خوشحالیږی چه انسانان دا چارپیان د هغه په نوم ذبح کړی نو پدے کښ هیڅ اشکال نشته.

٥- دا په بنده باندے د الله د طرفنه امتحان دے چه آیا دا د الله دپاره خپل مال صدقه کوی او که نه ؟ (مَنْ وَجَدَ سَعَةً فَلَمْ يُضَحِّ فَلَا يَقْرَبَنَّ مُصَلَّانَا)

٦- پدے کښ په مساکینو باندے احسان او شفقت دے چه هغوی په عام اوقاتو کښ غوښه نهٔ مومی.

٧- دا ورځے د الله د میلمستیا دی چه بندګانو ته ئے ورکوی او په میلمستیا کښ غوښه استعمالیږی نو د الله د طرفنه نیابةً پدے ورځ غوښه زیاتول پکار دی.

٨- د هر قوم یو اختروی چه خوشحالی پکښ کوی او زمونږ د مسلمانانو همدا ورځ د اختر ده نو په عبادات او خوراك څکاك به مسلمانان خوشحالی اوکړی.

**دنیاوی فوائد ئے دا دی :**

٩- مسکینانو تـه فـائدے ملاویږی چـه حیوانات دے ورځے دپاره ساتی او پدے ورځ ئے بیا خرڅوی نو مالونه ئے ډیریږی او حاجتونه ئے پوره کیږی نو دا هل طرفته د اقتصاد فائده شوه.

١٠- قصابانو ته پدے ورځ فوائد حاصلیږی. ١١- څرمنو خرڅونکی ته هم فائده ملاویږی.

١٢- مدارس او مؤسساتو ته هم فوائد ملاویږی د څرمنو او چندو په وجه.

١٣- مساکین به په غوښو ماړه شی او ځان له به ئے اُوچه کړی نو ډیره موده به ئے خوری او دغه معترضین خلق دا الله د حیواناتو غوښے خوری او شکر ئے نهٔ کوی.

١٤- دغه شان ددے څرمنو او غوښو فوائد عامو کاروباریانو ته رسیږی، هلوك ماړو ته فائده، څرمنو والو ته فائده نورو کاروباریانو ته فائده نو که دا نهٔ وے نو دا تول خلق به ددے فوائدو نه

محرومه شوی وی۔

١٥- ددے نه جامے، څپلۍ چپړے تیارېږی چه دغه معترضین ترے هم فائده اخلی۔

١٦- د حیوان په ذبح کولو سره د انسان نه بزدلی ختمیږی بیا ددے کفارو ذبح کول ورته آسان وی۔

١٧- د څرمنو نه بوټه، تمبل، پکولونه، قرقولونه وغیره جوړیږی۔ او دے حکمت کښ سوچ اوکړه چه سپۍ په کال کښ د اتو نه زیات بچی راوړی لیکن دومره نۀ ښکاری او د قربانی حیواناتو ته اوګوره چه ټول کال دومره ذبح کیږی او بیا هم نۀ کمیږی دا د کوم ځائے نه پیدا کیږی؟ دا عظیم ذات د خپل تعرف او عبادت دپاره پیدا کوی چه هغه اوپیژندلے شی۔

سرکاری فوائد ئے دا دی چه په دغه څرمنو، هډوکو، وړیو به سرۀ او سپین واخستے شی نو ډیر اقتصاد به ښه شی او بیا پدے باندے کارخانے او مختلف فیکټریانے چلیږی نو که دا قربانیانے نۀ کیدلے خلقو به دا فوائد د کوم ځائے نه ترلاسه کولے؟۔ معلومه شوه چه معترضین د کوهی چندخان دی دوی د الله په شرع باندے په خپل ناقص عقل سره اعتراض کوی۔

**١٣- جاموس (میخه) باندے قربانی جائز ده اوکه نه ؟**

او ددے د حلال والی دلائل څه دی؟

ډیر مقلدین او باطل پرست خلق چه دین ناقص ګڼړی په اهل السنة والجماعة اهل الحدیث باندے دا اعتراض کوی چه تاسو وایئ په قرآن او حدیث کښ هره مسئله شته نو څئ اوښایئ په قرآن او حدیث کښ میخه کوم ځائے جائز شویده۔ ددے اعتراض منشأ دا ده چه دوی وائی دین ناقص دے په قرآن او حدیث کښ لسمه حصه دین هم نۀ دے بیان شوے بلکه دا امامانو او مجتهدینو ایجاد کړیدے۔ نو دوی ته مونږ وایو چه اول خو ستاسو دا عقیده غلطه ده چه قرآن او حدیث ناقص ګڼړئ الله فرمائی : ما تاسو له دین کامل کړو او خپل نعمت مے په تاسو پوره کړو۔ (المائدة) او دوی وائی چه دین ناقص دے که په خولے ئے نۀ وائی خو د اعتراض مطلب ئے همدا دے۔ نو دا د قرآن مقابله ده چه الله دین ته کامل وائی او دوی ورته ناقص وائی۔

دویم دا چه امامانو له الله دا اختیار نۀ دے ورکړے چه هغوی به یو شے حراموی یا به ئے حلالوی او دا د امت مسلمه اتفاقی خبره ده۔ د هغوی په خبره نۀ یو شے حلالیږی او نۀ حرامیږی بلکه حرمت او حلت به د الله او د رسول نه زده کوے۔ او که چا دا عقیده اُوساتله چه علماء هم یو شے حلالولے او حراموله شی نو پدے کار سره مشرک کیږی ﴿اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ (التوبه) نو مونږ ددے معترضینو نه دا تپوس کوو چه که میخه وغیره په دین کښ حلال

وی نو امام ابوحنیفةؒ، مالكؒ، شافعیؒ او احمدؒ وغیره ئے حراموله نشی او که دین کښې حرام وی نو دوی ئے حلالوله نشی دا الله شارعان ندی جوړ کړی بلکه علماء دی۔

۳- دریم دا چه که امام ابوحنیفةؒ وغیره دا اووائی چه دا حلاله ده نو دا خبره به د کوم ځائے نه کوی که د ځان نه ئے وائی نو د هغه خبره منل حجت او دلیل نۀ دے ځکه هغه خو شارع نۀ دے او که د آیت او حدیث وغیره نه ئے وائی نو بیا رجوع آیت او حدیث ته کیږی نو معلومه شوه چه دین کامل دے۔

٤- څلورم دا چه آیا میخه د امام ابوحنیفةؒ نه مخکښې حلاله وه او که نه؟ که حلاله وه نو بیا خو پدے باره کښې ستاسو تقلید د امام ابوحنیفةؒ باطل شو او که حلاله نۀ وی نو هغه د کوم ځائے نه حلاله کړه؟ آیا هغه ته جدا وحی اوشوه او که ته وائے چه هغه د قرآن او حدیث نه مستنبط کریده (یعنی راویستلے ئے ده) نو بیا رجوع قرآن او حدیث ته اوشوه لهذا په قرآن او حدیث کښې د میخې حکم شته نو دین کامل دے۔

٥- پنځم دا چه مونږ الزاماً وایو چه د امام ابوحنیفةؒ مقلدین دے د هغه نه یا د هغه د شاگردانو نه یو قول پیش کړی چه هغوی وئیلی وی چه میخه قیاس ده په غوا باندے بلکه د امام ابوحنیفةؒ نه پدے باره کښې هیڅ قیاس نۀ دے نقل۔ دوی هسے د مولیانو خبرو دوکه کړیدی۔ دعویٰ د تقلید د امام ابوحنیفةؒ کوی او بیا د ډیرو روستنو متأخرینو مولیانو منی۔ افسوس زمونږ ډیرو مسلمانانو د خپل دین په باره کښې صحیح تصور زدۀ نکړو او نۀ پکښې ددے طلب پیدا شو !! والی الله المشتکیٰ۔

بلکه په فقه حنفی کښې خو ئے دا وئیلی دی چه میخه یو قسم د غوا دے لکه همدا حقه خبره ده روستو به راشی۔

اوس د **میخې د حلالوالی دلائل** دا دی : ۱- **دلیل** : ﴿هُوَ الَّذِیْ خَلَقَ لَكُمْ مَا فِی الْاَرْضِ جَمِیْعًا﴾ (البقرہ) (الله هغه ذات دے چه ستاسو د فائدے دپاره ئے د زمکے شیان پیدا کړیدی) نو دا آیت صریح دلیل دے چه اصل په ټولو اعیانو (ذواتو) کښې حلالوالے دے ترڅو چه د هغې حرمت نۀ وی راغلے۔ نو د میخې تحریم نۀ دے راغلے نو په آیت کښې داخله شوه چه حلاله ده۔

۲- آیت دے : ﴿قُلْ لَّا اَجِدُ فِیْمَا اُوْحِیَ اِلَیَّ مُحَرَّمًا عَلٰی طَاعِمٍ یَّطْعَمُهٗ اِلَّا اَنْ یَّكُوْنَ مَیْتَةً ......الآیة﴾ (الانعام) (یعنی په وحی کښې ما ته ددے څلورو څیزونو نه علاوه په یو طعام خوړونکی باندے بل شے حرام نۀ دے معلوم) نو دا صریح دلیل شو چه ددے څلورو نه علاوه څیزونه چه په وحی کښې نۀ وی حرام شوی هغه به حلال وی۔

٣- آیت دے : ﴿ وَمَا لَكُمْ أَلَّا تَأْكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ وَقَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ﴾ (الانعام) دا آیت هم ښکاره دلیل دے چه هر هغه شے چه په هغے باندے د الله نوم واخستے شی هغه به حلال وی ما سوئ د هغه نه چه د هغے تحریم په کتاب او سنت کښ ثابت وی۔

٤- آیت دے : ﴿ أُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيمَةُ الْأَنْعَامِ إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ﴾(المائدة ١) (حلال شویدی تاسو له چارپیان مګر هغه چه لوستلے شی په تاسو)۔

نو ټول چارپیان حلال دی سوئ د هغه نه چه کتاب او سنت کښ د هغے حرمت راغلے وی، لهذا د میخے تحریم په کتاب او سنت کښ نۀ دے ذکر، بس دا حلاله شوه۔

٥- الله فرمائی : ﴿ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ ﴾ (المائدة : ٤) (حلال شویدی ستاسو دپاره پاك څیزونه) د طیباتو نه مراد هر هغه شے دے چه د هغے تحریم په کتاب او سنت کښ نۀ وی راغلے۔ نو میخه هم د طیباتو نه ده۔ لهذا حلاله ده۔ نور آیاتونه هم شته۔

٦- ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی : ((كَانَ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ يَأْكُلُونَ أَشْيَاءَ وَيَتْرُكُونَ أَشْيَاءَ تَقَذُّرًا فَبَعَثَ اللهُ نَبِيَّهُ ﷺ وَأَنْزَلَ كِتَابَهُ وَأَحَلَّ حَلَالَهُ وَحَرَّمَ حَرَامَهُ فَمَا أَحَلَّ فَهُوَ حَلَالٌ وَمَا حَرَّمَ فَهُوَ حَرَامٌ وَمَا سَكَتَ عَنْهُ فَهُوَ عَفْوٌ وَتَلَا : قُلْ لَا أَجِدُ فِيمَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ يَطْعَمُهُ الْآيَةَ)) (ابوداود ٢ /١٨٣) مجموع الفتاوی لشیخ الاسلام (٢١ /٥٣٥)

(اهل جاهلیت به څه څیزونه خوړل او څه به ئے پریخودل، کرکه به ئے ترے کوله نو الله خپل نبی ﷺ راولیږلو او کتاب ئے نازل کړو او څه څیزونه ئے حلال کړل او څه ئے حرام کړل نو الله چه څه حلال کړی هغه حلال دی او هغه چه څه حرام کړی هغه حرام دی او د څه نه ئے چه سکوت کړے هغه معاف دی۔ بیا ئے دا آیت اولوستو قل لا اجد فیما الخ کوم چه مخکښ تیر شو)۔

٧- په حدیث د ابوثعلبة الخشنی ﷺ کښ دی : (وَسَكَتَ عَنْ أَشْيَاءَ مِنْ غَيْرِ نِسْيَانٍ رَحْمَةً لَكُمْ فَلَا تَبْحَثُوا عَنْهَا) (او الله د څه څیزونو نه سکوت کړیدے په غیر د هیرے نه دپاره د رحم کولو په تاسو باندے نو د هغے تالاش مه کوئ) یعنی هغه ستاسو دپاره حلال دی، بے فائدے تلاش ته ضرورت نشته۔

٨- د میخے په حلالوالی باندے دا قاعده شرعیه هم دلیل دے : (اَلْأَصْلُ فِي الْأَشْيَاءِ الْحِلُّ وَالطَّهَارَةُ مَا لَمْ يَمْنَعْ مِنْهُ مَانِعٌ شَرْعِيٌّ) (اصل په اشیاؤ کښ حل او طهارت دے ترڅو چه شرعی مانع نۀ وی راغلے) او پدے قاعده باندے دغه مخکښی آیاتونه او نور احادیث دلیل دے۔

٩- شریعت شپاړس قواعد مقرر کړیدی چه په هغے سره د حیوان حل او حرمت پیژندلے شی او جاموس په هغه یو کښ هم نۀ ده داخل چه هغه حرمت راولی لهذا جاموس حلال دے۔ او

هغه قواعد به په كتاب الصيد والذبائح كښې بيان شي ان شاء الله تعالىٰ واطال بنا الحيوة۔

**دلائل حل الاضحية:** په جاموس باندې اُضحيه هم كيږي؟ دلائل ئې دا دي:

**١ - يو دليل** دا دې چه قرآن او سنت الله په عربي مبين لغت باندې رالیږلی دی نو هر لفظ چه په څه دلالت كوي په هغه لفظ كښې به د هغه شي حكم مندرج وي لكه الله لفظ د غنم ذكر كړې نو هر حيوان ته چه په لغت كښې غنم وائي هغې ته به د غنم حكم شامليږي نو الله لفظ د بقر ذكر كړې نو په لغتِ عربي كښې چه د بقر لفظ په چا باندې اطلاق كيدو بس هغه ته به د بقر حكم شامليږي نو كه په بقر باندې اُضحيه جائز وي نو په هغه شي باندې چه د بقر په لفظ كښې داخل وي په هغې به هم اُضحيه جائز وي۔ نو په عربي لغت كښې لكه بقر شامليږي توره، سپينه، زيرهٔ، خرهٔ وغيره غوا ته او حكم د تولو يو دې نو دغه شان په لغتِ عربي كښې جاموس ته هم د بقر لفظ شامليږي او فارمي غوا ته هم شامليږي او حكم د تولو يو دې او چا چه دا دعوه اوكړه چه جاموس د بقر په لفظ كښې نهٔ دې داخل نو هغه به دليل راوړي لكه څوك چه دا اُووائي چه توره غوا په لفظ د بقر كښې نهٔ ده داخل نو هغه به هم دليل راوړي۔ دغه شان قرآن كښې اِبل لفظ ذكر دې نو دا شامليږي تولو اقسامو - بخاتي، عِرابي، مسهريي، ارحبي او مجيدي - ته او دا تول په لفظ د ابل كښې داخل دي هر يو دپاره جدا جدا دليل راوړو ته ضرورت نشته نو دغه شان چرته چه د بقر لفظ ذكر شي، هغې كښې به جاموس هم داخل وي څكه په نيز د عام اهل لغتو جاموس په بقر كښې داخل دې او دا يو قسم د بقر دې، دريابي جيوان دې۔

معجم الوسيط (١٣٤/١) كښې دي: (اَلْجَامُوْسُ حَيَوَانٌ اَهْلِيٌّ مِنْ جِنْسِ الْبَقَرِ وَالْفَصِيْلَةِ الْبَقَرِيَّةِ الخ) (يعنى ميخه كورنې حيوان دې او د بقر د جنس نه حساب دې) تاج العروس (٥١٣/١٥) د سيد محمد مرتضى الحسيني كښې دي: (اَلْجَامُوْسُ نَوْعٌ مِنَ الْبَقَرِ مَعْرُوْفٌ (مُعَرَّبُ گاؤميش) (يعنى ميخه يو قسم د غوا دې، مشهور حيوان دې، فارسي لفظ دې اصل كښې گاؤميش دې يعنى د اوبو غوا)۔

او دغه شان اقوال په لسان العرب (٣٥٤/٢) وتهذيب لسان العرب (٢٠٣/١) والمنجد (١٠١/١) ومعجم متن اللغة للشيخ احمد رضا (٥٦٧/١) و اقرب الموارد في فصح العربية والشوارد تاليف سعيد الخوري الشرتوني (١٣٧/١) كښې ذكر دي: (اَلْجَامُوْسُ ضَرْبٌ مِنْ كِبَارِ الْبَقَرِ يُحِبُّ الْمَاءَ وَالتَّمَرُّغَ فِي الْاَوْحَالِ مُعَرَّبُ گاؤمش) بِالْفَارِسِيَّةِ وَمَعْنَاهُ بَقَرُ الْمَاءِ) (يعنى ميخه د غوا يو لوئي قسم دې اوبه او په ختو كښې ارغختل خوښوي په فارسي كښې گاؤميش ورته وائي يعنى د اوبو غوا)۔

۲- **دليل** : اجماع د مسلمانانو ده چه په میخو کښې د غواګانو په شان زکوٰة لازم دے او پدے باندے اُضحيه جائز ده او ددے خوراك هم د غوا په شان حلال دے او مأخذ ددے اجماع مخکښې دلیل دے او راتلونکی احادیث دی۔ لکه دا خبره ابن المنذرؒ کریده : فرمائی: د تولو اهل علمو په دے اتفاق دے چه جوامیس کالبقر دی۔ انظر الاجماع (٤٧) والاشراف لابن المنذر والمغنی لابن قدامة (٤٥٩/٢) والفقه الاسلامی (٨٤٢/٢) ومجموع فتاوی ابن تیمیة (٢٩/٢٥) وَالْجَوامِیْسُ بِمَنْزِلَةِ الْبَقَرِ او دا خبره د ائمه اربعو ترمینځ اتفاقی ده کما فی الموطأ (٢٩٤) ورد المحتار (١٨/٢) والمغنی (٤٥٩/٢) وکشاف القناع (١٩٣/٢) والمجموع (٤٢٤/٥) او دا قول د حسن بصریؒ هم دے کما فی ابن شیبة (٣)

**احادیث** پکښې دا دی : ۔

۳- **دليل** : هر حدیث چه په هغے کښې لفظ د بقروی نو هغے کښې به جاموس داخل وی ځکه جاموس هندی بقر دے او اعلیٰ نوعه د بقر ده۔

٤- علی بن ابی طالب ﷺ فرمائی : (اَلْجَامُوْسُ تُجْزِئُ عَنْ سَبْعَةٍ فِي الْاُضْحِيَّةِ) مسند الفردوس (١٢٤/٢) رقم (٢٦٥٠) (میخه د اوه کسانو د طرفنه په قربانی کښې جائز کیږی) او دا حدیث موقوف بمنزلة المرفوع دے ځکه داسے خبرے په رأی نهٔ وئیلے کیږی۔

٥- عکرمه بن خالدؒ فرمائی : زهٔ د هغه صحابه کرامؓ سره ملاؤ شوم چه هغوی د رسول الله ﷺ په زمانه کښې صدقات راټول کری وو نو هغوی دیرے خبرے اوکرے یوه پکښې دا وه چه (وَالْجَوَامِيْسُ تُعَدُّ فِي الصَّدَقَةِ كَالْاَبَاقِيْرِ) (ابن ابی شیبة فی المصنف (٢٢١/٣) رقم (١٠٧٤٨) کتاب الزکاة باب من قال فیما دون ثلاثین من البقر زکوة) (یعنی میخے په زکاة کښې د غواګانو په شان دی) نو اوګوره دغه صحابه کرامؓ میخے د غواګانو په شان اوګرځولے۔

٦- ابن سیرینؒ فرمائی : یو سرے بیمار شو نو هغه ته د میخے پئ اوخودلے شو (چه دا اوسکه مرض به دے ښه شی) نو هغه عبد الرحمن بن ابی بکرهٔ پسے جواب اولیږلو چه مونږ ته یوه میخه راولیږه نو هغه ورته نهه سوه میخے راولیږلے نو دهٔ اوفرمایل : (اِنَّمَا اَرَدْتُ وَاحِدَةً فَبَعَثَ اِلَيْهِ اَنِ اقْبِضْهَا كُلَّهَا) (ما خو یوه غوختے وه نو هغه ورته جواب راولیږلو چه تولے واخله) (سیر اعلام النبلاء ٣١٩/٤) و(٤١١/٤) وابونعیم فی الحلیة (٤) وتاریخ دمشق (١٣/٣٦)

نو ددے دلائلو نه ثابته شوه چه جاموس بالکل په بقر کښې داخل دے نو څه حکم چه د بقروی چه هغه حلالوالے او اضحیه جائز کیدل دی نو دغه حکم به د جاموس هم وی۔ نو پدے سره د هغه علماؤ قول ضعیف شو چه وائی : احتیاط پدے کښې دے چه بقر باندے اُضحیه اونکړے

شي او اكتفاء اوكړے شي په هغه څه باندے چه په سنت صحيحه كښ ثابت دي او كوم چه د نبي ﷺ او صحابه كرام او تابعينو نه نهٔ وي نقل نو هغے ته دے التفات اونكړے شي لكه دا خبره علامه ابو الحسن المباركفوريؒ په مرعاة المفاتيح (۸۷/۵) كښ ذكر كړيده۔ دارنګه فتاوى ثنائيه (۸۱۰/۱) فتاوى مبشر احمد رباني (۳۲٤/۳) او رسائل البهاولفوري (۱۲۷) كښ ذكر كړيدے۔ شايد چه ددے علماؤ د نظر نه دغه دلائل نهٔ وي تير شوي۔ والله اعلم وانظر فتاوى الدين الخالص (۳۹۷/٦)

OOOOOOOO

# ٥- باب صلاة الخسوف

## د نمر د توریدو په وخت د مانځه بیان

دلته څو بحثونه دی ؟ یو معنی لغوی د خسوف او کسوف۔ نو خسوف په لغت کښ دوبیدو ته وائی کله چه په مکان کښ استعمال شی لکه خُسِفَ بِهٖ فِي الْاَرْضِ ای ذُهِبَ بِهٖ ۔ او خسوف الشیء په معنی د نقصان او کمیدو سره استعمالیږی او خسوف القمر په معنی د رنړا ختمیدو سره او خسف په معنی د ذلت سره هم استعمالیږی۔ او هرچه کسوف دے نو تور والی طرفته بدلیدو ته وائی لکه کَسَفَ وَجْهُهٗ یعنی مخ ئے متغیر شو۔او د نمر په باره کښ چه استعمال شی معنی ئے ده تور شو او شعاع ئے ختم شو۔

بیا د فقهاؤ په اصطلاح کښ کسوف د نمر توریدو(او خر کیدو) (سورج گرهن) او د هغه د رنړا کمیدو دپاره استعمالیږی او خسوف د سپوږمئ توریدو دپاره (یعنی چاند گرهن) او دا فرق بعض اهل لغتو (یعنی ثعلبؒ) غوره کړیدے۔ او جوهریؒ په صحاح کښ وائی دا افصح کلام دے۔بناء پدے مصنف له پکار وو چه باب الکسوف ئے وئیلی وے ځکه چه دے باب کښ ټول احادیث د کسوف (نمر توریدو) په باره کښ دی۔لیکن په احادیثو کښ راویانو د یو بل په معنی استعمال کړیدے او کیدے شی چه مصنف هم دے ته اشاره کړی وی چه خسوف او کسوف دواړه د یو بل په معنی استعمالیږی۔ ځکه د دواړو احکام تقریباً نزدے نزدے دی۔

بیا په کسوف کښ جماعت (مونځ) ثابت دے او په خسوف کښ نهٔ دے ثابت مګر امام بخاری رحمه الله خسوف په کسوف باندے قیاس کړیدے او په کسوف کښ خو مونځ ثابت دے نو په خسوف کښ به هم ثابت وی۔ ځکه د دواړو سبب یو دے۔

۲- **دویم بحث** : د صلاة الکسوف او خسوف په مشروعیت کښ هیڅ اختلاف نشته او دا په قرآن او حدیث او اجماع سره ثابت دے قرآن کښ دی : ﴿وَمَا نُرْسِلُ بِالْآيَاتِ إِلَّا تَخْوِيفًا﴾ (الاسراء) (او کسوف او خسوف هم د الله د طرفنه د آیات مخوّفه و نه یو آیت او نښه ده۔ او الله تعالیٰ ددے قسم نخو په ذریعه خپل بندګان پدے وجه یروی چه بندګان معاصی او ګناهونه پریدی۔

○ او سنت خو ددے په باره کښ تفصیلی راغلی دے روستو به حدیث راشی :(فَإِذَا رَأَيْتُمْ ذٰلِكَ

فَادْعُوا اللّٰهَ وَكَبِّرُوْا وَصَلُّوْا الخ) (متفق عليه)

○ دارنګه په اجماع د امت سره دا مونځ ثابت دے هیڅوک ترے انکار نهٔ دے کړے۔

۳- **دریم بحث**: ددے مونځ دپاره سبب کسوف دے پدے وجه دا کسوف ته منسوب دے نو په تکرار د کسوف به دا مونځ مکرر کیږی۔

بیا ددے کسوف دپاره اسباب دی، بعض شرعی دی او بعض ظاهری ـ کفار همیشه ظاهری اسبابو ته ګوری چه یو دهغے نه دا دے چه کله سپوږمۍ د نمر او زمکے ترمینځ حائل واقع شی نو نمر تور شی او سبب د خسوف دا دے چه زمکه د نمر او سپوږمۍ ترمینځ حائل واقع شی۔ علماء د فلك وائی : د کواکبو دپاره - چه بعض د هغے نه شمس او قمر دی - د هر کوکب دپاره خاص ځائے د منزل وی بعض اعلیٰ وی د بعضو نه نو بعض زمونږ نه لرې وی د بعضو نورو نه نو کله چه یو کوکب د بل کوکب مخے ته تیر شی چه هغه مونږ ته نزدے وی نو ادنیٰ مانع شی د اعلیٰ نه نو د نزدے ستوری په وجه زمونږ نظر په لرے ستوری نهٔ لګی نو ددے نه کسوف د اعلیٰ ستوری راشی۔ دغه شان کله چه زمونږ او د نمر ترمینځ د سپوږمۍ د تیریدلو اتفاق اوشی۔ نو کسوف د شمس راشی خو کله چه زمونږ او د نمر ترمینځ پوره حائل شی نو بیا کسوف ګلی راشی ځکه زمونږ نه د نمر مخ تول پټ کړی او که د سپوږمۍ مقابله د نمر سره پوره اُونشی نو بیا زمونږ د مرکز په نسبت جزئی کسوف کیږی۔

او هرچه خسوف د قمر دے نو کله چه د نمر او سپوږمۍ ترمینځ زمکه حائله شی او نمر خپل سورے په سپوږمۍ وروا چوی نو رڼرا ته ئے پرده راشی۔ او دا په هغه وخت کښې راځی چه کله قمر د زمکے د سوری په مخروطی شکل کښې واقع شی او کله چه جزء د قمر د زمکے د سوری په مخروطی شکل کښې واقع شی نو بیا خسوف جزئی وی۔

بیا کفار او مجرمین غافلین همیشه ظاهری اسباب او مادیاتو ته نظر کوی او شریعت معنوی او باطنی اسبابو طرفته نظر آړوی۔ نو شرعی اسبابو کښې دا ده چه دا کسوف او خسوف پدے وجه راځی چه په بندګانو کښې غفلت راغلے وی واجبات پریدی او منهیات شروع کړی، زناګانے او بے حیائیانے زیاتے شی نو د الله د حکمت تقاضا دا ده چه هغه په آیات کونیه کښې تغییر راولی، دے دپاره چه بندګانو ته دا اوښائی چه ددے عظیم کائناتو نه اخوا یو مُدبر قدیرذات موجود دے چه د هغه په لاس کښې ددے تولو تصرف دے هغه پدے قادر دے چه دے انسانانو ته پدے کونی آیاتو سره سزا او عذاب ورکړی لکه ځنګه ئے چه پخوانی امتونه په صواعق او هواګانو او تندرونو او زلزلو او خسفونو سره تباه کړی وو۔ او هغه پدے هم قادر دے چه دوی نه د نمر او

سپوږمئ دا بهترینه رڼا واخلي چه بیا په زمکه کښ حیران او تیاره کښ پراته وي چه ونې او میوه جات او نهرونه ئې اُوچ پاتې شي. لکه الله فرمائي : ﴿ وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴾ (الم السجدة) (دنیا کښ دوی ته عذاب ورکوم مخکښ د لوئې عذاب نه دې دپاره چه الله ته راوګرځي)

د احادیثو نه دا واضحه ده چه کله چه د الله یوه وینځه (او بنده) زنا اُوکړي نو د الله غیرت (او غضب) په جوش کښ راشي نو په دې کائناتو کښ دغه شان تغییر پیدا کړي چه خلق د هغې نه عبرت واخلي او یره اُوکړي او خپل عملونه سیده کړي او الله ته توبې اوباسي. ددې وجه نه شریعت دا حکم کړیدې چه کله تاسو دغه شان حالات (زلزله، تندرونه، هواګانې، کسوف او خسوف) اووینئ نو د الله ذکر، دعاګانو، صدقات او مونځونو ته متوجه شئ؛ چه د الله غضب په آرام شي.

## ٤- څلورم بحث : د صلاة الکسوف حکم:

پدې کښ اختلاف دې: ۱- امام شافعیؒ او احمدؒ فرمائي : صلاة الکسوف سنت مؤکد دې ځکه نبي ﷺ کړیدې او خلق ئې دې دپاره راجمع کړیدي او دا ئې ښکاره کړیدې او دا علامه د اهتمام او تاکید ده او دارنګه پدې باندې امر راغلې دې لکه مخکښ (صلوا) تیر شو. او قرینه صارفه د وجوب نه حدیث (لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ) دې مګر امام ابوعوانهؒ په خپل صحیح کښ ددې په وجوب باندې قول کړې او دا قول د بعض احنافو هم دې او ابوزید الدبوسي صاحب الاسرار غوره کړیدې. ابن همامؒ وائي ځکه پدې باندې امر راغلې دې لیکن ظاهر دا ده چه دا امر د وجوب نهٔ دې ځکه چه دلته ددې مانځه فائده مونږ ته دنیا کښ عائد ده هغه دا چه پدې سره دغه یرونکې شې دفع کیږي. (المرعاة ٥/١٢٢)

۲- امام ابو حنیفهؒ وائي : دا سنت غیر مؤکد دې.

او هرچه صلاة خسوف القمر دې نو دا په نیز د شافعيؒ احمدؒ باندې د کسوف الشمس په شان دې او د ابوحنیفهؒ او مالكؒ په نیز باندې مستحب دې. بیا مالكؒ او ابوحنیفهؒ فرمائي : د صلاة الکسوف دپاره جماعت مسنون نهٔ دې بلکه یواځې یواځې به مونځ کوي. او هرچه خسوف القمر دې نو پدې کښ د امام مالك نه مختلف اقوال نقل دي. ابن قدامهؒ فرمائي : امام مالك فرمائي : په خسوف القمر کښ سنت طریقه نشته. او ابن عبد البرؒ د مالك او ابوحنیفه اقوال نقل کړیدي چه په خسوف القمر کښ د جماعت سره مونځ نشته بلکه خلق به یواځې مونځونه کوي. پدې ټولو کښ راجح قول د شافعيؒ او احمدؒ دې چه صلاة کسوف الشمس سنت مؤکد

دي لكه روستو احاديث پري دليل دي۔
اوهرچه خسوف القمر دي نو پدي كښې هم مونځ شته كه جماعت سره وي او كه يواځې ځكه چه نبي ﷺ د دواړو دپاره په مانځه بانديې يو امر كړيدے او داسې ئې فرمائيلي دي : (إِنَّهُمَا لَا يَنْكَسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ فَإِذَا رَأَيْتُمُوهَا فَصَلُّوا الحديث) ۔نو دلته ئې د دواړو د راتلو په وخت كښې مونځ خودلے دے۔ ○ دارنګه عبد الله بن عباس رضى الله عنهما بصرے والو ته په خسوف القمر كښې دوه ركعاته په جماعت سره مونځ كړيدے۔ بيا ئې اوفرمايل : [إِنَّمَا صَلَّيْتُ لِأَنِّي رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يُصَلِّيْ ] معرفة السنن والآثار (٤٦٠/٥ رقم ٢٠٤٨) والكبرى للبيهقي (٣٣٨/٣) (ما دا مونځ تاسو ته ځكه اوكړو چه ما رسول الله ﷺ ددے په كولو بانديے ليدلے وو) دارنګه د خسوف القمر او كسوف الشمس دواړو سبب يو دے چه رڼړا كميدل دي او يو آيت دے د الله د آياتو نه او په كسوف الشمس كښې خو مونځ د جماعت سره مسنون دے نو په خسوف كښې به هم مشروع وي۔ او علامه شوكاني د خسوف القمر د جماعت متعلق روايات راجمع كړيدي ليكن هغه ضعيف دي۔انظر النيل (٢٣/٤) ائمه ثلاثه په خسوف القمر كښې د جماعت په مسنون كيدو قائل دي نو بس همدا قول غوره دے۔ وانظر المغني (٢٧٣/٢)

**٥- بحث** :د صلاة الكسوف د كيفيت متعلق اختلاف دے۔ په احاديثو كښې ټول اووه كيفيات د صلاة الكسوف راغلي دي چه هغه دا دي : (١) **اول كيفيت** : دوه ركعاته اوكړي او په هر ركعت كښې دوه ركوع اوكړي پداسے طريقه چه اول فاتحه اووائي بيا اوګد سورت په جهر سره اووائي بيا ركوع ته خكته شي بيا پورته شي او سمع الله لمن حمده ربنا لك الحمد اووائي۔ بيا فاتحه اوسورت شروع كړي بيا ركوع ته خكته شي بيا سجده اوكړي او دغه شان كاربيا په دويم ركعت كښې اوكړي۔ دا كيفيت په روايت د بخاري كښې د ابن عباسؓ او عائشےؓ نه نقل دے او په طبراني كښې د ام سفيان نه كما في الفتح او د ابو موسى الاشعري او سمره بن جندب رضى الله عنهم نه په تلخيص الحبير كښې او ابوشريح الخزاعي د عثمان بن عفان ؓ د عمل نه نقل كړيدے چه هغه په مدينه كښې دغه شان مونځ كړے او دغه شان د عبد الله بن مسعود ؓ نه نقل دے۔ وكذا اخرجه احمد والبيهقي (٢٢٤/٣) او دا كيفيت امام مالك، شافعي، احمد، ابوثور، ليث بن سعد، بخاري او محققين علماؤ (رحمهم الله) راجح كړيدے۔ لكه په معرفة السنن والآثار (٧٢/٣) كښې اوګوره او په هغے كښې ورسره سمع الله لمن حمده په هرځل پورته كيدو كښې نقل ده۔نو ددے نه د امام ترمذيؒ ددے قول غلطي معلوميږي چه د امام شافعيؒ نه نقل كوي چه هغه وائي : د سمع الله لمن حمده په وخت به الله اكبر وائي او سمع الله لمن حمده به نۀ وائي۔ بلكه د

رکوع نه چه په هر ځل پورته کیږي نو سمع الله لمن حمده به وائي۔ او د امام شافعیؒ پدې قول باندې هیڅ دلیل نشته۔ بلکه دلیل ددې په خلاف دې۔

۲- **دویم کیفیت** : دوه رکعاته کول او په هر رکعت کښې درې رکوعات کول۔ او دا کیفیت مرفوعاً د عائشېؓ نه نقل دې۔ امام احمد او مسلم (۲۹٦/۱) او نسائي ذکر کړیدې۔ او ترمذيؒ د ابن عباسؓ نه په صحیح سند ذکر کړیدې۔ لیکن بیهقيؒ معلول ګرځولې دې په حبیب بن ابي مدلس باندې چه دهٔ پکښې عنعنه کړیده او دا د ابن عباسؓ او د حذیفهٔ د فعل نه هم ثابت دې۔ لګه محلی (۹۹/۵) اوګوره۔

۳- **دریم کیفیت** : دوه رکعاته کول او په هر رکعت کښې څلور رکوعات کول۔ دا کیفیت امام احمدؒ، مسلمؒ، ابوداودؒ، نسائيؒ او بیهقيؒ ذکر کړیدې (۳۲۷/۳) او بیهقي معلول ګرځولې دې۔ او بزارؒ او بیهقيؒ د حدیث د حذیفهٔ نه روایت کړیدې۔ لیکن ددې په سند کښې محمد بن عبد الرحمن دې (لایحتج به) او احمد (۱٤۳/۱) او بیهقي په (۳۳۰/۳) کښې د حدیث د علي ﷺ نه راوړیدې۔ او دا د علي او ابن عباس رضی الله عنهما د عمل نه ثابت دې۔ لګه محلی د ابن حزم (۹۹/۵) اوګوره۔

٤- **څلورم کیفیت** : دوه رکعاته کول او په هر رکعت کښې پنځه رکوعات کول۔ دا ابوداودؒ د حدیث د ابي بن کعبؓ نه روایت کړے دې او حاکم او عبد الله بن الامام احمدؒ راوړیدې لیکن سند ئې ضعیف دې، په ابو جعفر عیسی بن عبد الله بن ماهان الرازي کښې کلام دې۔ انظر الحاکم (۳۳۳/۱) والبیهقي (۳۲۹/۳) واحمد (۱٤۳/٥) وروی البیهقي في معرفة السنن والآثار (۳۲۹/۳)

٥- **کیفیت** : دوه رکعاته کول او دعاګانې غوختل او بیا دوه رکعاته کول او دعاګانې غوختل او دغه شان مونځونه کول تردې چه کسوف الشمس ختم شي۔ دا کیفیت امام احمد (۲۲۷) بیهقي (۳۳۳/۳) ابوداودؒ او نسائيؒ هم راوړیدې لیکن اسناد ئې ضعیف دې پدې کښې تدلیس د قتادهٔ دې او په روایت د احمدؒ کښې یو رجل مجهول دې۔ او په روایت د ابوداود کښې ثعلبه مجهول دې۔ لګه تفصیل ئې په ارواء الغلیل د شیخ البانيؒ (۱۲۰/۳) کښې اوګوره۔

٦- **شپږم کیفیت** : کله چه کسوف راپیدا شي نو نزدې مونځ چه کوم شوې وي نو صلاة الکسوف به د هغې په شان کوي۔ که د صلاة الفجر نه روستو کسوف راشي، د صلاة الفجر په شان مونځ به کوي او دغه شان که د ظهر نه روستو راشي نو د ظهر په شان مونځ به کوي۔ الخ۔ او دا کیفیت امام نسائيؒ ذکر کړیدې لیکن سند ئې ضعیف دې (۱٤۸٦) دارنګه په متن او سند کښې ئې شدید اضطراب دې تفصیل ئې په ارواء الغلیل (۱۳۱/۳) کښې ګوره۔

۷- **اووم كيفيت**: دوه ركعاتـه كول د عام نوافلو په شان لكه دا روايت امام احمدؒ (۱۹۸/۲) ابوداودؒ، نسائيؒ، حاكمؒ (۳۲۹/۱) وغيره د ابن عمرؓ نـه راوړيدے دا حديث صحيح دے ليكن راويانو پكښې اختصار كړيدے. لكه شيخ البانيؒ فرمائي: دا روايت صحيح دے ليكن دا خبره ډيره واضحه وي چه كله ددے روايت ټول طرق مونږ اُوكتل نو معلومه شوه چه پدے كښې بعض راويانو په دوه ركوع ذكر كولو كښې اختصار كړيدے ځكه چه دا حديث د ابن عمرؓ نه په څلورو طرقو نقل دے چه په يو طريق كښې په دوه ركعاتو كښې دوه ركوع دي او په درے طرقو كښې په هر ركعت كښې دوه ركوع ګانے ذكر دي نو دا زيادت دے د ثقات راويانو نه او زيادت د ثقه مقبول وي نو دے نـه معلوميږي چه په دوه ركعاتو كښې دوه ركوع ګانو ذكر كولو والا روايت شاذ او مرجوح دے. اوګوره ارواء الغليل (۱۳۲/۳).

دا ټول اووه كيفيات شو اوس ددے كيفياتو په تطبيق كښې دوه مذهبه دي (۱) اول قول دا دے چه دا اختلاف د كيفياتو دلالت كوي چه صلاة الكسوف ډير كرت واقع شويدے نو كله په يوه طريقه عمل شويدے او كله په بله طريقه او دا د باب د تنوع العبادات نه دے. او دا قول اسحاق بن راهويهؒ، ابن خزيمهؒ او خطابيؒ مختار كړيدے او ابن المنذرؒ حسن ګنړلے دے او امام نوويؒ قوي كړيدے. ابن رشدؒ په بداية المجتهد، ابن حزمؒ په محلى كښې او ابن جرير الطبريؒ وغيره علماؤ راجح كړيدے.

۲- **دويم قول** د ترجيح دے. اكثرو محققينو اول كيفيت راجح كړيدے او دا ئے وئيلي دي چه باقي كيفيتونـه بعض ضعيف دي او بعض شاذ دي او بعض مختصر دي، شاذ ورته ځكه وايو چه د نبي ﷺ په زمانـه كښې صلاة كسوف الشمس يو ځل راغلے دے، د بار بار راتلو ثبوت نشتـه. او دا قول حافظ ابن القيمؒ په زاد المعاد كښې او بيهقيؒ په السنن الكبرىٰ كښې او شيخ البانيؒ په ارواء الغليل (۱۳۲/۳) كښې اختيار كړيدے. او همدا قول راجح دے وجه دا ده چه دا اول كيفيت دا اكثر صحابه كرامو نه په اصح طرقو سره نقل دے، او ددے نه علاوه طرقو كښې څه نه خدشات شتـه. او دا قول امام بخاريؒ او شيخ الاسلام ابن تيميةؒ او علامه مباركفوريؒ په مرعاة المفاتيح (۱۲۸/۵) كښې راجح كړيدے.

○ علامه عبد الحي اللكهنويؒ په عمدة الرعاية (۲۰۸/۱) كښې فرمائي: (وَهٰذَا هُوَ الْاَقْوىٰ ثُبُوْتاً عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ بِرِوَايَاتِ جَمْعٍ مِنَ الصَّحَابَةِ وَاَصْحَابِ الصِّحَاحِ وَغَيْرِهِمْ) (د صحابه كرامو د يو جماعت او د صحيح كتابونو راويانو په روايت سره د رسول الله ﷺ نه ډير قوي ثابت دي)

○ شاه انور شاه په فيض البارى كښې فرمائي: ((زما په نيز راجح دا ده چه نبي ﷺ په هر ركعت

کښې دوه رکوع ګانے کړيدي او باقي اوهام دي دا (اصل کښې) د صحابه کرامؓ فتاوي وے نو د مرفوع حديث سره مختلط شوے۔ ددے وجه نه زۀ په هغه رواياتو تمسك نکوم چه په هغے کښې يو رکوع راغلے ده بلکه هغه زۀ حمل کوم په اختصار باندے)) انتهیٰ۔

لهذا دا قول راجح دے۔ راجع مرعاة المفاتيح (١٢٨/٥) وفتاوى الدين الخالص (٥٤٥/٦)

**بيا احناف** مقلدين صرف اووم کيفيت مني او باقي کيفيتونه نۀ مني ځکه چه دهغوي په مذهب کښې نۀ دے راغلے نو د اول کيفيت نه فاسد جوابونه کوي چه هغه اکثر صاحب المرعاة ذکر کړيدي او بيا ئے د هغے ترديد کړے۔ بعض دا دي : (۱) دوه رکوع ګانې خصوصيت د نبي ﷺ دے۔ **جواب** : دا بے دليله خبره ده کوم شے چه د نبي ﷺ نه ثابت شي هغه زمونږ دپاره هم سنت وي ترڅو چه دليل د خصوصيت نۀ وي راغلے او دلته دليل د خصوصيت نۀ دے موجود۔

(۲) کله وائي : روايات فعليه ټول متعارض او مضطرب دي، په بعضو کښې د يو رکوع تذکره ده او په بعضو کښې د دوه رکوع او په بعضو کښې درے او په بعضو کښې څلور او په بعضو کښې پنځه په هر رکعت ذکر دي نو د تعارض او اضطراب د وجه نه روايات قوليه به راجح وي ځکه هغه اضطراب نه سالم دي۔ **جواب** : روايات فعليه ؤکښې هيڅ تعارض نشته ځکه چه شرط د تعارض دا دے چه ټول به مساوي وي او دلته احاديث د دوه رکوع راجح او قوي دي د نورو رواياتو نه لکه چه تا اوپيژندل لهٰذا هيڅ تعارض نشته بلکه په دوه والي د رکوع به عمل کولے شي او هرچه قولي روايات دي نو هغه ضعيف دي يا د هغے صحيح مَحْمَل شته لکه حديث د (صَلُّوا كَاَحْدَثِ صَلَاةٍ صَلَّيْتُمُوهَا مِنَ الْمَكْتُوبَةِ) شو (ددے مطلب دا دے چه صلاة الكسوف د هغه مانځه په شان کوئ ځنګه چه تاسو فرض مونځ کړے وي نو دلته تشبيه په بعض صفاتو کښې ده او هغه دا چه په عدد د رکعاتو کښې يا په جهر د قرائت کښې تشبيه ده) دارنګه پدے رواياتو کښې اضطراب هم نشته ځکه چه اضطراب هله مُضر دے چه کله ټول طرق يو شان قوي وي او دلته د تثنية الركوع روايات زيات قوي دي د نورو نه لهذا هيڅ اضطراب نشته۔

دارنګه روايات قوليه به هله راجح وي چه کله قوي وي او په قوت کښې د فعلي رواياتو سره برابر وي او حال دا چه دلته روايات فعليه اقوىٰ دي ځکه هغه روايات د صحيحينو دي كما تقدم۔

(۳) بعض وائي : لکه زيلعیؒ وئيلي دي : چه د تعدد د رکوع په باره کښې چه کوم روايات راغلي دي نو ددے وجه دا ده چه کله رکوع د حد نه زياته طويله شوه نو بعض خلقو پدے ګمان سره چه رسول الله ﷺ به سر پورته کړے وي هغوئ هم سر پورته کړو ليکن کله ئے چه رسول الله ﷺ په حالت د رکوع کښې اُوليدو نو بيا رکوع ته لاړل، او دغه شان کارئے بار بار اُوکړو او د

هغوی نه روستو چه کوم خلق وو هغوی هم دغه شان رکوع بار بار اوکړه پدې گمان چه دا رکوع به د رسول الله ﷺ د طرفنه وی. بیا هر راوی د خپل گمان مطابق روایت اُوکړو، او دا اشتباه خاصکر هغه صحابه کرامؓ ته لگیدلې ده چه په آخر صف کښې وو لکه عائشهؓ او ابن عباسؓ چه عائشه د زنانو په صف کښې وه او ابن عباسؓ د ماشومانو په صف کښې وو نو پیغمبرئې سم نهٔ لیدلو. نو په خپل گمان ئې روایت نقل کړو چه پیغمبر په هر رکعت کښې دوه رکوع کړیدی. او واقع کښې یوه رکوع وه. دا تاویل په تنظیم الاشتات (۱/ ۴۸۷) کښې نقل شویدے. او صاحب د طحطاوی علی مراقی الفلاح د امام محمدؒ نه نقل کړیدے. او بعضو پکښې لا دا وئیلی دی چه دا ډیر ښه تاویل دے ځکه پدے سره په ټولو احادیثو کښې جمع او تطبیق راځی. دا ددے خلقو تطبیق د احادیثو دے !!.

لیکن که سوچ اُوکړے شی چه دا څومره د خندا (مضحکه خیز) تاویل دے، په صحابه کرامؓ باندے بے اعتمادی او بدگمانی ده چه هغوی دومره بے تحقیقه خلق وو چه تش په گمان باندے ئې روایتونه خلاف الواقع نقل کول. دارنگه (العیاذ بالله) صحابه کرامؓ داسے بے احتیاطه خلق وو چه د نبی ﷺ نه ئې سر مخکښې اوچتولو او بیا بیرته خکته کیدل؟ او دغه شان کارئې بار بار کولو؟ آیا دوی به تکبیر نه اوریدو؟، آیا هغوی په مانځه کښې داسے توقے کولے؟ کلا وحاشا لله.

○ دارنگه دا خبره هم غلطه ده چه عائشهؓ په صف د زنانو کښې وه بلکه عائشه او اسماء رضی الله عنهما دواړه په حجره د عائشهؓ کښې ولاړے وے کومه چه قبلې ته نزدے وه. او ابن عباس ﷺ د ماشومانو په صف کښې نهٔ وو بلکه د نبی ﷺ اړخ ته ولاړ وو لکه دا طبرانی او بیهقی فی المعرفة کښې نقل کړیدی.

○ دارنگه دا روایت یواځې د عائشېؓ او ابن عباسؓ نه ندے نقل بلکه د نورو لویو لویو صحابه کرامؓ نه نقل دے لکه جابر بن عبد الله، عبد الله بن عمرو بن العاص، ابو هریره ، ابی بن کعب، عبد الله بن عمر، حذیفة بن الیمان او علی رضی الله عنهم وغیره شو، آیا دا ټول خطاء شو؟! آیا دا ټول پدے اشتباه کښې پریوتل؟! نهٔ ! بلکه دا قول پیدا شویدے د یو داسے مرض نه چه د انسان په سترگو د جهالت پټئ اړوی چه هغے ته تعصب مذهبی او تقلید جامد وائی.

او دے تاویل ته شاه انور شاه کشمیریؒ هم په فیض الباری کښې رکیك (ضعیف) وئیلے دے.

(٤) بعض وائی: په یو رکعت کښې د یوے رکوع کولو روایات د اصولو او قیاس موافق دی او یو رکن (رکوع) په مانځه کښې زیاتول غیر معروف دی. **جواب** : حافظ فرمائی : قیاس سره د وجود د نص نه بیکاره دے او صلاة الکسوف د صلاة العید او صلاة الجنازة او صلاة الخوف

مشابه دے، چه دا د عام نوافلو نه جدا جدا دی نو صلاة الجنازه جدا دے په رکوع او سجده پریخودلو سره او صلاة العیدین په زیادت د تکبیراتو او صلاة الخوف په زیادت د افعال کثیره ؤ او په استدبار د قبله نو دغه شان صلاة الکسوف جدا دے په زیادت د رکوع باندے نو پدے باندے عمل کښ په نص او قیاس دواړو باندے عمل دے۔ او چه څوك صرف په قیاس او په خپلو خود ساخته اصولو عمل کوی نو د هغه نه به نص پاتے وی۔ انتهیٰ۔

(۵) صاحب د محیط برهانی په کښ لاداسے چمبه وهلے ده چه نبی ﷺ ته پدے مانځه کښ جنت او جهنم اوخودلے شو نو رسول الله ﷺ د اُور نه د گبراهټ په وجه د رکوع نه سر پورته کړو، بیا خکته شو۔ نو دا حقیقةً رکوع نۀ وه بلکه صورةً رکوع وه۔ (تنظیم الاشتات ۱/۴۸۷)

**جواب** : دا تاویل د خندا قابل دے۔ ځکه په احادیثو کښ تصریح ده چه نبی ﷺ د اولے رکوع نه روستو دیر اُوګد قیام اوکړو۔ دارنګه مخکښ تیر شو چه نبی ﷺ د هرے رکوع نه د پورته کیدو په وخت کښ سمع الله لمن حمده وئیله ده۔ نو دا حقیقی رکوع ده په صوری رکوع باندے حمل کولو باندے هیڅ دلیل نشته۔ ○ دارنګه په روایت د مسلم کښ تصریح ده پدے خبره چه نبی ﷺ ته کله جنت او جهنم رانزدے شو نو هغه تقدم او تأخر اوکړو او رکوع او سر پورته کول ئے پکښ نۀ دی کړی۔ نو دا غلط تاویل دے۔

دغه شان نور غلط تاویلات شته چه د هغے راوړل دلته مناسب نۀ دی۔ مرعاة المفاتیح (۵/۱۳۰) ته رجوع اوکړه۔

نو ثابته شوه چه د دوه رکوع والا روایات صحیح دی او هیڅ خدشات پکښ نشته او د یو رکوع والا روایت کښ اختصار دے چه هغه هم په اصل کښ دوه رکوع وے او درے او څلور رکوع والا روایات ضعیف دی۔ فتدبر۔

## الفصل الاول

۱۴۸۰ (۱) – عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ الشَّمْسَ خُسِفَتْ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ، فَبَعَثَ مُنَادِيًا: اَلصَّلَاةُ جَامِعَةٌ، فَتَقَدَّمَ فَصَلّٰى اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ فِيْ رَكْعَتَيْنِ وَاَرْبَعَ سَجَدَاتٍ، قَالَتْ عَائِشَةُ: مَا رَكَعْتُ رُكُوْعًا قَطُّ وَلَا سَجَدْتُ سُجُوْدًا قَطُّ كَانَ اَطْوَلَ مِنْهُ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : عائشه رضی الله عنها فرمائی: د رسول الله ﷺ په زمانه کښ نمر تور کړے شو نو نبی ﷺ یو آواز کونکے اولیږلو (چه خلقو کښ ئے آوازونه کول) چه « الصلاةُ جَامِعَةٌ » مونځ

(خلقو لره) راجمع کړونکے دے۔نو (کله چه خلق راجمع شو) نبی ﷺ مخکښې شو او څلور رکوع گانې ئې په دوه رکعاتو نو کښې اوکړے او څلور سجدے، عائشه رضی الله عنها فرمائی: (د خسوف د مانځه نه مخکښې) ما هيڅ کله رکوع نهٔ وه کړے او نهٔ مې هيڅ کله سجده ددے نه اوږده کړے وه۔(بخاری ومسلم)۔

**تشريح :** دلته د څلورو رکعاتو نه مراد څلور رکوع گانې دی چه په دوه رکعاتو کښې شويدی۔ په دے مانځه کښې به رکوع هم اوګده کولے شی۔

دا حديث دليل دے چه د صلاة الکسوف او خسوف دپاره اذان او اقامت نشته بلکه يو عام اعلان ئې کړيدے په ( اَلصَّلاةُ جَامِعَةٌ ) سره او د اقامت تذکره پکښې نشته لهذا د اذان او اقامت کول بدعت دے۔ او دغه اعلان کول بعضِ علماؤ مستحب ګڼلے دے۔

---

**۱٤٨۱ (۲) – وَعَنْهَا، قَالَتْ: جَهَرَ النَّبِيُّ ﷺ فِيْ صَلَاةِ الْخُسُوْفِ بِقِرَاءَتِهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

---

**ترجمه :** او عائشه رضی الله عنها فرمائی: نبی ﷺ د خسوف په مانځه کښې قراءت په زوره اووئيلو۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

**تشريح :** دا حديث دليل دے چه په صلاة الکسوف کښې قرائت په جهر سنت عمل دے، او دغه شان روايت د أسماء بنت ابی بکرؓ نه هم نقل دے او دغه شان د علیؓ نه مرفوعاً او موقوفاً نقل دے چه په صلاة الکسوف کښې جهر شته۔ (بخاری ۱/۱٤٤ ابن خزيمه، طحاوی)۔ او دا حديث الباب هم دليل دے۔

پدے کښې د خسوف نه خسوف القمر اخستل صحيح نهٔ دی ځکه چه په روايت د اسماعيلیؒ کښې دی چه هغه د وليدؒ نه داسے الفاظ نقل کړيدی : (كُسِفَتِ الشَّمْسُ فِيْ عَهْدِ النَّبِيِّ ﷺ فَذَكَرَ الْحَدِيْثَ) او دغه شان مسند احمدؒ کښې هم دی۔ لهذا دا قراءت په کسوف الشمس کښې وو۔ او د جهر قول صاحبينو، ابن ابی العزؒ، امام احمدؒ، اسحاقؒ، ابن خزيمةؒ، ابن المنذرؒ او ابن العربیؒ غوره کړيدے او امام ترمذیؒ د امام مالكؒ نه نقل کړيدے او دا اختيار د ابن حزمؒ او امام بخاریؒ او عام محدثينو دے۔ او همدا حق قول دے۔

۲- **قول ثانی** د مالك (علی قول)، ابوحنيفهؒ، شافعیؒ او ليث بن سعدؒ دے چه په کسوف الشمس کښې به قراءت بالسر وی۔ دليل نيسی په حديث د سمره بن جندب ﷺ باندے چه هغه فرمائی: (صَلّٰى بِنَا النَّبِيُّ ﷺ فِيْ كُسُوْفِ الشَّمْسِ لَا نَسْمَعُ لَهُ صَوْتًا) (ترمذی، ابوداود، نسائی ابن ماجه)

**جواب** : دا استدلال صحيح نۀ دے ځکه چه (١) دا روايت ضعيف دے ثعلبه بن عباد العبدي پکښې مجهول دے فلا حجة فيه۔ (ضعيف ابی داود (٢٥٣/١١٨٤) وضعيف الترمذی (٥٦٢/٦٢/٢)

(٢) دويم : دا حديث نافی دے او حديث د عائشه، اسماء او علی رضی الله عنهم مثبت دے او مثبت په نافی باندے مقدم وی۔ (٣) جهر په احاديث د صحيحينو کښې راغلے دے نو دا به ډير اقویٰ او ارجح وی۔ (نيل الاوطار ١٤/٤) السيل الجرار (٣٢٤/١)۔

او هرچه خسوف القمر دے نو ددے په باره کښې د نبی ﷺ نه جماعت فعلی طريقے سره نۀ دے نقل بلکه په عام قول (فصلوا) کښې داخل دے او د ابن عباسؓ قول مخکښې ذکر شو۔

---

١٤٨٢ (٣) - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: اِنْخَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ، فَصَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَالنَّاسُ مَعَهٗ، فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا نَحْوًا مِنْ قِرَاءَةِ سُوْرَةِ الْبَقَرَةِ، ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا ، ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا، وَهُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْاَوَّلِ، ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا، وَهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ، ثُمَّ رَفَعَ، ثُمَّ سَجَدَ، ثُمَّ قَامَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا وَهُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْاَوَّلِ، ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا، وَهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ، ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيْلًا ا، وَهُوَ دُوْنَ الْقِيَامِ الْاَوَّلِ، ثُمَّ رَكَعَ رُكُوْعًا طَوِيْلًا وَهُوَ دُوْنَ الرُّكُوْعِ الْاَوَّلِ، ثُمَّ رَفَعَ، ثُمَّ سَجَدَ، ثُمَّ انْصَرَفَ وَقَدْ تَجَلَّتِ الشَّمْسُ فَقَالَ: «اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللهِ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهٖ، فَاِذَا رَاَيْتُمْ ذٰلِكَ فَاذْكُرُوا اللهَ». قَالُوْا: يَارَسُوْلَ اللهِ رَاَيْنَاكَ تَنَاوَلْتَ شَيْئًا فِيْ مَقَامِكَ هٰذَا، ثُمَّ رَاَيْنَاكَ تَكَعْكَعْتَ، فَقَالَ: «اِنِّيْ رَاَيْتُ الْجَنَّةَ، فَتَنَاوَلْتُ مِنْهَا عُنْقُوْدًا، وَلَوْ اَخَذْتُهٗ لَاَكَلْتُمْ مِنْهُ مَا بَقِيَتِ الدُّنْيَا. وَرَاَيْتُ النَّارَ فَلَمْ اَرَ كَالْيَوْمِ مَنْظَرًا قَطُّ اَفْظَعَ. وَرَاَيْتُ اَكْثَرَ اَهْلِهَا النِّسَاءَ». قَالُوْا: بِمَ يَارَسُوْلَ اللهِ! قَالَ: «بِكُفْرِهِنَّ»، قِيْلَ: يَكْفُرْنَ بِاللهِ؟ قَالَ: «يَكْفُرْنَ الْعَشِيْرَ، وَيَكْفُرْنَ الْاِحْسَانَ، لَوْ اَحْسَنْتَ اِلٰى اِحْدٰهُنَّ الدَّهْرَ، ثُمَّ رَاَتْ مِنْكَ شَيْئًا قَالَتْ: مَا رَاَيْتُ مِنْكَ خَيْرًا قَطُّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : او عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی: د رسول الله ﷺ په زمانه کښې نمر تور شو نو رسول الله ﷺ د خلقو سره مونځ اوکړو، (نو هغۀ خلقو ته داسے مونځ اوکړو) چه د سورة بقرے په مقدار اوږد قيام ئے اوکړو بيا ئے اوږده رکوع اوکړه بيا ئے سر پورته کړو نو اوږد قيام ئے اوکړو ليکن دا قيام

د اول قیام نه کم وو، بیا ئے (دوباره) رکوع اوکړه، او دا رکوع هم اوږده وه مګر د مخکښې رکوع نه کم، بیا ئے سر پورته کړو بیا ئے سجده اوکړه، بیا (دویم رکعت ته) راپورته شو، او ډیر اوږد قیام ئے اوکړو، مګر دا قیام د اول رکعت د قیام نه کم وو، بیا رکوع ته خکته شو دا رکوع هم اوږده وه لیکن دا قیام د مخکښې قیام نه کم وو، بیا ئے (دوباره) رکوع اوکړه، دا رکوع هم اوږده وه لیکن د اولې رکوع نه کم۔ بیا ئے سر پورته کړو (اودریدو) بیا ئے سجده ئے اوکړه، ددے نه روستو (یعنی د التحیات او سلام نه روستو چه) د مانځه نه فارغ شو، نو نمر روښانه شوے وو، رسول الله ﷺ اوفرمایل :«یقیناً نمر او سپوږمۍ د الله (د قدرت) د نخو نه دوه نخے دی، دا نهٔ د چا د مرګ په وجه تورېږی او نهٔ د چا د پیدائش په وجه، کله چه تاسو دا اووینئ نو د الله ذکر کوئ» صحابه کرامؓ عرض اوکړو یارسول الله ! مونږ تهٔ اولیدلے چه تا پدے ځائے د اودریدو کښې (په مانځه کښې) څهٔ شے راونیولو، بیا مونږ اولیدلے چه تهٔ روستو شوے، نبی ﷺ اوفرمایل :«ما (په مانځه کښې) جنت اولیدلو نو ما د هغے نه د انګورو د یو غونچلك رانیولو اراده اوکړه، او کهٔ ما غونچلك د انګورو رانیولے وے نو خامخا به تاسو د هغے نه خوراك کولے ترڅو چه دنیا باقی پاتے وے، او (کله چه تاسو زهٔ روستو کیدونکے اولیدم نو) ما (په مانځه کښې) دوزخ اولیدو، (نو د هغے د ګرمی رسیدلو د ویرے نه روستو شوم)، نو د نن ورځے په شان ما هیڅ کله داسے هیبتناك منظر نهٔ وو لیدلے، او په دوزخ کښې ما اکثر اوسیدونکے زنانه اولیدلے، صحابوؓ عرض اوکړو چه یارسول الله ! په څهٔ وجه ؟ (زنانه جهنم کښې ډیرے دی) نبی ﷺ اوفرمایل :«د هغوی د کفر په وجه سره»، صحابه کرامؓ عرض اوکړو چه آیا زنانه په الله باندے کفر کوی (پدے وجه زیاتے جهنم ته تلی دی؟) نبی ﷺ اوفرمایل : «نهٔ !، بلکه هغوی د خاوندانو د نعمتونو او احسان کفران (یعنی ناشکری) کوی، (یعنی د خاوندانو ناشکری او نافرمانی کوی او د هیڅ احسان نهٔ منی) کهٔ د یوے زنانه سره ډیره زمانه احسان اوکړے بیا هغهٔ تا نه (د خپلے مرضئ خلاف) څه وینی نو دا به وائی چه ما هیڅ کله تا نه خیر نهٔ دے لیدلے »۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

**تشریح:** ابن عباسؓ ډیر په تشدید سره دا طریقه بیانوی معلومیږی چه دهٔ ددے په یادولو کښې ډیر اهتمام کریدے۔ نو پدے کښې د احنافو دغه مخکښې ذکر شوی تاویلات بارده کول صحیح نهٔ دی۔ او دا تاویل ئے هم صحیح نهٔ دے چه نبی ﷺ دوه رکوع نهٔ دی کړی بلکه د دوزخ نه په یریدو سره مخکښې روستو شویدے۔ او ددے نه راوی په دوه رکوع ګانو سره تعبیر کریدے۔ دا تاویل بعینه تحریف دے ځکه چه ابن عباسؓ د دواړو رکوع ګانو او د دواړو قیامونو اُوږدوالے خومره په اهتمام سره بیانوی۔ او دغه روستو کیدل او مخکښې کیدل خو معمولی شان ساعت وو۔

دينه بعض دليل نيسى چه قراءت ئے په پټه وئيلے دے ځکه ابن عباسؓ ولے تقريبى اندازه د قرائت ذكر كوى كهٔ دهٔ اوريدلے وے نو بيا به ئے دغه شان تقريبى اندازه نهٔ ذكر كولے ؟۔

**جواب** : دا استدلال بعيد دے وجه دا ده چه كيدے شى يو انسان دير قرائت واورى بيا ترے هير شى صرف هغه اندازه ذكر كوى چه دومره قراءت شوے وو۔نو دا واضح دليل نهٔ دے۔ او بل طرفته صريح روايات دى۔

**تَكَعْكَعْتَ** : يعنى روستو شوے او په شا لاړے۔ كعكع متعدى او لازم دواړه راځى۔

**عُنْقُوْدٌ** : د انګور خوشے (غونچك) ته وائى۔

**رَأَيْتُ الْجَنَّةَ** : دا حقيقى ليدل دى چه الله رب العالمين مينځ كښې پردے پورته كړے او مسافه ئے رانزدے كړه او دا د نبى ﷺ معجزه وه۔لكه څنګه ئے چه ورته بيت المقدس ښكاره كړے وو كله چه ترے قريشو تپوسونه د هغے متعلق كول۔ او په كوم روايت كښې چه راغلى دى چه نبى ﷺ فرمائى : اُوس ددے ديوال په جانب كښې ما باندے جنت او جهنم راپيش كړے شو او زهٔ په مانځه كښې وم۔ او په يو روايت كښې دى (لَقَدْ مُثِّلَتْ) وفى رواية مسلم : لَقَدْ صُوِّرَتْ) يعنى دا راته متشكل شو۔ نو ددے جواب دا دے چه هغه بيله واقعه ده د ظهر په مانځه كښې ورته پيش كړے شوى وو او دلته ئے حقيقةً ليدلى دى او دواړو كښې هيڅ تضاد نشته۔ او دا دليل دے چه جنت او جهنم د مخكښې نه پيدا دى لكه دا د اهل السنت والجماعة مذهب دے۔

**لَاَكَلْتُمْ مِنْهُ مَا بَقِيَتِ الدُّنْيَا** : ددے صورت دا دے چه د دغه خوشے كه يوه دانه راپريكړے شوے وے نو ددے په ځائے به بله دانه راوتلے نو نهٔ به قطع كيدلے او تر قيامته پورے به خلقو خوړلے لكه څنګه چه د جنت ميوے دى چه هغه (لَا مَقْطُوْعَةٍ وَّلَا مَمْنُوْعَةٍ) دى۔ ليكن نبى ﷺ دا كار نهٔ كولو ځكه چه بيا ايمان بالغيب نهٔ پاتے كيدو۔

---

١٤٨٣ (٤) -- وَعَنْ عَائِشَةَ نَحْوَ حَدِيْثِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَقَالَتْ: ثُمَّ سَجَدَ فَاَطَالَ السُّجُوْدَ، ثُمَّ انْصَرَفَ وَقَدِ انْجَلَتِ الشَّمْسُ، فَخَطَبَ النَّاسَ، فَحَمِدَ اللهَ وَاَثْنٰى عَلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: «اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللهِ، لَايُخْسَفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيَاتِهٖ، فَاِذَا رَأَيْتُمْ ذٰلِكَ فَادْعُوا اللهَ وَكَبِّرُوْا وَصَلُّوْا وَتَصَدَّقُوْا، ثُمَّ قَالَ: يَا اُمَّةَ مُحَمَّدٍ ! وَاللهِ مَا مِنْ اَحَدٍ اَغْيَرُ مِنَ اللهِ اَنْ يَّزْنِيَ عَبْدُهٗ اَوْ تَزْنِيَ اَمَتُهٗ، يَا اُمَّةَ مُحَمَّدٍ ! وَاللهِ لَوْ تَعْلَمُوْنَ مَا اَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيْلًا وَّلَبَكَيْتُمْ كَثِيْرًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : او د عائشې رضي الله عنها نه د ابن عباسؓ د حديث په شان نقل شوي دي چه هغهٔ فرمائي : بيا نبي ﷺ سجده اوکړه، او ړده سجده ئې اوکړه، بيا د مانځه نه راوګرزيدو او نمر روښانه شوے وو، نو خلقو ته ئې تقرير اوکړو، د الله حمد او ثناء ئې اوويله، بيا ئې اوفرمايل: « يقيناً نمر او سپوږمۍ د الله (د قدرت) د نخو نه دوه نخې دي، دا نهٔ د چا د مرګ په وجه تورېږي او نهٔ د چا د ژوند په وجه، نو کله چه تاسو دا (حالت) اووينئ نو د الله نه دعاګانې غواړئ، او تکبيرونه وايئ، او مونځونه کوئ او صدقې ورکوئ »، بيا ئې اوفرمايل : «اے د محمد (ﷺ) امت ! قسم په الله ! د الله نه هيڅوك غټ غيرتمند نهٔ شته چه کله د هغهٔ يو بنده يا د هغهٔ يوه وينځه زنا کوي، اے د محمد (ﷺ) امت ! قسم په الله ! که تاسو ته معلومه شي هغهٔ (هيبت او يرے او عذابونه او سزاګانې د قيامت) کوم چه ما ته معلومې دي نو تاسو به خامخا کم اوخاندئ او دير به اُوژاړئ ».
(بخاريؒ ومسلمؒ).

**تشريح : فَخَطَبَ النَّاسَ** : پدے کښې اختلاف دے چه آيا د صلاة الکسوف نه روستو خطبه وئيل شته او که نه ؟ (١) حنفيه، مالکيه، حنابله وائي : خطبه نشته. (٢) د امام شافعيؒ، اسحاقؒ، ابن جرير الطبريؒ او د اکثر اصحاب الحديث په نيز په صلاة الکسوف کښې خطبه مستحب ده (قاله الحافظ ابن حجر في الفتح). **دليل** : د ائمه ثلاثو دا دے چه پدے کښې خطبه ځکه نشته چه نبي ﷺ د کسوف په وخت کښې امت ته حکم په مانځه، تکبير او صدقه وغيره باندے کړيدے او په خطبه باندے ئې حکم نهٔ دے کړے نو که دا سنت وے نو پدے باندے به ئې هم ضرور حکم کولے. او دوي جواب کوي چه نبي ﷺ چه د صلاة الکسوف نه روستو کومه خطبه وئيلے ده نو ددے وجه دا ده چه پدے کښې ئې ترديد کولو په قول د خلقو چه د نمر دا کسوف د ابراهيم ؓ په وفات سره راغلے دے. لکه دا د عربو عقيده وه چه کله يو لوئی انسان وفات کيږي نو په هغه وخت کښې په نمر او سپوږمۍ باندے اثر کيږي هغے کښې کسوف او خسوف راځي نو رسول الله ﷺ ددے عقيدے د ترديد دپاره دغه خبره اوکړه.

**جواب** : نبي ﷺ نه د کسوف په وخت کښې خطبه نقل ده په ديرو احاديثو کښې نو بس ددے وئيل سنت عمل شو که سبب ئې هر يو وي. وجه دا ده چه سنيت د يو شي د قولي بيان پورے موقوف نهٔ دے بلکه کله چه نبي ﷺ يو عمل اوکړو او دليل د خصوصيت نهٔ وي نو هغه د امت دپاره سنت اوګرځيدو اګرکه نبي ﷺ دا خبره اونکړي چه ما دا عمل ددے وجه نه اوکړو يا دا عمل تاسو هم اوکړئ ما تاسو دپاره سنت اوګرځولو. بلکه سنت کله قولي وي او کله فعلي وي او کله تقريري وي. او دا ټولے د دين طريقے دي.

○ هر چه دا خبره ده چه پدے کښې ئے د مشرکانو د قول تردید ولے کولو ؟ نو جواب دا چه په احادیثو کښې په صراحت سره دا راغلی دی چه نبی ﷺ خطبه وئیلې ده، په هغې کښې ئے حمد او ثناء او وعظ کړیدے او صحابه کرامو د هغې نه تعبیر په خطبه کړیدے او دارنګه د عام محدثینو فهم هم دغه دے چه دا خطبه وه لکه امام بخاریؒ او باقی محدثینو پدے باندے بابونه لګولی دی۔ نو خطبه نور څه ته وائی؟! دارنګه که صرف دغه خبره رد کول وے نو بیا حمد او ثناء ته څه ضرورت وو، یوه جمله کافی وه حال دا چه پدے خطبه کښې ئے امت ته آداب ذکر کړیدی۔ چه داسے عقیده ساتئ او د کسوف په وخت کښې داسے اعمال کوئ۔ نو هر خطیب له داسے پکار دی، چه د کسوف نه روستو خطبه کښې دغه شان خبرے اُوکړی چه ایے خلقو ددے کسوف د راتلو وجه څه ده؟ او پدے وخت کښې څه کارونه پکار دی؟۔ نو پدے کښې به مختصر تقریر اوکړی او خلق به د الله د عذابونو نه اُویروی۔

صاحب الهدایه پکښې وائی : خطبه په صلاة الکسوف کښې ځکه نشته چه نقل نۀ ده۔ لیکن تا ته معلومه شوه چه دا د احادیث نبویهؐ نه ډیر غفلت دے دا مشهوراحادیث تاسو هم اولیدل چه د بخاری او مسلم وغیره مشهورو کتابونو کښې راغلی دی لیکن داسے معلومیږی چه صاحب الهدایه ورله ګوتے هم نۀ دی وروړی۔ حافظ زیلعیؒ د صاحب الهدایه په رد کښې وائی : دا خبره غلطه ده۔ بیا ئے نومونه د هغه صحابه کرامؓ ذکر کړیدی چه هغوی دغه خطبه نقل کړیده لکه اسماءؓ، عائشهؓ، ابن عباسؓ (احادیث د صحیحین) او حدیث د جابرؓ په صحیح مسلم کښې او حدیث د سمره بن جندبؓ په مسند احمد کښې او حدیث د عمرو بن العاصؓ په ابن حبان کښې چه پدے تولو کښې خطبه ذکر ده۔ (۲۳٦/۲) دغه شان حافظ په درایه ص (۱۳۸) کښې هم په صاحب الهدایه رد کړیدے چه دده خبره د صحیحینو په روایتونو سره مردوده ده۔ ○ دغه شان ابن ابی العز الحنفیؒ په التنبیه علی مشکلات الهدایه (۷٤٤/۲) کښې هم رد کړیدے چه په کسوف الشمس کښې خطبه په حدیث د عائشهؓ او حدیث د مغیرهؓ کښې نقل ده چه هغه اهل الصحیح والسنن والمسانید نقل کړیدی۔

٤- بعض احناف او مالکیه وائی : خطبه ئے ځکه نۀ ده وئیلې چه منبر ته نۀ وو ختلے۔

**جواب** دا دے چه د خطبے دپاره منبر شرط نۀ دے۔

○ علاوه لا دا چه په روایت د عائشهؓ په نسائی کښې او په روایت د اسماء کښې په مسند احمد (۳٥٤/٦) کښې منبر ته ختل صراحةً ذکر شویدی۔

○ صاحب د اعلاء السنن هم (۱٦٩/۸) د خپلو احنافو خلاف کړیدے او د خطبے په استحباب

باندے قائل شویدے۔ اوګورہ تفصیل د مسئلے په (المجموع ٥٢/٥) المغنی (٢٧٨/٢) توضیح الاحکام (٤١٧/٢) ونیل الاوطار (١٥/٤) والمرعاة (١٤٥/٥)

اَغْيَرُ : غیرت اصل کښې «په خپل حق کښې بل څوك شريك نه کنړلو» ته وائي، مطلب دا دے چه د الله يو بنده (سړے يا ښځه) کله په زنا کښې مبتلا شي نو پدے باره کښې تاسو له څومره غیرت درځي، او ددے دوارو نه تاسو څومره نفرت کوئ نو د الله غیرت ددے نه هم ډیر زیات سخت وی او د هغهٔ نفرت ستاسو د نفرت نه څو چنده زیات وی، یا دا چه لکه څنګه چه تاسو له د خپل غلام او وینځې په بد فعلئ او زنا باندے څومره غیرت درځي چه زما غلام او زما وینځه ولے داسے کار اوکړی نو دغه شان د بندګانو په زنا کولو باندے الله تعالیٰ له غیرت ورځي حال دا چه دا ټول بندګان د هغهٔ غلامان دي۔

نو دا حدیث دلیل دے چه د کسوف او دغه شان ظاهری او باطنی آفاتو دپاره یو سبب دا دے چه انسانان ګناهونه او بے حیائی زیاته کړی نو د الله غضب په جوش کښې راشي او په کائناتو باندے داسے تغییر راولي پدے سره الله بندګان ویروی چه سم شئ ګنے عذاب به درباندے نازل کړم۔

---

١٤٨٤ (٥) – وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى، قَالَ: خُسِفَتِ الشَّمْسُ، فَقَامَ النَّبِيُّ ﷺ فَزِعًا يَخْشٰى اَنْ تَكُوْنَ السَّاعَةُ، فَاَتَى الْمَسْجِدَ، فَصَلّٰى بِاَطْوَلِ قِيَامٍ، وَرُكُوْعٍ وَسُجُوْدٍ، مَا رَأَيْتُهُ قَطُّ يَفْعَلُهُ، وَقَالَ: «هٰذِهِ الْاٰيَاتُ الَّتِيْ يُرْسِلُ اللهُ، لَا تَكُوْنُ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَّلَا لِحَيَاتِهٖ، وَلٰكِنْ يُّخَوِّفُ اللهُ بِهَا عِبَادَهٗ، فَاِذَا رَاَيْتُمْ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ فَافْزَعُوْا اِلٰى ذِكْرِهٖ وَاسْتِغْفَارِهٖ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

**ترجمه :** او ابوموسی اشعری ﷺ فرمائي: (د نبی ﷺ په زمانه کښې) نمر تور شو نو نبی ﷺ په ګبراهټ سره پاڅیدلو ددے نه یریدو چه هسے نه قیامت وی، نو مسجد ته راغلو او مونځ ئے اوکړو په ډیر اوږد قیام او رکوع او سجدے سره چه ما هیڅکله نهٔ وو لیدلے چه داسے ئے کله کړی وی، بیا ئے دا اوفرمایل : «دا نخے الله تعالیٰ رالیږی، دا نهٔ د چا د مرګ په سبب (ښکاره) کیږی او نهٔ د چا د پیدائش په وجه، لیکن ددے په ذریعه الله تعالیٰ خپل بندګان ویروی، لهذا کله چه تاسو ددے نخو نه یوه نخه اووینئ، نو د الله نه په یره سره د هغهٔ ذکر کوئ، د هغهٔ نه دعا غوارئ، او استغفار طلب کرئ»۔ (بخاری ومسلم)

**تشریح:** اَنْ تَكُوْنَ السَّاعَةُ : یعنی نزدے ده چه دا کسوف الشمس د قیامت د حاضریدو نخه

وي۔ پدے حديث كښ اشاره ده چه د الله د طرفنه راتلونكو نښانات او آفتونو طرفته هميشه په مراقبه كښ اوسيدل پكار دي چه هسے نه چه دغه شان عذابونه په مونږ باندے نازل نشي۔

**بيا اشكال** دا دے چه رسول الله ﷺ ته خو دا يقيني معلومه وه چه ترڅو پورے هغه په دنيا كښ موجود وي نو قيامت به نۀ راځي۔ دارنگه د قيامت دپاره خو علامات دي لكه دجال، دخان، طلوع الشمس من المغرب او عيسى عليه السلام وغيره راتلل نو څنگه نبي عليه السلام د قيامت د راتلو نه يريدلے دے؟۔ ۱ – ددے يو **جواب** دا دے چه كله كله په انسان باندے خشيت او دهشت دومره طاري شي او لوئي كارونه ورته ناڅاپي راشي چه د هغے په وجه انسان د معلومو خبرونه غافله كړي۔ نو پدے كښ د رسول الله ﷺ كمال حضور هم وو او د هغه د عذابونو نه يره وه۔

**۲– دويم جواب** دا دے چه راوي په طريقه د تمثيل باندے دا الفاظ استعمال كړيدي يعني رسول الله ﷺ پدے موقع كښ داسے گبراؤ او خوف زده شو لكه څنگه چه يو شخص د قيامت په راتلو باندے خوف زده كيږي او د هغه دا خوف پدے وجه نۀ وو چه هغه گنے دا معلومه كړه چه قيامت شروع شويدے۔ ليكن دا جواب ضعيف دے ځكه چه راوي جزم كوي نو معلوميږي چه دا د ځان نه خبره نۀ ده بلكه دا به ئے ضرور د پيغمبر نه اوريدلي وي۔

**۳– جواب** : شايد چه نبي عليه السلام پدے وجه خوف زده شوے وي چه كيدے شي بعض مقدمات د قيامت شروع شوي وي او دا كسوف هم د قيامت د بعض علاماتو دپاره يوه مقدمه وي لكه نمر د مغرب نه راختلو په شان۔

**۴– جواب** : نبي عليه السلام د راتلونكو كارونو واقع كيدل داسے اوگرځول لكه چه واقع شوي وي دا ددے دپاره چه خلقو ته د كسوف د حالت تعظيم ښكاره كړي او امت ته تنبيه وركړي چه كله دا واقع كيږي نو ددينه به يره كوي خاصكر په هغه زمانه كښ چه كله د قيامت علامات شروع شي نو دوي به د الله ذكر، مانځه او صدقے ته ورمنډه وهي دے دپاره چه مصيبتونه ترے لرې شي۔ ورنه نبي عليه السلام په زمانه كښ قيامت نۀ راتلو نو پدے كښ امت ته سبق دے چه دوي له پداسے موقعو كښ د الله نه ډير يريدل پكار دي۔

**هٰذِهِ الْآيَاتُ** : مطلب دا دے چه نمر، سپوږمۍ، زلزلے، طوفان، تيزے هواگانے، بريښناگانے او تندرونه دا ټول د الله د قدرت نخے دي پدے باندے الله تعالىٰ خپل بندگان يروي چه گناهونه پريدي او د الله هغه طاعت ته واپس شي كوم كښ چه د دوي كاميابي ده۔ دارنگه چه دوي ته قيامت ياد شي ځكه چه دا د قيامت يوه نمونه ده۔ الله فرمائي : ﴿فَإِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ وَخَسَفَ الْقَمَرُ﴾ (يعني د قيامت په ورځ به سپوږمۍ توريږي) ددے وجه نه نبي عليه السلام په جلتۍ او په گبراهټ سره

پاخیدلی دی۔ او پدې کښې اشاره ده چه د الله قدرت په دې کائناتو باندې نافذ دې او هغه پدې قادر دې چه پدې مجرمینو بندګانو باندې ددې کائناتو د طرفنه عذاب نازل کړي نو هر عقل مند له پکار دي چه دداسې نخو نه عبرت واخلي او خپل رخ او لاره سیده کړي او د موجوده او پخوانو ګناهونو نه توبه تائب شي، او کله چه انسان ددې نه عبرت وانخلي نو هغه ددې نخو د واقع کیدو په حکمت باندې پو هه نشو۔

۱٤۸٥ (٦) – وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: اِنْكَسَفَتِ الشَّمْسُ فِيْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ يَوْمَ مَاتَ اِبْرَاهِيْمُ بْنُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ، فَصَلّٰى بِالنَّاسِ سِتَّ رَكَعَاتٍ بِاَرْبَعِ سَجَدَاتٍ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

**ترجمه** : او جابر ؓ فرمائی: د رسول الله ﷺ په زمانه کښې نمر تور شو په هغهٔ ورځ چه د رسول الله ﷺ ځوی ابراهیم وفات شوې وو نو خلقو ته ئې شپږ رکوع او څلور سجدو سره مونځ اوکړو۔ (مسلم)

**تعارف د ابراهیم بن رسول الله ﷺ** : ابراهیم د ماریه قبطیه نه پیدا وو چه د رسول الله ﷺ وینځه وه او د مصر بادشاه مقوقس ورته راهدیه کړې وه دا په اتم کال د هجرت د ذی الحجې په میاشت کښې پیدا شوې وو او د اتلسو میاشتو په عمر وفات شوې وو او په بقیع کښې دفن شو۔ نبی ﷺ ددهٔ په باره کښې وئیلی وو: ددهٔ دپاره په جنت کښې مور ده چه ددهٔ رضاعت (تئ ورکول) پوره کوی۔ او جمهور اهل سیرت وائی: دا په مدینه کښې په لسم د هجرت وفات شوې۔

علامه محمود باشا الفلکی نه شیخ مبارکفوریؒ په مرعاة المفاتیح کښې نقل کوی چه په مدینه کښې کسوف الشمس په لسم کال د هجرت راغلې وو چه په دغه ورځ ابراهیم ؓ وفات شوې وو۔ او دا یوم الاثنین ورځ او (۲۹) شوال سحر اته بجې او (۳۰) منټه دپاسه وخت وو۔ موافق د (۲۷) جنوری سنه (٦۳۲) میلادی کال وو۔

**تشریح** : ددې کیفیت بیان دا دې چه دوه رکعاته ئې اوکړل او په هر رکعت کښې ئې درې سجدې اوکړې۔ دا روایت د جابرؓ نه عطاءؒ نقل کړیدې صرف په مسلم کښې راغلې دې۔ بخاری نهٔ دې راوړې او ابو الزبیر د جابرؓ نه همدا روایت نقل کړې چه په هغې کښې دوه رکوع په هر رکعت کښې ذکر دی او هغه روایت زیات راجح دې ځکه چه بخاری او مسلم دواړو راوړیدې او دغه شان نورو راویانو هم ددې موافقت کړیدې لکه روایت د عائشه، ابن عباس، ابن عمر رضی الله عنهم کښې هم دوه رکوع په هر رکعت کښې ذکردی۔ لهذا هغه روایت زیات اصح دې نو په هغې به عمل وی ځکه واقعه یوه ده نو په مختلف اوقاتو باندې هم نشی حمل کولې۔

١٤٨٦ (٧) – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: صَلّٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ حِيْنَ كُسِفَتِ الشَّمْسُ ثَمَانِ رَكْعَاتٍ فِيْ أَرْبَعِ سَجْدَاتٍ. ٨– وَعَنْ عَلِيٍّ مِثْلُ ذٰلِكَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

**ترجمه** : او ابن عباس ﷺ فرمائي: كله چه نمرتورشو نو رسول الله ﷺ (خلقو ته) اته ركوع او څلور سجدو سره مونځ اوكړو (يعني په هر ركعت كښې ئې څلور څلور ركوع او دوه دوه سجدے اُوكړے)". او د على رضى الله عنه نه هم دغه شان منقول دى.

**تشريح** : پدے روايت كښې څلور ركوع ګانے راغلے په يو ركعت كښې دا اګركه مسلم روايت كړے دے ليكن شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله فرمائي : حقه دا ده چه دا روايات شاذ دى او علماؤ په امام مسلم باندے پدے ځائے كښې مواخذه كړيده چه هغه داسے شاذ روايات راوړيدى. او ددے خبرے تفصيل په مرعاة المفاتيح (١٥٤/٥) كښې اوګوره.

---

١٤٨٧ (٩) – وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ، قَالَ: كُنْتُ أَرْتَمِيْ بِأَسْهُمٍ لِيْ بِالْمَدِيْنَةِ فِيْ حَيَاةِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ، إِذْ كُسِفَتِ الشَّمْسُ، فَنَبَذْتُهَا، فَقُلْتُ: وَاللهِ لَأَنْظُرَنَّ إِلٰى مَا حَدَثَ لِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ فِيْ كُسُوْفِ الشَّمْسِ. قَالَ: فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ قَائِمٌ فِي الصَّلَاةِ رَافِعٌ يَدَيْهِ، فَجَعَلَ يُسَبِّحُ وَيُهَلِّلُ وَيُكَبِّرُ وَيَحْمَدُ وَيَدْعُوْ حَتّٰى حُسِرَ عَنْهَا، فَلَمَّا حُسِرَ عَنْهَا قَرَأَ سُوْرَتَيْنِ وَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ فِيْ صَحِيْحِهٖ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ، وَكَذَا فِيْ «شَرْحِ السُّنَّةِ» عَنْهُ. وَفِيْ نُسَخِ «الْمَصَابِيْحِ» عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ.

ترجمه : او عبد الرحمن بن سمره ﷺ فرمائي: ما د رسول الله ﷺ د ژوند په زمانه كښې په مدينه كښې ځانله غشى ويشتل (تير اندازى كښې مشغول وم) چه په هغه وخت كښې نمرتور شو نو ما هغه غشى ګوزار كړل او (زړه كښې) مے اووئيل، قسم په الله ! زه به ضرور ګورم هغه (حالت) ته چه د نمر په توريدو كښې د رسول الله ﷺ دپاره پيدا كيږى، (يعني دا به ګورم چه رسول الله ﷺ به په دے وخت څه كوى؟) عبد الرحمن فرمائي: زه رسول الله ﷺ ته راغلم نو (اومے ليدل چه) هغه په مانځه ولاړ وو، دواړه لاسونه ئے پورته كړى وو، نو هغه شروع وو چه سبحان الله، لا اله الا الله، الله اكبر، الحمد لله ئے وئيله او دعاء ئے غوختله، تردے چه نمر نه تور والے جدا شو، كله چه د نمر نه تيارهٔ لرے شوه نو نبى ﷺ دوه سورتونه اولوستل او دوه ركعاته مونځ

ئے ادا کړو"۔ دا حدیث امام مسلمؒ په خپل ((صحیح مسلم)) کښې د عبد الرحمن بن سمرةؓ نه نقل کړیدے، او دارنګه په شرح السنه کښې هم (دا روایت) دغه شان (د عبد الرحمن بن سمره نه) منقول دے، او د مصابیح په منسخو کښې دا روایت د جابر بن سمرةؓ نه نقل شوے دے۔

**تشریح** : دا حدیث دلیل دے چه په مانځه کښې په قنوت کښې رفع الیدین ثابت دی، دارنګه رد دے په هغه چا چه وائی د مانځه په دعاګانو کښې به لاس نۀ پورته کوی (نوویؒ)

**فَلَمَّا حُسِرَ عَنْهَا** : ای کُشِفَ۔ حسر د مجهول صیغه ده یعنی هرکله چه نمر نه کسوف زائل شو نو بیا ئے دوه رکعاته اوکړل۔ پدے باندے **اشکال** دا دے چه دا دوه رکعاته ئے د کسوف نه روستو کړیدی او حال دا چه دا دوه رکعاته د کسوف د زائله کیدو دپاره کیږی۔ دارنګه دا د عامو روایاتو هم خلاف معلومیږی چه هغے کښې دا رکعتین په حالت د کسوف کښې شویدی، نۀ پس د کسوف نه۔

ددے اشکال جواب علماؤ دا ورکړیدے چه پدے کښې راوی اختصار کړیدے او اصل کښې خبره داسې وه چه نبی ﷺ یو رکعت اوکړو نو په هغه وخت کښې کسوف زائل شو بیا ئے دویم رکعت اوکړو او کسوف زائل شوے وو نو راوی دواړه حالتونه جمع کړل او داسې ئے اووئیل چه نبی ﷺ تکبیر او تهلیل او تسبیح او دوه سورتونه اولوستل او مجموعه ئے دوه رکعاته اوکړل او په خبره کښې کله نا کله داسې اختصار کیږی دا څه بعیده نۀ ده۔ او همدا راجحه خبره ده۔ او همدا خبره په دویم روایت د مسلم کښې راغلے ده۔ (نوویؒ، طیبیؒ) بعضو وئیلی دی (علامه مَازِرِیؒ) چه دا روستو ئے چه کوم دوه رکعاته کړیدی نو دا صلاة الکسوف نۀ دے بلکه دا د کسوف زائله کیدو نه روستو دوه رکعاته شکرانه ده۔ ځکه صلاة الکسوف د توروالی د زائله کیدو نه روستو نۀ کیږی۔ او ددے معنی ئے داسې کړیده چه دلته ((صلی رکعتین)) نه مراد دا دے چه په هر رکعت کښې ئے دوه قیامه او دوه رکوع ګانې اُوکړے۔ لیکن اول مطلب واضح دے۔

ددے روایت نه احنافو استدلال کوی چه دلته صرف دوه رکعاته ذکر دی او دوه رکوع ګانې په هر رکعت کښې نۀ دی ذکر۔ لیکن جواب دا دے چه پدے روایت کښې اختصار شویدے، یا عدم ذکر دلالت په عدم وجود باندے دلالت نۀ کوی بلکه د صحیحینو په نورو روایاتو کښې هغه ذکر دی لهٰذا هیڅ اشکال نشته۔ او په روایت د صحیحینو کښې دوه رکوع والا ذکر دی او پدے کښې نۀ دی ذکر او هغه صحیح او مشهور او اکثر دی۔ لهٰذا عمل به په هغے باندے وی او دا روایت محتمل دے۔ کما عرفت۔

**وَفِیْ نُسَخِ الْمَصَابِیْحِ** : د مصابیح په بعضے نسخو کښې دا روایت د جابر بن سمره نه نقل شویدے لیکن دا د بعض ناسخینو سهوه او خطائی ده ځکه چه همدا روایت په شرح السنه کښې

مصنف د مصابیح په روایت د عبد الرحمن بن سمره نقل کړیدے۔

---

۱۴۸۸ (۱۰) - وَعَنْ اَسْمَاءَ بِنْتِ اَبِیْ بَکْرٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَتْ: لَقَدْ اَمَرَ النَّبِیُّ ﷺ بِالْعَتَاقَةِ فِیْ کُسُوْفِ الشَّمْسِ. رَوَاهُ الْبُخَارِیُّ.

**ترجمه** : او اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ د نمر د توریدو (په وخت) د غلامانو په آزادولو حکم فرمایلے دے۔ (بخاریؒ)۔

**تشریح** : دے حدیث کښې د کسوف په وخت د مریانو د آزادولو حکم ئے اوکړو ځکه پدے سره د الله غضب په آرام کیږي او دا یوه اعلیٰ نوعه د صدقې ده، انسان پرے د اُور نه آزادیږي او کسوف هم د الله تعالیٰ د بندګانو د یرولو دپاره یوه نخه رالیږي۔ او په صدقې سره عذابونه دفع کیږي۔

او دا امر د استحباب دپاره دے په اجماع د علماؤ سره او د وجوب دپاره نهٔ دے۔

## الفصل الثانی

۱۴۸۹ (۱۱) - عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، قَالَ: صَلّٰى بِنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ فِیْ کُسُوْفٍ لَا نَسْمَعُ لَهٗ صَوْتًا، رَوَاهُ التِّرْمِذِیُّ، وَاَبُوْدَاوٗدَ، وَالنَّسَائِیُّ، وَابْنُ مَاجَه.

---

**ترجمه** : سمره بن جندب ؓ فرمائی: (یوه ورځ) مونږ ته رسول الله ﷺ (د نمر) په توریدو کښې مونځ اوکړو چه مونږ د هغهٔ آواز (په قراءت وئیلو) نهٔ آوریدو۔ (ترمذیؒ، ابوداوؒد، نسائیؒ، ابن ماجهؒ)۔

**تشریح** : دا حدیث د هغه علماؤ دلیل دے چه وائی په صلاة الکسوف کښې به جهر نشی کولے لیکن جواب دا دے چه یو خو دا روایت ضعیف دے۔ دویم دا چه جابر بن سمره ؓ د لرے والی او د صحابه کرامو ؓ د کثرت په وجه کیدے شی نهٔ وی اوریدلے او نورو صحابه کرامو (عائشې ، ابو موسیٰ وغیره) اوریدلے دے لهذا عمل به په قول د مثبت وی نهٔ په قول د نافی۔ ځکه د مثبت سره زیات علم وی چه هغه د نافی سره نهٔ وی۔ او باقی جوابونه مخکښې تیر شو۔

**درجة الحدیث** : اسناده ضعیف: اخرجه احمد فی المسند (١٦/٥) وابوداود (١١٨٤) والترمذی (٥٦٢) والنسائی (١٤٠/٣، ١٤١) وابن ماجه (١٢٦٤) واخرجه ابن حبان فی صحیحه ذکره الهیثمی فی موارد الظمآن (٥٩٧) والحاکم فی المستدرک (٣٢٩/١-٣٣١) وفیه علتان : الاولیٰ : ثعلبة بن عباد

وهو مجهول كما قال ابن حزم وغيره واشار الحافظ الى انه لين الحديث والثانية : مخالفته للحديث الصحيح الصريح في جهره ﷺ بالقراءة)

۱٤٩٠ (۱۲) - وَعَنْ عِكْرِمَةَ، قَالَ: قِيْلَ لِابْنِ عَبَّاسٍ: مَاتَتْ فُلَانَةُ، بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ ﷺ، فَخَرَّ سَاجِدًا، فَقِيْلَ لَهُ: تَسْجُدُ فِيْ هٰذِهِ السَّاعَةِ؟ فَقَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِذَا رَأَيْتُمْ آيَةً فَاسْجُدُوْا»، وَأَيُّ آيَةٍ أَعْظَمُ مِنْ ذَهَابِ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ ﷺ؟!. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** : او عكرمه رحمه الله فرمائي: عبد الله بن عباسؓ ته اووئيل شو: د نبي ﷺ د ازواج مطهراتو نه فلانئ بي بي (صفيهؓ) وفات شوه، نو هغهٔ په سجده پريوتو، هغهٔ ته اووئيلے شو : آيا تهٔ پدے وخت سجده کوے (دا ولے) ؟۔ هغهٔ اوفرمايل : د رسول الله ﷺ ارشاد دے چه «کله تاسو يوه نخه (د الله د نخو نه) اووينئ نو سجده کوئ» او د نبي ﷺ د ازواج مطهراتو د دائمي جدائي نه لويه نخه بله کومه کيدے شي؟۔ (ترمذیؒ، ابوداودؒ)

**تشريح** : په روايت د بيهقي (۳/۳٤۳) کښې دي عکرمهؒ وائي : په مدينه کښې مونږ آواز واوريدو، ماته ابن عباسؓ اوفرمايل : ورشه اوګوره دا آواز څنګه دے؟ دا وائي : زهٔ لاړم نو صفيه بنت حيي رضي الله عنها د نبي ﷺ بي بي مطهره مے اوموندله چه وفات شوے وه۔

**هٰذِهِ السَّاعَةِ** : په روايت د بيهقي کښې دي : عکرمهؒ وائي : زهٔ ابن عباسؓ ته راغلم نو هغه مے په سجده اوموندلو چه لا نمر نهٔ وو راختلے نو ما ورته اوفرمايل : سبحان الله ته (پدے وخت کښې) سجده کوے او لا نمر نهٔ دے راختلے الخ او په تهذيب الکمال کښې دي : زهٔ ابن عباسؓ ته راغلم خبر مے ورکړو نو هغه سجده اوکړه ما ورته اووئيل : آيا تهٔ سجده کوے او حال دا چه لا نمر نهٔ دے راختلے۔ الخ۔ د ابن عباس ﷺ د استدلال مطلب دا دے چه نبي ﷺ عام الفاظ وئيلي دي (إِذَا رَأَيْتُمْ آيَةً، فَاسْجُدُوْا)(کله چه يوه نخه د قدرت د الله اووينئ نو سجده کوئ) نو دا عام دے هر وخت ته که مکروه وخت وي او که غير مکروه وي۔ او دا سجده سببي ده او سجده سببي او دغه شان صلاة سببي په مکروه اوقاتو کښې جائز دے۔ دلته عکرمهؒ دا ګمان اوکړو چه په اوقات مکروهه کښې خو مونځ نهٔ دے جائز نو سجدهٔ ئے هم پدے قياس کړه چه سجده به هم په دے وخت کښې جائز نهٔ وي۔

○ دويم مطلب دا دے چه د ابن عباسؓ نه تپوس اوشو چه په دے وخت کښې بلا وجه او بلا سبب ولے سجده کوے حال دا چه د هرے سجدے کولو دپاره خو يو سبب وي؟ نو هغوی جواب ورکړو

چه د نبی ﷺ ارشاد دے چه کله تاسو د مصیبتونو او پریشانیانو په راتلو کښې د الله د یرونکو کرشمو نه یوه کرشمه اووینئ نو الله ته فوراً په سجده پریوزئ او ظاهره ده چه ددے نه لوئی مصیبت کوم یو کیدے شی چه د الله د رسول د ازواج مطهراتو نه یوه بی بی د دنیا نه رخصت شی چه هغه د امت د خیر سبب دی۔ لکه یو حدیث کښې دی (أَصْحَابِيْ أَمَنَةٌ لِأُمَّتِيْ) (ابن ابی شیبة ٦/٤٠٤ اوسط الطبرانی (٧/٢٦٨) (زما صحابه د خلقو دپاره د امن سبب دے) نو دا دیر لوئی مصیبت دے چه د خیر یو سبب د دنیا نه لاړ شی، ځکه زهٔ سجده کوم۔

بیا (فاسجدوا) دا امر عام دے که د آیت نه خسوف الشمس والقمر واخستے شی نو بیا د سجدے نه مراد مونځ دے او که د آیة نه عامه یرونکے نخه مراد شی لکه زلزله، تیزه هوا، مصیبت وغیره نو بیا د سجدے نه مراد صرف سجده کول دی۔ او دا هم جائز ده چه مونځ ترے مراد شی ځکه چه نبی ﷺ به د هرے پریشانئ په وخت کښې مونځ کولو۔ او بیهقیؒ نقل کړیدی چه عبد الله بن عباس رضی الله عنه د زلزلے په وخت په بصره کښې مونځ اوکړو۔ (۳/۳٤۳)۔

**درجة الحديث:** اسناده حسن: اخرجه ابوداود (١١٩٧) والترمذى (٣٨٩١) والبيهقى فى الكبرى (٣/٣٤٣) والبغوى فى شرح السنة (٤/٣٩٧) رقم (١١٥٦)

## الفصل الثالث

١٤٩١ (١٣) - عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: اِنْكَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ، فَصَلّٰى بِهِمْ، فَقَرَأَ بِسُوْرَةٍ مِنَ الطُّوَلِ، وَرَكَعَ خَمْسَ رَكْعَاتٍ، وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ قَامَ الثَّانِيَةَ فَقَرَأَ بِسُوْرَةٍ مِنَ الطُّوَلِ، ثُمَّ رَكَعَ خَمْسَ رَكْعَاتٍ، وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ، ثُمَّ جَلَسَ كَمَا هُوَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ يَدْعُوْ حَتّٰى انْجَلٰى كُسُوْفُهَا. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه :** ابی بن کعب رضی الله عنه فرمائی: د رسول الله ﷺ په زمانه کښې نمر تور شو نو رسول الله ﷺ خلقو ته مونځ اوکړو نو (په مانځه کښې ئے) د اوږدو سورتونو نه (یو سورت) اولوستلو، او (په یو رکعت کښې ئے) پنځه رکوع اوکړے، او دوه سجدے ئے اوکړے، بیا دویم رکعت ته پاڅیدو نو د اوږدو سورتونو نه یو سورت ئے اولوستلو، بیا ئے پنځه رکوع اوکړے، او دوه سجدے ئے اوکړے، بیا همغه شان (یعنی د مانځه په هیئت) قبلے ته مخامخ کیناستو، دعائے غوخته، تردے چه د نمر تور والے ښکاره ختم شو"۔ (ابوداودؒ)

**تشریح :** دا روایت متکلم فیه دے لهذا عمل به په اوله طریقه وی چه په هر رکعت کښې دوه رکوع ګانے کول دی۔ نو دا روایت د هغه روایاتو مقابله نشی کولے چه په هغے کښې دوه رکوع

کانے ذکر دی۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف: اخرجه ابوداود (١١٨٢) فيه ابوجعفر الرازي وهو ضعيف سيء الحفظ۔

**١٤٩٢ (١٤) - وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ، قَالَ: كُسِفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَجَعَلَ يُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ وَيَسْأَلُ عَنْهَا، حَتّٰى انْجَلَتِ الشَّمْسُ، رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ. وَفِيْ رِوَايَةِ النَّسَائِيِّ: اِنَّ النَّبِيَّ ﷺ صَلّٰى حِيْنَ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ مِثْلَ صَلَاتِنَا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ. وَلَهٗ فِيْ اُخْرٰى: اِنَّ النَّبِيَّ ﷺ خَرَجَ يَوْمًا مُسْتَعْجِلًا اِلَى الْمَسْجِدِ، وَقَدِ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ، فَصَلّٰى حَتَّى انْجَلَتْ، ثُمَّ قَالَ: اِنَّ اَهْلَ الْجَاهِلِيَّةِ كَانُوْا يَقُوْلُوْنَ: اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَنْخَسِفَانِ اِلَّا لِمَوْتِ عَظِيْمٍ مِنْ عُظَمَاءِ اَهْلِ الْاَرْضِ، وَاِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَنْخَسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهٖ، وَلٰكِنَّهُمَا خَلِيْقَتَانِ مِنْ خَلْقِهٖ، يُحْدِثُ اللّٰهُ فِيْ خَلْقِهٖ مَا شَاءَ، فَاَيُّهُمَا انْخَسَفَ فَصَلُّوْا حَتّٰى يَنْجَلِيَ، اَوْ يُحْدِثَ اللّٰهُ اَمْرًا.**

---

**ترجمه** : او نعمان بن بشیر ﷺ فرمائی: د رسول الله ﷺ په زمانه کښې نمر تور شو، نو رسول الله ﷺ شروع شو چه دوه دوه رکعاته ئے کول او د (مانځه نه روستو به ئے) د نمر په باره کښې تپوس کولو، (چه توروالے ختم شوے دے او که نهٔ؟) تردے چه نمر روښانه شو"۔ (ابوداودؒ) او په روایت د نسائیؒ کښې دی: چه کوم وخت نمر تور شو نو نبی ﷺ زمونږ د مونځ په شان مونځ اوکړو (یعنی فقط دعاء نهٔ وه بلکه) رکوع او سجده ئے کوله۔ د نسائی په یو بل روایت کښې دی: "یوه ورځ چه نمر تور شوے وو نبی ﷺ مسجد طرف ته په جلتئ رابهر شو، او مونځ ئے اوکړو تردے چه نمر روښانه شو، بیا ئے اوفرمایل: ((اهل جاهلیت به وئیل نمر او سپوږمۍ پدے وجه تورېږی چه د زمکے والو د عظیم شخصیاتو نه یو عظیم شخصیت وفات شی (او حال دا چه دا خیال فاسد دے بلکه) یقیناً نمر او سپوږمۍ نهٔ تورېږی نهٔ د چا د مرګ په وجه او نهٔ د چا د ژوند په وجه بلکه دا د الله د مخلوق نه دوه مخلوقه دی، الله تعالیٰ په خپل مخلوق کښې هغهٔ څه راپیدا کوی چه څه ئے خوښه شی، نو هریو چه تور شو نو تاسو مونځ کوئ تردے چه روښانه شی یا الله بل څهٔ راپیدا کړی))۔ (نسائیؒ)

**تشریح** : دا حدیث د ټولو مخکښو طریقو مخالف دے او ضعیف هم دے لهذا عمل به پرے نشی کولے یا دا چه د رکعتین رکعتین نه مراد په هر رکعت کښې دوه دوه رکوع کانے دی لهذا دا

بیا راجع دے اول کیفیت ته کوم چه په بخاری او مسلم وغیره کښې راغلې دے۔ او د مثل صلاتنا مطلب به دا وی چه دوه رکعاته ئے کړیدی په دوه رکوع گانو او دوه سجدو سره۔ یا پدے کښې مقصد دا دے چه د جنازے د مانځه په شان نه دے بلکه د عام مانځه په شان دے چه دوه رکعاته دی او رکوع او سجده به ئے هم پکښې کوله نو پدے کښې بیا عدد د رکوع او سجدے نهٔ دے ذکر بلکه هغهٔ د صحیح روایاتو نه معلوم دے لکه اول کیفیت کښې ذکر شو۔

**درجة الحدیث:** اسناده ضعیف : اخرجه ابوداود (۱۱۹۳) والنسائی (۲۱۹/۱) (۲۲۱) وفی اسناده انقطاع۔

---

**تتمة البحث** : که صلاة الکسوف اوکړے شي او لا تراوُسه کسوف زائل شوے نهٔ وی نو تکرار به نهٔ کوی بلکه په ذکر او دعاگانو کښې به مشغول شي تردے چه زائل شي ځکه چه نبی ﷺ په دوه رکعاتو باندے زیادت نهٔ دے کړے۔ ○ او که په مینځ د مانځه کښې کسوف زائل شي که په هر ځائے کښې وی نو مونځ به هغه شان په دوه رکوع گانو سره اداء کوی خو تخفیف به پکښې اوکړی۔ ۲- که صلاة الکسوف او بل فرضی مونځ حاضر شي نو فرضی مونځ به مخکښې اوکړی بیا به صلاة الکسوف کوی۔ ○ او که جنازه او صلاة الکسوف حاضر شي نو بیا به جنازه مخکښې کوی ځکه چه د مړی زر مقبرے ته رسولو باندے امر راغلې دے۔

○○○○○○○○

# ٥١- باب فی سجود الشکر

## د شکر د سجدے بیان

سجدة الشکر (یعنی د نوی نعمت د حاصلیدو په وخت کښ د الله د شکریه په طور یوه سجده کول) د امام شافعیؒ، احمدؒ او عامو محدثینو په نزد یوه سجده ده او دا مستحب او سنت عمل دے او دا په مقابله د هغه نعمت کښ کیږی چه متجدد (نوے) وی.

دا خبره مخکښ په اقسام السجده کښ تیره شویده چه سجده د شکر په نزد امام شافعیؒ، احمدؒ او محمدؒ باندے سنت عمل دے او پدے باره کښ ډیر احادیث او آثار موجود دی. تقریباً دولس احادیث پکښ راغلی دی. امام ابوحنیفةؒ او مالكؒ فرمائی : دا سنت نهٔ ده بلکه مکروه ده. دوی وائی : مستقله سجده نشته بلکه کومو آثارو او احادیثو کښ چه سجده ذکر ده د هغے نه مراد د مانځه سجده ده. او صاحب د مرقاة المفاتیح (ملا علی القاری) ورله وجه دا وئیلے ده چه امام صاحب عالِم بالله وو ځکه ئے دا سجده نهٔ ده منلے. وجه دا ده چه د الله نعمتونه ډیر دی نو په کوم کوم باندے به سجده کوے بیا خو به همیشه په سجده پروت ئے. لیکن دا خبره صحیح نهٔ ده ځکه چه سجده په نعمتِ متجدده باندے کولے شی (چه نوے نعمت وی) نهٔ په نعمت مستمره باندے. انتهیٰ.لکه مثلاً یو انسان ته د بچی یا د وادهٔ زیرے ورکړے شی یا د مسلمانانو د فتح او نصرت زیرے ورکړے شی نو انسان له مستحب دی چه د الله د شکرے دپاره سجده باندے پریوزی. او د الله صفتونه اُووائی او په دغه نعمت باندے د الله شکریه ادا کړی. پدے کښ کوم خاص ذکر نهٔ دے نقل.

او جواب د دغه قیاس نه دا دے چه د الله نعمتونه خو ډیر دی لیکن سجده د شکر په هر نعمت باندے نهٔ وی بلکه په نوی نعمت باندے کیږی. خو ظاهره دا ده چه امام ابوحنیفه او مالك رحمهما الله دا سجده ځکه نهٔ ده منلے چه هغوی ته پدے باره کښ احادیث نهٔ دی رسیدلی، لهذا که څوك د امام ابوحنیفةؒ او امام مالكؒ مقلدین وی نو ددے خیر نه به محرومیږی او په دولس احادیث او آثارو باندے به عمل ترے پاتے کیږی، دا یو نقصان د تقلید هم د قباحت د تقلید دپاره کافی دے.

وَهٰذَا الْبَابُ خَالٍ عَنِ الْفَصْلِ الْاَوَّلِ وَالثَّالِثِ :

( او دا باب د اول او دريم فصل نه خالي دے)

دا خبره خطاء ده ځکه چه د صحيحينو په روايت کښې سجده د شکر موجوده ده کعب بن مالك ﷺ باندے چه کله د توبے زيرے اوشو نو هغه سجده د شکر اُوکره۔

## الفصل الثاني

١٤٩٣ (١) - عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ، قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اِذَا جَاءَهُ اَمْرٌ سُرُوْرًا. اَوْ يُسَرُّ بِهِ - خَرَّ سَاجِدًا شَاكِرًا لِلّٰهِ تَعَالٰى. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ.

---

**ترجمه** : ابوبکره ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ ته به چه کله د خوشحالئ يو کار راغلو۔ يا ئے داسے او فرمايل : (داسے کار) "چه په هغے به خوشحاليدو" نو د الله د شکر اداء کولو دپاره به په سجده پريوتو"۔ (ابوداوّد، ترمذيؒ) او امام ترمذيؒ فرمائي: دا حديث حسن غريب دے۔

**تشريح** : دا حديث واضح دليل دے چه نبي ﷺ ته به کله د خوشحالئ يو خبر راغلو نو هغه به سجده د شکر کوله۔

او د «جَاءَهُ» نه معلومه شوه چه دا سجده به د نوى نعمت په موقع باندے کولے شي ځکه کوم نعمتونه چه انسان سره هميشه دى لکه ژوند، بدن، روح وغيره نو ددے په باره کښې (جَاءَ او اَتٰى) لفظ نهٔ استعماليږي۔

**سُرُوْرًا** : يا مفعول دے دپاره د فعل مقدر اى يُوْجِبُ سُرُوْرًا۔ يعني داسے يو کار چه خوشحالي به ئے ثابتوله۔ يا په معنى د اسم فاعل (سارًا) دے۔يعني خوشحالونکے کار۔ يا منصوب بنزع الخافض دے اى لاجل حصول السرور۔ يعني د خوشحالئ د حاصليدو په وجه به ئے سجده کوله۔

**يُسَرُّ بِهِ** : دا صيغه د مضارع مجهول ده او (او) لفظ د راوى شك دے چه کوم لفظ ئے وئيلے دے او د ادراويانو احتياط وى۔

بيا دا سجده د تلاوت واجب نهٔ ده بلکه سنت عمل دے ځکه چه امر پرے نهٔ دے راغلے۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : اخرجه ابوداود (٢٧٧٤) والترمذى (١٥٧٨) وابن ماجه (١٣٩٤) والدارقطنى فى السنن (١/٤١٠رقم ٢) والحاكم (١/٢٧٦) والبيهقى فى الكبرىٰ (٢/٣٧٠) وللحديث شواهد من حديث عبد الرحمن بن عوف عند احمد ومن حديث سعد بن ابى وقاص عند ابى داود، وفى الباب عن جابر، وابن عمر وانس وَسَجَدَ اَبُوْبَكْرٍ لَمَّا قُتِلَ مُسَيْلَمَةُ وَكَذٰلِكَ كَعْبٌ لَمَّا بُشِّرَ بِالتَّوْبَةِ (توضيح الاحکام ٢/١٧٠)

١٤٩٤ (٢) — وَعَنْ اَبِيْ جَعْفَرٍ: اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ رَاٰى رَجُلًا مِنَ النُّغَاشِيِّيْنَ، فَخَرَّ سَاجِدًا. رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ مُرْسَلًا، وَفِيْ «شَرْحِ السُّنَّةِ» لَفْظُ «الْمَصَابِيْحِ».

---

**ترجمه** : او ابوجعفر رحمه الله فرمائي: "نبي ﷺ (يوه ورځ) يو تيټ قد والا (لندے) سړے اوليدو نو په سجده باندے پريوتو". (دارقطنيؒ دا روايت په طريقه د ارسال نقل کړيدے او په شرح السنه کښې د مصابيح الفاظ دي).

**تشريح : نُغَاشِيِّيْنَ** : جمع د نغاش او نغاشي ده دا هغه چا ته وائي چه قد ئے ډير لنډ وي، په نهايه کښې ليکي : ضعيف الحركة او ناقص الخلقت انسان ته وائي. دا روايت دليل دے چه په عافيت او روغ صحت باندے هم سجده د شکر مشروع ده او دا روايت اګرکه ضعيف دے ليکن د عموم د نورو رواياتو نه معلوميږي چه په هر نعمت باندے چه انسان ته د هغے سوچ اوشي سجده د شکر پکار ده. علامه مظهرؒ وائي : چه په عافيت باندے کله سجده کوي نو د هغه مصيبت زده شخص نه به ئے پټوي او چه کله فاسق اُووينی نو هغه ته دے راښکاره کړي چه هغه توبه اوباسي او متوجه شي.

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف جداً : اخرجه ابن ابى شيبة (٤٨٢/٢) فى المصنف والدارقطنى (٤١٠/١ رقم ١) وهو مرسل واخرجه ابن عدى فى الكامل (٢٦١٢/٧) ضمن ترجمة يوسف بن محمد بن المنكدر ويوسف هذا متروك وقال الحافظ ابن حجر فى تلخيص الحبير (١١/٢ رقم ٤٩٤) هذا الحديث ذكره الشافعى فى المختصر بلفظ : فسجد شكراً لله ولم يذكر اسناده وكذا صنع الحاكم فى المستدرك واستشهد به على حديث ابى بكرة واسنده الدارقطنى والبيهقى من حديث جابر الجعفى عن ابى جعفر محمد بن على مرسلاً وزاد ان اسمه زنيم وكذا هو فى مصنف ابن ابى شيبة من هذا الوجه ووصله ابن حبان فى الضعفاء) وهو عند الحاكم فى المستدرك (٢٧٦/١)

---

١٤٩٥ (٣) — وَعَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ، قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ مِنْ مَكَّةَ نُرِيْدُ الْمَدِيْنَةَ، فَلَمَّا كُنَّا قَرِيْبًا مِنْ عَزْوَزَاءَ، نَزَلَ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ فَدَعَا اللّٰهَ سَاعَةً، ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا، فَمَكَثَ طَوِيْلًا، ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ، ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا، فَمَكَثَ طَوِيْلًا، ثُمَّ قَامَ فَرَفَعَ يَدَيْهِ سَاعَةً، ثُمَّ خَرَّ سَاجِدًا، قَالَ: اِنِّيْ سَاَلْتُ رَبِّيْ، وَشَفَعْتُ لِاُمَّتِيْ، فَاَعْطَانِيْ ثُلُثَ اُمَّتِيْ، فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّيْ شُكْرًا، ثُمَّ رَفَعْتُ رَاْسِيْ فَسَاَلْتُ رَبِّيْ لِاُمَّتِيْ، فَاَعْطَانِيْ ثُلُثَ اُمَّتِيْ، فَخَرَرْتُ سَاجِدًا

لِرَبِّيْ شُكْرًا، ثُمَّ رَفَعْتُ رَأْسِيْ، فَسَأَلْتُ رَبِّيْ لِأُمَّتِيْ، فَأَعْطَانِي الثُّلُثَ الْآخَرَ، فَخَرَرْتُ سَاجِدًا لِرَبِّيْ شُكْرًا. رَوَاهُ اَحْمَدُ، وَاَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او سعد بن ابی وقاص ﷺ فرمائي: مونږ د رسول الله ﷺ سره د مکے نه اُووتو چه مدینے ته زمونږ اراده وه، هرکله چه مونږ عزوزاء (علاقے) ته نزدے شو، نو رسول الله ﷺ (د اُوښے نه) راکوز شو او لاسونه ئے پورته کړل او د الله نه ئے څه وخت پورے دعا غوختله، بیا سجدے ته پریوتو، او (سجده کښې ئے) ډیر وخت تیر کړو، بیا راپاڅیدو بیا ئے څه وخت پورے لاسونه پورته کړل، بیا سجدے ته راپریوتو، او څهٔ وخت ئے تیر کړو بیا راپاڅیدو او څه وخت پورے ئے لاسونه پورته کړل بیا سجدے ته پریوتو، (د سجدے نه روستو ئے) اوفرمایل : « ما د خپل رب نه سوال اُوکړو اُو د امت دپاره مے (د هغوی د مغفرت) سفارش اُوکړو، نو ما ته ئے د امت دریمه حصه راکړه (یعنی د دریمے حصے مغفرت ئے اُوکړو)، بیا زهٔ د خپل رب د شکر اداء کولو دپاره سجدے ته پریوتم، بیا مے سر راپورته کړو او د الله نه مے د خپل امت دپاره (د مغفرت) سوال اوکړو نو الله تعالیٰ را ته د امت دریمه حصه راکړه، بیا زهٔ د خپل رب د شکرادا کولو دپاره سجدے ته پریوتم، بیا مے سر راپورته کړو او د خپل رب نه مے د خپل دپاره (مغفرت) سوال اوکړو، نو ما ته ئے آخری دریمه حصه راکړه، نو زهٔ د خپل د شکر اداء کولو دپاره (دریم کرت) په سجده پریوتم»۔ (احمدؒ، ابوداودؒ)

**تشریح** : عزوزاء د مکے او مدینے ترمینځ یو مقام دے۔ بعض وائی : دا په جحفه علاقه کښې یوه ډیره کېږده چه د مدینے نه مکے ته لاره پدے باندے تیره شویده۔ پدے کښې عزوراء (په راء سره) هم وئیلے شی او کله الف هم حذف کوی (عَزْوَر) ورته وائی۔

**فَأَعْطَانِي الثُّلُثَ الْآخِرَ** : مطلب دا دے چه زهٔ به دوی له سفارش کوم تردے چه گناهګار د دوی به په اُور کښې نهٔ پاتے کیږی او زما شفاعت به دوی ته رسی۔ او دا مطلب نهٔ دے چه ټول امت ئے مغفور (بخلے شوے) دے ولے څکه چه کفار، مشرکین او منافقین ددے امت به همیشه په اور کښې وی، هغوی له د نبی ﷺ سفارش هم فائده نهٔ ورکوی اگرکه هغه ئے ورله کوی۔

مظهرؒ وائی : ددے مطلب دا دے چه نبی ﷺ سوال ددے دپاره اوکړو چه ددهٔ امت ته د نورو امتو په نسبت داسے خصوصیت ورکړے شی چه د دوی مخونه د گناهونو په سبب مسخ نهٔ کړی، او د کبائر الذنوب په وجه ئے همیشه اُور ته داخل نهٔ کړی، بلکه هر هغه څوك چه په اسلام باندے وفات شوے وی نو د اُور به راوزی کله چه د گناهونو نه صفا شی وغیره نور خصوصیات چه الله دے امت ته ورکړیدی۔ یا جنت ته ډیر داخلیدونکی به دا امت وی د نورو امتونو په نسبت۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف ومعناه صحيح : اخرجه ابوداود (۲۷۷۵) وهو غير موجود في

مسند احمد وانما ورد فی روایة ابی داود قوله : ذکره احمد ثلاثاً، وقال المنذری فی مختصر سنن ابی داود (٨٦/٤) (ذکره احمد یعنی ابن صالح ثلاثاً) فاوهم ذلك وانما فی المسند (٧٥/١) عن سعد قصة اخریٰ تشبه هذه ولیست هی۔ قال المنذری فی اسناده موسی بن یعقوب الزمعی، وفیه مقال انتهیٰ ولکن وثقه ابن معین وابن القطان وقال ابوداود : هو صالح، وقال ابن عدی : لا بأس به عندی ولا بروایاته) وضعفه ابن المدینی وقال النسائی : لیس بالقوی، وقال احمد لا یعجبنی حدیثه کذا فی التهذیب وقال فی التقریب : صدوق سیء الحفظ، (المرعاة ١٦٩/٥) ۔

OOOOOOOO

# ٥٢- باب الاستسقاء

## د باران اُوبه طلب كولو بيان

دلته اوس احكام د استسقاء راوړي- په يوه بله نسخه كښې باب صلاة الاستسقاء لفظ دے-
استسقاء په لغت كښې طلب د اوبو (باران) دے د بل چا نه د خپل ځان يا غير دپاره- او په شريعت كښې د الله نه طلب د باران دے په وخت د راتلو د قحط كښې په هغه طريقه چه په احاديثو كښې واضحه شويده-
په احاديثو كښې استسقاء په دريے طريقو سره راغلے ده : (۱) يو: فقط په دعا كولو سره چه مونځ ورسره نۀ وي او هر انسان ځانله ځانله دعا كوي يا په شريكه راجمع شي او د باران د غوختلو دپاره د الله نه دعا اوكړي-(او دا ادنىٰ طريقه ده)-
(۲) **دويم كيفيت** (چه د اول نه افضل دے) دا چه په خطبه د جُمعه كښې دعا اوكړے شي لكه يو صحابيؓ راغلو وے وئيل: (اُدْعُ اللهَ اَنْ يُغِيْثَنَا) (د الله نه اُوغواړه چه په مونږ باران اوكړي) نو نبي ﷺ لاس پورته كړو سره د صحابه كرامؓ نه نو باران شروع شو الخ-او امام ابو حنيفهؒ ته دا قسم احاديث رسيدلي دي ځكه ئے په استسقاء كښې مونځ نۀ دے منلے-
۳- **كيفيت** : (دا د ټولو نه افضل دے) چه د نمر خاته نه روستو دوه ركعاته اوكړي سره د خطبے نه- امام نوويؒ فرمائي : ددے استسقاء نه مخكښې صدقه وركول، روژه نيول، او الله ته توبه ويستل، هغه ته په هر خير باندے متوجه كيدل او د شرونو او ګناهونو نه ځان ساتلو سره ددے دپاره تيارى كول پكار دى-
شاه ولي الله الدهلويؒ فرمائي : رسول الله ﷺ د خپل امت دپاره ډيركرته په مختلفو طريقو استسقاء كړيده، ليكن كومه طريقه ئے چه د امت دپاره سنت مقرر كړيدے هغه دا چه خلق عيدګاه ته اوباسي، په زړو جامو، ساده، عاجزئ او تضرع سره او هلته دوه ركعاته اوكړي چه قرائت په كښې په جهر سره اوكړي بيا خطبه اووائي او قبلے ته پكښې مخكښې كړي او دعاګانے كوي لاسونه ئے پورته كړي وي او څادر پكښې واړوي- او دا ځكه چه مسلمانان په يو مكان كښې راجمع شوي وي، په يو شي كښې هغه ته په پوره همتونو او استغفار سره او په نيكيانو سره

رغبت کوی نو ددے اجتماعیت دپاره په دعا قبلیدو کښې لوئی اثر وی او مونځ د بنده الله ته د ډیر نزدے کیدو سبب دے۔ او لاسونه پورته کولو کښې د خپل تضرع تام او عظیم ابتهال (پوره او لوئی عاجزی) حکایت دے چه دا نفس رابیداروی په عاجزئ باندے او څادر اړولو کښې حکایت دے د آوریدو د حالت نه لکه څنګه چه دغه شان کاریو فریاد کونکے د بادشاهانو په حضور کښې کوی۔

**بیا په کیفیت د صلاة الاستسقاء کښې درے طریقے دی :** (۱) یو دا چه عیدګاه ته اُوځی اول دوه رکعاته مونځ اوکړی او بیا خطبه اُوکړی او خطبے نه چه فارغ شي نو قبلے ته مخ واړوی او کله چه قبلے ته مخ اړوی نو دغه وخت کښې به څادر واړوی چه ښی طرف به په ګسه اوګرځی او ګس طرف به په ښی طرف کړی او دعا به شروع کړی لاسونه به پورته کړی۔ لکه دا کیفیت د اول حدیث ددے باب نه ظاهریږی او یوه خطبه به وائی۔ پدے طریقه کښې اول مونځ دے بیا خطبه وئیل شویده۔ او دا طریقه په حدیث د ابو هریره ﷺ او حدیث د عبد الله بن زید ﷺ کښې په مسند احمد وغیره کښې راغلی دہ۔ او دارنګه دا په روایت د مسلم کښې صراحةً راغلی دی : (وَأَنَّهُ لَمَّا أَرَادَ أَنْ يَدْعُوَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ) (کله چه د دعا اراده ئے اوکړه نو قبلے ته ئے مخ کړو او څادر ئے واړولو)۔(بلوغ الامانی ٦/٢٣٤)

**۲- دویم کیفیت** دا دے چه اول خطبه اووائی پدے کښې خلقو ته وعظ اوکړی او د الله حمدونه اووائی بیا دعاګانے اوکړی لاس به اوچت کړی، بیا به خلقو ته شا واړوی او قبلے ته به مخ کړی او څادر به واړوی او دغه شان دعاګانے به کوی بیا به دوه رکعاته مونځ اوکړی۔ لکه دا په حدیث د عائشهؓ کښې په اول د فصل ثالث کښې راروان دے۔ او حسن حدیث دے۔

**۳- دریم کیفیت:** اول مونځ بیا خطبه بیا دعاء بیا څادر اړول۔ دا طریقه په حدیث د ابو هریرةؓ کښې ذکر ده، هغه فرمائی : رسول الله ﷺ یوه ورځ اووتو چه استسقاء ئے کوله نو دوه رکعاته ئے اوکړل بغیر د اذان او اقامت نه بیائے مونږ ته تقریر اوکړو نو د الله نه ئے دعا اوغوخته او مخ ئے قبلے ته واړولو چه لاسونه ئے پورته کړی وو بیائے څادر واړولو نو ښی طرف ئے په ګس کړو او ګس ئے په ښی کړو۔ (احمد، ابن ماجه، ابوعوانه، طحاوی، بیهقی ٣/٣٤٧ والحدیث صحیح لغیره قاله شعیب الارناووط)۔

نو ثابته شوه چه مونځ د خطبے نه مخکښې کول یا خطبه د مونځ نه مخکښې کول دواړه جائز دی کله په یو عمل او کله په بل باندے عمل پکار دے۔ لیکن مونځ مخکښې کول ډیر غوره دی ځکه چه دا په ډیرو او صحیح روایاتو کښې راغلی دی او د صحیحینو روایات دی۔ او دا قول د جمهورو هم دے۔

علامه شوكانيؒ په السيل الجرار (۳۲۴/۱) كښې فرمائي : د نبي ﷺ نه خطبه قبل الصلاة او بعد الصلاة دواړه نقل ده نو تول سنت شو۔

او دغه شان خپره علامه صديق حسن خان په الروضة الندية (۱۵۶/۱) كښې كړيده۔ چه دواړه سنت دي۔

طحاويؒ په معاني الاثار (۲۲۷/۱) كښې او علامه قرطبيؒ فرمائي : دا كيفيت غوره دے چه اول مونځ اُوشي بيا خطبه ځكه دا عامه طريقه ده په اختر كښې هم دغه شان عمل دے۔ (بلوغ الاماني۶/۲۳۷) او فقه اسلامي (۴۲۰/۲) كښې ليكي : دا د جمهورو مذهب دے چه خطبه د مانځه نه روستو اُوشي او د شوافعو په نيز جائز دي چه خطبه قبل الصلاة اُوشي۔ لكه دا په حديث د عبد الله بن زيد كښې راغلي دي"۔

## په استسقاء كښې تكبيرونه شته ؟

آيا په صلاة الاستسقاء كښې تكبيرونه شته د اخترونو په شان او كه نه ؟ نو پدے باره كښې درے روايات راغلي دي چه دوه ضعيف دي او يو حسن حديث دے ليكن مجمل دے ترمذي (۱۲۴/۱) او ابو داود (۱۱۶۵) وغيره راوړيدے چه لاندے راوان دے ليكن دلته مشكوٰة كښې مختصر دے چه په هغے كښې دا دي : (وَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ كَمَا كَانَ يُصَلِّيْ فِي الْعِيْدَيْنِ) (يعني د اختر په شان دوه ركعاته ئے اوكړل) نو دلته دا امكان لري چه تشبيه په جهر د قرائت كښې وي نۀ په تكبيراتو كښې۔ بلكه په روايت د طبراني كښې د انسؓ نه نقل دي : (ثُمَّ نَزَلَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ وَلَمْ يُكَبِّرْ فِيْهِمَا اِلَّا تَكْبِيْرَةً) (نصب الراية ۳۳۴/۱) واعلاء السنن (۱۸۵/۸) دا صريح دے په نفي د تكبيراتو كښې د اختر په شان بلكه صرف په ابتداء كښې ئے تكبير تحريمه وئيلے ده نه تكبيراتِ زوائد۔ او همدا قول راجح دے راجع المغني (۲۸۲/۲) او دا قول د امام مالكؒ، اوزاعيؒ، ابو ثورؒ، اسحاقؒ او يو روايت د احمدؒ دے۔

۲- او امام شافعيؒ او يو روايت د احمدؒ كښې او سعيد بن المسيبؒ، عمر بن عبد العزيزؒ او ابوبكر بن محمد بن عمرو بن حزمؒ وغيره د تكبيراتو په وئيلو قائل دي كما في المغني ليكن هغوي سره قوي دليل نشته۔

## الفصل الاول

۱۴۹۶(۱) - عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ بِالنَّاسِ اِلَى الْمُصَلّٰى يَسْتَسْقِيْ، فَصَلّٰى بِهِمْ رَكْعَتَيْنِ، جَهَرَ فِيْهِمَا بِالْقِرَاءَةِ، وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ يَدْعُوْ، وَرَفَعَ يَدَيْهِ،

وَحَوَّلَ رِدَاءَهُ حِينَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : عبد الله بن زيد ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ خلقو لره عيدگاه ته اوويستل چه استسقاء (باران ئے طلب كولو) نو هغوی ته ئے دوه رکعاته مونځ اوكړو، چه په هغے کښې ئے قراء ت په اوچت آواز اووئيلو، او قبلے ته متوجه شو دعا ئے غوختنه او لاسونه ئے پورته كړل او كله ئے چه قبلے ته مخ اړولو نو خپل څادرئے (د نيك فالئ نيولو دپاره) واړولو۔ (بخاري ومسلم)

**تشريح** : دا حديث صريح دليل دے چه په استسقاء کښې مونځ سنت عمل دے او د نبی ﷺ عملي طريقه ده۔ **آيا په استسقاء كښې مونځ شته؟** : پدے كښې د علماو اختلاف دے ۔١- امام مالك، شافعيؒ، احمدؒ، (او دا قول د ابو يوسف او محمدؒ هم دے) او جمهور علماء فرمائي : په استسقاء كښې د جماعت سره مونځ چه بهرته راووځی سنت عمل دے۔

٢- امام ابوحنيفةؒ فرمائي : په استسقاء كښې مونځ نشته، بلكه دا صرف دعاء او استغفار دے۔ نو ددے په مطلب كښې د علماو اختلاف شويدے۔ ○ بعض وائي : امام ابوحنيفة منكر دے د سنيت د صلاة الاستسقاء نه او د مشروعيت او جواز نه منكر نهٔ دے۔ لكه دا خبره د صاحب الهدايه د كلام نه معلوميږی۔ ○ بعض وائي : مقصد ئے دا دے چه د جمعے سره مونځ سنت نهٔ دے او كه يواځے يواځے ئے اوكړی نو جائز دے۔ لكه دا خبره صاحب د البدائع كړيده او د امام ابويوسف نه ئے نقل كړيده۔

○ بعض وائي : د سنت مؤكد كيدو نه منكر دے او نفس سنيت او استحباب باندے قائل دے۔ ليكن دا تول ذ احنافو گڈود والے دے په بيان د مذهب د خپل امام كښې صحيح دا ده چه امام محمد په موطأ كښې وائي : امام ابوحنيفةؒ به په استسقاء كښې مونځ نهٔ گڼړلو او زمونږ قول دا دے چه امام به خلقو ته دوه ركعاته كوی او بيا به دعاء كوی او څادر به آړوی۔ انتهیٰ تحفة الاحوذی) ليكن هر كله چه دا امام ابوحنيفةؒ مذهب د صريح نصوص او احاديثو مخالف وو نو پدے وجه د هغه مقلدينو د هغه په قول كښې بے ځايه توجيهات اوكړل، چه پدے باندے هيڅ دليل نشته، په خپل عقل سره ئے د هغه خبره برابروالی ته راخكلے ده ليكن هغه ددے نه بری دے او دا توجيه بما لايرضى به القائل ده۔ څكه كه ددے خلقو خبره صحيح وے نو بيا به د فقه حنفی په كتابونو كښې د امام ابوحنيفه او صاحبينو ترمينځ اختلاف نهٔ ذكر كيدے۔ صحيح دا ده چه هغه ته پدے باره كښې احاديث نهٔ دی رسيدلی نو څكه ئے داسے قول كړيدے لكه دا خبره قسطلانیؒ په شرح البخاری كښې او علامه عبد الحی اللكهنویؒ په عمدة الرعاية حاشية شرح الوقاية كښې ذكر كړيده۔ او امام ابويوسف او محمدؒ ته احاديث رسيدلی دی نو څكه هغوی په

استسقاء کښې په مانځه باندې قول کړيدې۔

دوی د امام ابوحنيفةؒ دپاره دليل دا ذکر کړيدې چه قرآن کښې راغلی دی: ﴿فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا يُرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا الخ﴾ نوح ﷺ قوم ته صرف په استغفار باندې حکم کړيدې نو پدې آيت کښې مونځ نۀ دې ذکر۔ ددې جواب دا دې چه مونځ نۀ ذکر کول نفی د مانځه نکوی بلکه ز مونږ نبی ﷺ مونږ ته خودلې دې۔ بله دا چه دا يوه طريقه د استسقاء ده چه صرف دعاء او استغفار اُوشی نو پدې سره نفی د بلې طريقې نۀ راځی۔ په کوم کښې چه مونځ ذکر دې چه هغه ډير احاديث دی۔

لهذا د جمهورو مذهب حق دې ځکه د دوی سره په استسقاء کښې مونځ کيدو باندې ډير دلائل دی چه هغه صاحب المرعاة (۵/۱۷۲) ذکر کړيدی۔ او فتاوی الدين الخالص (۶/۵۵٤) ته هم رجوع اُوکړه۔ او پدې باب کښې هم راغلی دی۔ او دا مونځ څلورو مشرانو صحابه کرامؓ نقل کړيدې عبد الله بن زيد، ابوهريره، ابن عباس او عائشه رضی الله عنهم۔ او دا ټول احاديث صحيح ثابت دی۔

وَجَهَرَ فِيهَا الْقِرَاءَةَ : امام نوويؒ په شرح مسلم کښې ليکی: د علماؤ پدې اجماع ده چه په صلاة الاستسقاء کښې جهر سنت دې، او دغه شان ابن بطالؒ هم دغه اجماع نقل کړيده۔ کما فی فتح الباری۔

وَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ : يعنی د مانځه نه روستوئې قبلې ته مخ کړو۔

---

۱٤۹۷ (۲) – وَعَنْ أَنَسٍ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِيْ شَيْءٍ مِنْ دُعَائِهِ إِلَّا فِي الْاِسْتِسْقَاءِ، فَإِنَّهُ يَرْفَعُ حَتّٰى يُرٰى بَيَاضُ إِبْطَيْهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او انس ﷺ فرمائی: نبی ﷺ به په هيڅ دعا کښې لاسونه (ډير زيات) نۀ اوچتول مګر په استسقاء کښې ځکه په استسقاء کښې به ئې (دومره اوچتول) تردې چه د هغۀ د ترخونو سپين والې به ښکاره شو۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

تشريح : مطلب دا دې چه نبی ﷺ به د استسقاء نه علاوه نورو ځايونو کښې دعاء کښې دومره مبالغې طريقې سره لاسونه نۀ پورته کول څومره ئې چه په استسقاء کښې اوچت کړيدی۔ او دا مطلب نۀ دې چه نورو دعاګانو کښې به ئې لاسونه بالکل نۀ پورته کول بلکه په دعاء کښې رفع اليدين خو په تواتر سره ثابت دی۔

۱٤۹۸ (۳) - وَعَنْهُ، اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ اسْتَسْقٰى فَاَشَارَ بِظَهْرِ كَفَّيْهِ اِلَى السَّمَآءِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

**ترجمه:** او د انس ﷺ نه نقل شوی دی چه نبی ﷺ (یوه ورځ) استسقاء اوکړه (نو په دعاء کښې ئے) د ورغوو په شا طرفونو آسمان طرف ته اشاره اوکړه (یعنی آسمان طرف ته ئے لاسونه اُلټه اُوچت کړی وو) (مسلم)

**تشریح:** یعنی د استسقاء په دعا کښې به ئے لاسونه آسمان طرف ته پورته کړل او اُلټه به ئے کړل او پدے کښې هم نیك فال نیولو ته اشاره ده چه اے الله! په مونږ باندے دا حالت هم دغه شان اُلټه کړے او دا د ابتهال (زیاتے عاجزئ) یو صورت دے. او د استسقاء پورے خاص دے.

---

۱٤۹۹ (٤) - وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ كَانَ اِذَا رَاَى الْمَطَرَ، قَالَ: «اَللّٰهُمَّ صَيِّبًا نَافِعًا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** او عائشه رضی الله عنها فرمائی: رسول الله ﷺ به چه کله باران اولیدلو نو داسے به ئے فرمایل: ((اللهم صیبا نافعاً)) (اے الله! فائده ورکونکے باران ښه اُووروه!). (بخاری).

**تشریح:** د باران لیدلو نه مراد دا چه باران به ئے د استسقاء نه روستو اولیدو نو دغه دعاء به ئے فرمائیله پدے وجه ئے دا حدیث په باب د استسقاء کښې راوړو لیکن ډیر راجح احتمال دا دے چه دا په ټولو اوقاتو محمول دے. هرکله چه څوك باران اووینی نو هغه له دغه دعاء لوستل پکار دی.

صیبا: دا منصوب دے په اجعله مقدر سره او صیب اصل کښې صَيْوِبٌ دے د سیّد په شان ادغام پکښې کړے شویدے او دا د صَابَ يَصُوْبُ صَوْبًا نه دے په معنی د ډیر وریدلو سره چه زمکے ته اورسی. ددے وجه نه ددے نه ئے روستو نافعاً لفظ ذکر کړو ځکه چه ډیر باران کله کله په ضرر تمامیږی.

---

۱٥۰۰ (٥) - وَعَنْ اَنَسٍ، قَالَ: اَصَابَنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ مَطَرٌ، قَالَ: فَحَسَرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ ثَوْبَهٗ حَتّٰى اَصَابَهٗ مِنَ الْمَطَرِ، فَقُلْنَا: يَارَسُوْلَ اللّٰهِ! لِمَ صَنَعْتَ هٰذَا؟ قَالَ: «لِاَنَّهٗ حَدِيْثُ عَهْدٍ بِرَبِّهٖ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** او انس ﷺ فرمائی: مونږ د رسول الله ﷺ سره وو چه باران مونږ ته راورسیدو. انسؓ فرمائی: نو رسول الله ﷺ خپله جامه (د ځان نه) لرے کړه تردے چه هغه ته د باران څۀ حصه اُورسیده، مونږ عرض اوکړو یارسول الله! دا کار تاسو ولے اوکړو؟ هغۀ اوفرمایل: ((پدے وجه چه

دا باران د رب د طرف نه اوس اوس راغلو))۔ (مسلمؒ)

**تشريح : حَدِيْثُ عَهْدٍ :** لفظي معنى ئے دا ده : نوے ده زمانه ددهٔ د رب سره، يعنى اوس تازهٔ د الله د طرف نه راغلو نو دا د الله رحمت دے زهٔ ئے حاصلول غواړم۔

**فَحَسَرَ :** يعنى بعض جامه ئے ورته لرے کړه چه په بدن ئے اولگى ځکه چه دا نزدے زمانے والا دے د الله سره چه اوس د الله د طرفنه راغلو نو سبب د برکت دے۔ او دا عمل مستحب دے۔ او امام بخاريؒ پدے باندے په خپل صحيح کښ باب قائم کړيدے : (بَابُ مَنْ تَمَطَّرَ حَتّٰى يَتَحَادَرَ عَلٰى لِحْيَتِهٖ) (يعنى د باران لاندے دومره اودريدل چه د هغهٔ په گيره اوبهيږى مستحب عمل دے)۔

او د باران نه لاندے هم دعا ښه قبليږى نو پدے مقام کښ د الله نه دعاء غوختل هم پکار دى۔

## الفصل الثاني

۱۵۰۱ (٦) — عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: خَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِلَى الْمُصَلّٰى، فَاسْتَسْقٰى وَحَوَّلَ رِدَائَهٗ حِيْنَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ، فَجَعَلَ عِطَافَهُ الْأَيْمَنَ عَلٰى عَاتِقِهِ الْأَيْسَرِ، وَجَعَلَ عِطَافَهُ الْأَيْسَرَ عَلٰى عَاتِقِهِ الْأَيْمَنِ، ثُمَّ دَعَا اللهَ. رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه :** عبد الله بن زيد ؓ فرمائى : رسول الله ﷺ (يوه ورځ عيدگاه ته اووتلو، نو استسقاء (مونځ ئے) اوکړو، او کله ئے چه قبلے ته مخ کړو نو څادر ئے (پدے طريقه) واړولو، چه ښے طرف د څادر ئے په گسه اوگه باندے کيخودو او گس طرف څادر ئے په ښئ اوگه باندے کيخودو، بيا ئے د الله نه (د باران دپاره) دعاء غوخته۔ (ابوداودؒ)

**تشريح :** پدے روايت کښ د مانځه تذکره نهٔ ده راغلى نو احنافو ترے د امام ابوحنيفةؒ دپاره دليل نيولے دے چه په استسقاء کښ مونځ نشته۔ دا استدلال صحيح نهٔ دے ځکه چه پدے مقام کښ راوى اختصار کړيدے او په نورو رواياتو کښ د مانځه تذکره موجوده ده لهذا په هغے به عمل وى۔ او دا روايت ضعيف هم دے۔

**عِطَافٌ:** طرف د څادر ته وائى۔ دے ته عطاف ځکه وائى چه دا په عطفينو (اوگو) باندے واقع کيږى۔

**درجة الحديث :** اسناده ضعيف : اخرجه ابوداود (۱۱٦۳) والبيهقي في الكبرى (۳/ ۳۵۰) وفيه عمرو بن الحارث الحمصي وهو غير معروف العدالة كما قال الذهبي)

---

۱۵۰۲ (۷) — وَعَنْهُ أَنَّهٗ قَالَ: اِسْتَسْقٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَعَلَيْهِ خَمِيْصَةٌ لَهٗ سَوْدَاءُ، فَأَرَادَ أَنْ

يَأْخُذَ أَسْفَلَهَا، فَيَجْعَلَهُ أَعْلَاهَا، فَلَمَّا ثَقُلَتْ قَلَبَهَا عَلَى عَاتِقِهِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه: او عبد الله بن زيد ﷺ فرمائی: رسول الله ﷺ په داسے حال کښې استسقاء اوکړه چه په هغهٔ باندے توره شړۍ وه، نو اراده ئے اوکړه چه لاندے طرف ئے اونيسی او بره طرف ته ئے اوګرځوی ليکن هرکله چه هغهٔ پرے ګرانه شوه، نو په دواړو اوګو باندے ئے واړوله۔ (احمدؒ، ابو داودؒ)

**تشريح :پسه څادر اړولو کښې اختلاف دے** چه په کومه طريقه به ئے اړوی؟ (١) امام طحاویؒ وائی : دلته نبی ﷺ اول اراده د څکته او بره طرفته اړولو وه ليکن کله چه ورته دا کار ګران شو نو بيا ئے ښی او ګس طرفته واړولو (يعنی ښی طرف ئے په ګسه اوګه کړو او ګس طرف ئے په ښی اوګه کړو) نو مونږ هم دغه شان وايو چه ترڅو ممکن وی نو تنکيس به کوی يعنی څکته طرف به ئے پورته کرځوی او پورته طرف به ئے څکته ګرځوی۔ او که ممکن نهٔ وی نو بيا به ښی او ګس طرفته نقل کړی۔ (٢) جمهور او امام مالك او احمد وائی : صرف تحويل (ښی او ګس طرفته اړول) افضل دی۔ او دا قول د ابان بن عثمان، عمر بن عبد العزيز، هشام بن اسماعيل، ابوبکر بن محمد بن عمرو بن حزم دے او دا قديم قول د امام شافعیؒ وو ليکن بيا ئے ترے رجوع اوکړه۔

(٣) د امام شافعیؒ جديد قول او د امام مالك مذهب دا دے چه تنکيس او تحويل دواړه به کوی (يعنی اول به ئے څکته بره کړی او بيا به پکښې ښی او ګس طرفته انتقال اوکړی)۔ استدلال کوی په ځم او قصد د نبی ﷺ سره چه د قلب (اُلټه) کولو اراده ئے کړے وه ليکن دا کار ئے د ثقل (ګرانئ) په وجه پريخودو لهذا اول قلب بيا تنکيس مستحب دے۔(نيل الاوطار ٤/٣٨)

حافظ فتح الباری کښې ليکی : د امام شافعیؒ په قول کښې احتياط زيات دے۔ اه۔

ليکن مونږ وايو : دواړه طريقے جائز دی او دواړه پدے حديث کښې راغلی دی۔

**دويم اختلاف دے چه دا به په کوم وخت اړوی** : (١) امام مالك، او شافعیؒ فرمائی : کله چه د خطبے نه فارغ شی۔ (٢) او مشهور قول د شوافعو دا دے چه لګ شان مخکښې د فراغت د خطبے نه به ئے اړوی۔ (٣) امام ابويوسفؒ وائی : کله چه ابتداء د خطبے تيره شی نو بيا به څادر واړوی او دا يو قول د امام مالك هم دے۔(انظر بلوغ الامانی ٦/٢٤٦)

٣- علامه شوکانیؒ فرمائی : محل ددے تحويل دا دے چه کله امام د خطبے نه فارغ شی او اراده د دعاء اوکړی نو بيا به څادر واړوی کما فی الفتح۔ (نيل الاوطار ٤/٣٨) لکه دا په روايت د مسلم

كښې صراحةً راغلي دي: (وَأَنَّهُ لَمَّا أَرَادَ أَنْ يَدْعُوَ اسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ وَحَوَّلَ رِدَائَهُ) (كله چه د دعا اراده ئې اوكړه نو قبلې ته ئې مخ كړو او څادرئې واړولو)۔ (بلوغ الامانى ٦/٢٣٤) لكه دا خبره ددے باب په اول حديث كښې هم راغلې۔

**درجة الحديث:** اسناده صحيح: اخرجه الشافعي (١/١٦٨، رقم ٤٨٨) واحمد في المسند (٤/٤٢) وابوداود (١١٦٤) والنسائي (٣/١٥٦) والحاكم (١/٣٢٧) وذكره الحافظ في التلخيص الحبير (٢/١٠٠) وعزاه الى ابي عوانة وابن حبان۔

---

**١٥٠٣ (٨)- وَعَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ ﷺ يَسْتَسْقِي عِنْدَ أَحْجَارِ الزَّيْتِ، قَرِيبًا مِنَ الزَّوْرَاءِ قَائِمًا يَدْعُو يَسْتَسْقِي، رَافِعًا يَدَيْهِ قِبَلَ وَجْهِهِ لَا يُجَاوِزُ بِهِمَا رَأْسَهُ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ نَحْوَهُ.**

**ترجمه:** د عمير نه چه د آبي اللحم آزاد كرده غلام دے نقل دي چه هغهٔ نبي كريم ﷺ د احجار الزيت (مقام) په خوا كښې چه دا ((زوراء)) ته نزدے ځائے دے اوليدو چه استسقاء ئې كوله، نبي ﷺ ولاړ وو، دعاګانې ئې د باران طلب كولو دپاره كولې، دواړه لاسونه ئې خپلې مخې ته اوچت كړي وو او دواړه ئې د سر نه نهٔ اړول"۔ (ابوداودؒ) او امام ترمذي او نسائيؒ ددے په شان روايت نقل كړيدے۔

**تعارف د عمير مولى آبي اللحم:** عمير مولى آبي اللحم الغفاري صحابي دے او د خپل سيد سره د خيبر غزوے ته حاضر شويدے او تر اوويايم پورے ژوندے وو۔ آبي اللحم معنى ده د غوښې نه انكار كونكے، ځان منع كونكے۔ دا مشهور غفاري صحابي دے۔ بعض وائي دده نوم خَلَف وو، حنين غزا ته حاضر شويدے او دا غلام عمير هم ورسره وو۔ آبي اللحم ئې ورته پدے وجه وئيلو چه دهٔ بالكليه د غوښې د خوراك نه انكار كړے وو۔ بعض وائي په جاهليت كښې به چه كوم حيوانات د بتانو په نوم ذبح شوي وو دهٔ به هغه نهٔ خوړل۔ ابن عبد البرّ ليكي: دا د كبار الصحابه او پخوانو نه حساب دے او حنين ته حاضر شويدے او هغې كښې شهيد شوے هم دے۔ بعض وائي صرف دا يو حديث ترے نقل دے۔

**تشريح:** **أَنَّهُ**: دا ضمير راجع دے عمير ته۔ احجار الزيت: په مدينه كښې هغه ځائے دے چه زوراء ته نزدے دے او دلته به ئې استسقاء ګانې كولې او ديته احجار الزيت ځكه وائي چه كاڼرې ئې تور دي لكه په تيلو باندے چه غوړ شوي وي۔

**الزَّوْرَاءِ**: د مدينې د بازار سره يو اوچت ځائے دے لكه مناره چه د مسجد په خوا كښې وي۔

لا يجاوز بهما : په بعض حالاتو کښې نبي ﷺ لاسونه د سر نه ندي پورته کړي او په بعض احوالو کښې به ئې ډير اوچتول لهٰذا ددې حديث د مخکښې حديث د انس سره منافات نشته۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : اخرجه احمد (٥/٢٢٣) وابوداود (١١٦٨) والترمذى (٥٥٧) والنسائى (٣/١٥٩) وقالا عن عمير مولى ابى اللحم عن ابى اللحم فجعلاه من مسند ابى اللحم وهو وهم وانما هو من طريق عمير مولى ابى اللحم وقد رواه احمد من طريقه عن عمير ولم يذكر ابى اللحم)۔

---

**١٥٠٤ (٩) – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: خَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ – يَعْنِيْ فِي الْاِسْتِسْقَاءِ – مُتَبَذِّلًا، مُتَوَاضِعًا مُتَخَشِّعًا، مُتَضَرِّعًا. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَه.**

---

**ترجمه** : او ابن عباس ؓ فرمائي : رسول الله ﷺ په استسقاء کښې داسې حالت کښې راووتو چه هغهٔ (په ظاهر کښې) زينت پريخې وو، او (په ظاهر او باطن کښې) تواضع کونکې وو، او عاجزي او بيچارګي او تضرع اختيارونکې وو۔ (ترمذیؒ، ابوداودؒ، نسائیؒ، ابن ماجةؒ)

**تشريح** : ددې حديث ابتداء داسې ده : اسحاق بن عبد الله بن الحارث بن کنانه فرمائي : زهٔ وليد بن عتبه اوليږلم کله چه هغه د مدينې امير وو – ابن عباسؓ ته، ما د هغه نه په استسقاء کښې، د رسول الله ﷺ د مانځه په باره کښې تپوس کولو نو زهٔ راغلم ما عرض اوکړو نو هغه اوفرمايل ...... الحديث۔

او په يو روايت کښې ورسره دا زيات دي : [فَلَمْ يَخْطُبْ خُطْبَتَكُمْ هٰذِهٖ، وَلٰكِنْ لَمْ يَزَلْ فِي الدُّعَاءِ وَالتَّضَرُّعِ وَالتَّكْبِيْرِ وَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ كَمَا كَانَ يُصَلِّيْ فِي الْعِيْدَيْنِ] (ترمذى، ابوداود، نسائى) (يعني ستاسو د خطبو په شان خطبه ئې اُونه وئيله ليکن په دعاء او تضرع او تکبير وئيلو کښې هميشه وو) ددې مطلب امام زيلعي داسې بيان کړيدې چه خطبه ئې وئيلې ده ليکن دوه خطبې ئې نهٔ دي وئيلې لکه څنګه چه په جُمعه کښې به ئې وئيل نو پدې کښې نفي د نوع ده نهٔ نفي د جنس۔ نو ددې نه يوه خطبه ثابته شوه څکه دوه خطبې د نبي ﷺ نه ندي نقل۔ (نصب الرايه ٢/٢٤٢)

○ ابن قدامهٔ فرمائي : پدې قول د ابن عباسؓ کښې نفي د صفت ده، نهٔ نفي د اصل خطبه، مطلب دا دې چه ستاسو ددې خطبې په شان خطبه ئې نهٔ ده وئيلې بلکه د هغه خطبه کښې اکثر دعاء، تضرع او تکبير وو انتهىٰ۔ ○ يا پدې کښې نفي ده د هغه خطبې چه مشابه وي د خلقو سره يعني ددې خلقو په شان خطبه ئې نهٔ وئيله بلکه يو خاص قسم خطبه وه چه مشتمل وه په دعاء، تضرع او تکبيراتو د الله پاندې۔

مُتَبَذِّلًا : يعني ساده جامے اغوستونکے وو او د زینت جامے ئے لرے کړے وے الله ته ئے تواضع کوله او د خپل حاجت اظهار ئے کولو۔ او تبذل ترك الزينة ته وائی او د تواضع په طور بنائسته هيئت نهٔ جوړولو ته وائی۔

مُتَوَاضِعًا : يعنى ظاهر كښې ئے هم عاجزی وه۔ متخشعا : یعنی په زړهٔ او باطن کښې هم عاجزی کونکے وو۔ شوکانیؒ وائی : متخشعاً معنی دا ده چه خشوع ښکاره کونکے وو دے دپاره چه دا د الله د نعمتونو حاصلولو دپاره وسیله شی۔ په روایت د احمد او ابن ماجه وغیره کښې دی : (مترسلا) یعنی په آرام سره تلونکے وو او جلتی کونکے نهٔ وو۔

مُتَضَرِّعًا : يعنى تذلل او عاجزی ښکاره کونکے وو۔

په روایت د نسائی کښې ورسره دی : (حَتّٰى اَتَى الْمُصَلّٰى فَرَقِىَ عَلَى الْمِنْبَرِ) (یعنی عیدگاه ته راغلو او منبر ته اوختلو) نو ددے نه معلومه شوه چه خطبه ئے مخکښې وئیلے ده۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن اخرجه احمد فی المسند (۱/۳۵۵) وابوداود (۱۱۶۵) والترمذی (۵۵۹) والنسائی (۳/۱۵۶،۱۵۷) وابن ماجه (۱۲۶۶) وابن حبان ذکره فی موارد الظمآن (۶۰۳) والدارقطنی (۲/۶۸ رقم ۱۱) والحاكم فی المستدرك (۱/۳۲۶،۳۲۷)

---

**۱۵۰۵ (۱۰) - وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ، قَالَ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ اِذَا اسْتَسْقٰى قَالَ: «اَللّٰهُمَّ اسْقِ عِبَادَكَ وَبَهِيْمَتَكَ، وَانْشُرْ رَحْمَتَكَ وَاَحْيِ بَلَدَكَ الْمَيِّتَ»، رَوَاهُ مَالِكٌ، وَاَبُوْدَاوُدَ.**

---

ترجمه : او عمرو بن شعيب د خپل پلار نه او د شعیب د نیکه نه روایت نقل کوی فرمائی : چه نبی ﷺ به کله استسقاء کوله (نو په دعاء کښې به ئے) داسے فرمایل : «اللهم اسق..... » (اے الله ! خپل بندگانو او چارپیانو لره په اوبو باندے خړوبه کړه، او خپل رحمت راخور کړه، او خپله مړهٔ (یعنی اُوچه) زمکه راژوندئ (تازه) کړهٔ !)۔ (مالكؒ، ابوداوؒد)۔

**تشريح** : يعنى اے الله خپل بندگان، سړی، زنانه، غلامان او وینزے ماشومان او بوډاگانو باندے باران اوکړے او دوی خړوبه کړے ځکه ستا بندگان دی او تا ته محتاج دی۔ او په خپلو چارپیانو او حیواناتو باندے هم رحم اوکړه دا ټولو ژوندو سرو ته شامل دے۔ او دا الفاظ ټول د وسیلے دی۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : اخرجه ابوداود (۱۱۷۶) والبيهقى فى الكبرى (۳/۳۵۶) وفى

الموطأ (١/ ١٩٠، ١٩١ رقم ٢) عن عمرو بن شعيب مرسل۔

---

١٥٠٦ (١١) - وَعَنْ جَابِرٍ، قَالَ: رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يُوَاكِئُ فَقَالَ: «اَللّٰهُمَّ اسْقِنَا غَيْثًا مُغِيْثًا، مَرِيْئًا، مُرِيْعًا، نَافِعًا، غَيْرَ ضَارٍّ، عَاجِلًا غَيْرَ آجِلٍ»، قَالَ: فَأَطْبَقَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَآءُ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائي: ما رسول الله ﷺ اُوليدلو چه (د استسقاء دپاره ئے) لاس پورته كړے وو او داسے ئے فرمايل: ((اللهم اسقنا ......)) (اے الله ! مونږ په داسے باران باندے خړوبه كړه، چه فرياد رسی (مدد) كونكے وی، چه د هغۀ انجام ښۀ وی، شينكی (تازگی) راوستونكے وی، فائده رسونكے وی، ضرر وركونكے نۀ وی، جلتئ سره راتلونكے وی، تاخير سره راتلونكے نۀ وی))۔ راوی فرمائي (كله چه دعاء اوشوه نو) سمدست په خلقو باندے باران راخور شو۔ (يا هميشه شوه په دوی باندے وريخ) (ابوداوُد)۔

**تشريح : يُوَاكِئُ** : دا د مواكأة نه دے په معنی د ځان بار (بوج) كول او لاسونو باندے تكيه او اعتماد كول۔ او ددے نه توكؤ على العصا ماخوذ دے په معنی د تكيه وهلو سره۔

**غَيْثًا** : غيث هغه باران ته وائي چه د قحط نه د انسان مدد كوی نو مُغيثاً تاكيد دے يا په غيث كښې تجريد دے مطلق باران ترے مراد دے۔

**مَرِيْئًا** : يعنی ښه تيريدونكے، ښه انجام والا، او كه ناقص يائی شی نو بيا ئے معنی ده كثرت يعنی ډير باران اوكړے۔ ځكه مَرِیٌّ او مَرِيَّةٌ هغه اوښے ته وائي چه ډير پيو وزكوی۔

**مَرِيْعًا** : چه شينكی او تازه گی راوستونكے وی۔ دا د مراعة نه دے په معنی د شينكی او تازگی سره مَرَعَ الارضُ مَرَاعَةً يعنی زمكه ډيرو اوبو او گياه گانو والا شوه۔

يا د باب افعال نه په ضمه د ميم دے۔ معنی ئے ده ډيرے نماء او ترقئ او زيادت والا۔

**فَاَطْبَقَتْ** : يعنی وريخ پرے داسے شوه لكه د طبق په شان۔ بعضِ وائی: معنی دا ده چه باران پرے هميشه شو۔ لكه عرب وائی : (اَطْبَقَتْ عَلَيْهِ الْحُمّٰى اى دَامَتْ) (تبه پرے هميشه شوه)۔

او كه د سماء نه مراد باران شی بيا د اَطْبَقَتْ نه مراد دا دے چه عام او فراخه اُوشو په دوی باندے باران۔

**درجة الحديث:** اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (١١٦٩) وابوعوانة فی الصحيح وذكره ابن حجر فی التلخيص الحبير (٢/٩٩ رقم ٧٢١)

## الفصل الثالث

١٥٠٧ (١٢) - عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: شَكَا النَّاسُ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ قُحُوْطَ الْمَطَرِ، فَأَمَرَ بِمِنْبَرٍ، فَوُضِعَ لَهُ فِي الْمُصَلّٰى، وَوَعَدَ النَّاسَ يَوْمًا يَخْرُجُوْنَ فِيْهِ، قَالَتْ عَائِشَةُ: فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ حِيْنَ بَدَا حَاجِبُ الشَّمْسِ، فَقَعَدَ عَلَى الْمِنْبَرِ، فَكَبَّرَ وَحَمِدَ اللهَ، ثُمَّ قَالَ: إِنَّكُمْ شَكَوْتُمْ جَدْبَ دِيَارِكُمْ وَاسْتِئْخَارَ الْمَطَرِ عَنْ إِبَّانِ زَمَانِهِ عَنْكُمْ، وَقَدْ أَمَرَكُمُ اللهُ أَنْ تَدْعُوْهُ، وَوَعَدَكُمْ أَنْ يَسْتَجِيْبَ لَكُمْ»، ثُمَّ قَالَ: «اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ، الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ، لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ، اَللّٰهُمَّ أَنْتَ اللهُ، لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ الْغَنِيُّ، وَنَحْنُ الْفُقَرَاءُ، أَنْزِلْ عَلَيْنَا الْغَيْثَ، وَاجْعَلْ مَا أَنْزَلْتَ لَنَا قُوَّةً وَبَلَاغًا إِلَى حِيْنٍ»، ثُمَّ رَفَعَ يَدَيْهِ، فَلَمْ يَتْرُكِ الرَّفْعَ حَتّٰى بَدَا بَيَاضُ إِبْطَيْهِ، ثُمَّ حَوَّلَ إِلَى النَّاسِ ظَهْرَهُ، وَقَلَبَ أَوْ حَوَّلَ رِدَاءَهُ، وَهُوَ رَافِعٌ يَدَيْهِ، ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَى النَّاسِ وَنَزَلَ، فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ، فَأَنْشَأَ اللهُ سَحَابَةً، فَرَعَدَتْ وَبَرَقَتْ، ثُمَّ أَمْطَرَتْ بِإِذْنِ اللهِ، فَلَمْ يَأْتِ مَسْجِدَهُ حَتّٰى سَالَتِ السُّيُوْلُ، فَلَمَّا رَأَى سُرْعَتَهُمْ إِلَى الْكِنِّ ضَحِكَ حَتّٰى بَدَتْ نَوَاجِذُهُ، وَقَالَ: «أَشْهَدُ أَنَّ اللهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ، وَأَنِّيْ عَبْدُ اللهِ وَرَسُوْلُهُ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ ته خلقو د باران د قحط (نه کیدو) شکایت اوکړو، رسول الله ﷺ د منبر په راوړولو حکم اوکړو، نو په عیدګاه کښې د هغهٔ دپاره کیخودے شو او خلقو سره ئے د یوے ورځے وعده اوکړه چه په هغے کښې به (د استسقاء مانځه دپاره) راوځی، عائشه فرمائی: کله چه د نمر کناره راښکاره شوه نو رسول الله ﷺ (عیدګاه) ته راووتو او په منبر باندے کیناستو، الله اکبر ئے اوویلو او حمد او ثناء ئے اوویله، بیا ئے اوفرمایل : « اے خلقو اتاسو د خپلو علاقو د قحط او د خپل وخت نه د باران د روستو کیدو شکایت کړے دے، نو اُوس تاسو ته الله تعالیٰ حکم کوی چه د هغهٔ نه دعا اوغواړئ، او هغهٔ وعده کړیده چه ستاسو دعاء به قبلوی، بیا ئے اوفرمایل : الحمد لله رب العالمین الخ۔ (ټول تعریفونه او صفتونه د کمال خاص الله لره دی چه د تمام مخلوقاتو پالونکے دے، زیات مهربان او همیشه رحم کونکے دے، او مالك د ورځے د جزاء دے، د الله نه سوا هیڅوك حقدار د بندګۍ نشته، هغهٔ چه څه غواړی کوی ئے، اے الله ! ته حقدار د بندګۍ ئے، نشته حقدار د بندګۍ سوا ستا نه، تهٔ غنی (بے پرواه) ئے، او مونږ فقیر او محتاج یو، په مونږ باندے باران نازل کړهٔ، او څهٔ چه نازلوے (یعنی باران) هغهٔ

مونږ دپاره يوې مودې پورې قوت او (د هغې په ذريعه خپلو مقاصدو او منافعو ته) د رسيدو سبب جوړ كړه) دې نه پس رسول الله ﷺ دواړه لاسونه پورته كړل، او لاسونه پورته كول ئې پرې نۀ خودل تردې چه د ترخونو سپينوالې ئې ښكاره شو، بيائې خلقو ته شا راواړوله، او څادر ئې اُلټه كړو يا (ئې يو طرف نه بل طرف ته) واړولو، او هغۀ لاسونه پورته كړى وو، بيا خلقو ته ئې مخ راوړو، او (د منبر نه) راكوز شو، او دوه ركعاته مونځ ئې اوكړو. نو الله تعالىٰ يو وريځ راپيدا كړه، نو هغې گرزارې اوكړو او بريښنا ئې اوكړه، بيائې د الله په حكم باران شروع كړو، نو نبى ﷺ لا مسجد ته نۀ وو راغلى چه سيلابونه اوبهيدل، هركله چه رسول الله ﷺ د خلقو كورونو ته په جلتئ سره تلل اوليدل نو وې خندل تردې چه غاښونه ئې ښكاره شو، بيا ئې اوفرمايل: ((زۀ دا گواهى كوم چه يقيناً الله تعالىٰ په هر شى باندې قادر دې او دا چه زۀ د الله بنده او د هغۀ رسول يم)). (ابوداودؒ)

**تشريح : قُحُوْطٌ** يا صيغه د مصدر ده د قحط په شان يا جمع د قَحط ده.

**حَاجِبُ الشَّمْسِ** : ددې نه مراد اول سر د نمر دې او رڼرا د نمر او طرف د نمر ترې مراد دې. كما في القاموس والمغرب.

دا حديث دليل دې د ائمه ثلاثه ؒ دپاره چه مستحب وخت د استسقاء دپاره د نمرخاته نه روستو وخت دې. او شوافع وائى: راجح دا ده چه ددې دپاره هيڅ وخت نۀ دې متعين بلكه تول ورځ او شپه ددې دپاره وخت دې ځكه دا سببى مونځ دې نو د خپل سبب سره به كرځى راكرځى لكه د صلاة الكسوف په شان اگركه مختار وقت ئې د اختر د مانځه وخت دې. (قسطلانىؒ) او عينى په شرح الهدايه كښې وئيلى دى چه د احنافو په نيز باندې صحيح قول دا دې چه د صلاة الاستسقاء دپاره وخت مختص نۀ دې. كما في المرعاة (١٨٩/٥)

**اِبَّانِ** : اول د شى ته وائى. يعنى باران د خپلې اولې زمانې نه (كوم وخت چه ورته ضرورت وو) روستو شو.

**اَلْكِنِّ** : دا هر هغه ځائې ته وائى چه انسان پكښې د يخنى او كرمئ نه پټيږى يعنى كورونه.

حديث دليل دې چه خطبه مخكښې شويده او مونځ روستو شويدې. او دا طريقه هم جائز ده. ٢- ددې مذكوره دعاء لوستل هم مستحب دى اگركه ددې نه ماسوىٰ په هره ژبه كښې دعاگانې د خپل حال مطابق لوستل جواز لرى. او په لاس پورته كولو كښې مبالغه پكار ده.

٣- نبى ﷺ الله ته ډير محبوب وو ځكه به سمدست د هغه په دعا باران كيدلو نو څومره چه انسان نيك وى د هغه د دعاء په بركت به باران زر كيږى. لكه روستو حديث كښې دا خبره راروانه ده.

**درجة الحديث:** اسناده حسن : اخرجه ابوداود (۱۱۷۳) والبيهقي (۳۴۹/۳) والحاكم (۳۲۸/۱)

---

۱۵۰۸ (۱۳) – وَعَنْ اَنَسٍ، اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ كَانَ اِذَا قُحِطُوْا اسْتَسْقٰى بِالْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، فَقَالَ: «اَللّٰهُمَّ اِنَّا كُنَّا نَتَوَسَّلُ اِلَيْكَ بِنَبِيِّنَا فَتَسْقِيْنَا، وَاِنَّا نَتَوَسَّلُ اِلَيْكَ بِعَمِّ نَبِيِّنَا، فَاسْقِنَا»، قَالَ: فَيُسْقَوْنَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** : او د انس ﷺ نه روايت دے چه کله به خلقو باندے (د باران د نه کيدو په وجه) قحط سالی شوه نو عمر بن خطاب به د عباس بن عبد المطلبؓ د دعاء په وسيله سره باران طلب کولو، او داسے به ئے فرمايل : اے الله ! مونږ به تا ته خپل نبی (ﷺ) وسيله کولو (او د هغهٔ په دعاء سره به) تا مونږه خړوبه کولو، (اوس خو هغهٔ زمونږ مينځ کښ نشته) نو مونږ تا ته د خپل نبی ترهٔ وسيله کوو (ددهٔ د دعاء په وسيله) مونږ باندے باران اوکړهٔ ـ انسؓ فرمائی: خلق به (پدے دعاء سره) خړوبه کولے شو ". (بخاریؒ)

**تشريح** : ددے حديث عنوان دا دے چه په دعاء کښ به ذوی الصلاح والخير (نيکان او الله ته قريب) خلق مخکښ کوی او په هغوی به دعاء کوی۔

لکه عمر فاروق ﷺ به د استسقاء په وخت عباس ﷺ رامخکښ کولو او د هغه په ذريعه به ئے دعاء کوله چه اے الله ! کله چه نبی ژوندے وو نو مونږ به هغه تا ته رامخکښ کړے وو او کله چه هغه وفات دے نو اوس ستا د نبی ترهٔ (عباسؓ) مونږ رامخکښ کړيدے ددهٔ په دعاء سره تا نه د باران سوال کوو، دا ستا د نبی خپلوان دے نو دده د دعاء په برکت مونږ باندے باران اوکړے۔ نو پدے کښ بِدَعِی توسل نشته چه د ژوندی په ذات باندے يا د مړی په ذات باندے وسيله اونيولے شی بلکه دا وسيله ده په دعاء د ژوندی او دا کار جائز بلکه مستحب دے۔ ددے مثال دا دے چه ته يو متقی انسان ته اووائے چه ماله دعاء اوکړه او بيا الله ته وائے اے الله ! دا فلانے چه ستا نزدے بنده دے زما دپاره کومه دعاء غواړی ته ئے قبوله کړے۔ نو پدے کښ څه اشکال دے؟!۔ ددے نه په مړو باندے وسيله نهٔ ثابتيږی۔

شاه انور شاه کاشميریؒ په فيض الباری کښ ليکی : پدے حديث کښ توسل په غائب باندے نشته کوم چه مشهور دے، بلکه پدے کښ توسل دے د سلفو او هغه دا چه الله ته نزدے يو مخوريز انسان مخکښ کړی او هغه ته حکم اوکړی چه دوی دپاره دعاء اوکړی بيا الله ته اووائی چه اے الله ! ددے نيک عمل انسان دعاء زمونږ په حق کښ قبوله کړے لکه څنګه چه عباس ﷺ

باندے دغه شان کار شوے وو چه د نبی ﷺ ترۀ وو۔ او پدے کښې د متأخرین (احنافو، چه بعض پکښې قبوریين دی) توسل نشته (چه بندګان الله ته وسیله کوی چه اے الله ! ددے فلانی بنده په خاطر زمونږ حاجت پوره کړه او ددۀ په جاه او مرتبه او ددۀ په ذات فاضله زمونږ دعاء قبوله کړه دا توسل بدعی دے) ځکه که پدے کښې د متأخرینو توسل وے (یعنی په ذات باندے وسیله وے) نو د نبی ﷺ ذات خو ډیر غوره وو د عباسؓ نه نو هغه ئے ولے نۀ وسیله کولو، دارنګه عباسؓ ئے غائبانه ولے نۀ وسیله کولو (د هغه حاضرولو ته څه ضرورت وو؟)۔ انتهٰی۔

لهذا دا وسیله شوه په دعاء الحی سره (یعنی د ژوندی انسان په دعاء سره وسیله ده) او دا بالکل جواز لری۔ نو د بعم نبینا نه مراد (بِدُعَاءِ عَمِّ نَبِيِّنَا) دے یعنی د نبی ﷺ د ترۀ په دعاء مونږ تا ته وسیله نیسو چه هغه دعاء حافظ ابن حجر په فتح الباری کښې نقل کړیده۔ چه عباسؓ به وئیل اے الله! زۀ دومره نیك نۀ یم لیکن ستا د نبی خپل یم، خلقو مخکښې کړے یم تۀ په مونږ باران اوکړه، نو باران به کیدو۔ نو پدے کښې د توسل بدعی هیڅ خبره نشته۔

## بحث التوسل :

توسل په لغت کښې تقرب (نزدیکت) ته وائی، توسل په درے قسمه دے۔ ۱- توسل شرعی۔ ۲- توسل شرکی۔ ۳- توسل بدعی۔ توسل شرعی په یو څو قسمه دے :

۱ - **توسل** بالاعمال الصالحة (نیك اعمال الله ته وسیله کول او دا ضروری وسیله ده ډیر شے احادیث پرے دلالت کوی لکه واقعه د اصحاب الغار پرے واضح دلیل دے) او قرآن کریم پرے امر کړیدے ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَابْتَغُوا إِلَيْهِ الْوَسِيلَةَ ﴾

۲- **دویم** : توسل بِأَسْمَاءِ اللَّهِ وَصِفَاتِهِ (د الله اسماء او صفات هغه ته وسیله کول لکه الرحمن، الرحیم، مالك، خالق، رازق وغیره نومونو باندے دعاء کول) دا هم ضروری دے لکه آیت کښې راغلی دی :﴿ وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ فَادْعُوهُ بِهَا ﴾ (د الله دپاره ښائسته نومونه دی په هغے دعاګانے کوئ)۔

۳- **توسل بدعاء الحی** : (ژوندے سړے تا ته دعاء اوکړی او ته اووائے چه اے الله ! ددے بنده دعاء زما په حق کښې قبوله کړه) دا دعاء هم جائز بلکه مستحب ده۔ لکه ددے حدیث نه ثابتیږی چه په استسقاء کښې نیکان خلق مخکښې کول پکار دی۔ ځکه د دوی دعاء زر قبلیږی، الله ته نزدے دی۔

○ **توسل شرکی** دا دے چه اولیاء او باباګان او مړی الله ته وسیله کول پداسے طریقه چه اووائی اے باباګانو مونږ تاسو الله ته وسیله کوو چه زما حاجتونه پوره کړئ او مونږ ئے تاسو ته وایو او تاسو ئے الله ته اووایئ، غائبانه باباګانو او قبرونو والو ته آوازونه کوی۔ لکه داسے اووائی: (يَا شَيْخُ عَبْدَ الْقَادِرِ جِيلَانِي شَيْئًا لِلَّهِ) (شیخ عبد القادر جیلانی څه شے درنه د الله دپاره غوارم) نو دا

مېروته آوازونه دي، سو چه شرك دے۔ ﴿وَلَا تَدْعُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ فَإِنْ فَعَلْتَ فَإِنَّكَ إِذًا مِنَ الظَّالِمِيْنَ﴾ (يونس ۱۰٦) كښ داخل دي۔

○ **توسل بدعي** دا دے چه اووائي : (اَسْئَلُكَ بِحَقِّ فُلَانٍ وَبِجَاهِ فُلَانٍ وَبِطُفَيْلِ فُلَانٍ وَبِحُرْمَةِ فُلَانٍ، يا بِذَاتِ فُلَانٍ) (اے الله ! زهٔ ستا نه په حق د فلان يا جاه (مرتبه) د فلاني، يا حرمة د فلاني يا په ذات د فلاني باندے سوال كوم۔ يا پردي اعمال الله ته وسيله كول۔ لكه داسے اووائي : (اَسْئَلُكَ بِحَقِّ السَّائِلِيْنَ عَلَيْكَ) ۔(اے الله په تا باندے چه د سائلينو كوم حق دے په هغے ئے درنه غوارم) لكه ددے تفصيل په التوسل والوسيله ص(٥٠ الى ٨٧) د شيخ الاسلام ابن تيميه كښ او صيانة الانسان (۱۳۱،۲۱۰) د سهسوانيؒ كښ اوگوره۔ د توسل بدعي باره كښ چه كوم روايات راغلي دي هغه تول ضعيف دي۔

**۱۵۰۹ (۱٤) – وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ : خَرَجَ نَبِيٌّ مِنَ الْاَنْبِيَاءِ بِالنَّاسِ يَسْتَسْقِيْ، فَإِذَا هُوَ بِنَمْلَةٍ رَافِعَةٍ بَعْضَ قَوَائِمِهَا اِلَى السَّمَاءِ، فَقَالَ: اِرْجِعُوْا فَقَدْ اُسْتُجِيْبَ لَكُمْ مِنْ اَجْلِ هٰذِهِ النَّمْلَةِ. رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ.**

---

**ترجمه :** او ابو هريره ﷺ فرمائي: ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي چه فرمايل ئے : د انبياؤ نه يو نبي خلق راوويستل چه باران ئے طلب كولو، نو هغهٔ نبي اچانك يوهٔ ميږئ اوليدله چه بعض خپے ئے آسمان ته پورته كړے وے، نو (خلقو ته ئے) اوفرمايل :(( واپس شئ، ددے ميږئ (د عاجزئ) په وجه ستاسو دعاء قبوله شوه))۔ (دارقطنيؒ)

**تشريح :** دا حديث دليل دے چه استسقاء په پخوانو شريعتونو كښ هم وه او دغه شان ددے دپاره بهر وتل هم وو۔ او ددے نبي نه سليمان ﷺ مراد دے لكه دا په روايت د احمد كښ راغلي دي او په هغے كښ دا الفاظ دي چه دے ميږئ داسے اووئيل :

(اَللّٰهُمَّ اِنَّا خَلْقٌ مِنْ خَلْقِكَ لَيْسَ بِنَا غِنًى عَنْ سُقْيَاكَ) (اے الله ! مونږ ستا د مخلوقاتو نه يو مخلوق يو ستا د باران نه زمونږ ے حاجتي نشته)۔

نو سليمان ﷺ اوفرمايل : واپس شئ په تاسو باندے د غير په دعا باران اوشو۔ (يعني د ميږئ دعاء ستاسو دپاره هم قبوله شوه)۔

او حديث دليل دے چه د ميږئ فطرت هم دا دے چه الله بره ذات دے، په خلاف د متكلمينو نه چه د هغوي فطرت پدے باره كښ خراب شويدے۔ څوك په كښ الله هر ځائے گڼړي او څوك

پکښې الله لا خارج العالم ولا داخلهٔ کنړی۔ وائی چه الله نهٔ د عالم نه بهر دے او نهٔ پکښې داخل دے۔
دارنګه میرئ له الله داسے ادراك او شعور ورکړے دے چه د الله معرفت کولے شی او د هغه د ذکر معرفت کولے شی۔ او د هغه نه حاجات طلب کوی۔ او صرف د الله نه ئے غواړی په خلاف د مشرکانو نه چه د میږئ نه هم اجهل (لوئی جاهلان) دی۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : اخرجه الدارقطني (١٨٨) والحاكم (٣٢٥/١) وقال الحاكم صحيح الاسناد ووافقه الذهبي وتعقبه الالباني في الارواء (٦٧٠) وقال وفي ذلك نظر فان محمد بن عون واباه لم احد من ترجمهما والغالب في مثلهما الجهالة والله اعلم ـ

**تتمة الباب** : ١- که باران په یو کرت استسقاء سره اُونه شی نو څه به کوی آیا تکرار جائز دے او که نه ؟ او څو پورے به تکرار کوی؟ نو احادیثو کښې د نبی ﷺ نه استسقاء دپاره یو ځل وتل نقل دی ځکه چه نبی ﷺ کله استسقاء کړیده نو باران پرے شویدے۔ دغه شان صحابهٔ کرامو نه هم تکرار نهٔ دے نقل۔ لیکن په هر عمل کښې به نبی ﷺ درے والے خوښولو نو که ددے عام حدیث په بناء باندے درے کرت د استسقاء دپاره اُوځی نو جائز ده۔
او دا مذهب د احناف او حنابلو دے۔ (الدر المختار ١٨٥/١) لیکن درمختار لیکی : چه درے ورځے نقل دی او زیادت نهٔ دے نقل دا خبره ئے ضعیفه ده ځکه درے کرت هم ندی نقل۔
٢- او شوافع او مالکیه وائی د درے کرتو نه زیات هم وتل پکار دی تر هغه وخت پورے وتلے شی چه باران اُوشی۔
٣- **مسئله** : کله چه باران زیات شی او تکلیف شی نو بیا به داسے نهٔ وائی چه اے الله ! باران بند کره ځکه باران رحمت دے ددے بندول نهٔ دی پکار بلکه د بندګانو ضرورت ورته ختم شو نو داسے وئیل پکار دی چه اے الله ! دا زمونږ نه په بل طرف واړوه۔ لکه نبی ﷺ به داسے دعاء کوله : (اَللّٰهُمَّ حَوَالَيْنَا وَلَا عَلَيْنَا اَللّٰهُمَّ عَلَى الْآكَامِ وَالظِّرَابِ وَبُطُوْنِ الْاَوْدِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ) (بخاری)۔ پدے وخت کښې بعض خلق غیر شرعی عادات کوی لکه بعض خلق د قبرونو کاڼړی په کوهیانو کښې ارتوی دے دپاره چه باران بند شی، بعض خلق کله چه باران او سیلئ (هوا) زیاته شی نو پدے وخت کښې اذانونه کوی دا ټول بدعات دی چه په زمانه د سلفو کښې ددے هیڅ نمونه نشته۔ بعض خلق د استسقاء دپاره غلطې طریقے اختیاروی لکه چمچمیر تولوی (خلقو نه پیسے تولوی او که څوك ئے نهٔ ورکوی نو په هغه باندے اوبه شیندی) دا هم بدعت دے بلکه صحیح طریقه هغه ده کومه چه پدے احادیثو کښې تیره شوه۔ والله اعلم وبالله التوفیق۔

## ۳- د استسقاء په وخت کوم کارونه مستحب دی؟

۱-امام به خلقو ته د تولو گناهونو نه په توبه او الله تعالیٰ ته په نیکیانو باندے نزدے کیدو حکم به کوی۔ ۲- امام او خلق به پیاده صحراء ته اُوځی سویٔ د مکے نه چه هغے کښې په مسجد کښې استسقاء مونځ کولے شی۔او په مدینه کښې به هم عیدگاه ته اُوځی۔

۳- استسقاء دپاره صفائی کول په اوداسه، مسواك وهلو او گندونو او بدبویانو زائله کولو سره، دے دپاره چه خلقو ته تکلیف اونه رسی۔ او د استسقاء دپاره غسل او خوشبوئی لگول ثواب گنړل او ددے التزام کول نهٔ دی نقل۔

٤- استسقاء دپاره به ډیرے عاجزیٔ او انکساریٔ سره اوځی چه ظاهراً او باطناً به تضرع کونکی وی۔ (د ترمذیؒ حدیث مخکښې تیرشو)

٥- نیکان او اهل الصلاح او علماء خلق به مخکښې کړی او د هغوی په دعاگانو به الله ته وسیله اُونیسی۔

٦-په استسقاء کښې به ماشومان، بوډاگان، ضعیفان ټول اووځی۔حدیث کښې دی: «إِنَّمَا تُنْصَرُوْنَ وَتُرْزَقُوْنَ بِضُعَفَائِكُمْ» (تاسو سره مدد کولے شی او رزق درکولے شی په سبب د ضعیفانو)۔

۷- حیواناتو ویستلو په باره کښې هیڅ نص نهٔ دے راغلے لهذا هغوی به نه اُویاسی۔

۸- نزدے سر سبز علاقے والو له مستحب دی چه د قحط زدهٔ علاقے والو دپاره استسقاء اوکړی لکه دا خبره امام شافعیؒ په کتاب الام (۱/۲۱۸) کښې ذکر کړیده او استدلال ئے کړیدے په حدیث چه د غائب مسلمان د بل دپاره دعا زر قبلیږی۔او یو ضعیف حدیث هم پکښې شته۔

۹-دعاگانے او استغفار زیات لوستل پکار دی۔ عمر فاروقؓ یو ځل په استسقاء کښې ټول استغفار اوغوختو چا ورته اووئیل ؟ تا خو استسقاء اونکړه نو هغه اوفرمایل : ما د آسمان په ستورو مطالبه اوکړه۔ (یعنی ددے استغفار په وجه د آسمان ستوری راکولاویږی او الله ترے باران کوی) او استدلال ئے اوکړو په آیت ﴿فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ إِنَّهٗ كَانَ غَفَّارًا يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا﴾۔ ۱۰- د دوه رکعاتو نه به زیادت نهٔ کوی ځکه نقل ئے نشته۔ والله اعلم۔

00000000

## ٥٣- باب فی الریاح

## د هواگانو بیان

مناسبت د ماقبل سره واضح دے چه کله هواگانے راشی نو غالباً باران کیږی او مقصود د استسقاء نه دا دے چه هواگانے راوالوزی چه باران اوشی۔ نو اوس د هواگانو په وخت کښې به کوم اعمال کوی هغه بیانوی۔ په بعضو نسخو کښې باب الریاح په اضافت سره دے۔ په بعضو نسخو کښې باب بغیر د ترجمے نه دے نو پدے کښې ئے ریاح او غیر ریاح تول راوړیدی او که ریاح باب شی نو بیا نور څیزونه ذکر کول بالتبع دی۔

### الفصل الاول

١٥١٠ (١) - عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «نُصِرْتُ بِالصَّبَا، وَاُهْلِكَتْ عَادٌ بِالدَّبُوْرِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه :** ابن عباس ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : « ما سره د باد صبا په وجه مدد شوے دے او عادیان د دبور هوا په ذریعه هلاك شوی دی»۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)

**تشریح :** صبا هغه هواء ده چه د مشرقی طرف نه راالوزی او دَبور د مغربی طرف نه الوزی۔ طیبیؒ وائی : کله چه تـه قبلے ته مخ کړے نو د شا د طرف نه چه کومه هواء رالوزی هغے ته باو صبا وائی او دیته قَبول (بالفتح) هم وائی ځکه دا مقابل کیږی د باب الکعبه ځکه ددے د الوتلو ځائے مشرق الشمس او مطلع الشمس دے۔ بعض وائی دا تفسیر په باره د خراسان او ماوراء النهر کلو او د هغے ماحول کلو کښې دے د کومو قبله چه غربی سمت ته ده۔نهٔ روم او عرب۔

او دبور شنله هواء ده۔ او پدے باد صبا سره د نبی ﷺ مدد په غزوهٔ خندق کښې شوے وو کله چه احزاب (دلے) تقریباً (١٢) زره راجمع شوی وو او د مدینے نه ئے گیره اچولے وه نو الله په دغه دلو باندے هواء راولیږله چه دا په یخو شپو کښې وه، سخته یخنی وه چه په دوی باندے ئے خاوره راوچتے کړے او د دوی اُورونـه ئے مړهٔ کړل او د دوی خیمے ئے اوچتے کړے او موږی ئے ورلـه اوویستل۔ نـو دوی بغیر د قتال نه شکست اوخوړو، لکه قرآن کریم هغه ذکر کړیده پدے آیت کښې : ﴿ إِذْ جَاءَتْكُمْ جُنُوْدٌ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا وَجُنُوْدًا لَمْ تَرَوْهَا﴾ الآیة ۔

امام بخاريؒ هم دا حديث په باب د غزوهٔ خندق كښې راوړيدے اشاره كوي چه په دغه هواء سره د نبي ﷺ مدد شوے وو كومه چه په دے غزوه كښې په كافرانو باندے راغله۔
**عَادٌ** : ددهٔ مكمل نوم عاد بن عوص بن ارم بن سام بن نوح عليه السلام دے۔ ددهٔ نه اولاد خوارهٔ شوي وو نو دوي (۱۳) قبيلے جوړے شوے وے او په احقاف كښې اوسيدل۔ چه دا د عُمان او حضرموت (يمن) ترمينځ شكلنه علاقه وه۔ دارنګه دوي په دهناء، عالج، بثرين، دبار، او د عمان نه تر حضرموت پورے علاقو كښې آباد وو۔ چه دا د جزيرة العرب په جنوب كښې وو او دا ډير سرسبز او ډيرو باغونو والا زمكے وے ليكن كله چه دوي د الله نافرماني شروع كړه او د الله د انبياؤ خبره ئے اُونه منله نو الله د دغه علاقو نه دشتے جوړے كړے او په دبور هوا باندے ئے هلاك كړل او دا هواء په دوي باندے اووه شپے او اته ورځے متواتر روانه وه، د يوم الاربعاء په صبا شروع شوے وه او د اتمے ورځے په آخر كښې اودريده، او هود عليه السلام او د هغه تابعدار مومنان په پنغاړي كښې يو طرف ته شو۔
بعض وائي : د هود عليه السلام تابعدار څلور زره كسان وو۔ او دا هواء دومره سخته وه چه ونے به ئے د بيخ نه ويستلے او كورونه به ئے نړول او كه څوك به كور كښې نهٔ وو نو هغه به ئے په دشتو او غرونو كښې هلاكول او د دوي د كجاوے زنانه به ئے آسمان ته دومره اوچتے كړے چه داسے به ښكاره كيدے لكه ملخان او بيا به ئے د زمكے نه اوويشتے او څټونه به ئے ورله مات كړل۔ بعض وائي : يو سرے به هواء اوچت كړو او بيا به ئے زمكے ته راخوشے كړو نو سر به ئے ورله د تنے نه جدا كړو۔ تفاسيرو كښې راځي چه د دوي تنے (۱۲) ګزه كم و زيات وے۔ او قرآن كريم ترے په ﴿ أَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ ﴾ سره تعبير كړيدے۔ يعني داسے وو لكه د راپريوتو كجورو تنے۔
په طبراني كښې د ابن عباسؓ په مرفوع روايت كښې دي : چه الله په عاديانو باندے صرف د يوے ګوتمے په اندازه سوري نه هوا راكولاوه كړه په كلي والو تيره شوه نو هغوي او د هغوي څارپيان او مالونه ئے د آسمان او د زمكے ترمينځ پورته كړل نو ښاريو والو اوكتل، وے وئيل: (هَذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا) (دا وريځ ده په مونږ باران كوي) نو الله دوي په هغوي باندے دپاسه راوارتول نو ټول هلاك شو۔
بيا علماؤ ددے حديث ډير مطلبونه بيان كړيدي (۱) چا وئيلي دي چه مقصود پدے حديث كښې دا دے چه باد صبا په باد دبور باندے غوره ده ځكه چه باد صبا د مدد هواء ده او باد دبور هلاكونكے باد دے ليكن دا مطلب واضح نهٔ دے ځكه چه په دواړو باندے ښه كارونه كيږي ځكه باد دبور هم د الله دشمنان هلاك كړيدي او د انبياؤ سره پرے الله مدد كړيدے۔
(۲) بعض وائي : نبي ﷺ پدے حديث كښې زمونږ ذهن جوړوي چه دا ټول اشياء او عناصر د الله د امر او د هغه د ارادے د لاندے مسخر دي۔ نو پدے كښې رد دے په طبيعينو او حكماء او

فلاسفو باندے چه هغوی د الله د مشیت او ارادے نه منکر دی۔

او د حدیث نه دا فائدے معلومیږی چه یو انسان باندے الله فضل کړے وی نو د تحدیث بالنعمة په طور باندے د خپل ځان نه خبر ورکولے شی چه الله ما له دا کمال راکړے دے خو پدے شرط چه فخر، تکبر او عجب کښې به نهٔ راځی او خلق به سپك نهٔ گنړی۔

**فائده :** هوا گانے په څلور قسمه دی کوم چه د څلورو وارو اطرافو نه الوزی دوه مخکښې او دریمه هواء ته جنوب وائی۔ دا هغه هواء ده چه د قبلے د ښی طرف نه الوزی او څلورمه شمال ده دا د شمالی طرف د قبلے نه الوزی۔ او ددے هرے هواء خپل خپل طبیعت دے۔ باد صبا حار یابس دے۔ او دبور بارد او رطب دے۔ او جنوب حار رطب دے او شمال بارد یابس دے۔ او دے باد شمالی ته په صحیح مسلم کښې ریح الجنة وئیلے شویدے چه په جنتیانو به دا هواء الوزی۔ راجع المرعاة (۱۹٦/۵)

**اشکال:** پدے حدیث کښې دی چه هواء سره د نبی ﷺ مدد شویدے نو پدے باندے خو خوشحالی پکار ده او په روستو روایت د عائشہؓ کښې راغلی دی چه نبی ﷺ به کله هوا اولیدله نو د خوف آثار به ئے په مخ مبارك ښکاره کیدل؟۔

**جواب:** د کوم شی نه چه خوف کیږی نو الله د هغے د بد آثارو نه انسان ساتی او په هغے باندے ښه آثار مرتب کوی نو کله چه انسان د هواء په راالوتلو سره د الله نه خوف کوی نو الله ورله په دغه هواء کښې خیر او برکت اچوی لکه ګلته چه نبی ﷺ د هواء نه خوف کوی لیکن الله پرے د هغه مدد اوکړو او عادیان ترے نهٔ پریدل نو الله پرے بد آثار مرتب کړل۔ ځکه دا ټول مخلوق د الله په کنټرول کښې دے نو د کوم شی نه چه انسان یره کوی الله ئے ترے ساتی۔

۲- یا دا خوف د نبی ﷺ تعلیم دے امت ته چه کله داسے آثار د عذاب اووینئ نو تاسو له ددے نه خوف پکار دے۔ او دا د نبی ﷺ د الله تعالیٰ کامل معرفت دے چه الله کولے شی چه په کوم شی کښې ئے مدد اچولے دے چه د هغے نه عذاب جوړ شی ځکه د الله مشیت طلیق (آزاد) دے هغه د چا پابند نهٔ دے نو د الله د حق او د هغه د معرفت تقاضا دا ده چه د هغه نه یره اوکړے شی۔ او بنده ګان گناهگار دی نو کیدے شی چه کوم شے سبب د نصرت وی هغه سبب د عذاب اوګرځی نو د خپلو گناهونو په اعتبار یره پکار ده۔

---

۱۵۱۱(۲) - وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: مَا رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ ضَاحِكًا حَتّٰى أَرٰى مِنْهُ لَهَوَاتَهُ، إِنَّمَا كَانَ يَتَبَسَّمُ، فَكَانَ إِذَا رَأَى غَيْمًا أَوْ رِيْحًا عُرِفَ فِيْ وَجْهِهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: او عائشه رضی الله عنها فرمائی : ما رسول الله ﷺ داسې خندا کونکې نهٔ دې لیدلې تردې چه د هغهٔ نه زهٔ د هغهٔ حلقئ (وړه) ژبه اووینم، بلکه هغهٔ به تبسم کولو (مسکې کیدو به) خو کله چه به هغهٔ وریځه یا (تیزه) هوا اولیدله نو (تغیر به ئې) په مخ کښې ښکاریدو۔ (بخاری ومسلم)۔

تشریح : مطلب دا دې چه ما رسول الله ﷺ په داسې خندا نهٔ دې لیدلې چه د هغه حلقئ ژبه ښکاره شي بلکه رسول الله ﷺ به صرف تبسم کولو (مسکې کیدو به) یعنی په خندا کښې ئې مبالغه نهٔ ده کړې په روایت د کشمهینی کښې داسې الفاظ دی : (مُسْتَجْمِعًا ضَاحِكًا) یعنی په ډکه خوله ئې نهٔ دی خندلی، مبالغه ئې په خندا کښې نهٔ ده کړې۔ دا دلیل دې چه نبی ﷺ د دنیا پرستو خلقو په شان غافل او مست او خوشحالی کونکې نهٔ وو بلکه تبسم به ئې کولو چه دا د انسان په خوش اخلاقئ دلالت کوی۔ او کله چه به ئې وریځ او تیزه هوا اولیدله نو مخ مبارك کښې به ئې تغیر پیدا شو ځکه په امت باندې رؤف رحیم وو، هسې نهٔ چه په دوی باندې عذاب رانشی۔ او دا دړې واړه صفات د خوش اخلاقئ نمونه ده۔

لَهَوَاتُهُ : لهوات جمع د لَهَاةٌ ده دا هغه سرې غوښې ته وائی چه د تالو په بره طرف کښې رازوړنده ده یعنی حلقئ ژبه، وړه ژبه۔ بعض وائی : د خولې قورم (زور والی) ته وائی کوم چه د ژبې بیخ ته نزدې دې۔

بیا دا حدیث منافی نهٔ دې د بل حدیث سره چه په هغې کښې دی : رسول الله ﷺ اوخندل تردې چه نواجذ (مخامخ غاښونه) ئې ښکاره شو ځکه چه مخامخ غاښونو ښکاره کیدونه دا نهٔ لازمیږی چه حلقئ ژبه دې ښکاره شوی وی۔ بعض وائی : تبسم ئې په اغلبی حالت کښې وو او ظهور النواجذ ئې علی سبیل الندرة وو۔

۱۵۱۲ (۳) – وَعَنْهَا، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا عَصَفَتِ الرِّيحُ قَالَ: « اَللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا وَخَيْرَ مَا فِيهَا وَخَيْرَ مَا أُرْسِلَتْ بِهِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا فِيهَا وَشَرِّ مَا أُرْسِلَتْ بِهِ »، وَإِذَا تَخَيَّلَتِ السَّمَاءُ، تَغَيَّرَ لَوْنُهُ، وَخَرَجَ وَدَخَلَ، وَأَقْبَلَ وَأَدْبَرَ، فَإِذَا مَطَرَتْ سُرِّيَ عَنْهُ، فَعَرَفَتْ ذٰلِكَ عَائِشَةُ، فَسَأَلَتْهُ، فَقَالَ: « لَعَلَّهُ يَا عَائِشَةُ كَمَا قَالَ قَوْمُ عَادٍ: ﴿ فَلَمَّا رَأَوْهُ عَارِضًا مُسْتَقْبِلَ أَوْدِيَتِهِمْ قَالُوا هٰذَا عَارِضٌ مُمْطِرُنَا ﴾ وَفِي رِوَايَةٍ : وَيَقُولُ إِذَا رَأَى الْمَطَرَ: « رَحْمَةً ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : کله چه به تیزه سیلئ راوالوته نو نبی ﷺ به

فرمایل : ((اللهم انی اسئلك ...... )) (اے الله ! زۀ تا نه ددے هوا خیر او د هغۀ شی خیر غواړم چه په دے هوا کښې دے او د هغـۀ شی خیر چه دا هوا پرے رالیږلے شوے ده، او په تا سره ددے د شر او د هغـۀ شی د شر نـه چـه پدے کښې دے او د هغۀ شی د شر نه چه دا هوا پرے رالیږلے شوے ده پناه غـوارم او کـلـه چـه بـه وریځ د باران دپاره تیاره شوه نو (د مخ) رنګ به ئے بدل شو (د کبراهټ او اضطراب پـه وجـه بـه په یو ځائے نۀ پاتے کیدو) او وتو ننوتو به، اودغه شان راتلو او تلو به، او کله چـه بـه بـاران شـروع شـو نـو د نبی ﷺ خوف او اضطراب بـه ختم شو، نو عـائشـےؓ دا (تغیر) محسوس کړو نو رسول الله ﷺ نه ئے ددے د سبب متعلق تپوس اوکړو، نبی ﷺ اُوفرمایل : اے عـائشـےؓ ! (څـۀ خبـره ئـے!) شاید دا وریځ هغۀ شان وی لکه څنګه چه قوم عاد د هغے په باره کښې وئیلی وو چـه دا وریځ ده په مونږ باران کوی لکه پدے آیت کښې د قوم عاد حالت بیان شوے دے: (( هـر کـلـه چـه هـغـوی وریځ اولیدله چه د هغوی کندو او وادیانو ته مخامخ کیدونکے وه نو ویے وئـیـل : چـه دا وریځ ده چه په مونږ باران کوی))۔ او په یو روایت کښې (د فَاِذَا مَطَرَتْ سُرِّیَ عَنْهُ) په ځائے داسے الـفـاظ) دی :کـلـه چـه بـه نبی ﷺ باران اولیدلو نو داسے به ئے فرمایل : ((دا باران د رحمت باعث دے))۔ (بخاریؒ، ومسلمؒ)

**تشریح: تَخَیَّلَتِ السَّمَاءُ** : یـعـنـی کله چه به وریځه د باران دپاره تیاره شوه۔ تخیل په عربی کـښې پـه هـغـه وخت استعمالیږی چه په آسمان کښې د باران اثر ښکاره شی۔ ابوعبیدؒ وائی : دا د مَـخِـیلة نـه دے هغه وریځے ته وائی چه په هغے کښې رعد او برق وی انسان ته دا خیال کیدے شی چه دا بـه بـاران اُوکـړی نـو مـعـنـی دا شـوه چه کله به خیال اوکړے شو په وریځ باندے چه دا باران کوی۔نو دغه وخت کښې به د نبی ﷺ رنګ مبارك بدل شو۔

**سُرِّیَ عَنْهُ** : یعنی لرے به کړے شی د هغه نه خوف او حزن او زائل به شو۔

امـام نـوویؒ فـرمـائـی : پـه حـدیـث کـښې دا دی چه کله اختلاف د احوالو راځی او د یرے اسباب راشـی نـو پـه هـغـه وخت کښې د الله مراقبے ته ځان تیارول او هغه ته التجاء کول پکار دی۔ او د نبی ﷺ خوف پـدے خبـره وو چـه د ګـنـا هـګـارو خـلقو په عصیان باندے مونږ ته سزا رانکړے شی۔ دارنـګـه پـدے کښې تنبیه ده سړی ته چه د پخوانو امتونو د احوالو نه غافل نشی بلکه هغه رایاد کـړه او د هـغـوی پـه لاره روان نشـے هـسـے نـه چـه تـا تـه هم هغه عذاب اورسی کوم چه هغوی ته رسیدلے وو۔○ او پدے کښې په امت باندے د نبی ﷺ شفقت دے۔

**سوال** : نبی ﷺ تـه دا پتـه وه چه ترڅو پورے زۀ په امت کښې موجود یم عذاب به نۀ راځی نو څنګه یره کوی لکه دا خبره الله هم فرمائیلے ده : ﴿ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَاَنْتَ فِيْهِمْ ﴾

**جواب**: په آیت کښې دا احتمال شته چه دا عذاب به خاص وی په دغه مذکوره خلقو پورې۔○ یا دا چه یو وقت دون وقت پورې به خاص وی۔ هر وخت به دغه حکم نهٔ وی۔○ یا دا چه خوف پرې دومره غالبه شوې وو او د الله د مکر او تدبیر نه یره پرې دومره حد ته رسیدلې وه چه د هغه نه ئې دا هیر کړی وو چه د نبی په موجودګئ کښې به عذاب نه راځی۔○ یا دا چه دا یره د الله حق دې او دا تعلیم دې امت ته چه هغوی له خو ضرور هر وخت داسې یره پکار ده خصوصاً کله چه د خطرې سره هم مخامخ وی۔

**۱۵۱۳ (٤)** ـ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« مَفَاتِيْحُ الْغَيْبِ خَمْسٌ »، ثُمَّ قَرَأَ: ﴿ إِنَّ اللهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ ﴾ الآيَةَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

**ترجمه** : او ابن عمر ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمایلی دی :« د غیب خزانې پنځه دی»۔ بیائې دا آیت اولوستلو : یقیناً د الله تعالىٰ سره علم د قیامت دې او هم هغهٔ باران نازلوی۔ (بخاریؔ)۔

**تشریح** : مفاتیح الغیب نه مراد هغه علوم دی چه په هغې سره انسان غیب ته رسی دا پنځه څیزونه دی چه صرف الله ته ددې علم دې او هغه (۱) د قیامت علم۔ (۲) د باران نازلیدل۔ (۳) په رَحِم کښې بچی باندې علم۔ (٤) د آینده ورځې علم۔ (۵) د مرګ او د مکان د مرګ علم۔ ددې علم الله هیڅ ملائك مقرب او نبی مرسل ته نهٔ دې ورکړې۔ دا غیب حقیقی دې۔

مفاتیح چه جمع د مَفْتَح شی په فتحه د میم نو بیا خزانو ته وائی۔ یعنی غیبی امورو دپاره دا خزانې دی چه پدې کښې ساتل شی۔ او که جمع د مِفْتَح شی په کسره د میم نو بیا چابیانو ته وائی یعنی دا د غیبی امورو دپاره چابیانې دی چه پدې سره خزانو ته رسیدل کیږی۔ بعض وائی دا صیغه د ظرف ده یعنی ځایونه د کولاویدو د غیبو چه هغه خزانې دی۔ غیب څه ته وائی : (هُوَ الْاَمْرُ الْخَفِيُّ الَّذِیْ لَا یُدْرِکُهُ الْحِسُّ وَلَا یَقْتَضِیْهِ بَدَاهَةُ الْعَقْلِ) (غیب هغه پټ شی ته وائی چه حواسو باندې نهٔ معلومیږی او نهٔ د هغې بدیهی عقل تقاضا کوی)۔ بیا غیب په دوه قسمه دی۔ (۱) یو هغه غیب دی چه په هغې باندې هیڅ دلیل نهٔ وی او هغې ته رسیدل نشی کیدې لکه دا پدې آیت کښې ذکر دی : ﴿ وَعِنْدَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ ﴾ او دویم قسم هغه دې چه په هغې دلائل عقلی او نقلی اودرولې شوی وی لکه صانع العالم او د هغه صفات او د آخرت ورځ او د هغې حالات او دا پدې آیت کښې راغلی دې (يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ) (بیضاوی)۔

١٥١٤ (٥) - وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «لَيْسَتِ السَّنَةُ بِاَنْ لَا تُمْطَرُوْا، وَلٰكِنِ السَّنَةُ اَنْ تُمْطَرُوْا، وَتُمْطَرُوْا وَلَا تُنْبِتُ الْاَرْضُ شَيْئًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

**ترجمه** : او ابو هريره ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (( سخت قحط دا نهٔ دے چه تاسو باندے باران اُونهٔ کړے شي ليکن سخت قحط دا دے چه تاسو باندے باران او باران اوشي. (يعني مسلسل باران) خو زمکه هيڅ راز رغون نهٔ کړي))۔ (مسلمؒ)

**تشريح** : حديث کښې دا مسئله ده چه په باران کښې رزق او برکت دے او ټول نسبت باران ته مهٔ کوئ بلکه دا ټول الله تعالیٰ کوي نو نبي ﷺ زمونږ عقيده په الله باندے برابروي دير کرت بارانونه به زيات اوشي ليکن زمکه به هيڅ گياه او فصلونه راونهٔ نو کوي نو خلق به بيا هم په قحط کښې پراته وي بلکه لا به ئے خوف زيات شي ځکه کله چه انسان باران اووينى او بيا په هغے باندے هم کار اُونهٔ شي نو خلق پوره نا اميده شي نو قحط ئے نور هم زيات شي۔ لهذا الله ته متوجه کيدل پکار دي۔ او پدے کښې رد دے په مشرکانو او طبيعينو باندے چه هغوي د کارونو نسبت ظاهري اسبابو ته کوي او هغه مؤثر حقيقي گڼړي۔ حال دا چه مؤثر حقيقي الله تعالیٰ دے۔

## الفصل الثاني

١٥١٥ (٦) - عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «اَلرِّيْحُ مِنْ رَوْحِ اللهِ، تَاْتِيْ بِالرَّحْمَةِ وَبِالْعَذَابِ، فَلَا تَسُبُّوْهَا، وَسَلُوا اللهَ مِنْ خَيْرِهَا، وَعُوْذُوْا بِهٖ مِنْ شَرِّهَا». رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ، وَاَبُوْدَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَه، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيْرِ.

**ترجمه** : ابو هريره ﷺ فرمائي: ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلي دي چه فرمايل ئے : (( هوا د الله د رحمت نه ده، دا رحمت هم راولي او عذاب هم، نو دے ته بد رد مهٔ وايئ، (بلکه) د الله تعالیٰ نه ددے خير غواړئ او په هغهٔ سره ددے د شر (او ضرر) نه پناه غواړئ ! ))۔ (شافعيؒ، ابوداؤدؒ، ابن ماجهؒ، بيهقيؒ)

**تشريح** : دلته اشکال دے چه ريح (هواء) ته ئے ځنکه روح يعني رحمت وئيلے دے حالانکه ريح کله نا کله عذاب هم وي۔ **جواب** : ١- دا د قوم ظالمين دپاره عذاب وي ليکن هغه عذاب د مؤمنانو دپاره رحمت وي ځکه مومنان د کفار او فجارو نه خلاص شي لکه ددے تائيد په دے آيت کښې دے : ﴿فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ نو په ظالمانو باندے عذاب د مومنانو په حق کښې عين رحمت دے۔ ځکه ئے پرے حمد هم کړيدے۔

**۲- دويم جواب** : روح په معنى د رحمة نۀ دے بلکه مصدر په معنى د فاعل دے اى الرائح يعنى راتلونکے نو معنى دا چه ريح د هغه څيزونو نه دے چه د الله د طرفنه راځى۔ چه کله عذاب راوړى او کله رحمت نو کله چه دا تکليف جوړ شى نو دے ته کنځل نۀ دى پکار بلکه توبه ويستل پکار دى ځکه دا د الله د طرفنه بندګانو ته تاديب دے او تاديب رحمت وى۔ او دا معنى د روستو روايت نه هم معلومه ده۔

**درجة الحديث**: اسناده صحيح : اخرجه الشافعى فى المسند (١/١٧٥، ١٧٦) رقم (٥٠٤) واحمد فى المسند (٢/٢٦٧) والبخارى فى الادب المفرد (٧٢١) (٩٠٩) وابوداود (٥٠٩٧) والنسائى فى عمل اليوم والليلة (٩٣١) وابن ماجه (٣٧٢٧) والحاكم (٤/٢٨٥) والبيهقى (٣/٣٦١)

---

**١٥١٦ (٧) - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَجُلًا لَعَنَ الرِّيْحَ عِنْدَ النَّبِيِّ ﷺ، فَقَالَ: «لَا تَلْعَنُوْا الرِّيْحَ، فَإِنَّهَا مَأْمُوْرَةٌ، وَإِنَّهُ مَنْ لَعَنَ شَيْئًا لَيْسَ لَهُ بِأَهْلٍ رَجَعَتِ اللَّعْنَةُ عَلَيْهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.**

**ترجمه** : او د ابن عباس ﷺ نه روايت دے چه (يوه ورځ) يو سړى د نبى کريم ﷺ په مجلس کښې په هوا باندے لعنت (بد رد) اوويلو، نو نبى کريم ﷺ اوفرمايل : «په هوا باندے لعنت مۀ وايئ، ځکه دا خو (د الله د طرف نه د رحمت يا عذاب دپاره) مامورة ده، او شان دا دے چه څوك په يو شى باندے لعنت اووائى چه هغۀ (د دغه لعنت) لائق نۀ وى، نو دغه لعنت پدے لعنت کونکى (بيرته) واپس کيږى»۔ دا روايت امام ترمذیؒ نقل کړے او وئيلى ئې دى : دا حديث غريب دے۔

**تشريح** : پدے حديث کښې بندګانو ته يو ادب ورکړے شويدے چه خوله په کنټرول کښې کړى او د بے ځايه لعنتونو نه ځان اُوساتى۔ د الله په مخلوق کښې چه څه کارونه کيږى نو دا د الله تعالىٰ په امر کيږى لهذا هواء ته بد رد وئيل نامناسب دى۔

**درجة الحديث**: اسناده صحيح : اخرجه ابوداود (٤٩٠٨) والترمذى (١٩٧٨) وابن حبان ذكره الهيثمى فى موارد الظمآن (١٩٨٨) والطبرانى فى الصغير (٢/٦٩-٧٠) ضمن معجم محمد بن بشران الدرهمى البصرى۔

**١٥١٧ (٨) - وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «لَا تَسُبُّوا الرِّيْحَ، فَإِذَا رَأَيْتُمْ مَا تَكْرَهُوْنَ فَقُوْلُوْا: اَللّٰهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ هٰذِهِ الرِّيْحِ وَخَيْرِ مَا فِيْهَا وَخَيْرِ مَا أُمِرَتْ بِهِ، وَنَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ هٰذِهِ الرِّيْحِ وَشَرِّ مَا فِيْهَا وَشَرِّ مَا أُمِرَتْ بِهِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.**

**ترجمه** : او ابی بن کعب ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمایلي دي :((تاسو هواء ته بد رد مهٔ وایئ، کله چه تاسو هغهٔ شے اووینئ چه تاسو ئے بد گنړئ نو داسے وایئ ! : اللهم ......) (اے الله ! مونږ ستا نه ددے هوا خیر غواړو او د هغهٔ خیر نه چه پدے کښې دے، او د هغهٔ خیر نه چه هواء ته پرے امر شوے دے۔ او پناه غواړو په تا سره د ضرر ددے هواء نه او د هغهٔ ضرر نه چه پدے کښې دے او د هغهٔ ضرر نه چه هواء ته پرے امر شوے دے))۔ (ترمذیؒ)

**تشریح** : پدے روایت کښې امت ته دعوت دے چه د هواء رالوتلو په وخت کښې دا دعاء وئیل پکار دی چه الله درله فائدے درکړی۔ او هواته د بد رد وئیلو نه منع شویدی ځکه چه د هوا راپیدا کونکے خو الله تعالیٰ دے، د هغې خپل اختیار نشته، هغه په خپل اختیار نهٔ چا ته ضرر رسولے شی او نهٔ چا ته نفع لهذا اصل خالق ته متوجه کیدل پکار دی کوم چه دا هوا راپیدا کړیده او د هغه نه سوال پکار دے چه پدے هوا کښې برکت واچوی۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : اخرجه احمد (١٢٣/٥) والبخاري في الادب المفرد (٧٢٠) والترمذی (٢٢٥٢) والنسائی فی عمل اليوم والليلة (٩٣٤) وابن السنی (٢٩٩) فی عمل اليوم والليلة)

---

**١٥١٨ (٩)** - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: مَا هَبَّتْ رِيحٌ قَطُّ إِلَّا جَثَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَلٰى رُكْبَتَيْهِ، وَقَالَ: « اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهَا رَحْمَةً، وَلَا تَجْعَلْهَا عَذَابًا، اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهَا رِيَاحًا وَلَا تَجْعَلْهَا رِيْحًا ». قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِيْ كِتَابِ اللهِ تَعَالٰى: ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا صَرْصَرًا﴾ وَ﴿أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيْحَ الْعَقِيْمَ﴾ ﴿وَأَرْسَلْنَا الرِّيَاحَ لَوَاقِحَ﴾ وَ﴿أَنْ يُّرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرَاتٍ﴾. رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعْوَاتِ الْكَبِيْرِ.

**ترجمه** : او ابن عباس ﷺ فرمائي: هيڅ كله هواء نهٔ ده رالوتلے مگر رسول الله ﷺ به په گونډو كيناستو او دا به ئے فرمايل: (( اے الله دا رحمت اوگرځوه او عذاب ئے مهٔ جوړوه، اے الله ! دا د خير هواگانے جوړے كړه او د عذاب هواء ئے مهٔ گرځوه ))۔ ابن عباس ﷺ فرمائي: د الله په كتاب كښې دی : (( مونږ په دوی باندے تیزه هواء راوليږله))، او (( مونږ په دوی باندے شنډه هواء راوليږله))، او (( مونږ هواگانے راليږو چه وريځے راپورته كونكی وی )) او (( الله هواگانے راليږی چه خوشحالی راوستونكی وی ))۔ (شافعیؒ، بيهقیؒ)

**تشریح** : ددے ځائے نه فرق د ريح او رياح معلوم شو چه ريح په عذاب كښې استعماليږی او رياح په خير كښې۔ يا دواړه په يو معنی دی ليكن دلته مطابقه د مختلفو هواگانو شويده نهٔ د

يوے هواء څكه د عربو دا عقيده وه چه وئے د مختلفو هواګانو په سبب حاملے (باردارے) كيږي، د يوے هواء نه نۀ بلاربيږي۔ او د عبد الله بن عباسؓ د استدلال نه واضح كيږي چه ريح هميشه په عذابونو كښې په قرآن كريم كښې استعمال شويدے يا يوه متواتره هواء په عذابونو كښې راغلے ده او مختلفے هواګانے په خير كښې استعمال شويدي يا په مختلفو هواګانو كښې فائدے وي۔

**لَوَاقِحَ** : جمع د لاقحة ده، بارونكي او راپورته كونكي دي وريځو له او بيا د هغے نه بارانونه كيږي۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف جداً : اخرجه الشافعي في المسند (١/١٧٥ رقم ٥٠٢) وابويعلى في المسند (٤/٣٤١ رقم ٢٤٥٦) والطبراني في الكبير (١١/٢١٣) رقم (١١٥٣٣) وفيه العلاء بن راشد مجهول يرويه عن ابراهيم بن ابي يحيى وهو الاسلمي متهم وعزاه ابن حجر في المطالب العالية (٣/٢٣٨ رقم ٣١٧١) لمسدد۔

**١٥١٩ (١٠) – وَعَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا أَبْصَرَ نَاشِئًا مِنَ السَّمَآءِ – تَعْنِي السَّحَابَ – تَرَكَ عَمَلَهُ وَاسْتَقْبَلَهُ، وَقَالَ: « اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِيْهِ »، فَإِنْ كَشَفَهُ حَمِدَ اللهَ، وَإِنْ مَطَرَتْ، قَالَ: « اَللّٰهُمَّ سُقْيًا نَافِعًا »، رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه، وَالشَّافِعِيُّ وَاللَّفْظُ لَهُ.**

**ترجمه** : او عائشه رضی الله عنها فرمائي: نبی ﷺ به چه كله د آسمان د طرف نه يو راپيداكيدونكے وريځ اوليدله نو (دنياوي) كار به ئے پريخودلو او هغے ته به متوجه شو او دا دعاء به ئے اوكړله : « اے الله ! زۀ په تا سره پناه غواړم د هغۀ شر نه چه پدے كښې دے »۔ نو كه وريځ به لرے شوه نو د الله حمد به ئے اوونيلو او كه باران به ئے اوكړو نو دا دعاء به ئے اوفرمايله : « اے الله، فائده وركونكے باران نازل كړه »۔ (ابوداودؒ، نسائيؒ، ابن ماجهؒ، شافعيؒ، او الفاظ د امام شافعيؒ دي)۔

**تشريح : نَاشِئًا** : يعني راپيداكيدونكے شے، مراد ترے نه وريځ ده۔ حمد الله : يعني نبی ﷺ به حمد ځكه وئيلو چه د هغه شي نه چه د عذاب يره ترے كيدے شوه د هغے نه نجات راغلو۔

**سُقْيًا** : يعني إِسْقِنَا سُقْيًا نَافِعاً مفعول مطلق دے۔ (مونږ په فائده باران خړوبه كړه)۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : اخرجه الشافعي (١/١٧٤) رقم (٥٠١) وفي اسناده الاسلمي المذكور لكنه لم يتفرد به فقد اخرجه احمد (٦/١٩٠) وابوداود (٥٠٩٩) والنسائي (٣/١٦٤) وابن ماجه (٣٨٨٩) وابن حبان (٦٠٠) واخرج نحو البيهقي في الكبرى (٣/٣٦٣)

**١٥٢٠ (١١) – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ إِذَا سَمِعَ صَوْتَ الرَّعْدِ وَالصَّوَاعِقِ، قَالَ: « اَللّٰهُمَّ لَا تَقْتُلْنَا بِغَضَبِكَ، وَلَا تُهْلِكْنَا بِعَذَابِكَ، وَعَافِنَا قَبْلَ ذٰلِكَ ». رَوَاهُ أَحْمَدُ،**

وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** : او ابن عمر ﷺ نه منقول دي: چه نبي ﷺ به کله د رعد (ګرزارے) او تندر آواز واوریدو نو داسے دعاء به ئے فرمایله : (اے الله ! مونږ په خپل غضب سره مه وژنه، او په خپل عذاب سره مونږ مه هلاکوه، او ددے نه مخکښ مونږ ته عافیت راکړه)۔ (احمدؒ، ترمذیؒ) او امام ترمذیؒ وئیلی دی : دا حدیث غریب دے۔

**تشریح**: د تندر او د وریځے د ګرزار په وخت دا دعاء لوستل جائز دی لیکن سنت به ئے نهٔ ګنړی ځکه روایت ضعیف دے۔ بلکه یوه عامه دعاء ده ځان ته د جوړولو په ځائے دغه دعاء ښه ده۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : اخرجه احمد (۲/ ۱۰۰، ۱۰۱) والبخاری فی الادب المفرد (۷۲۲) والترمذی (۳٤٥۰) والنسائی فی عمل اليوم (۹۲۸) وابن السنی فی عمل اليوم والليلة (۳۰٤) وفی الاسناد ابومطر شيخ الحجاج بن ارطاة وهو مجهول كما قال الحافظ والذهبی۔

## الفصل الثالث

۱۵۲۱ (۱۲) - عَنْ عَامِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ كَانَ إِذَا سَمِعَ الرَّعْدَ تَرَكَ الْحَدِيثَ، وَقَالَ: «سُبْحَانَ الَّذِيْ يُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهٖ وَالْمَلَائِكَةُ مِنْ خِيفَتِهٖ». رَوَاهُ مَالِكٌ.

---

**ترجمه** : عامر بن عبد الله بن الزبير رحمه الله نه نقل شوی دی چه هغهٔ به کله رعد (غرغور) واوریدو نو خبرے به ئے پریخودے او داسے دعاء به ئے اُوفرمایله :« پاکی ده هغهٔ ذات لره چه تسبیح وائی رعد (ملائك) د هغهٔ د حمد سره او نور ملائك د هغهٔ د یرے نه»۔ (مالكؒ)۔

**تشریح** : دا روایت صحیح دے نو دا دعاء لوستل مناسب دی۔ عبد الله بن زبیر ﷺ به وئیل : چا چه دا دعاء اولوستله او هغه (ددے تندر په وجه) مړ شو زهٔ ئے ذمه واریم۔

رعد بعض وائی هغه آواز ته وائی چه د وریځے نه اوریدلے شی۔ لیکن صحیح دا ده چه رعد ملائك دے چه په وریځ باندے مقرر دے هغه چه کله وریځ په چابکونو باندے شړی نو د هغے نه آواز پیدا کیږی لکه یهودیانو ددے په باره کښ تپوس کړے وو چه دا آواز د څه نه راپیدا کیږی نو نبی ﷺ د هغے دغه جوابونه ورکړل (كما فی حديث الترمذی وصححه)

**درجة الحديث**: اخرجه مالك فی الموطأ (۲/ ۹۹۲) واخرجه البخاری فی الادب المفرد والبيهقی (۳/ ۳٦۲) وصحح النووی اسناده۔ وروی ابن جرير مرفوعاً عن ابی هريرة۔

بسم الله الرحمن الرحیم

# کتاب الجنائز

## د جنازو بیان

جنائز د جِنَازَة جمع ده د جیم کسره او فتحه دواړه جائز دی،ابن قتیبة او د اهل لغتو یو جماعت وائی : کسره پکښې ډیره فصیحه ده، او په جمع کښې به همیشه په زور د جیم وئیلے شی۔

۲- د بعض اهل لغتو نه نقل دیٓ چه جنازه په زور د جیم مړی ته وئیلے شی او په زیر د جیم د مړی کټ ته وئیلے شی چه کله پکښې مړے موجود وی او که مړے پکښې نهٔ وی نو هغے ته بیا سریر او نعش وائی۔ او بعض ددے په عکس فرق کوی۔ چه په زور د جیم کټ د مړی او په زیر د جیم مړی ته وئیلے شی۔ (الصحاح ۸۷۰/۳) وتاج العروس) ابن فارسؒ فرمائی : جنازة مشتق ده د جَنَزَ (ضَرَبَ يَضْرِبُ) نه په معنیٰ د پټوالی سره، او د مړی بدن پټول هم فرض دی۔ دارنګه په جنازه کښې معنیٰ د رفع (پورته والی) پرته ده، او جنازه هم په اُوګو باندے پورته کولے شی۔ (قاله النووی والحافظ والشوکانی فی النیل ٤۳/٤) بیا د جنازے نه مخکښې د مریض عیادت بیانوی ځکه غالباً خوك چه مړی نو هغه ته مخکښې مرض عارض شی، نو اُوس عیادت د مریض بیانوی چه په حالت د مرض کښې به ئے عیادت اُوکړے او بعد الموت به ئے جنازه۔

**مناسبت:** دانسان دوه حالتونه دی، د ژوند حالت، او د مرګ حالت، او د هر یو پورے احکام د عبادات او احکام د معاملاتو متعلق دی نو مخکښې ئے د ژوندو مُهم عبادت مونږ ذکر کړو نو اُوس هغه عبادت ذکر کوی چه په مړو باندے کولے شی۔ او د صلاة او د زکوٰة په مابین کښې دکتاب الجنائز ذکر کولو وجه هم دا ده۔ (۲) دویمه وجه دا ده چه په مړی باندے کوم کارونه کیږی چه هغه غسل او تکفین وغیره دی نو په هغے کښې اَهم شے په هغه باندے مونږ کول دی ځکه پدے کښې مړی ته د عذاب نه د نجات دعا کولے شی خاصکر کوم چه نزدے وخت کښې د خخولو نه پس په هغه باندے راځی نو ځکه ئے د صلاة پسے جنائز راوړل۔

**شرعية صلاة الجنازة:** د جنازے مونځ د هجرت په اول کال مشروع شو، نو خوك چه په مکه کښې وفات شوی وو، په هغوی باندے د جنازے مونځ نهٔ دے شوے۔

# باب عيادة المريض وثواب المرض

## د مريض د پوښتنې او د بيمارئ د ثواب بيان

يعنې د مريض د پوښتنې وجوب او ثواب. او په دا چه مرض راشي او صبر اُوکړي نو د هغه څومره ثواب دے هغه به پدے احاديثو کښې بيانيږي.

عيادة په اصل کښې عِوَادَةٌ دے واو متحرك ماقبل مكسور (د حِيَاض) اعلال په کښې اُوشو نو واو په ياء بدل شو. عيادة د عَوْد نه دے په معنىٰ د راواپس کيدو سره او د مريض زيارت ته پدے وجه عيادت وئيلے شي چه خلق دے ته باربار راواپس کيږي.

**حكم عيادة المريض:** ـ د مريض دپاره نګران او پرورش کونکے وي نو بيا د مريض پوښتنه سنت مؤکد ده او که د مريض نګراني کونکے نۀ وي بيا فرض دے په فرض کفائي سره. د امام بخاريؒ په نيز عيادة المريض فرض دے ځکه چه هغه په خپل صحيح کښې په کتاب المرضیٰ کښې په دے باندے داسے باب ايخودے دے (بَابُ وُجُوبِ عِيَادَةِ الْمَرِيْضِ) حافظ ابن بطالؒ ليکي: احتمال لري چه پدے باب کښې امر د وجوب دپاره وي او دا به واجب کفائي وي لکه اطعام الجائع او فکاك الاسير کښې چه څنګه واجب کفائي دے. او دا قول د داودي رحمه الله دے او شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله په الاختيارات العلميه ص (٨٥) کښې غوره کړيدے. او همدا صحيح دے. او دا احتمال هم شته چه امر پکښې د استحباب دپاره وي او مقصد پکښې د مسلمان په تعلق او د هغه په الفت باندے تيزي ورکول وي او دا قول د جمهورو دے. (شرح ابن بطال ٩/٢٧٣ – والمرعاة)

### د اول قول دليل:

**١ - دليل:** حديث د مسلم (٥٧٧٧) کښې دي: [خَمْسٌ تَجِبُ لِلْمُسْلِمِ عَلَى أَخِيْهِ الْمُسْلِمِ رَدُّ السَّلَامِ وَتَشْمِيتُ الْعَاطِسِ وَإِجَابَةُ الدَّعْوَةِ وَعِيَادَةُ الْمَرِيْضِ وَاتِّبَاعُ الْجَنَائِزِ] حافظ ابن حجرؒ فرمائي: ظاهره دا ده چه ددے نه مراد دلته وجوب الكفايه دے. (فتح الباري ٣/١٣٦)

**٢ - دليل:** پدے باندے په حديث د صحيحينو کښې امر راغلے دے. او امر د وجوب دپاره وي.

**٣ - دليل:** دارنګه په حديث د مسلم کښې ددے نه تعبير په (حق المسلم) سره شويدے او د

مسلمان حق ادا کول واجب دی۔

**فائده** : د هغه مريض عيادت به کولے شي چه هغه داسے بيمار شوے وی چه خپل کور کښې پروت وی او د خلقو د راوتو نه منقطع شوے وی، او کوم مريض چه معمولی بيمار وی چه خلقو ته د راوتو او ملګری کيدو نه مانع نۀ وی نودده عيادت واجب نۀ دے اګرکه د هغه د حال په باره کښې تپوس کول مستحب عمل دے۔ مسلمانانوله پکار دی چه د يو بل د حال تپوس پوښتنه اُوکړی۔

## آداب عيادة المريض :

د بيمار پُرسۍ ډيرآداب دی چه اکثر د احاديثو نه معلوم دی بعض دا دی :

(۱) دا نيت به کوی چه پدے سره د نبی ﷺ په حکم باندے عمل راځی ځکه هغه په بيمار پرسۍ باندے حکم کړيدے۔ (۲) دا نيت به کوی چه زۀ په بيمار پرسۍ سره د خپل ورور مسلمان سره احسان کوم ځکه مريض له چه کله تپوس کونکے لاړشی نو هغه ته ډير راحت رسيږی او سينه ئے کولاوه شی۔ (۳) د مريض سره د فضول خبرو کولو په ځائے د هغه فائده منو خبرو ته متوجه کول پکار دی مثلاً هغه ته په توبه، استغفار او د حقوق العبادات اداکولو حکم پکاردے۔ (٤) کله ناکله د مريض سره د طهارت، د مانځه او روژو متعلق څه اشکالات او سوالونه وی۔نو کله چه ته (عالِم) د چا تپوس له لاړشے نو تا نه به مريض ډيره فائده واخلی۔ (٥) مريض سره ډير پاتے کيدل مناسب نۀ دی، چه په هغه بوج شی، ډير خلق د مريض مجلس د ګپ شپ مرکز جوړ کړی۔ مګر پدے باب کښې به مصلحت ته کتلے شی کله چه مريض د چا په ډير کيناستو خوشحاليږی نو بيا کيناستل جوازلری۔او همدا صحيح قول دے۔ انس بن مالك بيمار وو حُمَيْد الطويل د خپلو ملګرو سره د هغه بيمار پرسی اُوکړه هغوی چه پاڅيدل نو انسؓ ايسار کړل او د هغوی دپاره ئے طعام راوغوختو۔ (الترغيب للمنذری۳/۳۷۳) فتاوی الدين الخالص (۷/ ۷۰)۔

(٦) په بيمار پرسۍ کښې غټه فائده دا ده چه انسان ته د روغ صحت او عافيت د نعمت قدر راياد شی ځکه چه انسان ته د الله تعالیٰ د نعمتونوقدر نۀ معلوميږی مګر هله چه کله مصيبت زده او مريض اُوينی، نو تا له پکار دی چه ته په خپل روغ صحت باندے د الله تعالیٰ حمدونه اُوائے دے دپاره چ. دا نعمت تا سره هميشه کړی۔

(۷) د مريض دعاء غالباً قبليږی نو په بيمار پرسۍ کښې دا اميد شته چه مريض به تپوس کونکی ته دعا اُوکړی نو کيدے شی چه پدے سره ئے بيړه پار شی۔

(۸) بيمار پرسۍ وخت کښې مريض باندے دم اچول پکار دی او مريض دے ته محتاج کول نۀ

دی پکار چه هغه ستا نه مطالبه اُوکړی چه په ما باندے دم واچوه۔

(۹) مریض ته به تسلی ورکولے شی او د مرض ثوابونه او اجرونه او حکمتونه به ورته بیان کړے شی، دے دپاره چه په الله تعالیٰ باندے ئے هیڅ قسم اعتراض په ذهن کښ رانشی۔

(۱۰) عیادت د پیژندونکی شخص پورے خاص نهٔ دے بلکه د هر مسلمان که ته ئے پیژنے او که نهٔ عیادت به کولے شی۔ (۱۱) سړے د پردۍ ښځے او ښځه د پردی سړی عیادت ته هم تلے شی خو پدے شرط چه پرده پکښ وی، امن د فتنے وی، او خلوت ورسره نهٔ کوی۔ امام بخاریؒ پدے باندے باب (عِيَادَةُ النِّسَاءِ الرِّجَالَ) لګولے دے او بیا ئے وئیلی دی چه ام الدرداء رضی الله عنها د یو انصاری صحابیؓ عیادت ته لاړه۔ او عائشه رضی الله عنها د ابوبکر او بلال رضی الله عنهما عیادت ته لاړه کله چه دوی ابتداء کښ مدینے ته هجرت اُوکړو او بیماران شو۔ او ابوبکرؓ عمرؓ فاروق ته اُوفرمایل: راځه چه د ام ایمن ملاقات ته لاړ شو۔ ابن الجوزی رحمه الله فرمائی: اولیٰ دا ده چه دا محمول شی په هغه چا چه د هغے نه فتنه نهٔ پیدا کیږی لکه بوډۍ زنانه۔

(۱۲) کله نا کله د مشرك سړی عیادت هم د مصلحت دپاره کول پکار دی چه هغه ته دعوت ورکړے شی یا د هغه شر بندکړے شی او د هغه د زړهٔ الفت پیدا کړے شی۔ لکه نبی ﷺ د خپل تره (ابو طالب) تپوس ته په مرض الوفات کښ ورغلے وو۔ او یو یهودی هلك ته هم ورغلے وو۔ او د اسلام دعوت ئے ورکړو او هغه اسلام قبول کړو۔ (فتح الباری ۱۰/۱۲۵)

**تکرار عیادة المریض**: بعض علماؤ دا خوره کړیده چه هره ورځ به د یو مریض عیادت نهٔ کوی دے دپاره چه په هغه باندے ثقالت او بوج رانشی۔ لیکن حقه دا ده چه دا په اختلاف د احوالو او اشخاصو مختلف کیږی، د بعضے خلقو سره د مریض داسے اُنس حاصلیږی چه هغه ونه وینی نو پریشانه کیږی نو بیا هره ورځ ملاقات جائز بلکه بهتر دے۔ ترڅو چه د مریض حال نه معلومه نشی چه هغه دا کار بد ګنړی۔

**وقت الزیارة**: د بیمار پرسۍ دپاره څه خاص معین وخت په احادیثو کښ نهٔ دے مقررشوے۔ بلکه حافظ ابن قیم رحمه الله فرمائی: نبی ﷺ د عیادت دپاره د ورځو نه یوه ورځ نهٔ ده خاص کړے او نهٔ ئے یو وقت داوقاتو نه، بلکه امت دپاره ئے دا مشروع کړیدے لیلًا او نهاراً۔ او په ټولو اوقاتو کښ۔ انتهیٰ۔(زاد المعاد: ۱/۴۹۷)۔

بعض سلفو به په اول د ورځ کښ یا په آخر د ورځ (بیګاه) کښ د مریض عیادت کولو دے دپاره چه ملائك ورله اُوږد وخت دعا او استغفار اُوکړی او دوی به عمل کولو په هغه حدیث چه په هغے کښ دی: ((نشته یو مسلمان چه عیادت اُوکړی د یو مسلمان سحر وخت کښ مګر اویا زره

ملائك به تر بیګاه پورې د هغه دپاره دعا کوي. او که بیګاه کښې ئې عیادت اُوکړې نو سحر پورې به ورله اویا زره ملائك دعا کوي». (ترمذی بسند صحیح: ٩٦٩).

## الفصل الأول

۱۵۲۲ (۱) – عَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «أَطْعِمُوا الْجَائِعَ وَعُوْدُوا الْمَرِيْضَ وَفُكُّوا الْعَانِيَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

---

**ترجمه:** د ابو موسی اشعري نه روایت دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي: «اُوګې بانديې خوراك خوروئ او د مریض پوښتنه کوئ او قیدي آزاد کړئ». (بخاري ومسلم)

**تشریح:** د مسلمانانو په معاشره کښې د امن قائم ساتلو دپاره او په اخوت سره د ژوندګي تیرولو دپاره دا ضروري دي چه تمام مسلمانان به د یو بل د حقوقو خیال ساتي، د مسلمانانو د خپل مینځني تعلقاتو د صحیح ساتلو دپاره رسول الله ﷺ ډیر څیزونه خودلي دي چه په هغې کښې بعض څیزونه پدې حدیث کښې ذکر دي. اوځه په روستو حدیثونو کښې رازي، ددې وجه نه په روستو حدیث کښې ئې دې ته د مسلمان حق وئیلې دې. یو د هغې نه دا ده چه مسلمان بانديې لازم دي چه اُوګې انسان ته به خوراك ورکوي. او دا خوراك ورکول سنت او مستحب دي که انسان حالت د اضطرار ته نۀ وو رسیدلې او که مضطر او محتاج شوې وو نو بیا فرض کفائي دې او په هغه چا بانديې لازم ده چه څوك د هغه په حال پو هه شي که هغه طعام ورکړو نو د ټولو غاړه آزادیږي لیکن که هم ورنکړو نو ټول مسلمانان به ګناهګار وي.

قرآن کریم کښې طعام ورکول د عَقَبَه (کنډو) نه د نجات سبب خودلې شویدې.

﴿ أَوْ إِطْعَامٌ فِيْ يَوْمٍ ذِيْ مَسْغَبَةٍ ﴾

صحیح مسلم کښې دي: ابوذر ﷺ ته نبي ﷺ اُوفرمایل:

[يَا أَبَاذَرٍّ! إِذَا طَبَخْتَ مَرَقَةً فَأَكْثِرْ مَاءَهَا وَتَعَهَّدْ جِيْرَانَكَ]

(اې ابو ذر! کله چه ته ښوروا پخوې نو اُوبه پکښې زیاتې کړه او د ګاونډي خیال ساته). او د هغه چا نه ئې ایمان نفي کړې چه ځان مړوي او ګانډي ئې اُوګې وي. (صحیح الحاکم) او بهترین اطعام الطعام دا دې چه انسان بل له ښه شې ورکړي. کله چه ورته ددۀ ضرورت وي. ډیرو سلفو به خپل روژه ماتې بل له ورکولو. بعض د هغوي نه عبد الله بن عمر رضی الله عنهما او داود الطائيؒ او عبد العزیز بن سلیمان او مالك بن دینار او احمد بن حنبل وغیرهم (رحمهم الله) دي. او عبد الله

بن عمرؓ به روژه د يتيمانانو او مساكينو سره ماتوله۔

وَعُوْدُوْا الْمَرِيْضَ : د مريض په عيادت كولو سره د مريض زړهٔ خوشحاليږي او د مسلمان حق اداء كيږي او پدے سره صله رحمي راځي او انسان ته د الله تعالىٰ د نعمتونو قدر معلوميږي او په مسلمانانو باندے ترس او شفقت مادهٔ انسان كښې پيدا كيږي۔ او دا د مخلوق سره يو احسان دے۔

بيا حديث مطلق دے د څه زمانے پورے هم خاص نهٔ دے بلكه د ابتداء د مرض نه عيادت كول جائز دي۔ امام غزاليؒ په احياء العلوم كښې ليكي : چه عيادت به د درے ورځو نه روستو كوي او پدے باره كښې ئے اعتماد كړيدے په يو حديث باندے چه په فصل ثالث كښې راروان دے۔ ليكن هغه ضعيف جداً دے۔ قابل د عمل نهٔ دے نو اطلاق ددے حديث نشي مقيد كولے۔

وَفُكُّوا الْعَانِيَ : فكوا په ضمه د فاء او تشديد د كاف سره د فِكاكٌ نه امردے په معنىٰ د را آزادولو اوخلاصولو۔

الْعَانِيَ : اسم فاعل دے په وزن د قاضي د عَنَا نه دے په معنىٰ د قيدي سره، ابن الاثير په النهايه كښې ليكي : (اَلْعَانِيْ : اَلاَسِيْرُ وَكُلُّ مَنْ ذَلَّ وَاسْتَكَانَ وَخَضَعَ فَهُوَ عَنَا) (عاني قيدي ته وئيلے شي او هر هغه څوك چه ذليل او كمزورے او عاجز شي نو دا عاني دے)۔ يعني په عاني كښې معنىٰ د عاجزئ او ذلت پرته ده لكه ﴿ وَعَنَتِ الْوُجُوْهُ لِلْحَيِّ الْقَيُّوْمِ ﴾ اى خَضَعَتْ۔

ددے دوه مطلبه دي (۱) يو مطلب دا چه د كافرانو په لاس كښې د مسلمانانو يو قيدي ورشي، يا يو مسلمان په ناحقه باندے په ظلم سره د ظالمانو سره گير شي نو په مسلمانانو باندے د هغے راخلاصول فرض دي، كه تولو دا كار اُونكړو نو تول به گناهگاروي او كه بعضو اُوكړو نو د تولو نه حق ساقطيږي۔

ابن بطالؒ فرمائي : د قيدي را آزادول فرض كفائي دي او دا قول د جمهورو دے۔ او اسحاق بن راهويه رحمه الله فرمائي : دا به د بيت المال نه آزادولے شي۔ او دا د امام مالكؒ نه يو قول نقل دے او امام احمدؒ فرمائي : دا به په سرونو او مال او مبادلے سره آزادولے شي۔ (فيض القدير ٤/٥٨٣) للمناوي (۲) مطلب : كه د العاني نه غلام مراد كړے شي يعني غلامان آزاد كړئ نو بيا به دا امر د وجوب دپاره نهٔ وي بلكه د استحباب دپاره به وي۔ اول مطلب ظاهر دے۔

---

۱۵۲۳ (۲) — وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : « حَقُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ خَمْسٌ: رَدُّ السَّلَامِ وَعِيَادَةُ الْمَرِيْضِ وَاتِّبَاعُ الْجَنَائِزِ وَإِجَابَةُ الدَّعْوَةِ وَتَشْمِيْتُ

الْعَاطِسِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه :** ابو هريره ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل :«د مسلمان په مسلمان پنځه حقونه دی (۱) د سلام جواب ورکول (۲) او د بيمار پوښتنه کول (۳) او د جنازے سره تلل (٤) او دعوت قبلول۔ (۵) او د پرنجی کونکی جواب ورکول»۔ (بخاری ومسلم)۔

**تشريح :** دلته ئے دے کارونو ته حق اُووئيلو او حق لفظ اگرکه مشترك دے په مابين د واجب او ثابت او لازم او صدق وغيره معنو کښې په اشتراك معنوی سره ليکن دلته ترے مراد حق واجبی دے د وجه د قرائن خارجيه ؤنه چه هغه مخکښې بيان شو۔ لهذا دا ټول مذکوره څيزونه فرض کفائی دی۔

سلام يوه دعاء ده کله چه يو مسلمان خپل ورور سره ملاويږی نو هغه ته د سلامتيا دعا کوی۔ دا ددے خبرے علامه ده چه ددهٔ په زړهٔ کښې ددے ورور سره نفرت يا بغض نشته، يعنی مسلمان باندے فرض دی چه د نورو مسلمانانو دپاره به غلط سوچ نهٔ کوی، او چا باندے چه سلام واچولے شی نو هغه باندے هم لازم دی چه په ښهٔ شان سره به جواب ورکوی۔ مثلًا سلام اچونکے داسے اُووائی :(اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ) نو جواب ورکونکے به داسے وائی : (وَعَلَيْكُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ) پدے سره ديرش نيکئ حاصليږی۔ او جواب کښې همغه شان الفاظ هم وئيلے شی (السلام عليکم)۔

او څوك چه په سلام کښې ابتداء کوی حديث کښې دی چه دا د تکبر نه بيزاره دے۔ او په جواب د سلام کښې به په خير راغلے نهٔ وائی بلکه اول به جواب ورکړی بيا د خير هره کلمه استعمالول جائز دی۔

**اداب السلام :** حديث کښې دی : چه وړوکے به ئے په مشر، سور انسان به ئے په پيدل تلونکی، او روان انسان به ئے په ناست او وړوکے جماعت به په غټ جماعت سلام اچوی۔ (صحيح البخاری الاستئذان: ٦٢٢١)۔ ۲– د سلام جواب که په مجلس کښې يو تن ورکړو نو فريضه ادا شوه او که يو هم ورنکړو ټول گناهگاردی او که ټول جواب ورکړی نو افضل ده۔

**اِتِّبَاعُ الْجَنَائِزِ :** يعنی د مسلمان جنازے ته حاضريدل او هغه باندے مونځ کول او د هغه پسے د هغه د دفن کولو دپاره مقبرے ته تلل۔ دا هم فرض کفائی دی۔ که د مړی خخونکی ډير وی نو چا چه صرف مونځ کښې شرکت اُوکړو يو قيراط ثواب به ورته ملاؤ شی او که چا مړے دفن هم کړو نو دوه قيراطه ثواب به ورته ملاؤ شی او يو قيراط د اُحد غر هومره ثواب دے۔

**وَإِجَابَةُ الدَّعْوَةِ :** ددے دعوت نه د خوراك دعوت مراد دے۔ بعض علماء ددے نه وليمه مراد کوی چه د وليمے دعوت قبلول فرض دی او عام دعوت قبلول سنت او مستحب دی۔ ليکن دے فرق باندے دليل نشته۔ صحيح دا ده چه د مسلمان هر قسم دعوت قبلول ضروری دی که هغه

د يو امير او مالدار وي او كه د غريب وي، د وليمې دعوت وي او كه هسې دعوت وي۔ پدې شرط چه هلته شرعي يا عرفي مانع نهٔ وي لكه طعام كښې حراموالے وي، يا د فخر او خيلاء دپاره شوے وي۔ حديث كښې دي : ((كه زهٔ د چيلۍ يوې پانچې ته راوبللے شم نو زهٔ به ضرور هغه دعوت قبلوم او كه ماته په تحفه كښې د چيلۍ يوه پانچه راكړے شي نو هغه به قبلوم)) (صحيح البخاري، النكاح باب من اجاب الى كراع۔ رقم: ٥١٧٨)۔

**فائده :** پدې حديث كښې پنځه څيزونه ذكر دي او په روستني حديث كښې ددې نه زيات دي نو پدې كښې هيڅ تعارض نشته او نهٔ پدې كښې حصر شته بلكه دا صرف د يو مجلس خبره ده او هغه د بل مجلس خبره ده۔ ځكه چه په مسلمان باندې صرف همدا حقوق نهٔ دي بلكه نور ډير شې حقوق پرې شته۔ لكه پدې تولو حديثونو كښې نهه حقوق ذكرشويدي۔

**وَتَشْمِيتُ الْعَاطِسِ :** تشميت (په شين سره) پرنجي كونكي ته د خير او بركت دعاء كولو ته وئيلے شي كله چه هغه الحمد لله اُووائي۔ او دا مشتق دے د شَوَامِتُ نه، خپو ته وئيلے شي نو گويا كښې پرنجي كونكي ته دعا كوي چه الله تعالىٰ ئې په خپل طاعة باندې ثابت قدم كړي۔ (النهايه)۔ ۲- بعض وائي : ددې معنىٰ ده :[أَبْعَدَكَ اللّٰهُ عَنِ الشَّمَاتَةِ] (الله تعالىٰ دې د دشمن د خوشحالۍ نه اُوساته)۔

بعض وائي : دا په اصل كښې په سين سره وو (تَسْمِيْت) بيا سين په شين بدل شويدے۔ او د تسميت العاطس معنىٰ ده هغه ته دعاء كول چه الله تعالىٰ دې ئې السمت الحسن (يعنى ښائسته طريقې) ته هدايت اُوكړي۔

يعنى كله چه پرنجې كونكے الحمد لله اُووائي : نو جواب وركونكے به ورته (يَرْحَمُكَ اللّٰه) وائي او بيا پرنجي كونكي له پكار دي چه هغه ته (يَهْدِيكُمُ اللّٰهُ وَيُصْلِحُ بَالَكُمْ) (الله تعالىٰ دې تا ته هدايت اُوكړي او ستا كار او حالت دې برابر كړي) اُووائي۔

(صحيح البخاري، الادب، باب : اذا عطس كيف يشمت ؟)

**فائده :** بعض عارفينو نه نقل دي چه كله ته د مسلمان د حق د الله دپاره لحاظ كوے نو الله تعالىٰ به تا له دوه اجره دركوي ځكه چه تا يو د مسلمان حق ادا كړو دويم د الله تعالىٰ د امر حق دے ادا كړو۔ (فيض القدير ٣/٥١٦)

**۲۵۲٤ (۳) - وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ:(( حَقُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ سِتٌّ. قِيْلَ: مَا هُنَّ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ؟ قَالَ: إِذَا لَقِيْتَهُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ وَإِذَا دَعَاكَ فَأَجِبْهُ وَإِذَا**

اسْتَنْصَحَكَ فَانْصَحْ لَهُ وَإِذَا عَطِسَ فَحَمِدَ اللهَ فَشَمِّتْهُ وَإِذَا مَرِضَ فَعُدْهُ وَإِذَا مَاتَ فَاتَّبِعْهُ ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : او د ابو هريره ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ فرمائيلى دى :« د يو مسلمان په بل مسلمان باندے شپږ حقونه دى : تپوس اُوشو : هغه کوم دى؟ اے د الله رسوله ! وے فرمايل : (۱) کله چه ته ورسره ملاو شوے نو سلام پرے واچوه. (۲) او کله چه تا ته دعوت درکړى نو هغه قبول کړه. (۳) او کله چه تا نه څه خير خواهى اُوغواړى نو هغه دپاره خير خواهى اُوکړه. (٤) او کله چه هغه پرنجے اُوکړى او الحمد لله اُووائى نو (يرحمك الله وئيلو سره) هغه ته جواب ورکړه. (٥) او کله چه بيمار شى نو تپوس ئے اُوکړه او کله چه مړ شى نو جنازه پسے ئے روان شه ». (مسلم).

**تشريح** : **مسئله** : ابن عبد البرّ اجماع نقل کړيده چه ابتداء د سلام سنت ده او جواب د سلام فرض دے. په المنتقى شرح الموطأ کښې وجه دا بيانوى چه د سلام ابتداء په حديث سره ثابته ده، او جواب ورکول په قرآن ثابت دى ﴿ وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا ﴾ او احاديث خو ظنى دى او قرآن يقينى دے.

ليکن دا خبره ضعيفه ده بلکه د سلام اچول او د سلام جواب ورکول دواړه واجب دى، ځکه پدے مقام کښې حقوق واجبى ذکر کيږى ځکه حق لفظ اگرکه مشترك دے په معنىٰ د واجب او په معنىٰ د ثابت او لازم او صدق وغيره کښې ليکن حافظ ابن حجر العسقلانى رحمه الله فرمائى : ظاهر دا ده چه دلته د حق نه مراد واجب دے په وجوب کفائى سره. (نيل الاوطار ٤/٤٤)

او دليل دا هم دے چه (فَسَلِّمْ عَلَيْهِ) کښې په سلام اچولو امر راغلے دے نو معلومه شوه چه ابتداء د سلام هم واجب ده.

او د احاديثو د ظنيت مسئله غلطه ده بلکه صحيح احاديث ټول يقينى دى. کما قدمنا فى ۱)

إِذَا لَقِيتَهُ : نه عموم د اوقاتو معلوم شو چه سلام په هر چا باندے په هر وخت کښې اچول پکار دى اگرکه په مانځه ولاړ وى يا تلاوت کوى يا په بل عبادت کښې مشغول وى لکه ددے تفصيل بار بار تير شويدے. (۱) باب القدر ته رجوع اُوکړه.

وَإِذَا دَعَاكَ فَأَجِبْهُ : (۱) ددے يو مطلب خو دا دے چه يو مسلمان کله د طعام وغيره دعوت درکړى نو د هغه اجابت کوه. (۲) دويم مطلب دا هم کيدے شى چه کله يو مسلمان بل مسلمان راوبلى نو هغه له پکار دى چه د هغه خبره اُومنى، ځکه ممکن ده چه هغه ته به د څه مدد يا مشورے ضرورت وى، که مسلمان ورسره مدد اُوکړى يا مشوره ورکړى نو د هغه خير خواهى به

اُوكړے شي او دۀ ته به اجر ملاؤ شي۔

**إِذَا اسْتَنْصَحَكَ** : يعني يو مسلمان تا نه څه خير خواهي طلب كړي، مشوره وغيره وي نو د هغه خير خواهي كول به فرض وي۔ او دا نصيحت او خيرخواهي بغير دهغه د طلب كولو نه هم فرض ده۔ حديث كښې دي : (اَلدِّيْنُ النَّصِيْحَةُ)(مسلم) (دين د خير خواهئ نوم دے) نو كوم انسان كښې چه دمسلمانانو دپاره خير خواهي نۀ وي، دا بے دينه دے۔ په حديث د ابن ماجه (۱٤۳۳) كښې ورسره دا زيات دي : (وَيُحِبُّ لَهٗ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهٖ) (مسلمان له به هغه څه خوښوي كوم چه ځان له خوښوي) مسلمان سره به هغه سلوك كولے شي كوم چه تۀ غواړے چه تاسره اُوكړے شي، تۀ غواړے چه ستا احترام اُوكړے شي او تا ته غلطه او تيزه خبره اُونكړے شي او ستا په يو مشكل كښې مدد اُوكړے شي نو ته هم د نورو مسلمانانو سره دغه شان تعلقات كوه۔

**فَحَمِدَ اللهَ** : دا دليل دے چه كله پرنجے كونكے الحمد لله وُنۀ وائي نو يرحمك الله وئيل ورته نشته۔ لكه دا خبره په حديث د صحيح مسلم كښې راغلے ده۔ (مسلم، الزهد والرقاق باب تشميت العاطس وكراهة التثاؤب حديث :(۲۹۹۱) باقي تفصيل به ئے په باب العطاس كښې راځي ان شاء الله۔

---

۱۵۲۵ (٤) - وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: أَمَرَنَا النَّبِيُّ ﷺ بِسَبْعٍ وَنَهَانَا عَنْ سَبْعٍ، أَمَرَنَا بِعِيَادَةِ الْمَرِيْضِ وَاتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ وَتَشْمِيْتِ الْعَاطِسِ وَرَدِّ السَّلَامِ وَإِجَابَةِ الدَّاعِيْ وَإِبْرَارِ الْمُقْسِمِ وَنَصْرِ الْمَظْلُوْمِ وَنَهَانَا عَنْ خَاتَمِ الذَّهَبِ وَعَنِ الْحَرِيْرِ وَالْإِسْتَبْرَقِ وَالدِّيْبَاجِ وَالْمِيْثَرَةِ الْحَمْرَاءِ وَالْقَسِّيِّ وَآنِيَةِ الْفِضَّةِ » وَفِيْ رِوَايَةٍ :« وَعَنِ الشُّرْبِ فِي الْفِضَّةِ فَإِنَّهٗ مَنْ شَرِبَ فِيْهَا فِي الدُّنْيَا لَمْ يَشْرَبْ فِيْهَا فِي الْآخِرَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : او براء بن عازب ﷺ فرمائي : مونږ ته نبي كريم ﷺ په اُووه خبرو حكم كړيدے او د اُوه كارونو نه ئے منع كړي يو، مونږ ته ئے حكم كړے (۱) د مريض په عيادت۔ (۲) د جنازے پسے د روانيدو۔ (۳) او د پرنجي كونكي په جواب وركولو۔ (٤) او د سلام په جواب۔ (٥) او د دعوت وركونكي په قبلولو۔ (٦) او د قسم كونكي د قسم په پوره كولو۔ (٦) او د مظلوم په مدد كولو۔ او مونږه ئے منع كړي يو : (۱) د سرو زرو د گوتمے (اغوستلو) نه۔ (۲) او د وريښمو كپړے اغوستلو نه۔ (۳) او د اطلس كپړے استعمالولو نه۔ (٤) او د نري وريښمو اغوستلو نه۔ (٥) او د سور زين پوش استعمالولو نه۔ (٦) او د قسي كپړو نه۔ (۷) او د سپينو زرو د لوښو( استعمالولو) نه۔ او په يو روايت كښې دي : چه د چاندي (سپينو زرو) په لوښو كښې د اُوبه

څکلونه ئې (منع کړی یو) ځکه چه چا د سپینو په لوښو کښې په دنیا کښې سکل اُوکړل نو هغه به په آخرت کښې پدې کښې څکل نۀ شی کولے۔ (بخاري ومسلم)۔

**تشریح: إِبْرَارِ الْمُقْسِمِ** : ابرار باب افعال دے د برنه، د حنث (قسم ماتولو) په خلاف کښې استعمالیږی۔ یعنی قسم کښې نیك گرزول او قسم پوره کول۔ او مُقْسِم د اسم فاعل صیغه ده قسم خوړنکی ته وئیلے شی۔

یعنی یو مسلمان قسم اُوکړی چه تۀ به ماسره ضرور چائے سکے، خوراك به راسره کوے، ما کره به راځے نو تا له پکار دی چه دهغه قسم پوره کړے کله چه پکښې نقصان نۀ وی، او کله چه په هغې کښې خوف یا فساد یا ضرر وی۔ نو ماتول ئې جائز دی لکه ابوبکر صدیق ﷺ نبی ﷺ ته قسم سره اُووئیل چه قسم په الله ته به ماله خبر راکوے چه ددے خوب په تعبیر کښې ماکوم ځائے خطائی اُوکړه نو رسول الله ﷺ جواب ورنکړو ځکه چه د هغې په بیانولو کښې نقصان وو۔

**وَنَصْرِ الْمَظْلُوْمِ** : د مظلوم مدد کول که هغه مسلمان وی او که ذمی وی په خوله یا په عمل باندے ضروری دے۔ د ظالم مخنیوے به اُوکړے شی او مظلوم به ترے خلاص کړے شی او دا د نهی عن المنکر نه دے او دا امر هغه چا ته متوجه دے چه پدے باندے قادر وی او د ضرر نه نۀ یریږی۔

**خَاتَمِ الذَّهَبِ** : یعنی سرو دپاره د سرو زرو په گتمه وغیره کښې استعمالول حرام دی۔

**اَلْحَرِیْرِ** : دا خوعام وریښم دی چه دے ته ابریسم وئیلے شی۔

**اُلإِسْتَبْرَقِ** : مشهوره دا ده چه دا هغه وریښم دی چه سخت وی۔ بعض وائی: نرم، نری وریښمو ته وئیلے شی۔ او دا د إِسْتَبْرَكْ نه مُعرّب شویدے۔

**اَلدِّیْبَاجِ** : دا د دِیبَا نه معرب دے، جمع ئې دبابیج او دبابیج په باء او یاء سره راځی ځکه اصل د دیباج، دباج دے، دا هغه جامے ته وئیلے شی چه اُوده او تنسته کښې ئې وریښم استعمال شوی وی۔ یعنی وریښم په کپړه باندے غالب وی۔ علی القاریؒ فرمائی: دیباج رقیق (نری) وریښمو ته وئیلے شی۔

دیباج او استبرق ئې د حریر نه روستو ذکر کړل، دا ذکر د خاص دے پس د عام نه دپاره د اهتمام د حکم د تحریم او دے دپاره چه دا حکم تولو انواعو د وریښمو ته شامل شی اگرکه نومونه ئې جدا جدا وی۔ لیکن وریښم دوه قسمه دی (۱) یو حیوانی وریښم دی چه دے ته د شام په علاقو کښې حریر بلدی وائی۔ نو هغه په سړو باندے حرام دی۔ (۲) دویم نباتی دی چه د بعضو نباتاتو (بوټو) د پوستکو نه جوړیږی۔ هغه حرام نۀ دی لکه په السلسلة الصحيحة (۱/۷۳٦رقم (۳۸٤) کښې

ئے اُوکوره۔
اَلْمِيثَرَةِ : هغه سرے کپړے چه د اس په شا باندے د تکبر دپاره اچولے شی۔
اَلْمِيثَرَةِ الْحَمْرَاءِ : په کسره د میم په اصل کښې مِوثرة دے، واو نه ماقبل کسره وه نو واو په یاء سره بدل شو۔ دا د وَثُرَ يَوْثُرُ (كَرُمَ يَكْرُمُ) نه دے، مصدر ئے وَثَارة په فتحه د واو دے۔ وثیر ئے اسم فاعل دے یعنی (وَطِيْءٌ لَيِّن) (پیمال شده او نرمه) د مِيثَرة جمع مَوَاثِر او مَيَاثِر راځی۔ دا هغه ګدئ او وړے بسترے دی چه عجمو به د حریر او دیباج (یعنی غټ او نری وریښمو) نه جوړولے او پدے باندے به د اس دپاسه کیناستل او مینځ کښې به ئے مالوچ یا وړئ اچولے وه (النهاية) بعض وائی : دا هغه بستره وه چه زنانو به خپلو خاوندانو له جوړولے دے دپاره چه په زین باندے ئے واچوی۔ او دا به عجمو استعمالولے۔ ۳- بعض وائی : (اَغْشِيَةٌ لِلسُّرُوْجِ تُتَّخَذُ مِنَ الْحَرِيْرِ) (دا هغه پردے دی چه د وریښمو نه جوړے وی او زین ته اچولے شی)۔
ددے نه منع څکه راغلے ده چه دے کښې غالباً وریښم وی او وریښم استعمالول د سړو دپاره حرام دی، برابره ده که په پالان وی او که په زین وی او که په بل ځائے وی۔ او که وریښم پکښې نهٔ وی نو بیا پکښې حرمت نشته۔ او د حرمت وجه ئے سور والے نهٔ دے بلکه د سرے کپړے صرف اغوستل حرام دی علی القول الراجح او عام استعمالول ئے جائز دی۔
وَالْقِسِيِّ : په فتحه د قاف او کسره د سین مشدده سره۔ په کتاب اللباس د صحیح البخاری کښې دی : ابوبرده ﷺ د علی ﷺ نه د قسی په باره کښې تپوس اُوکړو نو هغه اُوفرمایل : (ثِيَابٌ اَتَتْنَا مِنَ الشَّامِ اَوْ مِنْ مِصْرَ مُضَلَّعَةً فِيْهَا حَرِيْرٌ اَمْثَالُ الْاُتْرُجِّ) (بخاری باب لبس القسی) (دا هغه جامے وے چه د شام یا مصر نه به راتلے چه په هغے کښې د وریښمو پلنے کرخے وے د ترنج (غټے مالټے) په شکل)۔
علامه حزریؒ فرمائی : دا هغه جامے وے چه د کتان کپړے نه جوړے شوے وے، وریښم به ورسره یو ځائے شوی وو چه دا به په مصر کښې د یو کلی نه راوړے شوے چه هغے ته ئے قَس په فتحه د قاف یا قِس په کسره د قاف وئیلو او ذا کلے تنیس کلی ته نزدے دے چه د دریاب په غاړه باندے واقع دے۔
بعض وائی : قسی په اصل کښې قزی دے په زاء سره منسوب دے قَزٌ ته او قَزٌ د وریښمو یو قسم دے۔ بعض وائی دا ردی وریښمو ته وئیلے شی بیا زاء په سین بدله شوه۔ (المرعاة)۔
علامه یاقوت حَمَوِی بغدادیؒ فرمائی : په ښارونو د هندستان کښې د نهر وارا ترمینځ یو کلے دے چه په قس باندے مشهور دے چه د هغه کلی نه به مختلف قسم کپړے او رنګارنګ لنګونه راوړلے شو لو د هندستان په کپړو کښې به دا د ټولو اقسامو نه اعلیٰ او غوره او فاخرے کپړے وے۔

(معجم البلدان : ٣٤٦/٤باب القاف والسين)۔

کـه دا قسي د وريښمو نه وي يا پکښې وريښم د کتان نه زيات استعمال شوی وي نو بيا به نهې د تـحريم دپاره وي او کـه دغسې نـۀ وي نـو بيـا به نهې د تنزيه دپاره وي۔ راجح اول دے ځکه چه مشهوره دا ده چه قسي يو قسم دے د وريښمو نه لکه فتح الباري اُوګوره۔

ميـرکَ واتي : دا ځـلـور واړه ئې جـمـع کړل د دوی ترمينځ فرق دا دے چه حرير عام وريښم دی او ديباج د هغې يو خاص قسم دے او استبرق د ديباج يو خاص قسم دے او قسي هغه دی چه وريښم ورسره يـو ځـائـے شوی وي يا بيکاره وريښم وي نو پدے کښې ذکر د خاص دے روستو د عام نه دے دپاره چه ددے ځيزونو د حکم د بيانولو اهتمام اُوکړے شي۔ انتهیٰ

آنِيَةِ الْفِضَّةِ : دلـتـه سپيـن زر ذکر شو او په بل روايت کښې ورسره سرۀ زر هم ذکر دی۔ د خوراك سـکـاك وغيره دپاره ئې استعمال په سړو او ښځو تولو حرام دے ځکه چه پدے کښې اسراف دے بل پدے کښې تکبر او خيلاء پيدا کيږي۔

ليـکـن صـحـيح علت دا دے چه پدے کښې تشبه ده د جنتيانو سره چه جنتيان به ئې په جنت کښې استعمالوی لکه آيت کښې دی : ﴿ يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِآنِيَةٍ مِّنْ فِضَّةٍ ﴾ (الدهر : ١٥) ﴿ يُحَلَّوْنَ فِيْهَا اَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ ﴾۔ او يـو صـحـابي د سرو زرو ګوتمه اغوستے وه نو رسول الله ﷺ ورته اُوفرمايل : [مَا لِيْ اَرٰى عَلَيْكَ حِلْيَةَ اَهْلِ الْجَنَّةِ] (اخرجه الثلاثة من حديث بريدة)۔ (څه وجه ده چه زۀ په تا باندے د جنتيانو ګاڼړه وينم) يعني دنيا والا به د جنتيانو سره په نعمتونو کښې ځان نۀ مشابه کوي۔ (نيل الاوطار ٨١/١ باب مـا جاء في آنية الذهب والفضة) تحفة الاحوذی (٥١٠/٥) ۔ ليـکـن غوره دا ده چه د سرو او سپينو لوښی استعمالول پدے وجه حرام دی چه دا د الله د عبوديت او د بندګئ خلاف دی۔

او د سرو دپاره صـرف سرۀ زر استـعـمـالول حرام دی چه د هغې نه ګوتمه يا ګينته وغيره جوړ کړي يا ددے په لوښو کښې خوراك سکاك اُوکړي۔ او د زنانو دپاره په بدن کښې سره او سپين دواړه استـعـمـالول چه کالي زيورات ترے جوړ کړي جائز دی۔ پدے شرط چه کله دا خپل خپل نصاب ته رسيدلي وي نو زکاة به ترے ادا کوي۔

او هـرچـه د سرو دپاره سپيـن زر دی نو هغه په بدن کښې استعمالول جائز دی چه ګوتمه وغيره تـرے جـوړه کړي دليل دا دے چه نبي ﷺ فرمايلي دی :(عَلَيْكُمْ بِالْفِضَّةِ فَالْعَبُوْا بِهَا) (ابوداود باسناد صحيح)۔ (سپيـنـو زرو بـانـدے لوبے اُوکړئ) نو ددے نه معلومه شوه چه سپين زر د سړو دپاره هم استعمالول جائز دی اګرکه خوراك او سکاك به پکښې نۀ کوي۔

او وريښـم د زنـانـو دپاره استعمالول جائز او د سړو دپاره حرام دی، مګر د ضرورت په وخت کښې

معمولي شان د څلورو ګوتو په مقدار استعمال ئې جائز دے۔
لَمْ يَشْرَبُ فِي الْآخِرَةِ : دے سره دا شرط دے چه د سرو سپينو په لوښو کښې خوراك څكاك کوی او بيا ددے ګناه نه توبه اُونۀ باسی او پدے حالت کښې وفات شی نو په آخرت کښې به پدے لوښو کښې د سکلو نه محروم وی۔ اولکه څنګه چه سکل حرام دی نو دغه شان خوراك پکښې هم حرام دے۔
بيا ددے څه مطلب دے چه په آخرت کښې به پکښې څکل نۀ کوی ؟ :
(۱) نو بعض علماؤ ويلی دی چه دا په هغه وخت کښې دے چه کله دا عقيده لری چه پدے کښې خوراك سکاك حلال دے او پدے حالت کښې وفات شی نو دا بيا کافر کيږی او کافر دپاره په آخرت کښې ددے څيزونو استعمال نشی کيدے۔ ورنه که څوك ددے د حلالوالي عقيده نۀ لری او دا استعمال کړی نو دا کبيرے ګناه والا نۀ دے بلکه (دا وړهٔ ګناه ده) پدے کښې سختی د منع کولو دپاره راغلے ده۔ دا خبره علامه مظهرؒ کړيده۔ (مرعاة)
ليکن دا د ظاهر خلاف ده۔ (۲) علامه طيبیؒ ليکی : دا کنايه ده ددے نه چه دا قسم انسان به جهنمی وی څکه چه پدے لوښو کښې خوراك سکاك د جنتيانو دپاره دے نو څوك چه پدے کښې خوراك سکاك نۀ کوی نو معلوميږی چه دا به جنت ته نۀ ځی۔ ولے که جنت ته تلے نو ضرور به پده باندے د دغه څيزونو بنديدل نۀ وی۔ انتهیٰ مختصراً۔
(۳) علی القاریؒ وائی : ډيره ظاهره دا ده چه ددے د عذاب د مودے پورے به ئې نۀ څکی يا په وخت د وقوف او حساب کښې په ميدان د قيامت کښې به ئې نۀ څکی يا په جنت کښې به ئې دومره موده پورے نۀ څکی څومره موده چه دهٔ په دنيا کښې شراب څکلی وی۔
(٤) بعض وائی : ددے مطلب دا دے چه که جنت ته داخل شی نو هم پدے لوښو کښې به خوراك سکاك نشی کولے۔ علامه مبارکفوریؒ وائی چه ظاهر ددے حديث دا دے چه دا څيزونه به په دوی باندے هميشه دپاره حرام وی اګرکه جنت ته هم داخل شی ليکن ددے سره سره به ددے لوښو په نۀ استعمالولو کښې هغه ته څه ضرر نۀ محسوسيږی او ددهٔ حال به د عامو مراتبو والا په شان وی چه څوك خکته او څوك بره او هر سړے به په خپله مرتبه کښې خوشحاله وی۔ او د بل سره به حسد نۀ کوی۔ امام نوویؒ وائی : الله به تريے ددے څيزونو شهوت هير کړی څکه چه جنت کښې هر هغه شے شته چه د انسان شهوت ورته کيږی او دا به ددهٔ په حق کښې د نعمتونو کموالی وی دے دپاره چه ددے څيزونو د استعمالونکی او نۀ استعمالونکی ترمينځ فرق راشی۔
**فائده** : بعض علماء وائی چه په سرو او سپينو کښې لکه څنګه چه خوراك سکاك حرام دے

نو دغه شان ددے نه د رنجو دپاره نجورمه یا سلاتی جوړول یا د عطرو بوتل یا تیل دان جوړول هم حرام دی لیکن محققین علماء وائی چه حدیث کښې صرف ددے څیزونو د خوراك څکاك نه منع ذکر شویده او اصل جواز دے او قیاس ته ضرورت نشته. بلکه د جواز دپاره تائید مخکښې حدیث دے چه نبی ﷺ فرمائی : په سپینو زرو لوبے اُوکړئ))۔

(فقه السنة ۳/۳۹۰) الروضة الندية شرح الدرر البهية (۲/۲۱۲) طبع دار المعرفة)۔باقی تفصیل به کتاب اللباس کښې راشی ان شاء الله تعالیٰ۔

---

۱۵۲٦ (۵) - وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« إِنَّ الْمُسْلِمَ إِذَا عَادَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ لَمْ يَزَلْ فِيْ خُرْفَةِ الْجَنَّةِ حَتّٰى يَرْجِعَ » .رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : او ثوبان ﷺ فرمائی، رسول الله فرمایلی دی : کله چه یو مسلمان د خپل (بیمار) ورور مسلمان عیادت کوی نو هغه به د جنت په میوو راشوکولو کښې همیشه وی تردے چه (د هغه د خوا نه) واپس راشی۔ (مسلم)۔

**تشریح** : خُرْفَةِ : په ضمه د خاء سره هغه میوے ته وائی چه پخه شوی وی۔ بعض وائی : دا هغه کجوروته وئیلے شی چه پخے شوی وی او راشوکولے شی۔ بل روایت د مسلم کښې مَخْرَفَةُ الجنة لفظ راغلے دے په فتحه د میم او سکون د خاء سره باغ ته وئیلے شی۔

مطلب د حدیث دا دے چه څوك د یو بیمار مسلمان تپوس له لاړو نو دا به د جنت په میوو او د هغے په راشوکولو کښې همیشه وی تردے چه بیرته کورته راواپس شی یا به همیشه وی په ځایونو د راشوکهلو د میوو کښې چه باغونه دی۔ یعنی د جنت په باغونو کښې به همیشه وی۔ یعنی لکه څنګه چه میوے راشوکونکے ځان له میوے راجمع کوی نو دغه شان بیمار پُرسی کونکے ځانله ثوابونه جمع کوی۔

بعضو دا مطلب بیان کړے چه دلته د خرفة الجنه نه مراد لاره ده یعنی بیمار پُرسی کونکے په داسے لاره روان دے چه دا لاره به ئے جنت ته اُورسوی۔ لیکن حافظ په فتح الباری کښې وائی چه اول مطلب غوره دے څکه امام بخاری په الادب المفرد کښې په همدے سند حدیث راوړے او په هغے کښې دا الفاظ دی :(قُلْتُ لِأَبِيْ قِلَابَةَ مَا خُرْفَةُ الْجَنَّةِ ؟ قَالَ جَنَاهَا)۔ (راوی وائی : ما ابوقلابة ته اُووئیل : خرفة الجنة نه څه مراد دی ؟ هغه اُووئیل : مراد تری نه میوے دی) او دا د امام مسلمؒ په نیز د مرفوع حدیث په شان دے۔ انتهیٰ۔

حَتّٰى يَرْجِعَ : يعنى دا ثواب به د كورنه د وتلو په وخت شروع كيږى او بيرته كورته واپس كيدو پورى به جارى وى نو ددى نه دا معلومه شوه چه د چا لاره اُوګده وى نو ددهٔ به ثوابونه زيات كيږى۔

---

۱۱۵۲۷ (٦) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :« إِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ يَقُوْلُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ : يَا ابْنَ آدَمَ مَرِضْتُ فَلَمْ تَعُدْنِيْ قَالَ: يَا رَبِّ كَيْفَ أَعُوْدُكَ وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِيْنَ ؟ قَالَ: أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ عَبْدِيْ فُلَانًا مَرِضَ فَلَمْ تَعُدْهُ ؟ أَمَا عَلِمْتَ أَنَّكَ لَوْ عُدْتَهُ لَوَجَدْتَنِيْ عِنْدَهُ ؟ يَا ابْنَ آدَمَ إِسْتَطْعَمْتُكَ فَلَمْ تُطْعِمْنِيْ قَالَ: يَا رَبِّ كَيْفَ أُطْعِمُكَ وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِيْنَ ؟ قَالَ: أَمَا عَلِمْتَ أَنَّهُ اسْتَطْعَمَكَ عَبْدِيْ فُلَانٌ فَلَمْ تُطْعِمْهُ ؟ أَمَا عَلِمْتَ أَنَّكَ لَوْ أَطْعَمْتَهُ لَوَجَدْتَ ذٰلِكَ عِنْدِيْ ؟ يَا ابْنَ آدَمَ ! إِسْتَسْقَيْتُكَ فَلَمْ تَسْقِنِيْ قَالَ: يَا رَبِّ ! كَيْفَ أَسْقِيْكَ وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِيْنَ ؟ قَالَ: إِسْتَسْقَاكَ عَبْدِيْ فُلَانٌ فَلَمْ تَسْقِهِ أَمَا إِنَّكَ لَوْ سَقَيْتَهُ لَوَجَدْتَ ذٰلِكَ عِنْدِيْ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائى چه رسول الله ﷺ فرمايلى دى :« الله تعالىٰ به د قيامت په ورځ فرمائى : اے د آدم ځويه ! زهٔ بيمار شوے اُوم او تا زما تپوس نهٔ دے كړے ؟!۔ نو بنده به اُووائى : اے ربه ! ما به ستا تپوس څنګه كړے وے او ته خو د ټولو مخلوقات رب ئے۔ (او د بيمارئ نه پاك ئے)۔ الله به اُوفرمائى : آيا تا ته معلومه نهٔ وه چه زما فلانے بنده بيمار شوے وو او تا ئے تپوس نهٔ وو كړے، آيا تا ته معلومه نهٔ ده ؟ چه كه تا د هغه تپوس كړے وے نو تا به خامخا زهٔ د هغه په خوا كښې موندلے وے۔ اے د آدم ځويه ! ما ستا نه خوراك غوختے وو او تا ما له خوراك نهٔ وو راكړے ؟۔ بنده به اُووائى : اے زما ربه ! ما به تا له خوراك څنګه دركړے وے او حال دا چه ته خو د ټولو مخلوقاتو رب ئے۔ (ته خو د خوراك محتاج نهٔ ئے) الله به اُوفرمائى : آيا تا ته معلومه نهٔ ده چه زما فلانى بنده تا نه خوراك غوختے وو او تا هغه ته خوراك نهٔ وو وركړے ؟۔ آيا تا ته معلومه نهٔ ده كه چرته تا هغه ته خوراك وركړے وے نو خامخا به وے دا زما سره موندلى وے۔ اے د آدم ځويه ! ما ستا نه اُوبه غوختے وے او تا ما له اُوبه نهٔ وے راكړے ؟ بنده به وائى : چه اے زما ربه ! ما به تا ته اُوبه څنګه دركړے وے ؟ حال دا چه ته خو د مخلوقاتو رب ئے (تا ته د اُوبو هيڅ ضرورت نشته) الله به فرمائى : تا نه زما فلانى بنده اُوبه غوختے وے او تا هغه ته اُوبه نهٔ وے وركړے، آيا تا

تـه مـعـلـومه نۀ ده چه كه تا هغه ته أُوبه وركړے وے نو هغه به دے (يعنى د هغے ثواب به دے) ما سره موندلے وے)۔ (مسلمؒ)۔

**تشريح :** د حديث مطلب دا دے چه الله تعالىٰ به بنيادم لره ملامته كوى او دۀ چه د الله تعالىٰ د بندګانو او اولياؤ په حقوقو كښې كومه كوتاهى كړيده په هغے به ورته زورنه وركوى۔

او اشاره ده چه دا درے واړه عملونه ډير بهتر عملونه دى بيا په درے واړو كښې فرق أُوګورئ! په اول صورت كښې ئے أُوفرمايل : چه كه تا بيمار پرسى كړے وے نو زۀ به دے د هغه بنده سره موندلے وے او د خوراك او أُوبو وركولو په باره كښې ئے أُوفرمايل : كه تا خوراك وركړے وے يا دے سكاك وركړے وے نو ددے ثواب به دے ما سره موندلے وے ددے نه معلومه شوه چه د مريض عيادت كول أُوړى ته د خوراك وركولو او تږى ته د أُوبو وركولو نه هم زيات افضل دى۔ او پدے كښې اشاره ده چه الله تعالىٰ مسكين او عاجز او مذنوب انسان ته ډير نږدے وى۔

**مَرِضْتُ :** الله تعالىٰ د مرض نسبت خپل ځان ته أُوكړو حال دا چه داسے قسم عوارض او نقصانات په الله تعالىٰ كښې نشى راتلے۔ ددے نه مراد د بنده مرض او بيمارى ده او ځان ته ئے نسبت أُوكړو پدے سره بنده ته شرافت وركول مقصود دے چه د بنده تپوس كول داسے دى لكه د الله تعالىٰ تپوس كول كه بالفرض په الله تعالىٰ باندے مرض راتلے ليكن الله تعالىٰ خو ددے نه منزه دے۔

نو مطلب دا شو چه چا د مريض پوښتنه أُوكړه نو داسے ده ګويا كښې د الله تعالىٰ زيارت او ملاقات ئے أُوكړو۔

**وَاَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِيْنَ ؟ :** رب په معنىٰ د سيد، مدبر، مُرَبِّى (تربيت كونكے) او مُنْعِم (انعام كونكى) سره دے او دا صفات د مرض، نقصان، احتياج او هلاكت منافى دى۔ يعنى مرض خو په عاجز باندے راځى او تۀ خو قوى مالك او قاهر ئے۔

**لَوَجَدْتَنِىْ عِنْدَهٗ :** يعنى زۀ به درنه راضى شوے وے او زما ثواب او كرامت به تا ته حاصل شوے وے۔ ځكه د الله تعالىٰ د موندلو نه مراد د هغه رضا او ثوابونه موندل دى۔

**فوائد :** (۱) حديث دليل دے چه د بيمار تپوس كول مستحب دى۔ (۲) د مريض تپوس داسے دے لكه د الله تعالىٰ ملاقات كول۔ (۳) حديث دليل دے چه څوك تا نه أُوبه طلب كړى او تۀ ورته أُوبه وركړے نو دا هم فضيلت لرى او بنده د الله تعالىٰ په دربار كښې د اجر او ثواب مستحق كيږى۔ (٤) او پدے كښې دا بيان دے چه الله تعالىٰ په كائناتو باندے عالِم دے او د هغه په علم كښې كليات او جزئيات ټول برابر دى او الله تعالىٰ په خپلو بندګانو باندے قسما قسم مجاهدو سره

امتحانات کوی دے دپاره چه هغوی له د ګناهونو کفاره جوړه شي او اُوچتے درجے ورته حاصلے شي۔ (٥) الله تعالیٰ د بندګانو نیك اعمال نهٔ ضائع کوی بلکه دا د الله تعالیٰ په نیز ډیر لوئی قدر او مرتبه لری۔ (٦) الله تعالیٰ دلته د مرض نسبت خپل ځان ته اُوکړو او مراد ددے نه ابتداءً د بنده مرض دے دا صریح دلیل دے چه د الله تعالیٰ په صفاتو کښ به د ځان نه تاویل او تعطیل او تشبیه نشي کولے بلکه الله تعالیٰ د خپلو صفاتو په حقیقت پانده په پوهیږی او د الله تعالیٰ صفات به په خپل ظاهر باندے منلے شي لکه دلته الله تعالیٰ ګویا د اول نه اُووئیل چه زما فلانے بنده مریض شوے وو او تا ئے تپوس نهٔ دے کړے لیکن نسبت د مرض ئے ځان ته اُوکړو دپاره د ترغیب ورکولو بنده ته۔ که د الله تعالیٰ صفات په ظاهره باندے منل منع وے نو په کوم ځائے کښ چه دغه صفات راغلی دی هلته به الله تعالیٰ یا د هغه رسول د هغے بیان کړے وے۔لکه دلته ئے د مرض معنیٰ مراده بیان کړه چه د بنده مرض مراد دے۔ (مجلة البحوث الاسلامية المثال الخامس عشر ۲٤۳/۱۲) ۔ مطلب دا شو چه د الله تعالیٰ په صفت کښ مرض نهٔ دے راغلے او دلته چه کوم نسبت د مرض الله تعالیٰ ته شویدے نو ددے تاویل الله تعالیٰ پخپله کړیدے نو دا صحیح تاویل دے۔ او نورو صفاتو کښ چه تاویل نهٔ وی راغلے نو هغے کښ د ځان نه تاویلات کول جائز نهٔ دی۔

(۷) علامه کلاباذی رحمه الله نه صاحب د فیض القدیر علامه مناویؒ نقل کوی چه پدے حدیث کښ الله تعالیٰ د مؤمنانو صفات چه هغه مرض او استطعام او استسقاء ده خپل صفات اُوګرځول ځکه دا قانون دے چه کله تعلق مضبوط شي او مودت او محبت کلك شي نو بیا فعل د یو ذات فعل د بل شمارلے شي او هرکار چه یو دوست کوی نو بل دوست پرے خوشحالیږی لکه قیس مجنون ته اُوکوره چه کله به دهٔ د خپلے پریشانئ د آرام کولو اراده اُوکړه نو دهٔ ته به د لیلیٰ تذکره اُوشوه نو دے به ډیر جذبه کښ شو او ښائسته خبرے به ئے شروع کړے نو ورته به اُووئیل شو چه آیا ته د لیلیٰ سره محبت کوے؟ هغه به وئیل : نهٔ۔ خلقو به اُووئیل : دا ولے ؟ هغه به وئیل : محبت خو د وصال او تعلق ذریعه ده او زمونږ وصال او تعلق مضبوط دے نو ذریعه ساقطه شوه نو بس زهٔ لیلیٰ یم او لیلیٰ زهٔ یم۔ او دا شعر به ئے وئیلو:

| أَنَا مَنْ أَهْوَى وَمَنْ أَهْوَى أَنَا | نَحْنُ رُوحَانِ حَلَلْنَا بَدَنَا |
|---|---|

(زهٔ محبوب یم او محبوب زهٔ یم، مونږ روحونه یو چه یو بدن کښ ننوتی یو) (فیض القدیر۲/۳۹۷)۔

(۸) مشهوره ده چه په خدمت الله تعالیٰ ملاویږی او په عبادت سره جنت۔ پدے حدیث کښ (لوجدتنی عنده) نه ددے خبرے تائید ملاویږی۔ (۲) صفات الهیه دوه قسمه دی۔ یو هغه دی

چه الله تعالیٰ لره ثابت دی او تاویل په کښې جائز نهٔ دے لکه عام صفات۔ دویم هغه دی چه په هغې کښې خپله بیان راغلې وی چه دا صفت په ظاهر کښې الله تعالیٰ ته منسوب دے او حقیقت کښې د هغه صفت نهٔ دے لکه مرض، نسیان (ننساهم) (وما کان ربك نسیا) لکه حجر اسود ته یمین الله (د الله ښے لاس) وئیلے شوے۔ چا چه حجر باندے لاس راښکلو داسے دے لکه چه الله سره ئے مصافحه اُوکړه۔ نو دلته کأنما لفظ دے یا لکه جنب الله شو یعنی طاعة الله۔ نو غلط فهمی کښې واقع کیدل نهٔ دی پکار۔

(۹) خدمتِ خلق لویه بندگی ده او د الله تعالیٰ د قرب سبب دے۔

**د ځان نه د ادنی شخص او مریض بیمار پرسی هم کول پکار دی**

---

۱۵۲۸ (۷) – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ دَخَلَ عَلٰى أَعْرَابِيٍّ يَعُوْدُهُ وَكَانَ إِذَا دَخَلَ عَلٰى مَرِيْضٍ يَعُوْدُهُ قَالَ: لَا بَأْسَ طَهُوْرٌ إِنْ شَآءَ اللهُ. فَقَالَ لَهُ: « لَا بَأْسَ طَهُوْرٌ إِنْ شَآءَ اللهُ ». قَالَ: كَلَّا بَلْ حُمّٰى تَفُوْرُ عَلٰى شَيْخٍ كَبِيْرٍ تُزِيْرُهُ الْقُبُوْرَ. فَقَالَ: « فَنَعَمْ إِذَنْ ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ۔

---

**ترجمه** : د ابن عباسؓ نه روایت دے چه نبی کریم ﷺ (یو ځل) په یو بانډیچی ورننوتو چه د هغه بیمار پرسی ئے کوله۔ او د نبی ﷺ (طریقه دا وه) چه کله به د یو مریض تپوس ته ورتلو نو (داسے به ئے) وئیل : « هیڅ یره نشته، (یعنی ددے بیماریٔ نه هیڅ غم مهٔ کوه ځکه چه) دا بیماری (د گناهونو نه) پاکونکے ده که الله اُغواری »۔ نو نبی کریم ﷺ (پدے وخت کښې) دغه بانډیچی ته هم دغسے اُوفرمایل : چه « هیڅ پرواه نشته دا بیماری (د گناهونو نه) پاکونکے ده که الله اُوغواری » نو بانډیچی اُووئیل چه هیڅرے داسے نهٔ ده بلکه دا تبه ده چه دیر بو ډا باندے جوش وهی، چه دا به د قبرونو سره مخامخ کوی (یعنی مرگ ورله راولی) نبی ﷺ چه دا (واوریدل) وے فرمایل : چه بنه (که ته ئے داسے گنړے) نو همداسے دے وی»۔ (بخاریؒ)۔

**تشریح** : ددے اعرابی نه مراد قیس بن ابی حازم دے لکه زمخشری په خپل کتاب ربیع الابرار کښې وئیلی دی۔ حافظ په فتح الباری کښې وائی : که دا خبره ثابته وی نو بیا ددے نه مراد هغه قیس بن ابی حازم نهٔ دے کوم چه مشهور دے ځکه هغه خو تابعی دے او دا صاحب القصه د نبی ﷺ په زمانه کښې وفات شویدے۔

**يَعُوْدُهُ** : پدے حدیث کښې د رسول الله ﷺ کمال تواضع او د عمل د مساوات یو عجیب مَظْهر

دے چه نبی ﷺ د يو بانډيچی (دهقان) بيمار پرسئ دپاره تلے دے گويا کښ نبی ﷺ پدے عمل مبارك سره امت ته دا تعليم ورکوی چه يواځے د هغه خلقو بيمار پرسی نۀ ده پکار چه ستا د خپل ځان نه اُوچت يا هَم مرتبه وی بلکه د هغه خلقو عيادت هم پکار دے چه په هر حيثيت سره د خپل ځان نه کم تر او ادنی درجے والا وی۔

وَكَانَ إِذَا دَخَلَ: مطلب دا چه د رسول الله ﷺ دا عادت او طريقه وه چه کله به ئے د يو مريض تپوس کولو (که هر قسم مريض به وو) نو هغه ته به ئے داسے فرمايل: (لا بأس طهور ان شاء الله)۔

لَا بَأْسَ: يعنی تا باندے څه تکليف او مشقت نشته يعنی په حقيقت کښ دا مرض بد شے نۀ دے ځکه چه دا د گناهونو د معاف کيدو سبب دے نو که انسان روغ شی دوه فائدے ورته حاصليږی، روغ والے او گناهونه رژيدل او که پدے مرض کښ وفات شی نو يوه فائده د گناهونو د معاف کيدو خو به ورته حاصله شی۔ په دوارو صورتونو کښ په حقيقت کښ څه مشقت نشته۔ اگرکه ظاهر کښ به تکليف وی۔ (حافظ ابن حجرؒ)۔

او دا جمله خبريه ده په معنیٰ د رجاء او اميد سره ده او پدے کښ تفاول (نيك فالی) نيول دی چه الله تعالیٰ دے دا بيماری ستا دپاره تکليف او ضرر وُنۀ گرځوی۔ او زما اميد دے چه ان شاء الله تعالیٰ به ئے پاکونکے اُوگرځوی۔

طَهُوْرٌ: په معنیٰ د مُطهر (پاکونکے) سره يعنی الله تعالیٰ دے دا تبه او مرض ستا د گناهونو پاکونکے اُوگرځوی۔

إِنْ شَآءَ اللهُ: د ان شاء الله وئيلو نه معلومه شوه چه مخکنۍ جمله جمله خبريه ده او انشائيه دعائيه نۀ ده۔ ځکه چه په دعاگانو کښ ان شاء الله وئيلو نه منع راغلے ده بلکه دعاء به په يقين او جزم سره کولے شی۔ حديث کښ دی: داسے به نۀ وائی چه اللهم اغفرلی ان شئت) (مسلم) اے الله ما ته بخنه اُوکره که ستا خوښه وی)۔ نو لابأس جمله خبريه ده دپاره د تفاول وئيلے شويده۔ او ان شاء الله چه وئيلے شوے نو دا په طريقه د خطاب کښ نۀ ده وئيلے شوے او منع په حديث کښ د خطاب په صورت کښ شويده چه ان شئت به نۀ وائی۔ (شرح رياض الصالحين لصالح العثيمين)

كَلَّا بَلْ: کله چه رسول الله ﷺ دے بانډيچی ته تسلی ورکړه، هغه رد کړه او دا ئے اُووئيل چه دا پاکونکے نۀ ده بلکه دا يو داسے تبه ده چه په ما باندے ځَپ کيږی او جوش وهی او قبر ته مے رسوی۔ دا اعرابی د تکليف نه دومره نااُميدئ ته رسيدلے وو چه د رسول الله ﷺ دغه دعاء ئے رد کړه۔ بعض علماء وائی چه دا کافر وو۔ ليکن راجح دا ده چه دا مسلمان وو خو يو اعرابو کښ څه

جهالت غوندے وي او بيا خاصكر چه بو دا هم وي او بيا پرے تكليف هم زيات وو نو پدے وجه ئے د خولے نه دا قسم الفاظ اُووتل او د رسول الله ﷺ دے خبرے ته ئے سوچ رانغلو۔

ليكن هركله ئے چه ظاهر كښ د رسول الله ﷺ حديث رد كړو نو رسول الله ﷺ هم ورته د هغه د شان مطابق جواب ورکړو چه هركله ته دا تبه سبب د مرگ گڼړے نو دغه شان وے شي۔ يعني هركله چه ته د بيمارئ په وجه د گناهونو رژيدل اودا مرض پاكونكے نهٔ گڼړے بلكه ددے نعمت ناشكري كوے نو بيا چه ستا پرے څه خيال وي همغه شان وے اُوشي۔ پدے حديث كښ معمرؒ د زيد بن مسلمؒ نه نقل كوي چه كله نبي ﷺ دهٔ ته اُوفرمايل : چه همدغه شان وے شي) نو دغه اعرابي صبا له مړ شو۔(شرح ابن بطال علی البخاری)۔

۲- يا مطلب د (فنعم اذاً) دا دے چه هركله چه تهٔ دا وينا كوے نو دغه شان وے شي څكه چه د نعمت د ناشكري كونكي سزا همدا ده چه د هغه نعمت نه محرومه شي۔ يعني گناهونه وے پرے معاف نشي۔ نو پدے وخت كښ به دا ښيرے شي۔

علامه ابن التينؒ فرمائي : پدے كښ دا احتمال شته چه دا ددهٔ دپاره ښيرے وي او دا احتمال هم شته چه دا خبر وركول وي هغه ته چه ته به همدے حالت (يعني مرگ) ته واپس كيږے او د همدے مرض نه به وفات كيږے) انتهیٰ۔ لكه د بعض رواياتو نه معلوميږي چه نبي ﷺ ورته اُوفرمايل : (اَمَّا اِذَا اَبَيْتَ فَهِيَ كَمَا تَقُوْلُ وَقَضَاءُ اللّٰهِ كَائِنٌ فَمَا اَمْسٰى مِنَ الْغَدِ اِلَّا مَيِّتًا) (طبرانی) عمدة القاری)۔ (هركله چه ته انكار كوے نو دا تبه وے همغه شان شي څنگه چه ته وائے او د الله تعالیٰ فيصله ثابتيدونكے ده- نو صبا لا نهٔ وو راغلے چه دغه اعرابي وفات شو) دا هم د نبي ﷺ د نبوت د علاماتو او نخو نه يوه نخه وه چه هغه ته ئے پيشين گوئي اُوكړه چه د الله تعالیٰ فيصله به ثابتيږي او همغه شان اُوشوه۔ لكه دا حديث امام بخاري په باب علامات النبوة كښ هم راوړيدے۔

**حُمّى تَفُوْرُ** : فَارَ يَفُوْرُ فَوْرًا وَفَوَرَانًا په معنیٰ دجوش وهلو سره۔

**تُزِيْرُهُ** : يعني ده لره ملاقي كوي د قبرونو سره يعني د قبرونو په ملاقات ئے راپورته كوي او هغے ته ئے ليږي مراد ترے نه مرگ دے۔

**فوائد** : (۱) حديث نه معلومه شوه چه بيمار پرسي كونكے له دا مستحب دي چه بيمار ته (لا بأس طهور ان شاء الله) اُووائي۔ (۲) په دعاء كښ ان شاء الله وئيل منع دي ليكن كله چه صورت د اخبار وي او مقصد په كښ اميد وي نو بيا ان شاء الله وئيل جائز دي لكه دلته مقصد اميد او رجاء ده چه زما د الله تعالیٰ نه اميد دے چه الله تعالیٰ كه اُوغواړي نو دا مرض به سبب د گناهونو د

معاف کولو اُوګرځوی۔
(۳) بیمار پرسی کونکی له پکار دی چه مریض ته تسلی ورکړی او هغه ته د صبر کولو حکم اُوکړی دے دپاره چه د الله تعالیٰ په فیصله او تقدیر باندے ناراضه نشی او خفګان اُونکړی، هسے نه چه الله تعالیٰ پرے خپل غضب نازل نکړی۔ (٤) دارنګه مریض له پکار دی چه د بیمار پرسی کونکی نصیحت قبول کړی او هغه ته په صحیح طریقه جواب ورکړی۔
(۵) د رسول الله ﷺ حدیث رد کول جائز نهٔ دی اګرکه انسان په ډیر مشقت او تکلیف کښ وی، او دغه شان د حدیث په خلاف کښ سجع جوړول او په خپلو اشعارو خوشحالی کول حرام دی ورنه په انسان باندے پیغمبری ښیرے لګیږی او الله تعالیٰ ورته ضرور یو مصیبت رسوی لکه دا انسان ورسره مړ شو۔ زمونږ په دور کښ ډیرو مقلدینو فکریانو د رسول الله ﷺ د احادیثو مقابلے شروع کړی۔ د ﴿ إِنَّا كَفَيْنَاكَ الْمُسْتَهْزِئِينَ ﴾ نه ورله یره پکار ده۔
(یعنی الله به ورته مصیبت اُورسوی)۔

---

۱۵۲۹ (۸) — وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا اشْتَكَى مِنَّا إِنْسَانٌ مَسَحَهُ بِيَمِيْنِهِ ثُمَّ قَالَ: «أَذْهِبِ الْبَأْسَ رَبَّ النَّاسِ وَاشْفِ أَنْتَ الشَّافِيْ لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاؤُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا» ـ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: او عائشه رضی الله عنها فرمائی چه د رسول الله ﷺ (طریقه به دا وه) چه کله به زمونږ نه یو تن بیمار شو نو نبی ﷺ به په هغه باندے ښے لاس راخکلو بیا به ئے دا (دعاء) فرمایله: اے د خلقو ربه! بیماری لرے کړه او شفاء ورکړه، هم تهٔ شفاء ورکونکے ئے، ستا د شفاء نه سوئ هیڅ شفاء نشته داسے شفاء چه بیماری پرے نږدی (یعنی بیماری لرې کړی)۔ (بخاری ومسلم)۔

**تشریح**: مطلب دا چه کله به نبی کریم ﷺ په یو مریض باندے دم اچولو نو په هغه به ئے لاس راخکلو یا په هغه درد مند ځائے به ئے لاس راخکلو۔ دا فال به ئے نیولو چه الله تعالیٰ دے دا مرض داسے لرے کړی لکه څنګه چه زهٔ لاس راکاږم۔ لیکن دا لاس راخکل به په سرو او ماشومانو وی او په پردۍ زنانه لاس راخکل حرام دی۔ د هغے دپاره صورت روستو راروان دے۔
**أَذْهِبِ الْبَأْسَ**: یعنی د مرضی سختی ختمه کړه او بوځه او زائل کړه۔ الباس کښ همزه په الف سره بدله شویده۔

**رَبَّ النَّاسِ** : دا منصوب دے حرف نداء حذف دہ۔ یعنی یا رب الناس۔ اے د انسانانو ربه!۔
**وَاشْفِ**: په یو روایت د بخاری کښې (واشفه) لفظ راغلے دے او ضمیر پکښې بیمار ته راجع دے یا هاء د سکتے دہ۔
**لَا شِفَاءَ** : مبنی دے په فتح باندے۔ او خبرئے محذوف دے۔ (یعنی لَاشِفَاءَ حَاصِلٌ لَنَا یا لِلْمَرِیْضِ) ۔ (یعنی مریض ته یا مونږ ته شفاء نهٔ حاصلیږی مگر صرف ستا شفاء)۔
**إِلَّا شِفَاؤُكَ** : دا مرفوع دے بدل دے د محل بعیده د لا شفاء نه۔
په روایت د بخاری کښې دی : (لَاشَافِيَ إِلَّا أَنْتَ) ۔(شفاء ورکونکے صرف او صرف ته ئے) دا دلیل دے چه هیڅ دوائی فائده نهٔ ورکوی که د الله تعالیٰ د تقدیر سره برابره نشی۔ یعنی مریض ته به شفاء هله ملاویږی چه الله تعالیٰ ورله تقدیر کښې لیکلی وی۔
**شِفَاءً** : دا مفعول مطلق دے د إِشْفِ دپاره ۔ یعنی داسے شفاء ورکړه چه هیڅ بیماری پرے نږدی۔ او پدے کښې فائده دا ده چه کله خو د یو مرض نه شفاء حاصله شی لیکن هغه بل مرض راپیدا کړی نو پدے کښې ورله کامله شفاء غواړی چه هیڅ قسم بیماری هم پکښې پاتے نشی۔
**سوال** : پدے حدیث کښې دا اشکال مخے ته راځی چه دلته ئے د مریض دپاره د شفاء دعاء کړیده سره ددے نه چه ګڼړ احادیث پدے باره کښې وارد دی چه په مرض سره د مریض ګناهونه معاف کیږی او ثواب ورته حاصلیږی او د شفاء طلب کولو مطلب دا جوړیږی چه دا ګناهونه دے معاف نشی خو چه صحت حاصل شی؟۔
**جواب** : دا دے چه انسان کمزورے دے کله چه په دهٔ باندے مرض اُوږد شی نو کیدے شی چه بے صبری اُوکړی نو د ثواب او د ګناهونو د معاف کیدو نه به محروم شی نو هرکله چه په دهٔ باندے مرض راغلو نو په اول الوهلة (اول حُل) کښې ددهٔ ګناهونه معاف شو نو اُوس ورله صحت غوختل پکار دی چه نورو اعمالو او عباداتو ته فارغ شی او دعاء هم یو عبادت دے۔ نو ګویا کښې دوه عبادتونه ئے راجمع کړل یو په مرض سره ثوابونه حاصلول او ګناهونه معاف کیدل او بل د الله تعالیٰ سره په دعا کولو تعلق قائمول او هغه ته ځان فقیر او محتاج ګنړل۔ او دعا ضرور فائده لری۔ یا خو به ئے مقصد حاصل شی چه شفاء به ورته حاصله شی او یا به ددے په بدله کښې الله تعالیٰ دهٔ ته بله فائده ورکړی او یا به ترے ضرر او مصیبت لرے کړی۔ نو علی کل حال په دعاء کښې فائده شته۔
حاصل دا شو چه دعاء عبادت دے او دا د ثواب حاصلیدو او د ګناه د معاف کیدو سره هیڅ منافات او تضاد نهٔ لری ځکه چه دواړه حاصلیدے شی۔ بله نکته دا ده چه انسان د عافیت په

دعاء باندے مکلف دے (واسئلوا الله العافية) الحديث۔ ځکه چه بنده عاجز او ضعيف دے او دا ددۀ د خشوع او تضرع دليل دے۔او هرچه په مرض سره د ثواب حاصليدل او د ګناه معاف کيدل دی نو دا خو يو زياتی انعام دے الله تعالیٰ ئے بنده مسلمان ته ورکوی۔ نو په انسان لازم نۀ دی چه په مرض سره د ګناه معاف کيدلو طلب اُوکړی۔

مطلب دا شو چه انسان به عافيت غواړی که د الله تعالیٰ د طرف نه تکليف راشی نو دۀ ته تسلی ده چه دا هم فائده لری مۀ خفه کيږه۔

---

۱۵۳۰ (۹) - وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ إِذَا اشْتَكَى الْإِنْسَانُ الشَّيْءَ مِنْهُ أَوْ كَانَتْ بِهِ قُرْحَةٌ أَوْ جُرْحٌ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ بِإِصْبَعِهِ: «بِسْمِ اللهِ تُرْبَةُ أَرْضِنَا بِرِيقَةِ بَعْضِنَا لِيُشْفَى سَقِيمُنَا بِإِذْنِ رَبِّنَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** او عائشه رضی الله عنها فرمائی: کله به چه يو شخص د خپل بدن د يو حصے (د درد) شکايت کولو يا به د هغه (په بدن) ځه دانه يا زخم وو نو نبی کريم ﷺ به په خپلے ګوتے سره اشاره اُوکړه: (او دا دعاء به ئے لوستله): د الله په نوم سره برکت حاصلوم، دا خاوره زمونږ د بعض انسانانو په لاړو سره يو ځائے شويده (دا مونږ دے دپاره وايو چه) زمونږ د رب په حکم سره زمونږ بيمار روغ شی۔ (بخاری ومسلم)۔

**تشريح:** كَانَ: يا زائده دے يا په کان کښ ضمير شان دے چه روستو جمله ئے تفسير کوی۔ يعنی شان دا دے چه کله به انسان د خپل بدن د يو اندام شکايت کولو يا به پرے ځه دانه يا زخم راغلے وو نو رسول الله ﷺ به چه هغه دمولو نو اول به ئے په خپله مسواکئ ګوته باندے لاړے تو کړلے بيا به ئے خپلے ګوتے سره داسے اشاره اُوکړه چه ګوته به ئے په زمکه کيخوده بيا به ئے هغه راپورته کړه نو د هغے پورے به خاورے انښتے وے بيا به ئے هغه په دغه دردمند يا زخمی ځائے باندے راخکله او دا دعاء به ئے اُوکړله۔ لکه دا تفصيل په روايت د مسلم کښ سفيان کړيدے۔ او امام نوویؒ هم دغسے تفصيل کړے۔ (الديباج علی مسلم۵/۲۱۳) عون المعبود)۔

بِسْمِ اللهِ: يعنی د الله تعالیٰ د نوم نه برکت حاصلوم۔

تُرْبَةُ أَرْضِنَا: ددے مبتداء محذوف ده يعنی هذه تربة ارضنا۔ يعنی دا زمونږ د زمکے خاوره ده۔

بِرِيقَةِ: دا متعلق دے د مَمْزُوجَةٌ پورے۔ يعنی يو ځائے کړے شويده زمونږ د لاړو سره۔ ريق ډيرو لاړو ته وائی او ريقة (په تاء سره) معمولی شان لاړے۔

امـام نـووی لیـکی : جمهورو علماؤ وئیلی دی چه د ارضنا (زمکې) نه مراد دلته ټوله زمکه ده (هره زمکه چه وی) بعض وائی : خاص د مدینې زمکه مراد ده ځکه چه هغه مبارکه زمکه ده۔ آه۔ بـعـض وائـی : چـه د بـعـضـنـا نه مراد نبی ﷺ دے۔ بلکه صحیح دا ده چه د مدینې د زمکې تـخـصـیـص او د نبی ﷺ تـخـصـیـص باندے دلیل نشته بلکه هره زمکه او هر دم اچونکے مراد دے۔ نو دا کار د هـر دم اچونکی دپاره مستحب دے چه په ګوته لاړے واچوی او بیا ئے په زمکه راکاږی او د مریض په درمند ځائے ئے د دم په وخت کښې راکاږی۔

لِيُشْفٰى : یعنی دا علت دے دپاره ددے دم اچولو یا علت دے دپاره د دغه کار کولو۔ یعنی دا قول مـونږ اُوکړو یـا مو دا کار اُوکړو دے دپاره چه زمونږ بیمار ته شفاء ملاؤ شی۔ او په یو روایت کښې بغیر د لام نه هم راغلی دے۔

بِإِذْنِ رَبِّنَا : دا متـعـلـق دے د (يُشْفٰى) پورے یعنی په حقیقت کښې به شفاء د الله تعالیٰ په امر او حکم سره حاصلیږی اګرکه ظاهری سبب ئے دعاء وی یا دوائی یا دم وی۔

**فوائد** : (۱) امـام قـرطبیؒ وئیـلی دی چه دا حدیث دلیل دے چه دم اچول په هر قسم درد کښې جواز لری او دا خبره په صحابه کرامؓ کښې معلومه او مشهوره وه۔

(۲) د دم پـه وخـتِ کښې په ګوته پورے لاړے او خاوره راخکل او بیا پرے مریض مسح کول بهتر او افـضـل عـمل دے۔ بعض علماؤ پدے کښې دا حکمة بیان کړے چه خاوره کښې برودت (یخوالے) او یبـوسـت (اُوچوالے) دے نو درمند ځائے هموار وی او هغے ته غلط مواد د داخلیدو نه منع کوی ځـکـه چـه پدے کښې اُوچوالے دے۔ دارنـګـه په خاورے سره زخمونه زر اُوچیږی او په لاړو سره تـحـلیـل (همواری) راځی او زخم ورسره رغیږی او درد په آرام کیږی خاصکر چه د اُوږی روژه دار لاړے وی۔ لیـکـن دے باندے امام قرطبیؒ رد کړے چه دا خبره به هله صحیح کیږی چه کله علاج د خپـلـو قـوانیـنـو مـطابق واقع شی یعنی د خاورو او د لاړو خاص مقدار وی او خاص اوقاتو کښې اُوشی او حال دا چه د رسولِ الله ﷺ په دے یوه ګوته کښې به څومره خاوره او دارنګه څومره لاړے راغـلـے وی چـه هغے سره زخم اُوچ شی۔ نو صحیح دا ده چه دا د قبیلې د تبرك نه دے په نومونو د الله تـعـالیٰ او پـه آثـارو د رسول الله ﷺ باندے۔ او په زمکه باندے د ګوتے راخکلو وجه به کیدے شی د یو خاص حکمة نه وی چه هغه الله تعالیٰ ته معلوم دے۔ انتهیٰ۔

لیـکـن پـه دے ظاهری عمل کښې ضرور فائدے شته او دا د علوم د نبوت سره تعلق لری، اګرکه مونږ ته ئے ظاهری حکمة او فائده ښکاره نشی۔

حافظ ابن قیمؒ هم دغه حکمة ذکر کړے چه په خاوره کښې خاص تاثیر شته چه زخمونه اُوچوی

كوم چه طبيعت خپل كارته نۀ پريدى او خاصكر چه د چا مزاج كښې گرمائش زيات وى او په گرمو علاقو كښې اوسيږى نو هغوى دپاره په زخم باندے خاوره راخكل دير مفيد دى. په زخم كښې غوښه زر راټو كوى. او دا دير آسان مركب او فائده مند علاج دے چه پدے حديث كښې ذكر شويدے. ملخصاً. (عون المعبود ۲٦٥/۱۰ باب فى الرقى).

امام بيضاوىؒ وئيلى دى چه: د طبى تحقيقاتو نه دا خبره واضحه شويده چه د لارو دپاره په مزاج بدلولو او برابرولو كښې خاص دخل او تاثير دے او د خپل وطن خاورے د اصلى مزاج په حفاظت كښې عجيب تاثير لرى پدے سره د مضر څيزونو اثر دفع كيږى ددے وجه نه په (تيسير المسافرين) كتاب كښې ذكر شويدى چه مسافر له دا پكار دى چه كه د خپل وطن اوبه څان سره نشى گرځولے نو خاوره دے څان سره واخلى كله چه د خپل وطن نه علاوه د نورو اوبو سره مخامخ شى نو په لوښى كښې دے اوبه راواخلى او په هغے كښې دے د خپل وطن خاوره ملاؤ كړى او د هغے نه دے اوبه څكى دے دپاره چه په مزاج كښې ئے څه تغير پيدا نشى. بيا دا خبره هم زده كړه چه د دمونو او اورادو دپاره عجيبه آثار وى چه عقلونه د هغے كُنه او حقيقت ته د رسيدلو نه كوتاه كيږى. انتهىٰ.

نو كيدے شى چه رسول الله ﷺ هم پدے بناء باندے دا طريقه اختيار كړى وى.

علامه توربشتىؒ وئيلى دى چه د رسول الله ﷺ ددے عمل نه ذهن ته دا خبره راځى چه په (تربة ارضنا) كښې اشاره ده فطرت د آدم ؑ ته او په لارو كښې هغه نطفے (مادے) ته اشاره ده چه انسان د هغے نه پيدا شويدے. نو مطلب دا شو چه انسان په زبان حال سره او په وينا سره الله تعالىٰ ته دا عاجزى پيش كوى چه اے الله! تا اولنے اصل د خاورے نه پيدا كړيدے بيا دے د هغه اولاد د سپكو اوبو نه پيدا كړيدے نو تا ته دا آسانه او معمولى ده چه ته شفاء وركړے هغه چا ته چه د هغه داسے حالت وى. او ته احسان اوكړے په عافيت وركولو سره هغه چا ته چه د هغه ژوند او مرگ ستا په بادشاهئ كښې برابر دے انتهىٰ. (مرعاة المفاتيح ۲۲۱/٤) او علامه عينىؒ ددے خبرے دير تحسين كړيدے چه دا ديره ښه وجه ده. (عمدة القارى ۳۷۳/۳۱ باب النفث فى الرقية).

ليكن صرف يو تخمين دے غوره دا ده چه دا عالم الغيب والشهادة ذات ته سپارل پكار دى.

۲- فائدة : ددے حديث نه بعض علماؤ دا ثابته كړيده چه هر قسم تجربه كول او دم اچول جائز دى خو پدے شرط چه په هغے كښې د جادو يا د كفر او شرك الفاظ او كلمات نۀ وى. دارنگه هره ژبه كښې دم اچول جائز دى كله چه د هغے معانى معلومے وى، نو داسے دم اچول چه په دُرهه د فلانى، يا په كښې مهمل الفاظ وى چه په معنىٰ باندے ئے دم اچونكے نۀ پو هيږى نو ددے نه

ځان سائل لازم دی ځکه کيدے شی چه په هغے کښې د کفر الفاظ وی او د غير الله نه مدد طلب کول وی او دم کونکے به پرے پوهه نۀ وی۔ مګر هغه الفاظ چه د هغے معنیٰ معلومه نۀ وی ليکن رسول الله ﷺ د هغے اجازت ورکړے وی نو هغه وئيل جائز دی لکه د هغے مثال يو حديث کښې داسے راغلے دے چه يو صحابی به په چيچلے شوی انسان باندے يو دم اچولو چه د هغے معنیٰ نۀ ده معلومه، رسول الله ﷺ ته ئے هغه پيش کړو نو هغه ورته ددے د وئيلو اجازت ورکړو او هغه دم داسے دے : (بِسْمِ اللّٰهِ شَجَّةٌ قَرَنِيَةٌ مِلْحَة بحر قَفْطَا) او وے فرمايل : دا مواثيق دی۔ (يعنی سليمان عليه السلام پدے سره د حشراتو نه لوظونه اخستی وو)۔ (تحفة الذاکرين ص (۳۷۱) للشوکانی) قال فی مجمع الزوائد : اخرجه الطبرانی باسناد حسن) ۔ د يو ضعيف روايت نه معلوميږی چه علقمه رحمه الله سره دا دم پروت وو، هغه پرے يو چيچلے شوے انسان دم کړو نو سمدست روغ شو۔(المعجم الاوسط)۔

علامه شوکانیؒ فرمائی: که داسے الفاظ وی چه په هغے کښې کفر او شرك خو نۀ وی ليکن معنیٰ ئے هم معلومه نۀ وی او په هغے باندے د نفع او تاثير تجربه شوی وی نو ان شاء الله چه د هغے استعمال به هم جائز وی خو پدے شرط چه دم اچونکی ته به معلومه وی چه دا د جادو الفاظ نۀ دی۔ ځکه چه نبی ﷺ مونږ ته په اول حديث کښې دا خبر راکړو چه دا مواثيق (لوظونه) دی چه سليمان عليه السلام د حشراتو نه اخستی دی۔ليکن د شوکانیؒ خبره شکی ده او صحيح خبره دا ده چه فتح المجيد کښې ليکی چه اجماع ده په تحريم د هغه تعويذونو چه د هغے معنیٰ معلومه نۀ وی۔فتدبر۔ او هر چه مخکنی الفاظ دی نو په هغے کښې رسول الله ﷺ اجازت ورکړے نو قياس پرے نشی کيدے۔

---

۱۵۳۱ (۱۰) – وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا اشْتَكٰى نَفَثَ عَلٰى نَفْسِهٖ بِالْمُعَوِّذَاتِ وَمَسَحَ عَنْهُ بِيَدِهٖ فَلَمَّا اشْتَكٰى وَجَعَهُ الَّذِىْ تُوُفِّىَ فِيْهِ كُنْتُ أَنْفُثُ عَلَيْهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ الَّتِىْ كَانَ يَنْفُثُ وَأَمْسَحُ بِيَدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِىْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَتْ: كَانَ إِذَا مَرِضَ أَحَدٌ مِنْ أَهْلِ بَيْتِهٖ نَفَثَ عَلَيْهِ بِالْمُعَوِّذَاتِ.

**ترجمه** : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : نبی ﷺ به چه کله بيمار شو نو خپل ځان به ئے په معوذات سورتونو سره دمولو او خپل لاس به ئے په خپل بدن راخکلو (کوم ځائے ته به چه رسيدلے شو)۔ نو هر کله چه نبی ﷺ په هغه بيمارئ اخته شو په کوم کښې چه وفات شو نو ما

به په هغه باندے په هغه معوذات لوستلو سره دم اچولو کوم چه به نبی ﷺ په خپل ځان باندے دم اچولو او ما به د نبی ﷺ لاس د هغه په بدن راخکلو۔ (بخاری ومسلم)۔ او په روایت د مسلم کښ دی: عائشهؓ فرمائی: کله به چه یو تن د هغه د کور والو نه بیمار شو نو هغه به پرے په معوذاتو لوستلو سره دم اچولو۔

**تشریح**: مطلب دا چه کله به رسول الله ﷺ خپله بیمار شو نو په ځان به ئے معوذات سورتونه لوستل او په ځان باندے به ئے لاس راخکلو او که کور والو کښ به څوك بیمار شو نو په هغه به ئے هم لاس راخکلو لیکن که څوك په پردۀ زنانه باندے دم اچوی یا د سرې داسے اندام وی چه بل چا له په هغې باندے گوتے وهل ممنوع وی یا د دم اچونکی نه مریض غوره وی نو د هغه لاس به د هغه په دردمند ځائے باندے راکاږی او هغه ته به حکم اُوکړی چه ته خپل لاس په خوږ ځائے کیده او ورسره لاړے به په هغه باندے تُف کوی۔ دا لاړے چونکه د بناښته ذکر سره یو ځائے شویدی نو پدے کښ برکت راغلے دے او الله تعالیٰ پدے کښ د کلماتو د وجه نه اثر اچولے دے نو څنګه ددے سره لاړے تُف کول هم مستحب عمل دے۔ کله پدے کښ مقصد تفاؤل (نیك فال) نیول وی چه الله تعالیٰ دے دا مرض او درد د مریض نه داسے جدا کړی لکه څنګه چه دا لاړے د دم اچونکی نه جدا شوے۔ (قاله القاضی عیاضؒ)

**وَمَسَحَ عَنْهُ بِيَدِهٖ**: ١- عَنْهُ په معنیٰ د عَلَیْهِ سره دے یعنی لاس به ئے راخکلو په خپل نفس او په درد مند ځائے باندے۔ ٢- طیبیؒ وئیلی دی چه ضمیر د عَنْهُ راجع دے دغه نفث (لاړو تُف کولو) ته او معنیٰ دا ده: لاړے به ئے تُف کړے په بعض اندام بیا به ئے د دغه تُف کولو د ځائے نه په نورو اندامونو باندے لاس راخکلو۔

په بخاری کښ ددے حدیث په آخر کښ دی: مَعمرؒ وائی ما د ابن شهاب زهریؒ نه تپوس اُوکړو چه لاړے به ئے څنګه تُف کولے؟ هغه اُوفرمایل: [كَانَ يَنْفُثُ عَلٰى يَدَيْهِ ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهٗ]۔ (رسول الله ﷺ به په لاسونو باندے تُف اُوکړو بیا به ئے په مخ باندے راخکل)

**بِالْمُعَوِّذَاتِ**: ددے نه مراد قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس دوه سورتونه دی لیکن جمع ئے د آیتونو په اعتبار سره ذکر کړیده۔ یا دا چه اقل (کم افراد د جمع) دوه دی۔ نو پدے وجه ئے ددے دوه سورتونو دپاره د جمع صیغه استعمال کړه۔ ٢- یا ددے نه مراد پناهی ورکونکی کلمات دی چه هغه دغه دوه سورتونو او ددے مشابه نورو ټولو کلماتو ته شاملیږی لکه (قُلْ رَّبِّ اَعُوْذُ بِكَ مِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِيْنِ) (المؤمنون: ٩٧)

(فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ) (وَاِنْ يَّكَادُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَيُزْلِقُوْنَكَ بِاَبْصَارِهِمْ) (القلم)۔

۳- یا دا چه د معوذات نه درے سورتونه مراد دی (قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس او قل هو الله احد) او دے ته ئے معوّذات نوم تغلیباً ورکړیدے۔ او همدا خبره زیاته معتمده ده۔

تحقیق دا دے چه په بعض روایاتو کښې د معوذاتو تفسیر په سورة الفلق او سورة الناس سره شویدے لکه په روایت د نسائی او ترمذی کښې او په بعض روایاتو کښې معوذتین راغلی دی۔ نو هغه خو صریح دے چه دوه آخری سورتونه مراد دی لیکن په بعض روایاتو کښې معوذات جمع راغلے ده لیکن په نورو روایاتو کښې داسے هم شته چه درے واړه سورتونو ته معوذات وئیلے شویدی لکه روستو په عبارت د حافظ کښې راځی۔ او یو بل ضعیف روایت هم موجود دے چه هغے کښې د آیة الکرسی سره سورة الاخلاص جمع شویدے او د دواړو دا فضیلت خودلے شویدے : (چه څوك د مانځه نه روستو دا وائی نو د داخلیدو د جنت نه به ئے صرف مرگ پرده وی)۔ دا روایات دلیل دے چه ظاهر دا ده چه د معوذاتو سره سورة الاخلاص هم شمار شی۔ (دلته او د مانځه نه روستو دواړو مسئلو کښې لیکن د مانځه نه روستو قل هو الله احد والا حدیث ضعیف دے لکه البانیؒ په ضعیفه ۶۰۱۲/۱۳) کښې وائی : انه باطل انظر تفصیله)۔ لکه علامه عراقیؒ هم وائی : (قُلْتُ : اَلظَّاهِرُ اَنَّ الْمُرَادَ الْمُعَوِّذَتَانِ مَعَ قُلْ هُوَ اللهُ اَحَدٌ) (طرح التثریب۹/۸۲) (ظاهر دا ده چه د معوذات نه دوه سورتونه سره د قل هو الله احد نه مراد دی)

حافظ ابن حجرؒ لیکی : ددے تفسیر په بل روایت کښې په دغه درے سورتونو سره راغلے دے۔ فرمائی : (وَقَدْ كُنْتُ حَوَّزْتُ فِيْ بَابِ الْوَفَاةِ النَّبَوِيَّةِ مِنْ كِتَابِ الْمَغَازِيْ اَنَّ الْجَمْعَ فِيْهِ بِنَاءٌ عَلٰى اَنَّ اَقَلَّ الْجَمْعِ اثْنَانِ ثُمَّ ظَهَرَ مِنْ حَدِيْثِ هٰذَا الْبَابِ اَنَّهُ عَلَى الظَّاهِرِ وَاَنَّ الْمُرَادَ بِاَنَّهُ كَانَ يَقْرَأُ بِالْمُعَوِّذَاتِ اَيِ السُّوَرِ الثَّلَاثِ وَذِكْرُ سُوْرَةِ الْاِخْلَاصِ مَعَهُمَا تَغْلِيْبًا لِمَا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ مِنْ صِفَةِ الرَّبِّ وَاِنْ لَمْ يُصَرِّحْ فِيْهَا بِلَفْظِ التَّعْوِيْذِ وَقَدْ اَخْرَجَ اَصْحَابُ السُّنَنِ الثَّلَاثَةِ وَاَحْمَدُ وَابْنُ خُزَيْمَةَ وَابْنُ حِبَّانَ مِنْ حَدِيْثِ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ قُلْ هُوَ اللهُ اَحَدٌ وَقُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ وَقُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ تَعَوَّذْ بِهِنَّ فَاِنَّهُ لَمْ يَتَعَوَّذْ بِمِثْلِهِنَّ وَفِيْ لَفْظٍ : اِقْرَاْ الْمُعَوِّذَاتِ دُبُرَ كُلِّ صَلَاةٍ فَذَكَرَهُنَّ) (فتح الباری ۹/۶۲) باب المعوذات طبع دار المعرفة بیروت) قال الدکتور القناص: اخرجه احمد واسناده حسن (حدیث السنة عن القرآن ۱/۱۱۳)۔

(ما د کتاب المغازی په باب الوفاة النبویه کښې مخکښې وئیلی وو چه په معوذات کښې جمع بناء ده پدے چه اقل افراد د جمع دوه دی۔ بیا ددے باب د حدیث نه ښکاره شوه چه معوذات جمع په خپل ظاهر بناء ده او مراد ددے نه درے سورتونه دی چه دا به نبی ﷺ لوستل او سورة الاخلاص ئے د دوی سره شمارلے دے تغلیباً ځکه چه دا مشتمل دے په صفت د رب باندے اگرکه صراحةً پکښې لفظ د تعویذ (دم) نشته (دلیل دا دے چه) اصحاب السنن الثلاثه او احمد او ابن

خزيمه او ابن حبان د عقبه بن عامرؓ مرفوع حديث راوړے چه رسول الله ﷺ ما ته اُوفرمايل : قل هو الله احد او قول اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس سره تعوذ كوه ځكه چه ددے په شان سورتونه نشته چه په هغے تعوذ اُوكړے شي او په بل لفظ كښ داسے راغلي دي چه معوذات د هر مانځه نه روستو وايه بيا ئے همدغه (درے) سورتونه ذكر كړل)

او دغه شان پدے حديث الباب كښ هم معوذات لفظ راغلے دے نو ددے نه به هم درے واړه سورتونه مراد وي ځكه چه د هغے بيان په درے سورتونو سره په نورو رواياتو كښ شويدے. او په عام ځايونو كښ رسول الله ﷺ چه آخري سورتونه وئيلي دي نو قل هو الله احد ئے ورسره ملګرے كړيدے لكه په وخت د خوب كولو كښ. او سحر او ماښام وغيره كښ دا تولے قرينے شوے چه راجع دا ده چه د معوذات نه درے واړه سورتونه واخستے شي. والله تعالىٰ اعلم.

**نَفَثَ عَلَيْهِ** : پدے كښ ورسره لاس راخكل ذكر نشو يا خو به رسول الله ﷺ كله كله د لاس راخكل پريخودل او صرف تُف به ئے كولو. يا دا چه دلته ئے نهٔ دي ذكر كړي ځكه چه هغه د نفث (تف كولو) نه معلوميږي. دواړه طريقے جائز دي او دواړه جمع كول ډير غوره دي.

**فوائد الحديث** : (۱) ددے حديث نه ددے دوه يا درے سورتونو زيات فضيلت معلوم شو چه دا داسے سورتونه دي چه د هر قسم مكروه او ضرر او مصيبت نه پكښ پناهي شته كه سحر وي، كه حسد وي او د شيطان وسوسه يا شر وغيره وي. (۲) مريض باندے دا قسم دمونه اچول پكار دي اګركه د مريض دپاره ئے طلب كول صحيح نهٔ دي ليكن د بيمار پرسي كونكي خير خواهي دا ده چه دمونه واچوي، ډير خلق د بيمار تپوس له ځي ليكن دم پرے نهٔ اچوي نو ځكه اكثر بيماران زر نهٔ ښه كيږي، او دا هغه باطني علاجونه دي چه په وحي سره معلوم شويدي، پدے باندے يقين ساتل پكار دي. (۳) نو دا هم معلومه شوه چه زنانه دم كولو وقت كښ د هغے لاس په خوږ ځائے كيخودل پكار دي. دارنګه هغه اندام چه د سرې كوتے وروړل جائز نهٔ وي مريض دے خپل لاس په هغے كيږدي.

---

۱۵۳۲ (۱۱) – وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ أَنَّهُ شَكَا إِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ وَجَعًا يَجِدُهُ فِيْ جَسَدِهٖ فَقَالَ لَهٗ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : «ضَعْ يَدَكَ عَلَى الَّذِيْ يَأْلَمُ مِنْ جَسَدِكَ وَقُلْ : بِسْمِ اللّٰهِ ثَلَاثًا وَقُلْ سَبْعَ مَرَّاتٍ: أَعُوْذُ بِعِزَّةِ اللّٰهِ وَقُدْرَتِهٖ مِنْ شَرِّ مَا أَجِدُ وَأُحَاذِرُ». قَالَ: فَفَعَلْتُ فَأَذْهَبَ اللّٰهُ مَا كَانَ بِيْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : او د عثمان بن ابی العاص ﷺ نه روایت دے چه هغه رسول الله ﷺ ته د یو درد شکایت اُوکړو چه هغه په خپل بدن کښې موندلو، رسول الله ﷺ ورته اُوفرمایل : «ستا د بدن نه چه کوم اندام دردمند کیږی په هغې لاس کیږده او (اول کښې) درے کرته بسم الله وایه، او (بیا) اُووه کرته دا اُووایه : زهٔ د الله نه د هغه په عزت او د هغه په قدرت سره د هغه ضرر (یعنی درد) نه پناه غوارم چه زهٔ ئې (اُوس) محسوس کوم او (آینده کښې ددے د زیاتوالی نه) یریږم»۔ جناب عثمان فرمائی چه (د رسول الله ﷺ ددے ارشاد مطابق) ما دغسے اُوکړل نو الله تعالیٰ ما نه هغه تکلیف لرے کړو کوم چه په ما باندے وو۔ (مسلمؒ)۔

**تشریح** : رسول الله ﷺ ته به صحابه کرامؓ د خپلو بیماریانو شکایت کولو، مقصد به ئې دا وو چه هغه ورته دعاء اُوکړی یا پرے دم واچوی۔ نو ددے نه دا ثابتیږی چه انسان باندے یو تکلیف وی او د هغې اظهار یو داسے انسان ته اُوکړی چه د هغه دعاء کښې برکت وی او نیک عمله انسان وی دے دپاره چه هغه ورته څه علاج یا دعاء اُوښائی نو دا کار جائز دے خو پدے شرط چه دم به ترے نهٔ طلب کوی۔

دا دم هم ډیر مفید دے مریض دپاره ئې په څان باندے اچول پکار دی، مریض ته ضرور شفاء حاصلیږی کله ئې چه یقین سره اُووائی لکه ددغه صحابیؓ تکلیف ورسره ختم شو او پدے اذکارو سره انسان د ډیرو ډاکټرانو نه خلاصیږی۔

سَبْعَ مَرَّاتٍ : ددے عدد حکمة د نبوت د رازونه یو راز دے چه الله تعالیٰ پدے عالِم دے۔

مَا اَجِدُ وَاُحَاذِرُ: ما اجد یعنی هغه تکلیف چه زهٔ ئې فی الحال مونده کوم۔ او هغه تکلیف نه هم پناه غوارم چه آینده زمانه کښې ما باندے راځی۔

---

۱۵۳۳ (۱۲) — وَعَنْ اَبِیْ سَعِیْدِ الْخُدْرِیِّ اَنَّ جِبْرِیْلَ اَتَی النَّبِیَّ ﷺ فَقَالَ: یَا مُحَمَّدُ اشْتَکَیْتَ ؟ فَقَالَ: «نَعَمْ» قَالَ:«بِسْمِ اللّٰهِ اَرْقِیْكَ مِنْ كُلِّ شَیْءٍ یُؤْذِیْكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ اَوْعَیْنٍ حَاسِدٍ اَللّٰهُ یَشْفِیْكَ بِسْمِ اللّٰهِ اَرْقِیْكَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : او د ابو سعید خدری ﷺ نه روایت دے چه (یو ځل) جبریل ؑ د نبی کریم ﷺ خوا ته راغلو او وے فرمایل : اے محمد ! بیمار ئې ؟۔ هغه اُوفرمایل : آو۔ جبریل اُوفرمایل : د الله په نوم سره تا دموم د هر هغه شی نه چه تا ته ضرر درکوی، د هر شخص د بدئ یا د حسدگر انسان د سترګے نه دے الله تا ته شفاء درکړی، د الله په نوم سره تا دموم۔(مسلمؒ)

تشریح : اِشْتَكَيْتَ : همزه باندے فتحه ده د استفهام دپاره ده او همزه وصلیه حذف شویده۔ یا همزه باندے کسره ده او همزه د استفهام حذف ده۔ یعنی آیا بیمارئے ؟۔
نَعَمْ : ددے نه دا معلومه شوه چه مریض دپاره دا جائز دی چه کله ترے څوك تپوس اُوکړی چه څنګه ئے ؟ یا ورته اُووائی: آیا ته مریض ئے ؟ هغه اُووائی آو۔ زهٔ مریض یم۔ پدے کښ مخلوق ته شکایت نشته بلکه دا اخبار دے د خپل مرض او دا جائز دے۔ هغه شکایت منع دے چه مثلاً ته د الله تعالیٰ شکایت مخلوق ته کوے چه زهٔ الله تعالیٰ مریض کړے یم، او زهٔ ئے پیژندلے یم۔ څکه پدے کښ په الله تعالیٰ اعتراض دے او کله چه اعتراض پکښ مقصود نهٔ وی او یو انسان ته خبر ورکړی چه زهٔ بیمار یم نو دا منع نهٔ دے۔ لکه یعقوب ﷺ د خپل غم او مرض شکایت الله تعالیٰ ته کولو او خلقو ته ئے خبر ورکړو۔ ﴿ إِنَّمَا أَشْكُو بَثِّي وَحُزْنِي إِلَى اللَّهِ ﴾۔
مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ أَوْ عَيْنٍ حَاسِدٍ : یعنی د هر نفس د شر او فساد نه مے بچ کړے او د حسد ګر د سترګے نه مے بچ کړے څکه چه د حسد ګر (کینه کونکی) انسان په سترګو کښ داسے ګنده او د ضد نه ډك جراثیم وی چه هغه انسان باندے اثر کوی او دا اثر هم د الله تعالیٰ په اذن او حکم سره وی۔ لکه څنګه چه ګندونو نه بوئی راپورته کیږی۔ قرآن او حدیث کښ د حسد ګر نه پناهی ډیره طلب کړے شویده وجه دا ده چه حسد ګر تر هغه وخت پورے د انسان نه په آرام نهٔ کینی تر څو چه د هغه انسان نه نعمت نهٔ وی زائل شوے۔ او د نورو ضرری څیزونو ضرر دومره زیات او همیشه نهٔ وی۔ الله تعالیٰ دے د حسدګرو سترګو نه مونږ او ټول اهل حق محفوظ اُوساتی۔
دا د جبریل ﷺ دعاء ده چه په ملائکو کښ غوره مخلوق دے دپاره د ډیر غوره انسان چه محمد رسول الله ﷺ دے نو پدے دم او دعاء کښ ضرور اثر شته۔
د یو روایت نه معلومیږی چه رسول الله ﷺ پدے دم باندے ابو هریره ﷺ دم کړے وو۔ (حاکم، نسائی، ابن ماجه وفی سنده عامر بن عبید الله ضعیف)۔

---

١٥٣٤ (١٣) - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُعَوِّذُ الْحَسَنَ وَالْحُسَيْنَ : « أُعِيْذُكُمَا بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّةِ مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ وَهَامَّةٍ وَمِنْ كُلِّ عَيْنٍ لَامَّةٍ». وَيَقُوْلُ: «إِنَّ أَبَاكُمَا كَانَ يُعَوِّذُ بِهِمَا إِسْمَاعِيْلَ وَإِسْحَاقَ ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ وَفِيْ أَكْثَرِ نُسَخِ الْمَصَابِيْحِ «بِهِمَا » عَلٰى لَفْظِ التَّثْنِيَةِ.

**ترجمه** : او ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي : رسول الله ﷺ به حسن او حسينؓ ته ددے الفاظو په ذريعه (د الله) پناه ورکوله : زۀ تاسو ته د الله د کلماتو په ذريعه چه کامل دي، د هر شيطان د شر نه، د هر هلاکونکي زهريله حيوان او د هر نظر لگونکے سترگے نه (د الله) پناه غوارم۔ او نبي ﷺ به دا (هم) فرمايل چه ستاسو پلار (ابراهيم ؑ) به ددے کلماتو په ذريعه (خپلو ځامنو) اسماعيل او اسحاق دپاره د الله پناه غوختله۔ (بخاري) د مصابيح په اکثرو نسخو کښې د (لفظ بها) په ځائے (بهما) د تثنيه په ضمير سره دے۔

**تشريح** : يعني رسول الله ﷺ به حسن او حسين چه د فاطمے ځامن وو پدے ذکر سره دمول او هغوي دپاره به ئے د حفاظت دعاء کوله۔

**يُعَوِّذُ** : دا مضارع ده د باب تفعيل نه (عَوَّذَ، يُعَوِّذُ تَعْوِيْذاً) د تعويذ معنیٰ ده دم اچول، او چا له پناه ورکول۔ او د الله تعالیٰ نه د چا دپاره عصمت، پناه او حفاظت طلب کول۔

او دا معنیٰ ئے نۀ ده کومه چه عوامو کښې مشهوره ده چه تعويذونه، گندے جوړول يا اچول۔ ځکه چه دا کار د نبي ﷺ او د صحابه کرامو نه په صحيح سند بالکل ثابت نۀ دے۔

**أُعِيْذُكُمَا** : يعني زۀ پناهي طلب کوم ستاسو دواړو دپاره د الله تعالیٰ نه په کاملو کلماتو د الله تعالیٰ سره۔ دارنگه زۀ دموم تاسو په کلماتو د الله تعالیٰ سره۔ يا زۀ حفاظت طلب کوم ستاسو دپاره په کلماتو د الله تعالیٰ سره۔

**بِكَلِمَاتِ اللّٰهِ** : ددے کلماتو نه مراد (١) يا خو مطلق د الله تعالیٰ کلام دے۔ (٢) يا قرآن دے۔ (٣) يا معوذتين دي۔ (٤) بعض وائي : ددے نه مراد د الله تعالیٰ اسماء (تومونه) او صفتونه دي۔

**التَّامَّةِ** : يعني د مصيبت او ضرر په دفع کولو کښې پوره دي، چه پدے سره پوره شفاء او برکت او فائده حاصليږي۔ يا دا چه هر لحاظ سره پوره دي۔ او همدا راجحه معنیٰ ده۔

**وَهَامَّةٍ** : ددے جمع هَوَامُّ راځي دا هغه حشراتو او حيواناتو ته وئيلے شي چه په زمکه گرځي او انسانانو ته ضرر ورکوي۔ يعني ضرري حيوانات او حشرات۔ (٢) بعض وائي : زهريلي حيواناتو ته وئيلے شي۔(٣) جزريؒ وئيلي دي : دا هر زهر قاتل والا حيوان ته وئيلے شي خو کله ئے اطلاق په هغه حيواناتو هم کيږي چه په زمکه گرځي اگرکه قاتل نۀ وي۔ لکه حشرات شو۔ لکه حديث کښې دي :(أَيُؤْذِيْكَ هَوَامُّ رَأْسِكَ) په سپږو باندے ئے هم اطلاق شويدے۔ انتهیٰ۔

او سامه هغه حشراتو ته وئيلے شي چه د هغه په زهرو سره انسان نۀ مري لکه لرم، مچۍ، ماشے وغيره۔

(٤) بعض وائي : هامة : هر هغه روح او نفس ته وئيلے شي چه اراده د بدۍ لري، د هم نه ماخوذ دے۔

لَامَّةٍ: دا په تشديد د ميم سره هغه سترگے ته وئيلے شي چه تكليف او ضرر رسوي۔ لَمَم اصل كښې يو قسم ليونتوب دے چه انسان باندے راځي۔ (ابوعبيد، والجوهري في الصحاح) ۔ يعني هغه سترگه چه ليونتوب والا ده۔ يعني په انسان باندے ليونتوب راولي۔

٢- يا په خپل ظاهر بناء دے په معنىٰ د راجمع كونكي سره يعني هغه سترگه چه شر راجمع كونكے ده په هغه انسان كوم باندے چه نظر لگولے شي۔ ځكه لامة د لَمٌ نه جوړ دے په معنىٰ د راجمع كولو سره۔ (لَمَمْتُ الشَّيْءَ إِذَا جَمَعْتَهُ)۔ (لممت په معنىٰ د راجمع كولو سره دے)۔

إِنَّ أَبَاكُمَا : ددے نه مراد ابراهيم عليه السلام دے دۀ ته ئے پلار اُووئيلو ځكه چه دا بره نيكه دے او نيكه دپاره د پلار لفظ په هره ژبه كښې استعماليږي۔ او پدے كښې اقتداء ده د ابراهيم عليه السلام۔ او اشاره ده چه دا قسم ذكر دير فضيلت لري۔

فائده : كه په يو تن دم اچوي نو بيا په هم صيغه د تثنيه استعمالوي پدے كښې تابعداري د نقل ده۔

---

١٥٣٥ (١٤) - وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم :«مَنْ يُرِدِ اللهُ بِهِ خَيْرًا يُصِبْ مِنْهُ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : او ابو هريره رضي الله عنه فرمائي : رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي :« چا باندے چه الله تعالىٰ د خير اراده اُوكړي، هغه ته مصيبت اُورسولے شي »۔ (بخاري)۔

تشريح : يُصِبْ مِنْهُ : پدے كښې دير تركيبونه دي : ١- د عامو محدثينو په نيز باندے يُصِبْ د باب افعال نه دے او د معلوم صيغه ده او ضمير پكښې راجع دے الله تعالىٰ ته او مِنْهُ ضمير مَنْ ته راجع دے۔ معنىٰ دا ده : چا له چه الله تعالىٰ د خير اراده اُوكړي نو مصيبت اُورسوي هغه ته۔ دے دپاره چه د هغے په وجه ورته ثوابونه ملاو شي او گناهونه ئے معاف شي۔ حافظ وائي : ددے تائيد په روايت د احمد (٤٢٧/٥) كښې د محمود بن لبيد په مرفوع حديث كښې داسے راغلي دے : (إِذَا أَحَبَّ اللهُ قَوْماً اِبْتَلَاهُمْ)۔ (كله چه الله تعالىٰ د يو قوم سره مينه كوي نو هغوي باندے ازميښت (مصيبت) راولي) يعني پدے كښې د مصيبت رسولو نسبت الله تعالىٰ ته شويدے۔

٢- ابن خشابؒ وئيلي دي چه بنائسته او د ادب سره لائقه وجه دا ده چه يُصَبْ صيغه د مجهول شي۔ معنىٰ به دا وي : چا له چه الله تعالىٰ اراده د خير اُوكړي نو هغه ته مصيبت اُورسولے شي د الله تعالىٰ د طرف نه۔ يعني اگر كه مصيبت رسونكے هم الله تعالىٰ دے ليكن د ادب سره لائقه دا ده چه نسبت د شرورو الله تعالىٰ ته اُونكړے شي۔

۳- بعض وائي : د يصب دپاره فاعل الله تعالىٰ دے او (مِنْهُ) په معنىٰ د علت سره دے او ضمير ئے راجع دے خير تـه معنىٰ دا ده : چا لـه چه الله تعالىٰ اراده د خير اُوكړي نو الله تعالىٰ ئے مصيبت والا اُوګرځوي د وجه د دغه خير نه- يعنى دے دپاره چه خيرونه او فائدے ورته حاصلے شي-

او الله تعالىٰ د خير اراده ځكه كريده چه كله انسان روغ وي نو د الله تعالىٰ نه غافل وي او مستي پكښې پرته وي او چه كله بيمار شي نو آخرت او مرګ ته ئے فكر شي، الله تعالىٰ ته توبه اُوباسي، د غفلت نه بيدار شي، عاجزي پكښې پيدا شي او دعاګانے شروع كړي او دا ټولے فائدے دي-

بيا مصيبت هر هغه شي ته وئيلے شي چه زړهٔ هغه نهٔ قبلوي او نهٔ ئے خوښوي- نو ددے حديث نه معلومه شوه چه مصيبت كه د تكليف او بيمارئ په صورت كښې وي يا د حادثے او صدمے په شكل كښې وي نو دا هميشه د الله تعالىٰ د قهر او عذاب په طور نهٔ راځي بلكه كله داسے هم كيږي چه په يو بنده باندے الله تعالىٰ خپل رحمت او كرم او فضل كوي او هغه ته خير او خيګړه رسوي نو هغه باندے مصيبت راولي نو پدے سره ددهٔ ګناهونه هم معاف شي او دغه شان د مصيبت د سختوالي په وجه ددهٔ زړهٔ او دماغ صفا كړي او د خير او د نيكئ د رټرا حاصلولو صلاحيت پكښې پيدا كړي- نو كه انسان پدے مصيبت باندے صبر اُوكړي او د الله تعالىٰ نه راضي شي نو دا ددے خبرے علامه او نښه ده چه دا مصيبت به ددهٔ په حق كښې د الله تعالىٰ د رضا او د هغه د رحمت سبب جوړ شي- او كه يو بنده په يو مصيبت باندے فرياد او شكايتونه مخلوق ته اُوكړي او جزع فزع اوبے صبري اُوكړي او د الله تعالىٰ نه خفه شي نو دا مصيبت به ددهٔ په حق كښې د رحمت په ځائے عذاب جوړيږي-

دا حديث مؤمن سړي ته ډيره تسلي وركوي چه كله بيمار شي نو پدے سره د هغه په مرض كښې بے انتهاء تخفيف او آساني پيدا كيږي ځكه چه هغه دا عقيده لري چه دا تكليف او مصيبت د الله تعالىٰ د طرف نه زما دپاره رحمت دے او الله تعالىٰ ما ته د خير او فائدو راكولو اراده كريده-

سفيان ثوري رحمه الله فرمائي : إِذَا سَلَكَ بِكَ سَبِيلَ الْبَلَاءِ فَاعْلَمْ أَنَّهُ سَلَكَ بِكَ طَرِيقَ الْأَنْبِيَاءِ وَإِذَا سَلَكَ بِكَ طَرِيقَ الرَّخَاءِ فَاعْلَمْ أَنَّهُ سَلَكَ بِكَ طَرِيقَ الْأَعْدَاءِ (ابسر) يعنى كله چه الله تهٔ د مصيبتونو په لاره روان كړے نو پو هه شه چه تهٔ د انبياء كرامو په لاره روان كړے او كله ئے چه تهٔ د فراخئ په لاره روان كړے نو پو هه شه چه تهٔ ئے د خپلو دشمنانو په لاره روان كړے- او همدا خبره د وهب بن منبه نه تفسير قرطبي، الدر المنثور د سيوطي او الكشف والبيان د ثعلبيؒ نقل كړيده-

سفيان دا هم فرمائي : [مَنْ لَمْ يَعْلَمْ أَنَّ الرَّخَاءَ مُصِيبَةٌ وَإِنَّ الْمُصِيبَةَ نِعْمَةٌ فَقَدْ قَلَّ فِقْهُهُ] [ايسر]- ځوك چه پدے نهٔ پو هيږي چه فراخي مصيبت دے او مصيبت نعمت دے نو يقيناً چه د هغه فقاهت او

پوهه کمه ده۔

**۱۵۳۶ (۱۵) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ وَأَبِيْ سَعِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ: «مَا يُصِيْبُ الْمُسْلِمَ مِنْ نَصَبٍ وَلَا وَصَبٍ وَلَا هَمٍّ وَلَا حُزْنٍ وَلَا أَذًى وَلَا غَمٍّ حَتَّى الشَّوْكَةُ يُشَاكُهَا إِلَّا كَفَّرَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ خَطَايَاهُ» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه:** او ابو هریرةؓ او ابوسعیدؓ دواړه د نبی کریم ﷺ نه ارشاد نقل کوی چه هغه فرمائیلی :«مسلمان ته هیڅ ستړی والے، او نهٔ څه مرض، نهٔ څه فکر او نهٔ څه خفگان او نهٔ کوم ضرر او نهٔ کوم هسے غم رسیږی تردے چه یو ازغے په هغه کښ داخل شی مګر پدے سره به الله تعالیٰ دده ګناهونه رژوی »۔ (بخاری ومسلم)۔

**تشریح : نَصَبٍ** ۱– ستړی والی تـه وئیلے شی۔ ۲– دارنګه هغه درد ته وئیلے شی چه بدن ته رسیږی د زخم یا د بل څه وجے نه۔

**وَلَا وَصَبٍ:** په فتـحـه د واو او صـاد سره دائـمـی او لازمـی مرض ته وئیلے شی لکه الله تعالیٰ فـرمائی : ﴿ وَلَهُمْ عَذَابٌ وَاصِبٌ ﴾ (الصافات)۔(د دوی دپاره عـذاب دے همیشه لازم او ثابت)۔ او فقه اللغة کښ لیکی : اَلْوَصَبُ شِدَّةُ الْوَجَعِ۔ (سخت درد)۔

**هَمٍّ :** هـغـه غم ته وئیلے شی چه د انسان غوښه ویلی کوی۔ ۲– یا هم هغه خفګان ته وئیلے شی چه د راتلونکی زمانے سره تعلق لری چه څه به کیږی۔

**حُزْنٍ :** دا هـغـه غـم تـه وئیلے شی چه یو شے د انسان نه فوت شوے وی او د هغے پسے خفه وی۔ ۲– یا حزن هـغـه غـم او خفګان ته وئیلے شی چه د هغے د وجه نه په زړهٔ کښ خزونهٔ (زیږ والے) او تنګ والے ښکاره شی۔

**أَذًى :** دا هـر قسـم ضـرر تـه وئیلے شی ظاهری وی او که باطنی۔ یا دا هغه تکلیف ته وئیلے شی چه د بل چا د طرفنه انسان ته حاصل شی۔

**غَمٍّ :** هسے بـغیـر د مـوجب او سبب نه زړهٔ ته خفګان راتلو ته وئیلے شی۔ لکه کله انسان هسے خفه وی، هیڅ تکلیف ورته نهٔ وی رسیدلے۔

حـافـظ ابن حجرؒ وائی : غم هغه خفګان ته وئیلے شی چه د فی الحال حاصل شوی مصیبت نه زړهٔ ته رسیږی۔ او هَم هغه دے چه په آینده زمانه کښ د مصیبت د راتلو فکرونو کولو نه حاصل وی۔ او حزن هغه دے چه د یو محبوب شی د ورك کیدو نه پیدا شوے وی۔

**حَتَّى الشَّوْكَةُ :** حـتـی ابتـدائیـه دے او الشـوکة مـرفـوع دے۔ او مـا بعد ئے خبر دے۔ یا حتی

عاطفه ده او الشوكة مجرور دے۔
يُشَاكُهَا : دا صيغه د مجهول ده او هاء ضمير مفعول ثاني دے او مفعول اول ضمير د يشاك دے چه راجع دے مسلم ته او هغه نائب فاعل دے۔ (اى يُشَاكُ الْمُسْلِمُ بِتِلْكَ الشَّوْكَةِ) ـ (يعني ترد دے چه يو ازغے چه داخل کړے شي په بدن د مسلمان کښې دغه ازغے)۔
نو دے حديث کښې د مسلمان دپاره ډيره خوشحالي او زيرے ذکر دے چه په هر مصيبت باندے مسلمان ته ضرور الله تعالىٰ فائده ورکوي گناهونه ئې معاف کوي۔ اگرکه د انسان نه يو قلم پريوزي۔ يا ترے يو شے هير شي او د هغے په وجه پريشانه شي يا يو شے ئې په جيب کښې يا لاس کښې وي ليکن د هغے په کتلو حيران او پريشان شي چه څه شو؟ نو پدے هم اجر ملاويږي۔

---

١٥٣٧ (١٦) – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ : دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ وَهُوَ يُوْعَكُ فَمَسِسْتُهُ بِيَدِىْ فَقُلْتُ: يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّكَ لَتُوْعَكُ وَعْكًا شَدِيْدًا. فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ :«أَجَلْ إِنِّىْ أُوْعَكُ كَمَا يُوْعَكُ رَجُلَانِ مِنْكُمْ». قَالَ : فَقُلْتُ: ذٰلِكَ لِأَنَّ لَكَ أَجْرَيْنِ ؟ فَقَالَ: «أَجَلْ» ثُمَّ قَالَ: «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يُصِيْبُهُ أَذًى مِنْ مَرَضٍ فَمَا سِوَاهُ إِلَّا حَطَّ اللهُ تَعَالىٰ بِهٖ سَيِّئَاتِهٖ كَمَا تَحُطُّ الشَّجَرَةُ وَرَقَهَا» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي : زۀ د رسول الله ﷺ خوا ته ورغلم او د هغه تبه وه نو ما په هغه باندے خپل لاس راخکلو۔ ما اُووئيل : اے د الله رسوله ! يقيناً تا ته خو ډيره سخته تبه لگيږي۔ نبي ﷺ اُوفرمايل : آؤ، ما ته (دومره) تبه رسيږي لکه څنگه چه ستاسو نه دوه سړو ته تبه رسيږي۔ ابن مسعودؓ فرمائي : ما اُووئيل: دا به پدے وجه وي چه تا ته به دوچنده اجر ملاويږي ؟ نبي ﷺ اُوفرمايل : آؤ، بيائې اُوفرمايل :« نشته يو مسلمان چه هغه ته يو د مرض په وجه يا د هغے نه علاوه په بله کومه وجه سره تکليف اُورسي، مگر الله به پدے سره ددۀ گناهونه داسے رژوي لکه څنگه چه ونه خپلے پانړے رژوي»۔ (بخاري ومسلم)۔
تشريح : يُوْعَكُ : وَعْك يا وَعَك تبے ته وئيلے شي۔ بعض اهل لغت وائي : وعك د تبے درد ته وئيلے شي بعض وائي : وعك د تبے هغه رچ او حرکت ته وئيلے شي چه انسان خوزوي۔ بعض وائي : د تبے کرمائش او براس ته وئيلے شي۔ يعني سخته تبه۔
فَمَسِسْتُهُ بِيَدِىْ : سنت طريقه دا ده چه مريض له ورغلے نو په هغه باندے لاس راکاږه پدے سره د هغه دلجوئي او تسلي کيږي۔

مَرِسْتُ: دا د سمع یسمع نه دې او دا پکښې فصیح لغت دې او د نصر نه هم جائز دې۔ (صحاح اللغة، وادب الکاتب لابن قتیبه)

لَتُوعَكُ وَعْكًا شَدِيْدًا: دلته ئې رسول الله ﷺ ته د هغه د تپې سختي ذکر کړه ځکه چه دلته قانون دې چه مریضان دوه قسمه دي (۱) یو کم عقلان ساده ګان دي، هغوی ته به تسلي ورکولې شي چه ښه به ئې دومره بیمار نۀ ئې، او ان شاء الله چه ښه به شې، ددې مرض نه دیر خلق ښه شوي دي۔ دې دپاره چه زړۀ ئې اُونۀ غورزیږي۔ (۲) او هوښیار مریض ته به داسې وئیلې شي چه تا باندې خو ډیر تکلیف دې، ته خو ډیر مشقت کښې پروت ئې نو هغه پدې خوشحالیږي او دا د هغه ادب دې، ولې که داسې ورته اُووئیلې شي چه تۀ خو دومره مریض نۀ ئې هسې دې ځان اچولې دې نو هغه به خفه شي۔

تَحُطُّ الشَّجَرَةُ وَرَقَهَا: حدیث نه ثابته شوه چه مرض څومره سختیږي نو اجر زیاتیږي بیا ئې دا خبره اُوکړه چه دا اجر زیاتیدل کله داسې درجې ته اُورسیږي چه ټول ګناهونه اُورژوي۔ یا مطلب دا دې چه دې صحابي ته ئې دا اُوفرمایل: چه آؤ لکه څنګه مرض سره اجر ملاویږي نو دغه شان ګناهونه هم ورسره معاف کیږي تردې چه په انسان باندې د هغې نه هیڅ پاتې نۀ شي لکه په روایت د سعد کښې دارمي او نسائي في الکبری نقل کړیدي او ترمذي او ابن حبان ورته صحیح وئیلي دي: (حَتَّى يَمْشِيَ عَلَى الْأَرْضِ وَمَا عَلَيْهِ خَطِيئَةٌ)۔ (تردې چه په زمکه به روان وي او هیڅ ګناه به پرې نۀ وي)۔ (حافظ ابن حجرؒ)۔

علامه طیبيؒ وئیلي دي چه دلته ئې د مریض حالت او د هغه بدن ته بیماري رسیدل بیا د هغه نه په جلتئ سره ګناهونه رژیدل ئې مشابه کړل د هغه ونې د حالت سره چه په هغې باندې تیزې هواګانې راوالوزي او پاڼې ترې په جلتئ سره پریوزي او پوره صفا شي۔ او دیته تشبیه تمثیلي وئیلې شي۔ (مرعاة المفاتیح)۔

نو پدې حدیث کښې عظیم بشارت پروت دې ځکه چه هر مسلمان باندې څه نا څه تکلیف ضروروي۔

---

۱۵۳۸ (۱۷) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: مَا رَأَيْتُ أَحَدًا الْوَجَعُ عَلَيْهِ أَشَدُّ مِنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: او عائشه رضی الله عنها فرمائي: ما هیڅ شخص داسې نۀ دې لیدلې چه په هغه باندې د رسول الله ﷺ نه بیماري ډیره سخته وي۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)۔

**تشریح :** یعنی په رسول الله ﷺ باندے به درد او مرض ډیر سخت وو۔ ځکه چه د هغه مرتبه اُوچته وه او پدے سره به ئے اجر او درجات زیاتیدل۔ او د درد سختیدل ددے خبرے علامه نۀ ده چه ګنے انسان به ډیر ګناهګار وی۔ کلهٔ په مؤمن مرګ سخت وی او کله آسان دا د نیکبختئ او د بد بختئ علامه نۀ ده بلکه د مؤمن دپاره په دواړو حالتونو کښں خیر دے ځکه په سختئ سره ئے ګناهونه معاف کیږی او درجات ئے پورته کیږی او که آسانی پرے راغلله نو دا د الله نعمت دے چه دۀ ته حاصل شو۔

**اَلْوَجَعُ :** مبتداء ده او اشد ئے خبر دے۔ دا جمله په منزله د مفعول ثانی دے درأیت دپاره۔

---

**١٥٣٩ (١٨)** — وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: مَاتَ النَّبِيُّ ﷺ بَيْنَ حَاقِنَتِيْ وَذَاقِنَتِيْ فَلَا أَكْرَهُ شِدَّةَ الْمَوْتِ لِأَحَدٍ أَبَدًا بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

**ترجمه :** او عائشه رضی الله عنها فرمائی : نبی کریم زما د معدے (یعنی دخیټے) او د زنے ترمینځ وفات شویدے، نو زهٔ د نبی کریم ﷺ نه روستو د هیچا دپاره هیڅکله سختوالے د مرګ بد نۀ ګنړم۔ (بخاریؒ)۔

**تشریح :** مطلب د حدیث دا دے چه عائشهؓ فرمائی: زما مخکښں دا ګمان وو چه د مرګ سختی به د بد بختئ او ډیرو ګناهونو نښه وی او څوك چه غټ مجرم وی نو هغه باندے به مرګ سخت وی لیکن کله چه ما د رسول الله ﷺ د مرګ سختیانے اُولیدلے نو ما ته پته اُولګیدله چه زما ګمان خطاء وو نو د رسول الله ﷺ ددے سختیو نه روستو زهٔ د چا په حق کښں د مرګ سختی بده نۀ ګنړم۔ بلکه د مرګ سختی کله د درجاتو د پوره کولو او د اجرونو او ثوابونو د زیاتولو دپاره وی او کله ورسره ګناهونه زائل کیږی او انسان پاکیږی۔ نو که په مؤمن باندے آسان مرګ راشی دا د الله تعالیٰ نعمت دے او که سختی پرے راغلله نو ثواب ورته ملاویږی او ګناهونه ئے معاف کیږی او درجات ئے پورته کیږی نو په دواړو صورتونو کښں فائده شته۔ نو د مرګ سخت والے او آسانوالے د الله تعالیٰ تقسیم دے کله یو فاجر او فاسق انسان وی او مرګ ئے ډیر آسانئ سره وی او کله به یو نیك سړے وی او مرګ به پرے سخت وی۔

**حَاقِنَتِيْ :** علامه جزریؒ فرمائی : (اَلْحَاقِنَةُ مَا سَفُلَ مِنَ الْبَطْنِ وَالذَّاقِنَةُ : طَرَفُ الْحُلْقُوْمِ النَّاتِئِ)۔ حاقنه د خیټے لاندے حصے ته وئیلے شی یعنی معده۔ او ذاقنه : د مرئ هغه طرف ته وئیلے شی چه نیغ راوتلے وی)۔

۲- بعض واثی : حاقنة : هغه خکته ځائے (گندے) ته وئیلے شی چه د مرئ د دوارو هډوکو په مینځ کښ وی یعنی د سینے نه بره چه کومه کنده ده او د هغے نه دوه هډوکی خواره شویدی اوکو طرف ته.

وَذَاقِنَتِیْ : ذقن یعنی زنے ته وئیلے شی یا د زنے هغه ځوکه چه سینے ته رسیږی.

مطلب دا دے چه رسول الله ﷺ زما په غیږه کښ وفات شویدے چه زما سینے ته ئے تکیه لګولے وه. لکه په یو روایت د بخاری کښ داسے راغلی دی : (تُوُفِّیَ فِیْ بَیْتِیْ وَفِیْ یَوْمِیْ وَبَیْنَ سَحْرِیْ وَنَحْرِیْ) . (رسول الله ﷺ زما په کوټه کښ او زما په نمبر کښ او زما د سینے او مرئ ترمینځ وفات شویدے) نو ما بین السحر والنحر دا بعینه ما بین الحاقنه والذاقنه دے د دوارو مطلب یو دے. او ددے تعارض د هغه حدیث د عائشے سره نشته چه هغے کښ داسے دی : چه د رسول الله ﷺ سر د عائشے په پتون باندے وو. ځکه پدے کښ دا احتمال شته چه عائشےؓ به د خپل پتون نه سینے ته پورته کړے وی. او کوم روایت د حاکم او ابن سعد کښ چه دا راغلی دی چه د وفات په وخت کښ ئے سر د علی ؓ په غیږه کښ وو نو هغه په ټولو طریقو ضعیف دے لکه حافظ ابن حجرؒ په فتح الباری کښ هغه بیان کړیدے او په هر سند کښ ئے شیعه راوی دے.

**فائده** : د نبی ﷺ د مرګ د سختیا وجه دا ده چه امت دپاره سبق شی او هغوی په سختیو کښ نا امیده نشی، رسول الله ﷺ به را یاد کړی چه په هغه سخته وه نو زهٔ خو لا ګناهګاریم.

## د مؤمن او منافق د ژوند مثال

۱۵٤۰ (۱۹) - وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« مَثَلُ الْمُؤْمِنِ كَمَثَلِ الْخَامَةِ مِنَ الزَّرْعِ تُفَيِّئُهَا الرِّيَاحُ تَصْرَعُهَا مَرَّةً وَتَعْدِلُهَا أُخْرٰى حَتّٰى يَأْتِيَهُ أَجَلُهُ وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ كَمَثَلِ الْأَرْزَةِ الْمُجْذِيَةِ الَّتِیْ لَا يُصِيْبُهَا شَيْءٌ حَتّٰى يَكُوْنَ انْجِعَافُهَا مَرَّةً وَاحِدَةً ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او کعب بن مالك ؓ فرمائی : رسول الله ﷺ اوفرمایل : « مثال د مؤمن په شان د کچه (نرم او تازه) فصل دے چه هواګانے ئے کږوی، کله ئے غورزوی او کله ئے نیغوی، تردے چه ده ته خپله نیټه راشی. (وخت ئے پوره شی). او د منافق مثال د صنوبر (سبرے) ونے دے چه مضبوطه جوخته ولاړه وی چه هغے ته هیڅ شے ضرر نشی رسولے. (یعنی نهٔ د هواګانو په دباو سره غورزیږی او نهٔ کږیږی) تردے چه د هغے راغورزیدل په یو ځل (یکدم) وی». (بخاریؒ ومسلمؒ).

**تشریح : اَلْخَامَةِ** : کچه فصل او گیاه۔ دا هغه فصل ته وئیلے شی چه تازه راتوکیدلے وی۔ په یو روایت د احمد کښې داسے دی چه مثال د مؤمن د وړی د بنبل په شان دے چه کله برابر وی او کله پریوتے وی۔ د احمد په بل روایت د ابی بن کعب کښې داسے دی: (مَثَلُ الْمُؤْمِنِ مَثَلُ الْخَامَةِ تَحْمَرُّ مَرَّةً وَتَصْفَرُّ أُخْرَى) ۔ (مثال د مؤمن لکه د کچه فصل دے چه کله سور شی او کله زیړ) یعنی مؤمن باندے هم دغسے حالت وی چه کله پرے یو مصیبت وی او کله پرے بل وی۔ نو د مؤمن مثال د هغه فصل او هغه نرم شاخ په شان دے چه تروتازه او نرم وی لکه څنګه چه هواګانے هغه باندے اثر کوی کله ئے یو طرف ته کوږ کړی او کله بل طرف ته لیکن بیا هم په خپل ځائے باندے ولاړ وی۔ نو دغه شان د مؤمن حال هم دے چه په هغه باندے کله مصیبت او پریشانی او غریبی راځی په زمکه ئے واچوی او کله هغه ته خوشحالی او صحت او عافیت حاصلیږی او پدے طریقه باندے ژوند تیروی۔

وجه د تشبیه دا ده چه مؤمن سړی ته هرکله د الله تعالیٰ یو حکم او امر راشی نو دا هغه ته تسلیم شی او په هغے باندے راضی وی نو که دهٔ ته د الله تعالیٰ د طرف نه څه خیر او ښیګړه حاصله شی خوشحاله شی او د الله تعالیٰ شکر اُوکړی او که کوم مصیبت واقع شی نو صبر کوی او په هغے کښې د خیر او اجر امید لری او کله چه ترے مصیبت لرې شی نو بیا شکر ګوزار شی۔

**فائده** : امام ابو الفرج ابن الجوزیؒ فرمائی : د مصیبت په باب کښې انسانان په یو څو قسمه دی (۱) بعض هغه دی چه د مصیبت اجر او ثواب ته نظر کوی نو هغه باندے مصیبت آسان شی۔ (۲) بعض هغه دی چه دا فکر کوی چه دا مرض د الله تعالیٰ چه مالك دے په خپل مِلك کښې تصرف دے نو خپل مالك حقیقی ته ځان تسلیم کړی او په هغه اعتراض نکوی۔ (۳) بعض هغه دی چه د الله تعالیٰ سره ئے د مرض د راتلو د وجه نه دومره محبت پیدا شی او په محبت کښې دومره مشغوله شی چه د مصیبت د لرے کیدو د طلب نه غافله شی۔ ددے انسان حالت د مخکنی نه اُوچت دے۔ (٤) بعض هغه دی چه مصیبت د وجه نه ئے د الله تعالیٰ سره دومره محبت او تعلق پیدا شی چه مصیبت ورله خوند ورکوی او دا نهٔ غواړی چه زما نه زائل شي۔ دا په ټولو کښې اُوچت انسان دے۔(فتح الباری ۱۱۳/۱۰ لابن حجر والمرعاة)۔

**تُفِيئُهَا** : دا مشدد هم استعمال دے (تُفَيِّئُهَا)۔ او د باب افعال أَفَاءَ يُفِيْءُ نه هم جائز دے (تُفِيئُهَا) د دوارو معنیٰ ده مائل کول او اړول راړول۔ (اى تَجِيءُ بِهَا وَتَذْهَبُ)۔ (یعنی بوځی رابوځی هغهٔ لره) مجرد ئے فَاءَ يَفِيْءُ دے په معنیٰ د واپس کیدو۔ لازم دے۔ (أَفَاءَ) راواپس ئے کړو او (فَاءَ) خپله واپس شو۔

تَصْرَعُهَا : په فتحه د راء سره۔ يعنى راغورزوى دے لره) امام نووی وائی : (تَخْفِضُهَا)۔(راخكته كوى دے لره هواګانې)

وَتَعْدِلُهَا : پدے كښې دوه قراءته جائز دى۔ (تَعْدِلُهَا،یا تُعَدِّلُهَا)۔ (ای تَرْفَعُهَا وتُقِيمُهَا وتُسَوِّيهَا)۔ (راپورته كوى او اُودروى او برابروى دے لره)۔

په روايت د مسلم كښې ورسره دا لفظ زيات راغلى دے : (حَتّٰى تَهِيجَ)۔ (يعنى تردے چه دغه كچه فصل برابر شى او پخوالى ته اُورسى۔ امام نووی وائی :(ای حَتّٰى تَيْبَسَ) ۔ (تردے چه اُوچ شى)۔ يعنى مؤمن سرى باندے دغه مصيبتونه وى تردے چه پدے حالت كښې ئے ژوند سرته اُورسى او ځوانى ئے اُوچوالى او بوډاوالى ته مائله شى او آخر وفات شى۔

وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ : او د منافق د ژوند مثال داسے دے لكه د صنوبر (سبرے) ونے په شان چه عام بادونه او هواګانے او حالات ځو ورته څه ضرر نشى وركولے ليكن كله چه پرے ډيره سخته هواء راشى يا تندر پريوزى نو بيا ئے د بيخه راوباسى۔ نو دغه شان منافق انسان ته هم الله تعالىٰ په دنيا كښې آسانى وركړى وى، بنه صحتمند وى خوشحاله او تندرست وى څه زيات غمونه او خفګانونه پرے نهٔ وى، بيمارياني پرے نهٔ راځى۔ دے دپاره چه په آخرت كښې پرے تنګى راولى نو كله چه الله تعالىٰ د منافق د هلاكولو اراده اُوكړى نو بيا ورله بيخ اُوباسى، مرګ ئے ډير سخت عذاب وى او د روح په وتو كښې پرے ډير زيات دردونه راځى۔

نو منافق محروم وى د هغه ثوابونو او ګناهونو معاف كيدو او د درجاتو حاصليدو نه كوم چه مؤمن ته د مصيبت په راتلو سره ملاويږى۔

كَمَثَلِ الْأَرْزَةِ : په فتحه د همزه او زاء سره چه مينځ كښې راء ساكنه ده۔ د صنوبر (سَبرے) ونے په شان ونه ده، چه د شام او آرمن په علاقو كښې پيدا كيږى او ډير اُوږد عمر لرى او د لبنان په غرونو كښې زياته ملاويږى۔ په زمكه كښې ډيره مضبوطه راخيژى۔ بعض وائى : دا بعينهٖ د صنوبر ونه ده۔ او بعض وائى : چه ددے نه مراد د عَرعَر ونه ده۔ ابوحنيفة الدينوري وائى : ما ته يو خبردار انسان دا خبر راكړيدے چه ارزة د صنوبر ونے مذكر دے چه هيڅ ميوه وغيره نهٔ كوى ليكن د بيخونو نه ئے زفت (تاركول) اُووځى او د لرګو نه ئے خلق اُوربلوى او بيا د شمع په شان رڼا ترے اخلى او د عربو په زمكه كښې نهٔ راخيژى۔

(لسان العرب لابن منظور ٥/٣٠٥) المحكم والمحيط الاعظم لابن سيدة)۔

الْمُجْذِيَةُ : دا د (جَذَا يَجْذُو او اَجْذىٰ يُجْذِىْ) نه دے، دوه لغتونه دى۔ په معنىٰ د نيغ او مضبوط اُودريدلو سره۔

جذلة : د لوئی ونو بیخونو ته وئیلی شی۔ علامه ابن منظورؒ د ازهریؒ نه نقل کوی فرمائی : (اَلاِجْذَاءُ فِیْ هٰذَا الْحَدِیْثِ لَازِمٌ یُقَالُ: اَجْذَی الشَّیْءُ، یُجْذِیْ، وجَذَا یَجْذُوْ جَذْوًا اِذَا انْتَصَبَ وَاسْتَقَامَ) (لسان العرب لفظ جَذَا)۔ (اجذاء په دے حدیث کښ د باب افعال نه ده او لازم دے لکه وئیلے شی اجذی الشیء یجذی۔ یعنی یو شے اودریدو او نیغ او مضبوط شو) نو د مجذیه معنیٰ ده (اَلثَّابِتَةُ الْقَائِمَةُ عَلَی الْاَرْضِ)۔ (هغه ونه چه په زمکه مضبوطه ولاړه وی)۔

انْجِعَافُهَا : انجعاف : انقلاع او سقوط ته وئیلے شی یعنی د بیخ نه وتل او راپریوتل۔ او دا مُطَاوِعْ د جَعَفَ دے۔(جَعَفْتُهٗ فَانْجَعَفَ)۔ (دا شے مے د بیخ نه ویستلو نو بس را اُووتلو)۔

---

۱۵۴۱ (۲۰) – وَعَنْ أَبِیْ هُرَیْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :«مَثَلُ الْمُؤْمِنِ کَمَثَلِ الزَّرْعِ لَا تَزَالُ الرِّیْحُ تُمِیْلُهٗ وَلَا یَزَالُ الْمُؤْمِنُ یُصِیْبُهُ الْبَلَاءُ وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ کَمَثَلِ شَجَرَةِ الْاَرْزَةِ لَا تَهْتَزُّ حَتّٰی تُسْتَحْصَدَ ». مُتَّفَقٌ عَلَیْهِ.

ترجمه : او ابو هریره ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : « مثال د مؤمن په شان د فصل دے چه هواءِ ئے همیشه ککړوی او مؤمن به همیشه وی چه مصیبتونه به ورته رسیږی او مثال د منافق په شان د سبرے ونے دے چه (د هواګانو په دباؤ سره) نهٔ خوزیږی تردے چه (آخر کښ) د بیخ نه راوویستلے شی»۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

تشریح : مطلب دا چه منافق په دنیاوی ژوند کښ د مصیبتونو او تکلیفونو سره ډیر نهٔ مخامخ کیږی او نهٔ په دهٔ باندے بلاء او تکلیفونه زیات اثر کوی دے دپاره چه د دنیا د مصیبتونو په بدله کښ هغه دپاره د اُخروی ژوند عذاب سپك نهٔ شی او د مسلمان په دنیا کښ په مصیبتونو کښ مبتلا کیدل ددے خبرے علامه ده چه هغه ته به په آخرت کښ ډیر د سکون او آرام او د خوشحالو نه ډکه زندګی حاصلیږی۔

حَتّٰی تُسْتَحْصَدَ : دا یا د مجهول صیغه ده (حتی تُسْتَحْصَدَ) (تردے چه لَوْ کړے شی، پریکړے شی)۔ ۲– ابن الملك وائی : د معلوم صیغه ده۔ (حَتّٰی تَسْتَحْصِدَ) ۔(تردے چه وخت د لَوْ کولوئے راشی نو پریکړے شی) او همدا قراءت د اکثر راویانو نه نقل دے او امام نوویؒ ورته اَجْوَدُ وئیلے دے۔

---

۱۵۴۲ (۲۱) – وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ : دَخَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَلٰی أُمِّ السَّائِبِ فَقَالَ: «مَالَكِ تُزَفْزِفِیْنَ ؟». قَالَتْ: اَلْحُمّٰی لَا بَارَكَ اللّٰهُ فِیْهَا فَقَالَ:«لَا تَسُبِّی الْحُمّٰی فَإِنَّهَا تُذْهِبُ خَطَایَا بَنِیْ

آدَمَ كَمَا يُذْهِبُ الْكِيرُ خَبَثَ الْحَدِيدِ ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ ام السائبؓ كره تشريف يوړو، (چه هغه د تبې نه په رپيدو كښې اخته وه) وې فرمايل : ولې داسې خوزيږې ؟ هغې عرض اُوكړو : تبه ده، الله دې په كښې بركت وانچوي. نبي ﷺ اُوفرمايل : ((تبې ته بد رد مه وايه ځكه چه دا د بنيادمانو ګناهونه داسې لرې كوي لكه څنګه چه بټئ د اُوسپنې زنګ ختموي))۔ (مسلمؒ)۔

تشريح : تُزَفْزِفِيْنَ : دا په دوه زائينو دې او په بعض روايتونو كښې په دوه رائينو سره هم نقل دې۔ امام منذريؒ وائي : د دواړو معنىٰ نزدې نزدې ده چه هغه رڼ او حركت ته وئيلې شي چه تبې والا ته راپيښې شوې وي) اى تَتَحَرَّكِيْنَ يعنې ولې داسې خوزيږې، رپيږې او رڼ نيولې ئې؟) او دا صيغه د معلوم او مجهول دواړو كيدې شي ځكه دا لازم او متعدي دواړه راځي۔ تُزَفْزِفِيْنَ، تَزَفْزِفِيْنَ) امام نوويؒ وئيلي دي چه (تُزَفْزِفِيْنَ) په ضمه د زاء سره صحيح او مشهور دې۔

فوائد : (۱) دې حديث نه دا معلومه شوه چه د زنانه عيادت هم پكار دې، كه پردئ زنانه وي چه د انسان ورسره نكاح جائز وي يا ترې فتنه پيدا كيدله نو بيا به غائبانه عيادت اُوكړي، وربه شي بيتهك كښې به كيني او غائبانه تپوس به ئې اُوكړي۔

(۲) دا رنګه تبې وغيره مرضونو ته بد رد وئيل نۀ دي جائز ځكه چه دا د ګناهونو د رژولو سبب دې۔

(۳) يو روايت نه معلوميږي حسن بصريؒ فرمائي : (كَانُوْا يَرْجُوْنَ فِيْ حُمّٰى لَيْلَةٍ كَفَّارَةً لِمَا مَضٰى مِنَ الذُّنُوْبِ) (رواه ابن ابى الدنيا ورواته ثقات) (صحيح الترغيب والترهيب بسند حسن) ۔(صحابه كرامؓ به د يوې شپې په تبه دا اميد ساتلو چه دا د تير شوو ګناهونو رژونكې ده)۔

خَبَث : زنګ او خيرې ته وئيلې شي۔

كِيْر : [هُوَ زِقٌّ اَوْ جِلْدٌ غَلِيْظٌ ذُوْحَافَاتٍ] (صحاح فى اللغة حرف لام۲/۱۲۹) (اَوِ الزِّقُّ الَّذِيْ يُنْفَخُ فِيْهِ)۔ بټئ ته وئيلې شي چه د آهنګر سره وي د ځږكې څرمنې نه وي دوه طرفونه لرې دهغې په ذريعه اُور ته پوكې كولې شي۔ ګودې هم ورته وائي۔

۱۵۴۳ (۲۲) – وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« إِذَا مَرِضَ الْعَبْدُ أَوْسَافَرَ كُتِبَ لَهُ بِمِثْلِ مَا كَانَ يَعْمَلُ مُقِيْمًا صَحِيْحًا ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه : او ابو موسى ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي :((كله چه يو بنده بيمار شي يا مسافر شي نو دهٔ له (د نوافلو او وظيفو په عملنامه كښې) هغه شان عمل ليكلې شي كوم چه دهٔ

په حالت د مقيم والى او صحت كښې كولو »۔ (بخارئ)۔

**تشريح :** يعنى كله چه يو مؤمن بنده د مرض نه مخكښې يو نيك عمل كولو، څه أوراد او نوافل ئے كول، او په هغے باندے د هميش والى اراده او نيت ئے وو بيا مريض يا مسافر شو او د مرض يا د سفر په وجه ترے هغه پاتے شو نو الله تعالىٰ ورله هغو مره عمل او ثواب ليكى كوم چه ئے په صحت او حالت د مقيم والى كښې كولو۔ او دا د الله تعالىٰ فضل دے۔ لكه مثلاً يو انسان هميشه تهجد كوى ليكن يوه شپه بيمار وى او تهجد ترے پاتے شى نو الله تعالىٰ ورله د تهجدو پوره پوره اجر وركوى او داسے به وى لكه دۀ چه كړى وى۔ او د طبرانى په روايت كښې دى : چه د صحت د زمانے نه هم ورله افضل عمل ليكى۔

په روايت د احمد كښې د انس بن مالك نه مرفوع حديث كښې دى : (إِذَا ابْتَلَى اللهُ الْعَبْدَ الْمُسْلِمَ بِبَلَاءٍ فِيْ جَسَدِهٖ قَالَ اللهُ اُكْتُبْ لَهٗ صَالِحَ عَمَلِهِ الَّذِىْ كَانَ يَعْمَلُهٗ فَإِنْ شَفَاهُ غَسَلَهٗ وَطَهَّرَهٗ وَإِنْ قَبَضَهٗ غَفَرَلَهٗ وَرَحِمَهٗ) (احمد ۳/۱۵۸) وسنده حسن) ارواء الغليل (رقم : ٥٦٠) ٢/٣٤٦)۔

(كله چه الله تعالىٰ يو مسلمان بنده د بدن په يو تكليف باندے اخته كړى نو الله تعالىٰ ملائك ته حكم كوى چه دۀ له هغه نيك عمل أوليكه كوم چه به دۀ مخكښې كولو، نو كه الله تعالىٰ ورته شفاء وركړى نو د گناهونو نه ئے وينځى او پاك ئے كړى او كه وفات ئے كړى نو بخنه به ورته كوى او رحم به پرے كوى)

دا حكم نوافل او فرائضو تولو ته شامل دے۔ يعنى كه فرض مونځ د مرض او تكليف د وجه نه په ناسته أوكړى نو داسے به وى لكه چه په ولاړه ئے كړے وى۔

---

**۱۵٤٤ (۲۳) – وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« اَلطَّاعُوْنُ شَهَادَةٌ لِكُلِّ مُسْلِمٍ ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه :** او انس رضی الله عنه فرمائى : رسول الله ﷺ فرمايلى دى: « په طاعون (كښې وفات كيدل) د هر مسلمان دپاره شهادت دے»۔ (بخارئ ومسلمؒ)۔

**تشريح :** يعنى كه په يوه علاقه كښې طاعون بيمارى خوره شى او مسلمان صبر او برداشت أوكړى او د هغه علاقے نه تيښته أونكړى او د بيمارئ نه يره أونكړى او الله تعالىٰ ته ځان أوسپارى او په هغه باندے بهروسه أوكړى نو كه دا په طاعون بيمارئ سره وفات شى نو الله تعالىٰ به دۀ ته د شهيد ثواب وركوى۔

**شَهَادَةٌ :** شهادت دوه قسمه دے ۱– يو ظاهرى دے، چه انسان په معركه كښې د كافرو د لاسه

اُولـګيږي او زر مړ شي او د دنيا نه څه فائدے وانخلي نو ددۀ حکم دا دے چه دۀ له به غسل نشي ورکولے او جامے به ترے نشي ويستلے کيدے او جنازه پرے مستحبه ده۔ بيا الله تعالیٰ ته پته ده چه د الله په نيز به شهيد وي او که نۀ ليکن ظاهر کښې د شهيدانو احکام پرے جاري کيږي۔

۲- دويم شهادت معنوي دے ديته شهادة عند الله وئيلے شي يعني د الله تعالیٰ په نيز شهيد۔ چه په ظاهر کښې به پرے د شهيد احکام نۀ جاري کيږي ليکن الله تعالیٰ ورته د شهيد هومره ثواب ورکوي ځکه چه د هغه هومره سختے او تکليف پرے راغلے دے۔ دا شهداء بعض فقهاؤ ديرشو (۳۰) پورے شمارلي دي۔ علامه سيوطيؒ پرے يوه رساله ليکلے ده (نَيْلُ السَّعَادَةِ فِيْ اَسْبَابِ الشَّهَادَةِ) چه په هغے کښې ئے ډير روايات جمع کړيدي چه ډير روايات پکښې صحيح او څه ضعيف دي۔ لکه مثلاً څوك په طلب د علم کښې اُوځي او وفات شي نو شهيد دے۔ د جمعے په ورځ يا شپه وفات شي نو شهيد دے، د الله په لاره کښې اُووتو په هر مرض چه وفات شي شهيد دے۔ وغيره۔ چه دغه روايات علامه قسطلانيؒ او زرقانيؒ خلاصه کړيدي او حافظ ابن حجرؒ او عينيؒ راوړيدي فتح الباري (۱۰/۱۹۳) او عيني ته رجوع اُوکړئ۔ دارنګه الفتح الرباني د شوکانيؒ۔ او الدين الخالص (۷) کښې تحقيق الروايات موجود دے دارنګه زمونږ د استاذ شيخ محمد بن علي بن آدم الاثيوبي رساله ((اسباب الشهادة)) اُوګوره۔

او دلته مشکاة کښې هم ډيرو کسانو ته شهيد وئيلے شويدے۔

طاعون : امام نوويؒ وائي : طاعون هغه دانے او پرسوب دے چه ډير درد کوي او بدن ررسره لمبے وهي چه ددے دانو اطراف تور يا شين يا تك سور شي او ددے سره زړۀ تنګ شي او انسان باندے قئ اُولګي او غالباً د بدن په نرم ځايونو کښې راښکاره کيږي لکه د خيتے لاندے حصه (بغاندے) او ترخونه، کله په لاسونو او ګوتو او ټول بدن کښې هم راښکاره کيږي۔ (تهذيب الاسماء واللغات حرف الطاء ص (۱۲۰۸) للنووي المتوفى (٦٧٦هـ) ۔

۲- بعض اطباؤ (يو د هغوي نه ابن سينا دے) وئيلي دي : طاعون هغه زهريله ماده ده چه د بدن په نرم او پټ ځايونو کښې داسے پرسوب او دانے پيدا کړي چه هغه انسان وژني او وينه خرابه کړي چه د هغے د وجه نه اندام خراب شي او زړۀ ته يو داسے ردي کيفيت اُورسي چه د هغے د وجه نه قيئ او د زړۀ جوش او تنګي او بے هوشي پيدا شي۔

۳- بعض وائي : طاعون وبا ته وئيلے شي چه کومه علاقه کښې دا بيماري پيدا کيږي نو د هغه ځائے آب وهوا خرابه شي او مزاجونو کښې فرق راشي او هوا کښې جراثيم پيدا شي نو د هغے د وجه نه دا بيماري راخوره شي۔

ليكن بعض علماؤ پدے رد كړيدے چه كه طاعون وباه وے او د هواء د خرابيدو په وجه پيدا كيدلے نو بيا خو پكار وه چه په زمكه كښې هميشه راتلے ځكه چه هوا كله خرابيږي او كله صحيح كيږي۔ او حال دا چه طاعون خو بغير د تجربے او قياس نه كله ځي او كله راځي وخت ئے نۀ وي معلوم۔ كله كال په كال راځي او كله ډيره موده پس راځي۔ ٢- دارنگه پكار وه بيا طاعون په انسانانو، حيواناتو ټولو راتلے او حال دا چه په يو كور كښې په څه كسانو راغلے وي او نور خلق د هغه د مزاج پشان مزاج لري او په هغه باندے نۀ وي راغلے۔ بلكه كله ډير صحيح مزاج والا انسان باندے راغلے وي۔

٣- دارنگه كله طاعون په معتدل موسمونو او معتدل هواء او مزيدارو اُوبو والا علاقو كښې هم پيدا كيږي نو دا دليل دے چه طاعون وباه نۀ ده چه د هواء د خرابوالي نه پيدا شوي وي۔

٤- نو دوي وائي چه اصلي او صحيح سبب د طاعون د پيدا كيدو دا دے چه طاعون د پيرانو د گوزار نه پيدا كيږي لكه دے باره كښې يو حسن حديث پيش كوي : (اَلطَّاعُوْنُ وَخْزُ اَعْدَائِكُمْ مِنَ الْجِنِّ) (احمد، بزار، ابويعلي والطبراني (٣٢/٢) عن ابي موسى الاشعري بسند صحيح) (ارواء الغليل ٧٠/٦ رقم : ١٦٣٧) وصححه الحافظ ابن حجر وابن خزيمة والحاكم والحافظ المنذري، والشيخ عبد الرحمن المباركفوري في رسالته خير الماعون في منع الفرار من الطاعون)۔

(طاعون بيماري ستاسو د دشمنانو پيرانو گوزار دے) وخز هغه گوزار ته وئيلے شي چه د باطن نه وي ظاهر طرف ته (يعني پټ گوزار) چه بل طرف ته وتلے نۀ وي۔ يعني سورے نۀ كوي۔ ددے وجه نه دا اول اثر په باطن كوي بيا په ظاهر۔

او ددے رائے تائيد حافظ علقميؒ په شرح د الجامع الصغير كښې او حافظ ابن القيمؒ په زاد المعاد كښې كړيدے۔ او دا ئے وئيلي دي چه د اطباء او ډاكټرانو د طاعون سبب فساد د هواء وغيره ذكر كول غلط او باطل دي او ډيرے وجے ئے ددے په بطلان ذكر كړيدي۔ څه مخكښې بيان شوے او بله دا چه (٥) د هرے طبعي سبب والا بيمارئ دپاره يو طبعي دوائي ضرور وي او ددے طاعون د دوائي نه ټول اطباء عاجز شويدي تردے چه حُذاق اطباؤ دا تسليم كړيده چه د طاعون هيڅ قسم دوائي نشته او ددے دپاره هيڅ دافع (دفع كونكے) نشته مگر هغه (ذات) چه دا ئے پيدا كړيدے۔ آه۔

٥- ليكن صحيح دا ده چه د ددے حديث او د طبيبانو د خبرے هيڅ منافات او تعارض نشته ځكه چه دا ممكن ده چه ددے باطني گوزار نه په بدن كښې زهريله ماده پيدا شي او د هغے په وجه وينه جوش اُووهي او په بدن كښې دانے راښكاره شي۔ او طبيبانو د پيرانو گوزار ځكه نۀ دے ذكر كړے چه دا يو داسے سبب دے چه په عقل نۀ معلوميږي بلكه دا د شارع د طرف نه

معلومیږي نو هغوی د خپلو اصولو او قواعدو مطابق خبره کړیده۔
هاؤ ا کوم اطباء چه د طاعون سبب فساد د هواء ګرځوي نو د هغوی خبره خطاء ده په هغه وجوهو کوم چه مخکښې ذکر شو۔
او طاعون ته چه وباء وئیلے شي نو دا مجازاً یعنی لکه څنګه چه وباء عامه راځي او ډیر خلق وژني نو دغه شان طاعون هم وي۔
طاعون بیماري به پخوا زمانه کښې ډیره راتله اُوس الله تعالیٰ بنده کړیده۔ ډیر صحابه کرام په طاعون وفات شویدی لکه ابوعبیده بن الجراح ﷛ د (۵۸) کالو په عمر او معاذ بن جبل ﷛ د (۳۳) کالو په عمر په طاعون عمواس کښې شهیدان شویدی (تهذیب الاسماء)۔
**فائده** : حافظ ابن القیمؒ لیکي : طاعون په دریے معنو استعمالیږي (۱) هغه ظاهري اثر کوم چه اطباؤ ذکر کړیدے۔ (دانے وغیره) (۲) (اَلْمَوْتُ الْحَادِثُ مِنْهُ وَهُوَ الْمُرَادُ بِالْحَدِيْثِ الصَّحِيْحِ : اَلطَّاعُوْنُ شَهَادَةٌ) (هغه مرګ چه ددے اثر نه پیدا شي لکه همدا مراد دے په دے حدیث کښې چه طاعون د هر مسلمان شهادت دے)۔
(۴) (اَلسَّبَبُ الْفَاعِلُ لِهٰذَا الدَّاءِ) (هغه سبب چه ددے بیماري راپیدا کونکے وي) چه هغه په حدیث کښې وخز الجن خودلے شویدے یا د نبی ﷺ دعاء ده۔(زاد المعاد ٤/٢٤)
**فائده** : ددے حدیث نه معلومیږي چه د هر مسلمان دپاره طاعون شهادت دے نو دا فاسق ته هم شامل دے لهذا هغه به هم شهید حسابیږي لیکن هغه به په مرتبه کښې د نیک عمله مسلمان سره برابر نهٔ وي۔ ځکه چه د شهداؤ درجو کښې هم فرق وي ټول یو شان نهٔ وي۔
(فیض القدیر للمناوی ٤/٢٧٨)۔
۲- دارنګه د پخوانو دپاره عذاب وو او ددے امت د مؤمنانو دپاره رحمت دے۔ ددے نه معلومه شوه چه خیرونه ټول ایمان والو دپاره دي ځکه چه دغه یو طاعون دے د پخوانو اقوام مکلفو دپاره عذاب وو او ددے امت د ایمان والو دپاره رحمت اُوګرځیدو۔ ددے نه دا فائده هم حاصلیږي چه که یو انسان په یو بم دهماکه کښې یا په زلزله کښې وفات شي او هغه ګناهګار وي نو د هغه دپاره خو عذاب اُوګرځیدو او که یو خالص صحیح نیك عمله مسلمان پکښې وفات شي نو د هغه دپاره رحمت او د ګناهونو د معاف کیدو او د درجاتو د پورته کیدو سبب ګرځي۔ او د هغه مجرم ګناهونه هم معاف کیږي لیکن هغه ته ثوابونه او درجات نهٔ حاصلیږي۔ خو په دے شرط چه مشرك او کافر نهٔ وي۔ عام ګنهګار وي۔

١٥٤٥ (٢٤) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«اَلشُّهَدَآءُ خَمْسَةٌ: اَلْمَطْعُوْنُ وَالْمَبْطُوْنُ وَالْغَرِيْقُ وَصَاحِبُ الْهَدْمِ وَالشَّهِيْدُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

**ترجمه** : او ابو هريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي :« شهداء پنځه دي : (١) طاعون كښې اخته. (٢) د خيټې په بيمارئ (يعني دست او استسقاء) كښې مړكيدونكے. (٣) په اُوبو كښې بے اختياره دوبيدو سره مړ كيدونكے. (٤) د ديوال يا چت د لاندے راغورزيدو سره مړ كيدونكے. (٥) د الله په لاره كښې شهيد كيدونكے. (بخاريؒ ومسلمؒ).

**تشريح : اَلشُّهَدَآءُ** : شهداء جمع د شهيد ده شهيد ورته ځكه وائي چه ملائك ددهٔ مرګ ته حاضريږي. يا مشهود لـه بـالـجـنـة دے يعني دهٔ له د جنت ګواهي شوي وي. نو شهيد فعيل بمعـنـى الـمفعول دے. يعني مشهود. يا شهيد د شهادة نه دے په معنىٰ د حضور سره او شهيد هـم د الله تـعـالىٰ پـه نيـز بـانـدے ژونـدے وي او د الله تـعـالىٰ دربار ته حاضري وركوي. يا حاضري وركـوي هـغـه كرامات او عزتونو ته چه الله تعالىٰ ورله تيار كړيدي. بعض وائي شهيد ورته ځكه وائي چـه د رسـول الله ﷺ سره به ګواهي وركوي په پخوانو امتونو باندے نو شهيد په معنىٰ د شاهد (ګواهي وركونكي) شو.

**خَمْسَةٌ** : پـه يو روايت كښې شلور ذكر دي نو اول نبي ﷺ ته د كم عدد خبر وركړے شوے وو بيا روستو زيادت اُوشو. او حصر مقصد نهٔ دے. (حافظ ابن حجرؒ)

**اَلْمَطْعُوْنُ**: هغه انسان ته وائي چه په طاعون بيماري وژلے شوے وي.

**وَالْمَبْطُوْنُ** : هغه چا ته وائي چه د خيټې په بيمارئ وفات شي هره بيماري چه وي. يا په مرض استسـقـاء يا اسهـال (دسـتـونه) يا پيچش د وجه نه وفات شي. او پدے كښې به ان شاء الله چه هغه زنـانـه هـم داخـلـه وي چـه پـه اولادو وفات شي. لـكـه دا په يو روايت كښې صراحةً هم راغلي ده : (وَالْـمَرْأَةُ تَمُوْتُ بِجُمْعٍ) (موطأ مالك) . هـغـه زنـانـه چه په خيټه كښې ئے اولاد راجمع كړے وي او په هغے وفات شي.(شرح مسلم للنووي).

**وَصَاحِبُ الْهَدْمِ** : هـدم كـه پـه فـتـحـه د هاء او دال شي نو هغه آبادي ته وئيلے شي چه مهدوم (اُونـړولے) شي. يعني په انسان باندے ديوال يا كور راپريوزي. او كه فتحه د هاء او سكون د دال شي نو بيـا مـصـدر دے پـه معنىٰ د نړيدلو سره او مراد دا دے چه صاحب د نړيدلو د ديوال به هم شهيـد وي يعني هغه څوك چه ديوال وغيره پرے راونړيږي او دا ترے لاندے مړ شي. امام قرطبيؒ وئيـلـي دي : اُوبـو كـښې دوب شوے او ديوال پرے راغـورزيـدلے انسان به هله شهيد وي چه ئے

احتياطي ئے نۀ وي كړې او ځان ئے قصداً هلاكت ته نۀ وي غورزولے۔ كه د داسے خطرې ځائے نه ئے ځان نۀ وو ساتلے او مړ شو نو دا دواړه به گناهگار وي۔

**فائده :** علماء وائي شهيدان درے قسمه دي (١) شهيد الدنيا والآخرة : دا هغه شخص دے چه د الله تعالىٰ په لار كښې اُووژلے شي۔ (٢) دويم : شهيد الآخرة نۀ د دنيا۔ دا همدا كسان دي كوم چه پدے حديث وغيره كښې راغلي دي۔ (٣) دريم : هغه چه د دنيا شهيد وي نۀ د آخرت۔ دا هغه شخص دے چه د دنياوي غرض دپاره جنگ كوي، يائے په غنيمت كښې خيانت كړے وي۔ يائے كافرانو ته شا راړولې وي، تختيدلے وي او جهاد ئے پريخے وي۔

---

١٥٤٦ (٢٥) - وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ عَنِ الطَّاعُوْنِ فَأَخْبَرَنِيْ: «أَنَّهُ عَذَابٌ يَبْعَثُهُ اللّٰهُ عَلٰى مَنْ يَشَاءُ وَأَنَّ اللّٰهَ جَعَلَهُ رَحْمَةً لِلْمُؤْمِنِيْنَ لَيْسَ مِنْ أَحَدٍ يَقَعُ الطَّاعُوْنُ فَيَمْكُثُ فِيْ بَلَدِهٖ صَابِرًا مُحْتَسِبًا يَعْلَمُ أَنَّهُ لَا يُصِيْبُهُ إِلَّا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَهُ إِلَّا كَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِ شَهِيْدٍ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه :** او عائشه رضى الله عنها فرمائي : ما د رسول الله ﷺ نه د طاعون په باره كښې پوښتنه اُوكړه۔ نو هغه ما ته خبر راكړو چه« دا عذاب دے الله تعالىٰ ئے چه په چا اُوغواړي راليږي، او يقيناً الله تعالىٰ دا د ايمان والو دپاره رحمت گرځولے دے۔ نشته يو تن چه په يو ځائے كښې طاعون واقع شي او (دا مؤمن) په خپل كلي كښې ايسار شي چه صبر كونكے او د ثواب طلب كونكے وي (يعنې په دغه طاعون زدۀ علاقه كښې د بل كوم غرض دپاره نۀ بلكه د ثواب د خاطره ايسار شي)، پدے پوهيږي چه دۀ ته به نۀ رسي مگر هغه څه چه الله دۀ له ليكلي وي مگر دۀ دپاره به د يو شهيد هومره اجر وي»۔ (بخاري)۔

**تشريح:** مطلب دا چه طاعون بيماري د كافرانو دپاره عذاب دے، چه د آخرت نه مخكښې ورته الله تعالىٰ په دنيا كښې په جلتئ سره وركوي۔ او كه په مؤمن باندے راشي نو د هغه دپاره شهادت دے۔ او كه گناهگار مسلمان باندے راشي نو آيا د هغه دپاره شهادت دے او كه نۀ ؟ نو بعض وائي چه دا ثواب خاص دے د كامل مؤمن پسے ځكه كبيره گناهونو باندے هميش والے كونكے داسے سپيرۀ دے چه هغه ته الله تعالىٰ د شهادت د درجے عزت نۀ وركوي لكه الله تعالىٰ فرمائي : ﴿ أَمْ حَسِبَ الَّذِيْنَ اجْتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ أَنْ نَّجْعَلَهُمْ كَالَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ﴾ (الجاثية ٢١)۔ (آيا گمان كوي هغه خلق چه كوي بديانو لره چه اُويه گرځوو مونږ دوى لره په شان د ايمان والو او نيك

عملو) يعنى داسے كار مونږ نۀ كوو۔
او بعض وائى : د گناهگارو دپاره هم شهادت دے ليكن د كامل مومنانو او گناهگارو ترمينځ شهادت كښ به ضرور فرق وى۔ د كاملينو درجات پورته كيږى او د گناهگارو ورسره گناهونه معاف كيږى۔ او د احاديثو نه معلوميږى چه د طاعون سبب زنا او بے حيائى ښكاره كيدل دى۔
او همدا ظاهره ده۔
صَابِرًا : يعنى دا اجر او شهادت به هله حاصليږى چه انسان كښ دا شرطونه وى (۱) چه خپل كلى كښ پاتے شى او د هغه كلى نه چه طاعون پكښ راغلے دے اُونۀ تختى۔ (۲) دارنگه دا پاتے كيدل او صبر كول ثواب اُوگنړى۔
(۳) دريم دا چه دا يقين كوى چه ما ته كوم حالت راپيښيږى نو دا به د الله تعالىٰ د طرف نه وى۔ كه يو انسان د طاعون په كلى كښ پاتے شى او دا گمان ئے وى چه كه زۀ وتلے وے نو په ما باندے به طاعون نۀ واقع كيدے خو زۀ پاتے شوم ځكه راته دا بيمارى اُولگيده نو كه دا په طاعون كښ مړ هم شى نو دا اجر ورته نۀ ملاويږى۔ ځكه چه ددۀ د الله تعالىٰ په تقدير باندے يقين نشته۔
بيا ددے حديث د ظاهر نه دا معلوميږى چه څوك پدے شرطونو سره په كلى كښ پاتے شو نو هغه اگركه مړ نشى هم ورته اجر د شهيد ملاويږى۔
او پدے كښ درے صورتونه دى : (۱) يو دا چه په دغه شرطونو سره دا انسان پاتے شى او په طاعون سره وفات شى۔ (۲) دويم دا چه طاعون واقع شى او دا پكښ مړ نشى۔
(۳) دريم دا چه طاعون واقع شى او دا پكښ په بل څه سبب سره اُوس يا روستو زمانه كښ مړ شى نو په درے وارو صورتونو كښ به دۀ ته اجر د شهيد ملاويږى (قاله الحافظ ابن حجر)۔

---

۱۵۴۷ (۲۶) – وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «اَلطَّاعُوْنُ رِجْزٌ أُرْسِلَ عَلٰى طَائِفَةٍ مِنْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ أَوْ عَلٰى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ فَإِذَا سَمِعْتُمْ بِهِ بِأَرْضٍ فَلَا تَقْدَمُوْا عَلَيْهِ وَإِذَا وَقَعَ بِأَرْضٍ وَأَنْتُمْ بِهَا فَلَا تَخْرُجُوْا فِرَارًا مِنْهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او اسامه بن زيدؓ فرمائى : رسول الله ﷺ فرمايلى دى : « طاعون عذاب دے چه د بنى اسرائيلو په يو جماعت باندے راليږلے شوے وو » يا ئے داسے اُوفرمايل :« په هغه خلقو چه ستاسو نه مخكښ وو۔ (يعنى د راوى شك دے چه نبى ﷺ اوله جمله اُوفرمايله او كه دويمه)۔ نو كله چه تاسو د يوے علاقے په باره كښ واورئ چه هلته طاعون خور شويدے۔نو هلته مۀ

ځئ او کله چه په یوه زمکه کښې واقع شي او تاسو هلته موجود يئ نو د طاعون نه د تیختې په وجه مهٔ اُوځئ»۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

**تشریح :** دے حدیث کښې دا شك کړے شویدے چه طاعون عذاب وو د بني اسرائیلو په څه دلو راغلے وو یا په مخکنی کسانو راغلے وو۔ او په روایت د ابن خزیمه کښې په صیغه د یقین سره راغلی دی چه دا په بني اسرائیلو کښې راغلے وو۔ او په بل روایت کښې هم صیغه د یقین ذکر ده چه دا په مخکنو خلقو راغلے وو۔ لهٰذا د پخوانو نه مراد بني اسرائیل هم مراد کیدے شي او غیر د بني اسرائیلو نه لکه امام عبد الرزاق په خپل تفسیر کښې او طبري د حسن بصريؒ نه ددے آیت ﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ خَرَجُوا مِن دِيَارِهِمْ وَهُمْ أُلُوفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ) (البقره : ٢٤٣)۔ په باره کښې نقل کړیدی چه دا څه بني اسرائیل وو چه د طاعون نه تختیدل۔ او دغه شان په فرعونیانو (قبطیانو) طاعون مرض واقع شوے وو او ویا زره کسان ئے هلاك کړی وو بیا فرعونیانو د موسی ﷺ نه درخواست اُوکړو ﴿ ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِندَكَ ﴾ (زخرف)۔ (الله نه اُوغواړه چه زمونږ نه دا تکلیف لرې کړی) نو هغه دعاء اُوکړه او دا مصیبت ترے لرے کړے شو) (وهو مرسل جيد الاسناد) (المرعاة ٤/٢٤٠)۔

دغه شان په بني اسرائیلو کښې طاعون راغلے وو چه د هغوی نه اُویا زره کسان په یوه ورځ کښې مړهٔ شو) (وهو مرسل ايضاً جيد)۔

پدے حدیث کښې د طاعون متعلق دا حکم ذکر شو چه (١) کله په یوه علاقه او یو کلی وغیره کښې طاعون راغلے وی او تهٔ پکښې موجود نهٔ وے نو ته به هلته نهٔ ورځے، وجه دا ده چه پدے سره به ستاسو نفسونو ته سکون حاصلیږی او ذهني پریشانو نه به بچ کیږے او د شیطان وسوسو نه به خلاص ئے۔ ٢- او کله چه په یوه علاقه طاعون راشي او ته پکښې موجود ئے نو بیا به د هغے نه د تیختې په نیت نهٔ اُوځے ځکه چه دا د الله تعالیٰ د تقدیر نه تیخته ده او د الله تعالیٰ د تقدیر سره مقابله ده که چا دا کار اُوکړو نو دا گناه کبیره کښې واقع شو۔

**فِرَارًا : فائده :** دا مفعول له دے یعني د وجه د تیختې نه۔ ددے نه دا فائده معلومیږی چه کله انسان په یو کلی کښې وی او طاعون واقع شي او دهٔ بل کلی کښې یو حاجت راپیښ شي یا سفر ته ئے ضرورت راشي نو دهٔ دپاره سفر کول او ددے کلی نه وتل جائز دی خو پدے شرط چه د طاعون نه به تیخته نهٔ کوی بلکه دا یقین به لری چه هر څه د الله تعالیٰ په تقدیر دی۔ او ددے یو صورت دا هم دے چه یو انسان په یو کلی کښې دے خپل سامان ئے تیار کړیدے چه زهٔ به خپل وطن اقامت ته ځم او په دغه کلی کښې لا طاعون نهٔ وی واقع شوے نو دهٔ د تیاریٔ په دوران کښې

ناڅاپي واقع شي نو دے انسان د طاعون نه د تيختې اراده نۀ ده کړے ځکه چه سامان ئے د مخکښ نه تيار کړے وو او اراده ئے د مخکښ نه وه. دارنګه که يو انسان يو کلي ته سفر کړے وي او هلته طاعون واقع شي او دده حاجت هلته پوره شوے وي نو دده دپاره خپل کلي ته راتلل جائز دي. ځکه چه هرکله ئے حاجت پوره شو نو هسے طاعون ته حصاريدل هيڅ معنیٰ نۀ لري. والله تعالىٰ اعلم.

امام احمدؒ او ابن خزيمهؒ د عائشےؓ نه (په حسن سند) مرفوع روايت راوړيدے او په هغے کښ داسے دي: (اَلْمُقِيْمُ فِيْهَا كَالشَّهِيْدِ وَالْفَارُّ مِنْهَا كَالْفَارِّ مِنَ الزَّحْفِ). (د طاعون والا کلي کښ پاتے کيدونکے داسے دے لکه د شهيد په شان او تيختونکے داسے دے لکه د جنګ نه تختيدونکے). ددے نه معلوميږي چه د طاعون والا کلي نه وتل حرام دي او انسان پدے سره کبيره ګناه والا ګرځي.

**الفوائد العجيبة :** (۱) د طاعون نه تيختې کول کبيره ګناه ده. او دغه حديث او ددے په شان ډير احاديث پرے دليل دي. شيخ عبد الحق محدث دهلويؒ په اشعة اللمعات کښ ليکي : (گريختن از طاعون معصيت است ودر حكم فرار از زحف واگر اعتقاد كند كه اگر نه گريزد البته مى ميرد واگر بگريزد البته بسلامت ميماند البته كافر گردد نعوذ بالله من ذلك).

يعني د طاعون نه تيختې ګناه ده او د جنګ نه د تيختې په حکم کښ ده او که دا عقيده اوساتي چه که اُونه تختي نو ضرور به مري او که اُوتختي نو ضرور به بچ پاتے کيږي نو خامخا کافر کيږي. او همدا خبره بعينه علامه آلوسي بغداديؒ په تفسير روح المعاني کښ د فتاوىٰ ابن حجر مکي رحمه الله نه نقل کړيده. (خير الماعون في منع الفرار من الطاعون باللغة الاردية).

۲- **فائده :** د بعض ډاکټرانو دا خيال دے چه طاعون متعدي مرض دے يعني طاعون داسے مرض دے چه څوک پدے باندے بيمار شي نو هغه سره ميل جول او ناسته پاسته کول او د هغه استعمال کړي څيزونه استعمالولو سره صحيح او روغ انسان ته هم طاعون لګي. نو د ډيرو ناواقف مسلمانانو په زړونو کښ د بعض ډاکټرانو دا خيال دومره پوخ ناست دے چه ددے په وجه بيا د طاعوني ځايونو نه تيختې کول نهايت ضروري ګڼړي او خپله هم تيختې کوي او د طاعوني مريض او د هغه د کور والو نه سخت پرهيز کوي او د هغه د تجهيز او تکفين نه لرے تيختې کوي ليکن د دغه بعض ډاکټرانو دا خيال شرعاً خالص غلط او بالکل باطل دے. د شريعت د قانون نه طاعون غير مُتَعَدِّيْ کيدل ثابت دي لکه حديث کښ دي چه هيڅ قسم بيماري متعدي نۀ ده. په صحيح بخاري کښ دي : (عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : لَا عَدْوٰى)

الحديث ۔ (یعني د ابو هریره ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي : چه په هیڅ مرض کښې تعدي نشته یعني د یو مریض مرض بل چاته نۀ لګي۔ او دغه شان په صحیح بخاري کښې د ابو هریرهؓ په حدیث کښې دا هم دي : رسول الله ﷺ نه یو سړي تپوس اُوکړو چه کله خارختي اُوښ د نورو اُوښانو سره یو ځائے شي نو هغه هم ځان سره په خارخ مرض باندے اخته کړي۔ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : (فَمَنْ اَعْدَى الْاَوَّلَ) ۔ (پدے اول اُوښ باندے مرض چا راوستو؟) یعني لکه څنګه چه په اول اُوښ باندے خارښ الله تعالیٰ ابتداءً راوستے دے نو دغه شان په نورو اُوښانو باندے هم ابتداءً خارښ راولي۔

ددے دوارو حدیثونو د عموم نه ښکاره ثابته شوه چه طاعون او هر قسم مرض مُتَعَدِّي نۀ دے۔

دغه شان دا زمونږ مشروح حدیث : (فَلَا تَخْرُجُوا فِرَارًا مِنْهُ) ۔ (چه کوم ځائے طاعون واقع وي نو هغه ځائے نه د تیښتے په قصد سره مۀ اُوځئ) صریح نص دے پدے خبره چه طاعون متعدي نۀ دے۔ څکه که طاعون متعدي وے نو رسول الله ﷺ به د طاعوني ځائے نه د تختیدو نه منع نۀ فرمائیلے بلکه د هغه ځائے نه د تختیدو حکم به ئے کولے۔ که څوك اُووائي چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي :(فِرَّ مِنَ الْمَجْذُوْمِ كَمَا تَفِرُّ مِنَ الْاَسَدِ) ۔ (د جذامي (ننکو والا) نه داسے تیخته کوه لکه څنګه چه ته د زمري نه تختې) او فرمایلي ئے دي : (لَا يُوْرِدُ مُمْرِضٌ عَلٰى مُصِحٍّ)۔(یعني بیمار اُوښانو والا دے خپل بیمار اُوښان د روغو اُوښانو والا د روغو اُوښانو سره نۀ یو ځائے کوي) ددے دوارو حدیثونو نه معلومیږي چه د جذام او د اُوښ بیماري متعدي ده؟۔

نو ددے جواب دا دے چه ددے احادیثو ترمینځ د جمع او توفیق ډیر صورتونه د دین امامانو بیان کړیدي دلته یو صورت د حافظ ابن حجرؒ د شرح النخبه (٥٦) نه نقل کولے شي چه حاصل ئے دا دے : حدیث د لا عدوی او حدیث فر من المجذوم کښې به صورت دا دے چه د عدوی نفي چه رسول الله ﷺ فرمائیلے ده دا په خپل عموم باندے باقي ده او په عموم باندے به ولے باقي نۀ وي حال دا چه رسول الله ﷺ فرمایلي دي: (لَا يُعْدِيْ شَيْءٌ شَيْئًا) ۔ (د چا هیڅ بیماري هیچا ته نۀ لګي) او رسول الله ﷺ فرمایلي دي : (چا اول اُوښ خارختي کړو؟) او هرچه د مجذوم نه د تیښتے حکم دے نو دا د باب د سد الذرائع نه دے، دے دپاره چه د تعدیه غلط اعتقاد د چا په زړۀ کښې رانشي، یا ددے دپاره چه مثلاً یو شخص د مجذوم (جذامي) سره میل جول (تعلق) کوي او هغه ته خالص د الله تعالیٰ په تقدیر سره ابتداءً جذام اُولګي، نۀ د تعلق د وجه نه، نو د هغه په زړۀ کښې دا غلطه عقیده پیدا کیدے شي چه ماته دا کومه بیماري اُولګیده نو دا د مجذوم سره د تعلق او ناستے پاستے په وجه۔ او کله چه دا غلطه عقیده ددۀ په زړۀ کښې پیدا شي نو دا به په ګناه کښې

واقع شی نو پدے وجه رسول الله ﷺ د مجذوم نه د تیختے او هغه سره د تعلق نهٔ کولو حکم اُوکړو چه په زړهٔ کښں ددے غلطے عقیدے د راتلو دروازه بنده شی۔ انتهیٰ مترجماً۔

علامه مبارکفوری په خپله رساله (خیر الماعون فی منع الفرار من الطاعون) چه دا یوه متوسطه رساله ده په دوه حصو تقسیم ده او په (مقالات محدث مبارکفوریؒ) کښں مندرج ده) د جدید ډاکټرانو نه نقل کړیدی چه هغوی هم د خپلو تحقیقاتو نه پس دا ثابته کړیده چه طاعون متعدی مرض نهٔ دے۔ او کومو ډاکټرانو چه دے ته متعدی مرض وئیلے دے د هغے غلط والے ئے ثابت کړیدے۔ هغه فرمائی : سر میجر کل ګهارن اوډاکټر هیفکن د بمبئ په طاعون کښں د مزید تحقیقات نه بعد کومه رائے ظاهر کړه او وے لیکل چه دا مرض متعدی مرض نهٔ دے او د ډاکټر کل ګهارن د تحقیقاتی کمیټی یواځے دا رایه نهٔ ده بلکه د یورپ د یو ګروه هم دغه خیال دے۔ او کوم ډاکټران چه طاعون متعدی مرض ګڼړی نو هغوی یو څو تاریخی شهادتونه پیش کوی لکه مثلاً وائی : چه په لندن کښں چه کومه وباء په سنه (۱٦٦۳ء) کښں راغلے وه، دا چه به کوم کورته ورتلله نو د کورټول خلق به ئے هلاکول۔ دغه شان په روس کښں چه کومو خلقو به مړی خخول نو هغه ټول په ټوله مړهٔ شول۔ د بوشهره د وباء متعلق یو ایرانی اخبار بیان کړی وو چه د بوشهره قاضی په ډیرو ډیرو تنخواګانو باندے سل کسان د مړو د دفن کولو دپاره نوکران ساتلی وو چه په هغے کښں (۹٦) کسان مړهٔ شو او اُوس صرف (٤) باقی دی۔ په سنه (۱۸۳۵ء) کښں دوه مصری مجرمان ئے د هغه مریضانو په بسترو باندے سملول کوم چه په طاعون سره مړهٔ شوی وو نو دا دواړه مجرمان هم بیماران شو۔ دغه شان نور شهادتونه هم پیش کیږی نو ددے شهادتونه معلومیږی چه طاعون متعدی بیماری ده نو ددے جواب اولاً دا دے چه د کومو ډاکټرانو دا خیال دے چه طاعون متعدی نهٔ دے هغوی هم د خپل خیال په ثبوت کښں ډیر تاریخی شهادتونه پیش کوی لکه وائی : په سنه (۱۸۳۵ء) کښں د قاهرے په شفاخانه کښں درے زره وبائی مریضان زیرِ علاج وو، ددے بیمارانو بسترے به نورو بیمارانو استعمالولے لیکن هغوی ددے مرض نه محفوظ وو۔ په سنه (۱۸۷۸ء) کښں د رشیا په بعض علاقو کښں دوه میاشتو پورے دغه وباء پاتے وه او سره ددے نه ددے میاشتو په موده کښں ددے کلی خلقو د نورو کلو خلقو سره تلل راتلل وو لیکن په هغوی باندے د وباء هیڅ اثر ظاهر نهٔ شو۔ په سنه (۱۸۳٤ء) کښں اته میاشتے په اسکندریه کښں طاعون پاتے وو لیکن تجارت بالکل بے خطر وو۔ دغه شان نور شهادتونه پیش کیږی لهٰذا هرکله چه دغه شان شهادتونه موجود دی نو بیا د طاعون متعدی کیدل څنګه ثابتیدے شی ؟۔

ثانياً : دا چه ډاکټر او يوناني طبيب دا خبره تسليم كړيده چه د طاعون د پيدا كيدو سبب فساد هوا دے او ظاهره ده چه فاسده هواء يو عام او مشترك سبب دے چه ديو خاص شخص پورے مخصوص نۀ دے نو باوجود ددے عام او مشترك سبب نه ددے خبرے يقين كول چه بعض خلقو ته د فاسدے هواء په وجه طاعون اُولګيدو او بعض خلقو ته د فاسدے هوا په وجه اُونۀ لګيدو بلكه د طاعوني مريض سره د تعلق لرلو په وجه اُولګيدو دا عجيبه خبره ده۔ انتهىٰ كلام المباركفوري بترجمته۔

۲- فائده : د طاعوني مقام نه د تختيدو حرمت په ډيرو احاديثو كښې راغلے دے (چه اُووه احاديث او باقي آثار محدث مباركفوريؒ ذكر كړيدي) او دا تول صريح دي او كوم خلق چه د طاعون د تيختے په جواز قائل دي نو هغوي غلط قياسونه كوي چه مثلاً د هلاكت نه ځان بچكول فرض دي۔

دغه شان وائي : مجلوم نه تختيدل په حديث سره ثابت دي دغه شان د شير نه يا د زلزلے د مقام نه تختيدل دين كښې ثابت دي۔ ددے تولو جواب دا دے چه دغه څيزونه په طاعون باندے قياس كول غلط دي ځكه چه د طاعون په باره كښې صريح نصوص راغلي دي چه تختيدل حرام دي او د دغه څيزونو په باره كښې په بعضو كښې امر راغلے دے چه ځان د هلاكت نه بچ كړئ۔

بله دا چه په حديث كښې راغلي دي چه نبي ﷺ د خپل امت دپاره په طاعون كښې د مركيدو دعا غوختے ده نو دا ددے امت دپاره رحمت دے او د رحمت نه تختيدل نۀ دي پكار۔ لكه حديث كښې دي : (عَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ بْنِ قَيْسٍ اَخِيْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ فَنَاءَ اُمَّتِيْ فِيْ سَبِيْلِكَ بِالطَّعْنِ وَالطَّاعُوْنِ) (مسند احمد بسند حسن قاله شعيب الارنووط و صححه الحاكم ووافقه الذهبي والمنذري)۔ (د ابوبرده د ابوموسى اشعري ورور نه نقل دي چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي : اے الله ! زما د امت مرګ په خپله لاره كښې په طعن (نيزے وهلو) او طاعون سره اُوګرځوه)۔

ددے حديث اهل علمو دا مطلب بيان كړيدے چه رسول الله ﷺ پدے دعاء سره دا اراده كړيده چه د هغه امت دپاره د شهادت د قسمونو نه اعلى ترين قسم حاصل شي چه هغه قتل في سبيل الله دے د هغوي د انسي دشمنانو په لاس يا د جني دشمنانو په لاس سره۔ (فتح الباري)۔

ددے مسئلے تفصيل دپاره (مقالات محدث مباركفوري) كښې مقاله نمبر (۸) خير الماعون اُوګوره۔

---

۱۰٤۸ (۲۷) وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ: « قَالَ اللّٰهُ سُبْحَانَهُ

وَتَعَالٰى:إِذَا ابْتَلَيْتُ عَبْدِيْ بِحَبِيْبَتَيْهِ ثُمَّ صَبَرَ عَوَّضْتُهُ مِنْهُمَا الْجَنَّةَ » يُرِيْدُ عَيْنَيْهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : او انس ﷺ فرمائي : ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلي چه فرمايل ئې : « الله تعالىٰ فرمايلي دي : كله چه زهٔ خپل بنده په دوارو محبوب (خوښو) څيزونو سره مبتلا كړم او هغه په هغې باندې صبر اُوكړي نو زهٔ به ددې دوارو په بدله كښې هغه ته جنت وركوم» (راوي وائي چه ددې دوارو خوښو څيزونو نه) د رسول الله ﷺ مراد د هغه دواړه سترګې دي. (بخاريؒ).

**تشريح** : حبيبتين نه محبوبتين يعني سترګې مراد دي ځكه چه انسان ته دا ډيرې محبوبې وي پدې وجه ددې په وتلو او د نظر په تلو باندې انسان ډير غمجن كيږي، مصيبت سخت دې نو ځكه پرې انسان ته جنت هم ملاويږي.

**ثُمَّ صَبَرَ** : په حديث د ترمذيؒ او ابن حبان كښې د ابو هريره په روايت كښې ورسره دا هم دي : (وَاحْتَسَبَ). (يعني بيا دا مصيبت ثواب هم اُوګڼي). حافظ وائي : ددې مطلب دا دې چه داسې صبر اُوكړي چه هغه ثواب مستحضر كړي كوم باندې چه الله تعالىٰ د صابر سره وعده كړيده نۀ دا چه ددې نه خالي صبر اُوكړي. ځكه چه اعمال په نيتونو سره دي. بيا الله تعالىٰ چه په بنده باندې ابتلاء او امتحان په دنيا كښې راولي نو دا هميشه علامه ددې نۀ وي چه ګني الله تعالىٰ په دهٔ باندې غصه دې بلكه كله په كښې مقصد ددهٔ نه بل مصيبت اړول وي او كله كفاره د ګناهونو وي او كله مرتبه او درجه پورته كول وي نو كله چه بنده د هغه مصيبت سره په رضا ملاؤ شي نو دغه مقصد ورته پوره حاصليږي او كه داسې نۀ وي نو بيا مثال ئې د هغه حديث په شان ګرځي كوم چه سلمانؓ فرمائيلې دې : « چه مؤمن دپاره مرض الله تعالىٰ كفاره جوړوي او سبب د توبې ويستلو په دهٔ باندې (يا سبب د رضا خپلې) او مرض د فاجر (بد كاره) داسې وي لكه د اُوښ په شان چه خپل مالك تړلې وي بيا ئې ايله كړي نو پدې نۀ پوهيږي چه ولې ئې تړلې وو او ولې ايله كړې شو ». (اخرجه البخاري في الادب المفرد) وابن ابي شيبة موقوفاً) وسنده صحيح (صحيح الادب المفرد رقم : ۴۹۳/۳۷۹).

او په الادب المفرد او مسند احمد كښې ورسره بل قيد دا راغلې دې : (اَذَا اَخَذْتُ كَرِيْمَتَيْكَ فَصَبَرْتَ عِنْدَ الصَّدْمَةِ وَاحْتَسَبْتَ) (وصححه الالباني في صحيح الادب المفرد) والارنووط في تعليق مسند احمد). (كله چه زه ستا عزتمندې (سترګې) واخلم او ته صبر اُوكړې د مصيبت په وخت كښې او ثواب ئې اُوګڼې) نو پدې كښې اشاره ده چه هغه صبر فائده مند دې چه د مصيبت په ابتداء كښې وي نو الله تعالىٰ ته به ځان اُوسپاري او تسليم به شي او جزع فزع او فريادونه به نكوي ځكه چه د جزع

فزع نه پس انسان مجبوراً صبر كوي او هغه مقصود نهٔ دے۔

متنبي وائي :

| وَلِلْوَاجِدِ الْمَكْرُوْبِ مِنْ زَفَرَاتِهِ | سُكُوْنُ عَزَاءٍ أَوْ سُكُوْنُ لُغُوْبِ |
|---|---|

(دغمزده مصيبت زدهٔ انسان دپاره د هوسيلو نه يا صبر د تسلي وي يا صبر د ستړي والي وي) يعني يا خو مصيبت زدهٔ انسان د اول نه صبر اُوكړي ځانله تسلي وركړي او دا غوره صبر دے او كه داسے نهٔ وي نو ستړے به شي خپله به صبرناك شي خو دا ممدوح نهٔ دے۔

په روايت د ابن حبان كښې ورسره يو بل قيد هم راغلے دے : ((إِذَا سَلَبْتُ مِنْ عَبْدِيْ كَرِيْمَتَيْهِ وَهُوَ بِهِمَا ضَنِيْنٌ لَمْ أَرْضَ لَهُ ثَوَابًا دُوْنَ الْجَنَّةِ إِذَا هُوَ حَمِدَنِيْ عَلَيْهِمَا)) (صحيح الترغيب والترهيب ۳٤٥۰) (۱۹۱/۳) وحسن اسناده شعيب الارنوط في تعليق صحيح ابن حبان) ـ (كله چه زهٔ د خپل بنده نه دوه عزتمندے (سترگے) واخلم چه دا پرے بخل كونكے وي (يعني دهٔ ته ډيرے محبوبے وي) نو زهٔ ددهٔ دپاره د جنت نه علاوه بل ثواب باندے خوشحاله نهٔ يم خو كله چه دا پدے باندے زما حمد اُووائي)۔ كله چه صرف د سترگو په ختميدو سره انسان ته جنت ملاويږي خو سره د دغه شرطونو نه نو د چا چه ورسره نور نيك اعمال وي نو هغه به ددهٔ درجات پورته كړي۔

يُرِيْدُ عَيْنَيْهِ. : دا تفسير د انس دے چه د نبي ﷺ د حبيبتين نه مراد سترگي دي۔

## الفصل الثاني

۱۵٤۹ (۲۸) ـ عَنْ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ : «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَعُوْدُ مُسْلِمًا غُدْوَةً إِلَّا صَلّٰى عَلَيْهِ سَبْعُوْنَ أَلْفَ مَلَكٍ حَتّٰى يُمْسِيَ، وَإِنْ عَادَهُ عَشِيَّةً إِلَّا صَلّٰى عَلَيْهِ سَبْعُوْنَ أَلْفَ مَلَكٍ حَتّٰى يُصْبِحَ وَكَانَ لَهُ خَرِيْفٌ فِي الْجَنَّةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : علي ﷺ فرمائي : ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلي چه فرمايل ئے :(( نشته يو مسلمان چه په سحر وخت كښې د يو مسلمان بيمار پرسي اُوكړي مگر د هغه دپاره اوويا زرره ملائك تر ماښامه پورے دعاء او استغفار غواړي. او كه بيگائي (ماز يگري) كښې بيمار پرسي اُوكړي نو تر سبا پورے اويا زره ملائك ورله استغفار غواړي او ددهٔ دپاره به په جنت كښې د ميوو باغ مقرريږي))۔ (ترمذي، ابوداوُد)۔

تشريح : غُدْوَةً : دا د سحر ماښځه نه تر نمر ختلو پورے وخت دے ليكن مراد ددے نه اول د ورځ ده تر زوال نه مخكښې پورے۔

عَشِيَّةً : د زوال نه روستو وخت دے يا اول د شپے مراد دے۔

خَرِيْفٌ : باغ ته وئيلے شي او په اصل كښ (اَلثَّمَرُ الَّذِيْ يُخْتَلٰى وَيُقْطَفُ) ته وئيلے شي يعني هغه ميوے چه راشوكولے شي)۔

صَلّٰى : د صلاة نسبت چه ملائكو ته اوشي نو په معنىٰ د استغفار سره وي ليكن په موقوف روايت د على كښ د استغفار لفظ هم راغلے دے يعني اويا زره ملائك ورله بخښنه طلب كوي او د ملائكو دعاء خو ضرور قبليږي نو دا بيمار پرسي كونكي دير زيات فضيلت شو۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : اخرجه الترمذى (٩٦٩) وابوداود (٣٠٩٨) وابن ماجه (١٤٤٢) وصحح الحاكم احدى طرقه فى المستدرك (٣٤١/٣) ووافقه الذهبى وصححه الالبانى فى صحيح الترغيب وفى الصحيحة : ١٣٦٧)۔

---

**١٥٥٠ (٢٩) — وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ : عَادَنِي النَّبِيُّ ﷺ مِنْ وَجَعٍ كَانَ بِعَيْنَيَّ . رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ.**

**ترجمه** : او زيد بن ارقم رضی الله عنه فرمائي : زما تپوس له نبي كريم ﷺ راغلو د وجه د يو درد نه چه زما په دواړو سترګو وو۔ (احمدؒ، ابوداودؒ)۔

**تشريح** : وجع نه مراد د سترګو خوږيدل دي لكه په روايت د احمدؒ كښ صراحةً راغلي دي (مِنْ رَمَدٍ)۔ يعني د سترګو بيماري۔

دا حديث دليل دے چه چا باندے داسے درد وي چه د هغے د وجه نه په كور كښ ناست وي او قادر نهٔ وي چه راوځي نو د هغه عيادت هم سنت دے۔ دغه شان د هر مريض عيادت مستحب دے اګركه مرض ئے ديرے والا نهٔ وي لكه مثلاً په سرئے درد وي يائے په غاښ باندے درد وي او پدے باندے هم بنده ته د عيادت هومره اجر او ثواب ملاويږي۔ علامه ابوالحسن المباركفوريؒ د بعض احنافو نه نقل كړيدي چه هغوي وئيلي دي چه د سترګو په خوږيدو (يعني رمد) او د غاښ په درد كښ عيادت كول خلاف سنت دي۔ حال دا چه دا خبره ددے حديث خلاف ده، الله بنه پوهيږي چه دوي دا حكم د كوم ځائے نه اوكړو چه دا كار خلاف السنة دے سره ددے نه چه سنت ددے په خلاف دے۔ (نَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا) امام ابوداودؒ په خپل سنن كښ باب تړلے دے (بَابُ الْعِيَادَةِ مِنَ الرَّمَدِ) بيا ئے په سند سره حديث ذكر كړے او كوم روايت د بيهقي او طبراني كښ چه مرفوعاً دا راغلي دي چه د دريے كسانو عيادت به نشي كولے يو صاحب الرمد او بل غاښ درد والا او دانے والا) نو هغه ضعيف جداً روايت دے په سند كښ ئے مسلمة بن على الخشني

البلاطی دے او هغه متروك راوی دے۔ بلکه حافظ فرمائی : چه بیهقی وئیلی دی چه صحیح دا ده چه دا د یحیی بن ابی کثیرؒ خبره ده۔ او مرفوع حدیث نهٔ دے۔ ابوحاتمؒ وئیلی دی : (هٰذَا بَاطِلٌ مُنْكَرٌ ۔ (دا باطل او منکر روایت دے) (مرعاة المفاتیح۴/۲۴۶)۔

صاحب د مظاهر حق وئیلی دی چه د دواړو حدیثونو ترمینځ تعارض دے او بیا ئے داسے تطبیق کړے چه دے درے بیمارانو کښې دے د مریض عیادت هغه خلق نهٔ کوی د کوم په وجه چه مریض ته تکلیف کیږی یا د هغوی راتلل د بیمار دپاره مشکل وی لکه مثلاً هغوی ته په سترگو کولاؤولو کښې تکلیف رسی یا د خبرو کولو په وجه ورته د غاښ درد زیاتیږی یا د دانے په وجه په صحیح طریقه کیناستو کښې تکلیف رسی لیکن که داسے خلق عیادت اُوکړی چه د هغوی په راتلو مریض ته څه تکلیف نهٔ رسی نو بیا عیادت کولو کښې هیڅ مضائقه نشته۔

نو دے تطبیق ته هیڅ قسمه حاجت نشته ځکه چه تطبیق فرع د تعارض وی او دلته هیڅ تعارض نشته۔ وجه دا ده چه دغه روایت ضعیف جداً دے قابل د عمل نهٔ دے۔

**بِعَیْنَیَّ** : دا صیغه د تثنیه ده۔ یاء مشدده ده۔

**درجة الحدیث** : اسناده حسن : اخرجه ابوداود (۳۰۹۷) وقال الحوینی والصواب ان السند صحیح مطلقاً والحدیث قد حسّنه المنذری فی تهذیب سنن ابی داود ۴/۲۷۹) (الفتاوی الحدیثیة للحوینی۱/۱۶۲) وحسنه الالبانی فی صحیح سنن ابی داود رقم: ۲۶۵۹) (۲/۵۹۹)۔

---

۱۵۵۱ (۳۰) ‐ وَعَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوْءَ وَعَادَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ مُحْتَسِبًا بُوْعِدَ مِنْ جَهَنَّمَ مَسِيْرَةَ سِتِّيْنَ خَرِيْفًا».رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او انس رضی الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : « چا چه اودس اُوکړو او ښائسته اودس ئے اُوکړو او د یو ورور مسلمان بیمارپرسی ئے اُوکړه په داسے حال کښې چه ثواب گنړونکے وو نو د جهنم نه به د شپیتهٔ کالو (د مسافت) په اندازه ورلرے کړے شی»۔ (ابوداودؒ)۔

**تشریح** : مطلب دا چه د عیادت دپاره اودس کول پکار دی او غالباً ددے حکمت دا دے چه عیادت عبادت دے او په اودسه سره عبادت کښې کمال او فضیلت پیدا کیږی۔ دارنگه که بیمار ته په طهارت حالت کښې دعا اُوکړی نو د قبلیدو ډیر امید دے۔ اودس خو هسے هم یو مستقل عبادت دے او د مؤمن صفت دے لیکن کله چه هر نیك عمل کوی هغے دپاره اودس پکار دے۔ خو دا د عیادت دپاره مستقل سنت گنړل صحیح نهٔ دی ځکه چه دا روایت ضعیف دے۔

یُوْعِدَ : د مفاعله نه د ماضی مجهول صیغه ده. یَاعَدَ معلوم او یُوْعِدَ مجهول.
خَرِیْف: مَنی ته وئیلے شی او په کال کښې یو منے راځی. لکه بل روایت کښې دی انس بن مالک نه تپوس اُوشو چه خریف څه شے دے؟ هغه اُووئیل : کال مراد دے.
**درجة الحدیث:** اسناده ضعیف : ابوداود (۳۰۹۷) وقال المنذری فی مختصر سنن ابی داود (۲۲۷/٤) وفی سنده الفضل بن دلهم الواسطی البصری قال یحیی بن معین ضعیف الحدیث، وقال احمد : لا یحفظ وذکر اشیاء مما اخطأ فیها وقال ابوداود الذی تفرد به المصریون هو العیادة وهو متوضئ.

---

۱۵۵۲ (۳۱) - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَا مِنْ مُسْلِمٍ یَعُوْدُ مُسْلِمًا فَیَقُوْلُ سَبْعَ مَرَّاتٍ: أَسْأَلُ اللّٰهَ الْعَظِیْمَ رَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِیْمِ أَنْ یَّشْفِیَكَ إِلَّا شُفِیَ إِلَّا أَنْ یَّكُوْنَ قَدْ حَضَرَ أَجَلُهُ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِیُّ.

ترجمه : او ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «نشته یو مسلمان چه بیمار پرسی اُوکړی د یو مسلمان او اُوه کرته داسے اُووائی : اسأل الله العظیم الخ یعنی زهٔ د لوئی الله نه چه د لوئی عرش رب دے دا سوال کوم چه تا ته شفاء درکړی) نو ضرور به هغه ته شفاء ملاویږی مګر دا که د هغه اجل حاضر شوے وی » (نو بیا به ورته شفاء ورنکړی). (ابوداود، ترمذی).
**تشریح** : پدے حدیث کښې ډیره عجیبه نسخه د هر بیمار دپاره ذکر شوه، پدے باندے یقین پکار دے نو چه هر مریض خوا له ورغلے، دا دم پرے په یقین سره اچوه الله تعالیٰ به ئے ضرر بنه کوی، پیغمبرئے ذمه واوری اخستے ده.
شُفِیَ : مجهول صیغه ده ای شُفِیَ ذلك المسلم المریض.
إِلَّا أَنْ یَّكُوْنَ : مطلب دا چه که اجل ئے پوره شوے وی نو بیا به ورته دا دم داسے فائده ورنکړی چه د مرګ نه ئے راستون کړی او ممکن ده چه ددے دعاء په برکت پرے د مرګ سختیانے آسانے شی.
**درجة الحدیث** : اسناده صحیح : ابوداود (۳۱۰٦) والترمذی (۲۰۸۰) وقال حدیث حسن غریب والحاکم (٤/٤١٦) وقال صحیح الاسناد علی شرط الشیخین ولم یخرجاه ووافقه الذهبی.

---

۱۵۵۳ (۳۲) - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِیَّ ﷺ : كَانَ یُعَلِّمُهُمْ مِنَ الْحُمّٰی وَمِنَ الْأَوْجَاعِ كُلِّهَا أَنْ یَّقُوْلُوْا: «بِسْمِ اللّٰهِ الْكَبِیْرِ أَعُوْذُ بِاللّٰهِ الْعَظِیْمِ مِنْ شَرِّ كُلِّ عِرْقٍ نَعَّارٍ وَمِنْ شَرِّ حَرِّ

النَّارِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ لَا يُعْرَفُ إِلَّا مِنْ حَدِيْثِ إِبْرَاهِيْمَ بْنِ إِسْمَاعِيْلَ وَهُوَ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيْثِ.

ترجمه : او د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دے چه نبي كريم ﷺ به صحابه كرامو ته د تبے او د ټولو دردونو نه تعليم وركولو چه داسے دعاء اُوكړئ : بسم الله الكبير الخ (يعني زۀ بركت غواړم د الله په لوئي نوم سره، پناه غواړم په لوئي الله سره د بدئ د هر جوش وهونكي رګ نه او د ضرر د اُور نه. امام ترمذیؒ دا حديث نقل كړے او فرمايلي ئے دي چه دا حديث غريب دے ځكه چه مونږ دا حديث د ابراهيم بن اسماعيل نه علاوه د بل هيچا په ذريعه نۀ پيژنو او هغه (يعني ابراهيم) د حديث په روايت كولو كښې ضعيف شمار كولے شي.

**تشريح : مِنَ الْحُمّٰى:** من اجليه دے يعني د وجه د تبے او دردونو راتلو نه به ئے ورته دعا ذكر خودلو.

**أَنْ يَّقُوْلُوْا:** دا وينا به يا مريضان كوي يا به ئے عيادت كونكي او دواړه ئے هم كولے شي ځكه چه الفاظ عام دي.

**نَعَّارٍ :** د وينے جوش ته وئيلے شي يا هغه رګ چه د وينے نه ډك شوے وي. نو دا د بلډ پريشر دپاره دم دے. نو د هر جوش وهونكي رګ نه مراد هغه وينه ده چه په رګونو كښې جوش وهي. د دغه وينے جوش وهونكي نه ځكه پناه غواړي چه كله وينه غالبه شي نو تكليف رسوي، ددے نه تبه او بخار او فالج او نور مرضونه پيدا كيږي.

**درجة الحديث:** اسناده ضعيف عند الاكثرين وحسن عند البعض : في سنده ابراهيم بن اسماعيل ضعفه الترمذي (۲۰۷۵)، وابن معين والنسائي وقال البخاري في التاريخ الكبير وابو حاتم : منكر الحديث وقال الدارقطني : متروك الحديث قال الشيخ احمد شاكر في تعليقه على مسند الامام احمد (۲۵۷/٤) بعد ذكر اقوال الجارحين: والظاهر عندي ان من تكلم فيه انما تكلم في حفظه وفي خطئه في بعض ما يروي، ثم قال : ومثل هذا لا يقل حديثه عن درجة الحسن انتهى. وقال الحاكم : حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه وقال الذهبي في تلخيصه : ابراهيم قد وثقه احمد (والعجلي) آه وصححه البيهقي في الدعوات الكبير.

---

۱۵۵٤ (۳۳) - وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ: «مَنِ اشْتَكٰى مِنْكُمْ شَيْئًا أَوِ اشْتَكَاهُ أَخٌ لَهُ فَلْيَقُلْ : رَبُّنَا اللّٰهُ الَّذِيْ فِي السَّمَاءِ تَقَدَّسَ اسْمُكَ أَمْرُكَ فِي

السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ كَمَا أَنَّ رَحْمَتَكَ فِي السَّمَاءِ فَاجْعَلْ رَحْمَتَكَ فِي الْأَرْضِ اِغْفِرْ لَنَا حُوبَنَا وَخَطَايَانَا أَنْتَ رَبُّ الطَّيِّبِيْنَ أَنْزِلْ رَحْمَةً مِنْ رَحْمَتِكَ وَشِفَاءً مِنْ شِفَائِكَ عَلٰى هٰذَا الْوَجَعِ . فَيَبْرَأُ ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه** : او ابوالدرداء ﷺ فرمائي : ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلي چه فرمايل ئې : « چا چه ستاسو نه د يو شي شکايت کولو (يعني په يو شي سره بيمار شو) يا ورته يو ورور شکايت اُوکړې نو داسې دې اُووائي : ربنا الخ يعني زمونږ رب هغه الله دې چه په آسمان کښې دې. (د تولو نقصانانو نه) ستا نوم پاك دې، ستا حکومت په زمکه او آسمان (دواړو) کښې دې، لکه څنګه چه ستا رحمت په آسمان کښې دې دغسې ته خپل رحمت په زمکه نازل کړه. ته زمونږ واړه او لوئې ګناهونه معاف کړه، ته د پاکو خلقو رب ئې (يعني د هغوی سره محبت کونکې او د هغوی کارساز ئې) ته د خپلو رحمتونو نه لوئې رحمت نازل کړه او ددې بيمارئ نه خپله شفاء نازله کړه. (ددې دعاء په لوستلو سره به بيمار ان شاء الله) روغيږي »۔ (ابوداود)۔

**تشريح** : فِي السَّمَاءِ : دا په ظاهر باندې محمول دې او د الله تعالیٰ صفت دې ځکه په متن لغت کښې سماء بره طرف ته وئيلې شي يعني الله تعالیٰ بره طرفته دې۔ نو ددې نه ظرفيت ذهن ته نهٔ راځي چه ګنې الله تعالیٰ په آسمان کښې دننه دې ځکه الله تعالیٰ خو په عرش باندې مُسْتَوِي (استواء کونکې) دې لکه څنګه چه د هغه د شان او ذات سره لائق وي. مونږ د هغې په حقيقت نهٔ پوهيږو. اګرکه په ظاهر به ايمان راوړو. يا دا حديث په شان د ﴿ وَهُوَ الَّذِيْ فِي السَّمَاءِ إِلٰـهٌ وَفِي الْأَرْضِ إِلٰـهٌ ﴾ دې. يعني الله هغه ذات دې چه په آسمان کښې هم معبود دې او په زمکه کښې هم معبود دې. او دا تاويل نهٔ دې بلکه د لفظ حقيقي معنیٰ ده.

د الله تعالیٰ ربوبيت په آسمان کښې دې يعني الله تعالیٰ د آسمان (بره طرف نه) د مخلوقاتو تربيت کوي او دا تاويل به ځکه کولې شي چه تعارض ئې د نورو صريحو نصوصو سره رانشي چه هغه دلالت کوي په استواء د الله تعالیٰ په عرش باندې.

نو پدې سره به د حقيقي صفت د استواء نه انکار نشي کولې لکه په حواشيو د مشکاة کښې ئې غلط تاويلات کړيدي چه ددې في السماء نه مراد امر او مِلْك او رحمت دې او بيا ئې وئيلي دي چه د سلفو او خلفو پدې اتفاق دې چه ددې د ظاهر نه به الله تعالیٰ پاك ګڼړلې شي نو دا خبره ئې سراسر غلطه ده او په سلفو باندې افتراء ده ځکه چه د سلفو مذهب چرې داسې نهٔ دې چه تاويلات کوي د الله تعالیٰ په اسماء او صفاتو کښې بلکه د هغوی مذهب خو دا دې چه الله تعالیٰ

دپاره فوقيت ثابت دے او الله تعالىٰ په عرش كښې لكه څنګه چه قرآن او حديث پدے ګواه دی۔
او دا روايت اګركه ضعيف دے ليكن د الله تعالىٰ فوقيت د نورو دلائلو نه ثابت دے۔
فَتُبْرَأُ : د برء نه ماخوذ دے۔ يعنى چه دا دعاء په درد مند ځائے باندے اُووائى نو جوړ به شى۔
**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : (ابوداود (۳۸۹۲) والحاكم فى المستدرك (۱/۳۴۳-۳۴۴)
وفى سنده زيادة بن محمد الانصارى قال البخارى والنسائى وابن حبان وابو حاتم : منكر الحديث)

---

۱۵۵۵ (۳۴) – وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «إِذَا جَاءَ الرَّجُلُ يَعُوْدُ مَرِيْضًا فَلْيَقُلْ اَللّٰهُمَّ اشْفِ عَبْدَكَ يَنْكَأُ لَكَ عَدُوًّا أَوْ يَمْشِيْ لَكَ إِلٰى جَنَازَةٍ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او عبد الله بن عمرو رضى الله عنهما نه روايت دے چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل : كله چه يو سړے راشى د يو مريض تپوس كوى نو داسے دے اُووائى : اللهم اشف الخ يعنى اے الله خپل بنده ته شفاء وركړه ستا دپاره به دشمن زخمى كړى يا به ستا د رضا دپاره جنازے ته لاړ شى۔ (ابوداود)۔

**تشريح** : يَنْكَأُ: دا مجزوم دے جواب د امر دے۔ يا مرفوع دے خبر د مبتداء محذوف دے اى فهو ينكأ او رفع ئے غوره ده ځكه چه روستو يمشى هم مرفوع دے۔ دے كښې بل لغت هم راغلے دے يَنْكِیٰ: په ياء سره د دوارو معنىٰ يوه ده۔ لكه دا خبره د قاموس نه معلومه ده۔

د نكأ نه دے په معنىٰ د اثر كولو او زخمى كولو او پوستكے اړولو سره۔

(يُقَالُ : نَكَيْتُ فِى الْعَدُوِّ وَاَنْكِىْ نِكَايَةً فَاَنَا نَاكٍ إِذَا اَكْثَرْتَ فِيْهِمُ الْجِرَاحَ وَالْقَتْلَ فَوَهَنُوْا لِذٰلِكَ– نهايه)۔

(وئيلے شى نكيت فى العدو الخ يعنى ما په دشمن كښې نكايه (زخم) اُوكړو او زه نكايه كوم دا په هغه وخت كښې وئيلے شى كله چه ته په دشمنانو كښې زخمونه او قتل زيات كړے او ددے په وجه هغوى كمزورى شى)۔

إِلٰى جَنَازَةٍ : په بل روايت د ابوداود كښې دغه شان په روايت د حاكم، ابن حبان وغيره كښې الى صلاة راغلے دے۔ نو دا بيا عام مونځونو ته هم شامل دے او جنازے ته هم شامل دے۔ او دواړه روايتونه صحيح دى۔

د دشمن د زخمى كولو او جنازے ته د حاضريدو دواړو جمع ئے پدے وجه اُوكړه چه اول كښې د الله تعالىٰ په دشمنانو عذاب نازلول مقصود دے او په دويم كښې د الله تعالىٰ ولى ته د رحمت د رسولو كوشش دے۔ (طيبىؒ)

**فائده :** په دوه خیزونو کښې کمال دے (۱) د الله د امر او حکم په تعظیم کښې۔ (۲) او په بندګانو باندے شفقت کولو کښې۔ او دے دواړو ته پدے حدیث کښې اشاره ده۔

**درجة الحديث:** اسناده صحيح : ابوداود (۳۱۰۷) وابن حبان (۷۱۵) حَسَّنه الالباني في الصحيحة وتعليق المشكاة وصححه في صحيح سنن ابي داود (۲٦٦٤)۔

---

۱۵۵٦ (۳۵) – عَنْ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ عَنْ أُمَيَّةَ أَنَّهَا سَأَلَتْ عَائِشَةَ عَنْ قَوْلِ اللهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: ﴿إِنْ تُبْدُوْا مَا فِيْ أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوْهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللهُ﴾ وَعَنْ قَوْلِهِ : ﴿مَنْ يَّعْمَلْ سُوْءًا يُّجْزَ بِهِ﴾ فَقَالَتْ:مَا سَأَلَنِيْ عَنْهَا أَحَدٌ مُنْذُ سَأَلْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ فَقَالَ:« هٰذِهٖ مُعَاتَبَةُ اللهِ الْعَبْدَ بِمَا يُصِيْبُهٗ مِنَ الْحُمّٰى وَالنَّكْبَةِ حَتَّى الْبِضَاعَةِ يَضَعُهَا فِيْ يَدِ قَمِيْصِهٖ فَيَفْقِدُهَا فَيَفْزَعُ لَهَا حَتّٰى إِنَّ الْعَبْدَ لَيَخْرُجُ مِنْ ذُنُوْبِهٖ كَمَا يَخْرُجُ التِّبْرُ الْأَحْمَرُ مِنَ الْكِيْرِ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

**ترجمه :** او علي بن زيد د اميه نه نقل کوی چه دے د عائشے رضی الله عنها نه د الله تعالیٰ ددے وینا په باره کښې تپوس اُوکړو : (ان تبدوا الخ) یعنی که تاسو ښکاره کوئ هغه شے چه ستاسو زړونو کښې دے یائے پټ ساتئ نو الله به درسره په هغے باندے حساب کوی) او ددے وینا په باره کښې (من يعمل سوءً يجز به) چا چه بد عمل اُوکړو نو د هغے بدله به ورکولے شی۔ نو عائشےؓ اُوفرمایل : ما نه ددے په باره کښې هیچا تپوس نهٔ دے کړے د کوم وخت نه چه ما د رسول الله ﷺ نه ددے په باره کښې تپوس کړے۔ رسول الله ﷺ فرمایلی وو : دا (محاسبه او جزاء په دواړو آیتونو کښې) د الله تعالیٰ عتاب دے چه په هغے کښې بنده په تبه او مصیبت کښې اخته کیږی تردے چه یو بنده خپل څه مال د خپل قمیص په لوستونړی (یا جیب کښې) ایږدی او بیا هغه مال ورك كړى او د هغے په وجه پریشانه شی (نو ددے په وجه ددهٔ ګناهونه لرے کیږی او همیشه دا سلسله روانه وی چه بنده به په تکلیف او غم کښې اخته کیږی) تردے چه هغه بنده د ګناهونو نه داسے پاك او صفا شی لکه سرهٔ زر او چاندی (په اُور کښې د پریوتو په وجه) سرهٔ راوځی۔ (ترمذی)۔

**تعارف علي بن زيد :** ددهٔ نوم علي بن زيد بن عبد الله بن زهير بن عبد الله بن جدعان التيمي دے، بصری ورته وئیلے شی اصل ئے د مکے دے او دا په علي بن زيد بن جُدْعان سره مشهور دے عجليّ ورته لابأس به وئيلے دے او يعقوب بن شيبة ورته ثقه صالح الحديث وئيلے

دے۔ ترمذیؒ وائی : صدوق دے لیکن د موقوف روایت نه به ئې مرفوع جوړولو، ساجیؒ وئیلی دی : (كَانَ مِنْ أَهْلِ الصِّدْقِ وَيُحْتَمَلُ لِرِوَايَةِ الْجُلَّةِ عَنْهُ)۔ نورو علماؤ ورته ضعیف وئیلے دے۔ ابن خزیمهؒ وائی: زۀ پرے احتجاج نۀ کوم ځکه سیء الحفظ دے۔

**اُمَيَّةُ** : دا په تصغیر سره د عبد الله لور ده ددے اسم کنیه ام محمد ده د علی بن زید بن جدعان د پلار ښځه ده او مورئې نۀ ده۔ حافظ په تهذیب کښې لیکی : امیه بنت عبد الله عن عائشة وعنها رَبِيْبُهَا علی بن زید بن جدعان۔

**تشریح** : ددے دوه آیتونو د معنیٰ تپوس کولو وجه دا وه چه اول آیت پدے باندے دلالت کوی چه بندګانو سره به د هغوی د زړۀ په خطراتو او وسوسو او غلط خیالاتو باندے محاسبه کیږی۔ او د دویم آیت نه معلومیږی چه بندګانو ته به په هر بد عمل سزا ورکولے کیږی برابره ده که هغه عمل وړوکے وی یا غټ، لوی یا ډیر نو پدے سره صحابه کرام پریشانه شو چه څه اُوکړی ځکه چه ددے نه بچکیدل ممکن نۀ دی نو امیه د عائشے رضی الله عنها نه ددے متعلق تپوس اُوکړونو عائشے رضی الله عنها ورته اُوفرمایل : د کوم وخت نه چه ما ددے په باره کښې د رسول الله ﷺ نه تپوس کړے وو تردے وخت پورے ما نه هیچا ددے تپوس نۀ وو کړے (او صرف تا اُوکړو) نو رسول الله ﷺ ما ته ددے داسے وضاحت کړے وو چه ددے آیتونو دا مطلب نۀ دے چه الله تعالیٰ به د قیامت په ورځ مؤمنان بندګان د هغوی د زړونو په تمامو خبرو او د هغوی په ورو ګناهونو سره په عذاب کښې مبتلا کوی بلکه پدے آیتونو کښې د محاسبے او سزا مقصد دا دے چه الله تعالیٰ مؤمنان د کړو ګناهونو په وجه په دنیا کښې په خپل عتاب (ملامتیا) کښې مبتلا کوی پدے طریقه چه چا باندے تبه راولی او چا باندے مصیبت او تکلیف راولی او چا باندے غم او پریشانی راولی او په معمولی معمولی پریشانتیا سره هم د بندګانو نه د هغوی ګناهونه رژوی او دا ورله سبب د کفارے جوړوی۔ تردے چه د یو انسان په لستونړی کښې یو څیز وی او هغه ددۀ نه غائب شی نو پدے سره پریشانه شی چه ګنے رانه ورك شو او بیا ورته پیدا شی نو پدے معمولی پریشانتیا سره هم د بنده ګناه معاف کوی تردے چه بنده به ددے مصیبتونو په وجه د ګناهونو نه داسے اُوځی لکه څنګه چه د سرو او سپینو توټے (ټکړے) د بټۍ نه اُوځی۔

د آیت یو تفسیر داسے دے : که تاسو د زړونو بدی په خبره یا عمل سره راښکاره کوئ یا ئې په زړونو کښې پټه ساتئ او په هغې باندے همیش والے کوئ او هغې له دوام ورکوئ نو الله تعالیٰ به درسره حساب کوی۔

علامه آلوسیؒ ددے داسے تفسیر کوی : که تاسو خلقو ته هغه خبرے راښکاره کوئ کومے چه

ستاسو زړونو کښې مضبوطې حاصلې شوې وي او داسې درجې ته رسيدلې وي چه زړۀ په هغې سره متصف گرځيدلې وي لکه بد اخلاق شو، حسد، تکبر، کفر، ناشکرې، گواهي پټول. يائې د خلقو نه پټ ساتې نو الله تعالیٰ به درسره د قيامت په ورځ په هغې باندې حساب کوي او سزا به درکوي.

نو ددې نه معلومه شوه چه کومه خبره په زړۀ کښې پوره ځائې نۀ وي نيولې او هسې خيال د گناه راشي نو پدې باندې مؤاخذه نشته ترڅو پورې چه هغه په خارج کښې موجوده شوې نۀ وي لکه دا په بل حديث کښې ذکر دي چه (الله تعالیٰ زما د امت نه د هغه وسوسو او خيالاتو معافي کړيده کوم چه د دوی سينو ته راځي ترڅو پورې ئې چه په هغې عمل نۀ وي کړې يائې پرې خبرې نۀ وي کړې) (مر في باب الوسوسة)

يعنې په نفس تصور د گناه باندې امت ته عذاب نۀ ملاويږي بلکه عذاب په عمل کولو سره دې. لهذا ددې آيت او حديث هيڅ منافات او تعارض نشته.

يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ : ددې حساب نه مراد يا سزاء او جزاء ورکول دي. يا خبر ورکول دي چه دا فلانې فلانې خيال دې راغلې وو. ليکن معاف شوې لهذا هر حساب مستلزم عذاب لره نۀ وي. نو بناء پدې د حديث او دآيت تعارض پاتې نشو. او که ددې حساب نه عذاب واخستې شي او د ما في انفسكم نه خيالات او وسوسې واخستې شي نو بيا دا آيت منسوخ دې په روستو آيت (لايكلف الله نفسا الا وسعها) (البقره). ځکه داسې خيالات دفع کول د نفس د طاقت نه بهر دي. دا غير اختياري راځي.

مَا سَأَلْتِنِي عَنْهَا : ضمير مسئلې ته راجع دې.

هٰذِهِ مُعَاتَبَةُ اللّٰهِ : يعنې الله تعالیٰ ئې په عتاب (ملامتيا) کښې مبتلا کوي. يا معنیٰ ده : رانيول د الله تعالیٰ دي بنده لره په هغه گناه چه دۀ کړي وي.

بِمَا يُصِيبُهُ : باء صله د معاتبة ده يا سببيه ده. يعنې عتاب ورله په مصيبتونو ورکوي.

بيا عتاب دې ته وائي چه يو دوست بل دوست ته د غصې اظهار اُوکړي پدې وجه چه هغه نه څه بې ادبي او غلط روی شوې وي ليکن په زړۀ کښې ئې د هغه محبت همغه شان باقي وي.

حاصل دا شو چه د آيت معنیٰ دا نۀ ده چه الله تعالیٰ به مؤمنانو ته په تولو گناهونو باندې د قيامت په ورځ سزا او عذاب ورکوي بلکه معنې دا ده چه دوی ته الله تعالیٰ په دنيا کښې لوږه، تنده، مرض او غم او خفگان وغيره تکليفونه اُورسوي نو چه د دنيا نه اُوځي نو د گناهونو نه به پاك شوې وي. لهذا دا اُخروي عذاب نۀ دې بلکه دنياوي عتاب دې. چه اې بنده ! تا خو په ما ايمان راوړې نو تا له زما مخالفت نۀ دې پکار نو الله تعالیٰ پرې تکليف راولي چه لړ راويښ شي.

وَالنَّكْبَةُ : مصيبت، او هغه څه چه د زمانې د حوادثو نه انسان ته رسي۔
الْبِضَاعَةُ : په کسره د باء سره پنګې ته وئيلې شي يعنې هغه حصه د مال چه د تجارت دپاره متعين شوي وي۔ او بضاعة د بضع نه جوړ شوي دے دا يوه حصه د غوښې ده چه راپريکړے شوي وي۔

فَيَفْقِدُهَا : يعنې هغه ورکه کړي۔ يا په معنىٰ د يَتَفَقَّدُهَا سره دے يعنې هغه طلب کړي او مونده ئې نکړي۔

فَيَفْزَعُ لَهَا : يعنې غمجن شي د هغې په ورک کيدو۔

الْكِيرُ الْأَحْمَرُ : په کسره د تاء سره تيکرو د سره او سپينو ته وئيلې شي چه لا تر اپه پرے وهلې شوی نۀ وي يعنې لا روپۍ ترے جوړے شوي نۀ وي۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : احمد (٦/٢١٩) والترمذي (٢٩٩١) وفي اسناده علي بن زيد وهو ابن جدعان وهو ضعيف وامية مجهولة (١٥٥٧)

---

١٥٥٧ (٣٦) - وَعَنْ أَبِي مُوسَىٰ أَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَالَ: « لَا يُصِيبُ عَبْدًا نَكْبَةٌ فَمَا فَوْقَهَا أَوْ دُونَهَا إِلَّا بِذَنْبٍ وَمَا يَعْفُو اللهُ عَنْهُ أَكْثَرُ وَقَرَأَ: ﴿ وَمَا أَصَابَكُمْ مِنْ مُصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُو عَنْ كَثِيرٍ ﴾ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** : او د ابو موسى ﷺ نه روايت، دے چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « هيڅ يو بنده ته معمولي شان مصيبت يا د هغې نه زيات يا د هغې نه کم نۀ رسيږي مګر د ګناه په وجه، او هغه ګناهونه چه الله ئې (بغير د سزا ورکولو نه) معاف کوي هغه ډير زيات دي (د هغه ګناهونو نه چه په هغې الله په دنيا او آخرت کښې سزا ورکوي) او دا آيت ئې اُولوستلو : (وما اصابکم) يعنې هغه مصيبت چه تاسو ته رسيږي نو ستاسو د لاسونو د کسب په وجه دے او الله معافي کوي د ډيرو ګناهونو) »۔ (ترمذي)۔

**تشريح** : نَكْبَةٌ : په معنىٰ د محنة او ضرر سره۔ او تنوين پکښې د تقليل دپاره دے يعنې معمولي شان تکليف۔

وَمَا أَصَابَكُمْ : مطلب دا دے چه تاسو ته کوم مصيبت رسي نو دا ستاسو د بد اعمالو نتيجه ده نو د خپلو بد اعمالو نه بند شئ او سيده لاره بانديے روان شئ او کوم خلق چه ګناهګار نۀ وي نو هغوي ته د مصيبت رسيدلو وجه دا وي چه د هغوي درجات بلند کړے شي، کله الله تعالىٰ بنده

لــه اُوچتــه درجــه د جـنـت تياره کړې وي ليـکـن ددهٔ اعـمـال هغې تـه نـهٔ رسي نو الله تعالیٰ پرے تکليفونه او بيمارياني راولي، پدے سره ئے دغه درجاتو ته اُورسوي۔
او د احاديثو نه معلوميږي چه کوم مصيبت او مرض او امتحان بنده ته په دنيا کښې اُورسيږي د ګناهـونو د وجه نه نو الله تعالیٰ ددے نه ډير اکرم او عزتمند دے چه په بنده باندے دوباره سزا په آخرت کښې راواپس کړي۔

**درجة الحديث** : اسـنـاده حسن : ترمذی (۳۲۵۲) وقال حديث غريب وعلة الحديث انه من رواية عبيد الله بن الوازع حَدَّثَنِيْ شيخ من بَنِيْ مُرَّةَ وهما مجهولان كما قال الحافظ فی تقريب التهذيب (۱/۵٤۰) ولـه شـاهـد مـن حديث ابی سعيد وحديث ابن مسعود المتقدمان فی الفصل الاول) (المرعاة ۵/۲۰٤) تَرَاجَعَ الْأَلْبَانِيُّ عَنْ تَضْعِيْفِهٖ فی صحيح الجامع رقم (۷۷۳۲) وصحيح كنوز السنة (۱/۱۰۷ باب الحسنات والسيئات)

---

**۱۵۵۸ (۳۷) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : « إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا كَانَ عَلٰى طَرِيْقَةٍ حَسَنَةٍ مِنَ الْعِبَادَةِ ثُمَّ مَرِضَ قِيْلَ لِلْمَلَكِ الْمُوَكَّلِ بِهٖ : اُكْتُبْ لَهٗ مِثْلَ عَمَلِهٖ إِذَا كَانَ طَلِيْقًا حَتّٰى أُطْلِقَهٗ أَوْ أَكْفِتَهٗ إِلَيَّ ».**

**ترجمه** : او عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما فرمائي، رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « يقيناً کله چه يو بنده د عبادت په يوه نيکه لاره باندے وي او بيا بيمار شي (او د هغه عبادت په کولو قادر نهٔ شي) نو هغه ملائك ته چه په دهٔ باندے (د نيك اعمالو په ليکلو) مقرر شوے وي وئيلے شي (يعنی الله ورته وائي) چه ددے بنده دپاره (ددهٔ په عملنامه کښې) د هغه عمل په مثل اُوليکه کوم چه به دهٔ په روغـوالي حـالـت کښې کولو، تردے پورے چه زهٔ دا (د مرض نه) آزاد کړم يا دهٔ لره خپل ځان ته راوبلم»۔ (شرح السنه)۔

**تشريح** : **طَلِيْقًا** : يعنی مطلقاً من المرض۔ يعنی کله چه د مرض نه دا آزاد وو۔
**أُطْلِقَهٗ** : يعنی تردے چه زهٔ ئے ددے مرض نه آزاد کړم او د مرض قيد (بند) ترے لرے کړم۔
**أَوْ أَكْفِتَهٗ** : فتحه د همزے او کسره د فاء ده۔ کفت راټاوولو او جمع کولو ته وئيلے شي دلته ترے مراد مرګ دے۔ يعنـی تردے چه زهٔ ئے ځان سره يو ځائے کړم او قبض ئے کړم۔ نهايه کښې ئے معنیٰ کړيده : (ای اَضُمُّهٗ اِلَی الْقَبْرِ) (يعنی زهٔ ئے قبر سره يو ځائے کړم) يعنی وفات پرے راولم۔
په حديث کښې په بنده باندے د الله تعالیٰ رحمت ذکر شو چه د مرض په وجه کوم عمل د انسان نه پاتے شوی وي نو هغه هم الله تعالیٰ ورله پوره پوره ليکي۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : (احمد ٣/١٤٨) والبغوى فى شرح السنة (٥/٢٤١ رقم : ١٤٣٠) وقال المنذرى (اسناده حسن) والهيثمى (٢/٣٠٣) اسناده صحيح۔

---

١٥٥٩ (٣٨) – وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ: «إِذَا ابْتُلِيَ الْمُسْلِمُ بِبَلَاءٍ فِيْ جَسَدِهٖ قِيْلَ لِلْمَلَكِ: اُكْتُبْ لَهٗ صَالِحَ عَمَلِهِ الَّذِيْ كَانَ يَعْمَلُ فَإِنْ شَفَاهُ غَسَلَهٗ وَطَهَّرَهٗ وَإِنْ قَبَضَهٗ غَفَرَ لَهٗ وَرَحِمَهٗ». رَوَاهُمَا فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ.

ترجمه : او انس ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «کله چه یو بنده مسلمان ته په بدن کښې څه تکلیف اُورسی نو (په دۀ باندې مقرر) ملائك ته وئیلی شی چه دۀ دپاره (په علمنامه کښې) هغه نیك عمل اُولیکه کوم چه به دۀ (مخکښې د بیمارئ نه) کولو، نو که الله تعالیٰ دے مسلمان ته شفاء ورکړه نو (دۀ گناهونه) به وینځی او پاك به ئې کړی او که دۀ روح واخلی نو بخښنه به ورته کوی او په دۀ به رحم کوی»۔ دا دواړه روایتونه بغوی په شرح السنة کښې نقل کړیدی۔

**تشریح** : لِلْمَلَكِ : ددے ملائك نه دښی طرف والا ملائك مراد دے کوم چه نیکیانې لیکی۔

عَمَلِهِ: ظاهر دا دے چه بعینهٖ هغه عمل لیکی۔ بعض وائی : ثواب لیکی۔ لیکن اول کښې مبالغه زیاته ده۔ځکه چه دا په تَضَاعُفْ (دوچنده کولو) مشتمل دے۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : احمد (٢/٢٠٣) وصححه الحاكم ووافقه الذهبى فى المستدرك (١/٣٤٨) ورواه ابن ابى شيبة (٤/٧٢) وقال المنذرى والهيثمى رجاله ثقات وسكت عنه الحافظ فى الفتح ۔

---

١٥٦٠ (٣٩) وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَتِيْكٍ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «اَلشَّهَادَةُ سَبْعٌ سِوَى الْقَتْلِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ : اَلْمَطْعُوْنُ شَهِيْدٌ وَالْغَرِيْقُ شَهِيْدٌ وَصَاحِبُ ذَاتِ الْجَنْبِ شَهِيْدٌ وَالْمَبْطُوْنُ شَهِيْدٌ وَصَاحِبُ الْحَرِيْقِ شَهِيْدٌ وَالَّذِيْ يَمُوْتُ تَحْتَ الْهَدْمِ شَهِيْدٌ وَالْمَرْأَةُ تَمُوْتُ بِجُمْعٍ شَهِيْدٌ». رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

ترجمه : او جابر بن عتیك ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «د الله په لاره کښې د شهید کیدو نه سوئ شهادت په اُوه قسمه دے (١) کوم شخص چه په طاعون کښې مر شی شهید دے۔ (٢) څوك چه په دوبیدو سره مر شی شهید دے۔ (٣) څوك چه په ذات الجنب (نمونیا) سره

مړ شي شهید دے۔ (٤) څوك چه د خیټې په بیمارۍ (یعني دست او استسقاء) کښې مړ شي شهید دے۔ (٥) څوك چه په سوزیدو سره مړ شي شهید دے۔ (٦) څوك چه د دیوال وغیره د راپریوتو نه لاندے مړ شي شهید دے۔ (٧) او هغه ښځه چه د حمل په حالت کښې یا باکره مړه شي شهیده ده»۔ (مالك، ابوداودؒ، نسائیؒ)۔

**تشریح : ذَاتِ الْجَنْبِ** : دیته نمونیه بیماري وائی چه په تشو باندے دننه طرف ته غټه دانه راښکاره شي او بیا اُوبهیږي داخل طرف ته او ددے نه غالباً انسان وفات کیږي۔ یا دا هغه بیماري ده چه زړه او سینے ته نزدے دانے راښکاره شي او بیا ماتے شي نو انسان ترے وفات شي۔ ځکه دے سره ساه بندیږي۔ علامات ئے دا وي چه د پښتو لاندے دردونه وي، ساه ئے لنډه لنډه کیږي، تبه او توخے ورسره وي او په زنانو کښې دا بیماري زیاته راځي۔

حافظ ابن قیمؒ لیکي : (فَالْحَقِيقِيُّ وَرَمٌ حَارٌّ يَعْرِضُ فِيْ نَوَاحِي الْجَنْبِ فِي الْغِشَاءِ الْمُسْتَبْطِنِ لِلْاَضْلَاعِ) (زاد المعاد ٤/٧٤)

(ذات الجنب حقیقي هغه ګرم پړسوب دے چه په اطرافو د اړخ کښې راپیښیږي د پښتو په باطني پرده کښې)۔

**بِجُمْعٍ** : په ضمه د جیم سره دا هغه زنانه ته وئیلے شي چه مړه شي او په خیټه کښې ئے بچی وي یا ئے بچے پیدا شي او مړه شي یا باکره مړه شي۔ نو جمع په معنی د مجموع سره لکه ذخر په معنی د مذخور سره۔ او کسائیؒ جیم لره کسره ورکوي۔ نو معنیٰ دا کیږي : یعني مړه شي د هغه شي سره چه په هغے کښې راجمع شوے وي او د هغے نه جدا نه وي لکه حمل سره یا بکارت سره مړه شي۔ (قاله الجزريؒ) یعني بکارت ځان سره یوسي۔

جدید طب کښې ئے داسے تعریف دے : (اِلْتِهَابٌ فِي الْغِشَاءِ الْمُحِيطِ بِالرِّئَةِ) (معجم الوسیط)

(دا هغه سوزش ته وئیلے شي چه په هغه پرده کښې وي کومه چه په پرپوس باندے راتاو شوے وي)

**درجة الحدیث**: اسناده صحیح : (مالك في الموطأ (١/٢٣٣) رقم (٣٦) وابوداود (٣١١١) والنسائي (٤/١٣) وابن ماجه (٢٨٠٣) (صحیح بلا خلاف –نووي شرح مسلم)

**١٥٦١ (٤٠)** وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ : سُئِلَ النَّبِيُّ ﷺ : أَيُّ النَّاسِ أَشَدُّ بَلَاءً ؟ قَالَ: « اَلْأَنْبِيَاءُ ثُمَّ الْأَمْثَلُ فَالْأَمْثَلُ يُبْتَلَى الرَّجُلُ عَلَى حَسَبِ دِيْنِهٖ فَإِنْ كَانَ صُلْبًا فِيْ دِيْنِهٖ اِشْتَدَّ بَلَاؤُهُ وَإِنْ كَانَ فِيْ دِيْنِهٖ رِقَّةٌ هُوِّنَ عَلَيْهِ فَمَا زَالَ كَذٰلِكَ حَتّٰى يَمْشِيَ عَلَى الْأَرْضِ مَا لَهُ ذَنْبٌ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَالدَّارِمِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ.

ترجمه : او سعد بن ابي وقاص ﷺ فرمائي : د نبي ﷺ نه تپوس أوشو چه په خلقو كښې كوم شخص د سخت ابتلاء او مصيبت والا وي ؟ نبي ﷺ أوفرمايل : ((انبياء كرام، بيا هغه خلق چه د انبياؤ سره زيات مشابه وي، بيا هغه خلق چه ددغه خلقو سره زيات مشابه وي، (بيا نبي ﷺ أوفرمايل) انسان د خپل دين مطابق (په مصيبت كښې) مبتلا كيږي نو كه يو شخص په خپل دين كښې سخت وي نو د هغه مصيبت هم سخت وي او كه يو شخص په خپل دين كښې نرم وي نو مصيبت په هغه باندې آسانولې شي. (لهذا په خپل دين كښې سخت شخص) دغه شان هميشه (په مصيبت او بلاء كښې) گرفتار وي. (چه د هغې په وجه ددۀ گناهونه معاف كيږي) تردې چه هغه په زمكه باندې په داسې حال كښې روان وي چه (د هغه په عملنامه كښې) هيڅ گناه نۀ وي)). (ترمذيؒ، ابن ماجةؒ، دارميؒ) امام ترمذيؒ فرمائي چه دا حديث حسن صحيح دې.

تشريح : اَلْاَمْثَلُ : د مثالة نه دې په معنىٰ د غوره والي سره، جمع ئې اماثل راځي.

خطابيؒ وائي : امثل معنىٰ ده اَشْبَهُ بِالْفَضْلِ وَالْاَقْرَبُ إِلَى الْخَيْرِ. يعني هغه انسان چه د غوره والي مشابه وي. او خير ته نزدې وي. او اَمَاثِلُ الْقَوْمِ كنايه وي د غوره خلقو نه. ابن الملك وائي : امثل اشرف او اعلىٰ مرتبې والا ته وائي.

مطلب دا دې چه انبياء كرام عليهم السلام باندې د دنيا مصيبتونه او امتحانات زيات راځي ځكه چه هغوی په مصيبت او ابتلاء كښې داسې لذت محسوس كوي لكه څنګه چه عام انسانان په نعمت او راحت كښې لذت محسوس كوي. دارنګه كه دوي باندې ابتلاء رانشي نو بعض خلق به په هغوي كښې د الوهيت گمان أوكړي. دارنګه دې دپاره چه نور امت ته په مصيبت باندې صبر كول آسان شي. دارنګه چه د چا څومره امتحان سخت وي نو د هغه تضرع او التجاء الله تعالىٰ ته زياته وي. د انبياء عليهم السلام نه روستو د هغه خلقو مصيبت سخت وي چه د انبياء عليهم السلام مشابه وي يعني اولياء او صالحين دې دپاره چه دوي هم د زيات ثواب مستحق شي ليكن د دوي مصيبت د انبياء كرامو د مصيبت نه كم وي، بيا چه د چا څومره درجه او مرتبه وي نو د هغې مطابق امتحان او مصيبت پرې راځي.

بيا څوك چه په دين باندې څومره مضبوط عمل كونكې وي نو هغه باندې امتحانات او مصائب سخت وي ځكه چه صاحب يقين وي، هغه د مصيبت په سختئ باندې صبر كوي او دا گمان كوي چه زۀ د خپلو گناهونو په وجه ددې مستحق يم، نو ددې په وجه د هغه په ايمان كښې نور كمال هم پيدا شي او الله تعالىٰ سره ئې تعلق زيات مضبوط شي. نو ددې په نتيجه كښې د هغه گناهونه ختم شي او درجات ئې أوچت كړې شي. ددې په خلاف كوم خلق چه په دين كښې

نرم وي نو د هغه مصيبت هم كم وي دے دپاره چه يے صبري ترے ښكاره نشي او د ايمان او د تعلق بالله د كمزورتيا په وجه د دين د دائرے نه بهر نشي۔

بعض علماؤ ددے وجه دا خودلے ده چه ابتلاء په مقابله د نعمت كښې وي نو په چا چه نعمت زيات وي د هغه ابتلاء هم زياته وي۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : (دارمي۲/۳۲۰) والترمذي (۲۳۹۸) حديث حسن صحيح وابن ماجه (۴۰۲۳) وابن حبان (۶۹۸-۷۰۰)

---

۱۵۶۲ (۴۱) – وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: مَا أَغْبِطُ أَحَدًا بِهَوْنِ مَوْتٍ بَعْدَ الَّذِيْ رَأَيْتُ مِنْ شِدَّةِ مَوْتِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

ترجمه : او عائشه رضي الله عنها فرمائي : پس د هغې نه چه ما د رسول الله ﷺ د مرگ سختيا ليدلے ده زۀ هيچا ته د مرگ په آسانوالي نۀ پسخيږم۔ (ترمذي، نسائي)

**تشريح** : مطلب دا چه ما به مخكښې د مرگ د آسانۍ آرزو كوله ليكن كله چه ما د رسول الله ﷺ د مرگ سختي اُوليده نو هغه آرزو مے ختمه شوه ځكه چه د مرگ آساني د سعادت او نيكبختۍ نښه نۀ ده او د مرگ سختي د بد بختۍ نښه نۀ ده۔

بِهَوْنِ : په فتحه د هاء سره نرمۍ او آسانۍ ته وئيلے شي۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : (ترمذي ۹۷۹) والنسائي (۴/۶-۷) وفي اسناده عبد الرحمن بن العلاء بن اللجلاج مجهول كما اشار اليه الترمذي لكن للحديث شواهد منها ما تقدم من رواية البخاري في الفصل الاول رقم (۱۹) وصححه الالباني في صحيح سنن الترمذي (۹۷۹) ومختصر الشمائل المحمدية (۳۲۵)

---

۱۵۶۳ (۴۲) – وَعَنْهَا قَالَتْ : رَأَيْتُ النَّبِيَّ ﷺ وَهُوَ بِالْمَوْتِ وَعِنْدَهٗ قَدَحٌ فِيْهِ مَاءٌ وَهُوَ يُدْخِلُ يَدَهٗ فِي الْقَدَحِ ثُمَّ يَمْسَحُ وَجْهَهٗ ثُمَّ يَقُوْلُ: «اَللّٰهُمَّ أَعِنِّيْ عَلٰى مُنْكَرَاتِ الْمَوْتِ أَوْ سَكَرَاتِ الْمَوْتِ» . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه.

ترجمه : او عائشه رضي الله عنها فرمائي : ما نبي ﷺ د مرگ په حالت كښې اُوليدو، چه د هغه خواته يو پياله وه چه په هغې كښې اُوبه وے، رسول الله ﷺ به په پياله كښې لاس ننويستلو بيا به ئے په مخ باندے راخكلو بيا به ئے وئيل : «اے الله ! ما سره د مرگ په سختيانو يا د مرگ په

بے هوشيانو مند أوكره»۔ (ترمذى، ابن ماجة)۔

**تشريح** : د مرگ د سختيانو په وجه ئے أوبه په مخ څکه اچولے چه د مرگ په وجه كوم حرارت او گرمي پيدا شوى وه چه په هغے كښ آسانى راشى۔

اهل علمو د رسول الله ﷺ د مرگ د تكليفونو مختلف وجوهات خودلى دى، بعضو وئيلى دى چه ددے وجه دا وه چه په رسول الله ﷺ باندے د مرگ د سختيانو دا كيفيت څكه راغلو دے دپاره چه امت كښ خلق ددے په سبب سره د خپل مرگ په باره كښ زيات پريشان نۀ شى څكه كله چه امتى دا أووينى چه رسول الله ﷺ باندے د مرگ په وخت څومره تكليف وو نو هغه به هم صبر أوكړى نو روح به ئے په آسانئ سره أوځى او د الله تعالىٰ نه به ناراضه نۀ وى۔ والله تعالىٰ اعلم۔

**مُنكَرَاتُ الْمَوْتِ** نـه مراد بعض وائى هغه تقصير دے چه د مريض نه په دغه حالت كښ واقع كيږى يا د شيطان وسوسے او غلط خيالات راځى۔ او د سكرات الموت نه مراد هغه سختيانے دى چه مريض د هغے د برداشت نه عاجز وى نو په حالت د جزع فزع كښ مر شى۔

**بعض وائى** : منكرات الموت نـه مراد د مرگ سختى ده او د دويم (سكرات) نه مراد هغه دهشت او حيرانتيا او نشه ده چه انسان باندے غفلت راولى او عقل ورله ختموى۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف فيه موسى بن سرجس وهو مستور (ترمذى ۹۷۸) وقال حديث حسن غريب وابن ماجه (۱٦۲۳) والنسائى فى عمل اليوم والليلة (۱۰۹۳)

---

۱۵٦٤ (٤۳) – وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«إِذَا أَرَادَ اللهُ تَعَالٰى بِعَبْدِهِ الْخَيْرَ عَجَّلَ لَهُ الْعُقُوْبَةَ فِي الدُّنْيَا وَإِذَا أَرَادَ اللهُ بِعَبْدِهِ الشَّرَّ أَمْسَكَ عَنْهُ بِذَنْبِهِ حَتّٰى يُوَافِيَهُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ترجمه : او انس ﷺ فرمائى : رسول الله ﷺ فرمائى : «كله چه الله په خپل بنده سره د خير اراده أوكړى نو هغه ته په دنيا كښ (د گناهونو) سزا په جلتئ وركړى او كله چه الله په خپل بنده سره د بدئ اراده أوكړى نو د هغه د گناهونو سزا بنده سائى، تردے چه هغه ته د قيامت په ورځ د هغه د گناهونو سزا پوره پوره وركوى»۔ (ترمذى)۔

**تشريح** : أَمْسَكَ : ددے مفعول حذف دے يعنى (اى أَخَّرَ عَنْهُ مَا يَسْتَحِقُّهُ مِنَ الْعُقُوْبَةِ) (روستو كړى ددۀ نه هغه سزا چه دائے مستحق وى) دنيا كښ سزا وركول څكه خير دے چه د دنيا سزا د آخرت د سزا نه په بے حده چندونو بهتره ده څكه چه د دنيا سزا معمولى وى زر ختميږى څكه

چه د دنيا توله موده د آخرت په نسبت ډيره كمه ده او كوم بندګانو باندې چه الله تعالیٰ د شر اراده وي نو د مسلسل نافرمانيانو په وجه د الله تعالیٰ په غضب اخته شي نو الله تعالیٰ ورله په دنيا كښې سزا نۀ وركوي بلكه آخرت ته ئې ورله پريږدي نو تول په يو ځائې وركړي او د آخرت سزا خو ډيره اوګده او سخته ده۔ اَعَاذَنَا اللهُ مِنْهَا بِرَحْمَتِهٖ وَمَنِّهٖ وَكَرَمِهٖ۔

**درجة الحديث**: اسناده حسن : (ترمذى ٢٣٩٦) وقال حديث حسن غريب من هذا الوجه) وابن ماجه (٤٠٣١)واخرجه الحاكم (٣٤٩/١) عن عبد الله بن مغفل وقال صحيح الاسناد ووافقه الذهبى)۔

---

١٥٦٥ (٤٤) – وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«إِنَّ عِظَمَ الْجَزَاءِ مَعَ عِظَمِ الْبَلَاءِ وَإِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ إِذَا أَحَبَّ قَوْمًا ابْتَلَاهُمْ فَمَنْ رَضِيَ فَلَهُ الرِّضَا وَمَنْ سَخِطَ فَلَهُ السَّخَطُ».رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه**: او انس ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «يقيناً لويه بدله د لوئي مصيبتونو سره وي، او كله چه الله تعالیٰ د يو قوم سره محبت كوي نو هغوي (په مصيبتونو كښې) مبتلا كوي نو څوك چه (په مصيبتونو) راضي شي نو د هغه دپاره (د الله تعالیٰ) رضا ده او څوك چه (د مصيبت په امتحان كښې د الله نه) ناراضه شو نو د هغه دپاره (د الله) ناراضګي ده»۔ (ترمذیؒ، ابن ماجةؒ)۔

**تشريح** : فَمَنْ رَضِيَ : يعني څوك چه په مصيبت او تكليف باندې د الله تعالیٰ نه راضي شي او په هغه اعتراض اُونكړي نو هغه دپاره د الله تعالیٰ رضا ثابته شي۔ يا بدله د رضا د هغه دپاره ثابته شي او څوك چه د الله تعالیٰ نه خفه شي او بې صبري او جزع فزع او په الله تعالیٰ باندې اعتراضونه اُوكړي نو هغه باندې الله تعالیٰ خپل غضب نازل كړي يا د اعتراض او خفګان سزا وركړي۔

د حديث مقصد دا دې چه كله په بندهٔ مصيبت واقع شي نو هغه دپاره صبر كول پكار دي او پدې كښې ترغيب نۀ دې چه تاسو مصيبت او مرض طلب كړئ ځكه چه د هغې نه خو منع راغلې ده۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : (ترمذى٢٣٩٦) باسناد الحديث الذى قبله وابن ماجه (٤٠٣١)

---

١٥٦٧ (٤٥) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«لَا يَزَالُ الْبَلَاءُ بِالْمُؤْمِنِ أَوِ الْمُؤْمِنَةِ فِيْ نَفْسِهٖ وَمَالِهٖ وَوَلَدِهٖ حَتّٰى يَلْقَى اللهَ تَعَالىٰ وَمَا عَلَيْهِ مِنْ خَطِيْئَةٍ».رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

وَرَوٰى مَالِكٌ نَحْوَهٗ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ.

**ترجمه** : او ابو هریره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : (( په مؤمن سړي يا ښځه به د هغه په بدن او مال او اولادو کښې مصيبت هميشه وي تردې چه د الله تعالیٰ سره به ملاؤ شي چه هيڅ گناه به پرې نه وي ))۔ (ترمذیؒ)۔ او امام مالكؒ هم ددې په شان روايت نقل کړې او ترمذیؒ وئيلي دي : دا حديث حسن صحيح دې۔

**تشريح** : مطلب دا دې چه ايمان والو باندې به په دنيا کښې مصيبتونه هميشه راځي چه د هغې په وجه به هغوی ته د آخرت دائمي راحتونه ملاويږي او د گناهونو نه به بچ وي خو دې سره هغه شرطونه مراد دي چه صبرئې کړې وي او ثواب ئې گنړلې وي او که چا د الله تعالیٰ په تقدير اعتراض کړې وي نو هغه دپاره دا فضيلت نشته بلکه د هغه دپاره د الله تعالیٰ غضب دې۔

په ماشومانو کله بيماري راشي هغوی اگرکه گناهگار نهٔ دي ليکن دا په مور او پلار باندې امتحان وي او د ماشومانو او د هغوی د والدينو درجات پورته کول مقصد وي۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : احمد (٢/٢٨٧) والترمذی (٢٣٩٩) وقال حديث حسن صحيح والحاكم (١/٣٤٦) ووافقه الذهبی وصححه ايضاً البغوی فی المصابيح۔

---

١٥٦٨ (٤٦) - وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ خَالِدِ السُّلَمِيِّ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: (( إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا سَبَقَتْ لَهٗ مِنَ اللهِ مَنْزِلَةٌ لَمْ يَبْلُغْهَا بِعَمَلِهٖ ابْتَلَاهُ اللهُ فِيْ جَسَدِهٖ أَوْ فِيْ مَالِهٖ أَوْ فِيْ وَلَدِهٖ ثُمَّ صَبَّرَهٗ عَلٰى ذٰلِكَ حَتّٰى يُبَلِّغَهُ الْمَنْزِلَةَ الَّتِيْ سَبَقَتْ لَهٗ مِنَ اللهِ )). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه** : او محمد بن خالد السلمي د خپل پلار نه او هغه ددهٔ د نيکه نه نقل کوی فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي : (( يقيناً بنده له چه کله د الله د طرف نه (د جنت) يوه لويه مرتبه ليکلې شوې وي او هغه ورته په خپل عمل نشي رسيدلې نو الله تعالیٰ هغه لره د هغه په بدن يا په مال يا په اولادو کښې په مصيبت اخته کوي او بيا هغه ته د صبر توفيق ورکوي تردې چه هغه مرتبې ته ئې اُورسوي چه دهٔ له مخکښې نه د الله د طرف نه ليکلې شوې ده ))۔ (احمدؒ، ابوداوٗدؒ)۔

### تعارف د محمد بن خالد السلميؒ

دا مجهول راوي د طبقې د کبار تبع تابعينو نه دې ددهٔ پلار خالد هم مجهول دې او د اوساط التابعين نه دې۔ جدهٖ نه مراد دمحمد بن خالد نيکه دې چه دهغه لجلاج بن حکيم السلمي نوم

دے او صحابی دے۔ بعض وائی نوم ئے زید دے۔

**تشریح : صَبْرَةُ** : دا په تشدید سره دے یعنی بیا صابر جوړ کړی دۀ لره۔

علامه طیبیؒ وائی چه پدے حدیث کښ دا اشاره ده چه د مصیبت دپاره د ثواب په حاصلیدو کښ خاص اثر دے چه هغه په طاعت کښ نشته ددے وجه نه څو مره چه انسان دیر غوره وی نو هغو مره مصیبتونه ئے سخت وی آه۔

او ددے حدیث نه دا معلومه شوه چه بنده په مصیبت او بلاء باندے د صبر کولو په وجه د اُخروی سعادت هغه عظیمے درجے او مرتبے ته رسیږی چه هلته د خپل عبادت او اطاعت په ذریعه نشو رسیدلے۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح لغيره : احمد (٢٧٢/٥) وابوداود (٣٠٩٠) وفى الاسناد محمد بن خالد وهو مجهول كما فى التقريب) وقال الالبانى صحيح لغيره (صحيح الترغيب٣٤٠٩) وسنن ابى داود (٢٦٤٩) والصحيحة (٢٥٩٩) وله شاهد جيد من حديث ابى هريرة اخرجه ابويعلى وقال الهيثمى رجاله ثقات وصححه ابن حبان (المرعاة ٢٦٢/٥)

---

**١٥٦٨ (٤٧) – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شِخِّيْرٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «مُثِّلَ ابْنُ آدَمَ وَإِلٰى جَنْبِهٖ تِسْعٌ وَتِسْعُوْنَ مَنِيَّةً إِنْ أَخْطَأَتْهُ الْمَنَايَا وَقَعَ فِى الْهَرَمِ حَتّٰى يَمُوْتَ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ**

ترجمه : او عبد الله بن شخیر ؓ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : « بنیادم په داسے حال کښ پیدا شویدے چه ددۀ اړخ ته (یعنی دۀ ته نزدے) نهه نوی (۹۹) هلاکونکی مصیبتونه دی که هغه مصیبتونه دۀ ته اُونۀ رسیږی نو په بوډاوالی کښ واقع شی تردے چه مړ شی۔ ترمذیؒ دا روایت نقل کړے او وئیلی ئے دی چه دا حدیث غریب دے۔

**تشریح : مُثِّلَ** : دا د تمثیل نه د ماضی مجهول صیغه ده۔ په معنیٰ د تصویر او تخلیق سره یعنی جوړ شویدے ابن آدم۔ بعض وائی : دا مَثَل لفظ دے په معنیٰ د مثال او وصف او حالت عجیبه سره۔ او واو حالیه دے په وَإِلٰى جَنْبِهٖ کښ۔ یعنی د بنده عجیبه شان او حالت ته اُوګوره پداسے حال کښ چه ددۀ په اړخ کښ نهه نوی (یعنی ډیر) مرګونه او هلاکتونه او مصیبتونه دی۔ که دیو نه خطاء شی نو بل پرے راځی او که د ټولو نه خطاء شی نو آخر دا چه د بوډاوالی په وجه به مړ شی ځو علیٰ کل حال هیڅ کله د مرګ نه نشی خلاصیدے نو پدے کښ د دنیا دیر کموالی او د مرګ انتهائی رانزدے والے بیان شویدے چه انسان د هر طرف نه راګیر دے نو دۀ له د

الله تعالیٰ د منشأ مطابق ژوند تیرول پکار دی ځکه چه دا خپل مالك حقیقی طرف ته روان دے۔

او په حدیث کښ دا بیان دے چه دنیا د مصیبتونو کور دے که د یو نه بچ کیږی نو په بل کښ به اخته کیږی نو حاصل ئے دا دے چه دنیا د مؤمن دپاره جیل خانه ده او د کافر دپاره جنت دے او مصیبتونه د گناهونو کفاره ده نو مؤمن له پکار دی چه د الله تعالیٰ په حکم باندے صبر اُوکړی او د هغه په تقدیر راضی شی۔

**درجة الحديث:** اسناده صحيح : ترمذی (۲۱۵۰) وقال حديث حسن غريب وقال فی اواخر الزهد حسن صحيح فَلَعَلَّهُ صَحَّحَهُ لِشَوَاهِدَ رُوِيَتْ فِيْ ذٰلِكَ (المرعاة ۲٦۳/۵) وصحيح الجامع رقم (۵۸۲۵)

---

**۱۵٦۹ (۴۸) – وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «يَوَدُّ أَهْلُ الْعَافِيَةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حِيْنَ يُعْطٰى أَهْلُ الْبَلَاءِ الثَّوَابَ لَوْ أَنَّ جُلُوْدَهُمْ كَانَتْ قُرِضَتْ فِي الدُّنْيَا بِالْمَقَارِيْضِ».رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.**

**ترجمه :** او جابر ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «د قیامت په ورځ کله چه مصیبتونو والو ته ثوابونه ورکړے شی نو روغ صحت والا (یعنی هغه خلق چه په دنیا کښ د مصیبت او بلاگانو نه محفوظ وو او ژوند ئے په عیش او عشرت کښ تیر کړے وو) به دا خوښوی آرمان چه د دوی څرمنے په دنیا کښ په قینچیانو پریکړے شوی وے » (خو چه دا ثوابونه مونږ ته په آخرت کښ ملاؤ شوی وے۔ امام ترمذیؒ دا روایت نقل کړے او فرمایلی ئے دی چه دا حدیث غریب دے۔

**تشريح : قُرِضَتْ:** په تخفیف د راء سره۔ یا په تشدید د راء سره د مبالغے او تاکید معنی پکښ ده په معنیٰ د (قُطِعَتْ) پریکړے شوی وے) مطلب دا چه کله مصیبت زدهٔ خلقو ته د قیامت په ورځ نعمتونه او راحتونه ورکړے شی نو په دنیا کښ روغ صحت والا به هلته ارمان کوی چه زمونږ څرمنے وے په دنیا کښ په قینچیانو پریکړے شوی وے خو چه مونږ ته هم اُوس د دغه مصیبتونو ثواب ملاؤ شوے وے۔ یعنی دومره زیات نعمتونه به مصیبت زدهٔ خلقو ته ملاویږی چه روغ صحت والا به ورته پسخیږی۔

**درجة الحديث :** اسناده حسن : ترمذی (۲۴۰۲) والمعجم الصغير للطبرانی (۸۸/۱) وفی الحديث عنعنة ابی الزبير وهو مدلس لكن الحديث حسن لان له شاهدا من حديث ابن عباس كما فی الترغيب (۱۴٦/۴) ومجمع الزوائد (۳۰۴/۲).

۱۵۷۰ (۴۹) – وَعَنْ عَامِرٍ الرَّامِ قَالَ: ذَكَرَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ الْأَسْقَامَ فَقَالَ: «إِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا أَصَابَهُ السَّقَمُ ثُمَّ أَعْفَاهُ اللهُ مِنْهُ كَانَ كَفَّارَةً لِمَا مَضٰى مِنْ ذُنُوْبِهٖ وَمَوْعِظَةً لَهٗ فِيْمَا يَسْتَقْبِلُ. وَإِنَّ الْمُنَافِقَ إِذَا مَرِضَ ثُمَّ أُعْفِيَ كَانَ كَالْبَعِيْرِ عَقَلَهٗ أَهْلُهٗ ثُمَّ أَرْسَلُوْهُ فَلَمْ يَدْرِ لِمَ عَقَلُوْهُ وَلِمَ أَرْسَلُوْهُ». فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللهِ وَمَا الْأَسْقَامُ؟ وَاللهِ مَا مَرِضْتُ قَطُّ فَقَالَ: «قُمْ عَنَّا فَلَسْتَ مِنَّا». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

ترجمه : او عامر الرام فرمائی چه رسول الله ﷺ د بیماریانو تذکره اُوکړه وے فرمایل : «یقیناً مؤمن ته چه کله بیماری اُورسی بیا ئے الله تعالیٰ د هغے بیماریٔ نه روغ کړی نو دا به ددهٔ د تیر شوی گناهونو دپاره کفاره کیږی او په راتلونکی زمانه کښې به ددهٔ دپاره نصیحت کیږی۔ (یعنی بیماری به دا بیداروی نو آینده به د گناهونو نه بچ کیږی)۔ او کله چه منافق مریض شی او بیا هغه د بیماریٔ نه روغ شی نو د هغه مثال د هغه اُوښ په شان دے چه خپل مالك تړلے وی بیا ئے ئے پریخے وی نو هغه نهٔ پوهیږی چه دا ئے ولے تړلے وو او ولے ئے پریخودو؟»۔ (پدے آوریدو سره یو سړی اُووئیل : اے د الله رسوله! بیماریانے څه شے دی؟ قسم په الله زهٔ خو هیڅ کله هم نهٔ یم بیمار شوے۔ نبی ﷺ اُوفرمایل : «زمونږ د خوا نه پاڅیږه! تهٔ زمونږ نه نهٔ ئے»۔ (ابوداودؒ)۔

**تعارف د عامر الرام** : دهٔ رام پدے وجه وائی چه دا په عربو کښې دیر ویشتونکے وو۔ نو رام په اصل کښې رامی دے۔ او دا صحابی دے۔ صرف امام ابوداود ئے روایت نقل کړیدے۔

**تشریح** : مطلب د حدیث دا دے چه مؤمن د بیماری نه د صحت موندلو نه روستو بیدار شی او دا فکر اُوکړی چه زهٔ الله تعالیٰ ولے بیمار کړے وم، ددے سبب زما گناهونه دی نو د تیر شوی گناهونو نه توبه او استغفار طلب کړی او آینده کښې قصد اُوکړی چه گناهونه به نهٔ کوی۔ او منافق په بیماریٔ باندے هم نهٔ سمیږی، نصیحت نهٔ اخلی۔ او په خپلو گناهونو نهٔ پښیمانه کیږی چه توبه اُوباسی۔

**فَلَسْتَ مِنَّا** : یعنی ته زمونږ د طریقے والو نه نهٔ ئے چه هیڅ مصیبت او تکلیف او مرض تا ته نهٔ در رسیږی او د مؤمن شان خو به دا وی چه هغه ته به تکلیفونه رسیږی چه په دنیا کښې د گناهونو نه پاك شی۔ یعنی ته پوره مؤمن نهٔ ئے، او تا له خطره پکار ده۔ بعض وائی : ظاهر دا ده چه دا سړے منافق وو۔

**درجة الحدیث**: اسناده ضعیف : (ابوداود (۳۰۸۹) وفی الاسناد ابومنظور رجل من اهل الشام عن عمه و کلاهما مجهول کما فی التقریب)

۱۵۷۱ (۵۰) - وَعَنْ أَبِیْ سَعِيْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«إِذَا دَخَلْتُمْ عَلَى الْمَرِيْضِ فَنَفِّسُوْا لَهُ فِيْ أَجَلِهِ فَإِنَّ ذٰلِكَ لَا يَرُدُّ شَيْئًا وَيَطِيْبُ بِنَفْسِهٖ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

ترجمه: او ابوسعيد ﷺ فرمائي رسول الله ﷺ فرمايلي دي :« كله چه تاسو د مريض خواله ورشئ نو د هغه د مرگ په باره كښ د هغه غم لرے كړئ (يعني تسلي وركړئ چه فكر او غم مۀ كوه زر دے چه روغ بـه شـے او ستا عـمـر بـه اُوږد وي) ځكه چه دا (تسلي اگركه) هيڅ شے (يعني تـقـديـر) نـۀ شي روستو كولے (ليكن) د مريض زړۀ (ضرور) خوشحالوي»۔ (ترمذیؒ، ابن ماجهؒ) امام ترمذیؒ فرمائي چه دا حديث غريب دے۔

**تشريح : فَنَفِّسُوْا لَهُ**: تـنـفـيـس پـه اصل كښ تفريج او مريض نه مصيبت او غم لرے كولو ته وئيلے شي دلته متعدي شويدے په في سره ځكه چه دا متضمن دے معني د طمع لره يعني دۀ له طمع وركړئ په اُوږدوالي د عمر كښ چه ان شاء الله بنه ئې، عمر دے دنيا كښ شته۔ او الله تعالیٰ بـه دے روغ كړي۔ يا ورتـه دعـا اُوكـړي چـه الله تـعـاليٰ دے ډيـر عـمـر دركړي، الله تعاليٰ دے شِفاء دركړي۔

پـدے حـديـث كـښ د مؤمن سړي د زړۀ خيال ساتلو اهميت ذكر شويدے چه مؤمن ته به داسے خبرے كولے شي چه د هغه زړۀ پرے خوشحاليږي او د هغه زړۀ به نۀ خوږے كوي۔ ددۀ په خبرو بـانـدے اگركـه څـه تـقـدير نۀ بدليږي ليكن مؤمن پرے خوشحاليږي او طبيعت ئې تازه كيږي او كيـدے شي چـه دا خوشحالي ئې سبب د صحت شي او مرض ئې كم شي۔ مخكښ تير شو چه دا قسم خبره هر مؤمن ته كولے شئ ليكن هوښيار عاقل ته د مرض سخت والي هم بيانولے شي لكه صحابه كرامو رسول الله ﷺ ته وئيلي وو (لتوعك وعكا شديدا) ستا تبه ډيره سخته ده۔

**يُطَيِّبُ** : مخفف او مشدد دواړه جائز دے۔

**بِنَفْسِهٖ**: كـه يطيب مشدد شي نو بيا نفسه مفعول دے او باء زائده ده۔ او كه يطيب مخفف شي نو باء د تعديت دپاره ده او نفسه مفعول د يطيب دے۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : ترمذی (۲۰۸۷) وقال حديث غريب وابن ماجه (۱٤۳۸) وفی اسناده موسى بن محمد بن ابراهيم التيمي وهو منكر الحديث كما قال الحافظ فی التقريب (۲/۲۸۷)

---

۱۵۷۲ (۵۱) - وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَنْ قَتَلَهٗ بَطْنُهٗ لَمْ

يُعَذَّبُ فِيْ قَبْرِهٖ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ : هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

**ترجمه :** او سلیمان بن صرد ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : ((چا له چه خیته قتل کړی (یعنی د خیټې د بیمارئ په وجه وفات شی) نو هغه ته به په قبر کښې عذاب نشی ورکولے))۔ (احمدؒ، ترمذیؒ) او ترمذیؒ وئیلی دی : چه دا حدیث غریب دے۔

**تعارف د سلیمان بن صرد** ابن الجون الخزاعی ابو مطرف الکوفی صحابی دے۔ ابن عبد البرؒ وائی : دا غوره فاضل سړے وو او په جاهلیت کښې ئې یَسَار نوم وو نبی ﷺ ورله سلیمان نوم کیخودو، په کوفه کښې اُوسیدلے دے او ډیر عمرئے وو او اُوچت شرافت او مرتبه ئې لرله، خپل قوم کښې ئې ډیره دبدبه وه د علی ﷺ سره جنګ صفین کښې شریك وو او دا هغه شخص وو چه حسین ﷺ ته ئې خط لیکلے وو چه ته کوفے ته راشه خو کله چه هغه راغلو نو دهٔ ورسره په جنګ کښې ملګرتیا اُونکړه خو کلهٔ چه حسین شهید شو نو دا او مسیب بن نجیة الفزاری سره د نورو ملګرو نه پښیمانه شو چه مونږ د حسین ملګرتیا ولے اُونکړه بیا ئې اُووئیل: چه زمونږ د توبے صورت صرف دا کیدے شی چه مونږ د حسین قصاص طلب کړو نو راووتل او نخیله مقام کښې جمع شو او سلیمان ئې مشر مقرر کړو او دهٔ ته ئې د امیر التوابین نوم ورکړو بیا روان شو تر دے چه د عبید الله بن زیاد د ابتدائی فوج سره په څلور زره کسانو کښې په عین الوردة مقام ملاؤ شو نو سلیمان او مسیب په ربیع الآخر (٦٥) کښې قتل کړے شو او دهٔ او د مسیب دواړو سرونه مروان بن الحکم ته راوړے شو۔ او د سلیمان عمر (۹۳) کاله وو۔

**تشریح :** د خیټې په مرض کښې د مړ کیدونکی دپاره دا اجر پدے وجه دے چه ددے مرض د سختئ په وجه ګناه لرے کیږی او دا شهید مری۔ او د صحیح مسلم په حدیث کښې دی چه شهید ته هر شے معاف کیږی مګر قرض (یعنی د بندګانو حقوق) نهٔ معاف کیږی۔ او د خیټې مرض اسهال (دستونه) نفاس وغیره بیماریانو ته شاملیږی۔

**فِيْ قَبْرِهٖ :** علامه عبد الروف مناویؒ فرمائی : هرکله چه دے انسان ته په قبر کښې عذاب ملاؤ نشی نو روستو منازلو د آخرت کښې به هم ورته عذاب نهٔ وی ځکه چه دا اول منزل دے د منازلو د آخرت نه، که دے کښې آسانی اُوشی نو ما بعد منازلو کښې به هم آسانی وی۔

**درجة الحديث:** اسناده صحيح : (ابوداود الطيالسی (۱۲۸۸) واحمد (٤/۲٦۲) والترمذی (۱۰٦٤) ورجاله ثقات الا ابا اسحاق السبيعی كان اختلط لكن اسناده الآخر عند احمد (٤/۲٦۲) صحيح۔

## الفصل الثالث

۱۵۷۳ (۵۲) – عَنْ أَنَسٍ قَالَ: كَانَ غُلَامٌ يَهُوْدِيٌّ يَخْدِمُ النَّبِيَّ ﷺ فَمَرِضَ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ ﷺ

يَعُوْدُهُ فَقَعَدَ عِنْدَ رَأْسِهِ فَقَالَ لَهُ : « أَسْلِمْ ». فَنَظَرَ إِلَى أَبِيهِ وَهُوَ عِنْدَهُ فَقَالَ: أَطِعْ أَبَا الْقَاسِمِ. فَأَسْلَمَ. فَخَرَجَ النَّبِيُّ ﷺ وَهُوَ يَقُوْلُ: « اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ أَنْقَذَهُ مِنَ النَّارِ ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** : انس ﷺ فرمائي : يو يهودي غلام به د نبي كريم ﷺ خدمت كولو نو هغه بيمار شو، رسول الله ﷺ د هغه بيمارپرسئ له راغلو، او د هغه د سر په خوا كښې كيناستو، او هغه ته ئې اُوفرمايل : « اسلام راوړه ». نو هغه خپل پلار ته اُوكتل چه د هغه په خوا كښې وو. پلار ورته اُووئيل : د ابوالقاسم (رسول الله ﷺ) حكم اُومنه، نو هغه هلك په اسلام مشرف شو. رسول الله ﷺ بهر را اُووتو او دا ئې وئيل :« حمد اوثنا ده هغه ذات لره چه دا هلك ئې (د اسلام په وجه) د اُور نه خلاص كړو». (بخاري).

**تشريح** : ددې يهودي غلام نوم نۀ دې معلوم. بعض تاريخي رواياتو نه معلوميږي چه ددۀ نوم عبد القدوس وو.

**فوائد الحديث** : (۱) ددې حديث نه معلوميږي چه د عيادت د آدابو نه يو ادب دا دې چه د مريض د سر په خوا كښې كيني.

(۲) دارنګه د كافر ذمي نه خدمت اخستل جائز دي.

(۳) دارنګه كه ذمي كافر بيمار شي نو د هغه عيادت هم جائز دې خاصكر چه كله پكښې دعوت هم مقصود وي. ځكه چه څوك د مريض تپوس له لاړ شي نو پدې سره د مريض انتهائي دلجوئي كيږي او دا د دعوت دپاره ښه نسخه ده.

(٤) كه چا تا سره احسان كړې وي نو د هغه سره لين دين او تعلق برقرار ساتل بهترين اخلاق دي، داسې نۀ چه يو انسان تاسره ښائسته سلوك كوي او ته هغه پريدې او په بيمارئ كښې ئې هيڅ تپوس هم نۀ كوې. دا پيغمبري اخلاق نۀ دي.

(۵) حديث دليل دې چه كه نا بالغ انسان اسلام راوړي نو هغه به مقبول وي.

(۶) دارنګه يو ماشوم عقلمند وي او په حالت د كفر كښې مړ شي نو هغه له به عذاب وركولې شي. بعض وائي دا حديث په هغه وخت كښې وو چه الله تعالى خپل نبي ته دا اطلاع نۀ وه وركړې چه د مشركانو ماشومان به هم جنت ته داخليږي. نو ځكه ئې داسې اُوفرمايل : چه الله تعالى د اُور نه بچ كړو د اسلام په وجه. او كه چرې دا حديث د دغه اطلاع نه روستو وئيلې شوې وي نو بيا د نار نه مراد كفر دې ځكه چه كفر سبب د اُور دې. نو مطلب به دا وي چه الله تعالى لره حمد دې

چه د کفر نه ئې بچ کړو کوم چه سبب د اُور دے ځکه که دا په کفر باندے باقې پاتے شوے وے او پدے حالت کښې بالغ شوے وے او بیا پرے وفات راغلے وے نو اُور ته به تللو اُوس چه ئې ایمان راوړو نو که وفات شی د اُور نه به بچ وی۔ والله تعالیٰ اعلم وعلمه اتم۔ او همدا ظاهره ده چه د نار (اُور) نه مراد کفر دے۔

(۷) یهودو ته هم دا معلومه وه چه دا رسول الله ﷺ حق نبی دے لیکن د دنیا پرستئ د وجه نه ئې ایمان نهٔ راوړو اُوګوره دے یهودی د خپل ځوی خیر خواهی اُوکړه لیکن خپله ئې د ضد د وجه نه ایمان رانهٔ وړو۔ هائے افسوس! هلاکت دے وی ضد او دنیا پرستئ لره چه انسان همیشه دپاره د هلاکت کندو ته رسوی۔

---

١٥٧٤ (٥٣) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَنْ عَادَ مَرِيْضًا نَادٰى مُنَادٍ فِي السَّمَآءِ: طِبْتَ وَطَابَ مَمْشَاكَ وَتَبَوَّأْتَ مِنَ الْجَنَّةِ مَنْزِلًا». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

---

ترجمه : او ابو هریره ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «څوك چه د یو بیمار تپوس کوی په آسمان کښې یو آواز کونکے (ملائك) آواز کوی : ستا دپاره دے په دنیا او آخرت کښې خوشحالی وی، او ستا تلل دے مزیدار وی او تهٔ دے په جنت کښې یوه لویه درجه او مرتبه حاصله کړے»۔ (ابن ماجة)۔

**تشریح** : ددے حدیث نه دا معلومیږی چه عیادت دپاره پیدل تلل افضل دی، اګرکه اصل مقصد خو د مریض عیادت ته ځان رسول دی که هغه په هره طریقه سره وی لیکن که پیاده لاړ شی دیر ثواب دے۔

په یو بل روایت د ترمذی کښې ورسره د ورور مسلمان ملاقات دپاره تللو هم دا فضیلت خودلے شویدے۔ چه ملائك ورته آواز کوی چه ستا حال دے ښه وی او ستا دا مزل دے هم ښه وی یعنی الله تعالیٰ دے پدے مزل کولو کښې دیر ثواب درکړی۔ نو مسلمان چه کله عیادت له ځی یا د مسلمان ملاقات له ځی نو هغه له دا یقین پکار دے چه اُوس به ما ته د آسمان د طرف نه ملائك آواز کوی او ددے نیکئ احساس دے اُوکړی نو دهٔ ته به پدے تللو کښې دیره مزه محسوسه شی۔

**تَبَوَّأْتَ** : (اَیْ تَهَیَّأْتَ) یعنی ته دے ځان له د جنت نه عظیمه مرتبه یا کور تیار کړے۔ منزل په معنیٰ د (مَنْزِلَةً عَظِیْمَةً) سره هم دے یعنی لویه مرتبه او په معنیٰ د کور سره هم راځی۔ یعنی الله تعالیٰ دے تاله پدے کار باندے اُوچته مرتبه په جنت کښې درکړی او اُوچت کور دے الله تعالیٰ

نصيب کړه۔

بعض علماؤ وئیلی دی چه (طِبْتَ) کښې معنیٰ دا ده چه په دنیا کښې دې ستا ژوند ښه شي او د (طَابَ مَمْشَاكَ) مزل ښه والے کنایه ده ددې نه چه ستا مزل پدې وجه ښه دے چه ته د آخرت په لاره روان ئې، ځان د گنده اخلاقو نه ساتې او په ښائسته اخلاقو ئې ښائسته کوې۔ او تَبَوَّأْتَ کښې دعاء ده د هغه دپاره چه په آخرت کښې دې هم تا له ښائسته ژوند درکړی۔

او دا اگرکه ظاهر کښې جملې خبرې دی لیکن دا په اصل کښې دعاگانې دی۔ او په صورت د جمله خبریه ئې ذکر کړیدی پدې کښې اظهار دے دپاره د حرص د واقع کیدو ددې یعنی گویا کښې دا فضیلتونه تا ته د مخکښې نه حاصل شویدی۔ او دارنگه پدې کښې ښائسته فال نیول دی۔ لکه د رَحِمَكَ الله او عَصَمَكَ الله په شان۔

**درجة الحديث:** اسناده حسن :ابن ماجه (١٤٤٣) وفيه ابو سنان القسملي واسمه عيسى بن سنان لين كما في التقريب والميزان) لكن اخرج نحوه الترمذي والمنذري وقال الالباني في صحيح الترغيب (٢٥٧٨) والصحيحة (٢٦٣٢) اسناده صحيح۔

---

**١٥٧٥ (٥٤) — وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: إِنَّ عَلِيًّا خَرَجَ مِنْ عِنْدِ النَّبِيِّ ﷺ فِيْ وَجَعِهِ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ فَقَالَ النَّاسُ: يَا أَبَا الْحَسَنِ! كَيْفَ أَصْبَحَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ؟ قَالَ: أَصْبَحَ بِحَمْدِ اللهِ بَارِئًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.**

**ترجمه :** او ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي: علي ﷺ د نبي ﷺ د خوا نه په هغه بیمارئ کښې رابهر شو په کوم کښې چه وفات شو نو خلقو د هغه نه تپوس اُوکړو: اے ابو الحسن! رسول الله ﷺ څنگه سبا کړو؟ هغوی اُوفرمایل: د الله شکر دے نبي ﷺ د بیمارئ نه د ښه کیدونکي په شان سبا کړو۔(یعنی شکر دے چه نبي ﷺ نن ښه دے)۔ (بخاري)۔

**تشريح : وَجَعِهِ** : ددې نه مراد زمانه د مرض د رسول الله ﷺ ده۔

**بَارِئًا:** دا اسم فاعل دے د بَرَأَ الْمَرِيْضُ نه په معنیٰ د مرض نه رابیداریدو سره۔ نو د بارئاً معنیٰ ده قَرِيْبًا مِنَ الْبُرْءِ۔ یعنی نزدې دے جوړیدو ته او د علي ﷺ دا جواب د هغه د گمان مطابق وو چه هغه به پوهه شوے وی چه رسول الله ﷺ زر روغیدونکے دے۔ یائې په طریقه د تفاؤل (فال نیولو) سره اُووئیل چه الله تعالیٰ به ئې روغ کړی۔

یا د بارئاً معنیٰ ده جوړدے د هر هغه پریشانتیا او غفلت نه چه مریض ته راپیښې کیږی۔ یعنی د جزع فزع نه روغ دے۔ ددې حدیث نه معلومه شوه چه د مریض د حال تپوس په (کیف اصبح)

لفظ سره او د هغې جواب په (أَصْبَحَ بِحَمْدِ اللهِ بَارِئاً) سره مستحب دے۔ او ددے نه دا هم اخستے کيږي چه که يو بيمار ډير سخت وي او تا نه څوك د هغه د حال تپوس اُوکړي نو په ښائسته او خوشحالونکو او اميد ورکونکو الفاظو سره جواب ورکول پکار دي۔ والله اعلم۔

د مريض د عيادت ډير صورتونه دي زمونږ پدے زمانه کښې که مريض ته څوك نشي رسيدلے د لرے والي يا د نورو موانعو د وجه نه نو که په موبائل (ټيلفون) سره د هغه تپوس اُوکړي نو ان شاء الله تعالیٰ چه دۀ ته به هم د عيادت اجر ملاوېږي۔

بِحَمْدِ اللهِ : يعني مشتمل دے د الله تعالیٰ په حمدونو او د الله تعالیٰ حمدونه کوي۔ يا الله لره حمد دے چه هغه ئے روغ کړيدے۔

---

١٥٧٦ (٥٥) - وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ قَالَ: قَالَ لِي ابْنُ عَبَّاسٍ ﷺ أَلَا أُرِيكَ امْرَأَةً مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ؟ فَقُلْتُ: بَلَى. قَالَ: هٰذِهِ الْمَرْأَةُ السَّوْدَاءُ أَتَتِ النَّبِيَّ ﷺ فَقَالَتْ: إِنِّي أُصْرَعُ وَإِنِّي أَتَكَشَّفُ فَادْعُ اللهَ تَعَالٰى لِي. قَالَ «إِنْ شِئْتِ صَبَرْتِ وَلَكِ الْجَنَّةُ وَإِنْ شِئْتِ دَعَوْتُ اللهَ تَعَالٰى أَنْ يُعَافِيَكِ» فَقَالَتْ: أَصْبِرُ فَقَالَتْ: إِنِّي أَتَكَشَّفُ فَادْعُ اللهَ أَنْ لَا أَتَكَشَّفَ فَدَعَا لَهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عطاء بن ابي رباح وائي، ما ته ابن عباس رضی الله عنهما اُووئيل : آيا زۀ تا ته د جنتيانو نه يوه ښځه نۀ دربښايم؟ ما اُووئيل : ولې نۀ۔ وے فرمايل : دا توره ښځه نبي کريم ﷺ ته راغلے وه دے اُووئيل : په ما باندے ميرګي راځي او زۀ (د ميرګو په حالت کښې) ځان برېنډوم۔ ما دپاره د الله نه دعا اُوغواره (چه ما ته شفاء راکړي) نبي ﷺ اُوفرمايل :« که تۀ غواړے صبر اُوکړه او ستا دپاره به جنت وي او که غواړے نو زۀ به د الله نه دعا اُوکړم چه الله تعالیٰ تا ته شفاء درکړي»۔ ښځے عرض اوکړو چه زۀ به صبر کوم۔ او وے وئيل چه زۀ ځان ښکاره کوم نو د الله نه اُوغواړۀ چه زۀ ځان د برېنډولو نه بچ کړم۔ نو نبي ﷺ هغے دپاره دعا اُوکړه۔ (بخاري ومسلم)۔

**تشريح** : ددے ښځے نوم سُعَيْرَه دے او د بنو اسد قبيلے نه ده۔ کنيه ئے ام زفر ده۔ او د ابن سعد د روايت نه معلوميږي چه دا ښځه د خديجة الکبریٰ رضی الله عنها ماشطه (سر ګمنزونکے) وه۔

إِنِّي أُصْرَعُ : صيغه د مجهول ده يعني ما باندے ميرګي راځي۔

صرع : (ميرګي) (عِلَّةٌ تَمْنَعُ الْأَعْضَاءَ الرَّئِيسِيَّةَ عَنِ انْفِعَالِهَا مَنْعًا غَيْرَ تَامٍّ) يوه بيماري ده چه اعضاء رئيسي (مرکزي اندامونه) د خپل انفعال (اثر قبلولو) نه منع کوي ليکن پوره طريقے سره منع نۀ

وي او ددې سبب دا دې چه سخته هواء د دماغو په منافذ او لارو کښې بنده شي۔ یا ردي بخار ورته د بعض اعضاء (اندامونو) نه پورته شي۔ ددې پسې کله په اندامونو تشنج بیماري راشي چه بیا انسان نیغ نشي پاتې کیدې بلکه راغورزیږي او خولې نه ئې زګونه روان شي ځکه چه دغه رطوبت سخت شوې وي۔

ددې علامه دا وي چه کله انسان خفه شي نو دا حالت پرې راځي، په زړه چك لګوي، رنګ ئې زیړ شي، خوله ئې زګونه شروع کړي، او په وروکوالي کښې دیر وي چه څومره انسان غټیږي دا ترې کمیږي۔

دا میرګي بیماري کله د شریر پیرانو د طرف نه وي چه بعض شکلونه د انسانانو ورته ښائسته ښکاره شي یا هغه ته ضرر ورکول ئې مقصد وي نو د هغه په بدن کښې ورداخل شي او په هغه باندې بیهوشي راولي۔

بعض طبیبانو ددې نه انکار کړیدې لیکن حافظ ابن القیمؒ په زاد المعاد (٤/ ٦٠) کښې په هغې باندې دیر مزیدار رد کړې۔ هغې ته رجوع اُوکړه۔

کوم میرګي چه د پیرانو په تاثیر سره وي نو د هغې علاج یو د مریض د طرف نه دې چه مریض ددې ارواح خبیثه و خالق ته پوره متوجه شي او ددې د شر نه پناهي طلب کړي توحید ئې په زړهٔ کښې راشي او په الله تعالیٰ ئې توکل پیدا شي، تقویٰ او توجه ئې پیدا شي نو دا هم یو قسم مقابله کوي د شر د دغه ارواح خبیثه و سره۔ ځکه چه کله د انسان عقیده خرابه وي او بې نمازه او شري وي او خپل نفس ئې شریر او خبیث وي نو په هغه باندې دغه ارواح خبیثه هم زیات تاثیر کوي او دویم قسم د معالج د طرف نه علاج دې هغه دا چه په دغه مریض باندې شرعي دمونه واچولې شي لکه حافظ ابن قیمؒ د خپل شیخ (شیخ الاسلام ابن تیمیةؒ) نه تجربې ذکر کړیدي چه هغه به په ﴿ أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا ﴾ الآیة سره پیران ویستل او دغه شان هغه به په آیة الکرسي باندې حکم کولو چه علاج کونکې دې هم زیات وائي او مریض هم۔ دغه شان قراءت د آخري معوذتین سورتونو۔

حافظ ابن قیمؒ دا هم ذکر کړي چه په څا باندې میرګي وي او عمر ئې پنځه ویشت کاله وي او خاصکر دا دماغي میرګي وي نو غالباً ددې روغیدل مشکل وي (یعني عادةً اګر که الله کولې شي چه روغ ئې کړي ځکه چه حدیث دې (هره بیماري چه الله نازله کړې نو د هغې دپاره ئې شفاء هم نازله کړې)۔ دغه شان که څا باندې د اول نه وي تر ددې زمانې پورې نو ددې روغیدل هم مشکل دي۔ او د دغه زنانه هم کیدې شي چه دهمدا قسم میرګي وو نو رسول الله ﷺ ورسره وعده اُوکړه

چه کـه پدے مرض باندے دے صبر اوکړو نو جنت به درته ملاؤ شي او د ځان نه ښکاره کولو دعا ئے ورلـه اُوکړه او اختیار ئے ورکړو پـه مابین د صبر کولو او جنت کښې او په مابین د دعاء د شفاء کولو کښې په غیر د ضمان د جنت نه۔ نو هغې صبر او جنت غوره کړو۔ انتهیٰ۔

**وَلَكِ الْجَنَّةُ** : پـه روایتِ د احـمـدؒ کښې ورسره دا زیادت راغلے دے : (وَلَاحِسَابَ عَلَيْكِ) یعنی بے حسابه بے کتابه به جنت ته داخله شې۔

**فوائد الحدیث** : (۱) دے حـدیـث نه ددے ښځې انتهائي لوئي همت او یقین په آخرت باندے مـعـلوم شو چه د دنیا په مصیبت صبر کوی او آخرت غوره کوی۔ او دا کار ډیر یقین غواړی۔ او دیته زهد وائي چه مصیبت دے وی خو چه جنت ملاؤ شي۔

(۲) رسـول الله ﷺ دے تـه ولے د صبر تـلـقین ورکړو؟ نو وجه دا ده چه رسول الله ﷺ به خپل صحابـه کرامؓ په اُوچت هـمـت باندے اموخته کول ځکه اُوچت همت ساتلو سره انسان ته ډیر خیـرونـه او فـائدے حاصلیږی، هر عالي مقصد ته انسان بغیر د عالي همت نه نشي رسیدلے او د همت اهـمیت ډیره لویه موضوع ده۔ هر انسان چه کوم اعلیٰ مقصد ته رسیدلے دے نو د هغې وجه همدغه اُوچت همت دے۔

(۳) دغـه شان اشاره وه چه د مرض ډیر لوئي اجر دے چه ددے اجر په وجه دے ته بغیر د حساب کتاب نه جنت ملاؤ شي نو دا به ډیره بهتره وی۔ نو د هغې دپاره ئے خیر خواهي طلب کړه۔

(٤) دا حـدیـث دلیـل دے چه پـه مـصیبت او مـرض باندے صبر کول او په تقدیر باندے راضي کیـدلـو سره عـلاج او دوائي پریـخـودل جائز دی۔ بلکه د حدیث ظاهری مفهوم خو پدے خبره دلالـت کـوی چه په صبر او رضاء سره هـمیشـه پـه مرض کښې مبتلا پاتے کیدل په صحت او عـافیـت کـښې د اُوسیدو نه بهتر دی۔ لیکن دا په نسبت د بعض افرادو دے یعني دا د هغه شخص دپاره افضل دی چه د هغه مرض مخلوق ته د نفع ورکولو نه مانع نه وی۔ دارنګه چه هغه انسان کښې صـلاحیـت د صبر وی او که بے صبره وی او په الله تعالیٰ باندے ئے تهمت پیدا کیږی نو بیا د هغه دپاره علاج کول ضروری دی۔

(۵) دارنـګـه ددے حدیث ظاهری مفهوم پدے خبره هم دلالت کوی چه علاج معالجه پریخودل افـضـل دی اګر که علاج کول د ابوداؤد د حدیث مطابق سنت دی چه په هغې کښې داسے دی : چه صحابه کرامؓ رسول الله ﷺ ته عرض اُوکړو چه : آیا مونږ (په بیماریٔ کښې) دوائي اُوکړو۔

[نَعَمْ عِبَادَ اللّٰهِ ! تَدَاوَوْا، فَإِنَّ اللّٰهَ لَمْ يَضَعْ دَاءً إِلَّا وَضَعَ لَهُ شِفَاءً غَيْرَ دَاءٍ وَاحِدٍ الْهَرَمُ]

(احمد، ترمذی، ابو داود بسند صحیح مشکاة کتاب الطب والرقی)

(آؤ ! د الله تعالیٰ بندګانو! دوائی کوئ ځکه چه الله تعالیٰ هیڅ یوه بیماری نهٔ ده پیدا کړې مګر هغې دپاره ئې شفاء او علاج هم پیدا کړے سویٔ د یوے بیماریٔ نه چه هغه بوډاوالے دے)۔

(٦) علماؤ وئیلی دی چه علاج معالجه د توکل منافی نهٔ دی ځکه چه علاج معالجه صرف د اسبابو په درجه کښې دی، همدا وجه ده چه رسول الله ﷺ به پخپله هم علاج کولو حال دا چه رسول الله ﷺ خو سید المتوکلین دے لیکن ددے باوجود ظاهری علاج پریخودل او الله تعالیٰ ته ځان سپارل د خاص بندګانو (مقربینو) دپاره باعث د فضیلت دے۔ لکه نبی ﷺ او ابوبکر صدیقؓ به کله نا کله علاج پریخودلو۔

(٧) دے حدیث نه دا فائده هم معلومه شوه چه د تولو مرضونو علاج په دعاء سره او په التجاء الی الله سره ډیره فائده منه ده د هغه علاج نه چه په ظاهری دوایانو سره اُوشی۔ او تاثیر د دعاء او تضرع الی الله په بدن کښې زیات دے د تاثیر د ظاهری دوایانو نه لیکن ددے دپاره شرط دا دے چه بیمار به صحیح طریقے سره الله تعالیٰ ته متوجه شی او خپله لاره به نیغه کړی او دوائی کونکی کښې به هم پوره توجه او اخلاص او تقویٰ وی۔

(٨) اتنی اتکشف نه معلومه شوه چه دے زنانه په میرګی بیماری باندے صبر اُوکړو لیکن بل طرف ته دے به په حالت د میرګو کښې ځان بربنډولو او پدے باندے صبر کول خو بے حیائی ده نو ځکه ئې دا مطالبه اُوکړه چه د الله تعالیٰ نه اُوغواړه چه زهٔ پدے مرض کښې ځان بے پردے نهٔ کړم۔ نو رسول الله ﷺ ورله دعا اُوکړه۔

(٩) ددے حدیث نه بعض علماؤ دا استدلال کړیدے چه د زنانه مخ عورت نهٔ دے ځکه چه دلته عبد الله بن عباسؓ عطاء بن ابی رباحؒ ته دغه ښځه خودلے ده او د هغے د مخ رنګ ئې هم لیدلے دے چه توره ښځه وه۔ او د عطاءؒ نه نقل دی چه ما دغه ام زفر اُولیدله اُوږده ښځه وه او د کعبے د غلاف پورے انختے وه۔(شرح ابن بطال) لیکن که فتنه پیدا کیدله نو بیا به د زنانه مخ عورت وی۔ لکه دا مسئله ددے کتاب په (٢/) کښې اُوګوره۔

---

١٥٧٧ (٥٦) – وَعَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ: إِنَّ رَجُلًا جَاءَهُ الْمَوْتُ فِيْ زَمَنِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَقَالَ رَجُلٌ: هَنِيْئًا لَهُ مَاتَ وَلَمْ يُبْتَلَ بِمَرَضٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «وَيْحَكَ وَمَا يُدْرِيْكَ لَوْ أَنَّ اللهَ ابْتَلَاهُ بِمَرَضٍ فَكَفَّرَ عَنْهُ مِنْ سَيِّئَاتِهِ». رَوَاهُ مَالِكٌ مُرْسَلًا.

---

**ترجمه :** او یحیی بن سعیدؒ فرمائی : د رسول الله ﷺ په زمانه کښې یو سړی ته مرګ راغلو نو یو بل سړی (د هغه په باره کښې) اُووئیل : مبارك وې وی دۀ لره چه مړ شو او په هیڅ بیمارئ کښې اخته نۀ شو۔ (پدې آوریدو سره) رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «په تا باندې افسوس دې، تا ته څه معلومه ده ؟ (یعنی بغیر د مرض او بیمارئ نه ناڅاپی مرګ بنه مۀ ګڼړه) که الله تعالیٰ دۀ لره په مرض کښې مبتلا کړې وې (بیا ئې وفات کړې وې نو د مرض په بدله کښې به ئې) ددۀ ګناهونه لرې کړی وې»۔ (دا روایت امام مالك په طریقه د ارسال نقل کړې)۔

**تعارف د یحیی بن سعید:** یحیی بن سعید دا مشهور امام او قاضی دې، ثقه ثبت دې د صغار التابعین نه دې، د انس بن مالك، او سائب بن زید شاګرد دې انصاری مدنی دې۔ وفات شویدې په سنه (۱٤۳ هـ) کښې۔ بعض وائی : په سنه (۱٤٤ هـ) کښې۔ مصنف فرمائیلی دی : دا د حدیث او فقه د امامانو نه لوئی امام وو، عالم، ورع، زاهد صالح مشهور بالفقه والدین دې۔

**تشریح :** جَاءَهُ الْمَوْتُ :یعنی ناڅاپی وفات شوې وو۔

وَيْحَكَ : دا کلمه د ترحم او توجع (درمند کیدو) ده د هغه چا دپاره استعمالیږی چه په داسې هلاکت کښې واقع شی چه مستحق ئې نۀ وی۔ او پدې سړی باندې ئې ځکه ترحم اُووئیلو چه هغه معذوره وو ځکه د هغه ګمان وو چه مرض باندې نۀ مبتلا کیدل به عزت وی۔ نو معنیٰ د ویحك دا شوه (په تا خفګان پکار دې)۔

وَمَا يُدْرِيكَ : یعنی ته څه پوهه کړې ئې چه مرض نۀ راتلل خیر او عزت دې۔

لَوْ أَنَّ اللَّهَ : لو تمنائیه دې جزاء نۀ غواړی۔ یا لو امتناعیه دې جزاء ئې محذوفه ده یعنی لو ابتلاهُ اللهُ لَكَانَ خَيْرًا فَكَفَّرَ۔

حدیث دلیل دې چه په مصائبو باندې ابتلاء (مبتلا کیدل) الٰهی طب دې چه پدې سره د انسان د ګناهونو د مرضونو علاج کوی۔

**درجة الحدیث :** اسناده مرسل صحیح : (مالك فی الموطأ (۲/۹٤۲)

---

۱۵۷۸ (۵۷) – وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ وَالصُّنَابِحِيِّ أَنَّهُمَا دَخَلَا عَلَى رَجُلٍ مَرِيضٍ يَعُودَانِهِ فَقَالَا لَهُ: كَيْفَ أَصْبَحْتَ قَالَ أَصْبَحْتُ بِنِعْمَةٍ. فَقَالَ لَهُ شَدَّادٌ: أَبْشِرْ بِكَفَّارَاتِ السَّيِّئَاتِ وَحَطِّ الْخَطَايَا فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ: «إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يَقُولُ إِذَا أَنَا ابْتَلَيْتُ عَبْدًا مِنْ عِبَادِي مُؤْمِنًا فَحَمِدَنِي عَلَى مَا ابْتَلَيْتُهُ فَإِنَّهُ يَقُومُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذٰلِكَ كَيَوْمَ

وَلَكِنَّهُ أُمُّهُ مِنَ الْخَطَايَا ». وَيَقُولُ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالَى: أَنَا قَيَّدْتُ عَبْدِيْ وَابْتَلَيْتُهُ فَأَجْرُوْا لَهُ مَا كُنْتُمْ تُجْرُوْنَ لَهُ وَهُوَ صَحِيْحٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه :** او شداد بن اوس او صنابحي رضي الله عنهما دواړه په يو بيمار سړي ورداخل شو چه د هغه بيمار پرسي ئې كوله۔ دواړو هغه ته اُووئيل : څنګه دې سبا كړو؟ مريض اُووئيل : ما (د رضا او صبر او شكر) نعمت سره سبا كړو (يعنې د مرض او تكليف په وجه مې زړهٔ د الله نه خفه نهٔ وو بلكه د هغه په تقدير راضي وم) شداد ورته اُوفرمايل : د ګناهونو د رژولو او د خطاګانو د لرې كولو په زيرې سره خوشحاله شه څكه چه ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلي چه فرمايل ئې :« يقيناً الله تعالىٰ فرمائي : كله چه زهٔ د خپلو بندګانو نه په يو مؤمن بنده ابتلاء راولم او په هغه مصيبت باندې زما حمد اُووائي نو دا به د خپلې بسترې د بيمارئ نه داسې (د ګناهونو نه پاك) راپاځيږي لكه چه دا په هغه ورځ د ګناهونو نه پاك وو په كومه ورځ چه ددهٔ مور دهٔ لره زيږولے وو۔ او الله تعالىٰ (ملائكو ته) دا هم فرمائي چه ما خپل بنده په قيد كښې اچولے وو او دا مې په لزميبت كښې اخته كړے وو لهذا تاسو (ددهٔ په عملنامه كښې) هغه (نيك) اعمال ليكل جاري اُوساتئ كوم چه تاسو ددهٔ د روغوالي په زمانه كښې ليكل جاري ساتل »۔ (احمد)۔

**تشريح :** ددې الفاظو د ظاهر نه دا معلوميږي چه ددې حديث راوي ابو الاشعث الصنعاني دې چه دا قصه ئې د شداد او صنابحي دواړو نه نقل كړيده حال دا چه خبره داسې نهٔ ده بلكه دلته مصنف اختصار كړيدې چه د هغې د وجه نه دا تقصير واقع شويدے۔ او اصل روايت داسې دې : امام احمد راشد بن داود الصنعاني ته سند رسوي هغه نقل كوي د ابو الاشعث الصنعاني نه (أَنَّهُ رَاحَ إِلَى مَسْجِدِ دِمَشْقَ وَهَجَّرَ بِالرَّوَاحِ فَلَقِيَ شَدَّادَ بْنَ أَوْسٍ وَالصُّنَابِحِيُّ مَعَهُ فَقُلْتُ أَيْنَ تُرِيْدَانِ يَرْحَمُكُمَا اللهُ قَالَا نُرِيْدُ هٰهُنَا إِلَى أَخٍ لَنَا مَرِيْضٍ ، نَعُوْدُهُ، فَانْطَلَقْتُ مَعَهُمَا حَتّٰى دَخَلَا عَلٰى ذٰلِكَ الرَّجُلِ فَقَالَا لَهُ كَيْفَ أَصْبَحْتَ الخ) (يعنې ابو الاشعث د دمشق مسجد ته وختي لاړو، هلته د شداد بن اوس سره ملاؤ شو چه هغه سره صنابحي هم وو نو دې وائي چه ما ورته اُووئيل : الله تعالىٰ دې په تاسو رحم اُوكړي كوم خوا اراده ده؟ هغوي اُووئيل : مونږ دلته د يو ورور چه مريض دې تپوس كول اراده، (دې وائي) زهٔ هم ورسره روان شوم۔ تردې چه دواړه په دغه سړي داخل شو دواړو ورته اُووئيل : څنګه دې صبا كړو الخ)۔

ددې صنابحي نوم عبد الرحمن بن عُسَيْلَه المرادي ابو عبد الله الصُنَابحي دې دا د كبار التابعين نه دې د نبي ﷺ د وفات نه پنځه ورځې پس مدينې ته راغلے دې۔ او د عبد الملك بن مروان په خلافت كښې وفات شويدې۔ او روايتونه ئې د نبي ﷺ نه مرسل دي۔

حدیث دلیل دے چه عیادت په اول د ورځ کښې بهتر دے. دا صحابی هم سحر وخت کښې عیادت دپاره راغلے دے. او مریض ته د مرض د فضیلت متعلق احادیث لوستل بهتر عمل دے، دے دپاره چه د هغه په مرض کښې تخفیف راولی او د الله تعالیٰ نه راضی شی.

**درجة الحدیث** : اسناده حسن : احمد (۱۲۳/۴) وفی الاسناد اسماعیل بن عیاش وهو صحیح الحدیث فی روایته عن الشامیین وهذه منها لانه رواه عن راشد الصنعانی صنعاء دمشق الشام) قال المنذری :وله شواهد کثیرة)

---

**۱۵۷۹ (۵۸) – وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِذَا كَثُرَتْ ذُنُوْبُ الْعَبْدِ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ مَا يُكَفِّرُهَا مِنَ الْعَمَلِ ابْتَلَاهُ اللهُ بِالْحُزْنِ لِيُكَفِّرَهَا عَنْهُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.**

**ترجمه** : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «کله چه د یو بنده گناهونه زیات شی او دهٔ هغه (نیك) عمل نهٔ وی چه دغه گناهونه اُورژوی نو الله تعالیٰ دهٔ لره په غم او خفگان کښې مبتلا کوی دے دپاره چه ددے په ذریعه ددے بنده گناهونه لرے کړی». (احمد).

**تشریح** : مطلب دا چه کوم دنیاوی غمونه په بنده راځی نو ددے سبب د بنده گناهونه دی، او پدے غمونو سره الله تعالی د بنده نه گناهونه هم لرے کوی او دا د الله تعالیٰ فضل او رحم دے.

**درجة الحدیث**: اسناده ضعیف: احمد (۱۵۷/۶) وفیه لیث بن سلیم وهو ضعیف مختلط (تفصیله فی الضعیفة (۲۶۹۵) .

**۱۵۸۰ (۵۹) – وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَنْ عَادَ مَرِيْضًا لَمْ يَزَلْ يَخُوْضُ الرَّحْمَةَ حَتّٰى يَجْلِسَ فَإِذَا جَلَسَ اغْتَمَسَ فِيْهَا». رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَحْمَدُ.**

---

**ترجمه** : او جابر رضی الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «څوك چه د بیمار تپوس کوی نو هغه به همیشه په رحمت کښې داخلیږی تردے چه کینی. او کله چه (د بیمار سره) کینی نو د رحمت په دریاب کښې به دوبیږی». (مالك، احمد).

**تشریح** : مطلب دا دے چه عیادت کونکے په نیت د عیادت باندے د کور نه راووځی نو دهٔ میتر روان شو د الله تعالیٰ رحمتونه پرے شروع شی تردے چه د مریض په خوا کښې کینی او کله

چه د هغه سره ناست وی نو د الله تعالیٰ په رحمت کښې به داخل شوے وی۔ یعنی ښه به پکښې نتوتے وی۔ لکه څنګه چه یو انسان په اُوبو کښې ډننه ننوتے وی۔

**درجة الحديث :** اسناده صحيح : (مالك فى الموطأ (٢/٩٤٦) بلاغاً دون سند وهو عند احمد (٣/٣٠٤) باسناد رجاله ثقات الاان هشيماً مدلس وقد عنعنه لكن الحديث صحيح لشواهده۔

---

**١٥٨١ (٦٠)** – وَعَنْ ثَوْبَانَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ:« إِذَا أَصَابَ أَحَدَكُمُ الْحُمّٰى فَإِنَّ الْحُمّٰى قِطْعَةٌ مِنَ النَّارِ فَلْيُطْفِهَا عَنْهُ بِالْمَاءِ فَلْيَسْتَنْقِعْ فِيْ نَهْرٍ جَارٍ وَلْيَسْتَقْبِلْ جِرْيَتَهُ فَيَقُوْلُ: بِسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ اشْفِ عَبْدَكَ وَصَدِّقْ رَسُوْلَكَ، بَعْدَ صَلَاةِ الصُّبْحِ وَقَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَلْيَنْغَمِسْ فِيْهِ ثَلَاثَ غَمَسَاتٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَإِنْ لَمْ يَبْرَأْ فِيْ ثَلَاثٍ فَخَمْسٌ فَإِنْ لَمْ يَبْرَأْ فِيْ خَمْسٍ فَسَبْعٌ فَإِنْ لَمْ يَبْرَأْ فِيْ سَبْعٍ فَتِسْعٌ فَإِنَّهَا لَا تَكَادُ تُجَاوِزُ تِسْعًا بِإِذْنِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

ترجمه : او ثوبان رضی الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :«کله چه ستاسو نه یو تن ته تبه اُورسی نو (پدے پوهه شئ چه) تبه د اُور یوه ټکړه ده، نو د خپل ځان نه دے دا په اُوبو سره مړه کړی، نو (تبه باندے اخته انسان له) پکار دی چه هغه په جاری نهر کښې ورداخل شی او د اُوبو د بهیدلو طرف ته دے مخامخ شی او داسے دے لُووائی : بسم الله الخ زهٔ د الله د نوم په برکت سره شفاء طلب کوم، اے الله ! خپل بنده ته شفاء ورکړه او د خپل رسول (ددے خبرے) تصدیق اُوکړه (پدے طریقه چه ما ته شفاء راکړه) لُو دا کار به د سحر مانځه نه روستو او د نمر راختلو نه مخکښې اُوکړی او درے ورځو پورے دے په اُوبو کښې غوپے وهی، که په درے ورځو کښې روغ نشو نو پنځه ورځو پورے دے (دا عمل) اُوکړی او که په پنځه ورځو کښې هم ښه نهٔ شو نو بیا د اُووه ورځو پورے (دا عمل) اُوکړی او که په اُووه ورځو کښې هم ښه نهٔ شو نو بیا د نهه ورځو پورے دے (دا عمل) اُوکړی۔ د الله تعالیٰ په حکم سره تبه به د نهه ورځو نه تجاوز نهٔ کوی»۔ (یعنی ددے عمل نه روستو به تبه ځی)۔ (امام ترمذیؒ دا روایت نقل کړے او وئیلی ئے دی چه دا حدیث غریب دے۔

**تشریح : جِرْيَتَهُ** : په کسره د جیم سره د اُوبو تیزو بهیدلو ته وئیلے شی۔

**ثَلَاثَ غَمَسَاتٍ** : ددے یو مطلب دا دے چه هره ورځ دے یوه یوه غوپه وهی نو درے ورځو کښې به ښه شی الخ۔ دویم مطلب دا هم کیدے شی چه هره ورځ به درے درے غوپے وهی او همدا ظاهر د حدیث دے۔ غمسات په فتحه د غین او میم سره دے۔

حافظ ابن قیمؒ په زاد المعاد بحث علاج الحمی بالماء کښې لیکي : دا علاج د هر بخار دپاره کار نهٔ ورکوي بلکه ددې تعلق د صفراوي بخار د بعض اقسامو سره دې چه په هغې کښې حجاز او د هغې ماحول والا مبتلا کیږي چه هغه د نمر د تیز تاؤ او حرارت نه پیدا کیږي نو پدې کښې یخې اُوبه سکل او په هغې لامبل فائده ورکوي۔ بیائې وئیلي دي چه جائز ده چه پدې حدیث کښې هغه تبه مراد وي چه د پرسیوب یا د حرکت یا د نمر د حرارت د رسیدلو یا د سختې گرمۍ نه پیدا شوې وي نو ددې علاج صرف په یخو اُوبو سره کافي کیږي ځکه روح ته یو تیز کیفیت عارض شوې وي نو د هغې زوال په رسولو د یخ کیفیت سره کافي کیږي۔

لیکن چونکه په بعض تبو کښې د اوبو استعمال نهٔ صرف دا چه مضر وي بلکه باعث د هلاکت گرځي، پدې وجه په هر بخار کښې دا طریقه د علاج اختیارول نهٔ دي پکار، آؤ که په یوه تبه کښې ماهر طبیب او معتمد معالج اجازت ورکړي نو بیا پدې طریقه د علاج باندې عمل کول پکار دي۔

او دا روایت اګرکه د سند په لحاظ ضعیف دې لیکن دا یوه تجربه ده۔

اګرکه بعض طبیبانو (لکه جالینوس) نه دا نقل دي چه هر قسمه تبو کښې یخې اُوبه فائده منې دي۔ او ددې زمانې علم ډاکټران هم ددې خبرې تائید کوي۔ والله تعالیٰ اَعْلَمُ وَعِلْمُهٗ اَتَمّ وَاَحْکَمُ۔ او همدا ظاهره ده ځکه چه د تبې دپاره دوه اقسام دي د هرې یوې دپاره اوبه فائده لري کما في الموجز۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف: ترمذی (۲۰۸٤) واحمد (۲۸۱/٥) والطبرانی (۱٤٥۰) وفی اسناده سعيد الشامی هو ابن زرعة الحمصی قال ابوحاتم وتبعه الذهبی (مجهول) والحافظ ابن حجر : مستور)

---

**۱۵۸۲ (٦۱)** – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: ذُكِرَتِ الْحُمّٰى عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَسَبَّهَا رَجُلٌ فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «لَا تَسُبَّهَا فَإِنَّهَا تَنْفِي الذُّنُوْبَ كَمَا تَنْفِي النَّارُ خَبَثَ الْحَدِيْدِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

**ترجمه** : او ابو هریره ﷺ فرمائي : د رسول الله ﷺ په خوا کښې د تبې تذکره اُوشوه نو یو سړي هغې ته بد رد اُووئیل : نبي کریم ﷺ اُوفرمایل : «تبې ته بد رد مهٔ وایه ځکه چه تبه خو ګناهونه داسې ختموي لکه څنګه چه اُور د اُوسپنې زنګ ختموي»۔ (ابن ماجة)۔

**تشریح** : مطلب دا چه د نبي ﷺ په مجلس کښې د تبې او د هغې د سختۍ تذکره اُوشوه نو یو سړي ورته بد رد شروع کړل چه دا ډیره ګنده بیماري ده نو رسول الله ﷺ ورته اُوفرمایل : تبې ته بد رد مهٔ وایه ځکه چه دا خو د انسان نه ګناهونه داسې ختموي لکه اُور چه د اُوسپنې زنګ

ختـمـوي دا كـنايه ده د پوره صفا كولو د انسان نه۔ نو پدے باندے شكر او صبر پكار دے نۀ دا چه ددے بدې بيان شي۔

خَبَثٌ: پـه فتـحـه د خاء او بٓاء سره زنگ تـه وئيلے شي يعني د اُوسپنے نه چه د ويلې كولو په وخت كوم خيرے د اُور په وجه لرے كيږي دغے ته خبث وائي۔

**درجة الحديث:** اسناده صحيح : ابن ماجه (٣٤٦٩) وقال في الزوائد اسناده ضعيف فيه موسى بن عبيدة وهـو ضعيف ولـكـنـه صـحـيـح لشواهـده وصـحـحـه الالباني في صحيح ابن ماجه والصحيحة (٧١٥و١٢١٥) والمباركفوري في المرعاة (٥/٢٧٥)۔

---

**١٥٨٣ (٦٢) – وَعَـنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ عَـادَ مَرِيْضًا فَقَالَ: «أَبْشِرْ فَإِنَّ اللهَ تَعَالٰى يَقُوْلُ: هِيَ نَارِيْ أُسَلِّطُهَا عَلٰى عَبْدِيَ الْمُؤْمِنِ فِي الدُّنْيَا لِتَكُوْنَ حَظَّهٗ مِنَ النَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَه وَالْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ.**

**ترجمه :** او ابو هريره ﷺ فرمائي چه رسول الله ﷺ د يو بيمار عيادت اُوكړو (چه په هغه تبه وه) او هغه ته ئے اُوفرمايل : «چه خوشحاله شه ځكه چه الله تعالىٰ فرمائي : دا تبه زما اُور دے زۀ ئے په دنيا كښې په خپل مؤمن بنده مسلط كوم دے دپاره چه ددۀ په حق كښې د قيامت په ورځ د دوزخ د اُور بدله او حصه شي»۔ (احمدؒ، ابن ماجهؒ، بيهقيؒ)۔

**تشريح :** مطلب دا دے چه آيت كښې راغلي دي : ﴿وَإِنْ مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا﴾ (په تاسو كښې هيڅوك داسے نشته چه د (قيامت په ورځ) په دوزخ كښې داخل نۀ شي) نو كامل مؤمن الله تعالىٰ په دنيا كښې په بخار وغيره بيماريانو كښې مبتلا كړي چه ددے په وجه به دوزخ ته د داخليدو نه بچ كيږي او هرچه په دوزخ ورداخليدل دي پدے طريقه چه پُل صراط به په جهنم دپاسه كيخودلے شي او ټول انسانان به پرے تيريږي۔ نو كامل مؤمن به نۀ وريږوځي۔

يا مطلب دا دے چه د تبے په وجه به د قيامت په ورځ د بنده نه گناهونه معاف كيږي چه هغه سبب د اُور دے۔

په «نَارِيْ» كښې ئے نسبت خپل ځان ته اُوكړو پدے كښې اشاره ده چه دا تبه د الله تعالىٰ لطف او رحمت دے۔ ددے وجه نه ئے د عبد (بنده) نسبت هم ځان ته اُوكړو۔

**درجة الحديث :** اسـنـاده صحيح : ابن مـاجـه (٣٤٧٠) وقال في الزوائد : اسناده صحيح رجاله موثقون والحاكم (١/٣٤٥) وقال صحيح الاسناد ووافقه الذهبي۔

۱٥٨٤ (٦٣) – وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ: «إِنَّ الرَّبَّ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ يَقُوْلُ: وَعِزَّتِيْ وَجَلَالِيْ لَا أُخْرِجُ أَحَدًا مِنَ الدُّنْيَا أُرِيْدُ أَغْفِرُ لَهُ حَتّٰى أَسْتَوْفِيَ كُلَّ خَطِيْئَةٍ فِيْ عُنُقِهٖ بِسُقْمٍ فِيْ بَدَنِهٖ وَإِقْتَارٍ فِيْ رِزْقِهٖ». رَوَاهُ رَزِيْنٌ.

**ترجمه:** او د انس ﷺ نه روایت دے چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی: «الله سبحانه وتعالیٰ فرمائی: زما په خپل عزت او لوئی شان قسم دے چه د کوم بنده زهٔ بخنه کول غوارم هغه به زهٔ د دنیا نه تر هغه وخته پورے نهٔ اُوباسم ترڅو چه زهٔ د هغه بدن په بیمارئ کښ مبتلا کولو او د هغه رزق په تنگئ کښ اچولو سره د هغه د هرے گناه بدله چه د هغه په ذمه وی وانخلم»۔ (رزینؒ)۔

**تشریح:** مطلب دا دے چه الله تعالیٰ فرمائی: د کوم بنده دپاره چه زهٔ د آخرت سعادت او نیکبختی غوارم نو د هغه د گناهونو سزا په دنیا کښ پدے طریقه ورکوم چه کله هغه په بیمارئ کښ اخته کوم او کله د رزق تنگی په هغه مسلط کوم، نو پدے طریقه هغه اُوبخلے شی او د عذاب د آخرت نه بچ شی۔ حاصل دا چه غریبی او بیماری او مصیبتونه گناهونه لرے کوی۔

**أُرِيْدُ أَغْفِرُ لَهُ:** اغفر په رفع سره هم صحیح دے او په نصب سره هم او په جامع الاصول (۱۰/۳۵۸) کښ د روینؒ نه (أُرِيْدُ أَنْ أَغْفِرَ لَهُ) نقل دے۔ دا جمله یا حال دے د فاعل د أُخْرِجَ نه یا صفت د مفعول (یعنی احداً) دے۔

**إِقْتَارٍ:** د رزق تنگی ته وئیلے شی۔

**درجة الحديث:** لا يعرف حال اسناده: قال المنذري في الترغيب (٤/١٥١) ذكره رزين ولم اره يعنى فى شىء من الاصول الستة وغيرها و كذلك الذى بعده ولكنه يؤيده ما فى هذا الباب من الاحاديث فى كون المصائب والبلايا كفارة للسيئات۔

---

١٦٨٥ (٦٤) – وَعَنْ شَقِيْقٍ قَالَ: مَرِضَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ فَعُدْنَاهُ فَجَعَلَ يَبْكِيْ فَعُوْتِبَ فَقَالَ: إِنِّيْ لَا أَبْكِيْ لِأَجْلِ الْمَرَضِ لِأَنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «اَلْمَرَضُ كَفَّارَةٌ» وَإِنَّمَا أَبْكِيْ أَنَّهٗ أَصَابَنِيْ عَلٰى حَالِ فَتْرَةٍ وَلَمْ يُصِبْنِيْ فِيْ حَالِ اجْتِهَادٍ لِأَنَّهٗ يُكْتَبُ لِلْعَبْدِ مِنَ الْأَجْرِ إِذَا مَرِضَ مَا كَانَ يُكْتَبُ لَهٗ قَبْلَ أَنْ يَمْرَضَ فَمَنَعَهُ مِنْهُ الْمَرَضُ. رَوَاهُ رَزِيْنٌ.

**ترجمه:** او شقیق رحمه الله فرمائی: عبد الله بن مسعود ﷺ بیمار شو نو مونږ د هغه تپوس له لاړو، هغه (زمونږ په مخکښ) اُوژړل۔ (خلقو دا گمان اُوکړو چه د بیمارئ د تکلیف او د ژوند د

محبت په وجه سره ژاړي) په هغه باندې ملامتيا اُووئيلې شوه، ابن مسعودؓ اُوفرمايل چه زۀ د بيمارئ په وجه نۀ ژاړم ځکه چه ما خپله د رسول الله ﷺ نه دا آوريدلي چه فرمايل ئې «چه بيمارئ د ګناهونو د لرې کيدو سبب دې»، زۀ خو صرف پدې وجه ژاړم چه زۀ د سستئ (يعنې بوډاوالي) په حالت کښې په بيمارئ کښې اخته شوم. د قوت (يعنې ځوانئ) په حالت کښې بيمارئ کښې ولې مبتلا شوې نۀ يم؟ ځکه چه بنده کله بيمار شي نو د هغه دپاره (د بيمارئ په ورځو کښې) هغه اعمال ليکلې شي کوم چه دۀ له د بيمارېدو نه مخکښې ليکلې کيدل او اُوس بيمارئ هغه لره د هغه عمل نه بند کړې وی. (رزينؒ).

شقيق بن سلمة الاسدی ابو وائل الکوفی ترجمه ئې مخکښې تيره شويده.

**تشريح : فَعُوتِبَ** : يعنې ملامتيا پرې اُووئيلې شوه چه ستا ژړل دليل دې په جزع فزع او بې صبرئ باندې او دا خو د اکابرو اخلاق نۀ دی. نو هغه وجه بيان کړه چه که دا بيمارې په ما باندې په حالت د ځوانئ کښې راغلې وې نو بنه به وه ځکه چه هغه وخت کښې زما اعمال زيات وو او په ډير عمل کولو قادر وم. نو که بيمار شوې وې نو ما دپاره به زيات اجر ليکلې کيدې او اُوس خو د بوډاوالي په وجه زما بدن کښې کمزورې شويدې او عمل کم شويدې نو په بيمارئ کښې به اجر هم کم ليکلې کيږي حاصل دا چه ابن مسعودؓ د عمل پسې خفه وو.

**درجة الحديث**: لا يعرف حال اسناده : وليس فی شیء من الاصول ولکن يؤيده ما تقدم من حديث شداد بن اوس عند احمد وحديث عبد الله بن عمرو وانس عند البغوی فی الفصل الثانی وحديث ابی موسی عند البخاری فی الفصل الاول (المرعاة ٥/٢٧٧)

**١٥٨٦ (٦٥) — وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ : كَانَ النَّبِيُّ ﷺ لَا يَعُوْدُ مَرِيْضًا إِلَّا بَعْدَ ثَلَاثٍ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه وَالْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ.**

**ترجمه** : او انس ﷺ فرمائي : نبي ﷺ به د يو بيمار تپوس نۀ کولو مګر د درې ورځو نه روستو. (ابن ماجۃ، بيهقی فی شعيب الايمان).

**تشريح** : ددې حديث نه دا معلوميږي چه عيادت د مريض به هله کولې شي چه درې ورځې پرې تيرې شي ليکن دا روايت ضعيف جداً دې، قابل د عمل نۀ دې، ددې وجه نه عام علماء فرمائي چه عيادت د کوم زمانې پورې مقيد نۀ دې بلکه مسلمان ته چه په هر وخت د بل مسلمان د مرض پته اُولګيده نو حاضريدل پکار دی او پدې باندې دليل دا قول د نبي ﷺ دې (عُوْدُوا الْمَرِيْضَ) (د مريض عيادت اُوکړئ) دا مطلق دې هيڅ زمانې پورې مقيد نۀ دې.

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف جداً : ابن ماجه (١٤٣٧) وفيه مسلمة بن علی الخشنی وهو متهم

وقال ابوحاتم باطل موضوع.

**١٥٨٧ (٦٦) – وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ﷺ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« إِذَا دَخَلْتَ عَلٰى مَرِيْضٍ فَمُرْهُ يَدْعُوْ لَكَ فَإِنَّ دُعَاءَهُ كَدُعَاءِ الْمَلَائِكَةِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : او عمر بن الخطاب ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي :« كله چه ته د يو بيمار خواته ورشې نو هغه ته حکم اُوکړه چه ستا دپاره دعا اُوغواړي ځکه چه د هغه دعاء د ملائکو د دعاء په شان ده »۔ (ابن ماجة)۔

**تشريح** : د مريض دعاء د ملائکو د دعاء سره ځکه مشابه ده چه لکه څنګه ملائك د ګناهونو نه پاك دي او د الله تعالیٰ په ياد کښې مصروف دي نو دغه شان مريض هم د بيمارئ په وجه د ګناهونو نه صفا شوے وي او الله تعالیٰ ئې ياد وي نو دعاء ئې زر قبليږي۔

دا حديث دليل دے چه د مريض نه دعاء طلب کول مستحب دي ځکه چه دا مضطر وي او د مضطر دعاء زر قبليږي۔ (قاله العلقمیؒ)

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : ابن ماجه (١٤٤١) لانقطاعه بين ميمون بن مهران وعمر رضي الله عنه۔

**١٥٨٨ (٦٧) – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: مِنَ السُّنَّةِ تَخْفِيْفُ الْجُلُوْسِ وَقِلَّةُ الصَّخَبِ فِي الْعِيَادَةِ عِنْدَ الْمَرِيْضِ قَالَ: وَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لَمَّا كَثُرَ لَغَطُهُمْ وَاخْتِلَافُهُمْ :« قُوْمُوْا عَنِّيْ». رَوَاهُ رَزِيْنٌ.**

**ترجمه** : او ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي : د مريض په خوا کښې کم کيناستل او شور وشغب د عيادت په وخت کښې نهٔ کول سنت طريقه ده۔ دارنګه ابن عباسؓ فرمائي : او رسول الله ﷺ کله چه د صحابه کرامؓ شور او اختلاف زيات شو وے فرمايل : «زما د خوا نه پاڅيږئ»۔ (رزينؒ)۔

**تشريح** : مِنَ السُّنَّةِ : د راجح قول مطابق صحابي چه کله (من السنة) لفظ استعمال کړي نو دا به مرفوع حديث (يعني د پيغمبر وينا او فعل) وي ځکه مطلق سنت چه ذکر شي نو صرف ئې فرد کامل ته کيږي او مراد ترے هغه څوك وي چه د هغه د سنتو تابعداري واجب وي او هغه رسول الله ﷺ دے۔

**وَلَغَطُ الصَّخَبِ** : په فتحه د صاد او خاء سره شور (آواز پورته کولو) ته وئیلے شی۔
دا حدیث دلیل دے چه د بیمار پرسئ د آدابو نه یو ادب دا دے چه تپوس کونکے به د هغه په خوا کښې دومره زیات نهٔ کینی چه هغه تنګ کړی او داسے خبرے به نهٔ کوی چه هغه بور کړی۔
**لَغَطُهُمْ** : لغط : آواز او شور ته وئیلے شی چه معنیٰ بانديے ئے انسان نهٔ پوهیږی۔ (نهایه)
**قُومُوْا عَنِّیْ** : دا ارشاد رسول الله ﷺ په مرض الوفات کښې فرمائیلے وو لکه د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه کله رسول الله ﷺ ته وفات حاضریدو نو په کوټه کښې څه سړی وو چه په هغوی کښې عمر بن الخطاب (هم) وو نو نبی ﷺ أوفرمایل : (هَلُمُّوْا اَكْتُبُ لَكُمْ كِتَابًا لَنْ تَضِلُّوْا بَعْدَهُ) (راشئ چه زهٔ تاسو ته یو خط أولیکم چه د هغے نه روستو به تاسو هیچرے ګمراه نهٔ شئ) نو عمر فاروق او په یو روایت کښې دی بعضو أووئیل: رسول الله ﷺ باندے درد غلبه کړیده او تاسو سره قرآن شته نو دا ستاسو دپاره کافی دے۔ (یعنی رسول الله ﷺ مهٔ تنګوئ، هغه باندے خپل تکلیف زیات دے)۔
نو کور والو اختلاف شروع کړو او بحث ئے شو، بعضو أووئیل : کاغذ ورله راوړئ چه تاسو ته رسول الله ﷺ لیکل أوکړی او بعضو نورے خبرے أوکړے نو کله چه حاضرینو شور او اختلاف زیات کړو۔ رسول الله ﷺ أوفرمایل : (زما خوا نه پاڅیږئ) (متفق علیه)۔
د عبد الله بن عباسؓ مطلب دا دے چه د مریض په خوا کښې شور کول رسول الله ﷺ بد أوګنړل او د هغوی اختلاف سبب ددے شو چه رسول الله ﷺ نهٔ لیکلو کښې مصلحت أوګنړلو۔
حافظ ابن حجرؒ فرمائی : هرکله چه د رسول الله ﷺ مخے ته اختلاف واقع شو نو هغه ته مصلحت پدے کښې ښکاره شو چه لیکل أونکړی نو پدے وجه ئے په خپل اختیار سره کتابت پریخودو او پدے کښې په هغه باندے د چا زور نهٔ وو، څرنګه به په هغه زور أوکړے شی حال دا چه هغه به دیو شی کلك عزم أوکړو نو د هیچا دپاره (عمرؓ وی او که غیر عمرؓ وی) چه د هغه مخے ته خُله کولاوه کړی او رسول الله ﷺ ددے واقعے نه روستو درے ورځو پورے ژوندے وو چه هغه وخت کښې ورسره عمرؓ نهٔ وو بلکه اهل بیت ورسره وو لکه علیؓ او عباسؓ نو که هغه د خلافت وغیره په باره کښې په لیکلو کښې مصلحت او فائده ګنړلے نو ضرور به ئے کړے وے۔ او بل طرفته رسول الله ﷺ د خلافت په باره کښې داسے عمل کړیدے چه نژدے ده چه هغه ښکاره نص جوړ شی چه هغه مخکښې کول د ابوبکر صدیق دی دپاره د امامت د خلقو په ورځو د مرض د هغه کښې۔ او ددے وجه نه کله چه علی ﷺ د ابوبکر صدیقؓ د بیعت دپاره خطبه أوکړه نو په هغے کښې ئے د ټولو خلقو مخامخ أوفرمایل : چه دا شخصیت رسول الله ﷺ د خلقو د امامت دپاره غوره

کړے وو چه دۀ پسے ئے جواب اُولیږلو چه ته خلقو ته مونځ اُوکړه او حال دا چه زۀ ناست وم، زۀ ئے لیدم او زما مرتبه ورته معلومه وه۔ او د علی ﷺ نسبت تقیه ته کول سره ددے نه چه هغه د اسلام شهسوار دے (د الله تعالیٰ نه غیر د هیچا نه یره نۀ محسوس کوی) دا د هغه د لوئی مرتبے نه جهالت دے۔ انتهیٰ۔

بلکه روستو مشکاة باب هجرة اصحابه من مکة ووفاته رقم الحدیث (٥٩٦٦) کښې صراحةً راغلی دی چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :(دَعُوْنِیْ، ذَرُوْنِیْ فَالَّذِیْ آنَا فِیْهِ خَیْرٌ مِمَّا تَدْعُوْنَنِیْ اِلَیْهِ) (متفق علیه) (ما پریدئ ما پریدئ، هغه حالت چه زۀ په هغے یم غوره دے د هغه نه چه تاسو ما ورته رابلئ) ددے نه صفا معلومه شوه چه رسول الله ﷺ په خپله خوښه نۀ لیکل غوره کړل۔

عبد الله بن عباسؓ به چه کله دا واقعه بیانوله نو داسے به ئے فرمایل :(یَوْمُ الْخَمِیْسِ وَمَا یَوْمُ الْخَمِیْسِ؟ ثُمَّ بَکٰی حَتّٰی بَلَّ دَمْعُهُ الْحَصٰی) (د پنجشنبے ورځ څه عجیبه ورځ وه؟ بیا ئے اُوژړل تردے چه اُوښکو سره ئے د زمکے کانړی لامدۀ کړل...... بیا ئے داسے هم اُوفرمایل: اِنَّ الرَّزِیَّةَ کُلَّ الرَّزِیَّةِ مَا حَالَ بَیْنَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ وَبَیْنَ اَنْ یَّکْتُبَ لَهُمْ ذٰلِكَ الْکِتَابَ لِاخْتِلَافِهِمْ وَلَغَطِهِمْ) (پوره غم او مصیبت وو هغه حالت چه د رسول الله ﷺ او د هغه د خلقو دپاره د خط د لیکلو ترمینځ واقع شو څکه چه دوی اختلاف او شور شروع کړو۔

یعنی که دوی شور نۀ وے کړے نو مونږ ته به صراحةً معلومه شوے وے چه رسول الله ﷺ امت دپاره څه خوښوی او څه وصیت ورته کوی۔

د ابن عباسؓ ددے روایت نه معلومه شوه چه مریض سره به دیر نۀ ایساریږی کله چه هغه ته تکلیف رسیږی او ددے تائید دا الفاظ د رسول الله ﷺ دی : (قُوْمُوْا عَنِّیْ)

**درجة الحدیث** : ذکره رزین بن معاویة العبدری والشطر الثانی اخرجه الشیخان واحمد (٣٢٤١١) من حدیث ابن عباس فی قصة مرضه ﷺ وَقُوْمُوْا عَنِّیْ دَلِیْلٌ عَلٰی اَنَّ السُّنَّةَ تَخْفِیْفُ الْجُلُوْسِ۔

---

**١٥٨٩ (٦٨) — وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :((اَلْعِیَادَةُ فُوَاقُ نَاقَةٍ)).**

---

**ترجمه** : او انس ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :(( د بیمار پرسئ غوره مرتبه د اُوښے د دوه ځله لشلو د مینځنئ وقفے په اندازه ده ))۔

**تشریح** : **فُوَاق**: په فتحه د فاء او ضمه سره او مرفوع هم دے۔ فواق (ما بین الحلبتین من الوقت) (د دوه ځل لشلو ترمینځ وخت) ته وئیلے شی۔ یعنی یو ځل ئے اُولشی بیا ئے لږ ساعت

پريدى چه د اُوښے بچے ئے اُوروى دے دپاره چه پئ په غولانځو كښې راشى نو بيا ئے اُولشى. نو ددے دوارو لشلو ترمينځ چه څومره وخت دے دغے ته فواق وئيلے شى. بعض وائى : د لشونكى لاس كولاوول او بيرته په غولانزه بندولو ترمينځ چه كوم وخت دے نو دغه معمولى سكند ته فواق وئيلے شى. ليكن اول قول جوهرىؒ په صحاح كښې ذكر كړيدے. او همدا راجح دے.

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : رواه ابن ابى الدنيا فى المرض والكفارات (١٨٢/١) وفيه اسماعيل بن القاسم غير معروف وحبان بن على العنزى ضعيف (تقريب)

---

١٥٩٠ (٦٩) - وَفِىْ رِوَايَةِ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ مُرْسَلًا: «أَفْضَلُ الْعِيَادَةِ سُرْعَةُ الْقِيَامِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِىُّ فِىْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ.

**ترجمه** : او د سعيد بن المسيب په روايت كښې چه په طريقه د ارسال منقول دے دا الفاظ دى : «غوره عيادت هغه دے چه په هغے كښې عيادت كونكے په جلتئ سره پاځيږى». (بيهقىؒ).

**تشريح** : مطلب دا دے چه بيمار پرسى كونكى دپاره په بيمار پرسئ كښې بهتر دا ده چه د بيمار د خوا نه زر پاځى. (طيبىؒ) يا مطلب دا دے چه افضل هغه عيادت دے چه په هغے كښې زر پاځيدل وى. (ميركؒ).

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : اخرجه البيهقى وضعفه الالبانى فى الجامع الصغير (١٠٣١) والسلسلة الضعيفة (٢٠١٧)

١٥٩١ (٧٠) - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ عَادَ رَجُلًا فَقَالَ لَهٗ: «مَا تَشْتَهِىْ ؟» قَالَ: أَشْتَهِىْ خُبْزَ بُرٍّ. قَالَ النَّبِىُّ ﷺ: «مَنْ كَانَ عِنْدَهٗ خُبْزُ بُرٍّ فَلْيَبْعَثْ إِلٰى أَخِيْهِ». ثُمَّ قَالَ النَّبِىُّ ﷺ: «إِذَا اشْتَهٰى مَرِيْضُ أَحَدِكُمْ شَيْئًا فَلْيُطْعِمْهُ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

---

**ترجمه** : او ابن عباس رضى الله عنهما فرمائى : نبى كريم ﷺ د يو سړى بيمار پرسى اُوكړه نو هغه ته ئے اُووئيل : ستا څه شے زړه ته كيږى ؟ هغه اُووئيل : زما د غنمو روټئ ته اشتهاء كيږى. نبى كريم ﷺ اُوفرمايل : «چا سره چه د غنمو روټئ وى هغه دے (خپل) دے ورور ته راوليږى». بيا نبى كريم ﷺ اُوفرمايل : «كله چه ستاسو نه يو مريض د يو شى خواهش لرى نو هغه بانديے دے هغه شے اُوخوروى». (ابن ماجهؒ).

**تشريح** : عِنْدَهٗ خُبْزٌ : مطلب دا دے چه څه چه شے انسان سره وى او د مريض ورته زړه كيږى

نو هغه له پکار دي چه مريض له ئے ورکړي، ايثار پکار دے۔ يا مطلب دا دے چه چا سره د خپل خوراك او د اهل وعيال د خوراك نه زياتي د غنمو روټئ وي نو هغه دے مريض ته اُوليږي۔

دلته د اشتهاء (خواهش) نه مراد رشتيني خواهش دے ځکه چه رشتيني خواهش د صحت نښه وي، نو که يو شے مريض له ضرري هم وي ليکن دا فائده مند وي د هغه څيز نه چه مريض ئے نۀ خوښوي اگرکه فائده مند وي، نو د بعض مريضانو هغه شے خوړل چه د هغه زړۀ ئے غواړي نقصان کونکے نۀ وي خو پدے شرط چه هغه شے په کم مقدار کښې وي او داسے نۀ وي چه د هغې د نقصان او ضرر جانب غالب وي۔ نو معلومه شوه چه د (فَلْيُطْعِمْهُ) حکم کلي او عمومي طور سره نۀ دے بلکه جزئي او انفرادي طور سره دے يعني مطلب دا دے چه هر مريض سره دا معامله نۀ دي کول پکار چه هغه څه غواړي نو هغه به ورکوي ځکه چه بعض څيزونه مريض له بد او مضر وي نو د هغې ورکول به مناسب نۀ وي۔

بعض وائي : ددے مطلب دا دے چه که د خوراك څکاك متعلق څيزونه ئے غوختل نو دا به نښه وي چه مريض جوړ شويدے مثلاً کيك، روټئ وغيره څيزونه ئے غوختل نو ورکول ئے پکار دي ځکه چه دا قانون دے چه بيماري د طبع او مزاج پسے گرځي نو کله چه په بيمارئ باندے طبع غالبه شي نو بيا خوراك ته زړۀ اُوشي او چه کله مرض غالب وي نو طبع او اشتهاء بندۀ وي۔ (وهذا ارجح) او دا حکم په هرخوراك کښې هم نۀ دے بلکه موقع او محل ته به کتلے شي۔

علامه طيبيؒ فرمائي : دا حکم په توکل او د ژوند نه په مايوسي او انا اميدئ باندے بناء دے يعني د کوم مريض د ژوند اميد چه باقي پاتے نۀ وي نو د هغه په باره کښې ئے فرمايلي دي چه څه غواړي نو ورکول ئے پکار دي۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : ابن ماجه (٣٤٤٠) وفي اسناده صفوان بن هبيرة العيشي قال الحافظ لين الحديث۔

---

۱۵۹۲ (۷۱) – وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: تُوُفِّيَ رَجُلٌ بِالْمَدِيْنَةِ مِمَّنْ وُلِدَ بِهَا فَصَلّٰى عَلَيْهِ النَّبِيُّ ﷺ فَقَالَ : «يَا لَيْتَهٗ مَاتَ بِغَيْرِ مَوْلِدِهٖ». قَالُوْا: وَلِمَ ذَاكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ؟ قَالَ: «إِنَّ الرَّجُلَ إِذَا مَاتَ بِغَيْرِ مَوْلِدِهٖ قِيْسَ لَهٗ مِنْ مَوْلِدِهٖ إِلٰى مُنْقَطَعِ أَثَرِهٖ فِي الْجَنَّةِ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه.

ترجمه : او عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما فرمائي : يو داسے سړے په مدينه کښې وفات

شو چه په مدینه کښې پیدا شوے وو نو نبی کریم ﷺ په هغه د جنازے مونځ اُوکړو او وے فرمایل : «هائے ارمان چه دا په غیر د خپل ځائے د پیداښت کښې وفات شوے وے»۔ صحابه کرامؓ تپوس اُوکړو اے د الله رسوله ! دا ولے ؟ نبی کریم ﷺ اُوفرمایل : «یقیناً یو سړے چه کله د خپل د پیداښت د ځائے نه سوی په بل ځائے کښې مړ شی نو د هغه دپاره د هغه د پیداښت د ځائے نه واخله تر د هغه د قدمونو د منقطع کیدو ځائے (یعنی د مرګ د ځائے) پورے په جنت کښې ځائے کیدے شی»۔ (نسائیؒ، ابن ماجهؒ)۔

**تشریح** : مطلب دا دے چه کوم شخص د خپل وطن نه سفر باندے اُوځی او وفات شی نو ددهٔ د وطن او د مرګ د ځائے ترمینځ چه څومره مسافت وی نو د هغے په اندازه هغه ته جنت ملاویږی لیکن شرط دا دے چه دا سفر به د معصیت نهٔ وی بلکه د طاعت سفر به وی یعنی د جهاد یا د علم سفر یا بل جائز سفر وی۔ یا دا چه د خپل ځائے د پیداښت نه علاوه بل وطن کښې اُوسیږی او هلته پرے وفات راشی نو دهٔ ته هم دا فضیلت شاملیږی۔

**قِيسَ لَهُ** : یعنی الله تعالیٰ حکم کوی ملائکو ته چه ددهٔ دپاره کچ او اندازه کړی۔

**إِلَى مُنْقَطَعِ أَثَرِهِ** :(ای مَوْضِعِ قَطْعِ أَجَلِهِ) (ځائے د منقطع کیدو د اجل ددهٔ پورے) مراد د اثر نه اجل (نیته) ده دے ته اثر ځکه وائی چه د اثر معنیٰ ده تابع کیدل او دا هم د عمر پسے روان وی لکه زهیر شاعر وائی :

| وَالْمَرْءُ مَا عَاشَ مَمْدُوْدٌ لَهُ أَمَلٌ | | لَا يَنْتَهِي الْعُمْرُ حَتَّى يَنْتَهِي الْأَثَرُ |
|---|---|---|

(فیض القدیر۲/۲٦٤ والمرعاة)

(سړے چه تر څو ژوندے وی نو نیته ئے اُوږده وی، عمرئے نهٔ ختمیږی تردے چه نیته ئے ختمه شی)۔

۲– دا احتمال هم شته چه ددے نه مراد (مَوْضِعٌ اِنْقَطَعَ فِيْهِ سَفَرُهٗ وَانْتَهٰى اِلَيْهِ فَمَاتَ فِيْهِ) (هغه ځائے چه په هغے کښې ددهٔ سفر ختم شوے وی او هغے ته رسیدلے وی نو وفات شی) نو د اثر نه مراد به اثر د قدمونو وی۔

**فِي الْجَنَّةِ**: ددے صحیح مطلب دا دے چه د عمل دومره ثواب به ورکړے شی لکه څومره چه دا مسافه ده۔ او دا مطلب نهٔ دے چه دومره اندازه جنت به ورته ملاویږی ځکه چه جنت خو د ټولے دنیا نه لوئی دے نو د جنت د فراخوالی په اعتبار سره ددے معمولی مسافت هیڅ اعتبار نشته۔

بعض وائی: د منقطع الاثر نه مراد قبر دے او فی الجنة متعلق دے د محذوف پورے او معنیٰ دا ده : (يُفْسَحُ لَهُ فِيْ قَبْرِهٖ قَدْرُ مَا بَيْنَ مَوْلِدِهٖ وَبَيْنَ قَبْرِهٖ وَيُفْتَحُ لَهُ بَابٌ إِلَى الْجَنَّةِ) (قبر ورته دومره فراخه شی

څو مره اندازه چه ددهٔ د پیدائش او د قبر ترمینځ ده او جنت طرفته ورله دروازه کولاوه شي) لیکن دا معنیٰ د ظاهري الفاظو نه ښه نهٔ معلومیږي.

**درجة الحديث** : اسناده حسن : النسائی (۱/۲۵۹) وابن ماجه (۱٦۱٤) حَسَّنَهُ الالبانی)

---

**۱۵۹۳ (۷۲) – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَوْتُ غُرْبَةٍ شَهَادَةٌ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه:** او ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي : رسول الله ﷺ فرمایلي دي : «د سفر په حالت کښې مرګ شهادت دے». (ابن ماجهٔ).

**تشريح : غُرْبَةٍ** : په ضمه د غین سره مصدر دے د غَرَبَ يَغْرُبُ (نَصَرَ) نه د خپل وطن نه وړاندے کیدل. یعنې څوک چه د سفر په حالت کښې وفات شي نو دۀ ته د آخرت په اعتبار سره شهید وئیلے شي.

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف جداً: (ابن ماجه (۱٦۱۳) وفی اسناده الهذیل بن الحکم ابو المنذر قال الذهبی : قال البخاری منکر الحدیث ومن مناکیره هذا الحدیث)

---

**۱۵۹٤ (۷۳) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَنْ مَاتَ مَرِيْضًا مَاتَ شَهِيْدًا أَوْ وُقِيَ فِتْنَةَ الْقَبْرِ وَغُدِيَ وَرِيْحَ عَلَيْهِ بِرِزْقِهِ مِنَ الْجَنَّةِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه وَالْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ.**

**ترجمه:** او ابو هریره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمایلي دي : «څوک چه د بیمارئ په حالت کښې وفات مري نو هغه شهید مري، او د قبر د فتنو نه به بچ کولے شي او سبا او بیګاه به هغه ته د جنت نه رزق ورکولے شي». (ابن ماجهٔ، بیهقیؒ).

**تشريح:** علامه سندیؒ وائي : که دا حدیث صحیح شي نو بیا به مراد د مرض نه د خیټې مرض وي مثلاً.

او د علامه قرطبیؒ نه نقل دي چه دا تولو مرضونو ته شامل دے لیکن مقید به وي په هغه حدیث چه په هغې کښې دي چه چا لره د خیټې مرض قتل کړو نو په قبر کښې به ورته عذاب نشي ورکولے. (نسائي).

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف جداً: ابن ماجه (۱٦۱۵) فیه ابراهیم بن محمد بن ابی عطاء وهو

ابراهیم بن محمد بن ابی یحیی الاسلمی وهو متهم وَاَوْرَدَهُ ابْنُ الْجَوْزِيُّ فِي الْمَوْضُوْعَاتِ۔

---

۱۵۹۵ (۷۴) - عَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قال:« يَخْتَصِمُ الشُّهَدَآءُ وَالْمُتَوَفَّوْنَ عَلٰى فُرُشِهِمْ إِلٰى رَبِّنَا فِي الَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنَ الطَّاعُوْنِ فَيَقُوْلُ الشُّهَدَاءُ: إِخْوَانُنَا قُتِلُوْا كَمَا قُتِلْنَا وَيَقُوْلُ الْمُتَوَفَّوْنَ عَلٰى فُرُشِهِمْ : إِخْوَانُنَا مَاتُوْا عَلٰى فُرُشِهِمْ كَمَا مِتْنَا فَيَقُوْلُ رَبُّنَا: اُنْظُرُوْا إِلٰى جِرَاحِهِمْ فَإِنْ أَشْبَهَتْ جِرَاحُهُمْ جِرَاحَ الْمَقْتُوْلِيْنَ فَإِنَّهُمْ مِنْهُمْ وَمَعَهُمْ فَإِذَا جِرَاحُهُمْ قَدْ أَشْبَهَتْ جِرَاحَهُمْ ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** : او عرباض بن ساریه ﷺ فرمائي چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل :« شهداء او هغه کسان چه په خپلو بسترو وفات شویدی (یعنی حقیقي شهیدان شوی نهٔ دی) زمونږ د رب مخامخ به دهغه کسانو په باره کښې چه دطاعون په وجه وفات دی جګړه اُوکړی نو شهیدان به اُووائي : دوی زمونږ ورونه دی (یعنی زمونږ سره مشابهت لری لهذا مونږ سره ملګری کول پکار دی څکه چه) دوی قتل شویدی لکه څنګه چه مونږ قتل شوی وو، او کوم خلق چه په خپلو بسترو وفات شویدی هغوی به اُووائي : دوی زمونږ ورونه دی دوی په خپلو بسترو وفات شویدی لکه څنګه چه مونږ وفات شوی وو۔ نو زمونږ رب به (ملائکوته) اُوفرمائي : د دوی زخمونه اُوګوریٔ که د دوی زخمونه د قتل شوی خلقو د زخمونه سره مشابه وی نو دوی به د شهداؤ نه شماروی (یعنی د ثواب په اعتبار به د شهداؤ برابر وی) او د هغوی سره به (په حشر او مرتبه کښې) یو ځائې وی۔ نو کله چه اُولیدلے شي نو د دوی زخم به د شهداؤ د زخمونو سره مشابه وی »۔ (احمدؒ، نسائيؒ)۔

**تشریح** : په طاعون کښې د مړ کیدونکو په باره کښې د شهداؤ دا دلیل چه (لکه څنګه مونږ قتل کړے شوی وو نو دغه شان دوی هم قتل کړے شویدی) ددے مطلب دا دے چه لکه څنګه مونږ د دیني دشمنانو کافرانو په لاسونو زخمیان کیدو سره مړه شوی وو نو دغه شان دوی هم د کافرو جناتو په لاس زخمي کیدو سره مړهٔ شوی دی، څکه چه علماؤ لیکلی دی چه دیر کرت طاعون وهلی شوی انسان ته دا محسوس کیږی چه دا څوك په نیزه باندے وهی پدے وجه دے مرض ته د طاعون نوم هم ورکړے شویدے چه دا د طعن نه مشتق دے او د طعن معنیٰ ده په تیزه باندے وهل۔ لهذا طاعون مرض والا به د شهیدانو سره حسابیږی۔

**إِخْوَانُنَا** : دا خبر د مبتداء محذوفے دے ای هُمْ إِخْوَانُنَا۔ (دا زمونږ ورونه دی، زمونږ مشابه دی.

او وجه د مشابهت ئے دا ده چه قُتِلُوْا كَمَا قُتِلْنَا۔ دوی هم زمونږ په شان قتل کړے شویدی۔
دا بحث به یا په ورځ د قیامت وی۔ او په بسترو باندے د وفات شوی بیمارانو مقصد به دا وی چه دوی زمونږ ورونه دی یعنی هرکله چه دوی ته اُوچت درجات ورکولے شی او د شهداؤ سره حسابولے شی نو مونږه هم د دوی په شان یو چه دوی هم په بسترو وفات دی او مونږه هم۔ نو دے نورو بیمارانو سره د خپل ځان غم دے چه مونږه ته هم دغه شان اُوچتے درجے راکړے شی او دا مطلب نهٔ دے چه هغوی سره حسد کوی چه طاعون مریضان د شهداؤ درجو ته اُونهٔ رسیږی ځکه چه دا خو مذموم حسد دے چه په آخرت کښ به دا د خلقو د زړونو نه ویستلے شوے وی۔ بلکه ښه مطلب دا دے چه اصحاب الطاعون اوچتے مرتبے والا دے، هره وله غواړی چه دوی د ځان سره ملګری کړی چه د هغوی عزت پرے ډیر شی۔
**درجة الحديث** : اسناده صحيح : (احمد ٤/١٢٨، ١٢٩) والنسائي (٢/٦٣) ورجاله موثقون وله شاهد عن المنذری (٢/٢٠٤) من حديث عتبة بن عبد باسناد لا بأس به۔

---

۱۵۹٦ (٧٥) — وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ: «اَلْفَارُّ مِنَ الطَّاعُوْنِ كَالْفَارِّ مِنَ الزَّحْفِ وَالصَّابِرُ فِيْهِ لَهُ أَجْرُ شَهِيْدٍ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.
**ترجمه** : او جابر ﷛ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «د طاعون نه تیختنه کونکے داسے دے لکه په جهاد کښ د کافرانو د مقابلے نه تختیدونکے او په طاعون کښ صبر کونکی دپاره به د شهید ثواب ملاویږی»۔ (احمدؒ)۔
**تشريح** : مطلب دا دے چه لکه څنګه د جنګ نه تختیدل او کافرانو ته میدان پریخودل حرام دی نو دغه شان د هغه کلی نه وتل په قصد د تیختنه هم حرام دی په کوم کښ چه طاعون واقع شوے وی۔
**اَلزَّحْفِ**: لوئی لښکر ته وئیلے شی ځکه چه زحف په اصل کښ په کناتو باندے تولیدو او خویدو ته وئیلے شی او دا فوج هم د ډیر والی په وجه داسے ښکاری لکه چه په کناتو راروان وی۔ او په زمکه خوئیږی یعنی په آرام آرام سره روان وی۔ نو زحف مصدر دے او دلته د عظیم لښکر دپاره استعمال شویدے۔
**درجة الحديث** : اسناده حسن : احمد (٣/٣٥٢، ٣٦٠) وفي اسناده عمرو بن جابر الحضرمي وهو ضعيف كما في التقريب لكن له شاهد من حديث عائشة مرفوعاً وقال الحافظ : بسند حسن) وحسنه الالباني في الصحيحة (١٢٩٢) وصححه في صحيح الجامع برقم (٤٢٧٧)۔

# باب تمني الموت وذكره

## د مرگ د آرمان كولو حكم او د مرگ د يادولو فضيلت

د مرگ تمنی (آرزو) كول گناه ده مگر په طريقه د تعليق جائز ده لكه روستو راځی او هرچه د مرگ يادول دی نو دا ډير بهتر كار دے په دے سره انسان آخرت طرفته متوجه كيږی او په نيك اعمالو كښ ئے تيزی او خشوع پيدا كيږی چه مثلاً دا سوچ كوی چه زۀ به د مرگ په وخت كښ زير پيږ، او سخت تكليف او پريشانتيا كښ يم، ملائك به مے خوا كښ وی، شيطان به هم راغلے وی او هغه به زما د گمراه كولو كوشش كوی، هسے نه چه گمراه نشم او د مرگ په يادولو سره انسان كښ ډيره تبديلی پيدا كيږی، د ظلم او گناهونو نه ځان ساتی، ددے وجه نه علماء كرامؒ فرمائيلی دی :كوم انسان چه ورځ كښ مرگ يادوی نو دا به د عامو گناهونو نه محفوظ وی او كه څوك ئے هر وخت يادوی نو دا به بالكل الله تعالیٰ ته نزدے وی۔ او دغه شان څوك چه مرگ ډير نۀ يادوی نو هغه به د الله تعالیٰ او د هغه د تعلق نه غافل وی او خپل مقصد د ژوند به ترے ورانده وی او زړۀ كښ به ئے ايمانی كيفيت هر وخت حاضر نۀ وی۔ او د مرگ يادول كافی نه دی ددے نه چه د بنده په زړۀ كښ د الله تعالیٰ خوف او ويره او د هغه د رضا او خوشحالی حاصلولو او د هغه د اطاعت او فرمانبردارئ جذبه هر وخت مخے ته وی۔

د رسول الله ﷺ محبت او د هغه راوړی شريعت باندے عمل وی، هميشه توبه او استغفار كوی او د دنيا نفع او نقصان د آخرت په نفع او نقصان باندے نۀ مقدم كوی، كه دغه كارونه نۀ وی نو هسے د مرگ يادول دومره فائده مند نۀ دی۔

او په دے باب كښ عام فضائل دی احكام پكښ غالباً نشته۔

### الفصل الاول

۱۵۹۷ (۱)- وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ :« لَا يَتَمَنَّى أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ إِمَّا مُحْسِنًا فَلَعَلَّهُ أَنْ يَزْدَادَ خَيْرًا وَإِمَّا مُسِيئًا فَلَعَلَّهُ أَنْ يَسْتَعْتِبَ ».رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمايلی دی :« په تاسو كښ دے يو تن د

مرگ آرمان نهٔ کوی ځکه که نیك عمله وی نو کیدے شی چه (د عمر د اُوږدوالی په وجه) د هغه په نیکئ کښې زیادت اُوشی، او که بد عمله وی نو کیدے شی چه (هغه د توبے په وجه) د الله رضا او خوشحالی حاصله کړی»۔ (بخاری)۔

تشریح : لَا يَتَمَنّٰى : دا نفی ده په معنیٰ د نهی ده یعنی د مرگ آرزو دے نهٔ کوی۔

أَحَدُكُمْ : کښې اول خطاب صحابه کرامو ته دے او بیا ټول امت ته دے۔

پدے حدیث کښې د تمنی نه مراد مطلق تمنی نهٔ ده بلکه مقید ده په روستو حدیث سره چه د دنیاوی مصیبت د وجه نه د مرگ غوختل صحیح نهٔ دی ځکه چه دا د بے صبریٔ او په تقدیر الهی باندے د نهٔ راضی کیدو نښه ده او که د فتنو نه د بچاؤ دپاره او د ایمان د محفوظ ساتلو دپاره د مرگ آرمان کوی نو جائز ده۔

إِمَّا مُحْسِنًا : دا إِمَّا په اصل کښې إِنْ مَا دے او مَا زائده ده او د إِنْ دپاره فعل شرط محذوف دے ای إِنْ كَانَ مُحْسِنًا۔ (یعنی که نیك عمله وی)۔

يَسْتَعْتِبَ: (اَیْ یَرْجِعَ عَنِ الْاِسَاءَةِ وَیَطْلُبَ رِضَا اللّٰهِ تَعَالٰی بِالتَّوْبَةِ) (یعنی د گناه نه به واپس شی او د الله تعالیٰ رضا به طلب کړی په توبه کولو سره) استعتاب : ازالة العتاب (د ملامتیا زائله کولو) ته وئیلے شی یعنی په توبه ویستلو سره به ترے د الله تعالیٰ ملامتیا لرے شی۔

---

۱۵۹۸ (۲) — وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :« لَا يَتَمَنّٰى أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ وَلَا يَدْعُ بِهٖ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَّأْتِيَهٗ إِنَّهٗ إِذَا مَاتَ انْقَطَعَ أَمَلُهٗ وَإِنَّهٗ لَا يَزِيْدُ الْمُؤْمِنَ عُمْرُهٗ إِلَّا خَيْرًا ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابو هریره رضي الله عنه فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :« یو تن دے په تاسو کښې د مرگ آرزو نهٔ کوی او د مرگ د راتلو نه مخکښې دے د هغے دعاء نهٔ کوی ځکه چه انسان کله مړ شی نو (د نیکئ د زیاتوالی دپاره) د هغه امیدونه منقطع کیږی او د مؤمن د عمر زیاتوالے د هغه په نیکئ کښې زیاتوالے کوی »۔ (مسلم)۔

تشریح : مِنْ قَبْلِ أَنْ يَّأْتِيَهٗ : پدے کښې اشاره ده چه کله مرگ انسان ته حاضر شی نو بیا د الله تعالیٰ ملاقات غوختل او خوښول حرام نهٔ دی۔ لکه نبی ﷺ چه کله وفات کیدو نو هغه فرمایلی وو : (اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِیْ وَارْحَمْنِیْ وَاَلْحِقْنِیْ بِالرَّفِیْقِ الْاَعْلٰی) (نو نبی ﷺ د رفیق اعلیٰ سره د پیوسته کیدو آرمان کړے وو لیکن دا د مرگ د رانزدے کیدو په وخت کښې وو دا وجه ده چه امام

بخاري ذدے حديث د ابو هريرةؓ پسے د عائشہؓ دغه حديث راوړيدے همدے خبرے ته اشاره كوى (رحمه الله رحمة واسعةً)۔

أَمَلُهُ : يعني د خير د زياتوالي اميد ئے منقطع كيږي۔

مطلب دا دے چه د مؤمن ژوند چه تر څو پورے باقي وي نو هغه د نيكو اعمالو كوشش كوى او كله ئے چه اعمال نيك وي نو په نيكئ كښې به ئے وخت په وخت زياتے پيدا كيږي او كه مصيبت ور اُورسيږي نو په هغے به صبر كوي، د نعمتونو شكر به ادا كوي، په تقدير الهي به راضي وي او د الله تعالىٰ او د هغه د رسول اطاعت كونكے به وي چه د هغے په وجه به ورته اجرونه او ثوابونه زياتيږي۔ او كوم گناهونه چه ترے كيږي نو په هغے هميش والے نهٔ كوي او د هغے نه وخت په وخت توبه او استغفار كوي نو د نيكيانو په مقابله كښې هغه وخت په وخت معاف كيږي۔ نو عمر ئے سراسر فائده فائده ده۔يا دا چه كه گناهگار وي نو هغه له هم پكار دي چه په الله تعالىٰ باندے ښه گمان اُوكړي چه الله تعالىٰ به توفيق د نيك عمل وركړي او د الله تعالىٰ د رحمت نه دے نا اميدي نهٔ كوي۔

---

۱۵۹۹ (۳) — وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «لَا يَتَمَنَّيَنَّ أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ مِنْ ضُرٍّ أَصَابَهُ فَإِنْ كَانَ لَابُدَّ فَاعِلًا فَلْيَقُلْ: اَللّٰهُمَّ أَحْيِنِيْ مَا كَانَتِ الْحَيَاةُ خَيْرًا لِيْ وَتَوَفَّنِيْ إِذَا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِيْ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او انس ؓ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي :«يو تن دے په تاسو كښې د مرگ آرمان نهٔ كوي د وجه د يو (جسماني او مالي) تكليف نه چه دهٔ ته رسيدلے وي۔ كه دا قسم آرزو ضرور كونكے وي نو بيا دے دا الفاظ اُووائي : اللهم الخ۔ يعني اے الله ! ما ژوندے اُوساته تر څو پورے چه ژوند زما دپاره غوره وي او ما وفات كړه كله چه مرگ زما دپاره (د ژوند نه) غوره وي»۔ (بخاري ومسلم)۔

تشريح : مِنْ ضُرٍّ نه معلومه شوه چه د مصيبت او تكليف د وجه نه تنگ راتلو سره د مرگ سوال كول صحيح نهٔ دي ځكه چه پدے كښې د الله تعالىٰ په تقدير نا راضي ده او بے صبري ده او دا دواړه بد اعمال دي۔ البته كه يو انسان د ديني فتنے او فساد نه يريږي او د مرگ آرزو اُوكړي نو دا مكروه نهٔ ده بلكه يو مستحب عمل دے لكه په حديث د ابوداود كښې د معاذؓ نه مرفوعاً نقل دي : (وَإِذَا اَرَدْتَّ بِعِبَادِكَ فِتْنَةً فَتَوَفَّنِيْ إِلَيْكَ غَيْرَ مَفْتُوْنٍ) (كله چه تهٔ په خپلو بندگانو د فتنے اراده اُوكړے

نو ما په داسے حال کښې وفات کړه چه فتنه کښې اخته نۀ یم)۔ یا تعلیقی دعاء د مرګ اُوکړی نو جائز ده لکه په دے حدیث کښې تعلیق شویدے۔ نو پدے سره په تقدیر اعتراض نۀ راځی بلکه خبره الله ته سپارلے شی۔

دغه شان بعض سلفو لکه امام نوویؒ د امام شافعیؒ او عمر بن عبد العزیزؒ وغیره په باره کښې نقل کړیدي چه دوی د دینی فتنې او فساد د ویرے نه د مرګ آرزو کړے وه۔ دغه شان د شهادت آرزو کول هم مستحب دی لکه دا د عمر فاروق ﷺ وغیره نه نقل دی۔ دغه شان معاذ بن جبل ﷺ په طاعون عمواس کښې د مرکیدو آرمان کړے وو۔

او په حدیث د مسلم کښې دی: (مَنْ سَأَلَ اللّٰهَ الشَّهَادَةَ بِصِدْقٍ بَلَّغَهُ اللّٰهُ مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ وَإِنْ مَاتَ عَلٰى فِرَاشِهِ) ۔(څوك چه د زړۀ په اخلاص سره د الله تعالیٰ نه شهادت اُوغواړی نو الله تعالیٰ به ئے د شهداؤ مرتبو ته اُورسوی اګرکه په بستره وفات شی)۔

دغه شان په مدینه کښې د مړ کیدو آرزو کول مستحب دی لکه په بخاری کښې د عمر فاروق ﷺ دا دعاء نقل ده: (اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِيْ شَهَادَةً فِيْ سَبِيْلِكَ وَاجْعَلْ مَوْتِيْ فِيْ بَلَدِ رَسُوْلِكَ) (بخاری) (اے الله! ما ته ستا په لاره کښې شهادت راکړه او مرګ ستا د رسول په کلی کښې)۔ او مریم علیها السلام ﴿يَالَيْتَنِيْ مِتُّ قَبْلَ هٰذَا وَكُنْتُ نَسْيًا مَّنْسِيًّا﴾ وئیلی دی۔ او امام بخاریؒ چه کله د فتنو نه تنګ شو نو داسے ئے اُوفرمایل: (ضَاقَتْ عَلَيَّ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ فَاقْبِضْنِيْ إِلَيْكَ غَيْرَ مَفْتُوْنٍ. او سفیان ثوریؒ وئیلی وو: ما به مخکښې د ژوند تمنا کوله اُوس د مرګ تمنا کوم د وجے د زیاتو فتنو نه۔ فتاوی الدین الخالص (٦٨/٧) معلومه شوه چه تمنی د مرګ په بعض اوقاتو کښې جائز ده لیکن د جسمانی تکلیف د وجه نه د مرګ آرزو صحیح نۀ ده۔والله تعالیٰ اعلم۔

---

١٦٠٠ (٤) – وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «مَنْ أَحَبَّ لِقَاءَ اللّٰهِ أَحَبَّ اللّٰهُ لِقَاءَهُ وَمَنْ كَرِهَ لِقَاءَ اللّٰهِ كَرِهَ اللّٰهُ لِقَاءَهُ» فَقَالَتْ عَائِشَةُ أَوْ بَعْضُ أَزْوَاجِهِ، إِنَّا لَنَكْرَهُ الْمَوْتَ قَالَ: «لَيْسَ ذٰلِكَ وَلٰكِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا حَضَرَهُ الْمَوْتُ بُشِّرَ بِرِضْوَانِ اللّٰهِ وَكَرَامَتِهِ فَلَيْسَ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا أَمَامَهُ فَأَحَبَّ لِقَاءَ اللّٰهِ وَأَحَبَّ اللّٰهُ لِقَاءَهُ وَإِنَّ الْكَافِرَ إِذَا حُضِرَ بُشِّرَ بِعَذَابِ اللّٰهِ وَعُقُوْبَتِهِ فَلَيْسَ شَيْءٌ أَكْرَهَ إِلَيْهِ مِمَّا أَمَامَهُ فَكَرِهَ لِقَاءَ اللّٰهِ وَكَرِهَ اللّٰهُ لِقَاءَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

(١٦٠١ (٥)– وَفِيْ رِوَايَةِ عَائِشَةَ: «وَالْمَوْتُ قَبْلَ لِقَاءِ اللّٰهِ».

**ترجمه** : او عباده بن صامت ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي :((څوك چه د الله ملاقات خوښوي نو الله د هغه ملاقات خوښوي او څوك چه د الله ملاقات بد اوګڼري نو الله به د هغه ملاقات بد ګڼري. عائشې يا بعض بيبيانو د رسول الله ﷺ عرض اوكړو : (يارسول الله) مونږ خو ضرور مرګ بد ګڼرو؟!. نبي ﷺ اوفرمايل : دا (مراد) نه دے. بلكه (مراد دا دے چه) كله مؤمن ته مرګ حاضر شي نو هغه ته د الله په راضي كيدو او د هغه په عزتونو باندے زيرے وركړے شي (چه الله دده نه راضي دے او دده دپاره ئے كرامتونه تيار كړيدي) نو هيڅ شے دده ته دير محبوب نه وي د هغه څيز (يعني فضيلت او مرتبے) نه چه دده مخكښ راتلونكے وي پدے چه دا د الله تعالىٰ ملاقات خوښ كړي نو الله (هم) دده ملاقات خوښ كړي. او كافر ته چه كله مرګ حاضريږي نو هغه ته د الله په عذاب او د هغه په سزا سره زيرے وركړے شي نو دده ته هيڅ شے دير ناخوښه نه وي د هغه شي (يعني عذاب او سزا) نه چه دده مخے ته راتلونكے دے. پدے وجه هغه د الله تعالىٰ ملاقات بد اوګڼري نو الله تعالىٰ (هم) دده ملاقات بد اوګڼري)). دا روايت بخاريؒ او مسلمؒ نقل كړے او د عائشې په روايت كښ منقول دي چه ((مرګ د الله تعالىٰ د ملاقات نه مخكښ دے)).

**تشريح** : مشهوره دا ده چه د لقاء الله (يعني د الله تعالىٰ دملاقات) نه مراد مرګ دے ليكن دے باندے دا سوال راځي چه هر انسان مرګ بد ګڼري نو ددے په معنىٰ كښ علماء كرامو مختلف اقوال كړيدي، اول هغه اقوال اوګوره بيا صحيح مطلب.

(۱) خطابيؒ وئيلي دي چه د بنده د الله تعالىٰ د ملاقات سره محبت لرلو معنىٰ دا ده چه په دنيا باندے آخرت غوره كوي او په دنيا كښ هميشوالے نه خوښوي بلكه د دنيا نه د كوچ كولو دپاره استعداد او تيارے كوي او بد ګڼرل ددے په ضد دي.

(۲) بعض وائي : آخرت طرف ته متوجه كيدل او د الله تعالىٰ د رحمت او مغفرت او د هغه د رضا او خوشحالولو طالب جوړيدل، او دنيا طرف ته نه مائل كيدل او د دنيا په محبت كښ نه ګرفتاريدل، لهذا كوم شخص چه دنيا ترك كړه او د دنيا او د هغے څيزونه ئے ناخوښه كړل نو ګويا كښ دهٔ د خپل مولىٰ ملاقات خوښ كړو او چا چه دنيا اختيار كړه، او د دنياوي څيزونو په محبت كښ ګرفتار شو او دنيا طرف ته ئے ميلان اوكړو نو ګويا كښ دهٔ د خپل مولىٰ ملاقات ناخوښ كړو همدا وجه ده چه د مولىٰ ملاقات او شوق د مرګ محبت او شوق لره لازم دے. يعني څوك چه خپل مولىٰ خوښوي نو هغه به مرګ هم خوښوي ځكه چه د خپل مولىٰ د ملاقات دپاره مرګ وسيله ده.

(۳) لیکن صحیح مطلب ددے حدیث په آخری جمله کښ بیان شویدے۔ هغه دا چه د لقاء الله نه مراد مرگ نهٔ دے بلکه دا ښه گنړل او بد گنړل په حالت د نزع او روح وتلو او مرگ حاضریدو کښ مراد دی۔ امام نوویؒ فرمائی : ددے حدیث آخر تفسیر کوی د اول او مطلب دا دے چه هغه کراهت او خوشحالی معتبره ده چه د روح د وتلو په وخت کښ وی چه په هغه وخت کښ توبه نهٔ قبلیږی نو په دغه وخت کښ هر انسان ته زیرے او خبر ورکولے شی د هغه حالت چه کوم طرف ته دا روان دے او څه ورله تیار کړے شویدی او دغه حالات او څیزونه (یعنی عذابونه او راحتونه) ورته ښکاره شی او ملائك ورته اُوواٸی چه ته به اوس هغه رب ته روان ئے چه ستا نه راضی دے او ستا دپاره ئے رحمتونه او راحتونه او کرامتونه تیار کړیدی نو دا خوشحاله شی او د الله تعالیٰ ملاقات طرف ته ئے جذبه او جلتی پیدا شی چه کله به زما روح اُوځی چه خپل مولیٰ سره ملاؤ شم او کله چه عذابونه ورته ښکاره شی او ملائك ورله دا خبر ورکړی چه تهٔ اُوس داسے ذات ته روان ئے چه هغه تا نه ناراضه دے او تا له ئے عذابونه تیار کړیدی نو پدے وخت کښ د هغه د الله تعالیٰ نه نفرت پیدا شی او هغه ورته دشمن ښکاره شی نو الله تعالیٰ هم ددهٔ ملاقات بد اُوگنړی۔ والله تعالیٰ اعلم۔

ددے آسان مطلب دا دے چه لقاء الله روستو ده او مرگ مخکښ دے، د لقاء الله ښه گنړل یا بد گنړل د مخکنو اعمالو نتیجه ده که نیك عمله وی نو زیرے ورکړے شی نو لقاء الله ښه وگنړی او که بد عمله وی، د عذاب خبر ورکړے شی نو لقاء الله بده وگنړی نو الله تعالیٰ د اولنی شخص لقاء ښه گنړی او د دویم بده گنړی۔ جزاء وفاقاً۔

کره لقاء الله : یعنی بد اُوگنړی ملاقات د الله تعالیٰ په وخت د غرغره کښ کله چه عذابونه ورته ښکاره شی۔

دلته سوال دے چه شرط او جزاء دواړه یو شے دی ؟ جواب دا دے چه جزاء محذوف ده ۔(مَنْ اَحَبَّ لِقَاءَ اللّٰهِ فَلْيَفْرَحْ فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ لِقَاءَهٗ) (څوك چه د الله تعالیٰ ملاقات خوښوی نو دا دے خوشحاله شی ځکه چه الله تعالیٰ هم ددهٔ ملاقات خوښوی)۔

فَقَالَتْ عَائِشَةُ : په روایت سعد بن هشامؒ کښ بغیر د شك نه راغلی دی چه دا تپوس عائشیؓ کړیدے او دا الفاظ (فقالت عائشة) د همام راوی په حدیث کښ ادراج دے۔

وَالْمَوْتُ قَبْلَ :مطلب دا دے چه مرگ ذریعه ده د الله تعالیٰ د ملاقات دپاره، انسان چه مړ شی بس د الله تعالیٰ سره ملاؤ شی۔

نو د لقاء الله نه مراد مرگ نهٔ دے ځکه چه د الله تعالیٰ ملاقات خو د مرگ نه پس کیږی۔ نو

مرگ هر انسان بد گنړی او لقاء الله مؤمنان ښه گنړی او کافرئ بد گنړی۔

---

**۱۶۰۲ (٦) - وَعَنْ أَبِيْ قَتَادَةَ أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ مُرَّ عَلَيْهِ بِجَنَازَةٍ فَقَالَ: « مُسْتَرِيْحٌ أَوْ مُسْتَرَاحٌ مِنْهُ» فَقَالُوْا : يَا رَسُوْلَ اللهِ مَا الْمُسْتَرِيْحُ وَالْمُسْتَرَاحُ مِنْهُ ؟ فَقَالَ: « اَلْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ يَسْتَرِيْحُ مِنْ نَصَبِ الدُّنْيَا وَأَذَاهَا إِلٰى رَحْمَةِ اللهِ وَالْعَبْدُ الْفَاجِرُ يَسْتَرِيْحُ مِنْهُ الْعِبَادُ وَالْبِلَادُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَابُّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه :** او د ابوقتاده رضی الله عنه نه نقل شوی دی چه هغه به دا حدیث بیانولو چه رسول الله ﷺ باندے یوه جنازه تیره شوه نووے فرمایل : « دا راحت موندونکے دے یا دده نه نورو خلقو ته راحت ملاؤ شویدے»۔ صحابه کرامؓ عرض اُوکړو اے د الله رسوله ! راحت موندونکے او هغه شخص چه د هغه نه راحت موندلے شوے څوک دے ؟ نبی کریم ﷺ اُوفرمایل :« مؤمن بنده (چه مړ شی) د دنیا د ستړی والی او تکلیفونو نه د الله رحمت ته راحت مونده کوی او فاجر بنده (یعنی گناهگار) د هغه نه (د مرگ په وجه) بندگان او ښارونه او ونے او حیوانات راحت مونده کوی »۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

**تشریح :** مُرَّ : دا صیغه د مجهول ده د مرور نه۔

مطلب دا دے چه مړی دوه قسمه دی یو هغه دی چه د دنیا د مصیبتونو او ستړی والی او تکلیفونو نه په راحت کښې شی څکه چه دنیا کښې د جهادونو، صبرونو، عبادتونو او د خلقو د خبرو نه په تکلیف کښې وی نو په مرگ سره ورته راحتونه ملاؤ شی۔ او دویم هغه دی چه د هغه نه خلق، ښارونه، ونے او حیوانات په آرام شی۔ انسانانو ته ئے تکلیفونه رسول یا داسے منکرات ئے کول چه که خلقو نهٔ منع کول نو گناهگاریدل او که منع کول ئے نو دده د طرف نه ورته ضرر رسیدلو۔ یا دا چه په خلقو ئے ظلمونه کول۔ نو اُوس ترے خلق په آرام شول۔ او ښارونو کښې به ئے فسادونه او گناهونه کول چه ددے په وجه به قحطونه راتلل، بارانونه به بندیدل نو فصلونه او نسلونه به تباه کیدل۔ یا پدے وجه چه دهٔ به زمکے غصب کولے او هغے کښې به ئے غلط تصرفات کول۔ ونے ترے څکه په آرام شوے چه دهٔ به هغه په طریقه د غصب سره د بیخ نه ویستلے یا به ئے د هغے میوے غلا کولے یا به ئے په صحیح طریقه نهٔ اُوبه کولے، یا دا چه دده د گناهونو د سپیرهٔ والی په وجه به هغوی ته هم قحط او خشك کالی رسیدله۔ حیوانات ترے څکه په آرام شو چه هغوی باندے به ئے د طاقت نه زیات بوج اچولو، هغوی به ئے وهل او گیاه او اُوبه به ئے په مکمله

طريقه نهٔ وركولے۔ يا دا چه ددهٔ د گناهونو په وجه به هغوى په قحط كښ اخته كيدل۔

نَصَبٍ : په فتحه د صاد سره سترى والى او ستومانى ته وئيلے شى۔

بيا په دے دوارو حالتونو كښ جائز ده چه د مرگ سختى پرے راشى كه بد عمله وى نو گناهونه به ئے معاف شى۔ او كه نيك عمله او متقى وى نو پدے سره به ئے درجات پورته شى اگركه د دنيا د تكليفونو نه په آرام شو چه دا مرگ د هغے خاتمه وه۔ ددے نه اخوا مؤمن دپاره تكليفونه نهٔ وى۔ ددے وجه نه عمر بن عبد العزيز رحمه الله به فرمائيل : «زهٔ دا نهٔ خوښوم چه په ما باندے د مرگ سختيانے آسانے شى ځكه چه دا آخرى هغه شے دے چه د مؤمن نه پدے سره گناهونه رژيږى» ليكن ددے سره سره مؤمن ته چه كوم زيرى د جنت وركولے شى او د ملائكو خوشحالى ددهٔ په ملاقات او د هغوى نرمى ددهٔ سره او ددهٔ خوشحالى په ملاقات د خپل رب دا آسانوى ټول هغه دردونه او تكليفونه چه دهٔ ته په مرگ كښ حاصليږى، داسے اُوگرځى گويا كښ د هيڅ شى احساس نهٔ كوى۔ (فتح البارى ۱۱/۳٦۵)۔

---

۱٦۰۳ (۷) — وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ : أَخَذَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِمَنْكِبِيْ فَقَالَ: «كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيْبٌ أَوْ عَابِرُ سَبِيْلٍ». وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَقُوْلُ: إِذَا أَمْسَيْتَ فَلَا تَنْتَظِرِ الصَّبَاحَ وَإِذَا أَصْبَحْتَ فَلَا تَنْتَظِرِ الْمَسَاءَ وَخُذْ مِنْ صِحَّتِكَ لِمَرَضِكَ وَمِنْ حَيَاتِكَ لِمَوْتِكَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : او عبد الله بن عمر رضى الله عنهما فرمائى : رسول الله ﷺ زما اُوگه اُونيوله وے فرمايل :«په دنيا كښ داسے اُوسيږه لكه چه گويا كښ تهٔ مسافرئے يا د لارے تيرونكے ئے »۔ او ابن عمر رضى الله عنهما به (خلقو ته) فرمايل : كله چه تهٔ بيگاه كړے نو د سبا انتظار مهٔ كوه او كله چه سبا كړے نو د بيگاه انتظار مهٔ كوه او خپل صحت د بيمارئ نه غنيمت اُوگنړه او خپل ژوند د مرگ نه غنيمت اُوگنړه۔ (بخارئ)۔

تشريح : بِمَنْكِبِيْ : د رسول الله ﷺ د تعليم په طريقو كښ يوه طريقه دا هم وه چه د مخاطب د متوجه كولو دپاره به ئے د هغه اُوگه اُونيوله۔

منكب : په كسره د كاف سره دے۔ دا مفرد او تثنيه دواړه نقل دى۔

أَوْ عَابِرُ سَبِيْلٍ : كلمه د أَوْ په معنىٰ د بَلْ سره ده۔ او عابر د عُبُوْر نه دے په معنىٰ د تيريدلو۔ مراد ترے نه مسافر دے چه په لاره تيريدونكے وى۔ نو لكه ځنگه چه مسافر په لاره كښ

مضبوطې آباديانې نۀ جوړوي او قوي اميدونه د څيزونو پورې نۀ متعلق کوي څکه پدې باندې ځان مشغوله کول د سفر اصلي مقصد ته نقصان رسوي، انسان خپل مقصد ته پوره طريقې سره نشي رسيدلې.

او پدې حديث کښې رسول الله ﷺ عابد او الله تعالیٰ طرف ته روان انسان اول مشابه کړو د مسافر سره چه د هغه څه کور نۀ وي چه پکښې اُوسيږي بيا ئې ددې نه ترقي اُوکړه او مشابه ئې کړو د لاروي سره څکه چه مسافر کله په هغه کلي کښې پاتې کيږي کوم ته ئې چه سفر کړے وي او لاروي دپاره هيڅ قسم د سکونت ځائې نۀ وي څکه چه يو انسان د لرې علاقو د سفر قصد کړے وي نو د هغه او د مقصد ترمينځ ډيرهلاکونکي بيابانونه او دشتې وي نو هغه هيچرې په يو ځائې کښې سکونت نشي کولې.

په يو روايت د احمد او ترمذي او ابن ماجه کښې ورسره دا الفاظ زيات دي :(وَعُدَّ نَفْسَكَ فِيْ اَهْلِ الْقُبُوْرِ) (خپل ځان په مړو کښې اُوشماره) يعني داسې گمان کوه چه زۀ مړشوې يم او بيرته دنيا ته راغلې يم او الله تعالیٰ راله دويم چانس او موقعه راکړې ده نو هر کله چه ستا داسې حالت جوړ شي نو بيا بـه تـه د خپل مالك حقيقي د رضا کولو زيات کوشش کوې او د گناهونو او د الله تعالیٰ د مخالفتونو نه به ډير ځان ساتې.

امام نووئ ددې حديث داسې معنیٰ کوي : دنيا ته مه مائل کيږه او د دنيا نه وطن مۀ جوړوه او زړۀ کښې داسوچ مۀ کوه چه زۀ به په دنيا کښې هميشه يم او په دنيا کښې په هغه څه پسې مۀ انخله کوم پسې چه مسافر سړے په پردي وطن کښې نۀ انخلي.

بعض وائي : ددې مطلب دا دے چه مومن سړے به خپل ځان په دنيا کښې د مسافر په شان اُوگرځوي نو دا به خپل زړۀ د سفر په ښار کښې د څيزونو پورې نۀ متعلق کوي بلکه ددۀ زړۀ به هميشه دپاره د خپل هغه وطن پورې متعلق وي کوم ته چه دے واپس کيږي او په دنيا کښې به ددې دپاره اُوسيږي چه د خپل اصلي وطن ته د واپس کيدو تيارے اُوکړي.

**يَقُوْلُ** : په روايت د ترمذي کښې دي چه مجاهد رحمه الله فرمائي : ما ته عبد الله بن عمر ﷺ اُوفرمايل : اذا اصبحت الخ۔ لهذا (وكان ابن عمرؓ) دا مقوله د مجاهدؒ ده.

**إِذَا أَمْسَيْتَ** : ددې مطلب دا دے چه هميشه الله تعالیٰ طرفته په عبادت او د هغه په بندگئ باندې سير او مزل کوه او د مزل نه هيڅ وخت ستړي والے مۀ کوه څکه که تا په مزل کښې کوتاهي اُوکړه نو د مقصود نه به په لاره کښې پاتې شې او په دغه کندو کښې به هلاك شې۔ څکه چه د مرض وخت معلوم نۀ دے، يوه لمحه هم په ژوند باندې بهروسه نشته، سحر وخت کښې چا

تـه مـعـلـومـه نـهٔ ده چه ماښام وخت به اُووينې او كه نهٔ۔ دغه شان د ماښام وخت كښې هيڅوك دا نشي وئيلې چه صبا پورې به ددهٔ زندګي ضرور باقي پاتې وي، لهذا هركله چه د صبا او بيګاه علم نشتـه نـو هميشـه مرګ ياد ساته او د ژوند آرزوګانې مهٔ اُوږدوه، په نيكئ كښې تيزي كوه او ځان سره د آخرت توښه زياته واخله چه لاره كښې پاتې نشې۔ مقصود په كښې قصر الامل (اميد لنډول) دى۔ او هغه سبب د زيادة العمل وى۔ قصر الامل سبب زيادة العمل۔

مِنْ صِحَّتِكَ لِمَرَضِكَ : (واخلـه د صحت څپل نه عمل دپاره د بيمارئ) ددې مطلب دا دې چه ستـا عـمـر كښې پـه تـا بـانـدې بـه صـحـت او مرض ضرور راځي نوكله چه ته صحيح روغ ئې نو درميانه روان اُوسه او پدې باندې قناعت مهٔ كوه بلكه وخت په وخت د زياتي كوشش كوه څومره چـه پـه تا كښې قوت وى ځكه چه دا زيادت د عمل به قائمقام شي د هغه عمل چه تا نه د مرض او ضعف په وجه فوت كيږى۔ (تحفة الاحوذى)۔

وَمِنْ حَيَاتِكَ لِمَوْتِكَ : پدې كښې اشاره ده چه مرګ دپاره هم څه حصه ځان سره واخله هسې نه سبا لـه بـه د مرګ په مرض پروت ئې بيا به نيك اعمال درنه پاتې وى نو ځانله تيارې كوه تردې چه د الله تعالىٰ ملاقات او كاميابئ ته پدې حالت كښې اُورسيږې۔

په روايت د ترمذي كښې دى : (فَإِنَّكَ لَاتَدْرِىْ يَا عَبْدَ اللّٰهِ مَا اسْمُكَ غَداً) (يـعـنـى تا ته پته نشته چه صبا به ستا څه نوم وى؟) يعنى شايد چه ته به صبا د مړو په فهرست كښې شمارئې۔

او ددې مـوقـوف حديث معنىٰ په مرفوع حديث د ابن عباسؓ كښې داسې راغلې ده : (اِغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ، شَبَابَكَ قَبْلَ هَرَمِكَ وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ وَغِنَاكَ قَبْلَ فَقْرِكَ، وَفَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ، وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ)(صحيح الترغيب والترهيب برقم (٣٣٥٥) (پـنـځـه څيزونه د پنځو څيزونو د راتلو نه مخكښې غـنـيـمـت اُوګڼره، ځوانى مخكښې د بوډاوالى نه، صحت مخكښې د بيمارئ نه، مالدارى مخكښې د غريبئ نه، فراغت مخكښې د مشغوله كيدو نه او ژوند مخكښې د مرګ نه)۔

**فـوائـد الـحـديـث** : (۱) پدې حـديـث كـښې د رسول اللهﷺ حـرص دې څپل امت ته په خير رسولـو او هـغـوى تـه د دنـيـا پـه پريښودلو تيزى وركول دى او د ضرورت مطابق څيزونو باندې اكتـفـاء تـه ترغيب دې۔ (۲) رهنمائى او نصيحت هغه چا ته هم پكار دې چه هغه مطالبه نهٔ وى كړې۔ (۳) يـو تـه خطاب كول او مراد ترې نه جمع اخستـل هم صحيح دى لكه ابن عمرؓ يو خاص تن ته خطاب نهٔ كوى بلكه مقصد ئې ټول امت ته نصيحت كول دى۔ (٤) د رذائلو او بدو صفاتو نـه ځـان سـاتـل ځـكـه چه مسافر انسان د خلقو سره دشمنى او حسد نهٔ كوى، نفاق پكښې نهٔ وى، جګړو نه ځان ساتى، په يو ځائې كښې كم پاتې كيږى پدې وجه هغه معمولى كور، معمولى باغ او

زمکے والا وی ځان پدے څیزونو د الله نه نهٔ غافله کوی۔ (۵) امیدونه لنډول او د مرګ تیاری کول۔ (٦) حافظ ابن قیمؒ فرمائی : مونږ شیطان د خپل اول کور (جنت) نه په دنیا کښی قیدیان کړی یو پدے وجه مؤمن به جنت طرف ته ډیر رغبت او محبت لری ځکه چه دا تړے رامسافر شوے دے او د دشمن په لاس کښې دے۔

| نَقِّلْ فُؤَادَكَ حَيْثُ شِئْتَ مِنَ الْهَوٰى | | مَا الْحُبُّ إِلَّا لِلْحَبِيبِ الْأَوَّلِ (وَهُوَ اللهُ) |
|---|---|---|
| كَمْ مِنْ مَنْزِلٍ يَأْلَفُهُ الْفَتٰى | | وَحَنِينُهُ أَبَدًا لِأَوَّلِ مَنْزِلٍ (وَهِيَ الْجَنَّةُ) |

(قسم الحديث)

کوم ځائے سره چه ستا مینه وی هغے ته زړهٔ نقل کړه البته ( دا یاد ساته چه) د محبت لائق صرف اولنے محبوب وی (چه هغه الله دے)۔ ډیرو کورونو سره ځوان مینه کوی لیکن پکار ده چه ددهٔ زیات شوق همیشه دپاره اولنی کور ته وی (چه هغه جنت دے)۔

---

۱٦۰٤ (۸) – وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ قَبْلَ مَوْتِهِ بِثَلَاثَةِ أَيَّامٍ يَقُولُ:«لَا يَمُوتَنَّ أَحَدُكُمْ إِلَّا وَهُوَ يُحْسِنُ الظَّنَّ بِاللهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائی : ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی چه د خپل مرګ نه درے ورځے مخکښې ئے (داسے) فرمایل : « هیڅ یو تن دے په تاسو کښې نهٔ مری مګر په داسے حالت کښې (دے مر شی) چه هغه په الله باندے ښائسته ګمان لری»۔ (مسلمٌ)۔

تشریح: ددے حدیث یو مطلب امام خطابیؒ دا بیان کړیدے چه په الله تعالیٰ باندے ښائسته ګمان هغه څوك لرلے شی چه د هغه عمل ښائسته وی نو ګویا کښې داسے ئے اُوفرمایل : (أَحْسِنُوا أَعْمَالَكُمْ بِحُسْنِ ظَنِّكُمْ بِاللهِ تَعَالَى إِذْ مَنْ سَاءَ عَمَلُهُ سَاءَ ظَنُّهُ) (عملونه ښائسته کړئ دے دپاره چه په الله تعالیٰ مو ګمان ښائسته شی ځکه چه د چا عمل بد وی نو د هغه ګمان هم بد وی)۔ مطلب ئے دا دے چه د نیك ګمان لرلو نه مراد نیك اعمال کول دی یعنی په خپل ژوند کښې نیك اعمال کول پکار دی دے دپاره چه د مرګ په وخت کښې په الله تعالیٰ ښه ګمان اُوکړے شی ځکه چه د چا ژوند چه د الله تعالیٰ په اطاعت او د هغه د رضا د حاصلولو په خاطر په عباداتو او نیك اعمالو کښې تیر شوے وی نو هغه به د مرګ په وخت کښې همدغه نیك ګمان قائم ساتی چه ان شاء الله تعالیٰ ما سره به ښه معامله کیږی او ددے په خلاف د چا ژوند چه په نافرمانئ او بدو اعمالو کښې تیر شوے وی نو هغه به د مرګ په وخت په الله تعالیٰ بد ګمان لری ځکه چه کله مرګ په سر

اُودرېږي نو هغه ته به د خپل ژوند بد اعمال رایاد شي، نو ددهٔ به دا خیال پیدا شي چه ما سره به ښائسته معامله نهٔ کیږي.

۲- امام نوويؒ په شرح المهذب کښې وئیلي دي چه د خطابيؒ دا تاویل باطل دے. بلکه صحیح معنیٰ د ښائسته گمان کولو په الله تعالیٰ باندے دا ده چه بنده دا گمان اُوکړي چه الله تعالیٰ به په دهٔ باندے رحم کوي او دهٔ ته به معافي کوي او دا اُمید اُوساتي په تدبر او سوچ کولو سره په آیتونو او هغه احادیثو کښې چه د الله تعالیٰ کرم او عفو او رحمت او وعده د هغه د اهل التوحید سره په کښې ذکر ده لکه صحیح حدیث کښې ئې فرمایلي دي: (آنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِىْ بِىْ) (بنده چه په ما څنگه گمان لري هغه شان معامله ورسره کوم). او په شرح مسلم کښې فرمائي: پدے حدیث کښې یره ورکول دي د نا اُمیدئ نه او تیزي ورکول دي په امید ساتلو په وخت د خاتمه (یعني مرگ) کښې او همدا مذهب د جمهورو امتِ مسلمه دے چه هر څومره گناهگار وي نو هم په الله تعالیٰ به ښه گمان لري.

(د نوويؒ همدا مطلب ظاهر او راجح دے یعني په الله تعالیٰ به داسے گمان کوے چه الله تعالیٰ زما عذاب راکولو ته هیڅ حاجت نهٔ لري او الله غفور رحیم دے او الله تعالیٰ چه ما له دهمکي راکوله نو ددے دپاره چه زهٔ گناهونه اُونکړم لیکن اُوس رانه اُوشو نو الله تعالیٰ مهربانه دے).

بیا ئې وئیلي دي چه په حالت د صحت کښې بنده له پکار دي چه خائف (یریدونکے) او راجي (امید ساتونکے) وي او دواړه دے برابر ساتي. او بعضو وئیلي دي چه خوف دے راجح وي خو کله چه علامات د مرگ رانزدے شي نو امید دے زیات کړي یا دے سراسر اُمید اُوساتي ځکه چه مقصود د خوف نه د گناهونو او قباتحو نه بندیدل دي او حرص وي په ډیر والي د طاعاتو او اعمالو سره او په وخت د مرگ کښې دا کارونه ختم شي نو پدے وخت کښې مستحب ده چه داسے ښائسته گمان اُوساتي چه هغه مشتمل وي په احتیاج او افتقار الی الله سره او هغه ته پوره عاجزي وي. لکه ددے تائید په صحیح حدیث کښې دے: (يُبْعَثُ كُلُّ عَبْدٍ عَلٰى مَا مَاتَ عَلَيْهِ) (بنده به په هغه حالت راپورته کولے شي په کوم چه وفات شوے وي). انتهیٰ.

لیکن د فصل ثاني آخري حدیث نه معلومیږي چه په وخت د مرگ کښې د گناهونو نه یره او د الله تعالیٰ د رحمت امید دواړه جمع کول ضروري دي. او ځانله په رجاء او امید اکتفاء نهٔ ده پکار.

۳- علامه سنديؒ یو بل مطلب داسے ذکر کړیدے چه په الله تعالیٰ باندے همیشه ښائسته گمان لرئ او پدے باندے مضبوط شئ ترڅو چه په تاسو مرگ شي او تاسو په همدے حالت یئ. دا مطلب هم صحیح دے لیکن د حدیث د ظاهر په بناء دویم مطلب ډیر غوره دے.

## الفصل الثاني

١٦٠٥ (٩) - عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«إِنْ شِئْتُمْ أَنْبَأْتُكُمْ مَا أَوَّلُ مَا يَقُوْلُ اللهُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ؟ وَمَا أَوَّلُ مَا يَقُوْلُوْنَ لَهُ ؟» قُلْنَا: نَعَمْ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ ﷺ :« إِنَّ اللهَ يَقُوْلُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ هَلْ أَحْبَبْتُمْ لِقَائِيْ ؟ فَيَقُوْلُوْنَ نَعَمْ يَا رَبَّنَا فَيَقُوْلُ:لِمَ ؟ فَيَقُوْلُوْنَ: رَجَوْنَا عَفْوَكَ وَمَغْفِرَتَكَ. فَيَقُوْلُ: قَدْ وَجَبَتْ لَكُمْ مَغْفِرَتِيْ». رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ وَأَبُوْنُعَيْمٍ فِي الْحِلْيَةِ.

**ترجمه** : معاذ بن جبل ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي :«كـه ستاسو خوښه وي زۀ بـه تاسو تـه خبر درکـرم چـه هغه کومه خبره ده چه الله تعالىٰ به يې مؤمنانو ته د قيامت په ورځ وائي ؟ او هغـه کومه اوله خبره ده چه مؤمنان به يې الله ته وائي ؟» (معاذ فرمائي) مونږ اُووئيل: آؤ، اې د الله رسوله ! (دا راته ضرور اُووايه) وې فرمايل :« الله تـعالىٰ به ايمان والو ته فرمائي : آيا تـاسـو زما ملاقات خوښولو ؟ دوی به اُووائي: آؤ، اې زمونږ ربه ! الله به اُوفرمائي : ولې (تاسو زما مـلاقـات خوښولو) ؟- دوی به اُووائي : مونږ ستا د معافۍ او بخنې اميد ساتلو۔ الله به اُوفرمائي : يقيناً ستاسو دپاره زما بخنه واجب شوه »۔ دا روايت په شرح السنه کښې او ابونعيم په حليه کښې نقل کړيدې۔

**تشريح** : رَجَوْنَا عَفْوَكَ : دې نـه معلوميږي چه څوك په الله تعالىٰ نيك گمان لري نو هغه به د الله تـعالىٰ ملاقات هم محبوب گنړي، په تپوس کښې څه حکمت دې سره ددې نه چه الله تعالىٰ په ټولو باطني خبرو پوهه دې؟ نو شايد چه حکمت دا وي چه الله تعالىٰ بندگانو ته دا خبره اُوروی چه دې کسانو زما ملاقات خوښ گنړلې وو نو ځکه ورته الله تعالىٰ گناهونه هم معاف کړل۔

دا حديث هم دليل دې چه په الله تعالىٰ باندې ښه گمان لرل سبب د مغفرت د گناهونو دې۔

لِقَائِيْ: مخکښې تير شويدي چه ددې ملاقات نه مراد د آخرت کور ته ورگرځيدل او د الله تعالىٰ سره چه څه دي هغه طلب کول دي۔ يا د الله تعالىٰ ديدار مراد دې۔

**درجة الحديث** : اسـنـاده حسـن : احـمـد (٢٣٨/٥) طبراني في الكبير (١٢٥/٢٠ رقم (٢٥١) وابـونـعيم في الحلية (١٧٩/٨) والبغوي في شرح السنة (٢٦٨/٥) وفي اسناده عبيد الله بن زحر قال ابن حبـان فـي الـمـجروحين (٦٢/٢) منكر الحديث جداً يروي الموضوعات عن الاثبات ولكن قال ابوزرعة الـرازي : صـدوق، وقال النسائي : لا بأس به وحسن الترمذي غير ما حديث له وقال الحافظ في التقريب : صدوق يخطئ وقال الهيثمي رواه الطبراني بسندين احدهما حسن (مجمع ٣٥٨/١٠) وضعفه الالباني۔

١٦٠٦ (١٠) - وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ :«أَكْثِرُوا ذِكْرَ هَاذِمِ اللَّذَّاتِ الْمَوْتِ» .رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه.

---

**ترجمه** : او ابو هريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «د (دنيا) خوندونو ختمونکے يعني مرګ ډير يادوئ»۔ (ترمذیؒ، نسائیؒ، ابن ماجهٔ)۔

**تشريح : هَاذِمِ اللَّذَّاتِ**: هاذم په ذال سره پريکونکے او ختمونکے د خوندونو۔ د هذم نه ماخوذ دے په جلتی سره د پريکولو معنیٰ ئے ده۔ ددے نه مراد مرګ دے او مرګ ته ئے ځکه هاذم اللذات اُووئيلو چه د مرګ يادول انسان په خوندونو کښې بے رغبته کوی يا پدے وجه چه کله مرګ راشی نو د دنيا د خوندونو او مزو نه هيڅ نۀ پريدی۔

بعض علماؤ وئيلی دی چه دا هادم لفظ دے په دال سره د هَدَمَ الْبِنَاء (آبادی اُونړيدو) نه دے۔ معنیٰ ئے ده زائله کونکے د خوندونو۔ ليکن علامه سهيلیؒ په الروض الانف کښې وئيلی دی چه صحيح روايت پدے باره کښې په ذال سره دے۔ (المرعاة ٥/٢٩٨)۔

**اَلْمَوْتِ**: مجرور دے بدل دے د هاذم اللذات نه۔ يا مرفوع دے خبر د مبتداء محذوفي دے (ای هُوَ الْمَوْتُ) يا منصوب دے په «يَعْنِيْ» مقدر سره لکه په روايت د ترمذی او ابن ماجه کښې (يَعْنِي الْمَوْتَ) لفظ ذکر دے۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : ترمذی (٢٣٠٧) وقال حديث حسن غريب والنسائی (٤/٤) وابن ماجه (٤٢٥٨) صححه الالبانی فی صحيح ابن ماجه والترمذی بالرقم المذکور۔

---

١٦٠٧ (١١) - وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ أَنَّ نَبِيَّ اللهِ ﷺ قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ لِأَصْحَابِهِ :«اِسْتَحْيُوْا مِنَ اللهِ حَقَّ الْحَيَاءِ» قَالُوْا إِنَّا نَسْتَحْيِيْ مِنَ اللهِ يَا نَبِيَّ اللهِ! وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ. قَالَ:«لَيْسَ ذٰلِكَ وَلٰكِنْ مَنِ اسْتَحْيٰى مِنَ اللهِ حَقَّ الْحَيَاءِ فَلْيَحْفَظِ الرَّأْسَ وَمَا وَعٰى وَلْيَحْفَظِ الْبَطْنَ وَمَا حَوٰى وَلْيَذْكُرِ الْمَوْتَ وَالْبِلٰى وَمَنْ أَرَادَ الْآخِرَةَ تَرَكَ زِيْنَةَ الدُّنْيَا فَمَنْ فَعَلَ ذٰلِكَ فَقَدِ اسْتَحْيٰى مِنَ اللهِ حَقَّ الْحَيَاءِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

**ترجمه** : او د ابن مسعود ﷺ نه روايت دے چه د الله نبی ﷺ يوه ورځ خپلو اصحابو ته اُوفرمايل : «د الله تعالیٰ نه حقه (او د هغه د شان مناسب) حياء اُوکړئ »، صحابه کرامؓ عرض اُوکړو : اے د الله نبی! مونږ يقيناً د الله تعالیٰ نه حياء کوو (يعنی د حکمونو تابعداری) او (پدے

باندې) د الله دپاره ثناء او صفت دې۔ نبي كريم ﷺ أوفرمايل : (( د حياء حق دا نۀ دې چه تاسو كوم وايئ ليكن څوك چه د الله نه لاتقه حياء كوي نو هغه له پكار دي چه د خپل سر او هغه شے چه سر راجمع كړې د هغې حفاظت أوكړي او د خيټې او هغه چه خيټې راګير كړي د هغې حفاظت أوكړي او مرګ او زوړ والے ياد كړي او څوك چه د آخرت د (ښۀ والي) اراده لري نو هغه د دنيا دول دال پريدى۔ لهذا چا چه دا (مخكنى) كارونه أوكړل نو دۀ د الله تعالىٰ نه لاتقه حياء أوكړه))۔ (او د حياء حق ئې ادا كړو)۔ احمدؒ او ترمذیؒ دا روايت نقل كړے او وئيلى ئې دي چه دا حديث غريب دے۔

**تشريح :** حَقَّ الْحَيَاءِ : يعنى لاتقه او رشتينے حياء۔ يعنى د الله تعالىٰ نه د يريدو چه كوم حق دے هغه حق ادا كړئ۔

فَلْيَحْفَظِ الرَّأْسَ : د سر د حفاظت مطلب دا دے چه سر ته الله تعالىٰ د انسان په بدن كښې دير شرافت او كرامت وركړے نو دا د الله تعالىٰ نه علاوه مخلوق، بتانو، قبرونو او اولياؤ ته خكته كولو سره ذليل كول جائز نۀ دي۔ دارنګه په سر سره به سجده د رياء دپاره نشي او نۀ به پدے سره غير الله ته عاجزي كولے شي او نۀ به د غرور او تكبر په طريقه د الله تعالىٰ په بندګانو باندے پورته كولے شي۔

وَمَا وَعٰى: وعى معنىٰ حفاظت او جمع كول دي۔ يعنى سر چه كوم څيزونه راجمع كړيدي چه هغه ژبه، سترګے، غوږونه دي دا به د حرامو ځايونو د استعمال نه ساتى۔لكه په ژبه به غيبت، بهتان، دروغ نۀ وائي، په دروغه قسمونه به نكوي، د فضول خبرو نه به ئې ساتي۔ په سترګو سره به نا محرم او د ګناه څيزونه نۀ ګوري او په غوږونو باندے به غيبت او دروغ او ګانے بجانے او غلطې خبرے نۀ آوري۔

الْبَطْنَ : د خيټے حفاظت دا دے چه د حرامو او مشتبه خوراكونو نه أوساتلے شي۔

وَمَا حَوٰى : د حوىٰ راجمع كولو او پيوسته كولو معنىٰ ده۔ او ددے نه مراد عورت او خپے او لاسونه او زړۀ دے۔ څكه چه دا اندامونه د خيټے سره پيوسته دي او ددے حفاظت دا دے چه دا به په ګناه كښې نۀ استعمالوى بلكه د الله تعالىٰ په مرضئ كښې به ئې استعمالوى۔ مثلًا عورت به د زنا او حرام كارونو نه ساتي۔ دغه شان خپے به د ګناه د ځايونو ته د تللو نه محفوظ ساتي لكه فاحشې ميلے، تماشے، د ګانو بجانو محفلونو او كلبونو ته به نۀ حاضريږي۔ په لاسونو سره به چا ته هيڅ قسم ضرر نۀ وركوي، بغير د اجازت نه به پردي څيزونه نۀ استعمالوي۔ او زړۀ به د بدو عقيدو او غلطو خيالونو نه او د الله تعالىٰ نه غير د بل چا د ياد نه پاك ساتي۔

وَالْبِلٰى: په كسره د باء سره د يو شي زړيدلو ته وئيلے شي۔ يعنى مرګ او د اندامونو په قبر

کښې زریدل دے یاد کړی- یعنی د انسان دا جسم فانی کیدل دے یاد کړی چه د انسان دا ښکلے بدن چه په دنیا کښې که هر څومره عظیم شخصیت او عزتمند وی خو آخر یو داسے وخت راتلونکے دے چه دا به په خاورو کښې پروت وی او آخر دا چه انډامونه او هډوکی به ئے د چینجو خوراك شی او خاورے به شی-

**وَمَنْ أَرَادَ الْآخِرَةَ تَرَكَ زِينَةَ الدُّنْيَا** : پدے کښې دا ضابطه بیان شویده چه څوك پدے پو هیږی چه دنیا فانی ده، نو هغه د دنیا لذات او خواهشات پریدی- دارنگه څوك چه د آخرت د ثوابونو او د هغه ځائے د ابدی نعمتونو او سعادتونو خواهش لری نو هغه به د دنیا زیب وزینت پریږدی ځکه چه دا دواړه څیزونه په پوره کمال په هیڅ یو شخص کښې تردے چه په اولیاؤ کښې هم نشی جمع کیدے- (قاله القاری)-

علامه مناویؒ فرمائی : څوك چه د آخرت همیشه سعادت او نیکبختی غواړی نو هغه به د دنیا زیب وزینت ځکه پریدی چه دنیا او آخرت د یو بل بنے (ضرتین) دی نو که یو راضی کوی او خوشحالوی، بله به ضرور غصه او خفه کیږی- (فیض القدیر ۱/ ٦٢٤)

زینة الدنیا پریخودلو نه مراد هر هغه شے دے چه انسان د آخرت د تیاری نه غافله کوی او زیات خواهش پرستی او اسراف کول پکښې داخل دی، البته پدے کښې نکاح کول نهٔ دی داخل ځکه چه رسول الله ﷺ او صحابه کرام زیات زهد والا وو لیکن بیا هم هغوی نکاحونه زیات کړیدی- لیکن که څوك د زنانو د تعلقاتو په وجه د آخرت نه غافل کیږی نو هغه به پکښې داخل وی-

**فَمَنْ فَعَلَ ذٰلِكَ** : په ذلك کښې اشاره ده ټول هغه کارونو ته چه مخکښې ذکر شول- مطلب دا دے چه که د چا نه څه کارونه پاتے شول بیا دا کامله حیاء او حق الحیاء والا نهٔ دے- نو ددے نه دا معلومه شوه چه د انسان طبیعت او خِلقت د سر نه تر خپو پورے ظاهر او باطن د عیبونو او قباحتو مرکز او مکان دے او الله تعالیٰ عالِم دے په هغه قباحتو چه ددے نه را پیدا کیږی نو حقه حیاء دا ده چه انسان د الله تعالیٰ نه حیاء اُوکړی او دا اندامونه د عیبونو نه محفوظ اُوساتی- او ددے اصل او سر دا دے چه بنده لا یعنی (بے فائدے) کارونه پریدی او فائده مند کارونو کښې مشغول شی، څوك چه دا کار شروع کړی نو دهٔ کښې به د الله تعالیٰ نه حیاء پیدا شی-

امام نوویؒ په المجموع کښې د ابو حامدؒ نه نقل کړیدی چه هر صحیح او مریض له دا پکار دی چه ددے حدیث زیات بیان اُوکړی تردے چه دا ئے نصب العین شی او مریض دپاره ئے خو بالکل ډیر ذکر کول پکار دی-(فیض القدیر) او دا حدیث د تقوئ په پیدا کیدو کښې ډیر جامع حدیث دے-

**درجة الحديث** : اسناده حسن : احمد (۱/ ۳۸۷) والترمذی (۲٤۵۸) والحاکم (٤/ ۳۲۳) وقال

هذا حدیث صحیح الاسناد ووافقه الذهبی وفی سنده الصباح بن محمد مختلف فیه وقال الالبانی فی صحیح الجامع رقم (۹۳۵) حدیث حسن) وله شاهد فی صحیح الترغیب (۱۷۲۴) حسن لغیره)

---

۱۶۰۸ (۱۲) - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«تُحْفَةُ الْمُؤْمِنِ الْمَوْتُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ.

**ترجمه :** او عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :« د مؤمن تحفه مرگ دے »۔ دا روایت بیهقیؒ په شعب الایمان کښې نقل کړے۔

**تشریح :** تحفه : هغه عمده او بهتر شی ته وئیلے شی چه بنده ته د هغه د اکرام او عزت په طور ورکولے شی نو هرکله چه دنیا د غمونو کور دے او په مرگ سره انسان د نفس د مجاهدے د مشقت او تکلیف نه په راحت کیږی او پدے سره محب د خپل محبوب سره یو ځائے کیږی او ژوند جیل دے او مرگ یوه تحفه ده نو کله چه انسان ته دا تحفه ورکړے شی نو دا به خپلے همیشه کامیابۍ او ثوابونو او د مشقت عوضونو ته اُورسولے شی۔ نو ترڅو پورے چه مؤمن پاندے مرگ نهٔ وی راغلے نو دا ابدی سعادت او جنتونو ته نشی رسیدلے۔ بعض وائی : تحفه : احسان او لطف (مهربانۍ) ته وئیلے شی نو گویا کښې مرگ د الله تعالیٰ لطف او مهربانی ده چه مؤمن ته ئے ورکوی دے دپاره چه جنتونو او خپل قرب ته ئے اُورسوی او د دنیا د مشقتونو نه ئے خلاص کړی۔ نو دا اگرکه په ظاهر کښې فناء او ختمیدل دی لیکن په حقیقت کښې دویم ولادت دے او د دار الفناء نه دار البقاء ته تلل دی۔ نو د مرگ نه بغیر جنت ته رسیدل ممکن نهٔ دی۔ ددے وجه نه الله تعالیٰ په مونږ باندے د مرگ په پیدائش احسان کړیدے : ﴿ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ﴾ (الملك) (الله تعالیٰ مرگ او ژوند پیدا کړیدے) دلته ئے مرگ مخکښې کړو پدے کښې تنبیه ده چه د مرگ په وجه به انسان حقیقی ژوند ته رسیږی۔

نو جنت ته د رسیدلو واحد ذریعه د مؤمن دپاره مرگ دے نو هرکله چه مرگ بد شے نهٔ دے نو ددے په راتلو خفگان کول او ځان پریشانه کول او د مرگ نه بے ځایه یریدل نهٔ دی پکار۔ او پدے کښې مؤمن ته یو نوع تسلی ده چه اے مؤمنه ! ته د مرگ په راتلو مهٔ خفه کیږه ځکه چه ته پدے سره اعلیٰ درجاتو او کامیابو ته روان ئے۔

امام رازی نه نقل دی : (اَلْمَوْتُ سَبَبٌ لِخَلَاصِ الرُّوْحِ عَنْ رَحْمَةِ الْبَدَنِ وَالْاِتِّصَالِ بِحَضْرَةِ اللّٰهِ وَرَحْمَتِهٖ فَكَيْفَ يُعَدُّ مِنَ الْمَكَارِهِ؟) ۔ (مرگ سبب دے د خلاصیدو د روح د رحمت د بدن نه او پیوسته کیدل دی د الله تعالیٰ د حضور او رحمت سره نو دا به څنگه بد اُوگنړلے شی؟) (فیض)۔

د مؤمن دپاره اُورږد ژوند بهتر شي دې، دې دپاره چه د الله تعالیٰ طاعات اُوکړي چه ددې په وجه ئې گناهونه ختم شي او درجات ئې پوره شي ليکن کله چه الله تعالیٰ پرې مرگ راولي نو بيا دا هم ورله بد شي نهٔ دې ځکه چه د دغه طاعاتو په نتيجه کښې ثوابونه او کاميابي حاصلول هم مقصود دي او هغه بغير د مرگ نه نشي کيدې نو مرگ هم ورله تحفه شوه۔

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف: ابن المبارك فی الزهد (۵۹۹) والطبرانی فی الکبير وقال الالبانی : اما قول المنذری فی الترغيب (۴/۱۶۸/۶) : رواه الطبرانی باسناد جيد وقول الهيثمی (۲/۳۲۰) رواه الطبرانی فی الکبير ورجاله ثقات! قلت : (فما اظن الا انه من تساهلهما فانه من رواية ابن زياد الافريقی وهو ضعيف الخ) راجع السلسلة الضعيفة رقم (۶۸۹۰) (۱۴/۹۱۰) ولکن ابن زياد الافريقی وثقه خمسة من ائمة الجرح والتعديل کما فی شرح الترمذی لاحمد شاکر وقال البخاری مقارب الحديث فتحسينه جيد قاله ابومحمد امين الله۔

---

**۱۶۰۹ (۱۳) – وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ، قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« اَلْمُؤْمِنُ يَمُوْتُ بِعِرْقِ الْجَبِيْنِ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : او بريده ﷜ فرمائي رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «مؤمن د تندي د خولې سره مري»۔ (ترمذيؒ، نسائيؒ، ابن ماجةؒ)۔

**تشريح** : اهل علمو ددې ډير مطلبونه بيان کړيدي (۱) يو مطلب دا دې چه مؤمن سړي باندې په وخت د مرگ کښې ډير تکليف او شدت وي ترڅو چه تندي باندې ئې خوله ښکاره شي دې دپاره چه کوم گناهونه په دهٔ باندې پاتې وي چه ددې سختئ په وجه ورته هغه هم معاف شي او مرتبې او درجې ئې پوره شي او په قبر او آخرت کښې د مصيبتونو نه په آرام شي۔ (۲) بعض وائي : د مؤمن نه په وخت د مرگ کښې د حياء په وجه خوله ځي ځکه کله چه دهٔ ته زيرې ورکړې شي سره ددې نه چه دهٔ ته گناهونه هم معلوم وي نو پدې سره دهٔ ته د الله تعالیٰ نه حياء او شرمندگي او خجالتي راشي نو تندې ئې خوله شي۔

(۳) بعض وائي : مؤمن سړې به هميشه تر مرگه پورې په نيك اعمالو او د حلالو په طلب او په ځان باندې د روژو او مونځونو سره سختي راوستو کښې اجتهاد او کوشش کښې لگيا وي او خوله به د ځان نه اُوباسي۔ او په همدې حالت کښې به دهٔ لره مرگ هم راځي يعني مؤمن سړې به هميشه مجتهد وي او د اعمالو نه به سُست او ستومانه نهٔ وي۔

(۴) بعض علماء وائي : دا نښه او علامه د حسن الخاتمې ده چه مؤمن نه کله خوله لاره شي نو

معلومه به شي چه دا مؤمن وفات شو۔ ليکن دې سره دا ياد ساتل پکار دي چه د انسان نه په وخت د مرګ کښې خوله لاړه نشي نو داسې ګمان به نشي کولې چه ګنې دا بد بخته وفات شو، بلکه دا اکثري قاعده ده او کلي نه ده۔ بلکه کله چه ترې خوله لاړه نو دا يوه رڼرا او نور دې چه الله تعالیٰ بنده له ورکړو او خلقو ته ئې اُوخودله چه دا مؤمن وفات شو۔ او اهل علمو د حسن الخاتمې په علاماتو کښې يوه علامه دا هم ذکر کړيده۔ اُوګوره کتاب الجنائز د علامه الباني او الفوائد في تزکية النفوس۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح: ترمذی (٩٨٢) والنسائی (٤/٥-٦) والحاكم فی المستدرك (١/٣٦١) وقال هذا حديث صحيح علی شرط الشيخين ولم يخرجاه ووافقه الذهبی وفيه عنعنة قتادة لكن احد اسنادی النسائی صحيح علی شرط البخاری وله شاهد من حديث ابن مسعود رواه الطبرانی فی الاوسط والكبير ورجاله رجال الصحيح كما فی المجمع (٢/٣٢٥) (البانی فی الجنائزص (٣٥)۔

---

١٦١٠ (١٤) – وَعَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :«مَوْتُ الْفُجَاءَةِ أَخْذَةُ الْأَسَفِ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَزَادَ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ وَرَزِيْنٌ فِيْ كِتَابِهٖ: «أَخْذَةُ الْأَسَفِ لِلْكَافِرِ وَرَحْمَةٌ لِلْمُؤْمِنِ».

ترجمه : او عبيد الله بن خالد ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «ناڅاپي مرګ (د الله) د غضب رانيول دي»۔ (ابوداود) او بيهقي په شعب الايمان کښې او رزين په خپل کتاب کښې دا الفاظ نقل کړيدي چه «د غضب رانيول د کافر دپاره دي او د مؤمن دپاره رحمت دې»۔

**تعارف د عبيد الله بن خالد**۔ د مشکاة په عامو نسخو کښې همدغه شان دې ليکن دا خطاء دې صحيح دا ده چه دا عبيد بن خالد دې سلمي، بَهْزِي ورته وئيلې شي، مهاجري صحابي دې۔ ابو عبد الله ئې کنيه ده، کوفه کښې اُوسيدلې دې، سعد بن عبيده، تميم بن سلمه ترې روايتونه نقل کوي، د علي ﷺ سره په جنګ صفين کښې ملګرې وو او د حجاج تر حکومت پورې ژوندې وو۔

**تشريح : الْفُجَاءَةِ** : په ضمه د فاء او مد سره يا په فتحه د فاء او سکون د جيم سره بغير د مد نه فَجْأَةً ـ فجاءتی (مفاجاتی) مرګ ديته وائي چه بغير د مخکښې سبب نه ناڅاپي راشي۔

**الْأَسَفِ**: تيولو نسخو کښې ورسره الف لام شته ليکن ابوداود کښې ورسره الف لام نشته بلکه (اسف) لفظ دې۔

اسف : غم او غضب ته وئيلې شي يعني ناڅاپي مرګ د الله تعالیٰ د غضب رانيول دي۔ او د الله

تعالیٰ د غضب د نخو نه دی ځکه چه پدے سره الله تعالیٰ بنده ته د توبے او نیك اعمالو او د آخرت د تیاریٔ دپاره موقع ورنکړی دے دپاره چه گناهونه ئے معاف شی۔ خو دا د کافرانو او فاسقانو په باره کښ دی چه مرگ دپاره تیارے نهٔ کوی لکه دا دویم روایت پرے دلیل دے۔ او د مؤمن په هر حالت کښ خیر دے که هغه ناڅاپی مر شی نو هم د ایمان په حالت کښ مری ځکه چه دهٔ کښ د مخکښ نه ایمان موجود دے او د ایمان سره آخرت ته لاړو۔

لیکن بعض اهل علمو وئیلی دی چه ناڅاپی مرگ د هیڅا دپاره ښه نهٔ دے او ددے نه پناهی طلب کول پکار دی لکه طبرانی کښ یو ضعیف حدیث نه معلومیږی چه نبی ﷺ به د ناڅاپی مرگ نه پناهی طلب کوله۔ (الطبرانی فی الکبیر وفی اسناده ابن لهیعة سیء الحفظ)۔

**وَزَادَ الْبَيْهَقِيُّ** : ددے الفاظو نه په ظاهر کښ دا معلومیږی چه دا زیات الفاظ پدے حدیث د عبید کښ بیهقی او رزین راوړیدی حال دا چه خبره داسے نهٔ ده بلکه دغه روایت سره د زیادت نه مستقل حدیث دے، د عائشہؓ نه نقل دے احمدؒ او طبرانیؒ په اوسط کښ او بیهقیؒ په سنن کبریٰ (۳/۳۷۹)کښ راوړیدے۔ او ضعیف دے۔ په سند کښ ئے عبید الله بن الولید الوصافی متروك راوی دے (هیثمیؒ)

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : احمد (۳/۴۲۴) وابوداود (۳۱۱۰) والبيهقی (۳/۳۷۸)۔

---

۱۶۱۱ (۱۵) – وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ : دَخَلَ النَّبِيُّ ﷺ عَلٰى شَابٍّ وَهُوَ فِي الْمَوْتِ فَقَالَ: « كَيْفَ تَجِدُكَ ؟» قَالَ : أَرْجُو اللهَ يَا رَسُوْلَ اللهِ وَإِنِّيْ أَخَافُ ذُنُوْبِيْ. فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« لَا يَجْتَمِعَانِ فِيْ قَلْبِ عَبْدٍ فِيْ مِثْلِ هٰذَا الْمَوْطِنِ إِلَّا أَعْطَاهُ اللهُ مَا يَرْجُوْ وَآمَنَهُ مِمَّا يَخَافُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

**ترجمه** : او انس ؓ فرمائی : نبی ﷺ په یو ځوان داخل شو چه هغه د مرگ په حالت کښ وو۔ رسول الله ﷺ هغه ته اُوفرمایل : « خپل ځان څنگه مونده کوے ؟ » هغه اُووئیل : اے د الله رسوله ! زهٔ د الله نه (د رحمت) امید ساتم او د خپلو گناهونو نه یریږم۔ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : « په داسے مقام کښ دا دواړه د یو بنده په زړهٔ کښ نهٔ راجمع کیږی مگر الله به هغه ته ضرور هغه شے ورکوی د کوم چه امید ساتی او امن به ورکوی د هغه شی (عذاب) نه چه د کوم نه یریږی»۔ (ترمذیؒ، ابن ماجهؒ) او ترمذیؒ وئیلی دی چه دا حدیث غریب دے۔

**تشریح : كَيْفَ تَجِدُكَ ؟** : یعنی تهٔ خپل نفس او زړهٔ څه حالت کښ مونده کوے چه د دنیا نه

آخرت ته نقل كيږي نو آيا د الله تعالىٰ د رحمت اميد لري او كه د هغه د غضب نه يره كوي ؟۔
دا حديث دليل دے چه په هر وخت كښې يره او اميد دواړه جمع كول پكار دي خاصكر په وخت د مرګ كښې او په الله تعالىٰ باندے ښه ګمان لرل پكار دي او د خپلو ګناهونو احساس هم پكار دے ځكه چه پدے كښې خاكسارى او د بنده عاجزى ده او الله تعالىٰ ته خپل عجز ښكاره كول دي۔ چه زهٔ مجرم يم ليكن ته به راسره ښائسته معامله كوے۔

**الْمَوْطِنِ** : مراد ددے نه وخت د مرګ دے۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : الترمذى (٩٨٣) وابن ماجه (٤٢٦١) واسناده رجاله ثقات غير سيار بن حاتم وهو صدوق له اوهام فسنده حسن وحسنه الترمذى (الصحيحة رقم : (١٠٥١) (١٢٥/٣)۔

## الفصل الثالث

١٦١٢ (١٦) - عَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«لَا تَمَنَّوُا الْمَوْتَ فَإِنَّ هَوْلَ الْمُطَّلَعِ شَدِيْدٌ وَإِنَّ مِنَ السَّعَادَةِ أَنْ يَّطُوْلَ عُمُرُ الْعَبْدِ وَيَرْزُقَهُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ الْإِنَابَةَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

---

ترجمه : جابر ؓ فرمائى : رسول الله ﷺ فرمايلى دى : «د مرګ آرزو مهٔ كوئ ځكه چه كبراهټ د مرګ ډير سخت دے۔ بيشكه دا د نيكبختئ نه ده چه د بنده عمر اُوږد شى او الله تعالىٰ ورته انابت (خپلو طاعاتو طرف ته رجوع) ورنصيب كړى»۔ (احمدؒ)۔

**تشريح : لَا تَمَنَّوُا** : يوه تاء حذف ده اصل كښې (تَتَمَنَّوْا) دے۔

**فَإِنَّ هَوْلَ** : په معنىٰ د هيبت سره۔

**الْمُطَّلَعِ** : په ضمه د ميم او تشديد د طاء او فتحه د لام سره هغه اُوچت ځائے ته وئيلے شى چه د هغے د سر نه خكته خلق راښكاره كيږى (نهايه)۔ دلته ترے مراد مرګ دے چه پدے سره ورښكاره كيدل كيږى د برزخ او د آخرت په اهوال (يرو) او احوالو باندے۔

يا معنىٰ ده : هيبت د هغه مرګ چه هغه په انسان راښكاره كولے شى سخت دے۔ دا وجه ده چه په وخت د مرګ د انسان رنګ زيړ شى او ژبه ئے بنده شى او سترګے نيغے شى۔

او د مرګ تمنى كولو مطلب دا جوړيږى چه ځان دپاره د تكليفونو او سختيانو غوختل او دا خو د عقلمند كار نهٔ دے۔ بلكه د مرګ نه روستو زندګئ دپاره تيارے پكار دے۔

**وَإِنَّ مِنَ السَّعَادَةِ** : يعنى عظيم سعادت او نيكبختى دا ده چه بنده ته اُوږد عمر وركړے شى او بيا پدے عمر كښې ورته انابت ورنصيب شى چه الله تعالىٰ ته هميشه متوجه وى او هغه ته

راواپس كيدونكې وي، گناه ترې كيږي او زر توبه اُوباسي۔
علامه طيبيؒ فرمائي : د مرگ د آرزو كولو نه ئې په دوه وجو منع اُوكړه يو دا چه مرگ سخت شے دے ځكه چه انسان ئې چه آرزو كوي نو ددے وجه كم صبر او تنگيدل ددهٔ دي او كله چه ورته دا آرزو راشي نو لا به ئې تنگي او بے صبري زياته شي نو د الله تعالىٰ د طرف نه د زيات غضب مستحق به شي۔ دويمه وجه دا ده چه سعادت او نيكبختي په اُوږد عمر كښې ده ځكه چه انسان ددے دپاره دنيا كښې پيدا شويدے چه دا به هميشه سعادت او كاميابئ ته ځان رسوي او ددے كاميابئ رأس المال عمر د انسان دے، آيا داسے تاجر تا چرته ليدلے دے چه خپل رأس المال ضائع كړي او بيا هغه پس د ضائع كولو د مال نه گټه كړي وي انتهىٰ۔
بعض وائي : مطلع نه مراد زمانه د اطلاع د ملك الموت يا نكير منكر ده۔ يعني هيبت د زمانے د راښكاره كيدو د ملك الموت يا د نكير منكر ډيره سخته ده۔ يا يره د زمانے د راښكاره كيدو د الله تعالىٰ په صفت د غضب سره په قيامت كښې سخته ده يا يره د زمانے د راښكاره كيدو په هغه كارونو چه په مرگ باندے مرتب كيږي ډير سخت دي۔
**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : احمد (٣/٣٣٢) وفيه الحارث بن يزيد او ابن ابي يزيد لم يوثقه احد غير ابن حبان)۔

---

١٦١٣ (١٧) – وَعَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ قَالَ: جَلَسْنَا إِلٰى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَذَكَّرَنَا وَرَقَّقَنَا فَبَكٰى سَعْدُ بْنُ أَبِيْ وَقَّاصٍ فَأَكْثَرَ الْبُكَاءَ فَقَالَ: يَا لَيْتَنِيْ مِتُّ. فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «يَا سَعْدُ! أَعِنْدِيْ تَتَمَنَّى الْمَوْتَ؟». فَرَدَّدَ ذٰلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ قَالَ: «يَا سَعْدُ إِنْ كُنْتَ خُلِقْتَ لِلْجَنَّةِ فَمَا طَالَ عُمُرُكَ وَحَسُنَ مِنْ عَمَلِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

ترجمه : او ابو امامه رضي الله عنه فرمائي : مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو نو هغه مونږ ته نصيحت اُوكړو او (د آخرت په خوف وركولو سره ئې) زمونږ (زړونه) نرم كړل۔ نو سعد بن ابي وقاص اُوژړل او ژړا ئې زياته كړه او بيا ئې اُووئيل : كاش ! چه زهٔ (په وړوكوالي كښې) مړ وے، (نو گناهگار به نهٔ وے او د آخرت د عذاب نه به بچ وے) نبي ﷺ اُوفرمايل : « اے سعد ! آيا تهٔ زما په خوا كښې د مرگ آرزو كوے؟ او دا خبره ئې ورته درے كرته اُوكړه او بيا ئې ارشاد اُوفرمايلو : اے سعد ! كه ته جنت دپاره پيدا شوے ئې نو څومره چه ستا عمر اُوږديږي او عمل دے نيك وي نو دا به ستا دپاره ډير غوره وي »۔ (احمدؒ)۔

**تشريح : فَذَكَّرَنَا** : دا د تذكير نه دے په معنىٰ د وعظ او نصيحت كولو۔
**وَرَقَّقَنَا** : د ترقيق نه دے په معنىٰ د نرمولو سره يعنى زمونږ زړونه ئے نرم كړل په خپل بيان سره۔ بعض وائى : معنىٰ ئے ده : مونږه ئے په دنيا كښې بے رغبته كړو او د آخرت سره ئے زمونږ مينه پيدا كړه۔
**فَبَكَى سَعْدٌ** : د صحابه كرامؓ ډير عجيبه صفا زړونه وو چه بيان او وعظ به پرے ډير زر اثر كولو نو دوئ د آخرت سره مينه پيدا شوه نو د مرګ آرمان ئے اُوكړو۔ نو رسول الله ﷺ منع كړو چه زۀ موجود يم او ته د مرګ آرمانونه كوے۔ د الله تعالىٰ د رسول په موجودګى كښې د مرګ آرمان كول خو ډير منع دى۔ كه زما د مرګ نه پس آرمان وى نو بيا هم لا څه وجه لرى۔
يا مطلب دا چه ته د مرګ تمنى كوے او حال دا چه تۀ د مرګ د تمنى نه منع شوے ئے ځكه چه پدے كښې د اجر او درجاتو كميدل دى كوم چه په سبب د زيات او ښائسته عمل كولو سره په اُوږد عمر كښې حاصليږى۔
يا دا چه ما د مرګ د آرمان كولو نه منع فرمائيلے ده او تۀ زما په خوا كښې د مرګ آرمان كوے نو دا خو ډير نا مناسبه خبره ده۔ بله دا چه د رسول الله ﷺ ژوند د امت دپاره سراسر خير خير وو نو د مرګ آرزو كول د خير نه ځان محرومول وو۔
**وَحَسُنَ مِنْ عَمَلِكَ** ۔ بل جانب ئے ذكر نكړو چه ستا عمر اُوږد وى او عمل دے بد وى نو دا به ستا دپاره شر وى ځكه چه سعد جنتى دے، بد عمل ئے نشته۔ ددۀ د ژوند اُوږديدل سراسر خير خير وو۔ او خبره ئے په صورت د شرط كښې ذكر كړه نۀ په يقين سره ځكه چه د صحابى جنتى كيدل هم مشروط دى په شرطونو سره چه هغه نيك اعمال دى او په ايمان باندے وفات كيدل دى۔ ليكن په روايت د طبرانى كښې ورسره بل جانب هم ذكر دے نو هغه بيا اشاره ده ماسوىٰ د سعدؓ نه روستو انسانانو ته چه كه هغوى اُوږد پيدا وى او مرګ غواړى نو بيا خو ځان شرته وراندے كوى۔
**درجة الحديث**: الحديث صحيح لغيره : احمد (٥/٢٦٧) وفيه على بن يزيد الالهانى ضعيف لكن الحديث يؤيده ما جاء من الاحاديث فى طول عمر المؤمن والنهى عن تمنيه الموت۔

---

**١٦١٤ (١٨) – عَنْ حَارِثَةَ بْنِ مُضَرِّبٍ قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى خَبَّابٍ وَقَدِ اكْتَوَى سَبْعًا فَقَالَ: لَوْلَا أَنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «لَا يَتَمَنَّ أَحَدُكُمُ الْمَوْتَ» لَتَمَنَّيْتُهُ. وَلَقَدْ**

رَأَيْتُنِيْ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ مَا أَمْلِكُ دِرْهَمًا وَإِنَّ فِيْ جَانِبِ بَيْتِيَ الْآنَ لَأَرْبَعِيْنَ أَلْفَ دِرْهَمٍ قَالَ ثُمَّ أُتِيَ بِكَفَنِهٖ فَلَمَّا رَآهُ بَكٰى وَقَالَ لٰكِنْ حَمْزَةُ لَمْ يُوْجَدْ لَهٗ كَفَنٌ إِلَّا بُرْدَةٌ مَلْحَاءُ إِذَا جُعِلَتْ عَلٰى رَأْسِهٖ قَلَصَتْ عَنْ قَدَمَيْهِ وَإِذَا جُعِلَتْ عَلٰى قَدَمَيْهِ قَلَصَتْ عَنْ رَأْسِهٖ حَتّٰى مُدَّتْ عَلٰى رَأْسِهٖ وَجُعِلَ عَلٰى قَدَمَيْهِ الْإِذْخَرُ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ إِلَّا أَنَّهٗ لَمْ يَذْكُرْ: ثُمَّ أُتِيَ بِكَفَنِهٖ إِلٰى آخِرِهٖ.

**ترجمه**: حارثه بن مضربؒ (تابعي) فرمائي : زهٔ د خبابؓ خوا ته ورغلم او هغه اُوه داغونه لګولي وو۔ نو وې فرمايل : كه ما د رسول الله ﷺ نه نهٔ وې آوريدلي چه فرمايل : «هيڅ يو تن دې په تاسو كښې د مرګ آرزو نهٔ كوي» نو ما به ضرور د مرګ آرزو كړې وې۔ ما د رسول الله ﷺ سره خپل ځان ليدلې چه زهٔ د يو درهم مالك هم نهٔ وم او اُوس زما د كور په اړخ كښې څلويښت زره درهم موجود دي۔ حارثهٔ فرمائي : بيا خباب ته د هغه كفن راوړې شو (چه ډير اعلىٰ او مزيدار وو)۔ كله چه هغوى هغه اُوليدو نو وې ژړل او وې فرمايل : (اګركه دا كفن جائز دې) ليكن حمزه دپاره (پوره) كفن نهٔ وو مګر يو تور او سپين (برګ) څادر وو (او هغه هم دومره وړوكې وو) كله چه به د هغه په سر واچولې شو نو د قدمونو نه به ئې راغونډ شو او كله چه به د هغه په قدمونو واچولې شو نو د سر نه به راغونډ شو تردې چه د هغه په سر باندې خور كړې شو او د هغه په قدمونو سركړې واچولې شو۔ دا روايت احمدؒ او ترمذيؒ نقل كړې ليكن ترمذيؒ (ثُمَّ أُتِيَ بِكَفَنِهٖ) نه آخر پورې الفاظ نهٔ دي نقل كړي۔

**تعارف د حارثة بن مضرب** : د بنو عبد الدار نه دې او كوفه كښې اُوسيدلې دې، د كبار التابعين نه ثقه دې۔

**تعارف د خباب بن الارت** ؓ : خباب په شد د باء سره او الارت كښې په تاء باندې شد دې۔ تميمي صحابي دې، پخوانې مسلمان دې، د جاهليت په زمانه كښې قيدي شوې وو او بيا په مكه كښې خرڅ كړې شو بيا د بنو زهرو حليف جوړ شو او د رسول الله ﷺ دار الارقم ته د داخليدو نه مخكښې ئې ايمان راوړو۔ بعض وائي : دا شپږم مسلمان دې، او دا اولنې هغه صحابيؓ دې چه خپل اسلام ئې راښكاره كړې وو، نو د الله تعالىٰ په باره كښې ډير سخت سخت تكليفونه وركړې شو لكه هغه په احاديثو او سيرت كښې ذكر دي۔ عمر بن الخطاب ؓ يوه ورځ د خبابؓ نه تپوس اُوكړو چه تا باندې د الله تعالىٰ په باره كښې كوم تكليفونه تير شويدي نو هغه خپله ملا ښكاره كړه، عمرؓ حيران شو او دا ئې اُوفرمايل : (مَا رَأَيْتُ كَالْيَوْمِ) (داسې حالت ما د نن ورځ نه مخكښې نهٔ

دے لیدلی) خبابؓ اُووئیل: ما دپاره به اُور بل کړے شو او زۀ به په هغے باندے راخکلے شوم نو هغه اُور به زما د ملا په وازدو مړ شو۔ د بدر او باقی تولو غزواتو کښې ئے شرکت کړیدے۔ په جاهلیت کښې زمانه کښې آهنګروو چه تورے به ئے جوړولے، بیا کوفے ته تلے وو او هلته کښې په سنه (۳۷ هـ) کښې وفات شو کله چه علی ﷜ د جنګ صفین نه واپس راروان وو او علی ﷜ پرے جنازے مونځ اُوکړو۔ بعض وائی : کله چه علی ﷜ د صفین نه راواپس شو نو د خبابؓ په قبر باندے راتیر شو او وے فرمایل : (رَحِمَ اللّٰهُ خَبَّابًا اَسْلَمَ رَاغِبًا وَهَاجَرَ طَائِعًا وَعَاشَ مُجَاهِدًا وَابْتُلِیَ فِیْ جِسْمِهٖ اَحْوَالًا وَلَنْ یُّضِیْعَ اللّٰهُ اَجْرَهٗ) (الله تعالیٰ دے په خبابؓ رحم اُوکړو چه اسلام ئے په مینه راوړے وو او هجرت ئے په خپله خوښه کړے وو او ژوند ئے په مجاهده کښې تیر کړے وو او بدن کښې په ناشنا امتحاناتو اخته شوے وو او الله تعالیٰ به ددهٔ اجر نهٔ ضائع کوی)۔

**تشریح :** اکْتَوٰی : د کی نه ماخوذ دے په معنیٰ د داغ لګولو سره۔ یعنی څرمن په اُوسپنه وغیره باندے سیزل۔

د داغ لګولو متعلق مختلف روایات راغلی دی۔ د بعضو نه جواز معلومیږی لکه رسول الله ﷺ جابرؓ لره په اَکحَل رګ باندے داغ لګولے وو او دغه شان اسعد بن زرارهؓ وغیره ئے داغلے وو۔ انس بن مالك ﷜ فرمائی : زۀ د ذات الجنب بیماریٔ د وجه نه داغلے شوے وم او نبی ﷺ ژوندے وو او ما ته ابو طلحهؓ، انس بن نضرؓ او زید بن ثابتؓ حاضر شوی وو او ابو طلحهؓ په خپل لاس داغلے وم۔ (مطلب دا چه نبی ﷺ او دے صحابه کرامو زۀ ددے کار نه نهٔ یم منع کړے) (بخاری باب من اکتوی وفضل من لم یکتو)۔

او عبد الله بن عمرؓ د لقوے بیماریٔ د وجه نه داغ لګولے وو۔ او بل طرفته احادیثو نه منع هم معلومیږی لکه د مسند احمد (۱۹/۳) په صحیح حدیث د جابرؓ کښې دی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : (وَمَا اُحِبُّ اَنْ اَکْتَوِیَ) (زۀ داغ لګول نهٔ خوښوم) او په مسلم کښې راغلی دی چه کله عمران بن حصینؓ داغ اُولګولو نو ملائکو پرے سلام اچول بند کړل۔ دغه شان حدیث د بخاری کښې د ابن عباسؓ نه مرفوعاً نقل دی : (اَلشِّفَاءُ فِیْ ثَلَاثٍ...... او کَیَّةٍ بِنَارٍ وَاَنْهٰی اُمَّتِیْ عَنِ الْکَیِّ) (بخاری) (شفاء په درے څیزونو کښې ده – یو د هغے نه په اُور سره داغ لګولو کښې لیکن زۀ خپل امت د داغ لګولو نه منع کوم)۔

پدے احادیثو کښې تطبیق دا دے چه داغ لګول جائز نهٔ دی مګر د ضرورت په وخت لګول جائز دی، لکه مثلاً یو انسان بیمار وی او علاج ئے په داغ لګولو سره کیږی نو بیا جائز ده لکه ددغه صحابه کرامو اعمال پرے دلیل دے او کومو احادیثو کښې چه نهی راغلے ده نو دغه نهی د

کراهت دپاره ده او د باب د توکل سره متعلق ده یعنی داغ لګول د توکل خلاف دی لکه پدے باندے حدیث د (لَا يَسْتَرْقُوْنَ وَلَا يَكْتَوُوْنَ وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ) دلیل دے۔ یعنی بے حسابه بے کتابه اَوویا زره کسانو کښ هغه خلق جنت ته داخلیږی چه داغونه نۀ لګوی۔ او بل حدیث د عمران بن حصین کښ دی : [نَهَى النَّبِيُّ ﷺ عَنِ الْكَيِّ فَاكْتَوَيْنَا فَمَا أَفْلَحْنَا وَلَا أَنْجَحْنَا] (صحیح ابی داود) (نبی ﷺ د داغ لګولو نه منع کړے وه خو مونږ داغونه اُولګول نو هیڅ کامیابی حاصله نشوه) ددے نه هم معلومیږی چه دا نهی د رسول الله ﷺ د تحریم دپاره نۀ وه ورنه بیا دے صحابه کرامو داغونه ولے لګول بلکه دا د باب د توکل نه وه۔ او امام بخاری هم دے خبرے ته په خپل ترجمة الباب کښ اشاره کړیده۔ لکه مخکښ تیر شو۔

یا حمل ده په هغه داغ لګولو چه ضرورت ورته نۀ وی۔ یا د مرض راتلو نه مخکښ داغ لګول وی یا په مخ باندے داغ لګول وی لکه په حدیث د بخاری کښ راغلی دی چه رسول الله ﷺ منع کړیده د داغ لګولو نه په مخ باندے۔ ځکه پدے سره انسان بدرنګه کیږی۔

یا حمل دے په هغه صورت چه څوک د داغ لګولو نه شفاء ګڼړی نو بیا به حرامه وی او که دا عقیده ساتی چه دا یو سبب دے او شفاء ورکونکے صرف الله تعالیٰ دے نو بیا به جائز وی۔ پدے کښ راجع دا ده چه ددے نه منع پدے وجه شویده چه پدے کښ زیات مشقت دے نو دا نهی د ترحم او شفقت دپاره شویده۔

**أَلْفَ دِرْهَمٍ** : خباب ته دا مالونه د جهاد د برکت نه حاصل شوی وو، په غنیمتونو سره مالداره شو۔ لیکن هغه لره مالداریٔ د الله تعالیٰ د تعلق او د آخرت د یاداشت نه غافله نۀ کړو او دیته کمال وائی۔

**لَتَمَنَّيْتُهُ** : د خباب آرزو د مرګ یا خو د هغه مرض د سخت والی د وجه نه وه چه د کوم مرض د وجه نه ئے داغونه په ځان لګولی وو بے قراره او پریشانه وو یا ددے وجه د هغه مالداری وه چه هغه ته دا احساس شوے وو چه د مال دا زیادت چرته زما د استقامت خپه خویه نکړی چه د هغے په وجه د آخرت په عذاب کښ مبتلا شم او همدا وجه صحیح ده ځکه چه د هغه دا الفاظ (ولقد رأیتنی الخ) پرے دلالت کوی۔

**فَلَمَّا رَآهُ بَكَى** : د صحابه کرامو عجیب حال ته اُوګوره خپل کفن هم ګوری او خبرے اترے هم کوی او داسے په تسلیٔ سره وی، لږ ساعت پس به مری لیکن کمال ته ئے اُوګوره۔

بیا دا ژړا ئے پدے وجه وه چه هغه ته دا رایاد شو چه اُوګوره زما ملګری پداسے تنګ حالت کښ وفات شوی وو او ما ته دومره قیمتی جامه د کفن راوړے شوه نو زۀ د خپلو ملګرو په نقش قدم

روان نشـوم، دے کښې الله تـعـالیٰ ته خپله عاجزي کوي او دا يره كوي چه هسے نه مونږ سره ددے حساب اُوشي نو په خپل عمل باندے يره کوي او ځان سره حساب کوي چه هسے نه چه دا حالت زما استدراج چرته نۀ وي۔

بُرْدَةٌ : مرفوع دے بدل دے د کفن نه۔

مَلْحَآءُ : برګ بروګ۔ يعني هغه څادر چه په هغے کښې سپينے او تورے کرخے وي۔

حمزه : د رسول الله ﷺ تره وو او د عبد المطلب ځوی وو، په جنګ اُحد کښې شهيد شوے وو او د سيد الشهداء لقب ورکړے شوے وو۔ او نبي ﷺ ورته د الله تعالیٰ او د رسول زمرے وئيلے دے۔

قَلَصَتْ : يعني راغونډيده به شوه۔

دا حديث بعض علماؤ دليل ګرځولے دے ددے دپاره چه صبرکونکے غريب بهتر دئ د مالدار شکر ګذار نـه ځکه د خباب پشان جليل القدر صحابي په خپل حال باندے چه هغه ته مالداري حاصله وه او د هغـه په شـاکر کيدو کښې څه شك شبهه هم نشته او بيا هم افسوس کوي۔ دارنګه دا دليل دے چه په ژوند کښې ځانله مخکښې نه کفن تيارول جائز دي۔

**درجة الحديث** : اسـنـاده صـحـيـح : احمد (١١١/٥) ورجاله ثقات غير ابى اسحاق وهو السبيعى، كان اختلط لكن رواه الترمذى من طريق شعبة عنه وهو انما سمع منه قبل الاختلاط فالسند صحيح۔

○○○○○○○○

# باب ما یقال عند من حضره الموت

## د قریب الموت شخص په خوا کښ چه کوم شے وئیلے کیږی د هغے بیان

مرگ ته نزدے شخص نه مراد هغه مریض دے چه په هغه باندے د مرگ نخے ښکاره شی او د مرگ نخے دا دی چه د مریض خپے سُستے شی، رنګ ئے زیړ شی که څوك کښ ئے اُودروی نو نشی اُودریدلے، د پوزے ټندونړے ئے کوږ شی او د خصیتینو پوستکے ئے زوړند شی۔

### الفصل الأول

١٦١٥ (١) — عَنْ أَبِیْ سَعِیْدٍ وَأَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَا: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ: «لَقِّنُوْا مَوْتَاكُمْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : ابوسعید او ابو هریره رضی الله عنهما فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :« خپلو مر کیدونکو ته لا اله الا الله اُووایئ»۔ (مسلمؒ)۔

**تشریح** : د تلقین معنیٰ ده لوستل۔ یعنی د قریب الموت شخص په خوا کښ او هغه ته کلمه د توحید لوستل او هغه ته ددے د وینا حکم سنت عمل دے۔ بعض فقهاؤ لیکلی دی چه مری ته به امر نشی کولے چه ته داسے اُووایه بلکه د هغه مخے ته به کلمه لوستلے شی نو هغه به ئے هم خپله اُووائی۔ او زوربه پرے نۀ کوی ځکه کیدے شی چه د مرگ د سختیٔ په وجه هغه دا بد اُوگنړی یا انکار اُوکړی نو خاتمه به ئے خرابه شی۔

البته د احادیثو نه معلومیږی که کافروی نو هغه ته به امرکوی چه کلمه اُووایه لکه څنگه چه نبی ﷺ خپل ترۀ ابو طالب ته او دغه شان یهودی غلام ته حکم کړے وو چه لا اله الا الله اُووایه۔ او که عام مسلمان ته امر وکړے شی په لطف سره جائز ده۔ لکه په حدیث کښ دی چه یو غلام طاقت د لا اله الا الله وئیلو نۀ لرلو ځکه چه د مور نافرمان وو نو نبی ﷺ ورته حکم اُوکړو۔ او ددے په سند کښ څه کلام شته (شعب الایمان)۔

مَوْتَاكُمْ : یعنی هغه خلق چه په حالت د مرگ کښ وی خو دوی نه ئے په مرگ سره تعبیر اُوکړو ځکه چه لږ وخت روستو ورته مرگ حاضریږی۔ لهذا دا تلقین به د مړ کیدو نه مخکښ

كولے شی او كله چه روح ترے اُوځی نو بيا ورته تلقين بدعت دے۔ دليل پدے باندے روايت د ابن حبان او بزار دے چه په هغے كښ دا دی : (فَإِنَّهُ مَنْ كَانَ آخِرُ كَلَامِهِ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ يَوْمًا مِنَ الدَّهْرِ وَإِنْ أَصَابَهُ مَا أَصَابَ قَبْلَ ذٰلِكَ) (يقيناً هر هغه څوك چه آخری خبره د هغه لا اله الا الله شی نو جنت ته به يوه ورځ داخليږی اگركه د هغے نه مخكښ ورته څه عذاب اُورسی)۔ نو دا دليل دے چه تلقين به د هغه د وفات په حالت كښ كوی چه هغه هم دا كلمه اُووائی۔ بيا كه چا د مرگ د سختئ په وجه دا كلمه اُونۀ لوستله او زړۀ كښ ئے وه نو دا به گناهگار نۀ وی ځكه چه د مخكښ نه مسلمان دے۔ لكه په كتاب الايمان رقم الحديث (٣٦) كښ حديث د عثمان تير شويدے :

(مَنْ مَاتَ وَهُوَ يَعْلَمُ أَنَّهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ)۔

نو په نفس علم د توحيد باندے هم انسان جنت ته داخليږی وينا وئيل زياتی فائده ده۔

او كوم روايت كښ چه دا راغلی دی (لكه روستو راځی) چه (اقرأوا علی موتاكم يس) خپلو مړو ته سورة يس تلاوت كړئ نو د هغے مطلب هم دا دے چه مركيدونكی انسان ته سورة يس اُووايئ چه د مرگ سختئ پرے آسانه شی او روح ئے په آسانئ اُوځی۔ د سورة يس لوستل په حالت د وفات د مړی كښ جائز عمل دے ځكه د قرآن په تلاوت سره كارونه آسانيږی خصوصاً په سورة يسٓ سره۔ خو دا به مستقل سنت نۀ گنړی ځكه چه دغه روايت پكښ ضعيف دے۔ (ضعفه شعيب الارنووط في تعليق صحيح ابن حبان والالباني في ضعيف الجامع الصغير) ۔ او ددے تفصيل په راتلونكی اُووم (٧) حديث كښ اُوكوره۔

لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ: دے سره به محمد رسول الله نۀ وائی ځكه چه دا ذكر نۀ دے اگركه ركن د اسلام دے او دلته خو مسلمانول مقصود نۀ دے بلكه هغه ته د الله تعالىٰ ذكر يادول مقصود دے۔ او بله دا چه احاديثو كښ صرف لا اله الا الله ذكر ده او محمد رسول الله كلمه ورسره نۀ ده ذكر۔ لكه دا خبره صاحب المرعاة (٣٠٨/٥) او امام نووی په المجموع كښ كړيده۔

---

١٦١٦ (٢) - وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ: «إِذَا حَضَرْتُمُ الْمَرِيْضَ أَوِ الْمَيِّتَ فَقُوْلُوْا خَيْرًا فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ يُؤَمِّنُوْنَ عَلٰى مَا تَقُوْلُوْنَ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او ام سلمه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ فرمايلی دی : «كله چه تاسو بيمار يا مركيدونكی شخص ته حاضر شئ نو ښے خبرے كوئ ځكه چه ملائك آمين وائی په هغه خبرو چه تاسو ئے وايئ»۔ (مسلم)۔

**تشريح :** مطلب دا دے چه کله د مريض يا مړ کیدونکی خوا له ورشئ نو هغه دپاره د خير دعا غواړئ او د شفاء او د رحمت او مغفرت سوال کوئ او داسے وايئ چه اے الله ! دهٔ ته بخنه اُوکړه او په دهٔ باندے رحم اُوکړه يا دا چه د مريض خواله ورشئ نو هلته د خير خبرے کوئ او د شر آوازونه او واويلا مهٔ کوئ او ځان ته ښیرے او بد نسبتونه مهٔ کوئ.

يا دا چه د مريض په خوا کښں داسے نهٔ دی وئيل پکار چه دے فلانی شخص فلانی وخت کښں دا کار يا دا خبره کړے وه هسے نه چه پدے ورله الله تعالىٰ عذاب ورکړی. يا فلانی داسے زير رنګ والا دے په عذاب دے، هسے نه چه مړ نشی. او دا خو مری. بلکه داسے وئيل پکار دی چه الله تعالىٰ مهربانه دے. او الله تعالىٰ به پرے رحم اُوکړی، الله تعالىٰ بنده لره عذاب ورکولو ته څه حاجت لری؟ !!.

نو مريض له په ورتلو کښں دعاء کول يا د هغه په خوا کښں د خير خبرے کول لازم دی ځکه چه پدے امر راغلے دے. او حديث دليل دے چه مری خوا له ملائك راځی او هغه ته په دعاء کولو آمين وائی.

او دليل دے چه تعزيه کول سنت عمل دے.

**فَقُولُوا خَيْرًا :** يعنی مريض له د خير دعاء غواړئ. يا دا چه د هغه په خوا کښں د خير خبرے کوئ او واويلا او چغے مهٔ وهئ ځکه چه پدے سره د مريض زړهٔ هم خفه کيږی او پدے وينا باندے ملائك آمين هم وائی نو کيدے شی چه ستا په دے وينا به ملائك آمين اُووائی نو هلاکت ته به اُورسيږے.

---

١٦١٧ (٣) – وَعَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :((مَا مِنْ مُسْلِمٍ تُصِيْبُهُ مُصِيْبَةٌ فَيَقُوْلُ مَا أَمَرَهُ اللهُ بِهِ (إِنَّا لِلهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ) اَللّٰهُمَّ آجِرْنِيْ فِيْ مُصِيْبَتِيْ وَاَخْلِفْ لِيْ خَيْرًا مِنْهَا إِلَّا أَخْلَفَ اللهُ لَهُ خَيْرًا مِنْهَا )). فَلَـمَّا مَاتَ أَبُوْ سَلَمَةَ قَالَتْ: أَيُّ الْمُسْلِمِيْنَ خَيْرٌ مِنْ أَبِيْ سَلَمَةَ ؟ أَوَّلُ بَيْتٍ هَاجَرَ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ ثُمَّ إِنِّيْ قُلْتُهَا فَأَخْلَفَ اللهُ لِيْ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

**ترجمه :** او ام سلمه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ فرمايلی دی : ((نشته يو مسلمان چه هغه ته يو مصيبت اُورسی بيا اُووائی هغه شے چه الله هغه ته پرے حکم کړے (انا لله وانا اليه

راجعون) مونږ د الله یو او هغه طرف ته به واپس کیږو۔ اللهم اجرنی فی مصیبتی واخلف خیرا منها۔ اے الله ! زما په مصیبت باندے ما ته ثواب راکړه او ما ته ددے نه غوره بدله راکړه۔ مګر الله به ضرور دۀ له د هغے نه غوره بدله ورکوی »۔ ام سلمهؓ فرمائی : هرکله چه ابوسلمهؓ (یعنی زما خاوند) وفات شو نو ما اُووئیل چه د ابوسلمهؓ نه به کوم مسلمان غوره وی هغه ابوسلمهؓ چه دا اولنے کور وو چه رسول الله ﷺ ته ئے (د اهل وعیال) سره هجرت کړے وو۔ خو بیا (هم) ما دا مخکنی کلمات (د تابعدارئ په نیت) اُووئیل : نو الله تعالیٰ ما ته رسول الله ﷺ د هغه په بدله کښې راکړو (یعنی ما د رسول الله ﷺ سره نکاح اُوکړه چه دا د ابوسلمهؓ نه واقعی ډیر غوره دے)۔

**تشریح : مُصِيبَةٌ** : مصیبت شامل دے هر خفګان او غم ته، وروکے مصیبت وی او که لوئی۔

**آجِرْنِیْ** : دا امر دے د باب افعال نه نو په مد او کسره د جیم سره به لوستلے شی۔ آجِرْنِیْ۔ معنیٰ ئے ده اے الله ! ما لره پناهی او بچاؤ راکړه۔ یا مجرد دی د نصر ینصر نه اَجَرَهٗ، یَأْجُرُهٗ۔ نو امر ئے په سکون د همزه او ضمه د جیم دے۔ اَللّٰهُمَّ أْجُرْنِیْ۔ اے الله ! ما لره اجر راکړه۔

**فَأَخْلَفَ** : د باب افعال نه دے۔ إِخْلَاف وئیلے شی، بدله ورکول او خلیفه ورکول۔ مطلب د حدیث دا دے چه ام سلمه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ دا حدیث مخکښې فرمائیلے وو چه څوك دا ذکر په وخت د مصیبت کښې اُووائی نو هغه له به الله تعالیٰ ضرور د هغه څیز نه بهتر ورکوی نو کله چه ابوسلمهؓ (زما خاوند عبد الله بن عبد الاسد المخزومی) وفات شو نو ما اُووئیل چه د ابوسلمه نه څوك غوره کیدے شی لیکن د رسول الله ﷺ د وینا او ددے ذکر د فضیلت د وجه نه مے دا ذکر اُووئیلو نو ددے دعاء نیکه او برکتناکه نتیجه دا شوه چه الله تعالیٰ ما ته رسول الله ﷺ په نکاح کښې راکړو چه هغه د ابوسلمهؓ نه ډیر غوره دے۔ نو مقصد ئے دا دے چه امت ته ترغیب ورکوی چه دا دعاء ضرور په وخت د مصیبت کښې وایئ، الله تعالیٰ به ضرور ښائسته بدله درکوی۔

**خَيْرٌ مِنْ أَبِيْ سَلَمَةَ** : دلته خیریت په نسبت د ام سلمهؓ دے یعنی ما دپاره د ابوسلمه نه غوره څوك نشته او دا مطلب نۀ دے چه په ټولو انسانانو کښې ابوسلمهؓ غوره دے ځکه چه رسول الله ﷺ او بیا ابوبکر صدیقؓ د ابوسلمهؓ نه ضرور غوره وو۔ یا د هجرت په صفت کښې په نسبت د عامو مسلمانانو دا غوره وو۔ کما فی الحدیث۔

---

۱۶۱۸ (۴) — وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: دَخَلَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَلٰى أَبِيْ سَلَمَةَ قَدْ شَقَّ بَصَرُهٗ فَأَغْمَضَهٗ ثُمَّ قَالَ: « إِنَّ الرُّوْحَ إِذَا قُبِضَ تَبِعَهُ الْبَصَرُ » فَضَجَّ نَاسٌ مِنْ أَهْلِهٖ فَقَالَ: « لَا تَدْعُوْا

عَلٰى أَنْفُسِكُمْ إِلَّا بِخَيْرٍ فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ يُؤَمِّنُوْنَ عَلٰى مَا تَقُوْلُوْنَ». ثُمَّ قَالَ: «اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِأَبِيْ سَلَمَةَ وَارْفَعْ دَرَجَتَهُ فِي الْمَهْدِيِّيْنَ وَاخْلُفْهُ فِيْ عَقِبِهِ فِي الْغَابِرِيْنَ وَاغْفِرْ لَنَا وَلَهُ يَا رَبَّ الْعَالَمِيْنَ وَافْسَحْ لَهُ فِيْ قَبْرِهٖ وَنَوِّرْ لَهُ فِيْهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : اوام سلمه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ د ابوسلمهٔ خوا ته راغلو په داسے حال کښې چه د هغه نظر کولاؤ پاتے شوے وو (روح ئے وتلے وو) نو رسول الله ﷺ د هغه سترګے پټے کړے بیا ئے اُوفرمایل : «روح چه کله واخستے شی نو نظر د هغے پسے شی». (نو نظر هم ورسره لاړ شی) د ابوسلمهٔ کور والو (چه دا واوریدل پوهه شو چه ابوسلمهٔ وفات شو) تولو (په ژړا سره) شور جوړ کړو. رسول الله ﷺ اُوفرمایل :«د خپل نفسونو په باره کښې د خیر اود نیکئ دعا کوئ (یعنی واویلا او ښیرے مهٔ کوئ) ځکه چه ملائك آمین وائی په هغه څه چه تاسو ئے د خولے نه اُوباسئ». بیا رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «اے الله ! ابوسلمهٔ ته بخښنه اُوکړه، او دهٔ درجه په هغه خلقو کښې چه هدایت ورته شویدے پورته کړه او دهٔ نه روستو پاتے کیدونکی اولادو کښې دهٔ کارساز جوړ شه. اے د دوارو جهانو ربه ! مونږ ته او دهٔ ته بخښنه اُوکړه او دهٔ له په قبر کښې فراخی ورکړه او په هغے کښې ورله رڼړائی ورکړه». (مسلمٌ).

تشریح : قَدْ شَقَّ بَصَرُهٗ : یعنی نظر ئے خیرې او کولاؤ پاتے شوے وو. شق دلته فعل لازم دے. او بصره ئے فاعل دے.

فَأَغْمَضَهٗ : یعنی سترګے ئے ورله پټے کړے، دے دپاره چه بد ښکاره نشی.

إِنَّ الرُّوْحَ : یعنی سترګے ئے ځکه کولاوے پاتے کیږی چه روح کله د بدن نه اُوځی نو نظر ورپسے شی.

فَضَجَّ : چغه اُوکړه او آوازونه ئے په ژړا پورته کړل. وجه دا ده چه کله د چا مړے شوے وی او بیا د مرګ د احوالو تذکره د هغوی په مخ کښې کیږی نو هغوی له په معمولی تذکره د مرګ سره هم ژړا ورځی او د مړی منظر ورته مخے ته شی.

لَا تَدْعُوْا : یعنی ځان ته ښیرے او د هلاکت آوازونه مهٔ کوئ، داسے مهٔ وایئ چه زهٔ هلاك شوم او اے الله ! ما هم ورسره مړ کړے. او د جاهلیت والو په شان واویلا مهٔ کوئ.

عَلٰى مَا تَقُوْلُوْنَ : یعنی که تاسو د خیر دعاء کوئ او که د شر نو ملائك پرے آمین وائی. او د ملائکو دعاء خو مستجابه وی نو په ښیرو سره به ځان هلاك کړئ.

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ : کله چه د انسان نه روح اُوځیژی نو هغه ته داسے دعاء کول پکار دی. که په عربئ

کښې نۀ ورځي نو په بله ژبه کښې هم ورته دعاء قبليږي.

## د تعزيې بيان

دا دليل دے چه د مړي کور والو ته تعزيه کول سنت عمل دے او په دے کښې لاس پورته کول بدعتِ قبيحه دے چه مبتدعينو او رواجيانو ايجاد کړيدے، شرعي طريقه تعزيه نۀ ورځي نو په بدعاتو ئې سر شي. او بيا صحيح طريقه ورته بده ښکاري او بدعت ورته ښه ښکاري.

صحيح طريقه د تعزيه دا ده چه کله د مړي وارثان اُووينې چه هغوي په مړي پسے خفه دي نو هغه ته به په عربي کښې يا په پښتو يا بله ژبه کښې د تسلي الفاظ اُولوستے شي چه دا ټول بندګان د الله تعالىٰ دي او هغه پيدا کړيدي او هغه به ئې وفات کوي او د الله تعالىٰ مال وو او هغه واخستو نو صبر کوه او د آخرت ثواب ئې ګنړه او الله تعالىٰ دے ددے مړي برکات او خيرونه په تاسو کښې واچوي او ددۀ نه روستو دي تاسو د فتنو او شرونو نه بچ کړي. او که په عربي کښې داسے الفاظ اُووائي نو ډيره بهتره ده : (إِنَّ لِلّٰهِ مَا أَخَذَ وَلَهُ مَا أَعْطٰى وَكُلُّ شَيْءٍ عِنْدَهُ بِأَجَلٍ مُسَمًّى فَلْتَصْبِرْ وَلْتَحْتَسِبْ) (متفق عليه) وسيأتي). (څه چه الله تعالىٰ واخستل نو دا الله تعالىٰ ورکړي وو او هر شے الله تعالىٰ په يوه مقرره نيټه جوړ کړيدے، نو صبر کوه او ثواب ئې ګنړه) لکه دا دعاء رسول الله ﷺ خپلے لور (زينب رضي الله عنها) ته کړے وه کله چه د هغې بچې وفات شوے وو. يا داسے اُووائي (چه دا علماؤ جوړه کړے دعاء ده) : (أَعْظَمَ اللّٰهُ أَجْرَكَ وَأَحْسَنَ عَزَاءَكَ وَغَفَرَ لِمَيِّتِكَ) . (الله تعالىٰ دے ستا اجر لوئي کړي او تا له دے ښائسته صبر درکړي او ستا مړي ته دے الله تعالىٰ بخښنه اُوکړي).

تعزيه دے ته نۀ وائي چه دے دپاره به کسيانے کيخودلے شي او بلبونه بل کړے شي او خلق درے ورځے راروان وي او خوراکونه او خيراتونه پخيږي او د مړي کور والو له به درے ورځو پورے دودئ ګانے کولے شي او نور خلق به هم دے دپاره پاتے کوي او اعلانونه کوي چه فلانۍ روټئ کړيده تاسو ته ئې دعوت کړيدے. يا نعت خوانان او قرآن خوانان ورله راوستے شي او تلاوتونه کوي او ديته فاتحه خواني وائي. دا ټول غير شرعي طريقې دي. بلکه شرعي تعزيه ديته وائي چه يو سړي ته تسلي ورکړے، که دا په طريقه د حاضريدو وي هغه ته يا په ټيلفون سره وي. يا په لاره کښې اُووينے يا ئې په دکان کښې اُووينے چه د خفګان اثرات پرے ښکاره کيدل نو تسلي ورکړه او که خفګان پرے نۀ ښکاره کيدو نو تعزيه ورته نشته.

او دے دپاره خلق درے ورځے خاص کوي او بعض خلق چه سفر باندے تلي وي اګرکه کال پس راواپس شي نو بيا هم دا لازمه ګنړي چه په ما باندے د فلانی تعزيه پاتے ده. دا صحيح طريقې نۀ دي، البته هسے د صله رحمي ملاقات جائز دے، ليکن ديته به شرعي تعزيه نشي وئيلے.

په تعزيه کښې لاس أوچتولو باره کښې هيڅ قسم صحيح دليل نشته۔ دا عوامو د ځان نه جوړه کړې طريقه ده چه اکثر مليان ئې هم ښکار کريدې۔ او کوم روايت د ابوموسى اشعرىؓ کښې چه راغلې چه هغه فرمائي : رسول الله ﷺ د غزوه حنين نه روستو اَوطاس ته يو لښکر اُوليږلو چه پدې باندې ئې زما تره ابوعامر (رضى الله عنه) امير مقرر کړو، نو په هغه جنګ کښې ابوعامر په زنګون باندې په غشى اُولګيدو۔ جشمى په نوم يو سړى اُوويشتو، ابوموسىٰؓ فرمائي : ما خپل تره ته اُووئيل چه چا اُوويشتې هغه اشاره اُوکړه نو زهٔ وريسې ورغلم او هغه منډه کړه ما ورته اُووئيل : حياء نهٔ کوې؟ ټينګ شه ! نو هغه اُودريدو۔ زمونږ تورې په يو بل اُوچليدې تردې چه ما قتل کړو او تره ته مې اُووئيل : چه الله تعالىٰ ستا قاتل هلاك کړو۔ بيا هغه اُوفرمايل : چه زما د زنګون سترګې نه غشې اُوباسه ما چه هغه اُوويستو نو اُوبه ترې راُوبهيدې تر دې چه وفات کيدو ته نزدې شو نو ما ته ئې اُووئيل : چه زما سلام رسول الله ﷺ ته اُورسوه او دا ورته اُووايه چه ما له بخښنه اُوغواړې۔ نو لږ وخت پس وفات شو۔ زهٔ چه راغلم رسول الله ﷺ ته مې حال اُووئيلو نو هغه اُوبه راطلب کړې او اَودس ئې اُوکړو بيا ئې لاسونه پورته کړل دعاء ئې اُوکړه : (اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِعُبَيْدٍ اَبِيْ عَامِرٍ) (اے الله ابو عامر بنده ته بخښنه اُوکړه) بيا ئې اُوفرمايل : (اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَوْقَ كَثِيْرٍ مِنْ خَلْقِكَ) (اے الله دا د قيامت په ورځ د ډيرو خلقو دپاسه کړه) ما ورته اُووئيل ما له هم دعاء اُوکړه نو ما له ئې هم استغفار طلب کړو۔ (بخاری باب غزوة اوطاس)

نو دلته ئې لاسونه پورته کريدي ليکن دا د تعزيه دعاء نهٔ ده بلکه دا وصيت باندې عمل کول دي۔

لکه چه دا د حديث د الفاظو نه معلوميږي۔ دا وجه ده دلته ئې ورله اودس کړيدې نو که دا په تعزيه باندې حمل شي نو بيا خو به د تعزيه دپاره مستقل اَودس کول هم مستحب شي۔ نو صحيح دا ده چه که چا درنه مطالبه د دعاء اُوکړه نو لاس دې اُوچت کړي۔ رسول الله ﷺ په نورو ځايونو کښې ډيرې تعزيې کريدي او هيڅ کله ئې هم پکښې لاسونه نهٔ دي پورته کړي۔

وَارْفَعْ دَرَجَتَهُ فِي الْمَهْدِيِّيْنَ : مطلب دا دې چه الله تعالىٰ دې ددهٔ درجه په هغه خلقو کښې پورته کړي چه هغوى ته الله تعالىٰ اسلام طرف ته هدايت کړيدې۔

وَاخْلُفْهُ : په همزه وصلى او ضمه د لام سره دې۔ د خلف يخلف نه دې۔ دا په هغه وخت کښې استعماليږي چه يو سړې د بل قائمقام شي د هغه د کارونو په سنبالښت او حفاظت کښې۔ يعنى اے الله ! ددهٔ خليفه جوړ شې ددهٔ په اولادو کښې۔ او ددهٔ د اولادو تربيت او حفاظت اُوکړې۔

فِيْ عَقِبِهٖ : عقب په کسره د قاف اولادو ته وئيلې شي او هغه څوك چه د انسان نه روستو پاتې کيږي۔ او روستو ترې راځي۔

فِي الْغَابِرِيْنَ : يعني باقي خلقو كښې چه هغه ژوندي دي. او دا حال دے د عقبه نه يعني دهٔ خليفه جوړ شه په اولادو دهٔ کښې په حال کون د دوی کښې چه دا د باقي خلقو نه دي.

وَافْسَحْ لَهٗ : فساحة په معنىٰ د فراخئ سره.

وَنَوِّرْ لَهٗ فِيْهِ : قبر کښې تيارهٔ وی نو اے الله ! دهٔ دپاره ئے رڼرا والا اُوکرځوه.

حديث دليل دے چه مړی ته په وخت د مرگ کښې او د هغه اهل او اولادو ته د دنيا او د آخرت دعاء پکار ده.

او دليل دے چه مړی ته په قبر کښې نعمتونه او عذابونه ورکولے شی.

---

١٦١٩ (٥) – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ حِيْنَ تُوُفِّيَ سُجِّيَ بِبُرْدٍ حِبَرَةٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عائشه رضي الله عنها فرمائي : رسول الله ﷺ چه کله وفات شو نو هغه په يمني څادر سره پټ کړے شو. (بخاريؒ ومسلمؒ).

تشريح : سُجِّيَ : د تسجيه نه دے په معنىٰ د پټولو سره. او دا پټول د مړی به هله کوی چه خپلے عادی جامے ترے اُوويستلے شی او د رسول الله ﷺ نه څکه نهٔ وے ويستلے شوے چه مسئله دا ده چه نبی به په خپلو جامو کښې لمبولے شی. لکه کله چه د صحابه کرامو اختلاف شو چه مونږ به رسول الله ﷺ ته غسل څنگه ورکوو؟ د نورو مړو په شان ئے بربنډ کړو او که نهٔ ځه اُوکړو نو الله تعالىٰ په حاضرينو باندے خوب راوستو او د کور د طرف نه يو غيبي آواز راغلو چه جامو سره غسل ورکړئ. (مسندا حمد ٢٦٧/٦صحيح ابن حبان ٥٩٥/١٤ بسند حسن).

بِبُرْدٍ : څادرونو ته وئيلے شی. مفرد دے جمع ئے بُرُوْد راځی.

حِبَرَةٍ: هغه ښائسته څادرونه دی چه د يمن نه به راتلل او په هغے کښې به نخښے وے او کرخے وے. دا هم مفرد دے او جمع ئے حِبَرْ او حِبَرَاتْ دے.

بردِ حِبَرَةٍ: دے کښې ترکيب اضافي هم صحيح دے. بِبُرْدِ حِبَرَةٍ. او ترکيب توصيفي هم. بِبُرْدٍ حِبَرَةٍ. يعني څادرونه يمني ښائسته او پټيدار چه د مالوچو نه به جوړ وو. (هِيَ بُرْدُ قُطْنٍ يَمَانِيٍّ مُوَشًّى مُخَطَّطٌ). (د مالوچو يمني ښائسته څادرونه چه کرخے کرخے وو)

ددے حديث نه دا معلومه شوه چه د غسل نه مخکښې د مړی پټول بهتر عمل دے. که په هر قسم کپړه سره وی خو وريښم به پکښې نهٔ وی. دے دپاره چه مړی د عورت د ښکاره کيدو نه محفوظ شی او دے دپاره چه خلق ئے متغير شکل اُونهٔ وينی نو دا دليل دے چه ټول بدن د مړی سوئ د سر او مخ نه پس د وفات د هغه نه په منزله د عورت دے، پټول ئے پکار دی.

## الفصل الثانى

**١٦٢٠ (٦) – عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَنْ كَانَ آخِرُ كَلَامِهِ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.**

**ترجمه :** معاذ بن جبل ؓ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «د چا چه آخري كلام لا اله الا الله وي نو هغه به جنت ته داخليږي». (ابوداودؒ)۔

**تشريح :** يعني د دنيا نه د وتلو په وخت كښ چه د چا آخري خبرے لا اله الا الله شوے نو جنت ته به داخليږي نو كه نور گناهونه ئے معاف شوي وو نو اول كښ به داخليږي او هيڅ عذاب به نهٔ وركړے كيږي او كه گناهونه ئے نهٔ وو معاف شوي نو بيا به د گناهونو په اندازه عذاب وركړے شي بيا به جنت ته داخل شي ليكن غالباً چا ته چه دا كلمه په مرگ كښ ورنصيب كيږي نو هغه كامل مؤمن وي نو هغه به سيده جنت ته داخليږي۔ الله تعالىٰ دے مونږ ددے حالت اهل اُوگرځوي آمين ثم آمين يا رب العالمين۔

او ددے وجه نه حديث كښ دا ترغيب راغلے دے چه تاسو مړي ته د لا اله الا الله تلقين كوئ ځكه چه دا چا اُوئيله نو دا نښه ده چه الله تعالىٰ به ورته مخكني گناهونه معاف كړي وي او د سابقين الى الجنة نه به ئے گرځولے وي۔

**درجة الحديث :** اسناده صحيح : ابوداود (٣١١٦) واحمد (٢٤٧/٥) والحاكم (٣٥١/١) وقال صحيح الاسناد ولم يخرجاه ووافقه الذهبي (الباني)۔

---

**١٦٢١ (٧) – وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «اِقْرَؤُوْا سُوْرَةَ (يٰسٓ) عَلٰى مَوْتَاكُمْ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه :** او معقل بن يسار ؓ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «په خپلو مركيدونكو خلقو باندے سورت يٰسٓ اُولولئ»۔ (احمدؒ، ابوداودؒ، ابن ماجهؒ)۔

**تعارف د معقل بن يسار ؓ :** مَعْقِل بن يسار مزني صحابي دے، او د صلح حُدَيْبِيه نه ئے مخكښ اسلام قبول كړے دے، بيعة الرضوان ته هم حاضر شويدے۔ اسم كنيه ئے ابوعلي ده، د عمر فاروق ؓ په امر باندے ئے په بصره كښ نهر مَعْقِل كنستے او روان كړے وو۔ نو دۀ ته منسوب شو۔ او بصره كښ اُوسيدلے وو او هلته ئے يو كور هم جوړ كړے وو او هلته د معاويه د خلافت په آخر كښ وفات شوے هم دے۔ بعض وائي په حكومت د يزيد كښ وفات دے۔ او امام بخاريؒ په

اوسط کښې د هغه کسانو په فهرست کښې ذکر کړیدے چه د شپیتونه تر اویایم پورے وفات دی۔

**تشریح : مَوْتَاکُمْ** : دلته د موتیٰ نه مراد هغه څوك دی چه د مرگ په حالت کښې وی۔ ځکه چه پدے سره د مړی نه په روح وتلو کښې آسانی راځی۔ او پس د وفات نه لوستل ئے نهٔ دی پکار لکه حافظ ابن القیمؒ په کتاب الروح ص (١٤) کښې د وفات کیدو په وخت کښې د لوستلو د ترجیح دپاره پنځه وجوهات ذکر کړیدی دغه شان مرعاة المفاتیح کښې هم شته۔

د سورهٔ یس قراءت ئے ځکه ذکر کړو چه دا سورة په اصلی عقائدو مشتمل دے لکه د دوباره ژوندی کیدلو او د قیامت بحث پکښې دے نو مړے چه کله دا واوری نو تصدیق او ایمان ئے زیاتیږی۔

د سورهٔ یسٓ د لوستلو په باره کښې مرفوع احادیث ضعیف دی اگرکه د یو صحابی غُضَیْفُ بن الحارث الثمالی ﷺ په باره کښې په صحیح سند نقل دی چه هغه باندے کله مرگ سخت شو نو وے فرمایل : آیا په تاسو کښې څوك سورهٔ یس لوستلے شی ؟ نو صالح بن شریح السکونی ورته اُولوستلو کله چه څلویښت آیتونو ته اُورسیدو نو هغه نه روح لاړو۔ (مسند احمد ٤/١٠٥) وسنده صحیح ارواء الغلیل (٣/١٥١) وحسنه شعیب الارنووط۔

نو ددے وجه نه مشیخه (تابعینو مشائخو) به فرمائیل : کله چه دا سورة د مړی په خوا کښې اُولوستلے شی نو په مړی باندے آسانی راځی۔ صفوان تابعیؒ وائی : عیسی بن معتمر رحمه الله دا سورة د ابن معبد په خوا کښې لوستلے وو۔(ارواء الغلیل ومسند احمد)۔

نو ددے صحیح اثر او د نورو ضعیف السند روایاتو نه فی الجمله دا معلومیږی چه ددے سورت لوستل په وخت د وفات د مریض کښې مستحب دی، اگرکه دا به هم لازمه طریقه نهٔ گنړی۔ راجع فتاوی الدین الخالص (٨/٤٢٤)۔

**درجة الحدیث** : اسناده ضعیف : ابوداود (٣١٢١) وابن ماجه (١٤٤٨) وابن ابی شیبة (٤/٧٤ طبع الهند) وعمل الیوم واللیلة للنسائی (١٠٧٤) وقال الدارقطنی : هذا حدیث ضعیف الاسناد مجهول المتن ولا یصح فی الباب حدیث آه واعله ابن القطان بالاضطراب والوقف وبجهالة حالة ابی عثمان (اسمه سعد) (غیر النهدی) هو وابوه کلاهما مجهول راجع الارواء (٦٨٨)۔

---

١٦٢٢ (٨) – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَبَّلَ عُثْمَانَ بْنَ مَظْعُوْنٍ وَهُوَ مَيِّتٌ وَهُوَ يَبْكِيْ حَتّٰى سَالَ دُمُوْعُ النَّبِيِّ ﷺ عَلٰى وَجْهِ عُثْمَانَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائی : رسول الله ﷺ عثمان بن مظعون خکل کړو په

داسې حال کښې چه هغه وفات شوې وو او هغه ژړل تردې چه د نبی کریم ﷺ اُوخکې د عثمان په مخ راوبهیدلې۔ (ترمذیؒ، ابوداودؒ، ابن ماجهؒ)۔

**تشریح :** عثمان بن مظعون پخوانې مسلمان دې او د مهاجرینو نه اولنې شخص دې چه په مدینه کښې په بقیع الغرقد هدیره کښې خخ شویدې او ددهٔ د دفن کیدو نه روستو دغه هدیره جوړه شوه، رسول الله ﷺ دا پدې وجه خکل کړو چه په دهٔ باندې ئې رحم کولو ځکه چه دا د رسول الله ﷺ رضاعی ورور وو۔

دا حدیث دلیل دې چه پس د وفات نه د مړی مخ ښکاره کول او بیا هغه خکلول جائز دی۔

او دغه شان بغیر د چغو نه صرف په اُوښکو سره ژړا کول بهتر عمل دې او دا د مړی حق دې۔

**عَلٰی وَجْهِ عُثْمَانَ :** د ترمذی، ابوداود او ابن ماجه په روایت کښې داسې الفاظ نشته بلکه د ترمذیؒ الفاظ داسې دی : (وَهُوَ يَبْكِيْ أَوْ قَالَتْ عَيْنَاهُ تَذْرِفَان) او د ابوداود الفاظ دی : (حَتّٰى رَأَيْتُ الدُّمُوْعَ تَسِيْلُ) او د ابن ماجه الفاظ دی : (فَكَأَنِّيْ أَنْظُرُ إِلٰى دُمُوْعِهِ تَسِيْلُ عَلٰى خَدَّيْهِ) ۔نو پدې کښې دا خبره نشته چه دا اُوښکې د رسول الله ﷺ د عثمان په مخ بهیدلې بلکه دواړه احتماله لری چه کیدې شی چه د نبی ﷺ په اننګو روانې وی یا د عثمان۔

**درجة الحديث :** اسناده ضعيف: ابوداود (٣١٦٣) والترمذی (٩٨٩) وابن ماجه (١٤٥٦) والحاكم (١/٣٦١) وفی سنده عاصم بن عبيد الله قال فيه ابن حجر : ضعيف لكن يشهد له حديث عامر بن ربيعة رواه البزار وقال الهيثمي اسناده حسن وتراجع الالباني عن تصحيحه فی السلسلة الضعيفة (١٣/٢٨) رقم (٦٠١٠) وقال قد وقفت علی اسناده فهو ضعيف لضعف عاصم ومخالفة العمری سفيان الثوری فی اسناده، لا سيما مع سوء حفظه؛ فلا يصلح الاستشهاد به آه) وقال ابن حجر فی اسناد البزار لين وضعفه زبير عليزی فی تعليقه علی ابن ماجه (١٤٥٦)۔

---

**١٦٢٣ (٩) – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ أَبَا بَكْرٍ قَبَّلَ النَّبِيَّ ﷺ وَهُوَ مَيِّتٌ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه :** او عائشه رضی الله عنها فرمائی : ابوبکر ﷺ نبی کریم ﷺ لره پس د مرګ نه خکل کړو۔(ترمذیؒ، ابن ماجهؒ)۔

**تشریح :** په روایت د نسائی کښې راغلی دی چه د دواړو سترګو مینځ ئې ښکل کړو۔ او په روایت د بخاری کښې دی : مخ ئې ورله ښکاره کړو او پرې راپریوتو، ښکل ئې کړو) په روایت د احمد کښې دی چه څلور کرته ئې د څلور واړو طرفونو نه ښکل کړو۔ او په روایت د ابن ابی شیبه

كښې دی: داسې به ئې وئيل: (بِأَبِيْ وَأُمِّيْ طِبْتَ حَيًّا وَمَيِّتًا) ـ (مور او پلار مې دې ستا نه قربان وی، ته په ژوند او مرګ کښې مزيدار ئې)۔

سيرت کښې ددې واقعې تفصيل راغلې دې چه ابوبکر صديق د وفات د رسول الله ﷺ په وخت کښې سنح علاقې ته تلې وو چه د دويمې ښځې نمبرئې وو، د رسول الله ﷺ نه ئې اجازت اخستې وو نوکله چه واپس مدينې ته راغلو نو رسول الله ﷺ وفات شوې وو او سيده د هغه خوا له راغلو او هغه ئې ښکل کړو۔ انظر الرحيق المختوم۔

دا حديث هم دليل دې چه د مړی خکلول جائز دی۔

**درجة الحديث**: اسناده صحيح: اخرجه البخاری (١٢٤١-١٢٤٢) فی المغازی ضمن حديث طويل عن وفاة النبی ﷺ فكان ينبغی ايراد الحديث فی الفصل الاول۔

---

**١٦٢٤ (١٠) - وَعَنْ حُصَيْنِ بْنِ وَحْوَحٍ أَنَّ طَلْحَةَ بْنَ الْبَرَاءِ مَرِضَ فَأَتَاهُ النَّبِيُّ ﷺ يَعُوْدُهُ فَقَالَ: «إِنِّيْ لَا أُرٰى طَلْحَةَ إِلَّا قَدْ حَدَثَ بِهِ الْمَوْتُ فَآذِنُوْنِيْ بِهِ وَعَجِّلُوْا فَإِنَّهُ لَا يَنْبَغِيْ لِجِيْفَةِ مُسْلِمٍ أَنْ تُحْبَسَ بَيْنَ ظَهْرَانَيْ أَهْلِهِ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.**

**ترجمه**: او د حصين بن وحوح نه روايت دې چه طلحه بن البراء بيمار شو نو نبی کريم ﷺ د هغه خوا ته راغلو چه د هغه عيادت ئې کولو نو وې فرمايل: په طلحه زما ګمان نهٔ دې مګر دا چه په هغه کښې نخې د مرګ را پيدا شويدی۔ (کله چه دا وفات شی) نو ما ته ددې خبر راکړئ او تاسو (ددهٔ په تکفين او تجهيز کښې) جلتی اُوکړئ ځکه چه دا مناسب نهٔ دی چه د مسلمان جُثه د هغه د کور والو ترمينځ ايساره شی۔

**تعارف د حصين بن وحوح**: حصين بن وحوح انصاری أوسی، مدنی صحابی دې، صرف دا يو حديث ترې نقل دې۔ ابن الکلبیؒ ذکر کړيدی چه دا په جنګ قادسيه کښې شهيد شويدې کذا فی تهذيب التهذيب۔

**تعارف د طلحة بن البراء ؓ**:

طلحة بن البراء دا بلوی انصاری صحابی دې، دا هغه مبارك صحابی دې چه کله وفات شو او رسول الله ﷺ پرې جنازه اُوکړه نو داسې ئې اُوفرمايل: اې الله! د طلحه سره په داسې حالت کښې ملاق شه چه ته دهٔ ته خاندې او دا تا ته خاندی، دا د رسول الله ﷺ سره په داسې حالت کښې ملاق شوې وو چه هلك وو نو رسول الله ﷺ چه به کله مزل کولو نو دا به ورپورې انختې وو او د هغه

خپے مبارکې بـه ئے خـکلولے او دا بـه ئے وئیل : اے د الله رسوله ! ما ته چه څه حکم کوے کوم چه ستـا خـوښ وی زهٔ بـه ستـا هیـڅ مخالفت نهٔ کوم نو رسول الله ﷺ ددهٔ پدے خبره ډیر خوشحاله شـو او ددے خبـرے نه ئے تعجب اُوکړو، بیا دا مریض شو او آخر وفات شو نو رسول الله ﷺ ددهٔ په قبـر بـانـدے مونځ اُوکړو او ددے وجه دا وه چه دا د شپے وفات شوے وو اول کښې رسول الله ﷺ ددهٔ بیـمـار پرسی له راغلو نو هغه په واپس کیدو کښې لا بنو سالم ته رسیدلے نهٔ وو چه دا وفات شو او شپـه پـرے راغلـه نو دهٔ دا خبره اُوکړه چه ما خخ کړئ او د خپل رب سره مے پیوسته کړئ او رسول الله ﷺ مـه راغـواړئ ځکه چه زهٔ په رسول الله ﷺ باندے د یهودو نه یریږم (چه شپه ده یهود به ورتـه څـه تـکـلیف ورکـړی) نـو رسـول الله ﷺ سـحـر کښې خبر شو نو راغلو او ددهٔ په قبر بانـدے اُودریدو او خلقو ورسره صفونه اُوتړل بیا رسول الله ﷺ لاسونه پورته کړل او داسے دعاء ئے اُوکړه : (اَللّٰهُمَّ الْقَ طَلْحَةَ يَضْحَكُ اِلَيْكَ وَتَضْحَكُ اِلَيْهِ)۔ (التـمهيـد لـما في الموطأ من المعاني والمسانيد٦/٢٧٣) واسد الغابة (٢/٤٢)

**تشریح :** لَا اُرٰی : ای لا اظن۔ رؤیت دلته په معنیٰ د ظن دے۔ نو په همزه به ضمه وئیلے شی۔

**حَدَثَ بِهِ الْمَوْتُ:** یعنی آثار د مرگ پرے راښکاره شویدی۔

**فَاٰذِنُوْنِیْ:** یعنی ما ته خبر او اطلاع راکړئ چه زهٔ پرے جنازه اُوکړم۔

**وَعَجِّلُوْا:** یعنی ددهٔ په تجهیز او تکفین باندے جلتی اُوکړئ۔

**لِجِیْفَةِ :** جثے ته وئیلے شی۔

**ظَهْرَانَیْ اَهْلِهٖ :** دلتـه ظهـرانی لـفظ زائد دے۔ یعنی بین اهله۔ یعنی مړے ډیره زمانه په کور کښې مهٔ ایساروئ دے دپاره چه بد بویه نشی او د کور والو غم ئے زیات نشی۔

مـطلب دا دے چـه مسلمان الله تعالیٰ ته ډیر عزیز کریم وی نو کله چه هغه بدبویه شی، نفس او طبیـعـت بـه د هـغـه نه نفرت اُوکړی نو پکار ده چه جلتئ سره خخ شی چه د خلقو طبیعت ترے نفرت اُونکړی۔

دا حـدیـث دلیـل دے چـه مړی بـانـدے جلتی کول پکار دی او ډیر وخت ئے ایسارول نهٔ دی پکار لکه بعض خلق ئے ورځ دوه ایساروی او د لرے ځایونو خلق ورله راغواړی، د هغوی ملاقات ته ئے بند کړے وی، دا کار مناسب نهٔ دے۔ وانظر فتاوی الدین الخالص (٧/٢٦٠)۔

**درجة الحديث:** اسناده ضعيف : (ابوداود : (٣١٥٩) والبيهقي في الكبرى (٣/٣٨٦) وفي اسناده عـزره او عـروة – شك بـعـض الـرواة– بـن سـعـيـد الانـصارى عن ابيه وهما مجهولان كما في التقريب (٢/١٩) (البـانـي ورمـضـان آل عوف) قال الشوكاني وتشهد له احاديث الا سراع بالجنازة (مرعاة) وهو

الحق ان شاء اللّٰه کما فُصِّلَ فی الدین الخالص (٧) فالحدیث صحیح لغیره۔

## الفصل الثالث

**١٦٢٥ (١١) – وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «لَقِّنُوْا مَوْتَاكُمْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ» . قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ كَيْفَ لِلْأَحْيَاءِ ؟ قَالَ: «أَجْوَدُ وَأَجْوَدُ» . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.**

ترجمه : او عبد اللّٰه بن جعفر ﷺ فرمائي : رسول اللّٰه ﷺ فرمایلي دي : « مرګ ته نزدے خلقو ته ددے کلماتو تلقین اُوکړئ: لا اله الا اللّٰه الخ (یعنی نشته حقدار د بندګئ سوئ د اللّٰه نه چه صبرناك عزتمند دے، پاکي ده اللّٰه لره چه رب د لوئي عرش دے۔ ټول صفتونه د کمال خاص اللّٰه لره دي چه رب د مخلوقاتو دے)۔ صحابه کرامؓ عرض اُوکړو اے د اللّٰه رسوله ! (دا کلمات) د ژوندو دپاره څنګه دي ؟ وے فرمایل : ډیر ښه او ډیر ښه۔ (ابن ماجة)۔

**تعارف د عبد اللّٰه بن جعفر ﷺ:** دا د ابو طالب نوسے دے قریشي، هاشمي دے، ابو جعفر ئے اسم کنیه ده، د اسماء بنت عمیس نه په حبشو کښې پیدا شویدے او دا اولنے ماشوم وو چه په اسلام کښې په حبشو کښې پیدا شو او د پلار سره مدینے ته راغلو او د رسول اللّٰه ﷺ نه ئے ډیر احادیث زدهٔ کړیدي۔ او دا ډیر سخي، هوښیار، اخلاقي، عفیف (پاکدامن) حلیم (صبرناك) وو، خلقو به ورته بحر الجود (د سخا دریاب) وئیلو۔ بعضو لیکلي دي چه ددهٔ نه په اسلام کښې هیڅوك ډیر سخي نهٔ وو۔ او د سخا متعلق ډیر واقعات ئے مشهور دي۔ ابن حبان وائي : دهٔ ته قطب السخاء وئیلے شي۔ په مدینه کښې په سنه (٨٠ هـ) کښې د (٨٠) کالو په عمر بعض وائي د (٩٠) کالو په عمر وفات شویدے او ابان بن عثمان پرے مونځ کړیدے کله چه هغه په مدینه باندے امیر مقرر وو۔

**تشریح :أَجْوَدُ :** یعنی احسن (ډیر ښه) دے۔ تکرار ئے د تاکید او مبالغے دپاره کړیدے۔ یا تکرار د استمرار (همیشوالي) دپاره دے۔ دا روایت ضعیف دے۔ نو که څوك مړو ته په تلقین کښې دا ذکر وائي، جائز ده لیکن سنت به ئے نهٔ ګنړي او ښه ذکر دے چه انسان لره په اللّٰه تعالیٰ باندے ښه ګمان راپیدا کوي، او بخاري کښې دا ذکر دعاء الکرب (د غم د ختمولو دپاره) خودلے شویده معمولي شان الفاظ ئے جدا دي۔ هغے کښې داسے دي :(لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ الْعَظِيْمُ الْحَلِيْمُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَرَبُّ الْأَرْضِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيْمِ) ۔

جناب علي ﷺ فرمائي : ما ته رسول اللّٰه ﷺ ددے تعلیم راکړے چه کله په ما باندے څه غم

(پريشانى) راشى چه زهٔ داسے اُووايم : (لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ، سُبْحَانَ اللّٰهِ وَتَبَارَكَ اللّٰهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ) (مسند احمد ١/٩١ صحيح وسنده حسن قاله شعيب الارنووط).

په يو بل روايت كښې داسے راغلى دى چه علىؓ فرمائى : ما ته رسول الله ﷺ اُوفرمايل : ((آيا زهٔ تا تـه داسے كلمات نهٔ ښايم چه كله هغه ته اُووائے نو گناهونه به دے اُوبخلے شى : ((لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ). (مسند احمد ١/١٥٨ حسن لغيره).

په يو حسن حديث كښې دى چه عبد الله بن جعفرؓ خپله لور حجاج بن يوسف ته وركړه بيا ئے ورتـه اُووئيل كله چه تا باندے حجاج داخليږى نو دا دعاء اُووايه : ((لَا اِلٰـهَ اِلَّا اللّٰهُ الْحَلِيْمُ الْكَرِيْمُ، سُبْحَانَ اللّٰهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ )). (يعنى ددے حديث دعاء) او دا ئے ورته اُووئيل چه كله به رسول الله ﷺ ته څه مشكل كار راپيښ شو نو دا دعاء به ئے لوستله. حمادٔ راوى وائى زما گمان دے چه ما ته زما استاذ (ابن ابى رافع) اُووئيل چه حجاج دغه زنانه ته نزدے نشو. (احمد ١/٢٠٦ بسند حسن بتعليق شعيب).

ددے نه معلومه شوه چه ددے ذكر ډيرے فائدے دى نو مر كيدونكى شخص ته هم ددے لوستل پكار دى چه مشكلات ئے ختم شى. او د ژوندو دپاره لوستلو كښې ئے نور هم ډير فوائد شته.

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : ابن ماجه (١٤٤٦) وفى اسناده اسحاق بن عبد الله بن جعفر وهو ابن ابى طالب وهو مجهول الحال لم يوثقه احد).

---

١٦٢٦(١٢) - وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :((اَلْمَيِّتُ تَحْضُرُهُ الْمَلَائِكَةُ فَإِذَا كَانَ الرَّجُلُ صَالِحًا قَالُوْا: اُخْرُجِيْ أَيَّتُهَا النَّفْسُ الطَّيِّبَةُ كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الطَّيِّبِ اُخْرُجِيْ حَمِيْدَةً وَاَبْشِرِيْ بِرَوْحٍ وَرَيْحَانٍ وَرَبٍّ غَيْرِ غَضْبَانَ فَلَا تَزَالُ يُقَالُ لَهَا ذٰلِكَ حَتّٰى تَخْرُجَ ثُمَّ يُعْرَجُ بِهَا إِلَى السَّمَاءِ فَيُفْتَحُ لَهَا فَيُقَالُ: مَنْ هٰذَا ؟ فَيَقُوْلُوْنَ: فُلَانٌ فَيُقَالُ: مَرْحَبًا بِالنَّفْسِ الطَّيِّبَةِ كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الطَّيِّبِ اُدْخُلِيْ حَمِيْدَةً وَاَبْشِرِيْ بِرَوْحٍ وَرَيْحَانٍ وَرَبٍّ غَيْرِ غَضْبَانَ فَلَا تَزَالُ يُقَالُ لَهَا ذٰلِكَ حَتّٰى تَنْتَهِيَ إِلَى السَّمَاءِ الَّتِيْ فِيْهَا اللّٰهُ فَإِذَا كَانَ الرَّجُلُ السَّوْءُ قَالَ: اُخْرُجِيْ أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْخَبِيْثَةُ كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الْخَبِيْثِ، اُخْرُجِيْ ذَمِيْمَةً وَاَبْشِرِيْ بِحَمِيْمٍ وَغَسَّاقٍ وَآخَرَ مِنْ شَكْلِهِ أَزْوَاجٌ فَمَا تَزَالُ يُقَالُ لَهَا ذٰلِكَ حَتّٰى

تَخْرُجَ ثُمَّ يُعْرَجُ بِهَا إِلَى السَّمَاءِ فَيُفْتَحُ لَهَا فَيُقَالُ: مَنْ هٰذَا ؟ فَيُقَالُ: فُلَانٌ فَيُقَالُ: لَا مَرْحَبًا بِالنَّفْسِ الْخَبِيثَةِ كَانَتْ فِي الْجَسَدِ الْخَبِيثِ، ارْجِعِي ذَمِيمَةً فَإِنَّهَا لَا تُفْتَحُ لَكِ أَبْوَابُ السَّمَاءِ فَتُرْسَلُ مِنَ السَّمَاءِ ثُمَّ تَصِيرُ إِلَى الْقَبْرِ ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي، رسول الله ﷺ فرمايلي دي(( چه مرگ ته نزدے انسان ملائك حاضريږي نو كه سړے نيك عمله وي، نو (د هغه روح ته د رحمت) ملائك وائي : اے پاكه روحه چه په پاك بدن كښ وو! پداسے حال كښ (ددے جسم نه) راوځه چه (د الله او د مخلوق په نيز) ستا صفت كړے شويدے او ستا دپاره دے خوشحالي وي په راحت او سكون او د جنت په رزق او د الله په ملاقات سره چه (په تا باندے) غضبناك نهٔ دے، هميشه قريب الموت انسان ته ملائك همدا خبره كوي تردے چه روح راوځي بيا دا روح آسمان طرف ته اُوخيژولے شي او دے ته د آسمان دروازه كولاوه كړے شي۔ (د آسمان دربانچي) تپوس كوي چه دا كوم شخص دے؟ نو دا وړونكي ملائك (د هغه نوم او نسبت خودلو سره) وائي چه دا د فلاني شخص (روح) دے۔پس وئيلے شي چه آفرين دے وي دے پاك روح لره چه په پاك بدن كښ وو، (اے پاكه روحه! آسمان ته) داخل شه، پدے حال كښ چه ستا صفت شويدے او خوشحالي دے وي تا لره په راحت، په پاك رزق او د هغه رب په ملاقات سره چه په تا باندے غضبناك نهٔ دے، دے روح ته هميشه داسے وئيلے شي تردے چه دا هغه آسمان ته (يعني عرش ته) أورسيږي چه د هغے دپاسه الله دے او كه هغه سړے بد عمله وي نو ملك الموت د هغه (روح) ته وائي : اے خبيث روحه چه په پليت بدن كښ وو پدے حال كښ (د جسم نه) راوځه چه ستا بدي بيان شويده او دا بده خبره واوره چه ستا دپاره گرمے أوبه، پيپ او ددے نه سوئ ددے په شان عذاب ستا انتظار كوي۔ هميشه دهٔ ته داسے وئيلے كيږي تردے چه هغه (روح) راوځي بيا آسمان طرف ته أوخيژولے شي هغے ته د آسمان دروازه كولاوه شي تپوس أوكړے شي چه دا څوك دے۔ ملائك أووائي : فلانے دے۔ د آسمان دربانچي أووائي دے خبيث روح له دے خوشحالي نهٔ وي چه په پليت بدن كښ وو۔ (بيا روح ته أووئيلے شي) راوځه په داسے حال كښ چه ستا بدي به وئيلے شوي وي يقيناً تا ته به د آسمان دروازے نهٔ كولاويږي نو د آسمان نه راگوزار كړے شي بيا قبر طرف ته واپس كړے شي))۔ (ابن ماجه)۔

تشريح : أوس مړي تـه د ملائكو د حاضريدو او د هغه نه د روح د ويستلو تفصيلات بيانيږي۔

أُخْرُجِيُ : دا روح تـه خـطـاب کوی۔ دا دلیل دے چه روح جدا شے دے او بدن جدا دے او روح یو داسے لطیف جسم دے چه په بدن کښې داخلیږی او بهر کیږی او دغه شان کوزیږی او خیژی۔ او د روح ډیر عـجـیـب احوال دی چه ډیر انسانانو ته هغه نهٔ دی معلوم نو پدے وجه د ډیرو خلقو نه انکار کوی۔

بِرَوْحٍ : یعنی راحة او رحمت۔

وَرَيْحَانٍ : ښائسته رزق۔ تنوین پکښې د تعظیم او تکثیر دپاره دے۔

فِيهَا اللهُ : دا صـریـح دلیـل دے چـه الله تـعـالیٰ بـره طرف ته دے او تاویل کول په امر او حکم او ظهور د مِلْكِ سره د سلـفـو صـالـحـینـو د عـقـیدے خلاف دے لکه حواشیو کښې ئے دغه غلط تاویلات کړیدی۔

السُّوْءُ : د سین پـه فتحه او ضمه دواړو سره جائز دے۔ او دا یا مرفوع دے صفت د الرجل دے او هغه مرفوع دے په کان تامه یا منصوب دے په کان ناقصه سره۔

وَغَسَّاقٍ : وینے زوے، یا حمیم گرمے اُوبه او غساق یخے بد بویه اُوبه دی۔

شَكْلِهِ : یعنی ددے په شان او ددے په مثل په گرمائش او تریخوالی کښې۔

أَزْوَاجٌ : اصناف او اقسام دی۔

یـعـنـی د دغه حمیم او غساق په شان په سختئ او کبراهتٔ کښې نور اجناس او اقسام دی یعنی قسما قسم۔

پـدے حـدیـث کښې د کافر او د مؤمن د روح د قبض کولو په باره کښې خو تفصیل کړے شویدے لیـکـن د فاسق په باره کښې سکوت اختیار شویدے د هغه هیڅ ذکر نهٔ دے شوے ځکه د فاسق په بـاره کښې د کتاب او سنت همدا طریقه ده چه د هغه په باره کښې سکوت اختیارولے شی دے دپاره چه هغه د خوف او د رجاء (امید) په مابین کښې وی۔

بیـا د مـؤمـن روح بره ځی او په جنتونو کښې د عرش نه گیر چاپیره قنادیلو ته پناهی حاصلوی او بیـا ئے د خپـل جسم سره تعلق هم وی۔ او هرچه کافر دے نو د هغه روح آسمان پورے اُوخیژی لیـکـن دروازے د آسـمـان ورتـه نـهٔ کـولاویږی او خکته اسفل السافلین یعنی سجین ته راگوزار کړے شی۔ او پـه جیـل کـښې اُوتـړلے شـی او د جهنم د طرف نه ورته په قبر کښې بد بوئی راځی۔ اعاذنا الله من هذه الحالة۔

**درجة الحديث** : اسـنـاده صـحـيـح : ابـن ماجه (٤٢١٦) او (٤٢٥٢) وقال البوصيری فی الزوائد : إسناد صحيح رجاله ثقات، رواه النسائی فی التفسير۔

١٦٢٧ (١٣) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ: «إِذَا خَرَجَتْ رُوْحُ الْمُؤْمِنِ تَلَقَّاهَا مَلَكَانِ يُصْعِدَانِهَا». قَالَ حَمَّادٌ: فَذَكَرَ مِنْ طِيْبِ رِيْحِهَا وَذَكَرَ الْمِسْكَ قَالَ: «وَيَقُوْلُ أَهْلُ السَّمَاءِ: رُوْحٌ طَيِّبَةٌ جَاءَتْ مِنْ قِبَلِ الْأَرْضِ صَلَّى اللهُ عَلَيْكِ وَعَلٰى جَسَدٍ كُنْتِ تَعْمُرِيْنَهُ فَيُنْطَلَقُ بِهِ إِلٰى رَبِّهِ ثُمَّ يَقُوْلُ: اِنْطَلِقُوْا بِهِ إِلٰى آخِرِ الْأَجَلِ». قَالَ: «وَإِنَّ الْكَافِرَ إِذَا خَرَجَتْ رُوْحُهُ». قَالَ حَمَّادٌ: وَذَكَرَ مِنْ نَتْنِهَا وَذَكَرَ لَعْنَهَا. «وَيَقُوْلُ أَهْلُ السَّمَاءِ: رُوْحٌ خَبِيْثَةٌ جَاءَتْ مِنْ قِبَلِ الْأَرْضِ فَيُقَالُ: اِنْطَلِقُوْا بِهِ إِلٰى آخِرِ الْأَجَلِ». قَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ: فَرَدَّ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ رَيْطَةً كَانَتْ عَلَيْهِ عَلٰى أَنْفِهِ هٰكَذَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي، رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «كله چه د مؤمن روح اُوځي نو هغه دوه ملائك واخلي چه (آسمان طرف ته ئې) خيژوي. حماد (چه پدې حديث كښې د ابو هريرهؓ نه روايت كوي) وائي: رسول الله ﷺ د هغه روح خوشبوئي او مشك ذكر كړل. (يعني ددې روح نه د مشكو خوشبوئي راځي). بيا نبي ﷺ اُوفرمايل : (كله چه ملائك د مؤمن روح آسمان ته پورته كړي) نو آسمان والا وائي چه پاك روح د زمكې د طرف نه راغلې دې، (بيا هغوي روح ته خطاب اُوكړي) الله تعالىٰ دې په تا او ستا په بدن باندې چه تا آباد كړې وو رحمت اُوكړي، بيا ملائك هغه لره د هغه رب ته بوځي، او الله دا حكم كوي چه دا بوځئ تر آخري نيتې (د قيامته پورې). ابو هريرهؓ وائي چه دې نه روستو نبي كريم ﷺ اُوفرمايل :«كله چه د كافر روح د هغه د جسم نه اُوځي » حمادؓ وائي چه دې نه روستو رسول الله ﷺ يا ابو هريرهؓ د هغې بد بوئي او لعنت ذكر كړو. بيا نبي ﷺ اُوفرمايل چه « كله د كافر روح آسمان ته اُوخيژي نو آسمان والا وائي چه يو ناپاك روح د زمكې نه راغلې دې بيا (د هغه ناپاك روح په باره كښې) دا فيصله كيږي چه دا بوځئ او د قيامته پورې مهلت وركړئ». ابو هريرهؓ فرمائي : دې نه روستو رسول الله ﷺ د خپل څادر يو طرف (چه د هغه په جسم مبارك باندې وو) په خپل پوزه باندې داسې كيخودو. (مسلم).

تشريح : إِلٰى آخِرِ الْأَجَلِ : مراد ددې نه موده د برزخ ده. چه د هغې انتهاء به په يوم الحساب (د قيامت په ورځ) كيږي.

رَيْطَةً : په فتحه د راء سره. كپړه ترې مراد ده. بعض وائي هره نرئ جامې ته وئيلې شي.

رسول الله ﷺ په خپله پوزه مباركه باندې دغه كپړه دې دپاره راخكله چه صحابه كرامؓ ته اُوښائي چه ملائك د دغه روح د بدبوئي نه داسې نفرت كوي لكه يو انسان چه د بدبوئي نه په

پوزه باندے څه کېره راکاړی نو ابو هريرهؓ شاګردانو ته د رسول الله ﷺ هغه عمل اُوکړو کوم چه ابو هريرهؓ ليدلے وو۔ دلته دا احتمال هم دے چه د وجه د کثرتِ استحضار نه په رسول الله ﷺ باندے دغه بوئی راغلے وه۔

---

١٦٢٨ (١٤) - وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِذَا حُضِرَ الْمُؤْمِنُ أَتَتْ مَلَائِكَةُ الرَّحْمَةِ بِحَرِيْرَةٍ بَيْضَاءَ فَيَقُوْلُوْنَ: اُخْرُجِيْ رَاضِيَةً مَرْضِيًّا عَنْكِ إِلٰى رَوْحِ اللهِ وَرَيْحَانٍ وَرَبٍّ غَيْرِ غَضْبَانٍ فَتَخْرُجُ كَأَطْيَبِ رِيْحِ الْمِسْكِ حَتّٰى إِنَّهُ لَيُنَاوِلُهُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا حَتّٰى يَأْتُوْا بِهِ أَبْوَابَ السَّمَاءِ فَيَقُوْلُوْنَ: مَا أَطْيَبَ هٰذِهِ الرِّيْحَ الَّتِيْ جَاءَتْكُمْ مِنَ الْأَرْضِ فَيَأْتُوْنَ بِهِ أَرْوَاحَ الْمُؤْمِنِيْنَ فَلَهُمْ أَشَدُّ فَرَحًا بِهِ مِنْ أَحَدِكُمْ بِغَائِبِهِ يَقْدَمُ عَلَيْهِ فَيَسْأَلُوْنَهُ: مَاذَا فَعَلَ فُلَانٌ مَاذَا فَعَلَ فُلَانٌ؟ فَيَقُوْلُوْنَ: دَعُوْهُ فَإِنَّهُ كَانَ فِيْ غَمِّ الدُّنْيَا. فَيَقُوْلُ: قَدْ مَاتَ أَمَا أَتَاكُمْ؟ فَيَقُوْلُوْنَ: قَدْ ذُهِبَ بِهِ إِلٰى أُمِّهِ الْهَاوِيَةِ. وَإِنَّ الْكَافِرَ إِذَا احْتُضِرَ أَتَتْهُ مَلَائِكَةُ الْعَذَابِ بِمِسْحٍ فَيَقُوْلُوْنَ: اُخْرُجِيْ سَاخِطَةً مَسْخُوْطًا عَلَيْكِ إِلٰى عَذَابِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ. فَتَخْرُجُ كَأَنْتَنِ رِيْحِ جِيْفَةٍ حَتّٰى يَأْتُوْنَ بِهِ بَابَ الْأَرْضِ فَيَقُوْلُوْنَ: مَا أَنْتَنَ هٰذِهِ الرِّيْحَ حَتّٰى يَأْتُوْنَ بِهِ أَرْوَاحَ الْكُفَّارِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ.

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ اُوفرمايل : «کله چه مؤمن ته مرګ حاضرېږی نو د رحمت ملائك ورته سپينه وريښمی کېره راوړی۔ (د هغه روح) ته وائی چه ته د (بدن نه) په داسے حال کښې راوځه چه ته د الله نه راضی ئے او الله ستا نه خوشحاله دے او د الله تعالیٰ رحمت او مهربانی او بهترين رزق او هغه رب طرف ته چه په تا باندے غضبناك نهٔ دے۔ نو روح د مشك د مزيدارے خوشبوئی په شان (د جسم نه) اُوځی تردے چه ملائك ئے (د تعظيم او تکريم په طور) يو بل ته په لاسونو کښې ورکوی روان وی تردے چه دا د آسمان دروازو ته راولی نو آسمان والا وائی چه څومره ښه ده دا خوشبوئی چه تاسو ته د زمکے نه راځی نو هغوی دا روح د مؤمنانو د روحونو خواله (يعنی عليين يا جنت ته) بوځی نو هغوی ددهٔ په راتلو سره ددے نه هم زيات خوشحالېږی لکه څنګه چه يو تن ستاسو د غائب په راتلو سره خوشحالېږی۔ بيا تول روحونه ددے روح نه تپوس کوی چه فلانے څه کوی او فلانے څه کوی؟ (يعنی روحونه د هغه متعارفينو په باره کښې چه هغوی په دنيا کښې پرېښی وو نوم په نوم تپوس کوی چه د فلانی

فلاني شخص څه حال وو) نو روحونه خپل مینځ کښ وائي چه دا روح پریدئ څکه چه دا خو (لا ترأوسه) د دنیا په غم کښ دے (کله چه دا په آرام شي نو بیا ترے تپوسونه کوئ). نو روح وائي چه فلانے خو مړ شوے وو آیا هغه ستاسو خواته نۀ دے راغلے. نو نور روحونه اُووائي چه هغه خپلے مور طرف ته چه هغه (د جهنم) اُور دے بوتلے شوے دے. او کله چه د کافر د مرګ وخت راشي نو هغه ته د عذاب ملائك یو ټاټ راوړي او د هغه روح ته وائي چه اے کافر روحه ! د الله عزوجل عذاب ته راوځه پدے حال کښې چه الله تعالیٰ ستا نه ناراضه دے او په تا باندے د الله غصه کړے شویده. نو روح د مردار حیوان د ډیر خراب بوئي په شان راځي. نو ملائك دا روح د آسمان دروازے ته راوړي (کوم چه زمکے طرف ته ده) هلته ملائك وائي چه څومره بده ده دا بد بوئي؟ تردے چه دا روح د کافرانو روحونو خواته راولي )). (احمدؒ، نسائيؒ).

**تشریح : بِحَرِيْرَةٍ** : د وریښمو کپړه. د مؤمن د مرګ په وخت کښ ملائك وریښمي کپړه غالباً پدے وجه راوړي چه د هغه روح په کښ رانغاړ کړي او بره ئے یوسی لکه څنګه چه دنیوی کفن د ظاهری بدن سره یوځائے شوے وي.

**لَهُنَاوِلَهُ** : یعنی یو بل ته ئے تمبر په تمبر ورکوي او پدے طریقه ئے بره خیژوي دپاره د تعظیم او اکرام او شرافت ددے روح او مینه کوي ددے روح سره.

**فَيَقُوْلُوْنَ** : یعنی کله چه دا نوے روح د نورو مؤمنانو د روحونو خوا له راولي نو مخکښ راغلي مؤمنانو کښ ترے بعض تپوسونه شروع کړي چه په دنیا کښ فلانے څه حالت کښ وو، نور مؤمنان ورته اُووائي چه دا لا پریدئ دا خو لا ترأوسه د دنیا په غم کښ دے، غمونه ئے لا نۀ دي په آرام شوي، تازه راغلے دے. لږه دمه ورکړئ. نو دغه روح هغوي ته خبر ورکړي چه فلانے خو مړ شویدے آیا تاسو ته هغه نۀ دے راغلے؟ نو مخکني روحونه د مؤمنانو ورته اُووائي چه هغه به د جهنم کندے ته پریوتے وي څکه ئے مونږ نۀ وینو.

**مَاذَا فَعَلَ فُلَانٌ** : دا دلیل دے چه د مړو ارواح د دنیا په احوالونۀ پوهیږي څکه د نوي میلمه نه تپوس کوي.

**الْهَاوِيَةِ**: د جهنم نوم دے. هاویه کندے ته وئیلے شي چه هغے ته کوزاریدل کیدے شي اوجهنم هم په دغه حالت دے.

**سَاخِطَةً** : یعنی خپله د الله نه ناراضه. او مسخوطا علیك یعنی د الله به په تا باندے غضب وي.

**بَابَ الْأَرْضِ** : یعنی د آسمان هغه دروازه چه مخه ئے زمکے ته ده. اولنے آسمان مراد دے. او دا احتمال هم شته چه ددے نه مراد د اولني روح مقابل د زمکے دروازے دي نو مطلب به دا وي

چه د كافر روح اسفل السافلين (سجين) طرف ته راګوزارلے شي. او همدا صورت ملا علي القاري غوره كړيدے.

أَرْوَاحَ الْكُفَّارِ: د كافرانو د روحونو ځائے سجين دے دا يو ځائے دے چه د زمكے لاندے د جيل خانے په شان دے. نو دغه كافر روح د خپلو ملګرو كافرانو سره يو ځائے كړے شي.

**درجة الحديث:** اسناده صحيح : اخرجه النسائي (١/٢٥٩) - ٢٦٠) والحاكم وابن حبان واورده في الصحيحة (١٣٠٩) وفي صحيح الجامع الصغير (٤٩٠).

---

١٦٢٩ (١٥) - وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ ﷺ فِي جَنَازَةِ رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَانْتَهَيْنَا إِلَى الْقَبْرِ وَلَمَّا يُلْحَدْ فَجَلَسَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَجَلَسْنَا حَوْلَهُ كَأَنَّ عَلَى رُؤُوْسِنَا الطَّيْرَ وَفِي يَدِهِ عُوْدٌ يَنْكُتُ بِهِ فِي الْأَرْضِ فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ: «اِسْتَعِيْذُوْا بِاللهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ» مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ: «إِنَّ الْعَبْدَ الْمُؤْمِنَ إِذَا كَانَ فِي انْقِطَاعٍ مِنَ الدُّنْيَا وَإِقْبَالٍ مِنَ الْآخِرَةِ نَزَلَ إِلَيْهِ مِنَ السَّمَاءِ مَلَائِكَةٌ بِيْضُ الْوُجُوْهِ كَأَنَّ وُجُوْهَهُمُ الشَّمْسُ مَعَهُمْ كَفَنٌ مِنْ أَكْفَانِ الْجَنَّةِ وَحَنُوْطٌ مِنْ حَنُوْطِ الْجَنَّةِ حَتّٰى يَجْلِسُوْا مِنْهُ مَدَّ الْبَصَرِ ثُمَّ يَجِيْءُ مَلَكُ الْمَوْتِ حَتّٰى يَجْلِسَ عِنْدَ رَأْسِهِ فَيَقُوْلُ: أَيَّتُهَا النَّفْسُ الطَّيِّبَةُ اخْرُجِيْ إِلَى مَغْفِرَةٍ مِنَ اللهِ وَرِضْوَانٍ» قَالَ: «فَتَخْرُجُ تَسِيْلُ كَمَا تَسِيْلُ الْقَطْرَةُ مِنْ فِي السِّقَاءِ فَيَأْخُذُهَا فَإِذَا أَخَذَهَا لَمْ يَدَعُوْهَا فِيْ يَدِهِ طَرْفَةَ عَيْنٍ حَتّٰى يَأْخُذُوْهَا فَيَجْعَلُوْهَا فِيْ ذٰلِكَ الْكَفَنِ وَفِيْ ذٰلِكَ الْحَنُوْطِ وَيَخْرُجُ مِنْهَا كَأَطْيَبِ نَفْحَةِ مِسْكٍ وُجِدَتْ عَلٰى وَجْهِ الْأَرْضِ» قَالَ: «فَيَصْعَدُوْنَ بِهَا فَلَا يَمُرُّوْنَ - يَعْنِيْ بِهَا - عَلٰى مَلَإٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ إِلَّا قَالُوْا: مَا هٰذِهِ الرُّوْحُ الطَّيِّبُ فَيَقُوْلُوْنَ: فُلَانُ بْنُ فُلَانٍ بِأَحْسَنِ أَسْمَائِهِ الَّتِيْ كَانُوْا يُسَمُّوْنَهُ بِهَا فِي الدُّنْيَا حَتّٰى يَنْتَهُوْا بِهَا إِلٰى سَمَاءِ الدُّنْيَا فَيَسْتَفْتِحُوْنَ لَهُ فَيُفْتَحُ لَهُ فَيُشَيِّعُهُ مِنْ كُلِّ سَمَاءٍ مُقَرَّبُوْهَا إِلَى السَّمَاءِ الَّتِيْ تَلِيْهَا حَتّٰى يُنْتَهٰى بِهَا إِلَى السَّمَاءِ السَّابِعَةِ. فَيَقُوْلُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ: اُكْتُبُوْا كِتَابَ عَبْدِيْ فِيْ عِلِّيِّيْنَ وَأَعِيْدُوْهُ إِلَى الْأَرْضِ فَإِنِّيْ مِنْهَا خَلَقْتُهُمْ وَفِيْهَا أُعِيْدُهُمْ وَمِنْهَا أُخْرِجُهُمْ تَارَةً أُخْرٰى قَالَ: فَتُعَادُ رُوْحُهُ فَيَأْتِيْهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ فَيَقُوْلَانِ لَهُ: مَنْ رَبُّكَ؟ فَيَقُوْلُ: رَبِّيَ اللهُ فَيَقُوْلَانِ لَهُ: مَا دِيْنُكَ؟ فَيَقُوْلُ: دِيْنِيَ الْإِسْلَامُ فَيَقُوْلَانِ لَهُ: مَا هٰذَا الرَّجُلُ الَّذِيْ بُعِثَ فِيْكُمْ؟ فَيَقُوْلُ: هُوَ رَسُوْلُ اللهِ

ﷺ فيقولان له: وما علمك؟ فيقول: قرأت كتاب الله فآمنت به وصدقت فينادي منادٍ من السماء أن قد صدق فأفرشوه من الجنة وألبسوه من الجنة وافتحوا له بابًا إلى الجنة».
قال: «فيأتيه من روحها وطيبها ويفسح له في قبره مد بصره». قال: «ويأتيه رجل حسن الوجه حسن الثياب طيب الريح فيقول: أبشر بالذي يسرك هذا يومك الذي كنت توعد فيقول له: من أنت؟ فوجهك الوجه يجيء بالخير فيقول: أنا عملك الصالح فيقول: رب أقم الساعة رب أقم الساعة حتى أرجع إلى أهلي ومالي». قال: «وإن العبد الكافر إذا كان في انقطاع من الدنيا وإقبال من الآخرة نزل إليه من السماء ملائكة سود الوجوه معهم المسوح فيجلسون منه مد البصر ثم يجيء ملك الموت حتى يجلس عند رأسه فيقول: أيتها النفس الخبيثة اخرجي إلى سخط من الله». قال: «فتفرق في جسده فينتزعها كما ينتزع السفود من الصوف المبلول فيأخذها فإذا أخذها لم يدعوها في يده طرفة عين حتى يجعلوها في تلك المسوح ويخرج منها كأنتن ريح جيفة وجدت على وجه الأرض فيصعدون بها فلا يمرون بها على ملأ من الملائكة إلا قالوا: ما هذا الروح الخبيث؟ فيقولون: فلان بن فلان - بأقبح أسمائه التي كان يسمى بها في الدنيا - حتى ينتهى بها إلى السماء الدنيا فيستفتح له فلا يفتح له. ثم قرأ رسول الله ﷺ ﴿ لا تفتح لهم أبواب السماء ولا يدخلون الجنة حتى يلج الجمل في سم الخياط ﴾ فيقول الله عز وجل: اكتبوا كتابه في سجين في الأرض السفلى فتطرح روحه طرحًا ثم قرأ: ﴿ ومن يشرك بالله فكأنما خر من السماء فتخطفه الطير أو تهوي به الريح في مكان سحيق ﴾ فتعاد روحه في جسده ويأتيه ملكان فيجلسانه فيقولان له: من ربك؟ فيقول: هاه هاه لا أدري فيقولان له: ما دينك؟ فيقول: هاه هاه لا أدري فيقولان له: ما هذا الرجل الذي بعث فيكم؟ فيقول: هاه هاه لا أدري فينادي منادٍ من السماء أن كذب عبدي فأفرشوا له من النار وافتحوا له بابًا إلى النار فيأتيه حرها وسمومها ويضيق عليه قبره حتى تختلف فيه أضلاعه ويأتيه رجل قبيح الوجه قبيح الثياب منتن الريح فيقول: أبشر بالذي يسوؤك هذا يومك الذي كنت توعد فيقول: من أنت؟ فوجهك الوجه يجيء بالشر فيقول: أنا عملك الخبيث فيقول:

رَبِّ لَا تُقِمِ السَّاعَةَ ». وَفِيْ رِوَايَةٍ نَحْوَهُ وَزَادَ فِيْهِ : « إِذَا خَرَجَ رُوْحُهُ صَلّٰى عَلَيْهِ كُلُّ مَلَكٍ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَكُلُّ مَلَكٍ فِي السَّمَاءِ وَفُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ بَابٍ إِلَّا وَهُمْ يَدْعُوْنَ اللّٰهَ أَنْ يُعْرَجَ بِرُوْحِهِ مِنْ قِبَلِهِمْ. وَتُنْزَعُ نَفْسُهُ يَعْنِي الْكَافِرَ مَعَ الْعُرُوْقِ فَيَلْعَنُهُ كُلُّ مَلَكٍ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَكُلُّ مَلَكٍ فِي السَّمَاءِ وَتُغْلَقُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ لَيْسَ مِنْ أَهْلِ بَابٍ إِلَّا وَهُمْ يَدْعُوْنَ اللّٰهَ أَنْ لَا يُعْرَجَ رُوْحُهُ مِنْ قِبَلِهِمْ ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

ترجمه: او براء بن عازب ﷺ فرمائي : مونږ د نبي كريم ﷺ سره د انصارو د يو سړي په جنازه كښې راووتلو نو مونږ يو قبر ته راورسيدلو چه (د قبر د نه تياريدلو په وجه) جنازه لا سپارلے شوے نه وه نو رسول الله ﷺ كيناستو او مونږ د هغه نه گير چاپيره كيناستو (داسے حال وو) گويا كښې زمونږ په سرونو باندے مارغان دي (يعني مونږ بالكل غلي سر خكته ناست وو) د نبي كريم ﷺ په لاس كښې يو لرگے وو چه په هغے سره ئے زمكه كنسته (لكه څنگه چه يو شخص په ډير فكر او سوچ مستغرق وي) بيا هغه خپل سر راپورته كړو وے فرمايل : « د قبر د عذاب نه په الله سره پناه اُوغواړئ »، نبي ﷺ دوه يا درے كرته دا خبره اُوكړه. او بيا ئے اُوفرمايل : « يقيناً مؤمن بنده چه كله د دنيا نه په تعلق ختميدو او آخرت ته په متوجه كيدو كښې وي (يعني مركيدو ته نزدے وي) نو هغه ته د آسمان نه سپينو مخونو والا ملائك راكوز شي مخونه ئے داسے وي گويا كښې نمر دے. د هغوي سره د جنت د كفنونو نه يو كفن وي او د جنت د خوشبويانو نه خوشبوئي وي تردے چه د هغه نه د نظر په اُوگلووالي كيني (يعني دومره وراندے كيني كوم ځائے ته چه ددهٔ نظر رسيږي) بيا ملك الموت ﷺ راشي ددهٔ د سر په خوا كښې كيني او اُووائي : اے پاكه روحه اد الله بخنے او د هغه رضا (رسيدلو) طرف ته راوځه ا نبي ﷺ فرمائي :« پس د بندهٔ مؤمن روح (د هغه د بدن نه) داسے (په آسانئ سره) راوبهيږي لكه څنگه چه څاڅكي د اُوبو د مشك نه رابهيږي نو ملك الموت د هغه روح اُونيسي. او كله چه هغه اُونيسي نو نور ملائك دا روح د هغه په لاس كښې د سترگے د رپ په اندازه نهٔ پريدي تردے چه هغوي ئے واخلي او دا روح په هغه كفن او په دغه خوشبوئي كښې كيدي او ددے روح نه داسے مزيداره خوشبوئي راوځي لكه مزيداره خوشبوئي د مشكو چه په مخ د زمكه موجوده وي. نبي ﷺ فرمائي چه بيا هغه ملائك دا روح واخلي او آسمان طرف ته ئے اُوخيژوي نو دا د ملائكو په يو جماعت نهٔ ورتيروي مگر هغوي وائي چه دا پاك روح څوك دے ؟ هغه ملائك چه دا روح ئے روان كړے وي وائي چه دا فلانے د فلانى څوي دے په ښائسته هغه نومونو (او صفتونو) سره ئے ياد كړي چه دوي به په دنيا

کښې هغه ته وئیل تردے چه دا روح نزدے آسمان ته اُورسوی نو دا ملائك دهٔ دپاره د آسمان د دروازے کولاویدل طلب کړی نو دوی ته هغه کولاوه شی، بیا د هر آسمان نه مقرب ملائك ددے روح سره بل آسمان پورے ځی تردے چه روح اُوم آسمان ته (پدے اعزاز او اکرام سره) اُورسولے شی. نو الله تعالیٰ (ملائکو ته) اُوفرمائی: زما د بنده عملنامه په علیین کښې اُولیکئ او دا روح زمکے طرف ته (یعنی دهٔ بدن ته چه په زمکه کښې دفن دے) واپس بوځئ (دے دپاره چه دا خپل بدن ته اُورسی او د قبر د سوال او جواب دپاره تیار شی) ځکه چه بیشکه ما د زمکے نه انسانان پیدا کړی او پدے کښې به ئے واپس کوم او بیا دوباره به ئے د زمکے نه راوباسم».

نبی کریم ﷺ فرمائی: «د هغه روح د هغه بدن ته راواپس شی نو هغه ته دوه ملائك راشی، هغه ئے کینوی او دواړه ورته وائی: ستا رب څوك دے. نو دا وائی چه زما رب الله دے. هغوی ورته وائی: ستا دین څه دے؟ نو دا جواب ورکوی چه زما دین اسلام دے. بیا هغوی سوال کوی: دا سړے (یعنی رسول الله ﷺ) څوك دے چه تاسو کښې رالیږلے شوے وو؟. هغه جواب ورکوی چه دا د الله رسول ﷺ دے. ملائك ورته وائی چه تا دا څنګه اُوپیژندو چه دا د الله رسول دے. هغه جواب کښې وائی چه ما د الله کتاب لوستلے وو، په هغے ما ایمان راوړے او ما د زړهٔ نه هغه رشتینی ګڼړلے (چه د هغے په وجه ما ته د نبی ﷺ رسول کیدل معلوم شو) بیا د آسمان نه یو آواز کونکے آواز اُوکړی (یعنی د الله د طرف نه اعلان کیږی) چه زما بنده رشتیا اُووئیل. دهٔ دپاره د جنت بستره خوره کړئ او دهٔ ته د جنت لباس واغوندوئ او دهٔ دپاره جنت طرف ته دروازه پرانزئ». نبی ﷺ فرمائی: «نو دهٔ ته د جنت هواګانے او خوشبویانے راځی بیا دهٔ دپاره قبر دهٔ د نظر د اُوګدوالی پورے فراخه کړے شی». نبی ﷺ فرمائی: «بیا دهٔ ته یو سړے ښائسته مخ، ښائسته جامو، مزیدارے خوشبوئی والا راشی. او دهٔ ته وائی چه خوشحاله شه په هغه شی چه تا خوشحاله کوی (یعنی ستا دپاره هغه نعمتونه تیار دی چه نهٔ کومے سترګے لیدلی او نهٔ کوم غوږ آوریدلی) دا ستا هغه ورځ ده چه ددے (په دنیا کښې) تا سره وعدے کړے شوے وے. مؤمن بنده د هغه نه تپوس اُوکړی چه تهٔ څوك ئے؟ ستا مخ خو په حسن او ښکلا کښې کامل دے چه (ځان سره) خیر راوړی. نو هغه ورته اُووائی چه زهٔ ستا نیك عمل یم (چه پدے شکل او صورت کښې راغلے یم) مؤمن بنده (چه دا واوری) وائی چه اے زما ربه ! قیامت قائم کړه دے دپاره چه زهٔ خپل اهل وعیال او مال ته (یا نعمتونو ته چه زما دپاره تیار دی) واپس لاړ شم».

نبی ﷺ فرمائی: «او کافر بنده چه کله د دنیا نه په منقطع کیدو او آخرت ته په متوجه کیدو کښې وی (یعنی مرګ ته نزدے وی) نو هغه ته د آسمان نه ملائك راکوز شی چه تورو مخونو

والا وي، د هغوی سره تپاتونه وي ددۀ نه د نظر د اُوګدوالي په اندازه (وراندې) کيني. بيا ملك الموت راشي ددۀ د سر سره کيني اُووائي : اې خبيث روحه ! د الله ناراضګئ طرف ته راوځه. نبي ﷺ فرمائي : (پدې آوريدو سره) روح دهغه په بدن کښ خور شي. نو ملك الموت هغه داسې (په سختئ سره) راکاږي لکه څنګه چه سيخ د لمدې وړئ نه راخکلې شي. ملك الموت هغه روح راواخلي. او کله ئې چه هغه راواخلي نو نور ملائك ئې د هغه په لاس کښ د سترګې د رپ په اندازه نۀ پريدې تردې چه دا په دغه تپاتونو کښ کيدې او ددۀ نه د مردار حيوان په شان بد بوئي ځي کوم چه په مخ د زمکه موندې شي. هغه ملائك روح راخستو سره آسمان طرف ته ئې خيژوي دا د ملائکو په يو جماعت نۀ تيروي مګر هغوي وائي : دا پليت روح څوك دې ؟ ملائك جواب ورکوي : دا فلانې ځوی د فلانې دې په ډيرو بدو هغه نومونو (او صفتونو) سره ئې ياد کړي په کوم سره به چه په دنيا کښ يادولې شو (يعني کافر، منافق، فاسق) تردې چه دا نزدې آسمان ته اُورسولې شي نو ددۀ دپاره دروازه کولاويدل طلب کړې شي نو دۀ ته دروازه نشي کولاولې بيا رسول الله ﷺ (دا آيت) اولوستلو : ﴿ لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَلَا يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ حَتَّىٰ يَلِجَ الْجَمَلُ فِي سَمِّ الْخِيَاطِ ﴾ (دې کافرانو دپاره د آسمان دروازې نشي کولاويدې او نۀ به دوی جنت ته داخليږي تردې چه اُوښ د ستنې په سوري کښ داخل کړې شي) بيا الله تعالیٰ فرمائي : ددې روح عملنامه په سجين کښ اُوليکئ کوم چه په لاندې زمکه کښ دې نو د هغه روح په سختئ سره (لاندې) راګوزار کړې شي. بيا رسول الله ﷺ دا آيت اُولوستلو: ﴿ وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَكَأَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَاءِ فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ أَوْ تَهْوِي بِهِ الرِّيحُ فِي مَكَانٍ سَحِيقٍ ﴾ (چا چه د الله سره شرك اُوکړو نو ګويا کښ هغه د آسمان نه راپريوتو او مارغانو هغه لره اُوتختولو يا هغه لره هواء په يو وراندې ځائې کښ ګوزار کړو). نو د هغه روح د هغه بدن ته واپس شي او هغه ته دوه ملائك راشي دواړه ئې کينوي، تپوس ترې کوي چه ستا رب څوك دې؟ نو هغه وائي هاه، هاه زۀ نۀ پوهيږم. ملائك ورته وائي : ستا دين څه دې ؟ نو دا وائي هاه، هاه زۀ نۀ پوهيږم. ملائك ترې تپوس کوي چه دا سړې چه په تاسو کښ راليږلې شوې وو څوك دې ؟ هغه وائي : هاه هاه زۀ نۀ پوهيږم. دې نه روستو د آسمان د طرف نه يو آواز کونکې (ملائك) آواز اُوکړي چه دا دروغجن دې، دۀ لره د اُور بستره خوره کړئ او دۀ له اُور طرف ته يوه دروازه کولاوه کړئ. نو هغه ته د هغې ګرمائش او ګرمه هوا راځي او په دۀ باندې قبر راتنګ کړې شي تردې چه ددۀ پښتئ يو بل کښ ننوزي. او دۀ ته يو بد شکله سړې راشي چه خرابو جامو، بد بوئي والا وي دۀ ته وائي: خبر شه په هغه خبره چه تا خفه کوي. دا ستا هغه ورځ ده چه تا سره به ئې وعده کيدې شوه. نو دا ورته اُووائي: تۀ

څوك ئې؟ ستا مخ ډیر بد دے چه بدی راوړی۔ (انسان خفه کوی) هغه شخص وائی چه زۀ ستا بد عمل یم۔ نو دا وائی : اے ربه زما ! قیامت مه قائموه» او په یو بل روایت کښ ددے په شان الفاظ نقل دی لیکن په هغے کښ دا الفاظ زیات دی « چه کله د مؤمن روح (د هغه د بدن نه) اُوځی نو په هغه باندے د آسمان او د زمکے ترمینځ هر ملائك او د آسمان هر ملائك په دۀ باندے رحمت رالیږی (او بخښنه ورله غواړی) او دۀ ته د آسمان دروازے کولاو کړے شی۔ د هرے دروازے والا ملائك د الله نه دا دعا غواړی چه ددۀ روح د هغوی په طرف راوخیژولے شی او د کافر روح د رګونو سره ویستلے شی نو د آسمان او د زمکے ترمینځ ملائك او د آسمان هر ملائك په دۀ باندے لعنت وائی او د آسمان دروازے هغه ته بندے کړے شی او د هرے دروازے ملائك د الله نه سوال کوی چه د دوی په طرف دا روح راونۀ خیژولے شی»۔ (احمدؒ)۔

تشریح :کَأَنَّ عَلٰی رُؤُوسِنَا الطَّیْرَ : دا د صحابه کرامؓ انتهائی ادب وو چه د رسول الله ﷺ په مجلس کښ به داسے په آرام او ادب سره ناست وو ګویا کښ په سرونو ئې مارغان ناست دی، هیڅ حرکت به ئې نۀ کولو او د نبی ﷺ د مجلس د توقیر او تعظیم دپاره به ئې هیڅ خبرے نۀ کولے۔

یَنْکُتُ بِهٖ فِی الْأَرْضِ : یعنی لکه یو فکر کونکے غمجن انسان چه په زمکه کښ ډکے وهی او فکرونه کوی۔

اِسْتَعِیْذُوْا بِاللّٰهِ : دا رسول الله ﷺ خلقو ته په مقبره کښ تقریر کړیدے، دا تقریر به تر مړی خخولو پورے وی بیا به د مړی په قبر باندے په شریکه لاسونو پورته کولو سره دعاء کوی۔ امام بخاریؒ باب تړی باب موعظة المحدث عند القبر وقعود اصحابه حوله باب رقم (٨١) ١/٤٥٨)۔ خو هلته د قبر او د ایمان او توحید او نیك اعمالو برابرولو خبره پکار ده او د دنیا بے رغبتی او د آخرت استحضار بیانول پکار دی۔

وَحَنُوْطٌ : هغه خوشبوئی ته وئیلے شی چه په کفن د مړو کښ یو ځائے کولے شی۔

مَلَكُ الْمَوْتِ : ددۀ نوم په قرآن او حدیث کښ ملك الموت ذکر دے او احادیثو کښ چرته ددۀ دپاره عزرائیل نوم نۀ دے ذکر لکه دا خبره ابن عثیمینؒ هم په خپل تفسیر کښ ذکر کړیده (تفسیر العثیمین ٤/٢٣٣) او حافظ ابن کثیرؒ لیکی : په بعض آثارو کښ دی چه ددۀ نوم عزرائیل دے او دا مشهوره ده۔ دا خبره قتادةؒ او نورو علماؤ وئیلے ده۔ (ابن کثیر ٦/٢٦٠) لیکن دا حواله هم ضعیفه ده۔ نو قرآنی نوم استعمالول افضل دی۔ او ملك الموت له الله تعالیٰ دا قدرت ورکړیدے چه په یو وخت کښ د ټولے دنیا مړ کیدونکو انسانانو ته رسیدلے شی۔ او دا د الله تعالیٰ د قدرت نه هیڅ بعیده نۀ ده۔ ځکه ملائك انوارات دی، څه درون جسم ندے چه نقل

حرکت به ورته گران وی.

امام مقاتلؒ په خپل تفسیر کښې او امام کلبیؒ دواړو وئیلی دی چه مونږ ته دا خبره رارسیدلې ده چه د ملك الموت څلور وزرې دی چه یو په مشرق کښې او بل په مغرب کښې او بل په آخرسر د عالم کښې دے چه د کوم ځائے نه دَبُور هوا رالوزی او بل وزر په آخرسر د عالَم کښې دے د کوم ځائے نه چه باد صبا رالوزی او یوه خپه ئې په مشرق کښې او بله ئې په مغرب کښې ده او ټول مخلوق د هغه د دواړو خپو په مینځ کښې دے. (تفسیر مقاتل، والبحر المدید).

**كَمَا تَسِيْلُ الْقَطْرَةُ** : یعنی لکه څنګه چه څاڅکې په آسانئ سره بهیږی نو دغه شان ددهٔ روح هم په بدن کښې نرم شی او په آرام سره د بدن نه اُوځی. ځکه دغه زیری ورکولو پرے اثر کړے وی او تبدیلی ئې پکښې پیدا کړی وی. په خلاف د روح د کافر نه چه هغه ته کله بد زیرے ورکړے شی نو د هغه روح په بدن کښې ورك شی او په راوتو کښې ډیر سخت شی.

دلته دا **اشکال** پیدا کیږی چه مخکښې حدیثونو نه معلومه شوه چه په مؤمن باندے په وخت د روح وتلو کښې ډیر تکلیف وی او دلته وائی چه ډیر په آسانئ سره اُوځی.

ددے **جواب** دا کیدے شی چه د مؤمن روح د بدن نه د وتلو نه مخکښې په سختئ کښې وی او د بدن نه د وتلو په وخت ډیر په آسانئ او نرمئ سره اُوځی. په خلاف د کافر روح نه چه د هغه روح د بدن نه د وتلو په وخت کښې هم ډیر په سختئ او تکلیف کښې اخته وی.

**يَعْنِيْ بِهَا** : دا کلام د صحابی یا د بل راوی دے چه د (يَمُرُّوْنَ) نه مراد ملائکو باندے ورتیرول دی. یعنی دا روح دغه اخستونکی ملائك په نورو ملائکو باندے ورتیروی نو هغوی ددهٔ په باره کښې ډیره ښائسته ګواهی کوی.

**بِأَحْسَنِ أَسْمَائِهِ** : یعنی ددهٔ ښائسته صفتونه ذکر کړی چه دا هغه ذاکر، متقی، پاکدامن، حیاء ناك، سخی، مجاهد خوش اخلاق احسان کونکے دے.

**فَيُشَيِّعُهُ** : تشییع دیته وائی چه د میلمه سره انسان د هغه د رخصتولو دپاره بهر ته اُوځی. دلته مراد دا دے :(يَسْتَقْبِلُهُ وَيَصْحَبُهُ بَعْدَ دُخُوْلِهِ فِي السَّمَاءِ). (ددهٔ استقبال کوی او د آسمان ته ورداخلیدو نه روستو ددهٔ سره ملګری کیږی).

دے حدیث نه معلومه شوه چه د مؤمن روح اُوم آسمان پورے رسولے شی او د یو بل روایت نه معلومیږی چه د مؤمن روح عرش پورے رسولے شی لهذا کیدے شی چه بعض روحونه اُوم آسمان پورے رسولے شی او بعض روحونه عرش پورے رسولے شی.

**فِيْ عِلِّيِّيْنَ** : دا د یو ځائے نوم دے چه په اُوم آسمان کښې واقع دے او په هغے کښې د نیکانو خلقو

عملنامے پرتے وی۔

او په (اُكْتُبُوْا كِتَابَ عَبْدِيْ) كښې د كتاب نه مراد صحيفهٔ اعمال (عملنامه) ده۔ ظاهر دا ده چه مراد پدے سره دا دے چه د هغه نوم په اهل عليين كښې ليكى نو د هغه روح هلته وى، نوم ئے هلته وى او عملنامه ئے هلته وى۔

جنت ته چه انسان داخليږى نو د هغه نوم څلور ځله ليكلے كيږى ځكه چه جنت خو يو سرائے نهٔ دے چه خلق به ئے تپوسه ورداخليږى لكه څنګه چه په دنيا كښې صدر مملكت او ګورنر او فوجى جرنيل ته ورتلل كيږى نو په ډيرو دفاترو كښې د هغه نوم ليكلے شى۔نو اول په عالم الارواح كښې لكه دا په باب اثبات عذاب القبر كښې تير شويدى۔ دويم : د مور په خيټه كښې ليكلے كيږى لكه دے باره كښې حديث په باب اثبات عذاب القبر كښې تير شويدے۔ دريم : كله چه ترے روح واخستے شى دا په صحيح حديثونو كښې ثابت دى او څلورم مقام په وخت د صراط كښې چه كله بنده په هغے تيريږى نو دا يو خط به وركولے شى چه دا جواز دے د رب العالمين د طرفه د فلانى ځوى د فلانى دپاره چه هغه دے جنت ته داخل شى۔ ليكن دے باره كښې روايت ضعيف دے۔اخرجه ابن عدى فى الكامل (٣٣٨/١) والطبرانى فى الكبير) (حديث منكر: جمع الجوامع للسيوطى)۔

وَأَعِيْدُوْهُ إِلَى الْأَرْضِ : يعنى اُوس ئے زمكے ته يعنى هغه جسد ته راواپس كړئ كوم چه په زمكه كښې خښ شويدے۔

فَيُعَادُ رُوْحُهُ: ظاهر ددے حديث دا دے چه روح ټول اجزاؤ د بدن ته حاضريږى او پدے خبره دليل نشته چه بعض يا نيمائى حصے ته روح راواپس كيږى۔ ليكن ددے عود الروح سره حيات دنيوى لازم ندے دا بل قسم حيات دے چه انسانان پرے نهٔ پوهيږى۔

مَلَكَانِ : دا دواړه ملائك منكر او نكير دى۔ بعض علماء وائى : مؤمن ته په صورت د مبشر او بشير كښې راځى۔ ليكن پدے خبره دليل نشته۔

پدے حديث كښې د منكر نكير دريم سوال داسے نقل شويدے چه دغه (رسول الله ﷺ) چه تاسو كښې راليږلے شويدے دا څوك دے ؟۔ كيدے شى چه د بعض خلقو نه دغه شان سوال كيږى او د بعضو نه داسے تپوس كيږى چه ستا نبى څوك وو لكه دا په بل روايت كښې نقل شويدى۔ او ددے تفصيل په باب اثبات عذاب القبر كښې ذكر شويدے۔

اَنْ صَدَقَ : دا اَنْ تفسيرى دے۔ بعض وائى مصدريه دے۔

فَوَجْهُكَ الْوَجْهُ : يعنى ستا مخ كامل مخ دے۔ چه هر قسم خير ترے راوځى۔ انسان ورته په

کتلو خوشحالیږی۔

وَمَا لِیْ : ما موصوله ده یعنی هغه حورے او خادمان چه زما دپاره په جنت کښ تیار دی۔ یا مالی لفظ دے یعنی خپل مال ته واپس شم۔

السَّفُّوْدُ : لکه د تنور په وزن باندے سیخ ته وئیلے شی۔

بِاَقْبَحِ اَسْمَائِهٖ : یعنی داسے واثی چه دا مشرك دے، د حق دشمن دے، بدعتی دے، د حدیثو منکر دے، زانی، سارق او دروغجن، بے نمازه حرام خور دے۔

مَکَانٍ سَحِیْقٍ : یعنی وراندے مکان چه هغے ته هیڅوك په هیڅ حال کښ نشی رسیدلے۔

قِبَلِهِمْ : یعنی ددوی د طرف نه۔ دا هغه حدیث دے چه بعض جهال ترے منکر دی او څوك چه ئے منی نو هغه کافر کوی لکه ډاکټر عثمانی۔ فانا لله وانا الیه راجعون۔

**درجة الحديث** : اسناده صحیح : احمد (٥/٢٨٧، ٢٨٨) ورواه ابوداود (٤٧٥٣)۔

---

١٦٣٠ (١٦) وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ: لَمَّا حَضَرَتْ كَعْبًا الْوَفَاةُ أَتَتْهُ أُمُّ بِشْرٍ بِنْتُ الْبَرَاءِ بْنِ مَعْرُوْرٍ فَقَالَتْ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ! إِنْ لَقِيْتَ فُلَانًا فَاقْرَأْ عَلَيْهِ مِنِّي السَّلَامَ. فَقَالَ: غَفَرَ اللهُ لَكِ يَا أُمَّ بِشْرٍ نَحْنُ أَشْغَلُ مِنْ ذٰلِكَ فَقَالَتْ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَمَا سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «إِنَّ أَرْوَاحَ الْمُؤْمِنِيْنَ فِيْ طَيْرٍ خُضْرٍ تَعْلُقُ بِشَجَرِ الْجَنَّةِ ؟». قَالَ: بَلٰى. قَالَتْ فَهُوَ ذَاكَ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه وَالْبَيْهَقِيُّ فِيْ كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُوْرِ.

ترجمه : او عبد الرحمن بن کعب د خپل پلار (کعب) نه نقل کوی هغه فرمائی چه کله کعبؓ ته د مرگ وخت رانزدے شو نو هغه ته ام بشرؓ د براء بن معرور لور راغله ورته ئے اُوفرمایل : اے ابو عبد الرحمن ! که ته (د مرگ نه روستو) د فلانی سره (په عالم برزخ کښ) ملاو شے نو په هغه باندے زما د طرف نه سلام وایه۔ کعبؓ اُوفرمایل : اے ام بشر ! الله دے تا ته بخنه اُوکری۔ هلته به زمونږ مشغولیت ددے نه زیات وی (چه د خلقو سلامونه چا ته اُورسوو)۔ ام بشر په جواب کښ اُووئیل : اے ابو عبد الرحمن ! آیا تا د رسول الله ﷺ نه دا نهٔ دی آوریدلی چه فرمایل ئے : بیشکه د مؤمنانو روحونه د شنو مارغانو په قالب کښ وی چه د جنت د ونو نه خوراکونه کوی۔ هغه اُووئیل : آؤ (ما دا ارشاد آوریدلے دے) ام بشرؓ اُوفرمایل : همدا هغه (فضل او کرامت) دے (چه تا نه ئے امید کیدے شی)۔ (ابن ماجهؒ، بیهقیؒ)۔

**تشریح** : عبد الرحمن بن کعب بن مالك انصاری سلمی، ابو الخطاب المدنی دے د کبار

التـابـعيـن نه ثقه شخصيت دیـ۔ وئيلے شويدى چه دا د نبی ﷺ په زمانه کښې پيدا شوے وو۔ د سـليـمـان بـن عـبـد الـمـلك پـه دور خـلافت کښې وفات دےـ او هر چه کعب بن مالك دے نو هغه انصاري سلمى مشهور صحابى شاعر دے او واقعات ئے مشهور دی۔

عَنْ اَبِيْهِ : ظاهر دا معلوميږى چه دا لفظ پدے روايت کښې زيات دے او دا حديث د عبد الرحمن بن کعب خپله وينا ده او د پلار نه ئے نۀ دے اوريدلے۔ او دے قصے ته خپله حاضر شويدے۔ لکه د الفاظو سره دا خبره زياته موافقه ده۔ ليکن دا احتمال لرى چه عبد الرحمن پدے موقعه حاضر نۀ وى بيائے د پلار نه د وفات نه مخکښې آوريدلے وى او بيا وفات شوے وى۔

اُمُّ بِشْرٍ : بعض وائى ددے نوم خليده دے او انصاريه صحابيه ده د رسول الله ﷺ نه ئے روايتونه نقل کريدى۔

د پلار نوم ئے براء بن معرور دے

**تعارف د براء بن معرور ﷺ :** انصاری سلمی خزرجی صحابی دے، ابو بشر ئے کنيه ده۔ په عقبه کښې اولنى بيعت ته حاضر شويدے، او اول بيعت هم دۀ کړيدے او دا اولنے هغه شخص دے چه قبلے ته ئے په ژوند او مرګ کښې مخ اړولے دے او اولنے هغه شخص دے چه په دريمه حصه د مال ئے وصيت کړيدے او دا د هغه نقيبانو نه يو تن وو کوم چه رسول الله ﷺ په مدينه کښې مقرر کړی وو۔ د رسول الله ﷺ مدينے ته د راتلو نه يوه مياشت مخکښې په صفر مياشت کښې وفات شو، کله چه رسول الله ﷺ مدينے ته راغلو نو دده قبر خواته د ملګرو سره راغلو او په هغه باندے ئے تکبيرونو سره مونځ اُوکړو او براء خپل کور والو ته وصيت کړے وو چه ما کعبے ته متوجه کړئ نو دده قبر کعبے طرف ته متوجه کړے شو۔

هرکله چه کعب بن مالك ﷺ د آخرت د اُوږد سفر په تيارئ کښې وو او اجل ئے نزدے شوے وو نو ام بشرؓ ورته دا درخواست اُوکړو چه ته کله د دنيا نه رخصت شے او برزخ ته لاړ شے نو که فلانی شخص سره ملاؤ شوے نو زما د طرف نه ورته سلام وايه۔ په روايت د طبرانی کبير کښې راغلی دی چه خپل پلار (براء بن معرور) ئے ورته ذکر کړو چه زما پلار ته زما د طرف نه سلام اُورسوه۔ او دا هيثمی په مجمع الزوائد (٣٢٩/٢) کښې ذکر کړيدی۔

بعض وائی : خپل خوی مبشر مراد دے۔ بعض وائی : بشر مراد دے۔ او بشر هغه صحابی دے چه د رسول الله ﷺ سره ئے شريك د زهرجن چيلی غوښه خوړلے وه او بيا پرے شهيد شوے وو۔

ابن ابی للدنيا په کتاب القبور کښې د ابو لبيبة اشهلی نه روايت راوړے چه کله بشر بن براء بن معرور وفات شو نو مور ئے انتهائی غمجنه وه۔ يوه ورځ د رسول الله ﷺ خواته راغله وے

فرمایل : اے د الله رسوله ! په بني سلمه کښې همیشه مړي کیږي نو آیا دا مړي خپل مینځ کښې (په برزخ کښې) تعارف کوي؟ نو زما د طرف نه بشر ته سلام وایه ! رسول الله ﷺ اُوفرمایل : آؤ، قسم په الله چه زما نفس د هغه په لاس کښې دے دوي خامخا یو بل سره تعارف کوي لکه څنګه چه مارغان د ونو په سرونو کښې د یو بل سره تعارف کوي۔ نو بیا به په بني سلمه کښې څوك نه مړ کیدو مګر ام بشر به ورته راتله او هغه ته به ئے وئیل : اے فلانیه ! په تا دے سلام وي۔ نو هغه به وَعَلَيْكِ اُووئیل: بیا به ئے ورته اُووئیل: زما د طرف نه په بشر باندے سلام وایه۔

نَحْنُ اَشْغَلُ : د کعب مطلب دا وو چه دا ته څه وائے ؟ هلته خو به زمونږ مشغولیت ددے نه ډیر زیات وي چه هلته مونږ څوك اُوپیژنو او بیا هغه ته سلام او پیغام اُورسوو، او هلته به مونږ په خپل حال کښې ګرفتار یو، د خپل ځان نه به هم خبر نۀ یو پاتے لا دا چه د بل خبر واخلو۔ لیکن ام بشرؓ د رسول الله ﷺ د حدیث په رڼړا کښې د هغه ددے عذر دا جواب ورکړو چه تۀ به د هغه خلقو نه نۀ ئے چه په وحشت کښې ګرفتار وي بلکه تۀ به د هغه مؤمنانو نه ئے چه دهغوی په باره کښې رسول الله ﷺ دا خوشخبري ورکړیده چه د مؤمنانو روحونو نه شنه مارغان جوړیږي چه د جنت په ونو کښې څریږي او د یو بل سره ئے ملاقات ضرور کیږي۔ نو هغه ورسره دا خبره اُومنله چه هرکله خبره داسے ده نو بس صحیح ده بیا به ستا سلام هم اُورسوو۔

لیکن په صحیح روایت کښې داسے راغلي دي چه کعب پرے په جواب کښې غالبه شو څکه چه هغه ورته اُوفرمایل: اے ام مبشر ! آیا رسول الله ﷺ دغسے فرمایلي دي؟ نو هغے اُووئیل : زۀ نۀ پوهیږم زۀ ضعیفه شوے یم۔ نو د الله نه بخنه غواړم۔ کعب اُووئیل : رسول الله ﷺ خو داسے فرمایلي دي : د مؤمن روح د مارغۀ په قالب کښې وي چه د جنت د میوو نه خوراکونه کوي تردے چه الله تعالیٰ به ئے د قیامت په ورځ خپلو بدنونو ته واپس کړي۔ (مسند الحمیدی ٢/٣٨٥ ح ٨٧٣)۔ (یعنی پدے کښې خو دا نشته چه روحونه به یو بل سره ملاویږي)۔

لیکن صحیح دا ده چه د ارواحو د قیامت نه مخکښې تعارف شته په ډیرو احادیثو کښې ثابت دے لکه لږ مخکښې تیر شو۔ دارنګه بلال د مرګ په وخت کښې وئیلي وو : نَحْنُ نَلْقَى غَدًا الْأَحِبَّةَ مُحَمَّدًا وَصَحْبَهُ۔ (بخاري)۔ عائشےؓ ته ابن عباس رضی الله عنهما وئیلي وو : تَقْدَمِيْنَ عَلَى فَرَطِ صِدْقٍ عَلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ وَعَلَى اَبِيْ بَكْرٍ۔ (بخاری : ٦٦٨٨)

**درجة الحديث** : اسناده ضعیف : ابن ماجه (١٤٤٩) فیه عنعنة محمد بن اسحاق وهو مدلس وقد روى احمد (٣/٤٥٥) هذه القصة على عكس هذه الرواية قال : قَالَتْ أُمُّ مُبَشِّرٍ لِكَعْبِ بْنِ مَالِكٍ وَهُوَ شَاكٍ : إِقْرَأْ عَلَى ابْنِيَ السَّلَامَ - تَعْنِيْ مُبَشِّرًا فَقَالَ يَغْفِرُ اللّٰهُ لَكِ يَا أُمَّ مُبَشِّرٍ اَوَلَمْ تَسْمَعِيْ مَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :

إِنَّمَا نَسَمَةُ الْمُسْلِمِ طَيْرٌ تَعَلَّقُ فِيْ شَجَرِ الْجَنَّةِ حَتّٰى يُرْجِعَهَا اللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ إِلٰى جَسَدِهٖ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، قَالَتْ : صَدَقْتَ، فَاسْتَغْفِرُ اللّٰهَ، وَإِسْنَادُهُ صَحِيْحٌ رَاجِع السلسلة الصحيحة (٩٥٥) قَالَ وَالْوَهْمُ مِنِ ابْنِ إِسْحَاقَ فَإِنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ تَلَقَّاهُ مِنْ بَعْضِ الضُّعَفَاءِ ثُمَّ أَسْقَطَهُ آه۔

---

١٦٣١ (١٧) - وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ كَعْبٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ: إِنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ : «إِنَّ نَسَمَةَ الْمُؤْمِنِ طَيْرٌ تَعَلَّقُ فِيْ شَجَرِ الْجَنَّةِ حَتّٰى يُرْجِعَهُ اللّٰهُ فِيْ جَسَدِهٖ يَوْمَ يَبْعَثُهُ». رَوَاهُ مَالِكٌ وَالنَّسَائِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِيْ كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُوْرِ.

ترجمه : او عبد الرحمن بن کعب د خپل پلار نه روایت کوی چه کعبؓ به دا حدیث بیانولو چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «یقیناً د مؤمن روح د مارغهٔ په قالب کښې وی چه د جنت په ونو کښې ځړیږی تردے چه الله به ئې خپل بدن ته راواپس کړی په هغه ورځ چه الله به ئې راپورته کوی»۔(مالك، نسائی بیهقیؒ په کتاب البعث والنشور کښې)۔

**تشریح** : دلته دا اشکال کیدے شی چه کله د انسان روح ته د حیوان بدن ملاؤ شو نو د انسان مرتبه خکته شوه ځکه چه پدے صورت کښې هغه انسان نه حیوان جوړ شو او قلبِ حقیقت لازم شو ؟ ددے جواب دا دے چه د مؤمن د روح د مارغهٔ د جسم سره داسے تعلق نهٔ دے لکه څنګه چه د خپل حقیقی جسم سره د روح تعلق وی او په هغه بناء هغه تصرف کوی بلکه دا یو داسے تعلق دے لکه چه یو قیمتی شے مثلاً لال او جواهرات د هغے د حفاظت او احتیاط د خاطره په صندوق کښې کیخودے شی۔ نو د مؤمن روح د مارغهٔ په قالب کښې کیدونه د هغه په مرتبه کښې کمی نهٔ راځی او نهٔ قلب حقیقت لازمیږی بلکه پدے طریقه د هغه تعظیم او تکریم کیږی.

دا حدیث دلیل دے چه روح همیشه په بدن کښې نهٔ وی بلکه د بدن سره ئې تعلق وی۔

**نَسَمَةٌ** : روح ته وئیلے شی۔

**تَعَلَّقُ** : یعنی ځړیږی۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : مالك (١/٢٤٠/٤٩) وابن ماجه (٤٢٧١) والنسائي (١/٢٩٢)۔

١٦٣٢ (١٨) - وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ قَالَ: دَخَلْتُ عَلٰى جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ وَهُوَ يَمُوْتُ فَقُلْتُ: اِقْرَأْ عَلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ السَّلَامَ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

ترجمه : او محمد بن منکدرؒ فرمائی : زهٔ د جابر بن عبد الله خوا ته ورغلم چه هغه د مرګ په حالت کښې وو۔ ما عرض اُوکړو : (د مرګ نه پس) په رسول الله ﷺ باندے زما سلام وایه۔ (ابن

ماجة)۔

**تشريح :** محمد بن المنكدر د اوسط درجې تابعينو نه دے، ثقه فاضل دے، علم زهد او عبادت ئې جمع كړيدي په سنه (١٣٠ هـ) كښې يا ددے نه روستو وفات شويدے۔

دا اثر او ددے په شان ام البنين بنت ابى قتادة عبد الله بن انيسؓ ته وئيلى وو چه زما پلار ابو قتادةؓ ته سلام اُورسوه۔ دا دليل دے چه مړو ته سلام ليږل جائز دى۔ ليكن دے باره كښې هيڅ صحيح يا ضعيف مرفوع صريح حديث مونږ نۀ دے موندلے او دغه شان خبره علامه مباركفوريؒ هم كړيده۔ (المرعاة ٥/٣٣٧) ۔ ليكن دا موقوف بمنزلة المرفوع دے ځكه جابر دا خبره نۀ ده رد كړے او مخكښې د ام بشر روايت ئې مؤيد دے۔ بل ملائك رسول الله ﷺ ته سلام رسوى نو دغه مړے ئې هم رسولے شي چه ملاؤ شى، عقلاً او شرعاً څه استحاله پكښې نشته۔

**درجة الحديث :** اسناده صحيح : احمد (٤/٣٩١) عن محمد بن مقاتل المروزى عن يوسف بن يعقوب بن الماجشون به واخرجه (٣/٦٩) عن ابى ابراهيم اسماعيل بن محمد عن الماجشون به وقال البوصيرى : هذا اسناد صحيح ورجاله ثقات الا انه موقوف) (شعيب الارنووط وزبير عليزئ) وضعف الالبانى رواية ابن ماجه فقط لان فيه احمد بن الازهر) ۔

OOOOOOO

# باب غسل الميت وتكفينه

## مړي ته د غسل او كفن وركولو بيان

**۱ - اوله مسئله : د غسل الميت حكم :**

مړي ته غسل وركولو كښې اختلاف دے (۱) د اكثرو اهل علمو په نيز غسل د مړي فرض كفائي دے۔ امام نوويؒ پرے د اجماع دعوه كړيده ليكن حافظ ابن حجرؒ په هغه باندے په فتح الباري كښې رد كړے او دغه شان علامه ابن رشدؒ په بداية المجتهد كښې وئيلي دي چه د مالكيه ؤ په نيز باندے سنت دے او علامه قرطبيؒ مالكي په شرح د مسلم كښې دا خبره راجح كړيده چه غسل د مړي سنت دے ليكن جمهور د وجوب قائل دي۔

**دلائل د وجوب** ډير دي بعض دا دي چه په احاديثو كښې امرونه راغلي دي لكه يو سړے په حالت د احرام كښې وفات شوے وو۔ نو نبي ﷺ اُوفرمايل : (اِغْسِلُوْهُ)۔ (دهٔ ته غسل وركړئ) دغه شان دد‌ے باب په اولني حديث كښې دي : (اِغْسِلْنَهَا) (دے ته غسل وركړئ)۔

او دارنګه هميشه عمل د رسول الله ﷺ او صحابه كرامو دليل دے په وجوب د غسل د مړي باندے۔ هيڅ مړے رسول الله ﷺ سوئي د شهيد نه بغير د غسل وركولو نه نهٔ دے دفن كړے۔

بلكه حاكم په مستدرك (۲/۵۹۵ رقم : ۴۰۰۴) كښې روايت نقل كړے بسند صحيح صححه الالباني في الجامع الصغير رقم ۵۲۰۷) (هركله چه آدم عليه السلام وفات شو نو ملائكو په اُوبو سره تاك اُولمبولو او هغه دپاره ئے لحد اُوويستلو او دا ئے اُووئيل: (هٰذِهٖ سُنَّةُ آدَمَ فِيْ وَلَدِهٖ) ۔ (دا د آدم عليه السلام سنت شو د هغه په اولادو كښې) (صححه الحاكم ووافقه الذهبي)۔

امام ابن حزمؒ فرمائي : (غُسْلُ الْمُسْلِمِ الذَّكَرِ وَالْأُنْثٰى وَتَكْفِيْنُهُمَا فَرْضٌ الخ) (المحلى (۳/۳۳) ۔ (مسلمان سړي او ښځې ته غسل او كفن وركول فرض دي)۔

**۲ - دويمه مسئله:** بيا اختلاف دے چه آيا غسل د مړي تعبدي حكم دے او كه د نظافت (پاكئ) دپاره دے۔ (۱) نو د جمهورو په نيز دا مشهوره ده چه دا حكم تعبدي دے۔ كه يو سړي د مرګ نه مخكښې به غسل هم كړے وي خو د مرګ نه روستو به ورته ضرور غسل وركولے شي۔ نو پدے كښې به هم هغه شرطونه وي كوم چه په واجب او مستحب غسلونو كښې وي۔

(٢) بعض مالكيه وائي چه دا د نظافت دپاره دے۔ پدے وجه ورته واجب هم نهٔ وائي بلكه سنت ئې گنړي۔ (٣) بعض علماؤ دا خبره هم فرمائيلے ده چه د مړي د غسل سبب حدث (بے اودسی) ده ځكه چه مړي بانديے په حالت د وتلو د روح كښې ضروري بے اودسي راځي ځكه چه اندامونه ئې سست شي او عقل ئې زائل شي لكه څنګه چه ژوندي بانديے دا حالات راشي نو د هغه دپاره غسل پكار دے ليكن په ژوندي شخص كښې دا كار بار بار مكرر كيږي نو د حرج د وجه نه د غسل په ځائے پريے اودس لازميږي او هركله چه په مړي كښې څه حرج نهٔ لازميدو نو هغه دپاره غسل لازم شو او دا غسل د تطهير او پاكوالي دپاره نهٔ دے چه ګني په مړي پوريے څه نجاست انختے وي يا په هغه كښې دم مسفوح (بهيدونكے وينه حصاره شويده لكه چه احنافو وئيلي دي) او د هغې د زائل كولو دپاره ورته غسل وركولے شي، داسے نهٔ ده۔

او راجح دا ده چه مړي ته غسل وركول تعبدي حكم دے۔ او مړے په مرګ سره نهٔ پليتيږي لكه دا خبره عبد الله بن عباس رضي الله عنهما كړيده چه مسلمان په حالت د ژوند او مرګ كښې نهٔ پليتيږي۔ او مرفوع حديث دے : إِنَّ الْمُسْلِمَ لَا يَنْجُسُ۔

٣- دريمه مسئله : كفن دريے قسمه دے (١) كفن ضرورت۔ (٢) كفن سنت۔ (٣) كفن كفائي۔ كفن ضرورت دا دے چه د ضرورت پورته كولو دپاره څومره كپړه ملاؤ شوه نو هغه كفن دے ځكه چه نوره كپړه نشته چه كفن تريے جوړ كړو۔

او كفن سنت دريے جامے دي د سړو دپاره۔ او په قميص جوړولو كښې اختلاف راځي۔ ان شاء الله تعالىٰ۔

٣- او كفن كفائي دوه جامے دي لنګ او څادر۔ يعني پدے سره د كفن حق اداء كيږي۔ او ددے تفصيل روستو راروان دے۔

## الفصل الأول

١٦٣٣ (١) – عَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ : دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَنَحْنُ نُغَسِّلُ ابْنَتَهُ فَقَالَ : اِغْسِلْنَهَا ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ إِنْ رَأَيْتُنَّ ذٰلِكَ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ وَاجْعَلْنَ فِي الْآخِرَةِ كَافُوْرًا أَوْ شَيْئًا مِنْ كَافُوْرٍ فَإِذَا فَرَغْتُنَّ فَآذِنَّنِيْ فَلَمَّا فَرَغْنَا آذَنَّاهُ فَأَلْقٰى إِلَيْنَا حَقْوَهُ وَقَالَ : « أَشْعِرْنَهَا إِيَّاهُ »۔ وَفِيْ رِوَايَةٍ : « اِغْسِلْنَهَا وِتْرًا : ثَلَاثًا أَوْ خَمْسًا أَوْ سَبْعًا وَابْدَأْنَ بِمَيَامِنِهَا وَمَوَاضِعِ الْوُضُوْءِ مِنْهَا »۔ وَقَالَتْ فَضَفَرْنَا شَعْرَهَا ثَلَاثَةَ قُرُوْنٍ فَأَلْقَيْنَاهَا خَلْفَهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : ام عطيه رضي الله عنها فرمائي : مونږ ته رسول الله ﷺ راغلو پداسے حال كښې چه

مونږ د هغه لور (زينبؓ) ته غسل ورکولو۔ وې فرمايل :(( دې ته درې کرته يا پنځه کرته يا ددې نه زيات که تاسو مناسب ګنړئ (يعنى ضرورت وى) په اُوبو او بيرو سره غسل ورکړئ (يعنى د بيرى پانړې په اُوبو کښې جوش کړئ چه پدې سره ښه صفائى راشى) او په آخرى کرت کافور يا ئې اُوفرمايل د کافور څه حصه (په اُوبو کښې) ملاؤ کړئ او کله چه تاسو (د غسل ورکولو نه) فارغ شئ نو ما ته خبر راکړئ ))۔ نو کله چه مونږ فارغه شو، نو رسول الله ﷺ ته مو خبر ورکړو نو هغه مونږ ته خپل لنګ راګوزار کړو او وې فرمايل : (( دا لنګ ددې د بدن سره اُولګوئ )) (يعنى دا ورله د بدن نه تاؤ کړئ) او د يو بل روايت الفاظ دا دى : (( دې تـه تاك غسل ورکړئ يعنى درې کرته يا پنځه کرته يا اُووه کرته۔ او ددې د ښى طرفونو او د اوداسه د اندامونو نه شروع اُوکړئ ))۔ام عطيهؓ فرمائى : چه مونږ د هغې د ويښتو نه درې کمڅئ جوړې کړې او هغه مو د هغې شا طرف ته واچولې۔ (بخارىؒ ومسلمؒ)۔

## تعارف د ام عطيه رضى الله عنها :

ام عطيه ددې نوم نُسيبه بنت کعب الانصاريه دې او دې به زنانه مرى لمبول، د زنانو مشره وه، د رسول الله ﷺ لور لره ئې هم غسل ورکړيدې، رسول الله ﷺ به ورته طريقه خودله نو دې بيا هغه طريقه ښه ياده کړيده او امت ته ئې پيش کړيده او عام امامانو ددې په حديث باندې اعتماد کړيدې۔ ددې شاګرد محمد بن سيرين او حفصه بنت سيرين ده ليکن حفصې چه څومره ياد کړې نو دومره محمد نۀ دې ياد کړې۔

**تشريح :** اِبۡنَتِهٖ : د بخارى په کوم روايت کښې ددې نوم نۀ دې ذکر شوې البته مشهوره دا ده چه دا زينب وه چه د ابو العاص بن ربيع بى بى او د امامه بنت العاص مور وه۔

او دا زينب د رسول الله ﷺ مشره لور وه او ددې وفات د هجرت د اتم کال په ابتداء کښې شوې وو او په روايت د مسلم کښې ددې نوم راغلې دې چه دا زينبؓ وه۔ مګر د روايت د ابن ماجه نه معلوميږى چه دا ام کلثوم (د عثمان بن عفان بى بى) وه اګرکه روايت د مسلم راجح دې ځکه چه په روايت د بخارى کښې ابن سيرين لا علمى ښکاره کړيده چه ما ته پته نشته چه دا کومه لور د رسول الله ﷺ وه۔ ددې نه معلوميږى چه په روايت د ابن ماجه کښې ام کلثوم نوم ذکر کول د ابن سيرين نه لاندې راويانو نه صادر شويدې۔ ليکن دا امکان شته چه ام عطيه د دواړو غسل ته حاضره شوې وى، ځکه چه دا غاسلة الميتات وه۔

اِغۡسِلۡنَهَا : دا روايت دليل دې چه مړى ته غسل ورکول فرض دى ځکه چه امر راغلې دې۔

ثَلَاثًا اَوۡ خَمۡسًا : دا (اَوۡ) د ترتيب دپاره دې نۀ د تخيير دپاره۔ او مطلب دا دې چه دې له تاك

غسل ورکړئ یعنی اُوه پورے تاك یعنی درے کرته راواچوئ خو که په درے کرتو پاکي رانغله نو بیا پنځه کرته پورے واچوئ او حاصل ئے دا دے چه تاك به ئے اچوئ او درے مستحب دی که په درے کرتو پاکي راغله نو زیادت نهٔ دے پکار او که پاکي په درے کرتو رانغله نو بیا پنځه کرته اُوه اچول مستحب دی او په یو روایت د ابوداود او نسائي کښې (أَوْ سَبْعًا أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ) ۔ (اُوه یا ددے نه هم زیات) راغلی دی۔ نو دا ظاهر دے چه زیادت په اُوو باندے جائز دے کله چه ورته ضرورت وی، بعض احناف په اُوو باندے زیادت ته مکروه وائي لکه مظاهر حق (٩٥/٢) اُوګوره۔ لیکن دا خبره غلطه ده د حدیث خلاف ده ځکه چه په احادیثو کښې تر نهه کرتو پورے راغلي دي په صحیح بخاري (١٢٥٩) وصحیح ابي داود (٦٠٨/٢) کښې په حدیث د ام عطیه کښې دی : (أَوْ سَبْعًا أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ إِنْ رَأَيْتُنَّ) ۔ وانظر فتاوی الدین الخالص (١٠٠/٧)۔ او امام نسائي (٤٠٧/٢) پدے باب لګولی دے۔ بَابُ مَنْ غَسْلَ الْمَيِّتَ أَكْثَرَ مِنْ سَبْعَةٍ۔ بیا ئے دغه حدیث د ام عطيةؓ ذکر کړے۔

مِنْ ذٰلِكَ : کاف باندے به کسره وئیلے شي ځکه چه دا خطاب مؤنث ته دے۔ دغه شان إِنْ رَأَيْتُنَّ ذٰلِكِ کښې خطاب ام عطيةؓ ته دے۔

رَأَيْتُنَّ : دا د رأی نه دے یعنی که تاسو زیادت ته ضرورت ګنړلو۔ او دا اختیار راجع دے تاك ته۔

وَسِدْرٍ : یعنی د بیرو پانړے۔ او دا سنت طریقه ده پدے کښې حکمة دا دے چه دا خیری ښه صفا کوي، که بیرے نهٔ ملاویدے نو بیا هر شے چه صفائي راولي هغه استعمالول پکار دي۔

اهل ظاهر لکه ابن حزمؒ وغیره فرمائي : چه بیرے او کافور استعمالول کله چه ملاویږي فرض دي۔ او که نهٔ وي نو بیا باك نشته۔ او غیر اهل ظاهر وائي چه هر هغه شے استعمالول جائز دي چه پاکي راولي لکه صابون، اشنان وغیره او هر خوشبوئي والا شے۔ اُوګوره

(المغني لابن قدامة ٣٢١/٣) فتح الباري ١٠٠/٣) ونيل الاوطار (٦٤/٤)۔

لیکن ظاهر دا ده چه که کافور او بیرے ملاویدے نو هغه به استعمالوی نهٔ بل شے ځکه په هغے باندے تصریح شویده او که ضرورت وی نو بیا بل شے هم کافي کیږي ځکه مقصود پدے سره صفائي راوستل دي۔

او ددے طریقه دا ده چه اول به اُوبه اُوخوټ کوي په هغے کښې به د بیرو تکولے شوے پانړے واچوي او هغه به په مړي باندے راچوي (که د استعمال په وخت ترے پانړے لرے کوي او که نهٔ) او بیا به دپاسه پورے صابون وغیره اُومږي د ښه صفائي دپاره خو په شرط ددے چه مخکښې به ئے مړي له اودس کړے وي او ددے سره په بیله لوښه وغیره کښې کافور په اُوبو کښې واچوي او د غسل نه چه فارغ شي نو د کافورو اُوبه به په ځایونو د سجدے ورله واچوي۔ او بیا به کفن ورکړي او

كفن كښې به هم خوشبوئي استعمال كړي.

او دا حديث هم دليل دے چه مړي له غسل وركول د نظافت دپاره دي، نۀ د طهارت حاصلولو او نجاست زائله كولو دپاره.

كَافُورًا : كافور يو قسم خوشبوئي ده، ددے په استعمالولو كښې فائده دا ده چه يوخو د مړي نه خوشبوئي څي څكه چه ملائك مړي ته حاضريږي. بل پدے سره اُوچوالے اويخوالے او د مړي د بدن مضبوطوالے راځي او حشرات وغيره ددے خواله نۀ راځي او مړے ورسره زر نۀ خرابيږي.

فَآذِنَّنِي: د جمع مؤنث مخاطب امر صيغه ده. د ايذان نه دے په معنىٰ د خبرداري وركولو.

حَقْوَهُ: په فتحه د حاء او كسره هم جائز ده. حقو په اصل كښې د لنګ د تړلو ځائے ته وئيلے شي بيا استعماليږي د لنګ دپاره، ذكر د محل مراد ترے نه حال دے.

د لنګ وركولو نه مقصود دا وو چه هغې ته بركت ورسوي څكه چه كومه جامه د رسول الله ﷺ د بدن سره لګيدلے وي هغې كښې الله تعالىٰ بركت اچولے وي او د مخكښې نه ئے ورنكړه بلكه كله چه د غسل نه فارغ شو دے دپاره چه د هغه د بدن نه جدا كيدو سره سمدست ددے د بدن سره اُولګي. ليكن دا تبرك به صرف د انبياء عليهم السلام پورے خاص وي، نور اولياء پدے باندے نشي قياس كيدے څكه چه صحابه كرامو كښې دا كار نۀ دے شوے.

أَشْعِرْنَهَا : يعني دا لنګ ورله شعار اُوګرځوئ او شعار هغه جامے ته وئيلے شي چه د بدن د ويښتو سره لګي. يعني دا ترے تاؤ كړئ او د عام كفن نه لاندے ئے واچوئ او ددے نه به د ژوندو په شان لنګ نشي وهلے بلكه د عام بدن نه به ورله تاوولے شي.

دا حديث دليل دے چه د سړي كفن ښځے ته وركول او د ښځے سړي ته وركول جائز دي او ابن بطالؒ پدے باندے د علماؤ اتفاق نقل كړيدے. (شرح ابن بطال لصحيح البخاري ۵/۲۷۷).

وَمَوَاضِعِ الْوُضُوءِ مِنْهَا: دا عطف دے په ميامنها باندے يعني (إبْدَأْنَ بِمَوَاضِعِ الْوُضُوءِ مِنْهَا). يعني اول ورله د اودسه ځايونه اُووينځئ مخكښې د باقي اندامونو نه.

بيا دا حديث دليل دے چه مكمل اودس به مړي له كولے شي نو مضمضه او استنشاق به هم ورله كولے شي او دا قول د امام شافعيؒ دے او جمهور علماء وائي چه پوزے او خولے ته به ورله اُوبه نۀ اچوي. عينيؒ ورله دليل دا وئيلے دے چه د خولے او پوزے نه اُوبه راوځكل ګران دي.

ليكن علامه ابن قدامهؒ په المغني (۳/۳۲۱) كښې وئيلي دي چه داسے اودس به ورله كولے شي لكه څنګه چه مانځه ته كولے شي. اُوبه كه راونۀ ايستلے شي حرج نشته څكه چه مړي څه روژه خو نۀ دي؟.

فَضَفَّرْنَا : ضفر كمڅئ جوړولو ته وئيلے شي.

**ثَلَاثَةَ قُرُوْنٍ** : جمع د قرن ده په معنىٰ د كمڅئ سره۔
په دې روايت كښې ورسره دا راغلى دي چه مونږ دريے كمڅئ كومنز كړې۔ نو دا دليل دے چه ويښته د مړې گمنز كول مستحب دي۔

## د مړے زنانه كمڅئ به كوم طرفته اچولے شي ؟

بيا اختلاف دے (۱) جمهور وائي چه دريے كمڅئ به ورله جوړولے شي او شاته به اړولے شي۔
(۲) د امام ابوحنيفة نه يو روايت دا دے چه په خپل حال به پريخودلے شي او كمڅئ جوړول پكښې نشته۔ بلكه همداسے خواره ويښته به ورله په اُوګو باندے راواچوي۔
(۳) او احناف (عينيؒ) وائي چه دوه كمڅئ به جوړولے شي او په سينه به ورته اچولے شي نو په دوه ځايونو كښې خلاف كوي، دريے كمڅئ نهٔ مني او شاته اړول نهٔ مني، دليل نشته صرف دا وائي چه د كمڅو شاته اړول په زينت كښې داخل دي او مړے خو د زينت كولو نه بهر دے۔ نو ددے **جواب** دا دے چه كه اُومنو چه دا زينت كښې داخل دي نو ددے ممنوع او ناجائز كيدل غير مسلم دي ځكه كه دا ناجائز وے نو ام عطيه رضى الله عنها وغيره صحابياتو د رسول الله ﷺ د لور دپاره ولے كولے او ولے ئے شاته اړولے بلكه په سينه به ئے راچولي وے۔
د احنافو سره په خپل قول باندے هيڅ صحيح حديث نشته او ددے حديث نه داسے جواب كوي چه پدے كښې ام عطيه رضى الله عنها دا كار د خپل ځان نه كړيدے او نبي ﷺ ددے نه خبر نهٔ دے نو دا د صحابياتو عمل دے او دا موقوف حديث دے دليل نشي جوړيدلے۔ او اعلاء السنن (۲۱۷/۸) والا جامد حنفي وائي ام عطيهؓ مجتهده نهٔ وه۔
**جواب** دا دے چه اصل دا ده چه مړي سره به هيڅ كار او قربت نشي كولے مگر په اجازت د شارع نو كه د رسول الله ﷺ اجازت نهٔ وے نو دے صحابياتو د ځان نه ولے عمل كولو ؟۔ نو دا حديث موقوف بمنزلة المرفوع دے۔
(۲) دويم دا چه په صحيح ابن حبان (۳۰۴/۷) كښې صريح حديث موجود دے چه رسول الله ﷺ دوى ته اُوفرمايل : (وَاجْعَلْنَ لَهَا ثَلَاثَةَ قُرُوْنٍ) ۔(او ددے سر نه دريے چونټے جوړے كړئ) او پدے باندے امام ابن حبان ترجمة الباب داسے لګولے دے :(ذِكْرُ الْبَيَانِ بِاَنَّ اُمَّ عَطِيَّةَ اِنَّمَا مَشَطَتْ قُرُوْنَهَا بِاَمْرِ النَّبِيِّ ﷺ لَا مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِهَا) ۔(ددے خبرے بيان چه ام عطيه رضى الله عنها ددے سر په امر د رسول الله ﷺ سره گمنز كړے وو نهٔ د خپل ځان نه)۔ دغه شان بيهقي (۵/۴) وجامع الاحاديث للسيوطي مسند ام سليم۔ والمعجم الكبير للطبراني (۱۲۴/۲۵) رقم (۲۱۴۲۲) (انظر المرعاة

(٣٤٢/٥) ونيل الأوطار (٦٣/٤)۔

**فوائد الحديث** : ښځه مړې ښځې ته او سړې مړې سړي ته غسل ورکولې شي البته خاوند ښځې ته او ښځه خاوند ته غسل ورکولې شي بلکه بهتر عمل دې لکه اُوګوره سنن ابن ماجه رقم الحديث : ١٤٦٤) (١٤٦٥)۔ بلکه ښځه او خاوند يو بل ته غسل ورکولو کښې څلور دلائل دي كما في الدين الخالص (٩٢/٧) فاطمې ته عليؓ او اسماء بنت عميسؓ غسل ورکړې وو۔ اسماء بنت عميسؓ ابوبكر صديق ته غسل ورکړې وو۔ (بيهقي ٣٩٧/٣) والدارقطني (١٨٣٣) وشرح السنه (٣٠٩/٥)

٢- **طريقه د غسل** ورکولو داسې ده : اول به د مړي نه کپړه اُوويستلې شي ليکن د بدن هغه حصه چه په ژوند کښې پټول ضروري وي، هغه به نهٔ ښکاره کوي، بيا به د لاس نه کپړه تاؤ کړي او د هغه استنجاء به اُوکړي او که په بدن باندې کوم ځائې نجاست وي نو هغه به هم پاك کړي، (پدې کښې کانړي او لوټې استعمالول کله چه اُويه موجودې وي لکه چه بعض احنافو ليکلي دي نو دا غلط دي) بيا به ورله اُودس اُوکړي او که په سر او ګيره ئې ويښته وي نو په بيرو يا په بل صفا کونکې څيز سره وينځي۔ کله چه د بيرو پاڼړي نهٔ وي۔

او که مړې ښځه وي نو د هغې د سر چوټئې به کولاوې کړي او بيا به ئې اُووينځي، بيا به درې کرته اُوبه او د بيرې په پاڼړو سره غسل ورکړي او په آخره کښې به ورسره کافور ملاؤ کړي. که د درې کرتو نه زيات غسل ورکولو ضرورت ئې محسوس کړو نو پنځه کرت دې غسل ورکړي يا د پنځو نه هم زيات۔ ليکن طاق مستحب دې او په غسل ورکولو کښې به د ښي طرفونو نه شروع کوي۔

---

١٦٣٤ (٢) – وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ : إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ كُفِّنَ فِيْ ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ يَمَانِيَةٍ بِيْضٍ سَحُوْلِيَّةٍ مِنْ كُرْسُفٍ لَيْسَ فِيْهَا قَمِيْصٌ وَلَا عِمَامَةٌ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او عائشه رضي الله عنها فرمائي : يقيناً رسول الله ﷺ ته په درې کپړو کښې کفن ورکړې شو چه سپينې يمني او د سحول جوړې شوې وې نه وې۔ په هغې کښې نهٔ قميص وو او نهٔ پټکې۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)۔

**تشريح** : كُفِّنَ : صيغه د مجهول ده د تکفين نه۔

يَمَانِيَةٍ : يعني دا کپړې يمن نه راغلې وې۔

بِيْضٍ : پـه كسـره د بـاء سره جمـع د ابيـض ده۔ دا دليـل دے چـه پـه كفن كښې سپينې جامې استـعـمـالـول افـضـل دي ځكه چه د نبي ﷺ دپاره بهتر كفن غوره كول پكار دي۔ او نبي ﷺ فـرمائيـلـي دي چـه سـتـاسـو غوره جامې سپينې دي او پدے كښې خپلو مړو ته كفن وركوئ۔ او دا اجماعي مسئله ده۔

سُحُوْلِيَّةٍ : مـنـسـوب دے سُحُولِ ته او دا په يمن كښې د يو كلي نوم دے، هلته به كپړے تياريدلے هـغـے تـه بـه ئے سُحُولي وئيلے۔ از هريّ وئيلي دي چه په فتحه د سين سره د كلي نوم دے او په ضـمـه د سيـن سـره سـپيـنـو جامو ته وئيلے شي۔ نو دا به تاكيد وي دپاره د بيض لفظ۔ يعني تكے سپينے۔ (۲) بـعـض وائي : پـه فتحه سره دوبي ته منسوب دے۔ ځكه چه هغه هم جامے سحل كـوي يـعـنـي صفا كوي ئے۔ او په ضمه سره كلي ته منسوب دے۔ نو بناء په دے قول چه فتحه د سين شي د سحولية معني به دا وي چه وينځلے شوے جامے وے۔ (المرعاة ٥/٢٤٤) وشرح ابن بطال وفتح الباري)۔

مِنْ كُرْسُفٍ : مالوچو ته وئيلے شي۔

لَيْسَ فِيْهَا قَمِيْصٌ وَّلَا عِمَامَةٌ: يعني دا صرف درے جامے وے او قميص او پټكے پكښې نۀ وو۔ دا حديث دليل دے چه د سړي او د ښځے كفن په درے كپړو سره كافي كيږي۔

## آيا په كفن كښې د درے جامو نه زيادت مستحب دے ؟

**مسئله** : پـدے كښې اختلاف دے چه په درے كپړو باندے زيادت مستحب دے او كه نۀ ؟ او آيا قـمـيـص پـه كـفـن كـښې جائز دے او كه نۀ ؟ (۱) نو د اكثرو علماؤ (ائمه ثلاثه وغيره) رايه دا ده چه د سړي دپاره درے كپړے مسنون دي او قميص او پټكے وهل پكښې نشته۔ او همدا حق قول دے۔ او دا درے واړه كپړے بـه درے لفافے وي يعني درے څادرونه به دومره اُوږده وي چه د مړي نه په ښه شان راتاؤ شي او د سر نه تر قدم پورے ښه پټ شي۔

دليـل ئے دا حديث د عائشہؓ دے چه دا پدے باب كښې ډير صحيح حديث دے او عائشه رضی الله عنها د رسول الله ﷺ د كفن متعلق پوره خبره ياده كړيده چه داسے بل چا نۀ ده ياده كړے۔

(۲) احـنـاف وائي : چه درے كپړے افضل دي ليكن هغوي پكښې داسے تفصيل كوي چه يو به ازار (لـنـګ) وي چه د سر نه تر قدم پورے وي۔ بعض وائي : د بدے نه تر قدم پورے لكه د ژوندي د لـنـګ پـه شـان او دويم به قميص وي چه ګنډلے شوے به نۀ وي او نۀ به بند شوے وي او نۀ به پرے بتـنـے وهـلے شوي وي، نۀ به پكښې ګريوان او ترخزونه وي او نۀ به لستونړي وي (د څټ نه به تر

قدمینو پورے وی بعض وائی : تر نیمائی پونڈو پورے به وی)۔ او دریمه به لفافه وی۔ (تحفة الاحوذی ٤/٦٥) (المرعاة ٥/٣٤٥)۔

**دلیل :** احناف استدلال کوی په قصه د کفن د عبد الله بن ابی بن سلول چه رسول الله ﷺ د هغه خوی ته قمیص ورکړو چه په هغے کښې خپل پلار ته کفن ورکړی۔

لیکن ددے نه جواب دا دے چه دا په افضلیت دلالت نهٔ کوی بلکه ددے نه صرف دا ثابتیږی چه قمیص کښې کفن ورکول هم جائز دی خاصکر چه بله کپړه نهٔ ملاویږی۔ او دا کار نبی ﷺ پدے وجه اُوکړو چه د هغه د خوی عبد الله بن عبد الله بن ابی ابن سلول اکرام ئے کولو۔ یا دا چه عبد الله بن ابی ابن سلول خپل قمیص د رسول الله ﷺ ترهٔ عباسؓ ته ورکړے وو ځکه چه د هغه قمیص پرے ساز وو ځکه دواړه غټ بدنونو والا وو۔ نو رسول الله ﷺ ورته د خپل ترهٔ د طرف نه بدله ورکوله۔

۲- دویم جواب دا دے چه دغه قمیص د رسول الله ﷺ خو کنډلے شوے وو او اطراف ئے بند وو او لستونړے او گریوان ئے لرلو او احناف خو داسے قمیص ته مستحب نهٔ وائی۔ نو ددے نه استدلال صحیح نهٔ شو۔ نو صحیح دا ده چه قمیص کښې هم کفن ورکول جائز دی۔ کنه چه نورے کپړے نهٔ ملاویږی او بغیر د قمیص نه درے کپړے کفن افضل دے۔

احناف ددے حدیث د عائشےؓ نه داسے جواب کوی چه ددے حدیث معنیٰ داسے ده : (مَعْنَاهُ لَمْ يَكُنِ الْقَمِيْصُ وَالْعِمَامَةُ مِنْ جُمْلَةِ الثَّلَاثَةِ) (عمدة القاری)۔ (یعنی قمیص او پټکے د درے وارو نه نهٔ وو بلکه دا دواړه پکښې زیاتی وو نو تول پنځه شو)

(۱) لیکن علامه عراقیؒ فرمائی : دا تاویل د ظاهر خلاف دے۔ (ځکه چه ددے نه خو بیا دا لازمیږی چه رسول الله ﷺ ته په پنځه کپړو کښې کفن ورکړے شویدے او حال دا چه دا خبره د سیرت او د صحیح روایاتو خلاف ده)۔

علامه سندیؒ فرمائی : دا تاویل مردود دے په حدیث د ابوبکر صدیقؓ باندے چه هغه تپوس اُوکړو چه په څو جامو کښې رسول الله ﷺ ته کفن ورکړے شو؟ نو عائشے رضی الله عنها اُوفرمایل : (فِيْ ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ، فَقَالَ أَبُوْبَكْرٍ لِثَوْبٍ عَلَيْهِ كَفِّنُوْنِيْ فِيْهِ مَعَ ثَوْبَيْنِ آخَرَيْنِ) - (په درے جامو کښې نو ابوبکر اُوفرمایل : دا کپړه چه په ما پرته ده پدے کښې سره د دوه نورو کپړو نه ما له کفن راکړئ) او دا صحیح حدیث دے (اخرجه مالك وغيره بسند صحيح)۔ ابوبکر صدیق د عائشےؓ نه ځکه تپوس کولو چه دا په کور کښې وه او تول حالت ئے لیدلے وو او رسول الله ﷺ ته کفن علیؓ او عباسؓ او فضل بن عباسؓ ورکړے وو۔

(۳) دریم دا چه په طبقات د ابن سعدؒ کښې د عائشهؓ په روایت کښې داسې الفاظ راغلی دی :(لَيْسَ فِيْ كَفَنِهٖ قَمِيْصٌ وَّلَا عِمَامَةٌ) (کنز العمال ۳۵۷۲۳ والمرعاة) ۔(د رسول الله ﷺ په کفن کښې قمیص او پټکے نۀ وو) نو معلومه شوه چه په دغه درې جامو کښې هم قمیص او عمامه نۀ وه او ددے نه زیاتی هم نۀ وه۔ نو دا بهتر نشو۔ او بعض احنافو وئیلی دی چه د کفن حالت به سړو ته نه معلوم وی او عائشهؓ خو زنانه ده۔ ددے جواب دا دے چه د مخکنی تپوس د ابوبکر صدیق نه دا معلومه شوه چه عائشهؓ ته خبره ښه یاده ده۔ بله دا چه دا قسم روایات د علی بن ابی طالب او ابن عباس او ابن عمر او عبد الله بن مغفل رضی الله عنهم نه هم ثابت دی چه رسول الله ﷺ ته کفن ورکړے شو بغیر د قمیص او بغیر د پټکی نه۔

ددے وجه نه عائشے رضی الله عنها ته د خلقو دا خبره ذکر شوه چه نبی ﷺ ته کفن په یمنی پټیدار څادرونو کښې ورکړے شوے وو نو هغے اُوفرمایل : دغه څادرونه راوړے شوی وو لیکن صحابه کرامو ورته پکښې کفن ورنکړو (ابن ماجه رقم (۱٤٦۹) (ومسلم فی الجنائز ۹٤۱) ۔ (ددے حدیث نه دا فائده هم معلومیږی چه د سپین کفن نه علاوه هم جائز دے، که جائز نۀ وے نو صحابه کرامو رسول الله ﷺ دپاره ولے راغوختو۔ والله اعلم)

دغه شان مسلم کښې راغلی دی چه عائشهؓ فرمائی : رسول الله ﷺ ته په یوه جوړه (دوه څادرونو) کښې کفن ورکړے شو چه هغه د عبد الله بن ابی بکرؓ وو بیا د هغه نه اُوویستے شو نو عبد الله هغه اُوچت کړل او دا ئے اُووئیل : چه ما له به پدے کښې کفن راکړے شی بیا ئے اُووئیل: چه رسول الله ﷺ ته پکښې کفن ورنکړے شو او ما له به پکښې کفن راکولے شی ؟ (دا نشی کیدے) نو هغه ئے صدقه کړے۔ (مسلم رقم :۲۲۲۳) نصب الراية (۲/۳٦۱) ۔ دا هم دلیل دے چه عائشهؓ خبره پوره یاده کړیده۔ او د رسول الله ﷺ په کفن کښې قمیص بالکل نۀ وو۔

دارنګه ددے (حدیث الباب) روایت د عائشهؓ چه کوم معارض حدیثونه راغلی دی نو هغه ضعیف دی لکه حاکم (۳/۵۷۸) او طبرانی او ابن سعد د عبد الله بن المغفل ؓ نه نقل کړیدی چه هغه فرمایلی وو : کله چه زۀ مړ شم نو زما په غسل کښې کافور واچوئ او ما ته په دوه څادرونو او یو قمیص کښې کفن راکړئ څکه چه نبی ﷺ داسے کار کړیدے) نو دا روایت ضعیف دے سند کښې ئے صدقه بن موسی دے۔ (صدوقة له اوهام) ۔ (صدوق راوی دے چه وهمونه لری) ترمذیؒ وئیلی دی : (ليس بالقوی)۔(ضعیف دے)، ابن معین، ابوداود، نسائی، دولابی او ساجی ورته ضعیف وئیلے دے او نورو امامانو هم ورته ضعیف وئیلے دے۔ ۲- او که ثابت شی نو معنیٰ ئے دا ده چه قمیص د رسول الله ﷺ نه ثابت دے او دا مطلب نۀ دے چه رسول

الله ﷺ سره دانسې کار شويدې۔ لکه د حديث د سياق نه همدغسې معلوميږي۔
دويم هغه حديث چه ابن عدي او بزار د جابر بن سمره ﷺ نه راوړيدې چه نبي ﷺ ته په درې سپينو جامو کښې کفن ورکړې شو، قميص، لنګ او لفافه۔ نو دا هم ضعيف دې په سند کښې ئې ناصح بن عبد الله المحلي منکر الحديث راوي دې لکه دا خبره امام بخاريؒ وغيره کړيده۔
او دريم حديث د ابوداود (٣/٣) احمد او ابن ماجه رقم (١٤٧١) او بيهقي کښې د ابن عباسؓ قول دې : (كُفِّنَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِيْ ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ نَجْرَانِيَّةٍ الْحُلَّةُ ثَوْبَانِ وَقَمِيْصُهُ الَّذِيْ تُوُفِّيَ فِيْهِ)۔ (رسول الله ﷺ ته په درې نجراني جامو کښې کفن ورکړې شو چه يوه حله يعني دوه جامې وې او يو هغه قميص وو کوم کښې چه وفات شوې وو) نو دا روايت هم ضعيف دې په سند کښې ئې يزيد بن ابي زياد دې (وَقَدْ تَغَيَّرَ وهذا من ضعيف حديثه)۔ (او دهغه په آخره زمانه کښې په حافظه کښې تغير پيدا شوې وو او دا حديث ئې د ضعيف رواياتو نه دې) امام نوويؒ وائي : دا ضعيف حديث دې چه دليل نيول پرې صحيح نۀ دي۔
٢- دويم دا چه دا ممکن نۀ ده چه رسول الله ﷺ ته په هغه قميص کښې کفن ورکړې شي کوم کښې چه ورته غسل ورکړې شوې وو لکه دا خبره امام نوويؒ او ابن همامؒ او علامه سنديؒ کړيده۔ علامه ابن همامؒ فرمائي : (وَكَيْفَ يُلْبِسُوْنَهُ الْأَكْفَانَ فَوْقَهُ وَفِيْهِ بَلَلُهَا ؟) (عمدة القارى والمرعاة٥/٣٤٦)۔ (او څنګه به صحابه کرام رسول الله ﷺ ته د هغه قميص دپاسه بل قميص ورواچوي په کوم کښې چه ورته غسل ورکړې شوې دې او حال دا چه په هغې کښې خو لوندوالې وي چه هغه د مړي سره مناسب نۀ وي)۔
څلورم هغه حديث چه امام محمدؒ په کتاب الآثار او طبرانيؒ او ابن سعدؒ د ابراهيم نخعيؒ او حسن بصريؒ نه نقل کړيدې : (كُفِّنَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فِيْ ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ أَحَدُهَا قَمِيْصٌ)۔ (رسول الله ﷺ ته په درې جامو کښې کفن ورکړې شو چه يو پکښې قميص وو) نو دا مرسل روايت دې۔ چه د صحيح حديث هيڅ قسم مقابله نشي کولې۔ هيثميؒ ورته اګرکه حسن وئيلې دې ليکن د صحيح احاديثو په مقابله کښې د هيثميؒ په تصحيح او تحسين هيڅ اعتماد نشته۔ نو دا شاذ او مرسل دې څکه چه ددې صحيح حديث د عائشهؓ خلاف دې۔ بله دا چه د احنافو استدلال ترې څکه صحيح نۀ دې چه دا خو کنډلې شوې وو او احناف کنډلې شوې نۀ وائي۔
**حاصل** دا شو چه په کفن ورکولو کښې قميص د رسول الله ﷺ نه فعلاً ثابت دې کنډلې شوې وي او که نۀ وي کنډلې شوې خو جائز دې او پدې باندې امام بخاري باب تړلې دې۔ او احناف صرف غير کنډلې شوې قميص جائز ګڼړي اګرکه بغير د قميص نه په درې جامو کښې چه درې

واړه لفافې وي كفن ورکول سنت دي او هرچه پټکي وهل دي نو دا په هيڅ صحيح مرفوع حديث كښې نهٔ دے ثابت۔ او د عبد الله بن عمرؓ د عمل نه ثابت دے چه هغه خپل ځوی له پټکي وهلے وو۔ (مصنف ابن ابي شيبة) ليكن دا د هغه اجتهاد دے۔ يا په عذر باندے محمول دے۔ كه دا دين وے، په خير القرون كښې به نورو صحابه كرام او تابعينو كولے لهذا د بدعاتو نه ځان ساتل پكار دي۔
بعض خلق علماؤ ته پټكي وهي بعد الموت دا بدعت دے۔ والله تعالىٰ اعلم۔

## مسئله : آيا د سړی او د زنانه په كفن كښې فرق شته ؟

محققينؒ علماء فرمائي : د ښځې او د سړي په كفن كښې فرق نشته۔ شيخ البانيؒ په احكام الجنائز ص (٦٥) كښې فرمائي : (وَالْمَرْأَةُ فِيْ ذٰلِكَ كَالرَّجُلِ، إِذْ لَا دَلِيْلَ عَلَى التَّفْرِيْقِ) ۔ (او ښځه د كفن په باره كښې د سړي په شان ده، ځكه چه په فرق باندے هيڅ دليل نشته) او هرچه حديث د ليلىٰ بنت قانف ثقفيه دے چه موږ د رسول الله ﷺ لور ته په پنځه كپړو كښې كفن وركړو نو هغه ضعيف دے ځكه نوح بن حكم الثقفي پكښې مجهول دے لكه ابن حجرؒ په تقريب كښې وئيلي دي۔ او په هغې كښې بل علت هم دے چه زيلعيؒ په نصب الراية (٢/٢٦٣) كښې ذكر كړيدے او بل رجل مجهول هم دے۔

دغه شان په الموسوعة الفقهية (٤/٨٨) كښې دي : چه د ښځې او د سړي په جدا جدا كفن باندے هيڅ دليل نشته۔

**ليكن** : د بعض رواياتو نه معلوميږي چه پنځه جامو كښې زنانو ته كفن وركول جائز بلكه افضل دي لكه د حسن بصريؒ په اثر كښې راغلي دي : (تُكَفَّنُ الْمَرْأَةُ فِيْ خَمْسَةِ أَثْوَابٍ) ۔(ښځې ته به كفن په پنځه جامو كښې وركولے شي) (ابن ابي شيبة ٢/٤٦٥ رقم : ١١٠٨٨) (فتح الباري ٣/١٠٣) ۔او امام بخاريؒ ددے جواز ته اشاره كړيده په دغه قول د حسن بصريؒ سره۔

او ترمذي كښې راغلي دي چه دا قول د شافعيؒ، احمدؒ او اسحاقؒ دے۔ او ابن ابي شيبةؒ او امام بخاريؒ نقل كړيدي چه دا قول د ابن سيرين، شعبي، حسن بصري، ابراهيم نخعي دے ۔(رحم الله الجميع) او ابن ابي شيبةؒ د عمر فاروق ﷺ نه هم نقل كړيدے۔ (كنز العمال رقم : ٤٢٨١٦)۔

لهذا دا قول د عامو علماؤ دے۔

نو درے كپړے هم جائز دي او كه زيادت اُوكړي نو هم جائز ده بلكه زنانه سره زياته پرده مناسب ده او دا قول امام ابن حزم په المحلى (٣/٣٣٩) كښې غوره كړيدے چه زنانه دپاره پنځه كپړے مستحب دي۔ ابن المنذرؒ فرمائي : د اكثرو اهل علمو دا رأيه ده چه ښځې دپاره په كفن كښې

پنځه کپړے پکار دی۔ (فقه السنة ۱/ ٤٥٧)۔ بلکه یو صحیح مرفوع حدیث د ام عطیه چه جوزقی نقل کړے او حافظ ابن حجرؒ فتح الباری کښې راوړے چه د رسول الله ﷺ لور ته موني پنځه کپړو کښې کفن ورکړو نو دا نص شو اوګوره فتاوی الدین الخالص(۷)۔

**فائده :** د سړي او د ښځې د کفن ورکولو طریقه دا ده : درے کپړے به د یو بل دپاسه خورے کړی او مړے بـه پـه هغې باندے په کټ کښې ستونی ستاق واچوی بیا به د کپړو طرفونه یو بل باندے راواړوی اول، بیا دویم بیا دریم او مینځ مینځ کښې به ورته خوشبوئی (عطر وغیره) واچوی بیا به پـه یـوه رنجکه سره سر او خپے او مینځ اُوتړل شي دے دپاره چه کولاؤ نشی او کله چه په قبر کښې کیخودے شی نو هغه غوټے به ترے کولاؤ کړے شی۔

او د زنانـه دپاره هـم دغـه طریقه ده لیکن که په پنځه کپړو کښې کفن ورکوی نو اول به ورته په عـورت او مـاحول باندے کپړه واچولے شي بیا به په بدن باندے قمیص وی بیا به په سر او ماحول باندے لوپټه تاؤ کړی بیا به د سړي په شان دوه لفافے د ټول بدن نه راتاؤ کړے شی ۔ که زیاتی کفن نهٔ وی نو په یوه کپړه کښې تاوول هم جائز دی، دغه مخکښې په افضلیت بناء ده۔

(فتاوى اللجنة الدائمة ٨/ ٣٦٢) وفتاوى الدين الخالص (٧/ ١١٨)۔

---

**١٦٣٥ (٣) - وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: « إِذَا كَفَّنَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ فَلْيُحْسِنْ كَفَنَهُ ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.**

**ترجمه :** او جابر ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمایلي دی : « کله چه یو تن ستاسو خپل ورور (مسلمان) ته کفن ورکوی نو هغه ته دے مزیدار کفن ورکړی»۔ (مسلمؒ)۔

**تشریح : إِذَا كَفَّنَ :** په تشدید د فاء سره۔

د ښائستـه کـفن ورکولو مطلب دا دے چه سپین کفن وی، صفاء وی او کامل وی چه اندامونه پـکښې پټیـږی او د دنیا د لباس په شان وی، نهٔ ډیر اعلیٰ وی او نهٔ ډیر معمولی وی او دا مطلب نهٔ دے چه ډیر قیمت والا وی او اسراف پکښې وی او د تکبر او فخر په طریقه وی۔ علامه توربشتیؒ وئیلی دی چه اسراف کـونکو کـومه طریقه اختیار کړیده چه ډیره زیاته قیمتی کپړے په کفن کښې د ریاء او شهرت او تـکبر پـه طـور استـعمالوی نو ددے کار نه شریعت اسلامی منع کړیده ځکه چه پدے کښې د مال ضائع کیدل لازمیږی۔

او مسلـمؒ (۲۲۲۸) کښې راغې چه دا حدیث رسول الله ﷺ په هغه موقعه کښې اُوئیلو چه یو سړے د هـغـه د صحابه کرامو نه وفات شوے وو نو هغه ته سپك نامکمل کفن ورکړے شرے وو

او د شپې دفن کړې شوې وو نو نبي ﷺ ددې نه منع اُوکړه چه د شپې مړې خخ شي تردې چه مونځ پرې اُوکړې شي مګرکه انسان دې ته محتاج شي (نو بیا جائز ده)۔ او بیا نبي ﷺ دا حدیث هم اُوفرمایل: چه ورور مسلمان ته ښه پوره او مزیدار کفن ورکوئ۔

---

١٦٣٦ (٤) - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : إِنَّ رَجُلًا كَانَ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ فَوَقَصَتْهُ نَاقَتُهُ وَهُوَ مُحْرِمٌ فَمَاتَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ:« اِغْسِلُوْهُ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ وَكَفِّنُوْهُ فِيْ ثَوْبَيْهِ وَلَا تَمَسُّوْهُ بِطِيْبٍ وَلَا تُخَمِّرُوْا رَأْسَهُ فَإِنَّهُ يُبْعَثُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مُلَبِّيًا ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَسَنَذْكُرُ حَدِيْثَ خَبَّابٍ: قُتِلَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ فِيْ بَابِ جَامِعِ الْمَنَاقِبِ إِنْ شَاءَ اللهُ.

**ترجمه** : او عبد الله بن عباسؓ رضی الله عنهما فرمائي : یو سړے (د حج په دوران کښې) د رسول الله ﷺ سره ملګرې وو، نو د هغه اُوښې (هغه راوغورزولو او) د هغه څټ ئې مات کړو او هغه شخص مُحرم (یعني د حج احرام ترونکے) وو، په دې حال کښې هغه مړ شو۔ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «دۀ ته په اُوبو او بیرو سره غسل ورکړئ او په دوه کپړو (د احرام کښې) ورته کفن ورکړئ او دۀ باندې خوشبوئي مۀ لګوئ او سر ورله مۀ پټوئ ځکه چه دا به د قیامت په ورځ تلبیه کونکے راپورته کولے شي»۔ (بخاريؒ ومسلمؒ) او مونږ به د خباب حدیث چه مصعب بن عمیر قتل شو الخ په باب جامع المناقب کښې ذکر کړو ان شاء الله۔

**تشریح** : مَعَ النَّبِيِّ : یعني یو سړے د رسول الله ﷺ سره په عرفات کښې د صخرات سره (د جبل رحمت خوا کښې) وو، د اُوښې نه راپریوتو او څټ ئې مات شو او مړ شو نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : دۀ ته غسل ورکړئ په هغه اُوبو چه د بیرو پاڼړې ورسره یو ځائې شوي وي او په دې احرام کښې چه دوه کپړې دي ورته کفن ورکړئ او خوشبوئي پرې مۀ لګوئ او سر هم ورله مه پټوئ ځکه چه دا به د قیامت په ورځ په همدې حالت کښې راپورته کیږي چه تلبیه (لبیك) به وائي۔ ځکه چه رسول الله ﷺ په یو بل حدیث کښې فرمائیلي دي چه څوك په کوم حالت کښې وفات شي نو په هغه حالت به راپورته کولے شي۔

او دۀ ته ئې په کفن ورکولو کښې صرف دوه جامې ذکر کړې نو دا حکم د هر هغه چا هم دے چه په حالت د احرام کښې وفات شي، هغه ته به صرف دوه کپړې کفن ورکولے شي۔ او دا مسلك د امام شافعيؒ، احمد، اسحاق، سفیان الثوري او عطاء رحمهم الله دے۔ وهو الحق۔

او د امام مالك او ابو حنیفه رحمهما الله په نیز باندې د کفن په باره کښې مُحرم او غیر محرم

ئواړه برابر دي چه دريے کپړے به ورکولے شي۔ د دوی رائے د ظاهر ددے حديث مخالف راغلے ده۔ ابن دقيق العيدؒ فرمائی : د قياس تقاضا دا ده چه محل د تکليف ژوند دے او هغه چه ختم شو نو عبادت هم منقطع شو ليکن امام شافعیؒ د ظاهر د حديث تابعداری کړيده او حديث مقدم دے په قياس باندے۔

ليکن احناف او مالکيه د دليل نيولے دے په حديث د مسلم باندے عن ابی هريرة مرفوعاً : (إِذَا مَاتَ ابْنُ آدَمَ انْقَطَعَ عَمَلُهُ) (مسلم) ۔ (کله چه بنيادم وفات شی نو عمل ئے منقطع شو) نو هرکله چه په حالت د احرام کښې مړ شی نو دغه عبادت ئے منقطع شو نو د عامو مړو په شان شو نو بس کفن به د عامو مړو په شان ورکولے شي۔ ليکن جواب دا دے چه احرام کښې وفات شوی ته په دوه جامو د احرام کښې کفن ورکول او هغه د احرام په هيئت باندے باقی پريخودل د ژوندی انسان عمل دے لکه هغه ته غسل ورکول او بيا پرے مونځ کول او دا خو نه دے منقطع۔ لهذا د مړی عمل اګرکه منقطع دے ليکن شريعت پاتے شوی مسلمانانو ته وئيلی دی چه تاسو ئے په حالت د احرام کښې پريدئ۔ لهذا د دغه حديث د مسلم نه استدلال په محل د نظر کښې شو۔

احناف او مالکيه ددے حديث الباب د ابن عباسؓ نه داسے جواب کوی چه دا حکم ددے سړی پورے خاص دے، کيدے شی چه رسول الله ﷺ ته د وحی په ذريعه دا معلومه شوی وی چه دا به د مرګ نه پس هم په حالت د احرام پريخودلے شي۔ يا دا جواب کوی چه دا واقعة حال لا عموم لها۔ يو شخصی واقعه ده او د بل چا دپاره به ددے حکم عام نه وی۔ يا دا چه دلته ئے پدے قول سره علت ذکر کړو چه دا به تلبيه کونکے راپاڅيږی او دا خبره خو د بل چا په حق کښې ثابته نه ده نو بس دا حکم ددے شخص پورے خاص شو۔

ددے جواب په قلم د شيخ عبد الحی اللکهنوی الحنفی أوګوره هغه په التعليق الممجد کښې ددے جوابونو د ذکر کولو نه پس ليکلی دی : (وَلَا يَخْفَى عَلَى الْمُنْصِفِ اَنَّ هٰذَا كُلَّهُ تَعَسُّفٌ فَإِنَّ الْبَعْثَ مُلَبِّيًا لَيْسَ بِخَاصٍّ بِهٖ بَلْ هُوَ عَامٌّ فِيْ كُلِّ مُحْرِمٍ حَيْثُ وَرَدَ يُبْعَثُ كُلُّ عَبْدٍ عَلٰى مَا مَاتَ عَلَيْهِ اَخْرَجَهُ مُسْلِمٌ، ......فَهٰذَا التَّعْلِيْلُ لَا دَلَالَةَ لَهٗ عَلَى الْاِخْتِصَاصِ وَاِنَّمَا عُلِّلَ بِهٖ، لِاَنَّهٗ لَمَّا حَكَمَ بِعَدَمِ التَّعْمِيْرِ الْمُخَالِفِ لِسَنَنِ الْمَوْتٰى نَبَّهَ عَلٰى حِكْمَةٍ فِيْهِ وَهُوَ اَنَّهٗ يُبْعَثُ مُلَبِّيًا فَيَنْبَغِيْ اِبْقَاءُهٗ عَلٰى صُوْرَةِ الْمُلَبِّيْنَ وَاحْتِمَالُ الْاِخْتِصَاصِ بِالْوَحْيِ مُجَرَّدُ احْتِمَالٍ لَا يُسْمَعُ، وَكَوْنُهٗ وَاقِعَةَ حَالٍ لَا عُمُوْمَ لَهَا اِنَّمَا يَصِحُّ اِذَا لَمْ يَكُنْ فِيْهِ تَعْلِيْلٌ وَاَمَّا اِذَا وُجِدَ وَهُوَ عَامٌّ اَيَكُوْنُ الْحُكْمُ عَامًّا) ۔(په انصاف دار شخص باندے دا خبره مخفی نه ده چه دا ټول تکلف او بے عدلی ده ځکه چه د محرم په حالت د تلبيه کښې راپورته کيدل د دغه شخص پورے خاص نه دی بلکه دا په باره د هر محرم کښې دی ځکه چه حديث کښې راغلی دی چه هر بنده به

په هغه حالت راپورته کولے شي په کوم باندے چه وفات شوے وي (مسلم) نو دا علت ذکر کول دليل دے چه پدے حکم کښې خصوصيت د دغه شخص پورے نشته. او دا علت ئې پدے وجه بيان کړو چه هر کله ئې مخکښې د سر نهٔ پټولو حکم ذکر کړو چه دا د نورو مړو د طريقے مخالف وو نو دلته ئې ورله حکمة بيان کړو چه دا ځکه مهٔ پټوئ چه دا به په حالت د تلبيه کښې راپورته کولے شي نو مناسب ده چه دا په صورت د تلبيه ويونکو باندے پريخودے شي. او دا احتمال چه په وحي باندے به ددے شخص خصوصيت معلوم شوے وي نو پدے احتمال هيڅ دليل نشته نو دے ته به هيڅ توجه نشي کيدے. او دا خبره چه دا يوه حالي واقعه ده چه عموم نهٔ لري دا به هله صحيح وے چه کله پدے کښې علت نهٔ وے بيان شوے او هر کله چه علت ذکر شو (چه دا به په حالت د تلبيه کښې راپورته کيږي) او هغه علت خو عام دے نو بس حکم هم عام شو) بيا فرمائي:
د ابن عمرؓ د هغه اثر نه چه امام محمدؒ د مالكؒ نه هغه د نافعؒ نه نقل کړيدی چه ابن عمرؓ خپل ځوی واقد بن عبد الله ته کفن ورکړو او هغه په جُحفه کښې په حالت د احرام کښې وفات شوے وو او سر ئے ورله پټ کړے وو. جواب دا دے چه دا احتمال لري چه هغه ته حديث نهٔ وي رسيدلے او دا احتمال هم شته چه هغه ته به دا حديث رسيدلے وي ليکن هغه به دا حديث په افضليت او اولويت حمل کړے وي او سر پټول به ئې جائز ګڼرلی وي. او شايد چه دا مذکوره تحقيق به د حق نه متجاوز نهٔ وي. انتهیٰ ترجمة کلام الشيخ اللکهنوی. وانظر ايضاً المرعاة (٥/٣٤٩).
ددے ټول تحقيق نه معلومه شوه چه دا حکم د محرم دپاره دے، نهٔ د نورو مړو دپاره او حق مذهب د امام شافعيؒ او احمدؒ دے چه هغوی ددے حديث په ظاهر باندے عمل کوی او بل دليل ئې يبعث العبد علیٰ مات عليه حديث دے. کوم چه مخکښې ذکر شو. والله تعالیٰ اعلم.
**فَوَقَصَتْهُ** : وقص ځټ ماتولو ته وئيلے شي. يعنی اُوښے ورله ځټ مات کړو. يا به دا انسان د اُوښے د تيز والي او ترندك د وجه نه راغورځيدلے وي نو بيا اُوښے ته نسبت حقيقت دے او که خپله ترے راخويدلو سره غورځيدلے وي نو بيا اُوښے ته نسبت مجازاً دے.
**فِيْ ثَوْبَيْهِ** : بعض علماء وائي چه دا حديث دليل دے چه درے کپړے چه مخکښې په حديث د عائشةؓ کښې ذکر شوے نو هغه د وجوب دپاره نهٔ دی بلکه مستحب دی لکه دا قول د جمهورو دے او هر چه يوه پټونکے کپړه ده نو هغه خو بالاتفاق ضروري ده.
بعض وائي: نوره کپړه نهٔ ملاويده نو د مجبورتيا د وجه نه ئې دا اُوفرمايل: چه دوه کپړے استعمال کړئ. ليکن دا خبره احتمالي ده. او د ظاهر سره ډيره موافقه نهٔ ده.
او دا حديث دليل دے چه اغوستلے شوے جامه کښې هم کفن صحيح دے. دا ضروري نهٔ ده چه

نوي به وي۔

## الفصل الثاني

١٦٣٧ (٥) - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: «اِلْبَسُوا مِنْ ثِيَابِكُمُ الْبَيَاضَ فَإِنَّهَا مِنْ خَيْرِ ثِيَابِكُمْ وَكَفِّنُوا فِيْهَا مَوْتَاكُمْ وَمِنْ خَيْرِ أَكْحَالِكُمُ الْإِثْمِدُ فَإِنَّهُ يُنْبِتُ الشَّعْرَ وَيَجْلُو الْبَصَرَ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ.

ترجمه : او ابن عباس رضى الله عنهما فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «د خپلو جامو نه سپينې جامې اغوندئ ځکه چه دا ستاسو غوره جامې دي او پدې کښې خپلو مړو ته کفن ورکوئ۔ او غوره رانجهٔ ستاسو اِثمد دی ځکه چه دا (ستاسو د بانړهٔ) ویښته رازرغونوي او نظر صفا کوي۔ (ابوداود، ترمذي)۔

**تشريح : خَيْرِ ثِيَابِكُمْ** : سپينې کپړې پدې وجه غوره دي چه يو خو پدې کښې غالباً تواضع په انسان کښې پيدا کيږي، او تکبر او عجب او خيلاء نهٔ وي، دويم دا چه دا په طبيعت هم ښې لګي۔ دريم دا چه کله انسان سپينې کپړې استعمالوي نو دا به زر خيرنيږي نو انسان به ئې زر پاکوي او دغه شان دا به ئې د نجاست او ګندلونو نه ساتي پدې وجه په بل حديث کښې داسې وئيلې شويدي : (فَإِنَّهَا أَطْهَرُ وَأَطْيَبُ)۔ (دا ډيرې پاکونکې او مزيدارې جامې دي)۔

مړو ته په سپينو کپړو کښې د کفن ورکولو حکم د استحباب دپاره دې۔ نو که سپينه کپړه وي اولىٰ او بهتره ده او که بل قسم رنګ والا وي نو هم هيڅ حرج نشته۔ او دا حکم سرو او ښځو دواړو ته يو شان شامل دې۔

**اَلْإِثْمِدُ** : په کسره د همزه او سکون د ثاء سره دې او ضمه د همزې هم جائز ده۔ دا مشهور تور کانړې دې چه سوروالى ته مائل دې۔ (يعنى سرهٔ رانجه) دا په حجاز علاقو کښې وي او ډير مزيدار اثمد د اصبهان نه راوړلې شي۔

دا بهترين رانجه دي، اُوښکې او زخمونه اُوچوي او د سترګې د صحت حفاظت کوي او د سترګو رګونه او پيپړې قوي کوي خاصکر د بوډاګانو او ماشومانو دپاره ډير مفيد دي۔

الشعر نه مراد : د بڼړو ويښته دي۔

**وَيَجْلُو الْبَصَرَ**: نظر ځکه روښانه کوي چه دا ردي مواد کوم چه د سر نه راکوزيږي دفع کوي۔

ملا علي القاريؒ فرمائي : د اُوده کيدو په وخت کښې ددې استعمالول افضل دي ځکه چه رسول الله ﷺ به په وخت د اُوده کيدو کښې استعمالول، دارنګه په دغه وخت کښې تاثير زيات کوي او

هنـه رنګـونـو تـه تيـز سرايت کوی۔ انتهیٰ لکه په يو روايت د احمد (٢٤٧٩) او نسائی (٥١١٣) کښې ورسره دا الفاظ زيات دی : (خَيْرُ اَكْحَالِكُمُ الْاِثْمِدُ عِنْدَ النَّوْمِ)۔ يعنی د خوب په وخت کښې۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : ابوداود (٤٠٦١) والترمذی (٩٩٤) وقال حديث حسن صحيح الى قوله كَفِّنُوْا فِيْهَا مَوْتَاكُمْ واخرج بقيته (١٧٥٧) وابن ماجه (٣٥٦٦) وصححه الحافظ فی الفتح (١٠٨/٣)۔

---

**١٦٣٨ (٦) – وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« لَا تَغَالَوْا فِی الْكَفَنِ فَاِنَّهُ يُسْلَبُ سَلْبًا سَرِيْعًا». رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ.**

**ترجمه** : او علی ﷛ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمايلی دی :« په کفن کښې زياته قيمتی کپړه مه لګوئ ځکه چه دا ډيره زر راخکلی شی »۔ (ابوداودؒ)۔

**تشريح** : **لَا تَغَالَوْا** : دا په اصل کښې تَتَغَالَوْا دے۔ يوه تاء حذف شويده د تنزل الملائکة په شان۔ ٢ – دارنګه په ضمه د تاء او لام سره هم نقل دے د مغالاة نه دے پيسے ډيرولو ته وئيل شی يعنی مبالغه مه کوئ او تجاوز د حد نه مه کوئ په پيسو د کفن کښې ځکه چه کفن زر اخستے شی ددے مطلب دا دے چه کفن زر خرابيږی او زر زريږی نو څه ضرورت دے چه قيمتی او د زياتو پيسو والا کپړه په کفن کښې استعمال شی۔ ځکه پدے کښې مال ضائع کول دی۔ غرض پدے حديث کښې د کفن په باره کښې د اسراف کولو نه منع کول دی لهٰذا په کفن کښې درميانی درجه کپړه استعمالول پکار دی۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : ابوداود (٣١٥٤) والبيهقی فی السنن (٤٠٣/٣) وفی اسناده عمرو بن هاشم ابو مالك الجنبی) وهو مختلف فيه وفيه انقطاع بين الشعبی وعلی لانه قال الدارقطنی انه لم يسمع منه سوی حديث واحد (التلخيص الحبير)۔

---

**١٦٣٩ (٧) – وَعَنْ اَبِیْ سَعِيْدِ الْخُدْرِیِّ اَنَّهُ لَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ دَعَا بِثِيَابٍ جُدُدٍ فَلَبِسَهَا ثُمَّ قَالَ:سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ : « اَلْمَيِّتُ يُبْعَثُ فِیْ ثِيَابِهِ الَّتِیْ يَمُوْتُ فِيْهَا». رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ.**

**ترجمه** : او ابوسعيدی خدری ﷛ په باره کښې نقل دی چه هغه ته کله مرګ حاضر شو نو هغه نوے جامے راوغوختے او هغه ئے واغوستے بيائے اُوفرمايل : ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلی

چه فرمايل ئې : ((مړي به په خپلو هغه كپړو كښې راپورته كولې شي په كوم كښې چه مړ شي)). (ابوداؤد).

**تشريح** : ددې حديث د ظاهري معنى دا معلوميږي چه ابوسعيد خدري ﷺ د رسول الله ﷺ پدې حديث باندې عمل كولو دپاره نوې كپړې راوغوختې او هغه ئې واغوستې نو كه دا مراد واخستې شي چه په قيامت كښې كله انسانان دوباره ژوندي كولې شي او ميدان حشر ته راجمع كولې شي نو په هغه وخت كښې به د هغوى په بدن باندې هغه كپړې وي كوم كښې چه وفات شوې وي. نو كه د حديث همدا ظاهري مفهوم مراد كړې شي نو بيا لوئې اشكال واردېږي او هغه دا چه په صحيح حديث سره دا خبره ثابته شويده چه : (يُحْشَرُ النَّاسُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حُفَاةً عُرَاةً غُرْلًا) (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ). (انسانان به د قيامت په ورځ خپې ابله، بربنډ، نا ستنه راجمع كولې شي) او ددې نه معلوميږي چه په كومو جامو كښې وفات شوې وي نو په هغه جامو كښې به راپورته كولې شي.

نو ددې وجه نه علماؤ ددې حديث معنىٰ دا ليكلې ده چه په حديث كښې د كپړو نه مراد هغه اعمال دي چه په هغې باندې انسان وفات كيږي او عرب كله كله د ثياب (جامې) لفظ استعمالوي او د هغې نه اعمال مراد كوي ځكه لكه څنګه چه كپړې د بدن سره لګې نو دغه شان اعمال هم د بدن سره متعلق وي، دا وجه ده په آيت كريمه :﴿ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ﴾ كښې بعض مفسرينو دا تفسير كړيدې چه خپل اعمال صحيح كړه) لهذا ددې حديث مطلب په بل حديث كښې داسې راغلې دې چه (( بنده په هغه عمل راپورته كولې شي په كوم باندې چه وفات شوې وي)).

نو هركله چه په حديث كښې د ثياب نه اعمال واخستې شي نو بيا ابوسعيد خدري ﷺ ولې نوې جامې راغوختلې؟ نو ددې يو جواب دا وركړې شويدې چه دا د ابوسعيد خدري ﷺ اجتهاد دې چه هغه ددې حديث نه ظاهري معنىٰ مراد كړيده او هغه بل حديث (حُفَاةً عُرَاةً) والا حديث ئې په ذهن كښې مستحضر نۀ دې. او دا خبره محققين اهل الحديث كړيده. علامه توريشتيؒ وئيلي دي چه د بعض صحابه كرامؓ ذهن به كله د يو حديث په معنىٰ مراد باندې كار ورنكړو نو ظاهري معنىٰ به ئې مراد كړه لكه څنګه چه د عدي بن حاتمؓ نه د حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ متعلق دوه ظاهري تارونه مراد كړې وو. (فيض القدير لعبد الرؤف المناوى ٦/٣٦٣).

٢- يا دا چه ابوسعيد خدري ﷺ د دنيا نه د رخصتيدو په وخت كښې صرف د صفائي او پاكوئ په طور نوې كپړې راطلب كړې او اتفاقاً ئې دا حديث هم ذهن ته راغلو نو دا ئې هم بيان كړو نو بل حديث چه انسانان به بربنډ راپورته كولې شي" هغه هم ورته ياد دې. او دا مطلب نۀ دې چه ابوسعيد خدري د نوې جامو د راغوختلو دپاره د دليل په طور دغه حديث بيان كړيدې. نيكن دا

تاويل هم دير ظاهر نۀ دے۔ او فيض القدير كښې ورته اشاره شويده۔

٣- علامه خطابيؒ د دواړو حديثونو تطبيق داسے هم كړيدے چه بعث غير دے د حشر نه او مطلب دا دے چه د قبرونو نه د راپورته كيدو په وخت كښې به انسانان په خپلو كپړو كښې راپورته كولے شي بيا به ترے هغه پريوځي او حشر ته به بربند راجمع كولے شي۔ يا دا چه بعض انسانان به بربند راپورته كولے شي او بعض جامو والا۔

ليكن علامه عبيد الله مباركفوري رحمه الله فرمائي : چه دا تاويل دير بعيد دے۔

٤- علامه قرطبيؒ فرمائي: دا حديث د ابوسعيد خاص دے د شهيد پورے۔ نو شهيد به بربند نۀ راپورته كيږي، ددے وجه نه شهيد د خپلو جامو او وينو سره دفن كولے شي۔ او ابو سعيد خدري ددے نه عموم فهم كړيدے۔ دغه شان معاذ بن جبل هم په عموم حمل كړيدے۔(تحفة الاحوذي ٧/٩١)۔ صحيح دا ده چه دلته د ابوسعيد خدري ﷺ اجتهاد خطائے ته نۀ دے رسيدلے او ذهن ئے بل طرف ته تلے دے۔

**درجة الحديث :** اسناده صحيح :ابوداود (٣١١٤) والحاكم (١/ ٣٤٠) والبيهقي في السنن (٣٨٤/٣) وعَزَاهُ ابْنُ حَجَرٍ في التلخيص الحبير (٢/٩) لابن حبان۔

---

١٦٤٠ (٨) - وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ قَالَ: «خَيْرُ الْكَفَنِ الْحُلَّةُ وَخَيْرُ الْأُضْحِيَةِ الْكَبْشُ الْأَقْرَنُ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

١٦٤١ (٩) وَرَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه عَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ

**ترجمه :** او عبادہ بن صامت ﷺ د رسول الله ﷺ نه روايت كوي چه هغه فرمايلي دي : « غوره كفن حله ده (يعني دوه كپړے) او غوره قرباني د خكرو والا گډ دے»۔ (ابو داودؒ)۔

**تشريح : الْحُلَّةُ :** لنگ او څادر ته وئيلے شي او په لغت كښې د يو جنس نه دوه كپړو ته وئيلے شي۔ او مقصد د حديث دا دے چه د مړي په كفن كښې په يوه جامه باندے اكتفاء نۀ ده پكار بلكه دوه جامے د يوے نه غوره دي او كه سنت طريقه باندے عمل كوي او نورے كپړے ملاويږي نو بيا درے كپړے افضل او اكملے دي۔

٢- او بعض علماء وائي چه دلته مقصود دا دے چه هغه كفن غوره دے چه مكمل وي او د مړي د ټول بدن نه تاويږي لكه څنگه چه حله ټول بدن نه تاويږي او ټول بدن پټوي۔

٣- يا مطلب دا دے چه حله غوره ده يعني هغه كپړے په كفن كښې استعمالول غوره دي چه د

يمن نه راځي چه په هغې کښې شنے او سرے پټے وي۔ لکه د بعض علماؤ دا رايه ده چه سرے او شنے جامے غوره دي ليکن اصح دا ده چه سپينے جامے غوره دي۔ د وجه د مخکښې حديث د عائشهؓ نه۔ صحيح دا ده چه دلته غوره والے د کفن په نسبت د يوے جامے سره دے نۀ په نسبت د درے جامو سره۔

**الْكَبْشُ** : کډ ته وئيلے شي۔

**الْأَقْرَنُ** : اقرن هغه کډ ته وئيلے شي چه د هغه دوه ښائسته او معتدل ښکرے وي۔

د ښکرو والا کډ چونکه اکثر چاق او قيمتي وي پدے وجه ئې ددے قرباني ته بهتر اُووئيل۔

بعض علماؤ دا مطلب هم بيان کړيدے چه په ښکرور کډ باندے قرباني افضل ده ددے نه چه په اُوښه يا غوا کښې شرکت اُوکړے شي او دا مطلب نۀ دے چه کډ د بدنے او بقرے نه هم غوره دے۔ لکه چه پدے باندے امام مالك عمل کړيدے۔

**درجة الحديث**: اسناده حسن: ابوداود (٣١٥٦) وابن ماجه (١٤٧٣) وصححه الحاكم والذهبي، وله شاهد عند الترمذي وغيره) (زبير عليزئي) ـ واسناد رواية ابي امامة عند الترمذي وابن ماجه ضعيف فيه عُفَير بن معدان وهو ضعيف (حافظ ابن حجر)

---

**١٦٤٢ (١٠) – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : أَمَرَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِقَتْلٰى أُحُدٍ أَنْ يُنْزَعَ عَنْهُمُ الْحَدِيْدُ وَالْجُلُوْدُ وَأَنْ يُدْفَنُوْا بِدِمَائِهِمْ وَثِيَابِهِمْ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : او ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي : رسول الله ﷺ د اُحد د شهيدانو په باره کښې حکم اُوکړو چه د هغوی نه اُوسپنے (تورے) او څرمنے (يعني د څرمنو پوستين وغيره) اُوويستلے شي بيا هغوي د وينو او خپلو جامو سره دفن کړے شي۔ (ابوداودؒ، ابن ماجةؒ)۔

**تشريح : الْحَدِيْدُ** : ددے نه مراد اسلحے او زغرے دي۔

دا حديث دليل دے چه د شهيد نه به جامے نشي ويستلے او د خپلو وينو او جامو سره به دفن کولے شي نو بس غسل به هم نشي ورکولے۔ او د غسل نۀ ورکولو په باره کښې ډير احاديث راغلي دي چه هغه مجد ابن تيمية په المنتقىٰ کښې او علامه شوکانيؒ په نيل الاوطار کښې ذکر کړيدي۔

او ددے حديث تائيد امام احمدؒ د عبد الله بن ثعلبه په روايت نقل کړيدے چه رسول الله ﷺ د اُحُد په ورځ اُوفرمايل: (زَمِّلُوْهُمْ فِيْ ثِيَابِهِمْ)۔ دا په خپلو جامو کښې تاو کړئ۔ (احمد ٥/٤٣١) والنسائي (١/٢٨٢) باسناد صحيح۔

نو دا روایت دلیل دے چه شهید په کومو جامو کښې قتل شوے وی په هغه جامو کښې به دفن کولے شی او دا حکم وجوبی دے ځکه چه امر پرے راغلے دے۔

البته د زیاتی جامو (ټوپئ، واسکټ، کوټ پټکی وغیره) ویستلو باره کښې د علی بن ابی طالب نه زید بن علیؒ نقل کړیدی چه هغه به هم نۀ اوباسی لیکن د هغے په سند کښې ابوخالد الواسطی چه نوم ئے عمرو بن خالد القرشی مولی بنی هاشم متروك الحدیث راوی دے چه احمد بن معین، ابوداود او وکیع وغیره ورته کذاب وئیلے دے۔ نو دا قابل د استدلال نۀ جوړیږی۔ او د مذکوره روایت مقابله نشی کولے۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعیف: ابوداود (٣١٣٤) وابن ماجه (١٥١٥) وفیه علتان ابوعاصم الواسطی وهو علی بن عاصم ضعیف وعطاء بن السائب تغیر بآخرة، قال فی المرعاة (٥/٣٥٥) وفی الباب احادیث وقد تقدم بعضها فینجبر بها ضعف هذا الحدیث انتهیٰ۔

## الفصل الثالث

**١٦٤٣ (١١) - عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ عَوْفٍ أُتِيَ بِطَعَامٍ وَكَانَ صَائِمًا فَقَالَ: قُتِلَ مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ وَهُوَ خَيْرٌ مِنِّيْ كُفِّنَ فِيْ بُرْدَةٍ إِنْ غُطِّيَ رَأْسُهُ بَدَتْ رِجْلَاهُ وَإِنْ غُطِّيَ رِجْلَاهُ بَدَا رَأْسُهُ وَأُرَاهُ قَالَ: وَقُتِلَ حَمْزَةُ وَهُوَ خَيْرٌ مِنِّيْ ثُمَّ بُسِطَ لَنَا مِنَ الدُّنْيَا مَا بُسِطَ أَوْ قَالَ: أُعْطِيْنَا مِنَ الدُّنْيَا مَا أُعْطِيْنَا وَلَقَدْ خَشِيْنَا أَنْ تَكُوْنَ حَسَنَاتُنَا عُجِّلَتْ لَنَا ثُمَّ جَعَلَ يَبْكِيْ حَتّٰى تَرَكَ الطَّعَامَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.**

**ترجمه** : سعد بن ابراهیم د خپل پلار نه نقل کوی چه عبد الرحمن بن عوف ﷺ ته طعام راوړے شو او هغه روژه وو نو وے فرمایل: مصعب بن عمیر شهید شو او هغه ما نه ډیر غوره وو، هغه ته په (دومره وړوکی) څادر کښې کفن ورکړے شو چه که د هغه سر به (پرے) پټ کړے شو نو خپے به ئے ښکاره کیدے او که خپے به ئے پټے کړے شوے نو سر به ئے ښکاره کیدو۔ (آخر سر ئے پټ کړے شو او په خپو ئے سرګړے واچول شو) ابراهیم (چه ددے حدیث راوی دے) وائی چه زما ګمان دے چه عبد الرحمن بن عوف دا هم اوفرمایل: او حمزه شهید شو چه هغه ما نه ډیر غوره وو (او هغه ته هم د مصعب په شان کفن نصیب شو او کله چه د مسلمانانو د تنګدستئ او پریشانئ دا دور د الله په فضل سره ختم شو نو) بیا مونږ دپاره دنیا دومره فراخه کړے شوه کومه چه ښکاره ده۔ یا ئے دا اوفرمایل چه دنیا مونږ ته دومره ډیره راکړے شوه چه ددے خبرے نه یریږو چه زمونږ د نیکیانو بدله مونږ ته په جلتئ (یعنی دنیا کښې) نۀ وی راکړے شوی، بیا عبد

الرحمن (ددے یرے په وجه) اُوژرل تردے چه هغوی خوراك پریخودو۔ (بخاریؒ)۔

**تعارف : سعد بن ابراهیم** بن عبد الرحمن بن عوف الزهری القرشی، د مدینے قاضی پاتے شویدے او ثقه فاضل عابد دے د ووړوکے طبقے د تابعینو نهٔ دے۔ عبد الله بن عمرؓ لیدلے دے او د خپل پلار ابراهیم نه ئے آوریدل کړیدی په سنه (١٢٥ هـ) کښ بعض وائی ددے نه هم روستو د (٧٢) کالو په عمر وفات شویدے۔

پلار ئے ابراهیم بن عبد الرحمن بن عوف دے د عمر فاروق سره ئے په ووړوکوالی کښ ملاقات شویدے او د خپل پلار او سعد بن ابی وقاص نه ئے آوریدل کړیدی او ددهٔ نه خپل ځوی او زهری روایت نقل کوی۔ د عمرؓ نه سماع ئے یعقوب بن شیبة نقل کړیده په سنه (٩٥ هـ) یا (٩٦ هـ) کښ ثابت ده۔ تهذیب کښ دی ددهٔ ته عجلی تابعی ثقه وئیلے دے او یعقوب بن شیبه هم ورته ثقه وئیلے دے۔ د اولے طبقے د تابعینو نه دے۔

**تشریح** : عبد الرحمن بن عوف : دا د قریشو نه دے او په عشره مبشره کښ داخل دے۔

**اُتِیَ** : صیغه د مجهول ده یعنی ددهٔ ته طعام راوړے شو د روژه ماتولو دپاره۔ په شمائل ترمذی، کښ دی چه دا غوښه او روټۍ وه۔ حافظ ابن عبد البرّ لیکلی دی چه دا کار ددهٔ په مرض الوفات کښ شوے وو۔

د صحابه کرامؓ عجیب حالت وو چه په داسے سخت حالت کښ به هم غافل نهٔ وو، روژه دار دے لیکن کله چه ښه طعام راوړے شو نو ددهٔ ته خپل زاړهٔ ملگری رایاد شو چه زمونږ ملگرو باندے څو مره تکلیفونه تیر شوی وو او په مونږ فراخی راغله نو د فراخۍ نه یریدل چه هسے نه چه دا زمونږ دپاره استدراج نهٔ وی۔ او داسے اُونهٔ شی چه مونږ ته الله تعالیٰ د خپل نیك اعمالو بدله په دنیا کښ راکړی او په آخرت کښ مو محرومه کړی، الله تعالیٰ په نیك اعمالو دنیا هم ورکوی او آخرت هم، لیکن دا ددے صحابی اُنتهائی خوف او عاجزی ده الله تعالیٰ ته۔ او د خپلو ملگرو سره ډیره همدردی ده۔ او دیته زهد فی کثرة المباحات وائی دا بهتر زهد دے۔

هو خیر منی : دا خبره ئے د عاجزی او تواضع په طریقه کړیده چه ما نه مصعب بن عمیر غوره وو۔ ورنه علماء کرامؒ فرمائیلی دی چه عشره مبشره د باقی صحابه کرامؓ نه افضل دی۔

**بَدَا رَأْسُهُ** : په بل روایت د بخاری کښ دی چه رسول الله ﷺ اُوفرمایل : «ددهٔ سر پټ کړئ او په خپو باندے ورته سرکړے واچوئ»۔

**وَأُرَاهُ** : یعنی زما گمان دے۔ دلته رؤیت په معنیٰ د ظن دے۔

**یَبْکِی** : دے صحابی له اگر که د جنت زیرے ورکړے شویدے لیکن بیا هم ژاړی یره او خوف

پرې غالب دے يا همت ئې اُوچت دے نو د اُوچتو درجو پسې آرمان كوي چه كيدې شي چه زمونږ نه مخكښې شهيدان شوي صحابه كرامو ته به اُوچتې درجې ملاويږي او مونږ خو دومره كار نۀ دے كړے نو روستو به يو۔

**فوائد الحديث :** ١- حديث ددې دپاره راوړے شويدے چه كفن ضرورت هرڅومره وي نو دا كافي دے دلته د يو څادر نه علاوه نوره كپړه نشته نو بس همدا هم كفن جوړيدل صحيح دي۔

٢- او كله چه كفن وړوكے وي نو چه خپو ته نۀ رسي بيا مخ پټول ضروري دي او خپے دے په بل څيز سره پټے كړے شي۔

٣- او دليل دے چه د مړي بدن پټول ضروري دي۔

٤- او ددے نه دا خبره هم ثابتيږي چه د مړي دفن كول هم ضروري دي۔

٥- حديث دليل دے چه د صالحينو خلقو سيرت او د هغوي په دنيا كښې زهد او بے رغبتي راياد ول پكار دي او د غوره خلقو درجاتو ته د رسيدلو پسے ژړا پكار ده ۔

٦- حديث دليل دے چه پكار ده چه دنيا كښې انسان فقر غوره كړي په مالدارئ باندے او دنيا كښې ډيره خوش عيشي نۀ ده پكار، او د الله تعالىٰ په نعمتونو باندے شكر پكار دے او دا يره كول چه دا چرته بدله د نيك اعمالو نۀ وي چه آخرت كښې ددے په وجه د بدلے نه محروم نشو اګركه الله تعالىٰ رحيم دے ليكن بنده له خو يره پكار ده۔

**تعارف د مصعب بن عمير ﷛:** دا د اُوچتو او غوره صحابه كرامو نه وو د قريشو د عبد الدار قبيلے سره ئے تعلق ساتلو۔ په هغه زمانه كښې ئے ايمان راوړو كله چه نبي ﷺ په دار ارقم كښې وو او اسلام ئے د مور د يرے نه پټ ساتلے وو نو عثمان بن طلحه پرے پو هه شو هغه ورله كور والا خبر كړل نو هغوي اُوترلو، د هغوي سره ترلے شوے وو تردے چه د هغوي نه اُوتختېدو او حبشو ته ئے د نورو ملګرو سره هجرت اُوكړو بيا مكے ته راواپس شو او مدينے ته ئے هجرت اُوكړو، جنګ بدر ته حاضر شويدے او په جنګ احد كښې ددۀ سره جنډه وه نو د عمرو بن قمئه ليثي كافر د لاسه شهيد كړے شو او پدے وخت كښې ئے عمر (٤٠) كاله وو يا لږ زيات۔ رسول الله ﷺ د هجرت نه مخكښې مصعب مدينے ته د دويمے عقبے نه روستو ليږلے وو چه مدينے والو ته قرآن او دين زدۀ كړي او دۀ ته به قاري او مقري وئيلو شو۔ دا اولنے هغه شخص دے چه په مدينه كښې ئے د هجرت نه مخكښې د جُمعے مونځ كړيدے۔ او دا په جاهليت زمانه كښې ډير خوش عيش او نرم ژوند والا وو، ډيرے نرمے او عمده لباس به ئے استعمالولو، ښائسته رنګ والا وو۔ د مور او پلار ورسره ډيره مينه وه او مور به ورته ډيرے ښائسته جامے اغوستولے او د مكے والو نه

دیر عطر استعمالونکے وو۔ حضرمی خپلیٔ او چپرے به ئے استعمالولے، خو کله ئے چه اسلام قبول کړو نو په دنیا کښې بے رغبته شو او ژوند ئے تنګ شو نو بدن ئے داسے زیږ شو لکه د مار په شان۔ بعض وائی : دهٔ او دهٔ د ملګرو په باره کښې دا آیت نازل دے : ﴿ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ رِجَالٌ صَدَقُوْا مَا عَاهَدُوا اللّٰهَ عَلَيْهِ ﴾ (الاحزاب:۲۳)۔

او حمزه بن عبد المطلب د رسول الله ﷺ ترهٔ دے چه رسول الله ﷺ ورته اسد الله واسد رسوله (د الله تعالیٰ او د هغه د رسول زمرے) لقب ورکړے وو۔ سید الشهداء دے په اُحد کښې شهید شویدے۔

---

١٦٤٤ (١٢) – وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: أَتَى رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ أُبَيٍّ بَعْدَ مَا أُدْخِلَ حُفْرَتَهُ فَأَمَرَ بِهِ فَأُخْرِجَ فَوَضَعَهُ عَلٰى رُكْبَتَيْهِ فَنَفَثَ فِيْهِ مِنْ رِيْقِهِ وَأَلْبَسَهُ قَمِيْصَهُ قَالَ : وَكَانَ كَسَا عَبَّاسًا قَمِيْصًا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او جابر ﷜ فرمائی : رسول الله ﷺ عبد الله بن ابی (ابن سلول) ته راغلو پس د هغے نه چه خپلے کندے (قبر) ته داخل کړے شوے وو۔ نو رسول الله ﷺ (د هغه په راویستلو) حکم اُوکړو، هغه رابهر کړے شو نو رسول الله ﷺ هغه په خپلو زنګنونو کیخودو او د هغه په خوله کښې ئے خپلے لاړے واچولے او هغه ته ئے خپل قمیص واغوستولو۔ جابرؓ فرمائی : چه عبد الله بن اُبی عباسؓ ته خپل قمیص اغوستے وو۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

**تعارف د عبد الله بن ابی** : دهٔ مکمل نوم عبد الله بن اُبی ابن سلول۔ سلول د عبد الله د مور نوم دے نو ددے سره ابن به په الف سره لیکلے شی ځکه دا صفت د عبد الله دے نهٔ د اُبی۔ دا رئیس المنافقین دے او په جاهلیت زمانه کښې د خزرج قبیلے سردار وو او دا هغه شخص دے چه عائشه رضی الله عنها باندے ئے تهمت لګولے وو او د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو په باره کښې ئے وئیلی وو ﴿ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ ﴾ ۔(دا عزتمند به ددے مدینے نه ذلیل اُوباسی) ځان ته ئے عزتمند وئیلو۔ او دا ئے هم وئیلی وو :﴿ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَنْفَضُّوْا ﴾ (المنافقون :۷)۔ (د رسول الله ﷺ په ملګرو باندے خرچے مهٔ کوئ دے دپاره چه د مدینے نه اُوځی)۔

او د اُحد په جنګ کښې ئے دریمه حصه د لښکر مدینے ته د جنګ د لارے نه راواپس کړل او رسول الله ﷺ او د هغه ملګری ئے همداسے بے مدده پریخودل۔

واقدیؒ وئیلی دی : عبد الله بن ابی د شوال په میاشت کښې چه ختمیدو ته یو څو ورځے پاتے وے

مريض شو او بيا په ذی قعده کښې په نهم (٩) کال وفات شو کله چه رسول الله ﷺ د تبوك غزا نه راواپس شو او ددهٔ مرض شل ورځې وو او رسول الله ﷺ به په دے ورځو کښې ددهٔ بيمار پرسئ له هم ورتلو۔ ددهٔ د ځوی نوم هم عبد الله دے او خپل نوم ئے حُبَاب وو ليکن نبی ﷺ ورله عبد الله نوم ورکړو د خپل پلار د نوم په شان۔ او دا صحابی وو او د غوره او افضل صحابه کرامو نه دے، ټولو جنګونو کښې شريك شويدے او په خلافت د ابوبکر صديق کښې په جنګ يمامه کښې شهيد شويدے او دا په پلار باندے ډير سخت وو او رسول الله ﷺ ته ئے فرمائيلی وو که تاسو ما ته اجازت اُوکړئ نو زهٔ به خپل پلار قتل کړم۔ ديته ايمانی غيرت وائی چه خپل پلار د الله تعالیٰ دپاره قتلوی ځکه چه مشرك دے ليکن رسول الله ﷺ ورته اجازت ورنکړو۔

**تشريح : اَتَى رَسُوْلُ اللهِ :** يعنی عبد الله بن ابی (منافق) وصيت کړے وو چه په ما باندے دے رسول الله ﷺ مونځ اُوکړی، او ما ته دے خپل قميص په کفن کښې راکړی يا دا چه د هغه ځوی عبد الله (صحابی) دا مطالبه کړے وه چه رسول الله ﷺ په دهٔ باندے مونځ اُوکړی او د رسول الله ﷺ نه ئے قميص طلب کړو چه زهٔ پکښې پلار ته کفن ورکوم۔ نو رسول الله ﷺ هغه ته خپل قميص ورکړو۔ ددهٔ دلجوئی کوله۔ او دے حديث نه دا معلومه شوه چه رسول الله ﷺ ورله خپل قميص ځکه ورکړو چه ددهٔ ترهٔ (عباسؓ) ته ئے په بدر کښې قميص ورکړے وو۔ په بخاری کتاب الجهاد کښې د جابرؓ په روايت کښې دی : کله چه د بدر ورځ شوه نو قيديان راوستے شو او عباسؓ راوستے شو او په هغه باندے څه جامه نهٔ وه نو نبی ﷺ ددهٔ دپاره قميص کتلو نو د عبد الله بن ابی قميص په دهٔ باندے برابريدو (ځکه چه دا دواړه د غټ بدنونو والا وو) نو نبی ﷺ ورته واغوستو۔ الحديث۔

نو ددے وجه نه رسول الله ﷺ ورله بدله خلاصه کړه چه د هيڅ منافق احسان په رسول الله ﷺ باندے پاتے نشی۔ لکه دا خبره سفيان بن عُيينهٔ هم کړيده۔

بعض وائی : ددے وجه ئے قميص ورکړو چه د هغه د قوم محبت ئے پيدا کولو کيدے شی چه ايمان راوړی ځکه چه هغوی د رسول الله ﷺ په قميص کښې برکت ګنړلو او دا هم د دعوت يوه طريقه ده۔

## اشکال او د هغے ازاله :

دلته دا سوال پيدا کيږی چه ددے حديث نه صراحةً دا معلومه شوه چه د رسول الله ﷺ قميص عبد الله بن ابی ته ورکول او اغوستول پس د قبر ته د داخلولو او کيخودلو نه وو۔ ليکن دا معارض دے د حديث د ابن عمرؓ سره چه په صحيحينو کښې راغلے دے هغه فرمائی : کله چه

عبد الله بن ابی مړ شو نو د هغه ځوی (عبد الله) راغلو او عرض ئے اُوکړو اے د الله رسوله! ما ته خپل قمیص راکړه چه زهٔ پکښې هغه (خپل پلار) ته کفن ورکړم نو هغه ته ئے قمیص ورکړو او دا ئے ورته اُوویل : چه (کله مو تیار کړو) ما ته خبر راکړه چه زهٔ پرے مونځ اُوکړم نو (د تیاریدو نه بعد ئے) خبر ورکړو نو کله ئے چه اراده د مانځه اُوکړه نو عمر فاروق راخکلو الحدیث۔

نو دے نه خو معلومه شوه چه قمیص ئے مخکښې ورکړیدے۔ او بیا ئے پرے مونځ کړیدے۔ ؟

ددے یو تطبیق دا دے چه د ابن عمرؓ په حدیث کښې دا خبره راغلے ده (فَاَعْطَاهُ)۔ چه قمیص ئے ورته ورکړو۔ نو ددے مطلب دا دے چه وعده ئے ورسره اُوکړه چه زهٔ ئے درکوم نو د هغے نه ئے داسے تعبیر اُوکړو لکه چه ورکړے ئے وی۔ بیا د عبد الله کور والا په نبی ﷺ باندے وریدل چه دلته حاضریدو په وجه په مشقت کښې واقع نشی نو په جلتئ سره ئے هغه تیار کړو چه نبی ﷺ لا رارسیدلے نهٔ وو نو کله چه رسول الله ﷺ راورسیدو نو وے موندل چه هغوی قبر ته کوز کړے وو نو د هغه په راویستلو ئے حکم اُوکړو دے دپاره چه وعده ورسره پوره کړی نو قمیص ئے ورکړو او مونځ ئے هم پرے اُوکړو۔ لیکن دے تطبیق سره پوره سوال بیا هم نهٔ دفع کیږی ځکه چه حدیث د ابن عمرؓ صریح دے چه رسول الله ﷺ په هغه باندے مانځه ته حاضر شویدے او هغه ته ئے قمیص ورکړیدے۔ او په ترمذی کښې د ابن عباسؓ روایت په تفسیر د سورة التوبه کښې ډیر صریح دے چه په هغے کښې دی چه نبی ﷺ د هغه مانځه ته دعوت کړے شو نو هغه ته راپاڅیدو (په هغے کښې دی) بیا ئے په هغه باندے مونځ اُوکړو او د هغه سره لاړو تردے چه د هغه په قبر باندے اُودریدلو تردے چه د هغه نه فارغ شو نو دا صریح دے چه نبی ﷺ د جنازے سره وو تردے چه هغه ئے قبر ته راوستو او د حدیث د جابرؓ نه معلومیږی چه نبی ﷺ ددے نه روستو راغلو او روستو ئے قمیص واغوستو۔ لکه دا خبره علامه سندیؒ په حاشیه د نسائی کښې ذکر کړیده۔

۲- بعض وائی : تطبیق داسے دے چه دلته په حدیث د جابر کښې راویستل د قبر نه په هغه باندے د لاړو تو کلو دپاره وو نهٔ د قمیص ورکولو دپاره او قمیص ئے مخکښې ورکړے وو۔ او دواړه ئے په واو سره جمع کړیدی او واو دلالت په ترتیب باندے نهٔ کوی، مخکښې خبره ئے روستو کړیده او روستنئ خبره ئے مخکښې ذکر کړیده۔

۳- علامه عراقیؒ په طرح التثریب کښې داسے تطبیق کوی : حدیث د ابن عمرؓ په د خپل ظاهر نه اړولے شی پدے طریقه چه د هغه ځوی د کفن ورکولو او د قبر ته د داخلولو نه روستو مطالبه اُوکړه، یا دا چه په اول د مرګ کښې ئے مطالبه کړے وه لیکن رسول الله ﷺ ورته هله ورکړو چه قبر ته داخل کړے شو، او په (فَاَعْطَاهُ قَمِيْصَهُ) کښې چه کومه فاء ده نو هغه ددے منافی نهٔ ده ځکه

چه زمانه د تجهيز ددهٔ معمولي وه چه دا منافي د تعقيب نهٔ ده۔

**٢- اشكال :** دويم اشكال دا دے چه رسول الله ﷺ خو د سورة توبے په آيت ﴿ وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ ﴾۔ (په هيڅ يو تن د منافقانو جنازه مهٔ كوه او د هغه په قبر باندے مه اُودريږه) سره د منافقانو د جنازے نه او د هغوى قبر ته ورتلو نه منع شويدے نو بيا رسول الله ﷺ ولے ددے رئيس المنافقين جنازه اُوكړه او قبر خو ا ته ورغلو؟۔

ددے اشكال مختلف جوابونه مفسرينو ليكلى دى او په شروح الحديث كښ ذكر شويدى، دلته صرف دا جواب زده كول پكار دى چه دا واقعه په هغه وخت كښ وه چه رسول الله ﷺ ددے كارونو نه نهٔ وو منع شوے ليكن كله چه رسول الله ﷺ ددے منافق سره دا معامله اُوكړه نو ددے نه روستو دغه آيت نازل شو بيا رسول الله ﷺ په منافقانو باندے مونځونه پريخودل۔ (تفسير الطبرى وابن كثير)۔ او په آيت (استغفر لهم اولا تستغفر لهم كښ ورته اختيار وركړے شوے وو۔ بيا منع شو۔

**فوائد الحديث :** ١- نبى ﷺ منافق ته قميص وركړو دپاره د دلجوئى د ځوى د هغه چه عبد الله وو۔ دے دپاره چه په اسلام بنه پوخ شى۔ دے نه معلومه شوه چه د مسلمان او د ملګرى دلجوئى او خيال ساتل پكار دى۔

٢- نبى ﷺ به د چا احسان په ځان نهٔ پريخودلو بلكه چه چا به ورسره احسان اُوكړو نو په دنيا كښ به ئے ضرور د هغه بدله وركوله لكه نبى ﷺ ديوے زنانه د مشكيزو نه اُوبه راخستے وے بيا ئے ورله بيرته وركړے ليكن ددے په بدله كښ ئے د هغه زنانه په كلى باندے حمله نهٔ كوله۔ او دغسے نور ډير واقعات موجود دى۔

٣- دغه شخص مشرك وو نو د رسول الله ﷺ قميص اګركه د ډير بركت والا وو ليكن هغه ته ئے هيڅ فائده ورنكړه نو مشرك كه هرڅومره حجونه اُوكړى او زكوتونه وركړى او نور عبادتونه اُوكړى نو د آخرت په لحاظ پدے باندے هيڅ اجر نشته۔ ددے وجه نه رسول الله ﷺ ته دا معلومه وه چه دهٔ ته زما دا قميص هيڅ فائده نهٔ وركوى عمر فاروقؓ چه كله ورته اُووئيل يا رسول الله ! دهٔ باندے جنازه مهٔ كوه نو هغه ورته اُوفرمايل: ما پريده ما له الله تعالىٰ د دوى په باره كښ اختيار راكړيدے چه دوى له كه بخنه غواړے او كه نهٔ الله تعالىٰ ورته بخنه نهٔ كوى۔ ليكن دا جنازه كول او قميص وركول صرف د ژوندو د خيال ساتلو دپاره وو۔ او د احسان بدله وه۔

٤- د بعض رواياتو نه دا معلومه شوه چه دا قميص وركول د ځوى دلجوى وه، يا د ځوى مطالبه وه، يا د احسان بدله وه، دا ټولے خبرے صحيح دى او كيدے شى چه ځوى مطالبه هم كړے

وه او رسول الله ﷺ په زرۀ کښې د احسان بدله ورکول هم مقصد وو او د څوی دلجوئی ئے هم مقصد وه۔

٥– ګنډلے شوے قمیص مړی ته په کفن کښې ورکول هم جائز دی۔ او پدے باندے امام بخاری ترجمة الباب لګولے دے باب القمیص الذی یکف اولا یکف۔ اګرکه بهتر دا ده چه بغیر د قمیص نه وی۔کما تقدم۔

## مسائل الباب :

١– په کفن کښې افضل دا ده چه درے لفافے وی ځکه چه همدا په صحیح حدیث کښې ثابت دے۔ او د نبی ﷺ سره همدا کار شویدے۔ اګرکه په قمیص او لنګ کښې هم کفن ورکول جائز دی۔ رسول الله ﷺ یو صحابی ته د هغه په کوټ کښې کفن ورکړے وو۔ (رواه الحاکم ٣/٥٩)۔

٢– په قبر کښې د مړی د کفن غوټے سپړدل افضل عمل دے۔ لکه ابن ابی الدنیا په مجابی الدعاء رقم (٤١) ص (٥٢) کښې د ابو هریره ﷺ نه نقل کړیدی چه مونږ د علاء بن الحضرمی نه درے خصلتونه اُولیدل چه د هغه نه مخکښې او روستو هیڅوا نه مونږ دی لیدلی..... مونږ هغه له قبر اُوکنستلو او په لحد کښې مو کیخودو نو مونږ ته یاد شو چه مونږ غوټے ئې دی سپړدلی نو مونږ چه کله خختے پورته کړے نو په لحد کښې مو هیڅ اُونۀ لیدل۔ (هیثمی فی المجمع ٩/٣٧٦) (وفی سنده ابراهیم مجهول لکن لیس هو فی اسناد ابن ابی الدنیا) فالحدیث حسن بمجموع الطریقین۔

حدیث کښې دی چه نبی ﷺ دا کار د نعیم بن مسعود الاشجعی سره کړے وو۔ او دغه شان د ابن مسعود او سمره بن جندب نه نقل دی۔ (المغنی لابن قدامة ٢/٣٧٩)۔

(٣) په یوه کپړه کښې ډیرو کسانو ته هم کفن ورکول جائز دی کله چه ضرورت راپیښ شی او کپړه کمه وی او مړی زیات وی۔ نو چا ته چه قرآن زیات یاد وی، هغه به قبلے ته وړاندے کړے شی او وریسے به هغه څوک چه د مخکښې نه ئے قرآن کم یاد وی۔لکه نبی ﷺ دغه شان حکم کړے وو په باره د شهیدانو د اُحُد کښې۔لیکن د یوے کپړے نه مراد ما فوق الثیاب غټه کپړه ده، بربنډ دوه مړی په یوه کپړه کښې ندی تاؤ شوی کما قال شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله۔

(٤) په کفن کښې درے کرتے خوشبوئی او عطر استعمالول سنت عمل دے لکه نبی ﷺ فرمائی : (اِذَا جَمَّرْتُمُ الْمَيِّتَ فَاَجْمِرُوْهُ ثَلَاثًا) (احمد)۔(کله چه تاسو مړی خوشبویه کوئ نو درے کرته ئې خوشبویه کړئ) او د محرم په باره کښې مخکښې تیر شو چه هغه به نشی خوشبویه کولے نو معلومه شوه چه غیر محرم له خوشبوئی استعمالول په کفن کښې او په ځایونو د اُوداسه کښې سنت عمل دے۔

(٥) كله چه يو انسان بغير د كفن نه خخ كړے شي نو آيا دوباره به راويستلے شي؟ آو، پداسے حالت كښ د مړي راويستل ضروري دي لكه دليل مخكښ ذكر شو چه نبي ﷺ عبد الله بن ابي د قبر نه راويستو پس د هغے نه چه قبر ته داخل شوے وو او هغه ته ئے قميص ورواغوستو۔ نو دغه شان د بل ضرورت د وجه نه لكه زمكه لونده وي د مړي راويستل او بل ځائے خخول جائز دي۔او علامه شوكانيؒ پدے باره كښ د صحابه كرامو آثار راوړيدي (نيل الاوطار (١٦٧/٤) فتاوى الدين الخالص (١٢٢/٧) ـ بخاري كښ دي باب اخراج الميت لعلة۔د عذر په وجه مړے د قبر نه راويستل جائزدي۔

(٦) احناف علماء وائي چه عالِم له به پس د مرگ نه په كفن كښ پتكے هم وهلے شي او دا مستحب گڼري حال دا چه دا كار بدعت دے۔ (الفتاوى الثنائية ٦٠/٢) ـدا كار په خير القرون كښ نۀ دے شوے۔ د ابن عمرؓ نه نقل دے ليكن هغه د هغوي اجتهاد دے۔ كما في ابن ابي شيبه (٢٥٩/٣)۔

(٧) كافر او مشرك به بغير د كفن او بغير د مانځه نه خخولے شي او خپلوان به ئے دفن كري او كفن دفن به ورله د سنت په طريقه نۀ كوي لكه حديث كښ دي چه علي ﷺ ته نبي ﷺ اُوفرمايل : كله چه د هغه پلار (ابو طالب) وفات شو۔(اِذْهَبْ فَوَارِ اَبَاكَ)۔ (لاړ شه پلار دِے پټ كړه) دا هم دليل دے چه مشرك به هم دفن كولے شي او نزدے خپلوان به ئے پټوي او دا ورسره دنيوي احسان دے۔ او دا دليل دے چه د كافرانو خخول هم ضروري دي۔ او دا د اسلام كمال او سماحت دے۔

(٨) كه ښځه مړه شوي وي نو دهغے په نعش (كټ) باندے پرده اچول د صحابه كرامو نه نقل دي لكه فاطمے رضي الله عنها پدے باندے وصيت كړے وو۔ (البيهقي ٣٤/٤) ونصب الراية (٢٥١/٢)۔ ابن عبد البرؒ فرمائي: فاطمه اولنۍ هغه زنانه وه چه د هغے په كټ باندے دولۍ جوړه شوے وه ددے نه بعد بيا د زينب بنت جحش په كټ باندے دولۍ جوړه شوه۔ (عون المعبود ٣٣٨/٨)۔

(٩) مړي ته د غسل وركولو ډير فضيلت او اجر په احاديثو كښ راغلے دے ابورافع ﷺ د رسول الله ﷺ نه نقل كوي فرمائي : (مَنْ غَسَّلَ مُسْلِمًا فَكَتَمَ عَلَيْهِ غَفَرَلَهُ اللّٰهُ اَرْبَعِيْنَ مَرَّةً وَمَنْ حَفَرَ لَهُ فَأَجَنَّهُ، أُجْرِيَ عَلَيْهِ كَأَجْرِ مَسْكَنٍ أَسْكَنَهُ إِيَّاهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، وَمَنْ كَفَّنَهُ كَسَاهُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ سُنْدُسِ وَإِسْتَبْرَقِ الْجَنَّةِ) (حاكم ٣٥٤/١) بيهقي (٣٩٥/٣) وصححه الالباني في الجنائز (٥١)۔

(چا چه مسلمان ته غسل وركړو او د هغه عيبونه ئے پټ كړل الله تعالىٰ به ورته څلويښت كرته بخنه اُوكړي او چا چه ورله قبر اُوكنستو او پكښ پټ ئے كړو، دومره اجر به الله تعالىٰ وركړي لكه چه په يو كور كښ ئے تر قيامته پورے اُوسولے وي، او چا چه كفن وركړو نو د قيامت په ورځ به ورته الله تعالىٰ د جنت د اعلىٰ وريښمينو كپړو نه واغوندي)۔ وبالله التوفيق۔

# باب المشي بالجنازة والصلاة عليها

## د جنازے د وړلو او په هغې باندے د مانځه بیان

دلته د جنازے د کټ وړلو آداب او په مړي باندے د مانځه کولو احکام بیانوي۔
د جنازے سره پیاده او سوریدلو دواړو حالتونو کښې تلل جائز دي اګرکه پیاده تلل افضل دي۔ حافظ ابن قیمؒ فرمائي : که په سورلۍ جنازے سره ځي نو بیا سنت دا ده چه د جنازے نه روستو روستو روان وي او که پیاده مزل کوي نو جنازے ته نزدے، یا مخکښې یا ښي یا ګس طرف ته تلل د خلفاء راشدینو طریقه وه۔ (زاد المعاد ۱/۴۹۸)۔
او روستو حدیث راروان دے چه همدغسے نبي ﷺ هم فرمائیلي دي اول حدیث د فصل ثاني اُوګوره۔
**د جنازے حکم :** د جنازے مونځ فرض کفائي دے یعنې که څه کسانو جنازه اُوکړه نو د ټولو د ذمے نه فرضیت ساقطیږي لیکن کونکو ته اجر ملاو شو او نۀ کونکي د عظیم خیر نه محروم دي۔ او که هیڅ جنازه اُونکړه نو د علاقے ټول مسلمانان به ګناهګار وي۔

### الفصل الأول

١٦٦٥ (١) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« أَسْرِعُوْا بِالْجَنَازَةِ فَإِنْ تَكُ صَالِحَةً فَخَيْرٌ تُقَدِّمُوْنَهَا إِلَيْهِ وَإِنْ تَكُ سِوَى ذٰلِكَ فَشَرٌّ تَضَعُوْنَهُ عَنْ رِقَابِكُمْ ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او ابو هریره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمایلي دي : « جنازه په جلتۍ سره (مقبرے ته) بوسئ (ګور کښې ئے ډیر مۀ ایساروئ) ځکه که دا نیک عمله وي نو (ددۀ دپاره) خیر دے چه تاسو ئے هغے ته ورمخکښې کوئ او که دا جنازه ددے نه سوئ (یعنې بد عمله) وي نو دا شر دے چه تاسو ئے د خپلو اُوګو نه ایږدئ » (او خپله ذمه واري فارغه کوئ)۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔
**تشریح :** د جنازے په جلتۍ سره وړلو یو مطلب دا دے چه په تجهیز او تکفین کښې جلتي اُوکړئ او بے ضرورته ئے مۀ ایساروئ ځکه چه دا به یا نیک وي نو الله تعالیٰ به ورله ښۀ ښه نعمتونه تیار کړي وي، هغے ته ئے په جلتۍ سره ورَوستل پکار دي او که شر وي نو خپل ځانونه

ترے فارغ كول پكار دی۔

۲- دويم مطلب دا دے چه كله تاسو د دفن كولو دپاره جنازه وړئ نو په جلتئ سره ئے وړئ او ډير نزدے قدمونه مه اخلئ بلكه درميانه مزل كوئ او د عام مزل نه به لږ تيز وی او منډه وهل مراد نه دی او نه تو پونو سره وړل څكه چه دے كښ د مړی د خرابيدو امكان دے۔ او وړوكونكو ته تكليف وی او ددے نه په احاديثو كښ منع راغلے ده۔ او همدا مطلب ظاهر دے څكه بل روايت كښ احتملها الرجال على اعناقهم راغلی دی لكه روستو حديث أوګوره۔

حافظ ابن قيمؒ په زاد المعاد كښ د خپلے زمانے په يو رواج باندے رد كوی فرمائی :

(وَأَمَّا دَبِيبُ النَّاسِ الْيَوْمَ خُطْوَةً خُطْوَةً فَبِدْعَةٌ مَكْرُوهَةٌ، مُخَالِفٌ لِلسُّنَّةِ وَمُتَضَمِّنَةٌ لِلتَّشَبُّهِ بِأَهْلِ الْكِتَابِ الْيَهُودِ) (زاد المعاد ١/٤٩٨)۔

(نن سبا خلق چه په (جنازه وړلو كښ) په آرام آرام قدمونه اخلی نو دا بدعت او مكروه كار دے، د سنت مخالف دے او د اهل كتاب يهوديانو مشابهت دے او ابوبكره ﷺ به پدے كار باندے خلق په چابك وهل او دا به ئے فرمائيل چه مونږ د رسول الله ﷺ په زمانه كښ د هغه سره په جلتئ مزل كولو)۔

**فَخَيْرٌ** : دا خبر د مبتدا محذوف دے ای فهی (ای الجنازة) خير۔

**تُقَدِّمُوْنَهَا**: په تشديد د دال سره د باب تفعيل نه۔ (يا فَلَهَا خَيْرٌ تُقَدِّمُوْنَهَا اِلَيْهِ) ۔يعنی دے دپاره خير تيار دے چه تاسو ئے ورته وروړاندے كوئ۔

**فَشَرٌّ تَضَعُوْنَهُ عَنْ رِقَابِكُمْ** : نو هركله چه دا شر دے نو دا د رحمت نه وړاندے دے بس د ځان نه ئے جدا كول پكار دی۔

ددے نه دا معلومه شوه چه بد عمله خلقو سره محبت او دوستانه كول حرام دی۔

دا حديث دليل دے چه د مړی په تكفين او تجهيز كښ جلتی كول ضروری دی او ډيره موده د مړو ايسارول چه فلانے د فلانی علاقے نه راروان دے هغه ته ئے يوه ورځ او دوه ورځے ايساروی نو دا كار بدعت او حرام دے۔

او جنايت دے په مړی باندے څكه كه هغه له خير تيار شوے وی نو ته هغه ولے روستو كوے د هغه حق ضائع كوے۔ او كه هغه راشی نو هغه ته به څه فائده د مړی نه ملاؤ شی يا به هغه مړی ته څه فائده وركړی نو دا ډير قبيح عادت دے چه زمونږ په پختنو ورونو كښ رائج دے۔ كه څوك دا دليل پيش كړی چه نبی ﷺ د يوم الاثنين نه تر يوم الاربعاء پورے ايسار شوے وو نو مونږ وايو چه صحيح ده ليكن هغه ئے پدے وجه ايسار كړے وو چه د هغه مرګ د امت دپاره

لویه سانحه او عظیم مصیبت وو او امت بغیر د امام او خلیفه نه پاتې شو نو صحابه کرامؓ روستو کړې وو تردې چه د ابوبکرؓ سره بیعت اُوکړې شو. او پدې کښې اشاره وه چه د مسلمانانو دپاره د خلیفه دومره ضرورت دې چه رسول الله ﷺ ئې د دفن کولو نه ایسار کړې وو. او کوم قول چه ابن حزم او البانی رحمهما الله اختیار کړې چه تاخیر افضل دې یو ورځ پورې نو هغه قول مرجوح دې د دوه وجوهاتو نه یو دا چه حدیث کښې امر په اسراع راغلې دې. دویم دا چه د بیهوشئ او سکتې بیمار انسان دپاره افضل دا ده چه یوه ورځ پورې ایسار کړې شی کیدې شی چه روح ترې وتلې نه وی. او بیهوشه وی. لکه حسن بصریؒ د بیهوشه انسان په باره کښې وئیلی دی چه درې ورځو پورې به نشی خښولې. او د نبی ﷺ تاخیر د ضرورت په بناء وو. الدین الخالص (٧/٢٦٠)

او دا حدیث دلیل دې چه کله جنازه د مړی اُوشی نو د هغه ایسارول د دعاء یا د هغه د ګتلو دپاره هم نۀ دی جائز.

---

١٦٤٦ (٢) – وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِذَا وُضِعَتِ الْجَنَازَةُ فَاحْتَمَلَهَا الرِّجَالُ عَلٰى أَعْنَاقِهِمْ فَإِنْ كَانَتْ صَالِحَةً قَالَتْ: قَدِّمُوْنِيْ وَإِنْ كَانَتْ غَيْرَ صَالِحَةٍ قَالَتْ لِأَهْلِهَا: يَا وَيْلَهَا أَيْنَ يَذْهَبُوْنَ بِهَا؟ يَسْمَعُ صَوْتَهَا كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا الْإِنْسَانَ وَلَوْ سَمِعَ الْإِنْسَانُ لَصَعِقَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه: او ابوسعید خدری ؓ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی: «کله چه جنازه پورته کړې شی او سړی ئې په خپلو څټونو راپورته کړی نو که دا نیک عمله وی، وائی: ما په جلتئ سره (خپل منزل ته) بوځئ او که بد عمله وی نو خپل جنازې والو ته وائی: هائې هلاکت! ما کوم طرف ته بوځی. ددې جنازې آواز سویٰ د انسان نه هر شې آوری او که انسان آوریدلې نو هغه به بې هوشه کیدې». (بخاریؒ).

تشریح: إِذَا وُضِعَتِ الْجَنَازَةُ: ددې یو مطلب دا دې چه کله چه جنازه یعنی مړې په کټ باندې کیخودلې شی او بیا ئې سړی په څټونو راپورته کړی. ٢– یا ددې نه مراد کټ دې یعنی کله چه د مړی کټ د خلقو په اُوګو کیخودلې شی او سړی ئې راپورته کړی. نو فاحتملها الرجال به تفصیل وی د وضعت الجنازة دپاره. لیکن اول احتمال غوره دې. ځکه روستو (فان تك صالحة) ورسره موافقت کوی ځکه چه د هغې نه مراد مړې دې. او ددې تائید په حدیث د

ابو هريره كښې په روايت د نسائي، ابوداود الطيالسي كښې داسې راغلي دي : (إِذَا وُضِعَ الرَّجُلُ الصَّالِحُ عَلَى سَرِيرِهِ) ـ(كله چه نيك سړے په كټ باندے كيخودے شي) علامه سندیؒ فرمائي: همدا مطلب متعين دے۔ ځكه چه دويم احتمال كښې تكرار لازميږي۔

٣- على القاري داسې معنىٰ كوي : (إِذَا وُضِعَتِ الْجَنَازَةُ أَيْ بَيْنَ يَدَيِ الرِّجَالِ وَهُيِّئَتْ لِيَحْمِلُوهَا) (مرقاة ٥/٣٨٨)۔

(كله چه جنازه د سړو مخې ته كيخودلے شي او د هغوي د پورته كولو دپاره تياره شي)۔

**قالت** : يعني په ژبه سره په حروف او آواز سره داسې وينا كوي چه ما خپلو نعمتونو ته په جلتۍ سره يوسئ۔ او دا وينا په حقيقت باندے بناه ده، هيڅ تاويل ته ضرورت نشته، الله تعالىٰ قادر دے چه په مړي كښې نطق او خبرے پيدا كړي او نبي ﷺ ددے خبر وركړيدے او آخر د حديث كښې دا الفاظ دي : (يَسْمَعُ صَوْتَهَا) ـ ددے آواز هر شے آوري) دا هم دليل دے چه دا آواز په خپل حقيقت بناه دے۔ او په لسان الحال سره وينا مراد نۀ ده۔

بعض وائي : روح ئے دا وينا كوي يا دا چه بدن نه دا آواز راوځي پدے وجه چه روح ورته راواپس شوے وي۔ ليكن دا صرف احتمالات دي او الله تعالىٰ د مړي نه د خبرو په ويستلو قادر دے۔

اورسول الله ﷺ مونږ ته دا خبر راكړيدے چه هر مړے داسې خبرے كوي مونږ له پدے باندے يقين پكار دے۔ اگركه مونږ خبرے د مړي نۀ آورو۔

**يَا وَيْلَهَا** : يعني هلاكت دے دے جنازے لره يعني هلاكت ته آوازونه كوي چه اے زما هلاكته حاضر شه دا ستا وقت دے۔ د هلاكت اضافت ئے ضمير د غائب ته اُوكړو اشاره ده چه دا هلاكت دومره بد گڼړي چه ځان ته ئے نۀ مضاف كوي۔ داسې نۀ وائي : يا ويلي۔ (ما لره هلاكت دے)

**كُلُّ شَيْءٍ** : هر شے ئے آواز اوري تردے چه جمادات ئے هم آواز اوري، بعض وائي : دهر شي نه مراد د حيواناتو نه هر حيوان ئے اوري۔ ليكن عموم بنه دے۔

**لَصَعِقَ**: دا په باره د بد عمله انسان كښې دے چه د هغه د خولے نه داسې يرونكي آوازونه او چغے راوځي چه كه انسانانو هغه اوريدلے نو بے هوشي به پرے راتلے۔ او هرچه نيك عمل انسان دے نو هغه نرمۍ سره خبرے كوي او چغے نۀ وهي ځكه چه چغے د هغه د شان مناسب نۀ دي۔

**فائده** : امام بخاريؒ دا حديث دليل گرځولے دے ددے دپاره چه جنازه به سړي پورته كوي او زنانه د دپاره دا كار جائز نۀ دے ځكه چه يو خو هغوي سره مناسب پرده كول دي او په جنازه وړلو او پورته كولو كښې د هغوي نه بے سترے كيږي۔ دويم : پدے سره اختلاط د زنانه او سړو راځي۔ دريم : په هغوي كښې د ضعف، او د جزع فزع ماده زياته ده۔ او پدے خبره باندے امام نوويؒ په

شرح المهذب کښې اجماع نقل کړيده۔

---

**١٦٤٧ (٣) ـ وَعَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« إِذَا رَأَيْتُمُ الْجِنَازَةَ فَقُوْمُوْا فَمَنْ تَبِعَهَا فَلَا يَقْعُدْ حَتّٰى تُوْضَعَ ».مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه :** او ابو سعيد ﷺ فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي :« کله چه تاسو جنازه وينئ نو هغې ته اُودرېږئ او څوك چه د جنازې سره روان وي نو هغه دې نۀ کينې تردې چه جنازه کيخودې شي»۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)۔

**تشريح : فَقُوْمُوْا:** دا امر دلالت کوي چه جنازه چه کله تيرېږي نو هغې ته د ځائې نه پاڅيدل پکار دي او ددې علت په احاديثو کښې دا بيان شويدې چه مرگ يو گبراهټ لري، بل طرفته د نفس انساني يو حق دې نو پاڅيدل پکار دي او بيا جنازه عامه ده که د مؤمن جنازه وي او که د کافر لکه نبي ﷺ د يهودي جنازې ته پاڅيدلو او کله چه ترې د پاڅيدو وجه اُوتپوسلې شوه نو وې فرمايل : (أَلَيْسَتْ نَفْسًا) (آيا دا کښې نفس انساني نۀ دې)۔

٢- دويم علت دا دې چه دا د هغه ملائکو د اکرام دپاره پاڅيدل دي کوم چه د مړي سره وي۔ لکه په حديث د انسؓ کښې په روايت د نسائي او حاکم کښې دي۔ (إِنَّمَا قُمْنَا لِلْمَلَائِكَةِ)۔ ٣- په روايت د بيهقي کښې دي چه تاسو خو هغه ملائك (ملك الموت) دپاره پاڅيږئ چه روحونه قبض کوي۔ ٤- يا د هغه الله تعالیٰ د تعظيم دپاره چه روحونه اخلي۔ (ابن حبان) پدې تعليلاتو کښې هيڅ منافات او تعارض نشته ځکه چه ددې ټولو د وجه نه دا پاڅيدل کيدې شي۔

**مسئله :** جنازې ته پاڅيدل دوه قسمه دي :

(١) يو د هغه انسان پاڅيدل چه جنازه ويني او ورسره نۀ ځي۔ يعني په هغه باندې جنازه راتيره شي او ددۀ پرې نظر پريوځي۔ نو ددې په حکم کښې د اهل علمو اختلاف دې۔

(١) ابن عبد البرؒ په التمهيد کښې ليکلي دي چه يو جماعت د سلفو او خلفو دې ته ذهاب کړيدې چه دا قسم پاڅيدل واجب دي۔

(٢) او جمهور علماء (مالك، شافعي، ابوحنيفه او صاحبين) وائي : دا حکم منسوخ دې۔

(٣) او د امام احمدؒ او د هغه د موافقينو په نيز مستحب دې۔ اول کښې دا واجب وو بيا وجوب ختم شو او استحباب باقي دې۔ علامه شوکانيؒ فرمائي : امام احمدؒ، اسحاقؒ او ابن حبيبؒ او ابن الماجشونؒ ويلي دي چه جنازې ته پاڅيدل او کيناستل نۀ دي منسوخ بلکه د روستو حديث د علىؓ نه دا معلوميږي چه دا حکم د بيان د جواز دپاره دې که څوك ناست وي (او پاڅيدل

اُونكړي) نو هم جائز ده او كه څوك پاڅيدلو نو اجرئے كيږي۔ او دغه شان ابن حزم رحمه الله هم فرمائي : چه د رسول الله ﷺ نهٔ پاڅيدل پس ددے نه چه امرئے په پاڅيدلو كړے وو دلالت كوي چه دا امر د استحباب او ندب دپاره دے او ديته منسوخ وئيل صحيح نهٔ دي۔ ځكه چه يقيني سنت پريخودل جائز نهٔ دي مګر په يقيني نسخ سره او نسخ خو يا په نهي سره وي يا په هغه ترك سره وي چه نهي ورسره وي۔ آه۔ (المحلى ١٠٦/٥ طبع دار احياء التراث العربى بيروت)۔

بيا شوكانيؒ فرمائي : او دے استحباب ته ابن عمر، ابو مسعود، قيس بن سعد او سهل بن حنيف رضى الله عنهم ذهاب كړيدے او مجد ابن تيمية په المنتقىٰ كښ د هغوي دير روايات جمع كړيدي۔

**دليل الجمهور:** د جمهور اهل علمو دليل روستو حديث د عليؓ دے چه په هغے كښ دي : (قَامَ فِي الْجَنَازَةِ ثُمَّ قَعَدَ بَعْدُ) (ابوداود ومالك) چه رسول الله ﷺ به په اول كښ جنازے ته پاڅيدو بيا به روستو نهٔ پاڅيدو)۔ وائي چه دا حديث صريح دے چه دا حكم منسوخ دے۔ ددے نه نور علماء چه قائل د استحباب دي دا جواب وركوي چه دا مجرد فعل د نبي ﷺ دے دا په نسخ باندے دلالت نهٔ كوي ځكه چه دا احتمال شته چه نبي ﷺ د بيان د جواز دپاره ناست وي۔ او كوم روايت كښ چه ورسره دا لفظ راغلے دے :(وَأَمَرَنَا بِالْجُلُوسِ)۔ (مونږ ته ئے په ناسته باندے حكم كړيدے) نو دا شاذ دے او عام مُخرّجينو د حديث پكښ دا الفاظ نهٔ دي ذكر كړي نو د نسخ دپاره پدے باندے تمسك كول صحيح نهٔ دي۔ (قاله الشوكانيؒ)

علامه ابن حزمؒ فرمائي : پدے كښ امر د اباحت او تخفيف دپاره دے ځكه چه ابو هريرةؓ او ابو سعيدؓ دواړه فرمائي : مونږ رسول الله ﷺ نهٔ دے ليدلے چه يو ے جنازے ته چرته حاضر شوے وي بيا ناست وي تردے چه جنازه كيخودلے شي)۔ نو پدے كښ د نبي ﷺ هميشه عمل ذكر دے نو ثابته شوه چه امر په ناسته باندے د اباحت او تخفيف دپاره دے او امر په اُودريدو باندے د استحباب دپاره دے۔ (المحلى ١٠٧/٥)۔

٢- **دليل :** دويم دليل دا ذكر كوي چه مجاهدؒ د ابو معمرؒ نه نقل كوي هغه فرمائي : مونږ د علي ﷺ سره وو نو هغه باندے يوه جنازه تيره شوه خلق هغے ته پاڅيدل نو عليؓ اُوفرمايل : دا څه دي؟ خلقو اُووئيل : د ابو موسى اشعريؓ امر دے۔ هغه اُوفرمايل : (إِنَّمَا قَامَ رَسُولُ اللهِ ﷺ لِجَنَازَةِ يَهُودِيَّةٍ وَلَمْ يَعُدْ بَعْدَ ذٰلِكَ) ۔(رسول الله ﷺ د يوے يهودئ زنانه جنازے ته پاڅيدلے وو او بيا ددے نه روستو دے كار ته نهٔ دے راواپس شوے) (النسائى)۔

ليكن پدے روايت كښ هم د نسخ او نهي هيڅ تذكره نشته۔

بل طرفته علتونه د پاځېدو دلیل دے چه دا حکم منسوخ نۀ دے اګرکه وجوب ئے منسوخ دے لیکن استحباب اُوس هم باقي دے ځکه چه دا دلالت کوي په هیبت او خطر د مرګ باندے۔ نو د امام احمد قول پدے باب کښې راجح او ظاهر معلومیږي۔

(۲) دویم قسم : د جنازے سره د تلونکي او روانیدونکي اُودریدل دي تردے چه د څټونو نه په زمکه کیخودلے شي نو دجنازے د ایخودلو نه مخکښې به نۀ کیني۔ لکه ددے حدیث دا الفاظ پرے دلالت کوي (فَمَنْ تَبِعَهَا فَلَا يَقْعُدْ حَتّٰى تُوْضَعَ) ۔ د توضع نه مراد کیخودل دي په زمکه یا کیخودل دي په لحد کښې۔

نو پدے مسئله کښې جمهور اهل علم وائي چه دا اُودریدل (او د جنازے د کیخودلو نه مخکښې نۀ کیناستل) مستحب دي او (فَلَا يَقْعُدْ) کښې نهي د قعود نه محمول ده په ندب باندے یعنې نهي تنزیهي ده۔ یعنې کیناستل مناسب نۀ دي او که څوك کیناستو نو جائز به وي۔ او دا قول د اوزاعیؒ، احمدؒ، اسحاق او محمد بن الحسن رحمهم الله دے۔ (نووی، ابن حجر عسقلانی)۔ او دا قول ابن المنذرؒ د اکثرو صحابه کرامؓ او تابعینؒ نه نقل کړیدے او فتح الباري کښې د شعبيؒ او نخعيؒ نه نقل کړے شویدے چه د جنازے د کیخودلو نه مخکښې کیناستل مکروه دي او دا قول د احناف او حنابله ؤ دے۔

(۲) دویم قول : د بعض سلفو نه نقل دي چه دا قسم قیام واجب دے تردے چه جنازه په زمکه کښې کیخودلے شي۔

۱- او دلیل ئے حدیث د ابو هریرهؓ او ابو سعید خدريؓ دے کوم چه مخکښې مسئله کښې تیر شو۔(مَا رَأَيْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ شَهِدَ جَنَازَةً قَطُّ فَجَلَسَ حَتّٰى تُوْضَعَ) (اخرجه النسائي باسناد حسن)۔

(مونږ رسول الله ﷺ نۀ دے لیدلے چه یوے جنازے ته کله حاضر شوے وي، او ناست وي مخکښې د کیخودلو نه)۔

دوي وائي چه دا دلالت کوي چه دا د رسول الله ﷺ دائمي عمل وو۔ لیکن علامه شوکانيؒ فرمائي : مخفي دے نۀ وي چه دا مجرد فعل دے دا د وجوب دپاره دلیل نۀ ګرځي نو غوره استدلال دویم دا دے :

۲- دلیل : پدے حدیث د ابو سعید خدريؓ کښې منع راغلے ده د کیناستلو نه او دا حقیقت دے په تحریم کښې او ترك د حرام واجب وي۔ دغه شان بل حدیث د ابو هریرهؓ کښې مرفوعاً دي : (مَنْ صَلّٰى عَلٰى جَنَازَةٍ وَلَمْ يَمْشِ مَعَهَا فَلْيَقُمْ حَتّٰى تَغِيْبَ عَنْهُ وَمَنْ مَشٰى مَعَهَا فَلَا يَقْعُدْ حَتّٰى تُوْضَعَ) (احمد ۲/۲٦٥) صحیح لغیره قاله شعیب الارنووط)۔

(څوك چه په يوه جنازه مونځ اُوكړي او د هغې سره لاړ نۀ شي نو هغه دے هله كينى چه جنازه د هغه د سترګو نه غائبه شي او څوك چه د جنازے سره روان شي نو تر هغه وخت پورے دے نۀ كينى چه جنازه كيخودلے شي)۔

پدے حديث كښې منع راغلے د كيناستو نه مخكښې د كيخودلو د جنازے نه په زمكه باندے۔

(۳) دريم قول : د بعض شوافعو دے چه دا حكم منسوخ دے۔ او كيناستل بالكل جائز دي۔

دليل : شيخ البانى رحمه الله په احكام الجنائز كښې ډير احاديث ذكر كړيدي چه هغه دلالت كوي چه دا حكم منسوخ دے۔ لكه مثلاً :

۱- روستو حديث د على بن ابى طالبؓ راروان دے (رَأَيْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَامَ فَقُمْنَا وَقَعَدَ فَقَعَدْنَا - يَعْنِي فِي الْجَنَازَةِ) (مسلم) وَفِيْ رِوَايَةٍ : كَانَ يَقُوْمُ فِي الْجَنَائِزِ ثُمَّ جَلَسَ بَعْدُ) (مالك ابوداود)۔

(مونږ رسول الله ﷺ ليدلے دے چه په جنازه كښې اُودريدلو نو مونږ هم اُودريدلو او هغه كيناستو مونږ هم كيناستو) په بل روايت كښې دي : نبى ﷺ به جنازو دپاره پاڅيدو تردے بيا روستو زمانه كښې به ناست وو)۔

۲- (عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا اتَّبَعَ الْجَنَازَةَ لَمْ يَقْعُدْ حَتّٰى تُوْضَعَ فِي اللَّحْدِ فَعَرَضَ لَهُ حِبْرٌ فَقَالَ : هٰكَذَا نَصْنَعُ يَا مُحَمَّدُ فَجَلَسَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ وَقَالَ اِجْلِسُوْا وَخَالِفُوْهُمْ) (صحيح ابن ماجه باسناد حسن عند الالبانى ضعيف عند الحافظ فى الفتح لان فى سنده بشر بن رافع ليس بالقوى فى الحديث وعبد الله بن سليمان ضعيف وابوه منكر الحديث (تقريب) وللحديث شواهد ضعيفة) (الارواء ۱۹۲/۳)۔

(عباده بن صامتؓ فرمائي : رسول الله ﷺ به چه كله د جنازے پسے روان شو نو نۀ به كيناستو تردے چه جنازه به په لحد كښې كيخودلے شوه نو هغه ته يو يهودي عالِم حاضر شو ورته ئے اُووئيل : اے محمد (ﷺ) دغه شان عمل زمونږ (هم) دے۔ نو رسول الله ﷺ كيناستو او وے فرمايل : كينئ او د يهودو مخالفت اُوكړئ)۔

دا حديث هم دليل دے چه دا حكم منسوخ شويدے۔

۳- مسعود بن الحكم فرمائي : زۀ په عراق كښې يوے جنازے ته حاضر شوم نو ما څه سړي ولاړ اُوليدل چه انتظار ئے كولو چه جنازه كيخودلے شي او على بن ابى طالبؓ مے اُوليدو چه هغوي ته ئے اشاره كوله چه كينئ ځكه چه نبى ﷺ به مونږ ته امر كولو په كيناستو پس د اُودريدو نه) (رواه الطحاوى باسناد حسن)۔

دا روايات دلالت كوي چه دا حكم منسوخ دے۔ دارنګه دا روايات پدے باندے هم دلالت كوي

چه دا حکم دے مستحب وی او کیناستل دے جائز وی لکه دا خبره امام احمد او اهل الظواهرو او بعض اهل الحدیث بلکه جمهور علماؤ غوره کړیده۔

حاصل دا شو چه په دے مسئله کښې هم راجح دا ده چه د جنازې د کیخودلو نه مخکښې نۀ کیناستل مستحب عمل دے او که څوك کیناستو نو جائز به وی۔ او دا خبره علامه عبید الله مبارکفوری رحمه الله هم راجح کړیده۔ او دلیل په استحباب دا دے چه ابو حازم رحمه الله فرمائی : (صَلَّيْتُ مَعَ أَبِي هُرَيْرَةَ وَابْنِ عُمَرَ وَابْنِ الزُّبَيْرِ وَالْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ أَمَامَ الْجَنَازَةِ حَتَّى انْتَهَيْنَا إِلَى الْمَقْبَرَةِ فَقَامُوا حَتَّى وُضِعَتْ ثُمَّ جَلَسُوا فَقُلْتُ لِبَعْضِهِمْ فَقَالَ : إِنَّ الْقَائِمَ مِثْلُ الْحَامِلِ يَعْنِي فِي الْأَجْرِ) (البيهقي ٢٧/٤)۔

(زۀ د ابو هریرة، ابن عمر، ابن زبیر او حسن بن علی رضی الله عنهم سره د جنازے نه مخکښې لاړم تردے چه مونږ مقبرے ته اُورسیدلو نو هغوی اُودریدل تردے چه جنازه کیخودے شوه بیا کیناستل، ما بعضو ته اُوویل: (دے اُودریدلو څۀ وجه ده؟) هغه اُوفرمایل : د اُودریدونکی اجر د پورته کونکی په شان دے)۔

نو دا حدیث دلیل دے چه د جنازے د کیخودلو نه مخکښې اُودریدل او نۀ کیناستل غوره عمل دے۔ والله تعالیٰ اعلم۔

---

١٦٤٨ (٤) - وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: مَرَّتْ جَنَازَةٌ فَقَامَ لَهَا رَسُولُ اللهِ ﷺ وَقُمْنَا مَعَهُ فَقُلْنَا : يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّهَا يَهُودِيَّةٌ فَقَالَ: «إِنَّ الْمَوْتَ فَزَعٌ فَإِذَا رَأَيْتُمُ الْجَنَازَةَ فَقُومُوا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائی : (یوه ورځ) یوه جنازه تیره شوه نو رسول الله ﷺ د هغے دپاره پاڅیدلو او مونږ (هم) د هغه سره پاڅیدو۔ مونږ تپوس اُوکړو اے د الله رسوله ! دا خو د یوے یهودئ (ښځے) جنازه وه ؟ نبی کریم ﷺ اُوفرمایل : «مرګ د خوف او ګبراهټ شے دے کله چه تاسو جنازه اُووینئ نو پاڅیږئ»۔ (بخاری ومسلم)۔

تشریح : إِنَّ الْمَوْتَ فَزَعٌ : یعنی مرګ یو یره او ګبراهټ او هیبت لری نو مرګ لوئی، کنړل پکار دی او مقصد د حدیث دا دے چه انسان له پکار دی چه مرګ اُووینی نو د غفلت نه راببدار شی او په ځان کښې یو شعور پیدا کړی۔

فَقُومُوا: یعنی د مرګ د ګبراهټ او هیبت د وجه نه پاڅیږئ نۀ د مړی د تعظیم دپاره۔ دا وجه ده چه د هر مړی جنازے ته پاڅیدل پکار دی اګرکه د کافر وی۔

د یهودی یا یهودئ جنازے ته د پاڅیدلو علتونۀ احادیثو کښې مختلف راغلی دی لکه هغه

مخکښې بحث کښې ذکر شو او هغه تول مراد کیدے شي دهغوی ترمینځ هیڅ تعارض نشته ځکه چه د یو شي دپاره د ډیرو علتونو کیدل منع نهٔ دي. او کوم روایت کښې چه دا علت راغلے دے چه د یهودي نه بد بوئي راغله د هغې د وجه نه پاڅیدو (احمدٌ) یا حسن بصريٌ فرمائي : نبي ﷺ دا مکروه گنړله چه د یهودي جنازه د هغه په سر باندے پورته نشي. (نسائي، طبراني) نو دا روایات د صحیح احادیثو معارضه نشي کولے. دویم دا چه دا تعلیلات راوي فهم کړیدي او په خپل اجتهاد سره ئې بیان کړیدي او نبي ﷺ نهٔ دي بیان کړي.(فتح الباري).

---

١٦٤٩ (٥) - وَعَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه قَالَ: رَأَيْنَا رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَامَ فَقُمْنَا وَقَعَدَ فَقَعَدْنَا يَعْنِي فِي الْجَنَازَةِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَفِيْ رِوَايَةِ مَالِكٍ وَأَبِيْ دَاوُدَ : قَامَ فِي الْجَنَازَةِ ثُمَّ قَعَدَ بَعْدُ.

---

ترجمه : او علي رضي الله عنه فرمائي : مونږ رسول الله ﷺ اُولیدو چه پاڅیدو مونږ (هم) پاڅیدو او هغه کیناستو نو مونږ هم کیناستو یعني په جنازه کښې. (مسلمٌ) . د مالك او ابوداود په روایت کښې دي: رسول الله ﷺ په جنازه کښې پاڅیدلے وو بیا د هغې نه روستو ناست وو.

تشریح : ثُمَّ قَعَدَ بَعْدُ : ددے دوه مطلبونه جوړیږي (١) یو دا چه نبي ﷺ د جنازے په لیدلو پاڅیدو او کله چه جنازه د هغه نه تیره شوه او د سترګو نه ئې وراندے شوه نو بیا کیناستو.

(٢) دویم مطلب دا چه نبي ﷺ به اول کښې جنازے ته پاڅیدو بیا ئې بالکلیه جنازے ته پاڅیدل پریښودل. نو نهٔ پاڅیدل د رسول الله ﷺ اخیري عمل شو. پدے کښې دا احتمال شته چه کوم حکم د پاڅیدو راغلے وو هغه د ندب او استحباب دپاره وو. او دا احتمال هم شته چه د اولئ حکم وجوب ئې منسوخ کړے وي. لیکن اول احتمال غوره دے ځکه چه احتمال د مجاز په امر کښې اولیٰ دے د دعوی د نسخ نه. (قاله البیضاويّ).

او دا حدیث د جمهورو علماؤ دپاره دلیل دے چه جنازے ته پاڅیدل منسوخ شویدي ځکه چه رسول الله ﷺ اول کښې پاڅیدلو او بیا به نهٔ پاڅیدو. لیکن امام نوويٌ دا جواب کړیدے چه دا حدیث د عليٌ صریح نهٔ دے په نسخ کښې ځکه چه دا احتمال شته چه د کیناستو حکم د جواز د بیانولو دپاره وي. نو دعوی د نسخ صحیح نهٔ ده ځکه چه نسخ په هغه وخت کښې وي چه د احادیثو ترمینځ جمع او تطبیق ممکن نهٔ وي او دلته جمع ئې ممکن ده. هغه دا چه د پاڅیدو حکم دے د استحباب دپاره شي لکه مخکښې تیر شو.

۱٦٥٠ (٦) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «مَنِ اتَّبَعَ جَنَازَةَ مُسْلِمٍ إِيْمَانًا وَاحْتِسَابًا وَكَانَ مَعَهُ حَتَّى يُصَلِّيَ عَلَيْهَا وَيَفْرُغَ مِنْ دَفْنِهَا فَإِنَّهُ يَرْجِعُ مِنَ الْأَجْرِ بِقِيْرَاطَيْنِ كُلُّ قِيْرَاطٍ مِثْلُ أُحُدٍ وَمَنْ صَلَّى عَلَيْهَا ثُمَّ رَجَعَ قَبْلَ أَنْ تُدْفَنَ فَإِنَّهُ يَرْجِعُ بِقِيْرَاطٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «څوك چه د يو مسلمان د جنازې سره د ايمان په حيثيت سره (يعنې د الله حكم منلو په غرض سره) او د ثواب د طلب كولو د خاطره روان شو او د جنازې سره وي ترڅو چه په هغې باندې مونځ اُوكړي او د هغې د دفن نه فارغ شي نو دا به په دوه قيراطه اجر سره راواپس كيږي چه هر قيراط به د اُحد (غر) برابر وي او څوك چه په جنازه مونځ اُوكړي بيا راواپس شي مخكښ د هغې د دفن كيدو نه نو دا به په يو قيراط (ثواب) سره راواپس كيږي». (بخاري ومسلم)۔

**تشريح : وَاحْتِسَابًا :** احتساب ديته وائي چه د يو عمل حساب اُولكوي چه په دې عمل كښې به ما ته الله تعالیٰ دومره دومره اجر راكوي يعني دپاره د ثواب گټلو لاړ شي، نهٔ د رياء يرې او بدلې وركولو دپاره۔

دا حديث دليل دې چه هر عمل كښې چه احتساب (ثواب گټلو) نيت نهٔ وي نو هغه عمل صالح (نيك) نهٔ دې۔

**حَتَّى يُصَلِّيَ عَلَيْهَا :** كه يُصلي معلوم صيغه شي بيا به مطلب دا شي چه دا ثواب به ورته هله حاصليږي چه خپله پرې مونځ هم اُوكړي۔ او دويم دا چه يُصلي صيغه د مجهول شي نو بيا به مطلب دا شي چه دا ثواب به دهٔ ته په هغه وخت كښې هم حاصليږي چه دا مانځه ته راونهٔ رسيږي او مونځ ترې فوت شوې وي ليكن د مانځه د وخت په اندازه د مړي سره ايسار وي نو دغه اجر به ورته ملاويږي۔ ليكن اول قول غوره دې چه دا دوه قيراطه ثواب به ورته هله ملاويږي چه مونځ هم پرې اُوكړي او بيا دفن ته هم حاضر شي۔

**قِيْرَاطٍ:** په اصل كښې قيراط د درهم دولسمې حصې ته وئيلې شي ليكن دا خو ډيره كمه اندازه ده نو ددې وجه نه رسول الله ﷺ د قيراط بيان اُوكړو چه دلته ترې مراد عظيمه حصه ده او يو انبار د اجرونو دې چه هغه الله تعالیٰ ته معلوم دې ليكن د پوهې دپاره رسول الله ﷺ د هغې مثال كښې د اُحد غر ذكر كړو چه يو قيراط د اُحد غر هومره دې۔

۱۶۵۱ (۷) – وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ : أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَعَى لِلنَّاسِ النَّجَاشِيَّ الْيَوْمَ الَّذِي مَاتَ فِيهِ وَخَرَجَ بِهِمْ إِلَى الْمُصَلَّى فَصَفَّ بِهِمْ وَكَبَّرَ أَرْبَعَ تَكْبِيرَاتٍ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه :** او ابو هريره ﷺ فرمائي : نبي كريم ﷺ خلقو ته د نجاشي (د حبشو بادشاه) د مرگ خبر په هغه ورځ ورکړو په کومه ورځ چه مړ شوے وو او صحابه کرامؓ ئے عيدگاه ته را اُوويستل او د هغوی سره ئے صفونه جوړ کړل او (په مانځه کښې ئے) څلور تکبيرونه اُوويل۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)۔

**تشريح :** نعي په اصل کښې د چا د مرگ خبر ورکولو ته وئيلے شي۔ قاموس کښې دي : (نَعَاهُ لَهُ نَعْوًا وَنَعْيًا وَنَعِيًّا أَخْبَرَهُ بِمَوْتِهِ)۔ يعني د هغه د مرگ خبرئے ورکړو۔ د جاهليت په زمانه کښې دا رواج وو چه کله به يو انسان مړ شو نو څو کسان به مقرر شو چه په بازارونو او کوڅو کښې اُوگرځی او په ژړا ژړا سره اعلانونه اُوکړی چه فلانے مړ دے۔ بيا مړ انسان چه به څومره اَهم شخصيت وو نو د هغے هومره زيات اهتمام به ئے کيدو۔ ديته به ئے نعي وئيله۔

نعي په دوه قسمه ده (۱) يو نعي حرامه ده رسول الله ﷺ ترے منع کړيده او هغه دا ده چه مسجد کښې اعلان کوی په لاوډ سپيکر وغيره يا د مسجد نه بهر اعلانونه کوی، په گاړوئے لاوډ سپيکر تړلے وی او په بازارونو او کلو کښې نعرے وهی چه اے خلقو فلانے مړ دے په فلانی وخت به ئے جنازه وی نو دا د رسول الله ﷺ صريح مخالفت دے او زمونږ دير اسلام ته منسوب ورونه بلکه د اسلام او د ديندارئ دعويداران دا کار په مسجد کښې کوی۔

(۲) دويم نعي جائز ده او دا هغه ده چه څه خاص کسانو ته خبر د مرگ اُوليږلے شی چه فلانے وفات دے۔ يا د موبائل وغيره په ذريعه ورته اطلاع ورکړے شی۔ يا څه کسان په مجلس کښې ناست وی هغوی ته خبر ورکړے شی بغير د اعلان او چغو وهلو نه نو دا جائز کار دے او رسول الله ﷺ هم د نجاشي بادشاه د مرگ خبر صحابه کرامو ته ورکړو او بيا ئے صحابه کرام ځان سره روان کړل او په هغه باندے ئے غائبانه جنازه اُوکړه۔

بعض صحابه کرامؓ به د نعي په باره کښې ډيره سختي کوله لکه حذيفه ﷺ چه به کله کوم مړے اُوشو نو دا به ئے فرمائيل : ددۀ هيچا ته خبر مۀ ورکوئ، ځکه يريږم چه دا به نعي وی، ځکه چه ما د رسول الله ﷺ نه پدے دواړو غوږونو اوريدلی دی چه هغه به د نعي نه منع کوله۔ (ترمذي، ابن ماجه باسناد حسن)۔

**فائده :** علامه ابوبکر بن العربيؒ فرمائي : د مجموعه احاديثو نه درے حالات اخستے شی

(١) يو دا چه كور والا، ملګري او نيكانو خلقو ته خبر وركړي نو دا سنت عمل دے۔
(٢) دويم دا چه حفل او مجلس راطلب كړي دپاره د فخر۔ دا مكروه كار دے۔ (٣) دريم دا چه په يوه بله طريقه اعلان اُوكړي لكه ژړا ګانې او ويرونه وغيره ګوي لكه د جاهليت والو په شان نو دا حرام ده۔ (المرعاة ٥/٣٧١)۔

**النَّجَاشِيّ** : په فتحه د نون او كسره دوارو سره۔ آخر كښې ياء مشدده ده لكه د يائي نسبتي په شان۔ بعض وائي : مخفف ده۔ دا د حبشو هر بادشاه ته وئيلے شو۔ ددهٔ نوم أَصْحَمَه وو، په عربئ كښې ئے معنئ ده عطيه۔ (ابن قتيبهٌ)

دا نجاشي بادشاه هغه شخصيت وو چه مسلمانانو ددهٔ ملك (حبشو) ته هجرت كړے وو او نبي ﷺ ورته د عمرو بن اميه الضمري په لاس په شپږم يا اُووم كال د هجرت د محرم په مياشت كښې خط ليږلے وو، كله چه دا خط ورته اُورسيدو نو هغه راواخستو او په خپلو سترګو ئے كيخودو او د خپل تخت نه راكوز شو او د تواضع د وجه نه په زمكه كيناستو۔ بيا ئے د جعفر بن ابي طالب ﷺ په لاس اسلام راوړو او نبي ﷺ ته ئے دے باره كښې خط راوليږلو۔ په رجب مياشت كښې په نهم هجري كښې وفات شو كله چه رسول الله ﷺ د تبوك نه واپس شو۔ او نبي ﷺ ددهٔ د مرګ خبر صحابه كرامو ته وركړو، او نبي ﷺ ته د وحي په ذريعه معلومه شوه چه نجاشي نن وفات دے۔

دا اهل سير او اهل تاريخ د يو جماعت قول دے۔ لكه واقدئ او ابن سعدٌ او ابن جريرٌ وغيره۔

ليكن حافظ ابن قيمٌ وئيلي دي چه د واقدئ دا خبره صحيح نهٔ ده ځكه چه هغه أَصْحَمَه نجاشي چه رسول الله ﷺ په هغه باندے د جنازے مونځ كړے وو دا هغه نجاشي نهٔ دے كوم ته ئے چه د عمرو بن اميه ضمري په واسطه خط ليږلے وو۔ بلكه د عمرو بن اميه په لاس چه كوم نجاشي ته خط رسيدلے وو هغه دويم نجاشي دے او هغه اسلام نهٔ دے قبول كړے لكه دا خبره علامه ابن حزمٌ هم كړيده۔ بعض وائي : كيدے شي چه د هغه نجاشي د وفات كيدو نه روستو خپل قائمقام بل بادشاه جوړ كړے وي او هغه ته رسول الله ﷺ په اوم كال خط ليږلے وي او همدا راجح معلوميږي۔ او عام خطوط د أوم كال نه روستو شروع شوي وو او بعض خطوط قبل الهجرت وو۔ حاصل دا شو چه نبي ﷺ دوارو ته خطونه د عمرو بن اميه يا بل صحابي په لاس ليږلي وو۔ نو د حديث د مسلم او ددے رواياتو تعارض نشته۔ چه نبي ﷺ كوم نجاشي ته خط ليږلے وو نو هغه غير وو د هغه نجاشي نه چه په كوم باندے ئے مونځ كړے وو۔ (مسلم)۔

نجاشي د مهاجرين اولين مسلمانانو سره ډير احسان كړے وو كله چه دوي د قريشو د تكليفونو

نه هجرت أوكړو نو نجاشي ورته ځائي ورکړو او په خپلو ښارونو کښې ئې ورته امن ورکړو او د قريشو د ضرر نه ئې محفوظ کړل بيا نيك نيتئ او انابت دے ته راخکلو چه اسلام ئې راوړو او د رسول الله ﷺ د دين د انصارو (مددګارو) نه حساب شو، نو ددے احسان د بدلے د وجه نه او د أوچت مقام د هغه نه رسول الله ﷺ په هغه باندے غائبانه جنازه أوكړه۔

اَلْيَوْمِ الَّذِيْ مَاتَ فِيْهِ: دا د رجب مياشت وه نهم هجري د رسول الله ﷺ د تبوك نه د واپسئ وخت وو۔ او دا د رسول الله ﷺ د نبوت عظيمه معجزه وه چه د مدينے او د حبشو ترمينځ ډيره مسافه او وراندے والے دے او هيڅ ذرائع ابلاغ هم نشته او بيا هم په هغه ورځ د وفات د هغه باندے خبر ورکوی نو دا صرف د وحي په ذريعه کيدے شي۔

اِلَى الْمُصَلّٰى : ددے مصلي نه مراد جنازګاه ده چه په بقيع الغرقد کښې تياره شوے وه لکه په روايت د ابن ماجه کښې دی : (فَخَرَجَ وَاَصْحَابُهٗ اِلَى الْبَقِيْعِ) ۔(نبي ﷺ او د هغه صحابه کرام بقيع ته أووتل) او دا د اخترونو د مونځونو والا عيدګاه نۀ وه۔ او حافظ وئيلي دی چه دا جنازګاه د مسجد په خوا کښې يو ځائے وو۔ ابن بطال د ابن حبيبؒ نه نقل کړيدی چه دا د مسجد نبوی سره پيوست يو ځائے وو د مشرقي جانب نه.

بيا ددے حديث نه دا مسئله هم معلومه شوه چه جنازه به په يو ميدان يا جنازګاه کښې کولے شي او مسجد کښې به نشي کولے ځکه چه نبي ﷺ مسجد کښې نۀ ده کړے بلکه بهر وتلے دے۔

## مسئله: په مسجد کښې جنازه :

بعض علماء (احناف، مالکيه) ددے حديث نه استدلال کوی چه په مسجد کښې جنازه مکروه ده، برابره ده چه جنازه او مونځ کونکي دواړه په مسجد کښې وی يا مړے د مسجد نه بهر وی او مونځ کونکي تول يا بعض په مسجد کښې وی ځکه چه رسول الله ﷺ صحابه کرام جنازګاه ته راويستل نو که مسجد کښې جائز وے نو بهر ته به ئې نۀ راويستلے۔

٢- دويم دا چه حديث د ترمذی کښې د ابو هريرةؓ نه مرفوعاً روايت دے : (مَنْ صَلّٰى عَلٰى جَنَازَةٍ فِى الْمَسْجِدِ فَلَا شَيْءَ لَهٗ) (ابوداوه وابن ماجه) ۔ (چا چه په مسجد کښې جنازه أوکړه نو هغه دپاره هيڅ اجر نشته)۔ دويم قول دا دے چه مسجد کښې جنازه جائز ده او بهر بهتر ده او ددے قول نه جوابونه دا دی۔ (١) يو جواب دا دے چه دا روايت ضعيف دے۔ په سند کښې ئې صالح بن نبهان مولى التوأمة دے۔ او هغه پدے روايت باندے متفرد دے او ددے راوی په آخره زمانه کښې حافظه خرابه شوے وه او ددۀ نه ابن ابی ذئب قبل الاختلاط او بعد الاختلاط دواړه وخت کښې اوريدل کړيدی

لكه ترمذیؒ د بخاریؒ نه او هغه د احمد بن حنبلؒ نه نقل كړیدی چه ابن ابی ذئبؒ د صالحؒ نه په آخره كښې آوریدل كړیدی او د هغه نه ئې منكر روایات نقل كړیدی. ابن حبانؒ فرمائی : (إِخْتَلَطَ حَدِيْثُهُ الْأَخِيْرُ بِحَدِيْثِهِ الْقَدِيْمِ وَلَمْ يَتَمَيَّزْ فَاسْتَحَقَّ التَّرْكَ) ـ (ددهٔ روستنی احادیث د مخكنو احادیثو سره ګډوډ شویدی او تمییز د دواړو نشی كیدے نو دا مستحق د پریخودلے دے). بس دا حدیث قابل د استدلال نهٔ دے. لكه دا خبره امام نوویؒ وغیره ذكر كړیده.

(۲) دویم جواب : امام نوویؒ فرمائی : په مشهورو مُحققو نسخو د ابوداود كښې داسے الفاظ هم راغلی دی : (مَنْ صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ فِي الْمَسْجِدِ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ) ـ (چا چه په مسجد كښې په جنازه باندے مونځ اُوكړو نو هیڅ ګناه پرے نشته). نو په دے وخت كښې ددے حدیث نه هیڅ استدلال د دوی صحیح نهٔ دے. علامه عظیم آبادیؒ په عون المعبود (۳۳۸/۸) كښې دی : (فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ : هٰكَذَا وَقَعَ فِيْ نُسْخَتَيْنِ عَتِيْقَتَيْنِ لَفْظَةُ عَلَيْهِ) ـ (دغه شان په دوه زړو نسخو كښې لفظ د عَلَيْهِ واقع شویدے). او دغه شان حاشیه د ابوداود كښې هم دی.

۳-**جواب** : امام نوویؒ دا هم فرمائی : كه دا حدیث په (فَلَا شَيْءَ لَهُ) لفظ سره ثابت هم شی نو بیا به ددے تاویل واجب وی پدے طریقه چه (لَهُ) به په معنیٰ د (عَلَيْهِ) سره وی. دے دپاره چه د دواړو روایتونو (یعنی روایت د جواز كوم چه په مسلم كښې راغلے دے او روستو راځی او ددے روایت) ترمینځ تطبیق راشی. او دے دپاره چه د نبی ﷺ قول د فعل سره مخالف نشی ځكه چه هغه د بیضاء (چه نوم ئې دَعْدٌ وو) په دواړو ځامنو (سُهَيْل او سَهْل) جنازه په مسجد كښې كړیده. او (لَهُ) لفظ كله په معنیٰ د (عَلَيْهِ) سره راځی لكه آیت كښې دی : ﴿ وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا ﴾ (الاسراء :۷). (او كه تاسو بدی اُوكړه نو ضرر به ئې پدے نفس وی).

(شرح مسلم ۳٤/۷) الثمر المستطاب للشیخ الالبانی (۷٦٦/۱) تنقیح التحقیق فی احادیث التعلیق لابن عبد الهادی (۹۱/۲).

٤-**جواب** : امام بغویؒ فرمائی: دا حدیث ضعیف الاسناد دے او د افرادو د صالح مولی التوأمة نه دے او كه ثابت شی نو بیا احتمال لری چه ددے نه مراد نقصان د اجر وی ځكه غالب دا ده چه څوك په مسجد كښې مونځ اُوكړی نو بیا كور ته واپس ځی او د مړی دفن ته نهٔ حاضریږی او څوك چه په صحراء كښې په جنازګاه كښې جنازه اُوكړی نو هغه (ته مقبره نزدے وی بیا) د مړی دفن ته حاضریږی نو پوره د دوه قیراطو اجر به ورته ملاویږی.

(شرح السنة ۳۵۲/۵) معالم السنن (۳۲۵/٤) تنقیح التحقیق (۹۳۲) مسألة رقم : ۲۹۰) حاشیه السندی).

علی القاریؒ فرمائي : (اَلْاَظْهَرُ اَنْ يُحْمَلَ عَلٰى نَفْيِ الْكَمَالِ كَمَا فِيْ نَظَائِرِهٖ) ۔(ډيره ښکاره خبره دا ده چه دا نفي حمل شي په نفي د کمال باندے) يعني کامل اجرئے نهٔ کيږي او في نفسه اجر په مسجد کښې هم شته۔

٥- يا پدے کښې داسے تاويل دے : (فَلَا شَيْءَ لَهٗ اَيْ فَلَا اَجْرَ لَهٗ لِاَجْلِ كَوْنِهٖ صَلّٰى فِي الْمَسْجِدِ)۔ (يعني په مسجد کښې د مونځ کولو د وجه نه ئے ثواب نهٔ کيږي چه ګنے مسجد کښې د مونځ د فضيلت د وجه نه ورته زيات اجر ملاؤ شي) او هرچه نفس اجر د مونځ د جنازے دے په مسجد کښې نو هغه ثابت دے۔ (حاشية السندي)۔

نو ثابته شوه چه په مسجد کښې جنازه کول بغير د کراهت نه جائز دي اګرکه افضل دا ده چه د مسجد نه بهر اُوکړے شي ځکه چه دا غالب عادت د نبي ﷺ وو چه جنازے به ئے د مسحد نه بهر کولے۔

**٢- دويم قول** : په مسجد کښې جنازه کول بغير د کراهت نه جائز ده، دلائل ئے دا دي :

**١- دليل** : عائشه رضي الله عنها فرمائي : هرکله چه سعد بن ابي وقاصؓ وفات شو نو د نبي ﷺ بيبيانو جواب اُوليږلو چه صحابه کرامؓ د هغه جنازه مسجد باندے تيره کړي چه بي بيانے پرے مونځ اوکړي نو هغوی داسے اُوکړل، د سعد جنازه ئے د هغوی د حجرو سره اُودروله چه هغوی پرے مونځ اُوکړي۔ بيا ئے هغه د جنازو د هغه دروازے نه بهر کړه کوم چه مقاعد طرف ته وه۔ نو بيبيانو ته دا خبره راورسيده چه خلقو (د دوی) په دے کار عيب اُونيلو او وئے وئيل چه پکار نهٔ دي چه جنازے مسجد ته داخل کړے شي ! نو عائشےؓ ته دا خبره اُورسيده نو وے فرمايل : (مَا اَسْرَعَ النَّاسَ اِلٰى اَنْ يَعِيْبُوْا مَا لَا عِلْمَ لَهُمْ بِهٖ! عَابُوْا عَلَيْنَا اَنْ يُمَرَّ بِجَنَازَةٍ فِي الْمَسْجِدِ وَمَا صَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَلٰى سُهَيْلِ بْنِ بَيْضَاءَ اِلَّا فِي الْمَسْجِدِ) ۔ (خلقو څومره جلتي کوي چه عيب ګنړي هغه شے چه د هغوی علم پرے نشته، په مونږ باندے دا عيب واڅي چه جنازه په مسجد کښې تيره شوه (او په مسجد کښې پرے مونځ اُوشو) او حال دا چه رسول الله ﷺ په سهيل بن بيضاء باندے د جنازے مونځ نهٔ ووکړے مګر په مسجد کښې)۔ (صحيح مسلم ١/٣١٣) (فتاوى الدين الخالص (٧/١٩٩)۔

نو دا روايت دليل دے چه مسجد کښې جنازه کول هيڅ کراهت نهٔ لري او دا په ضرورت باندے هم محمول نهٔ ده۔ او هيڅ نسخ هم پکښې نشته۔ نو د طحاويؒ او عينيؒ دا دعوه کول چه جواز اول کښې وو بيا منسوخ شو په حديث د ابو هريرهؓ سره يا مسجد کښې جنازه کول د علر د ... يه نه وو مثلاً باران وو يا نبي ﷺ په اعتکاف کښې وو۔ نو دا دعوه بے دليله ده۔ بيهقيؒ فرمائي : که د ابو هريرهؓ سره د عائشےؓ د حديث نسخ موجود وے نو دا به ئے په هغه ورځ ذکر کړے په کومه ورځ

چه په ابوبکر صدیقؓ باندے په مسجد کښې جنازه کیدله او په عمر فاروقؓ باندے صهیبؓ په مسجد کښې جنازه کړله۔ او هغه کسانو به هم ذکر کړے وے کومو چه په عائشهؓ باندے د سعدؓ جنازه مسجد ته د راداخلولو انکار کړے وو، یا به ابو هریرهؓ ذکر کړے وے کله چه عائشهؓ دغه حدیث پیش کړے وے۔ او ددے نه انکار هغه څوك کوی چه هغه ته د جواز علم نهٔ وی نو هرکله چه عائشهؓ ددے په باره کښې حدیث پیش کړو نو ټول صحابه کرامؓ غلی پاتی شو او هیڅ یو کښې انکار اُونکړو او نهٔ ئے ورته بل حدیث په مقابله کښې پیش کړو۔ انتهیٰ۔ (معرفة السنن والآثار للبیهقی ٦/٢٦٥ الصلاة علی الجنازة) والمرعاة (٥/٣٧٤) ۔ ددے نه معلومه شوه چه عائشهؓ ته مسئله معلومه وه او نورو ته هیره وه پدے وجه پرے صحابه کرامو اعتراض اُونکړو۔

٢- **دلیل** : په عمر بن الخطاب باندے په مسجد کښې جنازه شوے وه۔ (اخرجه فی الموطأ ١/١٩٩) وعبد الرزاق ٤/٥٣٦) واسناده صحیح کالشمس (قاله الالبانی فی الثمر المستطاب)۔

٣- **دلیل** : عمر فاروق په ابوبکر صدیق باندے په مسجد کښې جنازه اُوکړه۔

(ابن ابی شیبة ٣/٤٤ رقم : ١١٩٦٧) (و١١٩٦٨) التلخیص الحبیر (٢/٣٧٣) تنقیح التحقیق فی احادیث التعلیق (٢/٩١) ۔

او هیڅ صحابی هم پدے انکار نهٔ دے کړے نو ګویا کښې په مسجد کښې د جنازے د کولو په جواز باندے د صحابه کرامو اجماع شوه۔ او همدا قول د امام شافعیؒ، امام احمدؒ، اسحاقؒ او جمهور اهل العلم دے۔ (انظر تعلیق مسند احمد بن حنبل لشعیب الارناووط) ونیل الاوطار (٤/١١٢)۔

او کومو علماؤ چه مسجد ته د مړی داخلول مکروه ګڼلی دی نو هغوی وجه دا ذکر کوی چه مړے نجس دے لیکن دا علت باطل دے ځکه چه حدیث نه معلومه ده چه مؤمن حیاً ومیتاً (په ژوند او مرګ کښې) نجس نهٔ وی۔ لکه بخاری د ابن عباسؓ نه نقل کړیدی : (اَلْمُؤْمِنُ لَا يَنْجُسُ حَيًّا وَمَيِّتًا)۔ لهٰذا ثابته شوه چه په مسجد کښې جنازه کول بالکل جائز دی او د کراهت هیڅ وجه نشته اګرکه افضل دا ده چه جنازه بهر د مسجد نه په جنازه ګاه کښې اُوکړے شی۔ والله تعالیٰ اعلم۔

فصف بهم : ددے نه دا ثابته معلومیږی چه جنازه کښې درے صفونه جوړول مستحب عمل دے۔ او یو صف سر ته رسول ضروری نهٔ دی۔

دا حدیث دلیل دے چه په مړی باندے غائبانه جنازه کول جائز دی چه مړے په بل کلی کښې وی او څوك پرے دے کلی کښې جنازه کوی لکه نجاشی باندے نبی ﷺ غائبانه جنازه کړیده۔ لیکن پدے کښې اختلاف شته۔

**مسئله : غائبانه جنازه جائز ده او که نه ؟ :**

څلور اقوال دي : (۱) مطلقاً جائز ده۔ كه د دوارو كلو ترمينځ مسافه د قصر وي او كه نه، او برابره ده مونځ پرے اولا شوے وي او كه نۀ او دا قول د شافعیؒ، احمدؒ او جمهورو سلفو دے تردے چه ابن حزمؒ فرمائي : د هيڅ صحابي نه ددے منع نۀ ده نقل۔ (فتح البارى ۱۸۸/۳، وارشاد السارى ۴۲۲/۲) وسبل السلام (۱۰۱/۲)۔

(۲) دويم قول : مطلقاً منع ده دا قول د حنفيه او مالكيه ؤ دے۔

(۳) كه مرے قبلے طرفته وي جائز ده او كه د مړى كلے د قبلے شاته وي مثلاً نو جائز نۀ ده۔ دا قول ابن حبان كړيدے۔ استدلال كوي په قصه د نجاشي باندے چه دا قبلے طرفته وو۔

(۴) شيخ الاسلام ابن تيميهؒ درميانه قول كړيدے چه كه مرے پداسے زمكه كښې وي چه مونځ پرے نۀ وي شوے لكه نجاشي چه دا په داسے زمكه كښې وو چه د هغے ځائے خلقو اسلام نۀ وو راوړے۔ او كه مونځ پرے شوے وو نو بيا د مسلمانانو نه دغه فرض كفائي ساقط شويدي نو دوباره نۀ ده پكار۔ دا قول حافظ په فتح البارى كښې د خطابيؒ نه نقل كړيدے او رويانى د شوافعو نه بنه ګڼړلے دے او يو روايت د امام احمدؒ دے او ابن قيمؒ په زاد المعاد كښې صحيح كړيدے۔
زاد المعاد (۲۰۵/۱، ۲۰٦)

ځكه چه د نبي ﷺ په زمانه كښې ډير كسان غائب وفات شويدي او دا ثابت نۀ ده چه نبي ﷺ په هغوى باندے غائبانه مونځ كړے وي۔

او شيخ الاسلام د امام احمدؒ نه يو بل قول داسے نقل كړيدے چه كه صالح سړے وفات شي نو په هغه به مونځ كولے شي او دليل ئے نيولے دے په قصه د نجاشي باندے۔ او دا قول شيخ عبد الرحمن السعدي رحمه الله غوره ګڼړيدے او په سعودي عرب كښې په همدے باندے عمل دے۔ چه د فضيلت او صاحب حيثيت انسان دوى غائبانه جنازه كوي۔ نۀ په عامو خلقو۔

(توضيح الاحكام ۵۱۲/۳)۔

غوره دا ده چه كله كول او كله پريخودل پكار دي ځكه چه دا د رسول الله ﷺ طريقه ده چه په هر غائب باندے مونځ سنت نۀ دے۔ د اول قول دلائل دا دي :

۱ - **دليل** : يو دا حديث دليل دے او دا د غائبانه جنازے د جواز دپاره اصل دے۔

(احكام الاحكام شرح عمدة الاحكام ۲۳۰/۳) (نيل الاوطار ۵٦/۴)۔

علامه سبكيؒ فرمائي : دا حديث دليل دے چه په غائب مړى باندے د جنازے مونځ كول جائز دي او دا قول د شافعيؒ، احمدؒ، او جمهورو سلفو دے دوى وئيلي دي چه برابره ده مونځ پرے په هغه كلي كښې شوے وي او كه نۀ وي شوے او دغه كلے د قبلے په طرف وي او كه نۀ۔ (المنهل

المذنب المورود شرح سنن ابي داود ٩/ ٤٩) للسبكي۔

**٢ - دليل :** عقبه بن عامر ﷺ فرمائي : (إِنَّ النَّبِيَّ ﷺ خَرَجَ يَوْمًا فَصَلّٰى عَلٰى اَهْلِ اُحُدٍ صَلَاتَهُ عَلَى الْمَيِّتِ ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى الْمِنْبَرِ فَقَالَ: اَنَا فَرَطُكُمْ وَاَنَا شَهِيْدٌ عَلَيْكُمْ) (صحيح بخاری ١/ ١٧٩) ومسلم (٢/ ٢٥٠) واحمد (٤/ ١٤٩)۔

(نبی ﷺ يوه ورځ راووتو نو په أُحُد والو باندې ئې داسې مونځ أوكړو لكه څنگه چه مړی باندې كولې شي بيا منبر طرف ته واړيدو وې فرمايل : زۀ ستاسو نه مخكښې تلونكې يم او زۀ به په تاسو گواه يم)۔

په روايت د طحاوی كښې دی : (إِنَّ آخِرَ مَا خَطَبَ لَنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَنَّهُ صَلّٰى عَلٰى شُهَدَاءِ اُحُدٍ ثُمَّ رَقِيَ الْمِنْبَرَ فَحَمِدَ اللهَ وَاَثْنٰى عَلَيْهِ ......الحديث) (طحاوی١/ ٣٣٨) وصحيح ابن حبان (٨/ ١٨) رقم (٣٢٢٤) وقال شعيب الارنووط اسناده صحيح على شرط مسلم)۔

(آخری خطبه چه مونږ ته رسول الله ﷺ كړې وه دا وه چه هغه د احد په شهيدانو مونځ أوكړو بيا منبر ته أوختلو او د الله تعالىٰ حمد او ثناء ئې أووئيله)۔

انور شاه كشميرئ فرمائي : دا مونځ د رسول الله ﷺ په هغه كال وو په كوم كال چه وفات شوې وو او په مسجد كښې وو او ديته اشاره كوی امام بخاری چه بيا منبر ته واپس شو او په أُحُد كښې منبر كوم ځائې وو ...... څكه چه نبی ﷺ ددې كال نه روستو لږه موده ژوندې وو۔

(فيض البارى٢/ ٤٧٨)۔

ليكن دا قول د انور شاه غلط دې څكه چه دغه روايت كښې دی : (ثم انصرف) او بل لفظ دې : (كَالْمُوَدِّعِ لِلْاَحْيَاءِ وَالْاَمْوَاتِ) نو دا دليل د جنازه على القبر دپاره دې نۀ دليل د غائب دپاره۔ فتدبر۔

ابن التركمانئ وائي : (قُلْتُ قَوْلُهُ فِيْ هٰذَا الْحَدِيْثِ فَصَلّٰى عَلٰى اَهْلِ اُحُدٍ صَلَاتَهُ عَلَى الْمَيِّتِ دَلِيْلٌ عَلٰى اَنَّهُ الصَّلَاةُ الْمَعْهُوْدَةُ الشَّرْعِيَّةُ لَا الدُّعَاءُ) (الجوهر النقى ٤/ ١٤)۔ (زۀ وايم : دا قول په حديث كښې چه په احد والو ئې داسې مونځ أوكړو لكه څنگه چه په مړی كولې شي دليل دې چه دا شرعي معلوم مونځ وو او صرف دعاء نۀ وه)۔

عينيّ وائي : دا قول چه صلاته على الميت دې رد دې د هغه چا په وينا چه وائي : په احاديثو كښې چه كوم صلاة راغلې دې نو دا په معنىٰ د دعاء سره دې۔ څكه چه دا د خپل مذهب د تابعدارئ دپاره عدول او تجاوز دې د هغه معنىٰ نه چه لفظ په هغې باندې مشتمل دې او دا انصاف نۀ دې۔ (عمدة القارى٨/ ١٥٦)۔

او دغه شان خبره سندئ هم كړيده۔ (حاشية السندى على النسائى١/ ١٧٧)۔

۳- **دلیل** : (وَعَنْ اَبِیْ بَکْرٍ عَنْ اَبِیْهِ اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ صَلّٰی عَلٰی اُمِّ کُلْثُوْمٍ اُخْتِ سَوْدَةَ بِنْتِ زَمْعَةَ تُوُفِّیَتْ بِمَکَّةَ فَصَلّٰی عَلَیْهَا بِالْبَقِیْعِ بَقِیْعِ الْمُصَلّٰی وَکَبَّرَ عَلَیْهَا اَرْبَعًا) (مصنف عبد الرزاق ۴۸۳/۳) رقم (٦٤٠٩)۔

(ابوبکر د خپل پلار نه نقل کوی چه نبی ﷺ په ام کلثوم باندے مونځ اُوکړو چه د سوده بنت زمعه (ام المؤمنین) خور وه په مکه کښې وفات شوے وه، او په بقیع کښې ئے پرے مونځ اُوکړو او څلور تکبیرونه ئے پرے اُووئیل)۔

دا احادیث دلالت کوی چه غائبانه جنازه بالکل جائز او ثابت ده۔

د احناف او مالکیانو سره هیڅ دلیل نشته مگر تاویلات کوی په دغه حدیث د نجاشي کښې چه بعض تاویلات ئے دا دی :

۱- **تاویل** : وائی : غائبانه جنازه د نجاشي پورے خاص وه ځکه چه نبی ﷺ ته د هغه جنازے کشف اُوشو او ټولے پردے د مینځ نه لرے شوے او داسے شوه گویا کښې د نبی ﷺ مخے ته پرته ده۔ لکه څنگه چه بیت المقدس ورته ښکاره شوے وو کله چه ترے د قریشو مشرکانو د هغے په باره کښې تپوسونه کول۔ نو دا غائبانه جنازه نۀ وه بلکه پیغمبر ته مرے ښکاره کیدو۔ او ددے د تائید دپاره بعض روایات ذکر کوی چه په حدیث د عمران بن حصین کښې راغلی دی : (وَهُمْ لَا یَظُنُّوْنَ اِلَّا اَنَّ جَنَازَتَهٗ بَیْنَ یَدَیْهِ) (صحیح ابن حبان ۳٦۹/۷) رقم: ۳۱۰۲ بسند صحیح)

(د صحابه کرامو دا گمان وو چه جنازه د رسول الله ﷺ مخے ته ده) او په مسند ابی عوانه کښې دی : (فَصَلَّیْنَا خَلْفَهٗ وَنَحْنُ لَا نُرٰی اِلَّا اَنَّ الْجَنَازَةَ قُدَّامَنَا) (مونږ د رسول الله ﷺ پسے روستو مونځ (د جنازے) اُوکړو او مونږ دا گنړل چه جنازه زمونږ مخے ته ده)۔

وائی : دا روایات دلالت کوی چه غائبانه جنازه د نجاشي خصوصیت وو۔ او د رسول الله ﷺ پورے خاص وو۔ او بل طرفته د رسول الله ﷺ په زمانه کښې ډیر صحابه کرام غائب وفات شویدی او په هیڅ روایت کښې دا نۀ دی ثابت چه په هغه باندے غائبانه جنازه شوی وی سوی د معاویه بن معاویه المزنی نه لکه طبرانی، ابن منده، بیهقی او ابن سعد د حدیث د انس نه نقل کړیدی۔

**جواب** : ددے نه نور علماء جواب ورکوی علامه خطابیؒ فرمائی : دا گمان لرل چه نبی ﷺ پورے دا فعل خاص وو، فاسد گمان دے ځکه رسول الله ﷺ چه کله د شریعت د کارونو نه یو کار اُوکړی، په مونږ د هغے اتباع او اقتداء لازم ده او تخصیص نۀ معلومیږی مگر په دلیل سره او دلیل د خصوصیت نشته۔ او ددے بیان دا دے چه رسول الله ﷺ خلق مانځه ته ویستلی دی او د هغوی نه ئے صفونه جوړ کړیدی او صحابه کرامو ورسره په شریکه مونځ کړیدے۔ نو معلومه شوه چه دا تاویل فاسد دے۔ (مرعاة المفاتیح ۳۷۵/۵)

ابن دقيق العيدٌ وائي : دا محتاج دے نقل ته او تخصيص په احتمالاتو سره نهٔ ثابتيږي۔ (عون المعبود)

علامه عبد الحي اللكهنوي فرمائي : (اَلْخَصَائِصُ لَا تَثْبُتُ بِالْاِحْتِمَالِ) (حاشية الهداية باب الاعتكاف (١/٢٢٩) (خصوصيات په احتمالاتو (شكونو) سره نهٔ ثابتيږي)۔

امام نووي فرمائي : كه د داسے قسم خصوصياتو دروازه كولاوه شي نو د شريعت د ډيرو ظاهري نصوصو دروازه به بنده شي، سره ددے نه كه دا خاص وے نو ضرور به نقل شوي وے ځكه چه د نقل دواعي او اسباب زيات وو۔ (عون المعبود٩/٥)

ابن قدامة فرمائي : مونږ به د نبي ﷺ اقتداء كوو ترڅو پورے چه دا ثابته نشي چه دا خاص وو د نبي ﷺ پورے۔ او مړے كه وړاندے وي نو مونږ پرے نهٔ دے جائز اګركه ليدلے كيږي بيا كه نبي ﷺ ليدلے نو مونږ به د هغه پورے خاص وے او حال دا چه نبي ﷺ د صحابه كرامو صفونه جوړ كړيدي۔ (المغني٢/٣٨٦)

او هرچه استدلال كول دي په حديث د عمران باندے نو د هغے مطلب دا نهٔ دے چه نبي ﷺ ته د هغے كشف شوے وو بلكه د هغے مطلب دا دے چه مونږ صحابه كرامو پرے داسے مونځ اُوكړو لكه ځنګه مونځ چه په حاضر مړي باندے كولے شي او هيڅ فرق ئے پكښ اُونكړو۔ مطلب دا شو چه غائبانه جنازه به داسے كولے شي لكه مړے چه حاضر وي۔ او ددے دليل دا دے چه په حديث د مجمع كښ د طبراني په روايت كښ داسے الفاظ دي : (فَقُمْنَا فَصَفَفْنَا كَمَا يُصَفُّ عَلَى الْمَيِّتِ وَمَا نَرَى شَيْئًا) (الحافظ في الفتح٣/١٨٩) (مونږ اُودريدو، داسے صفونه مو جوړ كړل لكه ځنګه چه په مړي باندے جوړولے شي او مونږ هيڅ نهٔ ليدل)۔

او دا خبره د هغوي چه نبي ﷺ د معاويه بن معاويه نه علاوه په هيڅ غائب باندے جنازه نهٔ ده كړے۔ نو ددے دوه جوابه دي (١) يو دا چه هركله د يو صحابي باره كښ دا ثابته شوه چه په هغه غائبانه جنازه شويده نو دا كافي دے د مشروعيت د عمل او استحباب دپاره۔ او حافظ ابن حجرؒ وئيلي دي : چه د معاويه بن معاويه روايت په مجموع الطرق سره قوي دے۔

(٢) دويم جواب دا دے چه محدثينو كښ دلائلو كښ ذكر شو چه يواځے په نجاشي باندے غائبانه جنازه نهٔ ده شوے بلكه په ام كلثوم باندے چه په مكه كښ وفات وه او مونځ ئے پرے په مدينه كښ اُوكړو۔ د هغه شان د احد په شهيدانو او په معاويه بن معاويه باندے غائبانه جنازے شويدي نو ددے نه معلوميږي چه دا خصوصيت د رسول الله ﷺ او د نجاشي نهٔ دے۔

٢- تاويل : بعض علماء داسے جواب كوي چه په نجاشي باندے جنازه نهٔ وه شوے نو دا حكم د هغه چا باره كښ دے چه جنازه پرے نهٔ وي شوي لكه دا خبره شيخ الاسلام او نورو علماو

غوره کړې وه۔ نو ددې جواب دا دې چه دا قول د تاريخي شواهدو خلاف دې ځکه چه په حبشو کښې ډير مسلمانان د حبشو وو سوئ د نجاشي نه نو دا بعيده ده چه يو مسلمان دې وفات شوې وي او نور مسلمانانو دې په هغه باندې جنازه نۀ وي کړې۔

لکه تاريخي شواهد بعض دا دي : محمد بن عبد الله الزركشي متوفي (٧٩٤هـ) ليکلي دي : شپږ آيتونه رسول الله ﷺ جعفر بن ابي طالب لره ورکړل کوم کښې چه د رهبان او قسيسين سره خصومات ذکر دي : ﴿ يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ تَعَالَوْا۟ إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ ﴾ (آل عمران ٦٤). نو دا جعفر د نجاشي بادشاه په مخکښې په خلقو أولوستل - او پدې کښې دا دي - : چه بيا نجاشي او تولو حاضرينو اسلام قبول کړو۔ (البرهان في علوم القرآن ١/٢٠٥)۔

عطاء بن ابي رباحؒ فرمائي : (وإذا سمعوا ما انزل الرسول) دا څه کسان وو د حبشو والو نه چه اسلام ئې قبول کړې وو په هغه وخت چه دوي ته مهاجرين مسلمانان د حبشو هجرت کړې وو۔

(ابن كثير ٢/٩٢)۔

دغه شان د حبشو د مسلمانانو نه ابرهه، اشرف، ايمن، بحيرا، تمام الحبشي، تميم الحبشي، نافع الحبشي، دريد الراهب، ذو مخمر، ذو دجن، ذو مهدم او ذو مناحب وو۔ دې کسانو ايمان راوړې وو۔ (اسد الغابة ١/٧٦) الاصابة في تميز الصحابة (١/٣٧) و (١٠/١٣٥) للحافظ ابن حجر العسقلاني)۔

دا شواهد دلالت کوي چه دا بعيده ده چه دومره مسلمانان په حبشو کښې موجود وي او بيا دې په نجاشي بادشاه باندې جنازه نۀ کوي۔ ثابته شوه چه د غائبانه جنازې د مانعينو سره د تاويلات بارده و نه بغير هيڅ معتمد دليل نشته۔

**خلاصه** : خلاصه دا شوه چه غائبانه جنازه کول جائز عمل دې او ضروري نۀ دې چه خامخا به کولې شي بلکه که چا أوکړو نو جائز به وي د رسول الله ﷺ د فعل نه ثابته ده او نبي ﷺ په غائب باندې جنازه کړې هم ده او پريخودلې هم ده، اګرکه اکثر عادت د رسول الله ﷺ دا وو چه هغه به غائبانه جنازې نۀ کولې خاصکر کله چه به په يو مسلمان باندې جنازه هم شوې وه۔ ليکن بيا هم که څوک ئې کوي نو بالکل به جائز وي، هيڅ شك شبهه او حرج پکښې نشته۔ خو ډير رواج جوړول ترې هم مناسب نۀ دي۔ ځکه چه نبي ﷺ دې ته دعوت نۀ دې ورکړې۔ والله تعالى اعلم۔

(انظر تفصيل المسئلة في احكام الاحكام شرح عمدة الاحكام لابن دقيق العيد ١/٣٤٧، سبل السلام ٢/١٠١، نيل الاوطار ٤/٨٨، عون المعبود ٩/٥، المرعاة ٥/٣٧٥، المغني ٢/٣٨٦، المنهل العذب المورود شرح سنن ابي داود ٩/٤٩) ـ په فتاوى الدين الخالص (٧) کښې يوه رساله ده او د سلفو

تاريخي شواهد ذكر دي۔
وَكَبَّرَ اَرْبَعَ تَكْبِيْرَاتٍ : دا دليل دے چه په جنازه کښې څلور تکبيرونه مشروع دي۔ او تفصيل ئے په روستو حديث کښې راروان دے۔

---

١٦٥٢ (٨) - وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِيْ لَيْلٰى قَالَ: كَانَ زَيْدُ بْنُ أَرْقَمَ يُكَبِّرُ عَلٰى جَنَائِزِنَا أَرْبَعًا وَإِنَّهُ كَبَّرَ عَلٰى جَنَازَةٍ خَمْسًا فَسَأَلْنَاهُ فَقَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُكَبِّرُهَا. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه: او عبد الرحمن بن ابی ليلیٰ فرمائي : زيد بن ارقمؓ به زمونږ په جنازو څلور تکبيرونه وئيل او هغه (يوه ورځ) په يوه جنازه پنځه تکبيرونه اُووئيل نو مونږ ترے تپوس اُوکړو۔ هغه اُوفرمايل : رسول الله ﷺ به دا (پنځه) تکبيرونه وئيل۔ (مسلمؒ)۔

**تشريح** : مطلب د حديث دا دے چه رسول الله ﷺ به هميشه په جنازه باندے څلور تکبيرونه وئيل ليکن کله نا کله ئے پنځه تکبيرونه هم وئيلی وو پدے وجه زيد بن ارقم ﷛ به اکثر په جنازو باندے څلور تکبيرونه وئيل او کله ئے پکښې پنځه تکبيرونه وئيلی دي۔

## مسئله : تکبيرات د جنازے څومره دي ؟

جمهور علماء د سلفو او خلفو وائي چه تکبيرات الجنازه څلور دي۔ نهٔ زيات دي او نهٔ کم۔ لکه امام نوويؒ او ابن عبد البرؒ پدے خبره باندے د اجماع دعوه کړيده۔ ليکن علامه شوکانيؒ، مبارکفوريؒ او البانيؒ وغيره علماو رد کړيده۔ او وئيلے ئے دي چه پدے کښې د صحابه کرامو اختلاف مشهور دے۔

**دليل** : دوی يو دليل دا وائي چه د څلورو تکبيراتو نه زيات وئيل منسوخ دي او دليل ورله دا وائي چه په نجاشي باندے رسول الله ﷺ څلور تکبيرات وئيلی دي او هغه حديث د ابو هريرةؓ دے او د ابو هريرةؓ اسلام متاخر دے او د نجاشي وفات د ابو هريرةؓ د اسلام نه لږه موده روستو وو۔

**الجواب** : علامه ابن همامؒ فرمائي : دا خبره به هله صحيح وی چه تاريخ نه دا معلومه شی چه پنځه تکبيراتو والا احاديث مخکښې وئيلے شوی وی۔

٢- **دويم جواب** : د نسخ دعوه هله صحيح وی چه کله تعارض وی او دلته هيڅ تعارض نشته ځکه چه تعارض کښې شرط دا وی چه دواړه د يو وخت او د يو مونځ عمل وے او حال دا چه وختونه ئے جدا جدا دي۔ دا رنګه روستو زمانه کښې صحابه کرامؓ نه زيات هم نقل دي لکه هغه

روايات روستو راروان دي۔ او نسخ په احتمالاتو نهٔ ثابتيږي۔

٢- **دويم دليل** : دا ځکه منسوخ دی چه رسول الله ﷺ آخري مونځ د جنازه کښې څلور تکبيرات وئيلی دی لکه دا احاديث په کتاب الاعتبار د حازمی ص (٩٥) کښې او بيهقي په سنن کبری (٧٤/٣) او حافظ په التلخيص الحبير (١١٧/٥) کښې راوړيدی۔

**الجواب** : ١- يو جواب دا دے چه علامه حازميؒ او حافظ ابن حجرؒ او حافظ زيلعيؒ او دارنګه بيهقيؒ وئيلی دی چه دا روايات ټول ضعيف دی۔ لهذا پدے باندے استدلال صحيح نهٔ دے۔

٢- دويم جواب : علامه عبيد الله المباركفوريؒ فرمائي : که بالفرض دا روايات ثابت هم شي ليکن بيا هم نزاع نهٔ ختموی ځکه چه رسول الله ﷺ څلور تکبيرات وئيل نفی ددے نهٔ کوی چه زيادت مشروع نهٔ دے پس د هغے نه چه پنځه د هغه نه ثابت دی۔ بلکه غاية الامر به دا شی چه دواړه به جائز وی۔ لکه دا خبره شوکانيؒ کريده۔(الدراری المضيئة شرح الدرر البهية ١/١٣٧ للشوکانی) (والمرعاة ٥/٣٧٨) والروضة الندية شرح الدرر البهية لصديق حسن خان (١/١٦٧)

٣- دريم دا چه که اُومنو چه څلور تکبيرات روستنے عمل د رسول الله ﷺ دے نو دا دليل نهٔ ګرځی د منسوخ کيدو د زيات تکبيراتو ځکه نسخ په فعل سره نهٔ ثابتيږي ترڅو چه ورسره قول ملګرے شوے نهٔ وی۔ که داسے شی نو بيا خو به هر روستنے عمل ناسخ د مخکنی عمل شی نو پدے سره به ډير احکام د شرع معطل شی۔ بله دا چه دعوه د نسخ هله صحيح ده چه تعارض راشی او دلته هيڅ تعارض نشته ځکه چه پنځه تکبيرات مثلاً په زيادت غير معارضه سره مشتمل دی۔

٣- **دليل** : په څلورو تکبيراتو د جنازه باندے عمر فاروق د صحابه کرامو اجماع کريده۔ ابراهيم نخعيؒ فرمائی : د ابو مسعودؓ په کور کښې د رسول الله ﷺ صحابه راجمع شو او دا اتفاق ئے اُوکړو چه د جنازے تکبيرات څلور دی۔ دغه شان ابووائلؒ فرمائی : د رسول الله ﷺ په زمانه کښې به خلقو په جنازه باندے څلور، پنځه، شپږ او اُوه تکبيرات وئيل نو عمر فاروق د رسول الله ﷺ ملګری راجمع کړل، هر يو ورته خپله رائے ورکړه نو عمرؓ په څلور تکبيراتو راجمع کړل۔ (السنن الکبریٰ للبيهقی (٤/٣٧ رقم :٦٧٣٨) التلخيص الحبير (٢/٣٦٢) ۔

دوی وائی چه دا اجماع د صحابه کرامؓ ده۔

ليکن ددے نه **جواب** دا دے چه علامه ابن حزمؒ وائی : اول خو دا روايت (د ابووائل) ثابت نهٔ دے ځکه چه دا د عامر بن شقيق نه دے او هغه ضعيف دے۔

دويم دا چه دا اجماع د ټولو صحابه کرامو نهٔ ده ځکه چه د زيد بن ارقم او علی بن ابی طالب او

د هغه صحابه کرامو نه چه په شام کښ وو۔ ثابت دی چه دوی به د عمر فاروق نه روستو هم پنځه تکبیرات وئیل۔ لکه دے روایت کښ فکر اُوکړه۔نو اجماع د کوم ځائے نه ثابته شوه۔ او ابن حزمؒ فرمائی : چه دا په عمر فاروق باندے طعن دے۔ چه هغه د هغه کار په منع باندے اجماع اُوکړی چه هغه د رسول الله ﷺ نه ثابت دے۔

بیا وائی : داسے اجماع خو دے خواره وی چه د هغے نه علی بن ابی طالب، عبد الله بن مسعود، انس بن مالك، ابن عباسؓ او صحابه د شام او تابعین د شام او ابن سیرین او جابر بن زید وغیرهم اُوځی او حال دا چه د دوی نه اسانید په غایت صحت سره ثابت دی۔ نو عجیبه خبره ده چه داسے اجماع دے وی چه امام ابوحنیفهؒ، مالكؒ، شافعیؒ دے ترے خبر وی او علیؓ، ابن مسعودؓ، زید بن ارقمؓ، انس بن مالكؓ او ابن عباسؓ دے ترے ناخبره وی او هغوی دے د هغه اجماع خلاف کړے وی حاشا لله من هذا ا۔ (المحلی ۵/۸۹)۔

۳- **جواب** دا دے چه که اُومنو چه دا اجماع ده نو بیا دا دلالت کوی په دے خبره چه څلور تکبیرات اکثر عمل دے او په دے سره د زیات د څلورو تکبیراتو نفی نهٔ راځی او نهٔ نسخ د هغه عمل چه د رسول الله او د بعض صحابه کرامو نه ثابت دے۔ ځکه چه د زیات د څلورو تکبیراتو نه هیڅ یو صحابی انکار نهٔ دے کړے۔

بلکه دا چه روستو آثارو نه معلومیږی چه بعض صحابه کرامو د څلورو تکبیراتو نه زیاتْ وئیلی دی او هیڅ یو صحابی پرے اعتراض نهٔ دے کړے نو دا دلیل دے چه د څلورو نه زیات تکبیرونه جائز بلکه سنت دی۔

(۲) **دویم قول** : امام ترمذیؒ فرمائی : (وَقَدْ ذَهَبَ بَعْضُ اَهْلِ الْعِلْمِ اِلٰی هٰذَا عَنْ اَصْحَابِ النَّبِیِّ ﷺ وَغَیْرِهِمْ رَأَوُا التَّکْبِیْرَ عَلَی الْجَنَازَةِ خَمْسًا، وَقَالَ اَحْمَدُ وَاِسْحَاقُ : اِذَا کَبَّرَ الْاِمَامُ عَلَی الْجَنَازَةِ خَمْسًا فَاِنَّهٗ یُتَّبَعُ الْاِمَامُ)۔(بعض صحابه کرامو او اهل علمو دے ته تلل کړیدی چه په جنازه باندے به پنځه تکبیرونه وئیلے شی او امام احمدؒ او اسحاقؒ فرمائی : که امام په جنازه پنځه تکبیرونه وئیل نو مقتدی به ئے تابعداری کوی)

د پنځه تکبیرونو قول د امام ابویوسف هم دے چه صاحب د مبسوط نقل کړیدے۔ او دا قول د ابوذر، زید بن ارقم، حذیفه بن الیمان او عبد الله بن عباس رضی الله عنهم او محمد بن الحنفیه او ابن ابی لیلیٰ دے۔ (نیل الاوطار ۴/۹۹)۔

او پنځه تکبیرونه تر نهو پورے د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو نه ثابت دی۔ د نهو نه زیات ندی نقل۔

**د پنځه تکبيراتو ثبوت : ۱ - دليل :** دا حديث الباب دے چه په بعض رواياتو کښې ورسره داسے الفاظ راغلي دي : (كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ يُكَبِّرُهَا (فَلَا أَتْرُكُهَا لِأَحَدٍ بَعْدَهُ) أَبَدًا)

(مسلم۳/۵٦) ابوداود (۲/٦٧) نسائي (۱/۲۸۱) الدارقطني (۱۹۱، ۱۹۲) احمد (٤/٣٦٧) انظر احكام الجنائز ص (۱۱۲) للشيخ الالباني)۔

(رسول الله ﷺ به دغه پنځه تکبيرونه وئيل، نو زۀ هيڅکله دا د هيچا دپاره نۀ پريدم)۔

دا صريح دليل دے چه پنځه تکبيرونه لوستل د رسول الله ﷺ سنت دي او پدے باندے کله کله عمل کول پکار دي لکه څنګه چه زيد بن ارقمؓ پرے عمل کريدے۔

**۲ - دليل :** (عَنْ كَثِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ كَبَّرَ خَمْسًا) (ابن ماجه) وَفِيْ كَثِيْرٍ كَلَامٌ كَثِيْرٌ إِلَّا أَنَّ التِّرْمِذِيَّ صَحَّحَ لَهٗ حَدِيْثَ الصُّلْحُ جَائِزٌ بَيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَقَالَ الْأَلْبَانِيُّ صَحِيْحٌ لِغَيْرِهٖ) (صحيح ابن ماجه: ۱۵۰٦) وَصَحَّحَهٗ زبير على زئ في تحقيقه على ابن ماجه رقم : ۱۵۰٦) لِأَنَّ الْحَدِيْثَ السَّابِقَ شَاهِدٌ لَهٗ)۔ (رسول الله ﷺ په جنازه باندے پنځه تکبيرونه وئيلي دي)

**۳ - دليل :** (قَالَ يَحْيَى بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْجَابِرُ : صَلَّيْتُ خَلْفَ عِيْسَى مَوْلًى لِحُذَيْفَةَ بِالْمَدَائِنِ عَلٰى جَنَازَةٍ فَكَبَّرَ خَمْسًا ثُمَّ الْتَفَتَ إِلَيْنَا فَقَالَ مَا وَهِمْتُ وَلَا نَسِيْتُ وَلٰكِنْ كَبَّرْتُ كَمَا كَبَّرَ مَوْلَايَ وَوَلِيُّ نِعْمَتِيْ حُذَيْفَةُ بْنُ الْيَمَانِ، صَلّٰى عَلٰى جَنَازَةٍ وَكَبَّرَ خَمْسًا ثُمَّ الْتَفَتَ إِلَيْنَا فَقَالَ: مَا نَسِيْتُ وَلَا وَهِمْتُ وَلٰكِنْ كَبَّرْتُ كَمَا كَبَّرَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ، صَلّٰى عَلٰى جَنَازَةٍ فَكَبَّرَ خَمْسًا) (مسند احمد ۵/٤٠٦) رقم:۲۳٤۹۵) (صحيح لغيره وهذا اسناد ضعيف قاله شعيب الارنووط) والدارقطني (۲/۷۳) باب التسليم في الجنازة) قال البوصيري في اتحاف الخيرة المهرة ۲/۱۳۹) وله شاهد من حديث زيد بن ارقم) ۔ (يحيى بن عبد الله الجابر فرمائي: ما د عيسى چه د حذيفه بن اليمان آزاد کړده غلام دے – نه روستو په مدائن کښې په يوه جنازه مونځ اُوکړو نو هغه پنځه تکبيرونه اُووئيل، بيا ئے مونږ ته اُوکتل وے فرمايل : زۀ نۀ يم خطا شوے او نۀ رانه هير شويدي ليکن ما داسے تکبير اُووئيلو لکه څنګه چه زما مولىٰ او ما باندے انعام کونکى حذيفه بن اليمان تکبير وئيلے وو، هغه په يوه جنازه مونځ کولو نو پنځه تکبيرونه ئے اُووئيل : بيا ئے مونږ ته اُوکتل وے فرمايل : ما نۀ هير کړيدي او نۀ خطا شوے يم ليکن ما داسے تکبيرونه اُووئيل لکه څنګه چه رسول الله ﷺ تکبيرونه وئيلي وو چه هغه په يوه جنازه باندے مونځ اُوکړو نو پنځه تکبيرونه ئے اُووئيل)۔

دا احاديث دلالت کوي چه پنځه تکبيرونه لوستل د نبي ﷺ طريقه وه کله نا کله به ئے پرے عمل کولو۔

دغه شان د صحابه کرامؓ نه شپږ او اُووه تکبيرونه هم نقل دي دا اګرکه موقوف آثار دي ليکن

په حکم د مرفوع کښې دی ځکه چه بعض کبار صحابه کرامو په هغې عمل کړیدے او نورو صحابه کرامو پرے هیڅ اعتراض نهٔ دے کړے نو دلیل دے چه دا په دین کښې معلوم وو.

**دلیل** د شپږو دا دے : ۱ - عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَعْقِلٍ اَنَّ عَلِيَّ بْنَ اَبِيْ طَالِبٍ صَلّٰى عَلٰى سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ فَكَبَّرَ عَلَيْهِ سِتًّا ثُمَّ الْتَفَتَ اِلَيْنَا فَقَالَ: اِنَّهُ بَدْرِيٌّ) (حاکم ۳/۴۰۹) البیهقی (۳٦/٤) الطحاوی (۲۸۷/۱) وسندهم علی شرط الشیخین) کما فی الجنائز للالبانی ص (۱۱۳).

(عبد الله بن معقل رحمه الله فرمائی: علی بن ابی طالب ﷺ په سهل بن حنیف ﷺ باندے جنازه اُوکړه نو شپږ تکبیرونه ئے اُووئیل بیائے مونږ طرف ته اُوکتل وے فرمایل : دا بدری وو (ځکه پرے ما زیات تکبیرونه اُووئیل).

دا حدیث بعض سلفو دلیل ګرځولے دے ددے دپاره چه په اهل فضل او اُوچتې مرتبې والا خلقو باندے د څلورو تکبیرونو نه زیات تکبیرونه وئیل پکار دی.

**۲- دلیل :** (عَنْ عَبْدِ خَيْرٍ قَالَ: كَانَ عَلِيٌّ يُكَبِّرُ عَلٰى اَهْلِ بَدْرٍ سِتًّا وَعَلٰى اَصْحَابِ النَّبِيِّ ﷺ خَمْسًا وَعَلٰى سَائِرِ النَّاسِ اَرْبَعًا) (السنن الکبری للبیهقی ۳۷/٤) والطحاوی والدارقطنی (۱۹۱) وسنده صحیح رجاله ثقات کلهم.

(عبد خیر رحمه الله فرمائی : علی ﷺ به په بدریانو باندے شپږ تکبیرونه (په جنازه کښې) وئیل او په (عام) ملګرو د نبی ﷺ به ئے پنځه او په باقی خلقو به ئے څلور تکبیرونه وئیل).

**د اوو تکبیراتو ثبوت :** ۱ - عَنْ مُوْسٰى بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ يَزِيْدَ اَنَّ عَلِيًّا صَلّٰى عَلٰى اَبِيْ قَتَادَةَ فَكَبَّرَ عَلَيْهِ سَبْعًا وَكَانَ بَدْرِيًّا) (الطحاوی والبیهقی (۳٦/٤) بسند صحیح علی شرط مسلم) . (موسی بن عبد الله بن یزید فرمائی : علی ﷺ په ابو قتاده ﷺ باندے مونځ اُوکړو نو اُووه تکبیرونه ئے پرے اُووئیل (ځکه چه) دا بدری وو. بیهقی اعتراض کړیدے چه دا خبره غلطه ده ځکه ابوقتاده مخکښې مړ دے لیکن ابن الترکمانیؒ او حافظ ابن حجرؒ وئیلی دی چه د بیهقیؒ خبره خطاء ده ځکه چه راجح دا ده چه ابو قتاده د علیؓ په خلافت کښې وفات شویدے. (التلخیص الحبیر (۱٦٦۵) . او په مسئله د تورك او رفع الیدین کښې تیر شویدی چه (۵٤ هـ) کښې وفات دے ځوك چه (۲۸) وائی نو غلطه ده کما تقدم فی (٤)

شیخ البانیؒ ددے آثارو د ذکر کولو نه پس په تعلیق کښې لیکی : (قُلْتُ : فَهٰذِهٖ آثَارٌ صَحِيْحَةٌ عَنِ الصَّحَابَةِ تَدُلُّ عَلٰى اَنَّ الْعَمَلَ بِالْخَمْسِ وَالسِّتِّ تَكْبِيْرَاتٍ اسْتَمَرَّ اِلٰى مَا بَعْدَ النَّبِيِّ ﷺ خِلَافًا لِمَنِ ادَّعَى الْاِجْمَاعَ عَلَى الْاَرْبَعِ فَقَطْ) (کتاب الجنائز ص (۱۱۳).

(زهٔ (البانی) وایم : دا مذکوره آثار د صحابه کرامو صحیح دی، دلالت کوی پدے چه په پنځه او

شپږ تكبيراتو باندے عمل د نبي ﷺ نه روستو هم هميشه شويدے (او منسوخ شوى نۀ دى) دا مخالف دى د هغه چا نه چه صرف په څلورو تكبيراتو باندے دعوىٰ د اجماع كوى)۔

**د نهه تكبيراتو ثبوت :** ١- عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ: اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ صَلّٰى عَلٰى حَمْزَةَ فَكَبَّرَ عَلَيْهِ تِسْعَ تَكْبِيْرَاتٍ) (الطحاوى فى معانى الآثار ١/٢٩٠) واسناده حسن رجاله كلهم ثقات معروفون وابن اسحاق صرّح بالتحديث) وله شواهد كثيرة ذكر بعضها الالبانى فى التعليقات الجياد مسألة رقم :٧٥)۔

(عبد الله بن زبير ﷺ فرمائى : نبى ﷺ په حمزه (بن عبد المطلب) باندے مونځ اُوكړو نو په هغه باندے ئے نهه تكبيرات اُووئيل)۔

٢- عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ : لَمَّا وَقَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَلٰى حَمْزَةَ اَمَرَ بِهٖ فَهُيِّءَ اِلَى الْقِبْلَةِ ثُمَّ كَبَّرَ عَلَيْهِ تِسْعًا) (اخرجه الطبرانى فى الكبير ٣/١٠٧) ۔ (عبد الله بن عباس ﷺ فرمائى : هركله چه رسول الله ﷺ په حمزهؓ باندے اُودريدو نو حكم ئے اُوكړو چه دا قبلے ته برابر كړئ نو برابر كړے شو بيا ئے په هغه باندے نهه تكبيرونه اُووئيل)۔

د نهه تكبيراتو نه زيادت نۀ دے ثابت لهذا پدے باندے زيادت نۀ دے جائز۔ او ابن حزمؒ چه وئيلى دى چه د پنځه تكبيراتو نه به زيادت نۀ كوي نو هغه ته اگركه دا مخكنى روايات معلوم دى ليكن د ابن حزم رائے دا ده چه موقوف حديث حجت نۀ گڼړى ځكه ئے ورته التفات نۀ دے كړے۔انظر المحلى (٥/٨٧ رقم المسألة:٥٧٣)۔

حافظ ابن القيمؒ ليكى:(وَهٰذِهٖ آثَارٌ صَحِيْحَةٌ فَلَا مُوْجِبَ لِلْمَنْعِ مِنْهَا وَالنَّبِيُّ ﷺ لَمْ يَمْنَعْ مَا زَادَ عَلَى الْاَرْبَعِ بَلْ فَعَلَهٗ هُوَ وَاَصْحَابُهٗ مِنْ بَعْدِهٖ) (زاد المعاد ١/٤٨٦)۔

(دا مذكوره آثار صحيح دى او ددے نه د منع هيڅ سبب او مُقتضى نشته او نبى ﷺ د څلور تكبيراتو نه د زياتو نه منع نۀ ده كړے بلكه هغه خپله هم كړيدى او د هغه نه روستو د هغه صحابه كرامؓ هم كړيدى)۔

د عبد الله بن مسعود نه د جنازے په تكبيراتو كښې تخيير نقل دے او وائى چه د تكبيراتو په عدد كښې د امام اقتداء كول پكار دى لكه ابن المنذرؒ د عبد الله بن مسعودؓ نه نقل كړيدى :(اَنَّهٗ قَالَ : اَلتَّكْبِيْرُ تِسْعٌ وَسَبْعٌ وَخَمْسٌ وَاَرْبَعٌ وَكَبِّرْ مَا كَبَّرَ الْاِمَامُ) (المرعاة ٥/٣٧٨) ۔ (هغه فرمائى : تكبيرونه نهه، اُووه، پنځه او څلور دى او ترڅو پورے چه امام تكبيرونه وائى نو ته ئے هم ورسره وايه)۔

او ابن حزمؒ ترے داسے نقل كړيدى : (كَبِّرُوْا عَلَيْهَا مَا كَبَّرَ اَئِمَّتُكُمْ لَا وَقْتَ وَلَا عَدَدَ) (المحلى ٥/١٢٦) وهذا اسناد فى غاية الصحة جنائز الالبانى ص (١١٣) والطحاوى والبيهقى (٤/٣٧) (زاد المعاد ١/٤٨٦)۔(تكبيرونه وايئ په جنازه ترڅو چه ستاسو امامان تكبيرونه وائى هيڅ عدد

ورله مقرر نهٔ دے)

**خلاصة البحث:** خلاصه دا راوتله چه څلور تکبیرونه د رسول الله ﷺ نه اکثر او زیات نقل دی او کله نا کله د څلورو تکبیراتو نه زیادت هم نقل دے خاصکر پنځه تکبیرات خو د مسلم په روایت کښې ثابت شو۔ او ددے احادیثو او آثارو ترمینځ هیڅ تعارض نشته بلکه دا د مختلف اوقاتو اعمال دی او ددے په منسوخ کیدو باندے کوم صحیح صریح دلیل هم نشته لهذا پدے تولو طریقو عمل کول جائز دی۔ اګرکه څلورو باندے به عمل زیات کولے شی۔ والله تعالیٰ اعلم۔

**تنبیه :** د کولو طریقه دا ده چه تر پنځو تکبیراتو پورے د هر تکبیر نه روستو دعاګانے شته او روستنی تکبیرات به متتابعاً وائی دعا ورسره نشته۔ (الدین الخالص۷/۱۵۲)

لکه امام بیهقی په خپل سند سره د عبد الله بن ابی اوفیٰؓ نه نقل کوی : چه هغه په یوه جنازه باندے څلور تکبیرونه اُووئیل بیا لږ ساعت (غلے) اُودریدو (یعنی دعاګانے ئے کولے) بیا ئے اُووئیل : آیا تاسو په ما ګمان کولو چه زهٔ به پنځم تکبیر اُووایم ؟ هغوی اُووئیل : نهٔ، دهٔ اُوفرمایل : رسول الله ﷺ به څلور تکبیرونه وئیل۔ په یو بل روایت کښې داسے الفاظ دی : (اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ کَانَ یُکَبِّرُ اَرْبَعًا ثُمَّ یَمْکُثُ سَاعَةً فَیَقُوْلُ مَا شَاءَ اللّٰهُ اَنْ یَّقُوْلَ، ثُمَّ سَلَّمَ) (حاکم ۱/۳۶۰) واحمد (٤/۳۸۳) وابن ماجه (۱/٤۵۷) (بیهقی ٤/۳۵) وَانظر فتاوی الدین الخالص (۷/۱۵۳) (رسول الله ﷺ به څلور تکبیرونه وئیل بیا به لږ ساعت ایساریدو بیا به څه چه الله غوختل هغه به ئے وئیل، بیا به ئے سلام ګرځولو)۔ ددے حدیث نه یوه فائده دا معلومیږی چه د څلورم تکبیر نه روستو دعاء او ذکر شته۔ دویم دا چه هرکله چه د څلورم نه روستو هم ذکر شته نو لاسونه به ئے همغه شان ترلی وی او نهٔ به ئے پریدی۔ والله تعالیٰ اعلم۔ وبالله التوفیق۔

**تنبیه :** بعض آثارو کښې د جنازے درے تکبیرات هم راغلی دی یو د ابن مسعودؓ دویم د انس دریم د ابن عباس رضی الله عنهم۔

**د ابن مسعود** روایت مخکښې ذکر شو چه تفصیل ئے داسے دے : علقمة فرمائی : ما ابن مسعودؓ ته اُووئیل: د معاذ ملګری د شام نه راغلل نو هغوی په مړی باندے پنځه تکبیرونه اُووئیل نو ابن مسعودؓ اُوفرمایل : (لَیْسَ عَلَی الْمَیِّتِ مِنَ التَّکْبِیْرِ وَقْتٌ (اَیْ حَدٌّ مَحْدُوْدٌ) کَبِّرْ مَا کَبَّرَ اِمَامُکَ فَاِذَا انْصَرَفَ اِمَامُکَ فَانْصَرِفْ)(المحلی (۵/۸۸) والبیهقی (٤/۳۷)۔

(په مړی باندے د تکبیر وئیلو هیڅ عدد نهٔ دے مقرر، تر څو چه ستا امام تکبیرونه وائی ته ئے هم وایه، کله چه ستا امام سلام واروی نو ته ئے هم وارووه)۔

**الجواب :** ظاهر دا ده چه عبد الله بن مسعودؓ د څلورو تکبیرونو نه په زیاتو کښې د اختیار قائل

دے۔ نۀ کم۔ لکه ددې وضاحت د نورو روایاتو د هغه نه کیږی پورتنی روایت ته رجوع اُوکړه چه هغه د نهه، اُووه، پنځه او څلورو تعیین کړیدے۔ ځکه د څلورو نه کم تکبیرات نۀ د هغه نه قولاً ثابت دی او نۀ فعلاً بلکه خپل عمل ئے څلور تکبیرات وو لکه مخکښ ذکر شو۔

**دویم روایت د انس** بن مالك په درے طریقو نقل دے ابن ابی شیبه کښ دی:

(اِنَّهٗ کَبَّرَ عَلٰی جَنَازَةٍ ثَلَاثًا لَمْ یَزِدْ عَلَیْهَا)

(انس بن مالكؓ په جنازه باندے درے تکبیرونه اُووئیل او زیادت ئے اُونکړو)۔

۲- دویمه طریقه : ابن المنذرؒ نقل کړیدی چه انس بن مالكؓ ته اُووئیلے شو فلانی (شخص) درے تکبیرونه اُووئیل : نو هغه اُوفرمایل : (وَهَلِ التَّکْبِیْرُ اِلَّا ثَلَاثٌ)(د جنازے تکبیرونه صرف درے دی)۔

۳- دریمه طریقه : انسؓ یوه ورځ په یوه جنازه درے تکبیرات اُووئیل بیا ئے په هیره سلام اُوګرځولو خلقو ورته اُووئیل : اے ابو حمزه ! تا خو درے تکبیرات اُووئیل۔ نو هغه اُوفرمایل : صفونه برابر کړئ، هغوی صفونه برابر کړل نو دۀ څلورم تکبیر اُووئیلو۔

(البخاری تعلیقاً وعبد الرزاق ۱۸۹/۳)

حافظ ابن حجرؒ فرمائی : ددے مختلف روایاتو د انس ترمینځ تطبیق داسے ممکن دے چه یا خو انس درے جائز ګنړل او څلور ئے کامل ګنړل، یا کوم راویانو چه د هغه نه درے تکبیرات نقل کړیدی نو هغوی پکښ اولنے تکبیر د افتتاح نۀ دے ذکر کړے۔

(فتح الباری۲۰۲/۳) وعمدة القاری (۱۲/۴۴۵)۔

لیکن صحیح دا ده چه کوم راویانو درے ذکر کړیدی نو هغوی پکښ اولنے تکبیر افتتاح نۀ دے شمارلے لکه خپله د انسؓ نه دا نقل دی چه هغه وئیلی دی چه تکبیرونه درے دی سوئ د تکبیر افتتاح نه۔ (فتح الباری۲۰۲/۳)

او که ثابت دی نو دا به حمل وی په اجتهاد د هغه باندے لیکن پداسے مقام کښ اجتهاد ته ضرورت هم نشته۔ صحیح دا ده چه دۀ نه یو کرت هیر شوی وو پدے وجه کله چه ورته خبر ورکړے شو نو رجوع ئے اُوکړه۔

**د ابن عباسؓ** نه نقل دی : (وَیُکَبِّرُ عَلَی الْجَنَائِزِ ثَلَاثًا) (ابن ابی شیبة ۱۱٦/٤) واسناده صحیح) (چه هغه به په جنازو باندے درے تکبیرات وئیل) نو دا روایت اګرکه صحیح دے لیکن د درے تکبیراتو په جواز باندے صریح نۀ دے ځکه چه دا احتمال شته چه راوی پکښ تکبیر افتتاح نۀ وی شمارلے او باقی تکبیرات ئے ذکر کړی وی۔ او دا احتمال یقینی هم دے ځکه چه خپله عبد الله بن عباسؓ د نبی ﷺ نه څلور تکبیرات نقل کړیدی او بیا ئے د هغه نه روستو پدے باندے عمل هم کړیدے۔

لهذا ثابته شوه چه د رسول الله ﷺ نه مرفوعاً د څلورو تکبیراتو نه کم ثابت نهٔ دی او نهٔ د صحابه کرامو نه او که د بعض صحابه کرامو نه ثابت شي نو بیا به دا د هغوی اجتهاد وی او کله چه مرفوع حدیث موجود وی نو د صحابي په اجتهاد باندې به عمل نشي کیدې.
(انظر المرعاة ٥/٣٧٩) والمنار (١/٢٧٥)

بلـه دا چه بعض علماؤ لکه سید سابق وغیره ذکر کړیدی چه څلور تکبیرات ارکان د جنازې دی او د ارکانو پریخودل او کمول جائز نهٔ وی. (فقه السنة ١/٤٦٠).

**فائده** : د جنازې په تکبیراتو کښ رفع الیدین په هیڅ صحیح مرفوع حدیث کښ ثابت نهٔ دی او کوم مرفوع حدیثونه چه پدې باره کښ راغلی دی نو هغه ضعیف دی. البته د ابن عمرؓ نه په صحیح سند رفع الیدین په تکبیراتو د جنازه کښ ثابت دی. (جزء رفع الیدین للبخاری وصحیح البخاری تعلیقاً) والبیهقی ٤/٤٤) والشافعی فی مسنده (٥١/٢١١). او حافظ وئیلی دی چه د عبد الله بن عباسؓ نه په صحیح سند ثابت دی چه هغه به په تکبیراتو د جنازه کښ رفع الیدین کول. رواه سعید بن منصور التلخیص الحبیر (٢/٤٢٥) (ونیل الاوطار٦/١٠٥)

او علامه عظیم آبادیؒ په تعلیق المغنی علی سنن الدارقطنی (٢/٧٥) کښ د عمر بن شیبه په سند د علل الدارقطني (١٢/٢٧٢ بقية مسند ابی هریرة) نه د عبد الله بن عمرؓ مرفوع حدیث نقل کړیدې : (أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ إِذَا كَبَّرَ عَلَى الْجَنَازَةِ رَفَعَ يَدَيْهِ وَإِذَا انْصَرَفَ سَلَّمَ) . (نبی ﷺ به چه کله د جنازې مونځ کولو نو د هر تکبیر سره به ئې رفع الیدین کول او کله چه به (د مانځه نه فارغیدو) نو سلام به ئې اړولو) دارقطنيؒ وائی : دا روایت عمر بن شیبه مرفوع ګرځولې دې او ددهٔ نه یو جماعت خلاف کړیدې هغوی موقوف ګرځولې دې. او موقوف ګرځول ئې حق دی) آه. جمهور علماء وائی : دا روایت شاذ دې.

دارقطنيؒ اګرکه ددې روایت د موقوف کیدل حق ګنړلی دی لیکن عمر بن شیبه ثقه راوی دې (ابن حبان، دارقطنی، ابن ابی حاتم، خطیب، مسلمه او ابن حجر متوفی (٨٥٢هـ) ورته په تهذیب التهذیب (٧/٤٩٠) کښ ثقه وئیلې دې) او زیادت د ثقه مقبول وی. ددې وجه نه بعض علماؤ لکه ابن باز رحمه الله په تعلیق د فتح الباری (٣/١٩٠) کښ وئیلی دی چه دا حدیث مرفوع صحیح دې او ډیره ظاهره خبره دا ده چه دې علت ته اُونهٔ کتلې شي چه دا شاذ دې ځکه چه عمر بن شیبه راوی ثقه دې نو د هغه مرفوع ګرځول به قبلولې شي ځکه دا زیادت د ثقه دې او د حدیث د امامانو په نیز باندې راجح دا ده چه زیادت د ثقه راوی مقبول وی او دا دلیل دې چه رفع الیدین په تکبیراتو د جنازه کښ مشروع عمل دې. آه. امام نوویؒ فرمائی : کله چه یو

حدیث مرفوع او موقوف یا مرسل او موصول نقل کړے شی نو پدے باندے حکم کولے شی چه دا مرفوع او موصول دے ځکه دا زیادت د ثقه دے اګرکه رافع او واصل راوی زیات حافظ وی یا زیات وی په شمار کښ۔ (شرح مسلم ۱/ ۲۵۶)۔ او شیخ مبشر احمد ربانی په آپ کے مسائل اوران کا حل (ڦاوی) (۳/ ۳۱۵) کښ مرفوع حدیث ته راجح وئیلے دے۔

امام سرخسیؒ په مبسوط (۲/ ٦٤) کښ لیکلی دی چه ډیرو امامانو د بلخ د هر تکبیر د جنازے سره لاس پورته کول غوره عمل شمارلے دے۔ دغه شان شیخ عبد الحی اللکنوی وائی : رفع الیدین په جنازه کښ د ابن عمر، عمر بن عبد العزیز، وهب بن منبه، امام زهری، نخعی، حسن بصری، او قیس بن حازم وغیره نقل دی۔ (اعلاء السنن (۸/ ۲٥٦) عمدة الرعاية (۱/ ۲٥۳) ومجموع فتاوی عبد الحی (۳/ ۲۷۲) راجع للتفصیل فتاوی الدین الخالص (۷/ ۱۷۲) وفتح الباری (۳/ ۱٤۸) وفتاوی اللجنة (۸/ ۲۳۹) المحلی (۳/ ٤۰۸) جامع الفقه (۳/ ٤٥۷)

---

**١٦٥٣ (٩) – وَعَنْ طَلْحَةَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ: صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنَ عَبَّاسٍ عَلٰى جَنَازَةٍ فَقَرَأَ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ فَقَالَ : لِتَعْلَمُوْا اَنَّهَا سُنَّةٌ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.**

**ترجمه** : او طلحه بن عبد الله بن عوف فرمائی : ما د ابن عباس نه روستو په یوه جنازه مونځ اُوکړو نو هغه (پکښ) سورة الفاتحه اُولوستله بیا ئے اُوفرمایل : (ما دا ددے دپاره اُولوستله چه تاسو پو هه شئ چه دا سنت ده۔ (بخاریؒ)۔

**تشریح** : دا حدیث واضح دلیل دے چه د جنازے په مانځه کښ سورة فاتحه لوستل ضروری عمل دے او د سنت نه مراد هغه اصطلاح نه ده کومه چه روستو پیدا شویده چه د فرضو او واجبو نه خکته او د مستحبو نه بره درجه۔ بلکه د سنت نه مراد په دین کښ جاری شرعی طریقه چه رسول الله ﷺ او مسلمانانو به په هغے باندے عمل کولو۔

په روایت د نسائی کښ داسے الفاظ دی : (فَقَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُوْرَةً وَجَهَرَ حَتّٰى اَسْمَعَنَا) (سورة فاتحه او یو سورت ئے اُولوستلو او جهرئے اوکړو تردے چه مونږ ته ئے واورولو) او آخر کښ ئے اُوفرمایل : (اِنَّمَا جَهَرْتُ لِتَعْلَمُوْا اَنَّهَا سُنَّةٌ) (ما جهر دے دپاره اُوکړو چه تاسو ته پته اُولګی چه فاتحه لوستل سنت دی)

ددے حدیث د سیاق نه دا معلومیږی چه عام عادت د نبی ﷺ او د صحابه کرامؓ دا وو چه فاتحه به ئے په پټه لوستله لیکن جهر به هغه وخت کولے شی چه تعلیم غرض وی او خلقو ته دا مسئله خودل وی چه فاتحه لوستل د جنازے په مانځه کښ ضروری دی۔ عام اوقاتو کښ به

جهر نهٔ کوی۔

**مسئله:** دجنازے په مانځه کښې سورهٔ فاتحه لوستل په ډیرو احادیثو کښې ثابت دی چه د هغې رد کول جهالت او حماقت دے او د هغې په ځائے ثناء وئیل، یا ثناء ته غوره وئیل د صحیح او صریح نصوصو نه عدول او تجاوز دے او مذهب پرستی او خواهش پرستی او من مانیت او انانیت دے۔ علامه ابن المنذرؒ فرمائی : فاتحه لوستل د ابن مسعودؓ، حسن بن علی، ابن الزبیرؓ، مسور بن مخرمهؓ رضی الله عنهم نه نقل دی او دا قول د شافعیؒ، احمدؒ او اسحاقؒ دے۔ بیا وائی : د ابو هریرهؓ او ابن عمرؓ نه نقل دی چه په جنازه کښې قراءت نشته۔ او دا قول د مالک، ابو حنیفهؒ او د هغه د ملګرو او تولو کوفیانو دے۔ (نیل الاوطار ٤/١٠٣)

## دلائل د ثبوت الفاتحه :

**١- دلیل :** عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ) (بخاری ١/١٠٤) رقم : (٧٢٣) ومسلم رقم : ٣٩٤) (رسول الله ﷺ فرمائی : هیڅ مونځ د هغه چا نهٔ کیږی چه سورهٔ فاتحه پکښې اُونه وائی)۔

پدے حدیث کښې صلاة مطلق ذکر دے نو جنازے ته هم شامل دے۔ لهٰذا جنازه هم بغیر د فاتحے نه نهٔ کیږی۔ او یواځې پدے عموم استدلال نهٔ دے بلکه نور احادیث اُوګوره۔

**٢- دلیل :** دا حدیث الباب د طلحه بن عبد الله بن عوف دے چه پدے کښې عبد الله بن عباسؓ سورهٔ فاتحه لوستلے ده او بیا ئے حاضرینو ته وئیلی دی چه ما سورهٔ فاتحه پدے وجه اُولوستله چه تاسو ته پته اُولګی چه دا د رسول الله ﷺ سنت عمل دے۔ او د نسائی (١/٢٨١) الفاظ داسے دی : (قَالَ: صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ عَبَّاسٍ عَلٰى جَنَازَةٍ فَقَرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُوْرَةٍ، وَجَهَرَ حَتّٰى أَسْمَعَنَا فَلَمَّا فَرَغَ أَخَذْتُ بِيَدِهٖ فَسَأَلْتُهٗ فَقَالَ: سُنَّةٌ وَحَقٌّ) (وَبَعْضُهٗ فِي الْبَيْهَقِيِّ، صححه حسین سلیم اسد فی تعلیق مسند ابی یعلی ٢٦٦١) (ابن عباسؓ په جنازه باندے سورهٔ فاتحه او یو سورت اُولوستلو او چهرئے اُوکړو تردے چه مونږ ته ئے راواورولو، نو کله چه فارغ شو، ما د هغه لاس اُونیولو، ددے تپوس مے ترے اُوکړو؟ وے فرمایل : دا سنت (په دین کښې جاری طریقه) او حق (ثابت) عمل دے۔

او دا خبره د مصطلح الحدیث نه ثابته ده چه صحابی کله من السنة یا سنة لفظ استعمال کړی نو ددے نه مراد د رسول الله ﷺ سنت وی، نهٔ خپل سنت او نهٔ د بل چا سنت) لکه چه سالم فرمائی : (وَهَلْ يَبْتَغُوْنَ بِذٰلِكَ إِلَّا سُنَّةَ ﷺ) (تحفة الاحوذی ٤/٢٤٥ باب ما جاء فی القسمة) عمدة القاری (١٥/١٢٦) فتح الباری لابن حجر (٩/٢١٤ باب اذا تزوج الثیب) والمشکوٰة (باب الدفع من عرفة الرقم المسلسل : ٢٦١٧) رقم الحدیث (١٤) (صحابه کرام د سنت نه صرف د رسول الله ﷺ

سنت مراد کوی)۔ او د سنت نه مراد هغه اصطلاحی عرفی سنت نهٔ دی ځکه چه دا اصطلاح د رسول الله ﷺ د دور نه روستو پیدا شویده۔ بلکه د سنت نه مراد هغه طریقه چه په دین کښ ثابته او جاری وی او عام مسلمانان په هغې باندې روان وی۔

د حاکم الفاظ داسې دی : (عَنْ شُرَحْبِيلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: حَضَرْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَبَّاسٍ صَلّٰى بِنَا عَلٰى جَنَازَةٍ بِالْاَبْوَاءِ وَكَبَّرَ ثُمَّ قَرَأَ بِاُمِّ الْقُرْآنِ رَافِعًا صَوْتَهٗ بِهَا، ثُمَّ صَلّٰى عَلَى النَّبِيِّ ﷺ ثُمَّ قَالَ : اَللّٰهُمَّ عَبْدُكَ وَابْنُ عَبْدِكَ وَابْنُ اَمَتِكَ، يَشْهَدُ اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ وَحْدَكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ، ...... وَفِيْهِ : ثُمَّ كَبَّرَ ثَلَاثَ تَكْبِيْرَاتٍ ثُمَّ انْصَرَفَ فَقَالَ : يَا اَيُّهَا النَّاسُ ! اِنِّيْ لَمْ اَقْرَأْ عَلَنًا اِلَّا لِتَعْلَمُوْا اَنَّهَا سُنَّةٌ) (مستدرك الحاكم ۱/۳۵۹) والمنتقى لابن الجارود (۲٦٤) رقم (۵۳۷) السنن الكبرى للبيهقى (٤/٤۲) رقم (۷۲۳۱) (واسناد الحديث حسن احكام الجنائز ص: ۱۸۸)

شرحبیل بن سعد فرمائی : زهٔ عبد الله بن عباس ته حاضر شوم، هغه په ابواء مقام کښ مونږ ته د جنازې مونځ کولو، د تکبیر نه روستو ئې سورة فاتحه په اُوچت آواز سره اُولوستله، بیا ئې په نبی ﷺ درود اُووئیلو، بیا ئې دعاء اُوکړه بیا ئې سلام نه روستو اُوفرمایل : اې خلقو ما سورة فاتحه په ښکاره صرف ددې دپاره اُووئیله چه تاسو دا زده کړئ چه دا سنت (ثابته) طریقه ده۔

۳- **دلیل** : عَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ قَالَ : اَلسُّنَّةُ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْجَنَازَةِ اَنْ يُقْرَأَ فِي التَّكْبِيْرَةِ الْاُوْلٰى بِاُمِّ الْقُرْآنِ مُخَافَتَةً، ثُمَّ يُكَبِّرُ ثَلَاثًا وَالتَّسْلِيْمُ فِي الْآخِرَةِ)

(النسائى ۱/۲۸۱) باسناد صحيح) وانظر الشافعى فى الام (۱/۲۳۹) والبيهقى (٤/۳۹) والحاكم (۱/۳٦۰) ومسند الشافعى (۳۱۰)

(ابو مامه بن سهل به حنیف فرمائی : د جنازې په مانځه کښ سنت دا ده چه په اول تکبیر کښ سورة فاتحه په پټه اُولوستلې شی، بیا درې تکبیرات اُوکړی او په آخر کښ سلام واړوی)۔ آیا دلته صحابی خپله طریقه د مانځه بیانوی او که د پیغمبر ؟ فتدبر۔

٤- **دلیل** : عَنْ اُمِّ شَرِيْكٍ الْاَنْصَارِيَّةِ قَالَتْ : اَمَرَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَنْ نَقْرَأَ عَلَى الْجَنَازَةِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ)

(ابن ماجه ۱٤۹٦) واسناده حسن فى سنده شهر بن حوشب وهو حسن الحديث وانظر تعليق ابن ماجه لزبير على زئ ايضاً قال : وللحديث شواهد عند الطبرانى وغيره انظر مجمع الزوائد ۳/۳۲) وقال الحافظ فى التلخيص (۲/۱۱۹) فى اسناده ضعف يسير)۔

(ام شریك انصاریه رضی الله عنها فرمائی : مونږ ته رسول الله ﷺ دا حکم کړې وو چه مونږ د جنازې په مانځه کښ سورة فاتحه اُووایو)۔ دا حدیث دلیل دې چه په جنازه کښ فاتحه لوستلو باندې رسول الله ﷺ امر کړیدې۔ لهذا د فاتحې نه بغیر مونځ نهٔ دې صحیح۔

٥- **دليل** : عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: إِنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَرَأَ عَلَى الْجَنَازَةِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ) (ابن ماجه رقم :١٤٩٥) وفى اسناده ابراهيم بن عثمان ابوشيبة وهو ضعيف جداً ولكن ابن حجر قال : هذه الرواية مُؤَيَّدَةٌ بِرِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ المتقدمة) ۔ (عبد الله بن عباس فرمائي : نبي ﷺ په جنازه بانديے سورة فاتحه أُولوستله) دا روايت اگركه سنداً ضعيف دے ليكن ددے روايت تائيد مخكښې په دويم دليل كښې ذكر شو چه (لتعلموا انها سنة) ددے وجه نه شيخ البانى په صحيح ابن ماجه كښې ورته صحيح وئيلے دے۔ حافظ ابن حجر وئيلى دى چه دا مسند ابى يعلى كښې د ابن عباس نه نقل شويدے او په هغے كښې ورسره دا اضافه هم ده چه (فاتحے سره ئے يو سورت هم أُولوستلو) او امام نووئ وئيلى دى : اسناده صحيح۔

(التلخيص الحبير (٢/١١٩) وارواء الغليل (٣/١) رقم (٧٣١) واحكام الجنائز (١١٩)۔

نو دا روايت تفسير شو ددے خبرے دپاره چه په مخكښې روايت د ابن عباسؓ كښې د (لتعلموا انها سنة) نه مراد سنت د نبي ﷺ دى۔

٦- **دليل** : عَنْ جَابِرٍ قَالَ: إِنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَبَّرَ اَرْبَعًا وَقَرَأَ بِاُمِّ الْقُرْآنِ بَعْدَ التَّكْبِيرَةِ الْاُولٰى) (الام للشافعى ٣٥٨/١) والمسند (١/٢٠٩) والحاكم (١/٣٥٨) وابونعيم فى الحلية (٩/١٥٩) وفى اسناده ابراهيم بن محمد وهو متروك لكن الحاكم قال : هو شاهد لحديث ابن عباس۔

(جابر فرمائي : نبي ﷺ په جنازه بانديے څلور تكبيرونه أُووئيل او د اول تكبير نه پس ئے سورة فاتحه أُولوستله)

٧- عَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ قَيْسٍ - رضى الله عنه- بنحو حديث ابى امامة المتقدم -يَعْنِيْ السُّنَّةُ فِى الصَّلَاةِ عَلَى الْجَنَازَةِ اَنْ يُقْرَأَ فِى التَّكْبِيْرَةِ الْاُولٰى بِاُمِّ الْقُرْآنِ مَخَافَتَةً...... الحديث) واسناده صحيح (نسائى ٢٨١/١) والشافعى فى الام (١/٣٠٨) والمسند ص (٣١١) والبيهقى فى المعرفة (٣/١٤٨) والمحلى)

(ضحاك بن قيس ﷜ فرمائي : په مانځه د جنازه كښې سنت دا دى چه د اول تكبير نه پس سورة فاتحه په پټه أُووائي) دا هم مرفوع حديث دے۔ ځكه چه صحابى د سنت لفظ ذكر كړى پداسے مسئله كښې چه اجتهاد له په هغے كښې دخل نۀ وى نو هغه بالاتفاق مرفوع حديث وى۔

٨- **دليل** : عَنْ اَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيْدَ قَالَتْ : قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : اِذَا صَلَّيْتُمْ عَلَى الْجَنَازَةِ فَاقْرَؤُوْا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ) (مجمع الزوائد (٣/٣٢) وفيه معلى بن حرام ولم احد من ذكره وبقية رجاله موثقون وفى بعضهم كلام)۔

(رسول الله ﷺ فرمايلى دى : كله چه تاسو په جنازه مونځ كوئ نو سورة فاتحه پكښې أُووايئ) دا روايت اگركه متكلم فيه دے ليكن نور روايات ئے تائيد كوى۔

٩- **دليل** : عَنْ اَبِى الْهَيْفَانِ الْحَذَّاءِ قَالَ : صَلَّيْتُ خَلْفَ حَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ عَلٰى جَنَازَةٍ فَلَمَّا فَرَغَ اَخَذْتُ بِيَدِهٖ

فَقُلْتُ : كَيْفَ صَنَعْتَ ؟ قَالَ : قَرَأْتُ عَلَيْهَا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ) (ابن ابی شیبة ۲۹۷/۳) باسناد صحیح)۔

ابو الهفان الحذاء وائی : ما د حسن بن علی ﷺ پسے د جنازے مونځ اُوکړو، کله چه هغه فارغ شو، ما د لاس نه اُونیولو، عرض مے اُوکړو: تاسو (په جنازه کښې) څه کار اُوکړو؟ هغه اُوفرمایل : ما پرے سورة فاتحه اُولوستله)۔

**۱۰- دلیل : د ابن مسعود عمل** : عَنْ رَجُلٍ مِنْ هَمْدَانَ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ : قَرَأْتُ عَلَيْهَا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ) (ابن ابی شیبة ۲۸۷/۳) رقم (۱۱۲۴۰) ـ(د همدان یو سړے د ابن مسعود ﷺ نه نقل کوی چه هغه فرمائی : ما په جنازه باندے سورة فاتحه اُولوستله) دے روایت کښې اګرکه رجل مجهول دے لیکن د ابن حزمؒ په روایت کښې د جزم (یقین) الفاظ دی : (عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ : أَنَّهُ كَانَ يَقْرَأُ عَلَى الْجَنَازَةِ بِأُمِّ الْكِتَابِ) (المحلی ۹۰/۵) ـ او د احنافو دا اصول دی چه په قرون ثلاثو کښې جهالت هیڅ ضرر نهٔ ورکوی لهذا د هغوی د اصولو مطابق دا صحیح حدیث دے۔

**۱۱- دلیل** : ابن جریجؒ فرمائی : (حُدِّثْتُ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبِي الدَّرْدَاءِ وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ وَابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُمْ كَانُوا يَقْرَأُوْنَ بِأُمِّ الْقُرْآنِ وَيَدْعُوْنَ وَيَسْتَغْفِرُوْنَ بَعْدَ كُلِّ تَكْبِيْرَةٍ مِنَ الثَّلَاثِ فِي جَنَازَةٍ ثُمَّ يُكَبِّرُوْنَ وَيَنْصَرِفُوْنَ وَلَا يَقْرَأُوْنَ) (مصنف عبد الرزاق ۴۹۲/۳)

(ابو هریره، ابو الدرداء، انس بن مالك او عبد الله بن عباس (رضی الله عن الجمیع) به په جنازه کښې سورت فاتحه لوستله او دعاګانے او استغفار به ئے د هر درے وارو تکبیرونو نه روستو لوستل او تکبیرونه به ئے وئیل بیا به واپس کیدل او نور قراءت به ئے نهٔ کولو)۔

**۱۲- د مسور بن مخرمه طریقه** :محمد بن عمرو بن عطاء فرمائی : (إِنَّ مِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ فَقَرَأَ فِي التَّكْبِيْرَةِ الْأُوْلَى فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُوْرَةً قَصِيْرَةً رَفَعَ بِهِمَا صَوْتَهُ فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ: لَا أَجْهَلُ أَنْ تَكُوْنَ هٰذِهِ الصَّلَاةُ عَجْمَاءَ وَلٰكِنْ أَرَدْتُ أَنْ أُعَلِّمَكُمْ أَنَّ فِيْهَا قِرَاءَةً) (المحلی بالآثار ۳۵۲/۳)

(مسور بن مخرمه په یوه جنازه مونځ اُوکړو نو په اول تکبیر کښې ئے فاتحه اُولوستله او ورو کے سورت په دواړو ئے آواز پورته کړو، کله چه فارغ شو وے فرمایل : زهٔ ددے نه جاهل نهٔ یم چه دا مونځ پټ دے لیکن زما اراده وه چه تاسو ته دا اُوښایم چه پدے کښې قراءت شته)۔

**۱۳- د عثمان بن حنیف او ابن الزبیر طریقه** : عَنِ ابْنِ الزُّبَيْرِ وَعُثْمَانَ بْنِ حُنَيْفٍ : أَنَّهُمَا كَانَا يَقْرَءَانِ عَلَيْهَا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ) (ابن بطال فی شرح البخاری (۳۱۴/۳) وعمدة القاری (۱۹۴/۳)

(عبد الله بن زبیر او عثمان بن حنیف رضی الله عنهما به په جنازه کښې فاتحه لوستله)

**۱۴- د عبد الله بن عمرو عمل** : عَنْ مُوْسَى بْنِ وَرْدَانَ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّهُ كَانَ يَقْرَأُ بِأُمِّ الْقُرْآنِ بَعْدَ التَّكْبِيْرَةِ الْأُوْلَى عَلَى الْجَنَازَةِ) (مسند الشافعی ص (۲۱۱) (موسی بن وردان فرمائی :

عبد الله بن عمرو بن العاص به د اول تكبير نه روستو په جنازه باندے فاتحه لوستله)۔

١٥ – قَالَ الشَّافِعِيُّ : وَبَلَغَنَا ذٰلِكَ – اَیْ قِرَاءَةُ الْفَاتِحَةِ فِی الْجَنَازَةِ – عَنْ اَبِیْ بَكْرِ الصِّدِّیْقِ وَسَهْلِ بْنِ حُنَیْفٍ وَغَیْرِهِمَا مِنْ اَصْحَابِ النَّبِیِّ ﷺ (مسند الشافعی ص:٢١٢) معرفة السنن والآثار للبیهقی (١٤٩/٣) وتهذیب الآثار لابن جریر (١٨٣/٥) (امام شافعیؒ فرمائی : مونږ ته د ابوبكر صدیقؓ او د سهل بن حنیفؓ او د دوی نه علاوه د نورو صحابه كرامو د نبی ﷺ نه دا رارسیدلی دی چه هغوی به په جنازه فاتحه لوستله)۔

١٦ – دا عمل د عبید بن عمیر او عبد الله بن زبیر رضی الله عنهما وو۔ (الاستذكار ٢٤٥/٨)

١٧ – فضاله چه د عمر فاروق آزاد كرده غلام دے فرمائی : (اِنَّ الَّذِیْ صَلّٰی عَلٰی اَبِیْ بَكْرٍ اَوْ عُمَرَ قَرَأَ عَلَیْهِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ) (ابن ابی شیبة ٢٩٨/٣) (یقیناً هغه شخص چه په ابوبكر او عمر باندے ئے جنازه كړے وه هغه په جنازه كښې فاتحه لوستلې وه) په ابوبكر باندے خو عمر فاروق جنازه كړے وه او په عمر فاروق ﷺ باندے صهیب ﷺ كړے وه۔

لنډه دا چه په جنازه كښې فاتحه لوستل د ډیرو صحابه كرامو نه ثابت دی لكه د ابوبكر صدیق، ابن مسعود، ابو هریره، ابوالدرداء، انس بن مالك، ابن عباس، عبد الله بن عمرو بن العاص، ابو امامه، ضحاك بن قیس، مسور بن مخرمه، جابر، ام غضیف، ام شریك، ابن الزبیر، عثمان بن حنیف، سهل بن حنیف، عبید بن عمیر، اسماء بنت یزید او حبیب بن مسلمه وغیره صحابه كرام رضی الله عنهم اجمعین۔ او ددے صحابه كرامو مخالف نۀ دے موجود۔ او د هیڅ صحابی نه منع د سورة فاتحے نۀ ده ثابت۔ او یل طرفته لوستل ئے نقل دی نو د فاتحے لوستل د مذهب د وجه نه پریخودل د انصاف دار مسلمان كار نۀ دے، هر مسلمان دے خپله فكر اُوكړی۔

**په تابعینو** كښې دا قول د ابن سیرین، ایوب سختیانی، سعید بن المسیب، حسن بصری، مجاهد، ابوسلیمان رحمهم الله دے۔ ابن عبد البرّ فرمائی : دا قول د یو جماعت د صحابه كرامو او د مكے او د مدینے او د بصرے د ټولو تابعینو دے چه دوی به په جنازه كښې د اول تكبیر نه روستو فاتحه لوستله۔ (الاستذكار :٢٦٢/٨)۔

## په جنازه كښې د فاتحے ثبوت د حنفی علماؤ په اقوالو

١ – شاه ولی الله محدث دهلویؒ فرمائی : (وَمِنَ السُّنَّةِ قِرَاءَةُ فَاتِحَةِ الْكِتَابِ لِاَنَّهَا خَیْرُ الْاَدْعِیَةِ وَاَجْمَعُهَا عَلَّمَهَا اللهُ تَعَالٰی عِبَادَهٗ فِیْ مُحْكَمِ كِتَابِهٖ) (حجة الله البالغة ٣٢/٢) (په جنازه كښې سورت فاتحه لوستل سنت سره ثابت دی ځكه چه دا (سورت فاتحه) ډیره غوره او جامعه دعاء ده چه الله تعالیٰ بندګانو ته په خپل محكم كتاب كښې ددے تعلیم وركړیدے)۔

۲- عبد الحی اللکنویؒ فرمائی : خلاصه : مرفوع احادیث او موقوف آثار راغلی دی چه دلالت کوی په مشروعیت د قراءت د فاتحې په مانځه د جنازه کښې پس د اول تکبیر نه او بعض آثار ددې په ترك کښې راغلی دی او دا سبب د اختلاف د امامانو گرځیدلې دے ددے په باره کښې لیکن پدے کښې راجح او غوره دا ده چه فاتحه اُولوستلې شي په طریقه د استحباب یا سنیت ځکه چه دا ثابته ده په ډیرو احادیثو سره اگر که بعض پکښې ضعیف دی لیکن بعض چه بعضو سره یو ځائې شي نو وثاقت (مضبوطوالې) ورکوی او دیته په مطلقاً مکروه وئیلو، یا د قراءت په نیت نهٔ د ثناء په نیت مکروه وئیلو باندې هیڅ قسم دلیل په هیڅ وجه سره دلالت نهٔ کوی۔ الخ (انتهت ترجمة العبارة) (امام الكلام مع غيث الغمام ص (١٦٩) انظر فتاوى الدين الخالص (١٦٤/٧)

بیا فرمائی : د کومو صحابو نه چه نفی د قراءت راغلې ده نو د هغې نه مراد فرضیت د قراءت د فاتحې منفی کول دی او هر چه کراهت دے نو هغه بالکل نهٔ فائده کوی۔ الخ۔

**حاصل** دا شو چه سورة فاتحه لوستل ضروری او لازم دی او ددے نه بغیر مونځ نهٔ کیږی او امام نوویؒ فرمائی : چه جمهور علماء دیته واجب وائی۔ (المجموع ٢٤٣/٥)

او دا مذهب د شافعیؒ، احمدؒ او اسحاقؒ وغیره دے۔ او همدا حق دے (المرعاة)

تفصیل دپاره فتاوى الدين الخالص (١٦٦/٧) المرعاة (٣٨٠/٥) والنيل (١٠٣/٦) ته رجوع اُوکړه۔

**د احنافو دلیل** : احناف علماء د فاتحې نهٔ وئیلو دپاره دا دلیل وائی چه عبد الله بن مسعودؓ فرمائی : (لَمْ يُوَقِّتْ لَنَا فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْمَيِّتِ قِرَاءَةً وَلَا قَوْلٌ) (رواه احمد) (مونږ دپاره په مړی باندې په مانځه کښې څه قراءت او وینا نهٔ ده مقرر کړے شوې۔ كما في البدائع وغيره)

**الجواب** : عبد الحی اللکنویؒ فرمائی : پدے قول د ابن مسعودؓ باندې استدلال کول هیڅ فائده نهٔ ورکوی ځکه چه پدے کښې توقیت (مقررول) نفی شویدی۔ نو دا دلالت نهٔ کوی په نفی د اصل قراءت باندې۔ او بل طرفته د عبد الله بن مسعودؓ نه ثابت دی چه هغه به پکښې قراءت لوستلو۔ لکه مونږ به ئې روستو ذکر کړو۔ (او هغه مونږ مخکښې ذکر کړیدی اُوگوره) او راوی چه کله د خپل روایت خلاف عمل اُوکړی نو د هغه په روایت باندې عمل ساقطیږی۔ (عند الاحناف) (امام الكلام وانظر المرعاة ايضاً)

۲- دویم جواب : کـه دا ثابت شي نو دا معارضه نشي کولې د مرفوع احادیثو ځکه چه دا نفی ده پدې باندې به اثبات مقدم کولې شي۔ (المرعاة ٣٨١/٥)

۲- **دلیل** : طحاویؒ وائی : هرکله چه فاتحه او قرائت د دویم تکبیر نه روستو نهٔ کیږی نو معلومه شوه چه د اول تکبیر نه به هم روستو نهٔ کیږی ځکه چه هر تکبیر قائم دے په مقام د رکعت۔

الجواب : دا قياس دے په مقابله د نص کښې او طحاوۍ اکثر همداسے کوی۔

۳- **دليل** : د ابو هريرةؓ نه نقل دی چه هغه ته چا اُووئيل : ته څنګه د جنازے مونځ کوے ؟ نو هغه ورته اُووئيل : زهٔ د جنازے پسے د هغوی دکور والو نه روان شم کله چه جنازه کيخودلے شی نو تکبير اُووايم، اود الله تعالیٰ حمدونه وايم، بيا درود په نبی ﷺ اُووايم بيا وايم : اللهم انه عبدك الخ۔ (مالك فی الموطأ (۷۹)

الجواب : د الله حمد وايم: دا جمله په ثناء دلالت نهٔ کوی بلکه ددے نه مراد همدغه سورت فاتحه ده۔ فتدبر۔

۴- **دليل** : ابو حمزه وائی : ما ابن عباسؓ ته اُووئيل : زهٔ په کعبه کښې څنګه مونځ اُوکړم ؟ وے فرمايل :(كَمَا تُصَلِّيْ فِي الْجَنَازَةِ، سَبِّحْ، وَكَبِّرْ وَتَضَرَّعْ وَاسْتَغْفِرْ وَلَا تَرْكَعْ وَلَا تَسْجُدْ) (اخبار المدينة ومكة لعمر بن شبة – فتح الباری ۳/٤٦٩) (وسنده صحيح)

(لکه څنګه چه ته په جنازه مونځ کوے، تسبيح وايه، الله اکبر وايه، او الله تعالیٰ ته عاجزی کوه او بخنه غواړه او رکوع او سجده مه کوه)۔

**الجواب** : ۱- پدے کښې دعاء د استفتاح نشته کوم چه عام احناف وائی (سبحانك اللهم وجل ثناء ك ولا اله غيرك)۔ ۲- دويم دا چه پدے روايت د ابن عباس کښې تشبيه صرف په عدم رکوع او سجد کښې ده ځکه د ابن عباس په نيز باندے په کعبه کښې دننه مونځ نهٔ دے ثابت۔

۳- دريم دا چه دا په کوم کتاب کښې راغلی دی چه د (سبح) معنیٰ دعاء د استفتاح ده کوم چه احناف وائی ؟ دا نهٔ دے مګر استدلال دے په مجملاتو اومتشابهاتو او پريخودل د صريح نصوصو دے۔

۵- **دليل** : علاء بن المسيب د خپل پلار نه نقل کوی هغه د علی ؓ نه (أَنَّهٗ كَانَ إِذَا صَلّٰى عَلٰى مَيِّتٍ يَبْدَأُ بِحَمْدِ اللهِ وَيُصَلِّيْ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ ثُمَّ يَقُوْلُ : اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا الخ) (ابن ابی شيبة (۳/۲۹۵)

(چه هيغه به کله په مړی مونځ کولو نو اول به ئے الحمد لله اُووئيله بيا به ئے درود بيا دعاء وئيله)۔

**جواب** : ۱- دا روايت ضعيف دے په سند کښې ئے محمد بن فضيل صدوق راوی دے ليکن هغه په تشيع سره ويشتلے شويدے۔ ۲- دويم دا چه پدے کښې دعاء د استفتاح کومه ده ؟ بلکه ظاهر دا ده چه د الحمد نه مراد سورة الفاتحه ده۔ نو دا بعينه دليل د فاتحے وئيلو دے۔

۳- دريم دا چه دا اثر موقوف غير صريح دے، څنګه الحمد به وائی او کوم الفاظ به استعمالوی نو دا مرفوع احاديثو ته راجع کول پکار دی او په مرفوع احاديثو کښې فاتحه ضروری خوډلے شويده۔

بعض احناف لکه طحاويّ وغيره وئيلي دي چه کوم احاديثو کښې فاتحه لوستل راغلي دي نو هغه په نيت د دعاء وئيل شويده نۀ په نيت د قراءت او تلاوت سره ـ ددې جواب دا دې چه دا هسې دعویٰ ده هيڅ دليل پرې نشته، د هغه صحابه کرامو د نيت نه څوك خبر شو، او ظاهر کښې څه دليل پرې نشته.

۲- بله دا چه په هر نيت وي خو فاتحه ضروري ده، د خپل ځان نه په بهانو باندې ساقطول د اهل زيغو کار دې.

**خلاصه** دا شوه چه فاتحه وئيل په قوي او مرفوع احاديثو سره صراحةً ثابته ده او د فاتحې نه منع په هيڅ حديث کښې نۀ ده ثابته. او نۀ ثناء (سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَجَلَّ ثَنَاءُ كَ) په کوم مرفوع حديث کښې راغلې ده. او صحيح صريح موقوف آثار هم پکښې نشته نو د ثناء وئيل او فاتحه چه په صحيح مرفوع احاديثو کښې ثابته ده نۀ وئيل خپل مونځ برباد ول دي. والله تعالىٰ اعلم. امام احمدؒ فرمائي : ما استفتاح (ثناء) وئيل په جنازه کښې د علماؤ نه نۀ دي آوريدلي. (ابوداود فی مسائل احمد (۱۵۳) شيخ البانيؒ فرمائي : ثناء وئيل په جنازه کښې نۀ دي مشروع او دا قول د شوافعو وغيرو دې.

(راجع فتاوی الدين الخالص (۷/۱۵۴) وتحفة الاحوذی (۴/۹۵) طبع دار الكتب بيروت) والمرعاة (۵/۳۸۰) احكام الجنائز (۱۱۹) بغية المتطوع (۶۶)

**طريقة الجنازه** : د جنازې شرعي طريقه دا ده چه د مذکر مړي سر ته او د ښځې کوناټو ته به مخامخ اُودريږي او اول به الله اکبر اُووائي، بيا به سورة الفاتحه اُووائي او يو سورت ورسره ملګرې کول هم مستحب عمل دې. او بيا به الله اکبر اُووائي نو درود ابراهيمي به شروع کړي (نۀ هغه درود چه احناف ئې وائي ځکه چه دا په هيڅ کتاب د حديثو کښې نشته دا صرف په سوال باسولي شرح د شرح جامي کښې راغلي دې د تنازع د فعلينو مثال کښې ئې ذکر کړيدې وَصَلَّيْتَ وَسَلَّمْتَ وَرَحِمْتَ وَتَرَحَّمْتَ دا نشته) بيا به الله اکبر اُووائي او دعاګانې به شروع کړي هره دعاء چه وائي. بيا به الله اکبر اُووائي بيا به سلام واړوي. د څلورم تکبير نه روستو هم دعاګانې کولې شي. بيا به سلام اړوي او که زيات تکبيرونه وائي تر نهو پورې وئيلې شي. او روستنو کښې دې دعاګانې نۀ وائي.

او د هر تکبير سره لاسونه پورته کول هم جائز دي اګرکه اکثر دا ده چه اُوچت نۀ کړې شي.

او يو سلام ګرځول هم جائز دي، د رسول الله ﷺ نه ثابت دي. (وَسَلَّمَ تَسْلِيْمَةً وَاحِدَةً- عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ مَرْفُوْعًا) دارقطني (۲/۷۲) باسناد حسن) والحاكم (۱/۳۶۰) ـ والله تعالىٰ اعلم. بلکه د يو سلام

والا روایت قوی دے او د دوه سلامونو روایت البانیؒ حسن کړیدے او د زبیر علی زئ په نیز ضعیف دے لیکن مونږ ته غوره دا ښکاری چه پدے عمل جائز دے۔

---

**١٦٥٤ (١٠) - وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: صَلَّى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَلَى جَنَازَةٍ فَحَفِظْتُ مِنْ دُعَائِهِ وَهُوَ يَقُوْلُ: «اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ وَعَافِهِ وَاعْفُ عَنْهُ وَأَكْرِمْ نُزُلَهُ وَوَسِّعْ مُدْخَلَهُ وَاغْسِلْهُ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ وَنَقِّهِ مِنَ الْخَطَايَا كَمَا نَقَّيْتَ الثَّوْبَ الْأَبْيَضَ مِنَ الدَّنَسِ وَأَبْدِلْهُ دَارًا خَيْرًا مِنْ دَارِهِ وَأَهْلًا خَيْرًا مِنْ أَهْلِهِ وَزَوْجًا خَيْرًا مِنْ زَوْجِهِ وَأَدْخِلْهُ الْجَنَّةَ وَأَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَمِنْ عَذَابِ النَّارِ». وَفِي رِوَايَةٍ: «وَقِهِ فِتْنَةَ الْقَبْرِ وَعَذَابَ النَّارِ». قَالَ حَتّٰى تَمَنَّيْتُ أَنْ أَكُوْنَ أَنَا ذٰلِكَ الْمَيِّتَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.**

ترجمه: او عوف بن مالك ؓ فرمائی: (یو ځل) رسول الله ﷺ په یوه جنازه باندے مونځ اُوکړونو ما د هغه د دعاء نه زده کړل چه داسے ئے وئیل: اللهم اغفر له. الخ اے الله ! دده ګناه اُوبخه او په ده رحم اُوکړه او دا په عافیت کښې اُوساته۔ او ده ته (دده د لغزشونو) معافی اُوکړه او دده میلمستیا ښه کړه او دده ځائے د داخلولو (قبر) فراخه کړه او دا په اُوبو، واوره او ګلئ سره اُووینځه او دا د ګناهونو نه داسے صفا کړه لکه څنګه چه تا سپینه جامه د خیرې نه صفا کوے او ده ته په بدله کښې دده د (دنیا) کور نه غوره کور (د آخرت) ورکړه او دده د خادمانو نه غوره خادم ورکړه او دده د ښځې نه غوره ښځه ورکړه او دا جنت ته (بغیر د عذاب نه ابتداءً) داخل کړه او دا د قبر د عذاب نه او د اُور د عذاب نه بچ اُوساته او په یو روایت کښې دی: او دا د قبر د فتنے (یعنی د ملائکو په جواب کښې د حیرانتیا او عذاب نه) او د اُور د عذاب نه بچ اُوساته۔ عوفؓ فرمائی: (چه کله نبی ﷺ د ژیے نه دا دعاء ددے مړی دپاره ما واوریدله) نو ما ارمان اُوکړو چه زهٔ دا مړے وے۔ (او نبی ﷺ دا دعا ما دپاره کړے وے ځکه چه د هغه دعا خو ضرور قبلیږی)۔ (مسلم)۔

**تشریح : فَحَفِظْتُ مِنْ دُعَائِهِ :** په بل روایت کښې دی: (سَمِعْتُهُ صَلّٰى عَلٰى جَنَازَةٍ يَقُوْلُ) (ما ترے واوریدل چه په مانځه د جنازه کښې ئے داسے وئیل) دا دلیل دے چه رسول الله ﷺ دا دعاء په جهر سره وئیلے وه پدے وجه چه عوف بن مالك ؓ آوریدلے او یاده کړے وه۔ نو پدے کښې رد دے په تاویل د بعض علماؤ چه وائی: (اَیْ عَلَّمَنِیْهِ بَعْدَ الصَّلَاةِ فَحَفِظْتُهُ) (نووی) (ما ته ئے د مانځه نه روستو تعلیم راکړو نو ما زده کړه) دا تاویل ضعیف دے وجه دا ده چه د صحابه کرامو ذهنونه تیز وو یو کرت آوریدلو سره به ئے خبره یادیدله نو دا دلیل دے چه معمولی شان جهر پدے دعاء جائز دے۔

علامه شوکانیؒ فرمائی : ددے روایت د تولو الفاظو نه دا خبره معلومیږی چه نبی ﷺ په دعاء جهر کړیدے او دا مخالف دے د هغه خبرے نه چه یو جماعت کړیده چه دعاء په پټه لوستل مستحب دی۔ بعض وائی: دا جهر په دعاء سره د تعلیم دپاره وو۔ لیکن ظاهر دا ده چه جهر او پټ لوستل دواړه جائز دی۔ انتهی (نیل الاوطار٤/١٠٧)

شوکانیؒ فرمائی : ددے دعاء او د نورو دعاګانو مُعین ځائے مقرر نهٔ دے د هر تکبیر نه روستو ئے وئیلے شی۔ اګرکه رسول الله ﷺ د څلورم تکبیر نه روستو لوستلی دی لیکن هغه دلالت په تعیین نهٔ کوی۔ اګرکه مستحب دا ده چه د څلورم تکبیر نه روستو ئے اُووائی د وجه د حدیث د عبد الله بن ابی اوفیٰؓ نه۔ (المصدر المذکور)

اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهٗ : یعنی اے الله ! دهٔ ته د ګناهونو بخنه اُوکړه۔

وَارْحَمْهُ : او رحم پرے اُوکړه په قبلولو د طاعاتو سره۔

وَعَافِهٖ : یعنی دهٔ لره د مکروهاتو او تکلیفونو نه خلاص کړه۔ دا امر دے د معافات نه۔ روغ ساتلو ته وئیلے شی۔ طیبیؒ معنی کوی : (سَلِّمْهُ مِنَ الْعَذَابِ وَالْبَلَايَا) (دا د عذاب او مصائبو نه بچ اُوساته)۔

وَاعْفُ عَنْهُ : دا یا تاکید دے د عافه دپاره۔ یعنی زائل کړے دهٔ نه مشکلات او هر ضرری شے۔ یا د هغے نه خاص دے او معنیٰ ده: د ګناهونو د خطرے نه ئے بچ اُوساتے۔ او د هغے بد اثر ترے لرے کړه۔ یا عفو د ګناهونو مراد ده۔ وهو الظاهر۔

نُزُلَهٗ : په ضمه د نون سره میلمستیا ته وئیلے شی دلته ترے مراد اجر او ثواب او رحمت او مغفرت دے۔ یعنی مزیداره کړے میلمستیا دهٔ په قبر او په جنت کښ۔ ددے نه معلومیږی چه مړے چه کله ددے دنیا نه قبر ته نقل کیږی نو دا به یا په نعمتونو کښ وی نو د الله تعالیٰ په میلمستیا کښ راغلو او یا به پرے عذابونه وی اعاذنا الله منه۔

مُدْخَلَهٗ : ځائے د داخلیدو ددهٔ چه هغه قبر دے۔ نو دا په فتحه د میم شو۔ یا په ضمه د میم دے لکه قرآن کریم کښ ﴿مُدْخَلًا كَرِيْمًا﴾ راغلے دے نو بیا مصدر میمی دے په معنیٰ د ادخال (داخلولو) سره دے۔ یعنی ددهٔ داخلول فراخه کړه) اکثر علماؤ ضمه غوره کړیده۔

بِالْمَآءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ : لکه دا څیزونه څنګه د خیرو او ګندونو د پاکوالی انواع او اقسام دی نو دغه شان دهٔ باندے انواع او اقسام د رحمت نازل کړے چه هغه ګناهونه معاف کول او عذاب نهٔ ورکول دی او بیا احسانات کول دی۔ نو مقصد پدے کښ تعمیم د اقسامو د رحمت او مغفرت دے په مقابله د اقسامو د معصیت او غفلت کښ۔

**وَنَقِّهِ** : دا امر دے د باب تنقیه نه په معنیٰ د پاکولو سره دے او هاء په کښې ضمیر دے چه راجع دے میت (مړی) ته یا هاء د سکتے ده۔

**دَارًا** : ددے نه د دنیا کور او د قبر کور مراد دے۔

**وَأَهْلًا** : دا ښځې او خادمانو ته شامل دے۔

**وَزَوْجًا خَيْرًا مِنْ زَوْجِهِ** : دے باندے بعض علماء دا اشکال کوی چه یوه زنانه وفات شی او د هغه خاوند لا نۀ وی وفات شوے یا ډیر غوره نۀ وی نو آیا ښځې ته به بل خاوند ورکولے شی؟ دے کښې به خو د ډیرو بد اعمالو خلقو ښځې نیکان واخلی؟ نو دا دعاء څنګه کولے شی؟

**جواب** : ددے اشکال په جواب کښې علامه سیوطیؒ د بعض فقهاؤ نه داسے نقل کړیدی چه دا دعاء به صرف د سړی پورے خاص وی یعنی کله چه سړے مړ شی نو دا دعاء به ورته کولے شی چه اے الله! دۀ ته د دنیا د ښځو نه غوره ښځې ورکړه چه هغه د جنت حورے دی ځکه چه سړے په ډیرو ښځو کښې شریك کیدلے شی او ښځه په ډیرو کښې نشی شریك کیدلے۔

(قاله السندی فی حاشیة النسائی)

۲ – دویم جواب دا دے چه دلته خیریت په صفاتو کښې مراد دے یعنی اے الله! دے ښځې ته ددے خاوند نه غوره جوړ کړه، شکل او صورت ئے هم ښائسته کړه او اخلاق ئے هم مزیدار کړه او که ددے نه ئے مرتبه خکته وی نو خاوند ورسره پس د مرګ نه پیوسته کړه۔ او که مخکښې ترے مړ شوے وی نو بیا ئے ورسره په ښائسته اخلاقو او صفاتو یو ځائے کړه۔ او کله چه خاوند ئے کافر او منافق وی نو بیا ورله بل خاوند ورکړه چه د دغه منافق او کافر نه ورله غوره وی۔ او که د یو سړی ښځه نۀ وی نو هغه دپاره به هم دا دعاء کولے شی او مطلب به ئے دا وی چه دۀ له غوره ښځه ورکړے د هغه ښځې نه چه دۀ ئے په دنیا کښې اراده د نکاح کوله۔ (زَوْجًا خَيْرًا مِنْ زَوْجِهِ لَوْ تَزَوَّجَ أَوْ أَرَادَ التَّزَوُّجَ) (الشرح الممتع علی زاد المستقنع لمحمد بن صالح العثیمین ٥/٢٢٤)

**دویم اشکال** : که هغه شخص چه په هغه جنازه کولے شی سړے وی او مونږ داسے اُووایو چه دۀ له په بدله کښې ورکړے ښځه غوره ددۀ د ښځې نه نو دا تقاضا کوی چه حورے غوره دی د دنیا د زنانو نه ؟ او حال دا چه د روایاتو نه معلومیږی چه د دنیا زنانه د حورو نه غوره دی ځکه چه دوی عبادتونه کړیدی او په دنیا کښې ئے تکلیفونه تیر کړیدی؟ **جواب** : ددے جواب د مخکښې نه معلوم شو او هغه دا چه پدے کښې دا صراحت نشته چه حورے د دنیا د زنانو نه غوره دی ځکه چه کله ددے خیریت نه په اخلاقو کښې خیریت مراد وی یعنی غوره اخلاقو والا زنانه ورله ورکړے او خیریت عند الله نۀ دے مراد۔ (الشرح الممتع)

وَأَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ : **سوال** : هركله چه د جنت سوال ورله اُوكړے شي او انسان جنت ته داخل شو نو بيا د عذاب د قبر نه ورله پناهي ولے غواړي؟

**جواب** : كله يو انسان جنت ته داخل كړے شي ليكن لاره كښې پرے ډير عذابونه راشي د قبر عذاب وي بيا د حشر تكليفونه وي، كله اُور ته گوزار شي بيا جنت ته داخل كړے شي، نو ته ورله داسے دعاء كوے چه جنت ته ئے داخل كړه بغير د عذابِ قبر وركولو نه. (الشرح الممتع٥/٢٢٥).

**فائده**: د منقول اذكارو الفاظ بدلول صحيح نۀ دي بلكه كه د مذكر ضمير وي او كه د مؤنث خو دا ميت (مړي) ته راجع دي او د ميت دپاره د مذكر او مؤنث دواړو ضمائر استعماليږي. دغه شان شوكانيؒ وئيلي دي او عظيم آباديؒ ئے تحسين كړيدے.(نيل الاوطار (٤/١٠٨) (عون المعبود (٣٥٧/٨) الشرح الممتع٥/٢٢٥).

**فائده** : په جنازه كښې په شرعي اذكارو او منقولو دعاگانو باندے راتلل كول مستحب او افضل عمل دے، او هر قسم دعاء لوستلو اجازه په (فَأَخْلِصُوا لَهُ فِي الدُّعَاءِ) سره راغلے ده (يعنې، مړي ته په دعاء كولو اخلاص اُوكړئ) ددے وجه نه صحابه كرامؓ به مختلف قسم دعاگانے د مړو دپاره كولے لكه ابن ابي شيبه كښې د جابرؓ روايت دے فرمائي : (مَا أَبَاحَ لَنَا رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ وَلَا أَبُوبَكْرٍ وَلَا عُمَرُ فِي الصَّلَاةِ عَلَى الْمَيِّتِ شَيْئًا) (ابن ابي شيبة ٣/٣٩٤) باب مَنْ قَالَ : لَيْسَ عَلَى الْمَيِّتِ دُعَاءٌ مُوَقَّتٌ وَادْعُ بِمَا شِئْتَ) (مونږ دپاره رسول الله ﷺ او ابوبكر او عمر د جنازے په مانځه كښې دعاء نۀ ده مقرر كړے (چه صرف همدغه به وايو او بله به نۀ وايو) بلكه دے باره كښې اجازه ده. نو كه تاسره شرعي اذكار او دعاگانے ختمے شي نو د ځان نه ئے هم جوړولے شے. اللهم اغفر للمؤمنين والمؤمنات والمسلمات الى آخره. په فتاوى الدين الخالص (٢٠٣/٧) كښې د صحابه كرامو مختلفې دعاگانې اُوگورئ.

او دا اذكار د مذكر او مؤنث اُو ماشوم او لوئي تولو دپاره لوستلے شي. د ښځو او سړو ترمينځ په صيغه كښې فرق كول په هيڅ حديث كښې نشته دا د عوامو او د بعض بے تحقيقه علماؤ خبره ده. البته د حسن بصريؒ نه دا نقل دي چه ماشوم دپاره به داسے دعاء كولے شي : (اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ لَنَا فَرَطًا وَسَلَفًا وَأَجْرًا) (صحيح البخاري١/١٧٨) (اے الله ! دا زمونږ دپاره مخكښې ليږلے شوے خير او شفاعت كونكے او اجر اُوگرځوه).

ليكن دا خبره څه ضروري نۀ ده. بلكه مخكښې دعاگانے ورله هم كافي كيږي. او كه مور او پلار ته ورله دعاء كوي هم جائز ده. لكه روستو به راشي.

١٦٥٤ (١١) - وَعَنْ أَبِيْ سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ عَائِشَةَ لَمَّا تُوُفِّيَ سَعْدُ بْنُ أَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَتْ: أَدْخِلُوْا بِهِ الْمَسْجِدَ حَتّٰى أُصَلِّيَ عَلَيْهِ فَأُنْكِرَ ذٰلِكَ عَلَيْهَا فَقَالَتْ: وَاللّٰهِ لَقَدْ صَلّٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَلَى ابْنَيْ بَيْضَاءَ فِي الْمَسْجِدِ: سُهَيْلٍ وَأَخِيْهِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه: او ابوسلمه بن عبد الرحمن رحمه الله فرمائي: کله چه سعد بن ابی وقاص ﷜ وفات شو نو عائشې رضی الله عنها اُوفرمايل: دا مسجد ته راننباسئ دې دپاره چه زۀ پرې د جنازې مونځ اُوکرم. نو په عائشې باندې (د بعض خلقو د طرف نه) ددې خبرې انکار اُوکړې شو (چه په مسجد کښې جنازه څنګه ادا کړې شي) نو عائشې اُوفرمايل: قسم په الله! رسول الله ﷺ د بيضاء په دوارو ځامنو سهيل او د هغه په ورور (سهل) باندې په مسجد کښې د جنازې مونځ کړې وو. (مسلم).

**تشريح: لَمَّا تُوُفِّيَ سَعْدٌ**: دا په عقيق علاقه کښې په خپل قصر کښې بناء په مشهور قول سره په سنه (٥٥هـ) کښې وفات شويدې چه دا د مدينې نه لس ميله وراندې علاقه ده بيا د سړو په څټونو مدينې ته راوړې شو او په بقيع کښې ښخ کړې شو او دا د معاويه ﷜ د خلافت دور وو. او په مدينه باندې مروان والي وو.

**أَدْخِلُوْا بِهِ الْمَسْجِدَ**: دا ئې مسجد ته ولې راداخل کړو؟ علامه باجيؒ ددې وجه دا بيان کړې چه رسول الله ﷺ زنانه او خپلې بيبيانې د خلقو سره جنازو ته د وتلو نه منع کړې وې نو د دوی جنازو ته وتل مکروه وو. پدې وجه ئې د سعد مسجد ته د راداخلو مطالبه ئې اُوکړه.

**حَتّٰى أُصَلِّيَ عَلَيْهِ**: دا دليل دې چه په جنازه باندې د زنانو مونځ بغير د کراهت نه جائز دې. ځکه چه هرکله عائشې هغوی ته د رسول الله ﷺ حديث پيش کړو نو هغوی وړسره خبره اُومنله.

**مسئله**: د زنانو دپاره د جنازې کولو دوه صورتونه دي (١) يو دا چه جنازګاه ته حاضره شي يعني جنازې دپاره بهر اُوځي کوم ځائې چه سړي جنازه کوي او ښځې هم وړپسې رواني شي نو داسې صورت کښې زنانه دپاره وتل جائز نۀ دي ځکه چه د نبي ﷺ په زمانه کښې به زنانه ؤ د سړو سره شريکه جنازه نۀ کوله چه بهر وتلې وي. او په حديث کښې منع هم راغلې ده ام عطيهؓ وئيلي دي: (نُهِيْنَا عَنْ اِتِّبَاعِ الْجَنَائِزِ) (بخاري) (مونږ د جنازو پسې د روانيدو نه منع شوی يو).

(٢) دويم صورت دا دې چه زنانه ئې مستقله جنازه اُوکړي پدې طريقه چه جنازه د هغوی خوا ته راوړې شي، يا د سړو سره په مسجد يا کور کښې شريکه شي. او بهر ته پسې اُونۀ وځي نو بالکل جائز

ده۔ يو دليل دا حديث الباب دے او دويم دا چه عائشے رضی الله عنها د خپل ورور عبد الرحمن په قبر مونځ کړے وو۔ (مصنف عبد الرزاق ۵۱۸/۳) السنن الکبری للبیهقی (٤٩/٤) المحلی (١٤٢/٥)۔ او دا مونځ ئے په حضور د صحابه کرامو کښې کړیدے او هیڅ یو صحابی پرے انکار نۀ دے کړے۔

۳- دريم : عبد الله بن ابی طلحه فرمائی : کله چه عمیر بن ابی طلحه وفات شو نو ابو طلحه رسول الله ﷺ د هغه جنازے ته راوغوختو نو رسول الله ﷺ هغوی ته راغلو او د هغوی په کور کښې ئے په هغه جنازه اُوکړه رسول الله ﷺ مخکښې شو او ابو طلحه روستو او ام سلیم د ابو طلحه نه روستو اُودریده او د دوی سره نور څوك نۀ وو۔

(المستدرك ٣٦٥/١) علی شرط مسلم احکام الجنائز للالبانی (۹۸)

دلته ام سلیمؓ د رسول الله ﷺ سره جنازه کړیده۔ او په (مَنْ صَلّٰی عَلٰی جَنَازَةٍ فَلَهٗ قِيرَاطٌ) الحدیث کښې مَنْ لفظ عام دے سړو او زنانو ټولو ته شامل دے۔ والله تعالیٰ اعلم بِحکمِ شرعهٖ۔

بیا زنانه چه مستقله جنازه کوی نو امام به ئے کوم ځائے اُودرېږی نو احمدؒ او ابو حنیفهؒ وائی چه مینځ کښې به اُودرېږی۔ امام شافعیؒ وائی : یو اځے یو اځے مونځ به کوی، بعضے به د بعضو نه نۀ مخکښې کیږی او که جماعت ئے اُوکړو نو هم جائز ده۔(المرعاة ۳۸۵/۵) لیکن پدے خبرو دلیل نشته۔ هان د ښځو په امامت کښې به زنانه امام په مینځ کښې اُودرېږی همدا سنت دی۔ کما فی الدین الخالص (۵)

**تعارف د ابنی بیضاء :** بیضاء : دا لقب د مور د سُهیل دے چه نوم ئے دَعْد بِنْتُ الْجَحْدَمِ الْفِهْرِيَّه ده او د سُهیل د ورور نوم سَهل دے۔ بعض وائی : صفوان دے۔ د بیضاء درے ځامن وو، سهیل، سهل او صفوان او پلار ئے وهب بن ربیعة القرشی الفهری وو۔ درے واړه ورونو ته د اسلام او صحبت عظیم منقبت حاصل دے۔(الروض الانف ۱٦٢/٢)

سهل پکښې هغه شخصیت وو چه د قریشو د هغه صحیفے په ماتولو کښې ئے کوشش کړے وو کوم چه قریشو د بنی هاشمو په خلاف لیکلے وه او هغوی ئے په شعب ابی طالب کښې راګیر کړی وو۔ ابو حاتمؒ وائی : دۀ په مکه کښې اسلام راښکاره کړے وو۔ ابن عبد البرؒ وائی : سهل په مکه کښې په اسلام مشرف شوے وو۔ او اسلام ئے پټ ساتلو نو قریشو د خپل ځان سره بدر ته راویستے وو، په بدر کښې د مشرکانو سره قیدی شو۔ نو عبد الله بن مسعودؓ ددۀ په حق کښې ګواهی ورکړه چه دا ما په مکه کښې په مانځه لیدلے وو نو هغه ئے پریخودو۔ او بیا په مدینه کښې وفات شویدے۔

او په مدینه کښې ددۀ ورور چه سهیل دے هم وفات شوے۔ او په دواړو باندے رسول الله ﷺ په

مسجد كښې جنازه اُوكړه. او سهيل بن بيضاء قديم الاسلام دے حبشو ته ئے هم هجرت كړيدے. او ټولو غزواتو كښې شامل شويدے.

---

**۱۶۵۶ (۱۲) – وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ قَالَ: صَلَّيْتُ وَرَاءَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ عَلٰى امْرَأَةٍ مَاتَتْ فِيْ نِفَاسِهَا فَقَامَ وَسْطَهَا. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه :** او سمره بن جندب رضی الله عنه فرمائی : ما د رسول الله ﷺ پسے په يوه ښځه د جنازے مونځ اُوكړو چه هغه په خپل نفاس كښې وفات شوے وه نو رسول الله ﷺ د هغې مينځ (يعنى كناتو ته مخامخ) اُودريدو. (بخاريؒ ومسلمؒ).

**تشريح : امْرَأَةٍ :** په روايت د مسلم كښې ددے زنانه نوم ام كعب الانصاريه خودلے شويدے.

**فِيْ نِفَاسِهَا :** يعنى د بچى د ولادت په حالت كښې وفات شوے وه. (فى) دلته د تعليل دپاره ده. يعنى لِاَجْلِ نِفَاسِهَا. د نفاس د وجه نه وفات شوے وه.

دا حديث دليل دے چه سنت دا ده چه امام يا يواځے مونځ كونكے به د جنازے په مانځه كښې د ښځے كناتو ته مخامخ اُودريږى.

**مسئله : د جنازے په وخت به امام د سړى يا زنانه كوم ځائے ته اُودريږى ؟**

پدے كښې صحيح او د سنت مطابق طريقه دا ده چه امام به د سړى سر ته او د ښځے مينځ (كُناتو) ته اُودريږى او دا قول د جمهور اهل العلم دے او دا مذهب د شافعيؒ، اسحاقؒ او ابويوسفؒ دے او امام ترمذيؒ د امام احمدؒ نه نقل كړے، او دا يو روايت دے د امام ابوحنيفةؒ ئا لكه صاحب هدايه نقل كړے. او طحاويؒ دا قول د امام ابوحنيفةؒ راجع گرځولے دے په بل مشهور قول باندے او دا ئے وئيلى دى چه دا قول مونږ ته ډير محبوب دے ځكه چه ددے تقويه هغه آثار كوى كوم چه مونږ د رسول الله ﷺ نه نقل كړل. (شرح معانى الآثار)

۲– د امام ابوحنيفةؒ مشهور قول دا دے چه د سړى او د ښځے دواړو سينے ته به اُودريږى.

۳– امام مالكؒ وائى : د دواړو سر ته به اُودريږى او يو روايت د امام مالكؒ نه دا هم منقول دے چه د سړى مينځ ته او د ښځے د اُوگوسره به اُودريږى.

٤– امام احمدؒ وائى لكه صاحب مغنى او خطابيؒ ترے نقل كړيدى چه امام به د ښځے مينځ ته او د سړى سينے ته اُودريږى.

۵– بعض وائى : د سړى سر ته او د ښځو ثديين (سينى) ته به اُودريږى. او دليل ئے نيولے دے په

فعل د علیؓ باندے۔

۶- بعض وائی : د ښځې صدر (سینې) ته به اُودریږی او د سړی د سینې نه تر نامه پورې به اُودریږی۔ (نیل الاوطار، مرعاة، تحفة الاحوذی)

اول قول راجح او صحیح دے او دلائل ئې ډیر دی : بعض دا دی :

۱- یو دلیل دا حدیث الباب دے۔

**دویم دلیل** : ابو غالب الخیاطؒ وائی : ما د انس بن مالک ؓ سره د یو سړی په جنازه باندے مونځ اُوکړو نو د هغه د سر په برابرئ کښې اُودریدو بیا خلقو د قریشو د یوې ښځې جنازه راوړله نو خلقو اُووئیل : اے ابوحمزه ! پدے باندے مونځ اُوکړه : (فَقَامَ حِيَالَ وَسْطِ السَّرِيرِ، فَقَالَ لَهُ الْعَلَاءُ بْنُ زِيَادٍ : هٰكَذَا رَأَيْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَامَ عَلَى الْجَنَازَةِ مَقَامَكَ مِنْهَا، وَمِنَ الرَّجُلِ مَقَامَكَ مِنْهُ؟ قَالَ : نَعَمْ ! فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ : اِحْفَظُوْا) (ترمذی (۱۰۳۴) وابوداود رقم (۲۷۳۵) وابن ماجه (۱۲۱۴) باسناد صحیح) (نو د کټ د مینځ په برابرئ اُودریدو، نو علاء بن زیاد ورته اُووئیل : آیا دغه شان تا رسول الله لیدلے دے چه په جنازه باندے په هغه ځائے اُودریدلے دے کوم ځائے چه ته د زنانه او د سړی نه اُودریدلے؟ نو هغه اُوفرمایل : آو۔ کله چه علاء بن زیاد فارغ شو وے فرمایل : اے خلقو یاد کړئ (هٰذا طریقه د رسول الله ﷺ ده)۔ (وَفِىْ رِوَايَةٍ : فَالْتَفَتَ إِلَيْنَا الْعَلَاءُ فَقَالَ : اِحْفَظُوْهَا) (په یو روایت کښې دی : مونږ ته علاء بن زیاد اُوکتل وے وئیل : دا طریقه یاده کړئ) او په یو روایت کښې دی : (وَعَلَيْهَا نَعْشٌ أَخْضَرُ فَقَامَ عِنْدَ عَجِيْزَتِهَا) (صحیح ابی داود ۲/۶۱۵) رقم (۲۷۳۵) (او په هغې باندے شنه ډولۍ وه نو د هغې د کناټو سره اُودریدو)۔

نو پدے حدیث کښې د مخکنی حدیث د سمره بن جندب زیات وضاحت دے۔

احناف د خپل مذهب دپاره داسے دلیل وائی چه د ښځې او سړی دواړو سینے ته به ځکه اُودریږی چه سینه کښې زړۀ دے او زړۀ محل د ایمان دے۔ لیکن دا هسے رأی ده او بے ضرورته لغوه کلام دے۔ او دیته قیاس فی مقابلة النص وائی۔

بعض په روایت د ابوداود رقم (۳۱۹۵) باندے استدلال کوی چه په هغې کښې د ابو غالب نه نقل دی چه هغه فرمائی : ما د انسؓ د عمل په باره کښې تپوس اُوکړو چه هغه د ښځې کناټو ته ولے اُودریدلے وو؟ نو خلقو راته خبر راکړو چه دا پدے وجه چه مخکښې به په مړی باندے نعش (ډولۍ) نۀ وه نو امام به د ښځې کناټو ته اُودریدو چه د خلقو نه ئې پټه کړی۔

لیکن دا تعلیل او وجه بیانول د ډیرو وجونه شیخ البانی رحمه الله مردود کړیدی :

۱- اول دا چه دا روایت د مجهول نه دے (فحدثونی) خلقو راته بیان کړل نو دا خلق معلوم نۀ

دی۔د اصول الحدیث مطابق ددے روایت هیڅ قیمت نشته۔

۲- دویم دا چه دا مخالف دے د عمل د انس بن مالك نه چه راوی د حدیث دے ځکه هغه د ښځے مینځ ته ولاړ دے اګرکه ښځه په نعش کښ وه۔

۳- دریم دا چه دا مخالف دے د هغه نه چه حاضرینو د انس بن مالك د مانځه نه فهم کړیدی او بعض په هغوی کښ علاء بن زیاد عدوی دے ځکه چه هرکله هغه د انسؓ نه ددے سنت په باره کښ تپوس اُوکړو نو بیائے خپلو ملګروته مخ واړولو او ورته ئے اُوفرمایل : دا سنت یاد کړئ۔

نو که مینځ د ښځے ته د اُودریدلو دغه وجه وے نو علاء بن زیاد عدوی به ددے سنت دومره اهتمام نهٔ کولے او ملګروته به ئے ددے د یادولو امر نهٔ کولے لکه دا خبره ظاهره ده۔ والحمد لله۔

ددے وجه نه جمهورو علماؤ دے تاویل ته هیڅ نظر نهٔ دے کړے او په ظاهر ددے حدیث باندے ئے عمل کړیدے۔او هم دا حق مذهب دے۔

(المجموع شرح المهذب (۲۲۵/۵) ونیل الاوطار (۵۷/٤) احکام الجنائز ص (۱۰۹))

او صاحب هدایه د امام ابوحنیفةؒ نه دا قول هم نقل کړیدے چه هغه هم دا قول کړیدے چه د ښځے کناټو ته او د سړی سر ته به اُودریږی۔ لیکن د مشهور قول دپاره پدے حدیث کښ داسے تاویل کړی چه دا جنازه منعوشه نهٔ وه۔ نو موږ وایو چه بیا د اول قول دپاره څه دلیل شو۔ کوم چه د امام ابوحنیفةؒ نه نقل دے بیا خو دے هغه قول غلط شی لیکن دا د صاحب هدایه طرز دے چه هغه د امام ابوحنیفةؒ نه ډیر قولونه نقل کړیدی او د هریو دپاره دلیلونه وائی او حال دا چه هغه د یو بل مخالف قولونه وی۔ نهٔ به دا ګمان کوے لکه چه دا خبرے د شارع دی۔ والی الله المشتکیٰ۔

ظفر احمد عثمانی په اعلاء السنن (۲۶۵/۸) کښ د شعبیؒ او سعید بن جبیرؒ اثر راوړیدے چه اهل مکه به د سړی او ښځے ترمینځ په جنازه کښ مساوات کولو کله چه به ئے په دواړو په شریکه مونځ کولو۔ لیکن هغه هیڅ دلیل نشی کیدے وجه دا ده چه یو خو د هغه آثاره سندونه ئے نهٔ دی ذکر کړی۔

دویم دا چه هغه جدا سنت دی چه کله جنازے ډیرے وی، سړی او ښځے وی نو بیا به ټولے جنازے یو صف جوړولے شی او تقدیم او تاخیر به پکښ نشی کولے۔ نو دا جدا سنت دی، پدے سره به نور سنت نشی باطلولے۔ والله تعالیٰ اعلم۔ راجع فتاوی الدین الخالص (۱٤۳/۷)

علامه ابن الهمام په شرح د هدایه کښ او کاسانیؒ په بدائع الصنائع کښ د دغه صحیح احادیثو نه بارد تاویلات کړیدی لکه وائی : چه حدیث د سمره بن جندبؓ او حدیث د انسؓ ددے

منافی نۀ دی چه سینه دے مینځ شی بلکه سینه مینځ د بدن دے په اعتبار د توسط د اندامونو سره ځکه چه ددے نه بره لاسونه او سر دے او خکته ترے خیټه او زنګنونه دی۔ ۲- دویم : یا داسے تاویل اُوکړے شی چه دا احتمال لری چه د دواړو سینو ته ولاړ وو لیکن په یو د دواړو ځایونو کښی سر ته مائل وو او په بل ځائے کښی عورت ته مائل وو نو راوی د قرب د محلینو د وجه نه دا خیال اُوکړو چه ګنیے نبی ﷺ او انس بن مالك فرق کړے دے۔ دا تاویلات غلط او باطل دی، او آخر دوی کومے خبرے دے تاویلاتو ته مجبوره کړل؟ حال دا چه د دوی د مذهب په تائید کښی هیڅ قسم مرفوع صحیح یا ضعیف حدیث هم نشته چه هغه دلالت اُوکړی په مساوات د سری او د ښځے په جنازه کولو کښی بلکه احادیث د دوی د مذهب په خلاف راغلی دی۔ ددے وجه نه علامه مبارکفوریؒ په تحفة الاحوذی کښی د ابن الهمامؒ دغه تاویلات نقل کړی او بیا ئے وئیلی دی چه دے تاویلاتو ته هیڅ توجه نشی کیدے پس د هغه نه چه د رسول الله ﷺ نه دا ثابت شو چه هغه به د سری سر ته او د ښځے کناتو ته اُودریدو (تحفة الاحوذی ٤/١٠٨) (المرعاة (٥/٣٨٨)

علامه شوکانیؒ فرمائی : وَقَدْ عَرَفْتَ اَنَّ الْاَدِلَّةَ دَلَّتْ عَلٰی مَا ذَهَبَ اِلَيْهِ الشَّافِعِيُّ وَاَنَّ مَا عَدَاهُ لَا مُسْتَنَدَ لَهٗ مِنَ الْمَرْفُوْعِ اِلَّا مُجَرَّدُ الْخَطَأِ فِي الْاِسْتِدْلَالِ اَوِ التَّعْوِيْلِ عَلٰی مَحْضِ الرَّأْيِ وَتَرْجِيْحُ مَا فَعَلَهُ الصَّحَابِيُّ عَلٰی مَا فَعَلَهُ النَّبِيُّ ﷺ وَاِذَا جَاءَ نَهْرُ اللّٰهِ بَطَلَ نَهْرُ مَعْقِلٍ نَعَمْ لَايَنْتَهِضُ مُجَرَّدُ الْفِعْلِ دَلِيْلًا لِلْوُجُوْبِ وَلٰكِنَّ النِّزَاعَ فِيْمَا هُوَ الْاَوْلٰی وَالْاَحْسَنُ) وَلَا اَحْسَنَ مِنَ الْكَيْفِيَّةِ الَّتِيْ فَعَلَهَا الْمُصْطَفٰی ﷺ) (انتهٰی)

(نیل الاوطار (٤/١٠٩) (والتحفة ٤/١٠٨)۔

(تـا اُوپیژندل چه دلائل په مذهب د امام شافعی باندے دلالت کوی او ددے نه ماسوئ (مذاهبو) دپاره هیڅ مرفوع حدیث دلیل نشته مګر په استدلال کښی خطائی ده، یا ئے په خالص رائے باندے اعتماد کریدے یا ئے د صحابی عمل ته د نبی ﷺ په عمل باندے ترجیح ورکړیده او کله چه د الله تعالیٰ نهر راشی نو د معقل نهر باطل شی، هان البته دا خبره ده چه دے احادیثو کښی محض فعل د نبی ﷺ بیان شویدے نو دا دلیل د وجوب نۀ دے لیکن نزاع او اختلاف په افضل او احسن کښی دے او د نبی ﷺ نه د هیچا کیفیت احسن او افضل نشی کیدے)۔

خلاصه دا شوه چه د ښځے او د سری د جنازے ترمینځ فرق کول سنت طریقه ده او څوك چه فرق نۀ کوی دا هسے په خپله رایه روان دی چه هیڅ حدیث ورسره نشته او په صحیح احادیثو کښی غلط تاویلات کوی او د مذهب دپاره صحیح سنت پریدی یا د وجه د جهالت نه یا د عناد نه۔

---

۱٦۵۷ (۱۳) - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ مَرَّ بِقَبْرٍ دُفِنَ لَيْلًا فَقَالَ: (( مَتٰی دُفِنَ

هٰذَا ؟». قَالُوْا: الْبَارِحَةَ. قَالَ: «أَفَلَا آذَنْتُمُوْنِيْ ؟». قَالُوْا: دَفَنَّاهُ فِيْ ظُلْمَةِ اللَّيْلِ فَكَرِهْنَا أَنْ نُوْقِظَكَ فَقَامَ فَصَفَفْنَا خَلْفَهُ فَصَلّٰى عَلَيْهِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

**ترجمه :** او ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی : بیشکه رسول الله ﷺ (یو خل په یو قبر ورتیر شو چه (د هغې مړې) د شپې خښ شوې وو. وې فرمایل : دا شخص کله خښ شوې دې ؟ صحابه کرامو عرض اوکړو : بیګاه شپه. نبی ﷺ اُوفرمایل :« تاسو ما ته خبر ولې نهٔ دې راکړې ؟ »صحابه کرامو عرض اُوکړو چه مونږ د شپې په تیاره کښې دفن کړو نو مونږ دا بده ګنړله چه تا راپاڅوو. بیا رسول الله ﷺ راپاڅیدو مونږ د هغه نه روستو صفونه جوړ کړل نو هغه پرې د جنازې مونځ اُوکړو. (بخاری ومسلم).

**تشریح : دُفِنَ :** صیغه د مجهول ده. یعنی خښ کړې شوې وو. او پدې کښې ذکر د محل دې مراد ترې نه حال دې. قبر دفن شوې وو یعنی صاحب د قبر په قبر کښې د شپې خښ شوې وو.

او دا شخص طلحه بن براء بن عمیر البلوی وو چه د انصارو حلیف وو او مخکښې ئې قصه ذکر شویده.

**أَفَلَا آذَنْتُمُوْنِيْ ؟:** یعنی تاسو ما ته دده د مرګ خبر ولې نهٔ راکولو کله چه دا وفات شوې وو.

**فَكَرِهْنَا أَنْ نُوْقِظَكَ:** یعنی مونږه دا بده ګنړله چه تا د خوب نه رابیدار کړو.

**فَصَلّٰى عَلَيْهِ :** یعنی په همغه سحرئې د هغه په قبر باندې مونځ اُوکړو.

**فوائد الحدیث :** پدې حدیث کښې لوئې دوه مسئلې دی : ۱- اوله مسئله : دا حدیث دلیل دې چه د شپې مړې خښول جائز دی ځکه چه نبی ﷺ پدې کار باندې خبر شو او انکار ئې اُونکړو بلکه صحابه کرامو باندې ئې دا انکار اُوکړو چه تاسو ما ته ولې خبر نهٔ راکولو.

د جواز بل دلیل دا هم دې چه نبی ﷺ او ابوبکر صدیق او عمر فاروق وغیره د شپې دفن کړې شوی وو لکه امام بخاریؒ د خپل صحیح په باب الدفن لیلاً کښې ذکر کړیدی

(۱/۱۷۸) مسند احمد عن عائشة

۲- **بل دلیل** حدیث د ابن عباس دې چه نبی ﷺ یو قبر ته د شپې داخل شو نو د هغه دپاره ډیوه بله کړې شوه نو هغه مړې واخستو د قبلې د طرف نه الحدیث.

(ترمذی رقم : ۱۰۵۷) وسنده حسن

۳- **دلیل :** څه خلقو په مقبره کښې اُور اُولیدو نو د هغې خوا ته راغلل، وې لیدل چه رسول الله ﷺ په قبر کښې دې او داسې ئې فرمایل : ما ته راکړئ ستاسو ملګرې الحدیث. (ابوداود والحاکم

من حديث جابر)

او دغه شان نور ډير احاديث په مسند احمد، ابن ابي شيبه، بيهقي، مؤطا او الاستذكار او التمهيد د ابن عبد البرّ کښې موجود دي۔

او دا قول د امام مالك، شافعيّ او د امام احمدؒ مشهور او اصح قول دے، او د امام ابوحنيفهؒ او جمهورو قول دے۔

**(۲) قول ثاني :** قتادهؒ او حسن بصريؒ، سعيد بن المسيبؒ او د امام احمدؒ نه يو روايت دے چه مړے د شپے دفن کول مکروه دي۔ امام ابن حزمؒ فرمائي : د شپے مړے دفن کول جائز نهٔ دي مګر که ضرورت وي او د رسول الله ﷺ او د هغه د ازواج مطهرات او بعض صحابه کرامو د شپے دفن کيدل هم د ضرورت په وجه وو، د ګنړے يره وه، يا د حاضرينو د ګرمائش يره وه ځکه چه د مدينے ګرمي ډيره سخته ده، يا د مړي د بدليدو وغيره عذرونو د وجه نه د شپے دفن جائز شويدے۔

ددے علماؤ سره دليل د کراهت او عدم جواز : حديث د جابر دے چه نبي ﷺ يوه ورځ خطبه اُووئيله او يو سړے ئے د خپلو ملګرو نه ذکر کړو چه وفات شوے وو او هغه ته مزيدار (مکمل) کفن نهٔ وو ورکړے شوے او د شپے دفن شوے وو نو نبي ﷺ ددے نه منع اُوکړه چه د شپے مړے ښخ شي تردے چه مونځ پرے اُوکړے شي مګر که انسان دے ته محتاج شي (نو بيا جائز ده)۔ او بيا نبي ﷺ دا حديث هم اُوفرمايل: چه ورور مسلمان ته ښه پوره او مزيدار کفن ورکوئ۔ مسلم (۲۲۲۸) وابوداود)

جمهور ددے نه جواب ورکوي چه دا نهي ددے وجه نه نهٔ ده چه ګنې د شپے دفن مکروه دے بلکه پدے کښې علت ذکر دے چه هغه نامکمل او ناقص کفن ورکول وو ځکه هغوي به دا کار د شپے پدے وجه کولو چه کفن به ئے مزيدار او مکمل نهٔ وو نو د شپے به ئے دفن کولو لکه پدے باندے اول او آخر د حديث دلالت کوي۔

يا دا چه امام طحاويؒ وئيلي دي چه د نهي وجه دا وه چه د ډيرو مسلمانانو نه به مونځ فوت شي خلقو ته به د جنازے په حاضريدو کښې تکليف وي نو د مړي سفارش به کم خلق اُوکړي نو ددے وجه نه ئے نهي اُوکړه۔

۳- بعض وائي : دا منع په هغه وخت کښې ده چه د مانځه نه مخکښې ئے دفن کړي ليکن دا وجه صحيح نهٔ ده ځکه چه د مړي د جنازے نه مخکښې دفن کول هسے هم منع دي که شپه وي او که ورځ۔

٤- صحيح وجه دا ده چه مطلقاً د شپے د ښخولو نه منع ده مګر په حالت د اضطرار او حاجت

كښې اجازه شته او دليل پرې مرفوع حديث د جابرؓ دے : (لَاتَدْفِنُوا مَوْتَاكُمْ بِاللَّيْلِ إِلَّا اَنْ تَضْطَرُّوْا) (ابن ماجه رقم : ١٥٢١ بسند صحيح- الباني)۔ (مړي د شپې مه دفن کوئ مګر که محتاجه شوئ) بيا جائز ده لکه مثلًا د مړي د خرابيدو يره وي، يا ځائے تنګ وي يا بل څه عذر وي۔

٢- **مسئله** : دا حديث دليل دے چه په قبر باندے مونځ کول صحيح دي پس د هغے نه چه مړے دفن شوے وي برابره ده چه په مړي باندے جنازه شوي وي او که نۀ وي خو چه يو انسان نه جنازه قضاء شوي وي نو هغه دپاره په قبر باندے مونځ کول بالکل جائز دی۔ دارنګه کله نا کله دا هم شويدي چه اول ئے مونځ کړے وي او بيا په قبر باندے دوباره مونځ کوي لکه مخکښې تير شو چه صحابه کرامو جنازه کړيوه بيا د رسول الله ﷺ سره په قبر اُودريدل او مونځ ئے دوباره اُوکړو۔

او دا مونځ کول مستحب عمل دے او دا قول د اکثرو صحابه کرامو وغيره ؓ دے او نقل شويدے د ابوموسى اشعري، ابن عمر، عائشه، علي، ابن مسعود، انس بن مالك رضى الله عنهم او سعيد بن المسيبؒ او قتادةؒ او دا قول د اوزاعيؒ، شافعيؒ، احمدؒ، اسحاقؒ، ابن وهبؒ او داود ظاهريؒ او ټولو اصحاب الحديث دے۔ او دا مونځ به داسے کولے شی لکه څنګه چه مړے حاضر وي يعني شرعي جنازه به وي۔

**دلائل** دا وائي : ١- **دليل** : يو دليل دا حديث الباب دے چه دلته رسول الله ﷺ ددے صحابي (چه نوم ئے طلحه بن براء بن عمير البلوي دے) په قبر مونځ اُوکړو۔

٢- **دليل** : براء بن معرور وفات شوے وو او رسول الله ﷺ په مکه کښې وو کله چه مدينے ته راغلو نو د هغه په قبر ئے مونځ اُوکړو او دا يو مياشت پس وو۔ (سبل السلام ٢/١٠٠)

٣- **دليل** : رسول الله ﷺ په يوه توره زنانه چه د مسجد خدمت به ئے کولو بيا وفات شوے وه او نبي ﷺ ته خبر نۀ وو ورکړے شوے، کله چه خبر شو نو د هغے په قبر ئے مونځ اُوکړو۔ (بخاري ١/٦٥،٦٦،١٧٨) مسلم (١/٣٠٩) ابوداود (٢/١٠١) وغيره۔

٤- دغه شان عبد الله بن عمر د خپل ورور عاصم په قبر باندے مونځ کړے وو۔

علي بن ابى طالب قرظه بن كعب الانصاري ته حکم اُوکړو چه د سهل بن حنيف په قبر باندے د څه خلقو سره مونځ اُوکړي۔

٥- علي بن ابى طالبؓ، عبد الله بن مسعودؓ، انس بن مالكؓ، سعيد بن المسيبؒ، عبد الرحمن بن خالد بن الوليدؒ او قتادةؒ دا عمل کړيدے۔ نور احاديث په فتاوى الدين الخالص (١٩٤/٧) کښې اُوګوره۔

نو ددے صحابه کرامؓ مخالف نۀ دے موجود۔

علامه امير يمانيؒ وائي : پدے باب کښې د نهه صحابه کرامؓ احاديث موجود دي چه هغه

حافظ ابن حجرؒ په التلخيص الحبير (١٦٢) او ابن عبد البرؒ په التمهيد كښې ذكر كړيدې۔

**٢- دويم قول:** ابراهيم نخعيؒ، امام ابوحنيفةؒ، او مالكؒ او ثوريؒ وائي چه په مړي باندې د مانځه اعاده هم نشته مګر ولي چه غائب وي نو اعاده ورله جائز ده او دغه شان په قبر باندې به مونځ هم نشي كولې او كه جنازه پرې مخكښې نۀ وه شوې او همداسې دفن كړې شوې وو نو بيا په قبر ورله جنازه جائز ده۔ ورنه نۀ ده۔

ليكن دا احاديث الباب په هغوي باندې رد كوي۔

بعض وائي : دا خصوصيت د رسول الله ﷺ وو او ددې د تائيد دپاره دا قول د نبي ﷺ پيش كوي كوم چه په حديث د ابو هريرهؓ كښې په مسلم كښې راغلې دې :(إِنَّ هٰذِهِ الْقُبُوْرَ مَمْلُوْءَةٌ ظُلْمَةً عَلٰى أَهْلِهَا وَإِنَّ اللهَ يُنَوِّرُهَا لَهُمْ بِصَلَاتِيْ عَلَيْهِمْ) (دا قبرونه په اوسيدونكو باندې د تيرو نه ډك دي خو الله تعالىٰ ئې زما د مانځه او دعاء په وجه دوي ته روښانه كوي) دوي وائي چه د رسول الله ﷺ مونځ د قبر د روښانه كولو دپاره وو او دا خو د بل چا په مانځه كښې نشته لهٰذا د بل چا دپاره په قبر باندې مونځ مشروع نشو۔

ددې جواب امام ابن حبان داسې وركړيدې چه رسول الله ﷺ په زمانه كښې خو نورو خلقو هم دا مونځ كړيدې نو هركله چه رسول الله ﷺ په هغوي باندې انكار اونكړو نو دا دليل شو چه دا كار بل چا دپاره هم جائز دې او دا د رسول الله ﷺ خصوصيت نۀ دې۔

علامه شوكانيؒ داسې فرمائي : يو حكم د رسول الله ﷺ پورې خاص كول دليل غواړي او صرف د الله تعالىٰ د رسول الله ﷺ په مانځه باندې د قبر روښانه كول ددې نفي نۀ كوي چه د بل چا دپاره په قبر باندې مونځ كول مشروع نۀ دي خاصكر پس ددې قول د رسول الله ﷺ نه چه (صَلُّوْا كَمَا رَأَيْتُمُوْنِيْ أُصَلِّيْ) (زما په شان مونځ كوئ)۔(نيل الاوطار ٤/٩١)

علامه ابن حزمؒ فرمائي : پدې كلام كښې صرف دا خبره ده چه د رسول الله ﷺ مونځ د بركت والا دې او د هغه د مانځه فضيلت دې د بل چا په مانځه باندې او پدې كښې د بل چا دپاره په قبر باندې د مانځه نهي نشته۔ بلكه الله تعالىٰ فرمائي : ستاسو دپاره په رسول الله (ﷺ) كښې ښائسته اقتداء شته انتهىٰ۔ دارنګه صحابه كرامو دور كښې هم شويدې۔

**بيا په موده كښې اختلاف دې چه څومره موده پورې په قبر باندې مونځ كيږي ؟۔**

(١) احناف او مالكيه وائي چه ترڅو پورې مړي متغير شوې او ذره ذره شوې نۀ وي مونځ پرې جائز دې او ددې ذره ذره كيدو عام ماهرينو اندازه كونكو ته سپارلې شويدې۔ په اعتبار د اختلاف د حال او زمانې او مكان سره۔

(٢) حنابله وائی چه یو میاشت پورې پرې مونځ کولې شي روستو به ئې پرې نۀ کوی. امام احمدؒ وائی: أَكْثَرُ مَا سَمِعْتُ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ صَلَّى عَلَى قَبْرِ أُمِّ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ بَعْدَ شَهْرٍ (اکثر هغه چه ما آوریدلی دی چه نبی ﷺ د سعد بن عباده د مور په قبر باندې یو میاشت بعد مونځ اُوکړو). او دې قول ته علامه مبارکفوریؒ په تحفة الاحوذی کښې میلان کړیدې او وئیلی ئې دی چه ظاهر دا ده چه التصار اُوکړې شي په هغه موده باندې چه د رسول الله ﷺ نه ثابته وی.
لیکن دا ترجیح صحیح نۀ ده ځکه چه رسول الله ﷺ څو څه توقیت او تحدید نۀ دې کړې لکه روستو راځی.

(٣) شوافع وائی چه ترڅو پورې ئې جسد زوړ شوې نۀ وی تر هغه وخته پورې په قبر باندې ورله مونځ جائز دې.

(٤) امام ابوحنیفه وائی چه ولی پرې درې ورځو پورې مونځ کولې شي او غیر ولی پرې په هیڅ حالت کښې مونځ نشي کولې.

(٥) بعض وائی: همیشه پرې مونځ کولې شي. ځکه چه نبی ﷺ په شهداو د احد باندې اته کاله پس مونځ اُوکړو، بلـه دا چه د مونځ نه مراد دعاء وی او دا خو په هر وخت کښې جائز وی.
علامه امیر یمانیؒ وائی: همدا قول حق دې ځکه چه د مودې په متعین کولو باندې هیڅ دلیل نشته. اه.

حافظ ابن قیمؒ فرمائی: (فَصَلَّى عَلَى قَبْرٍ بَعْدَ لَيْلَةٍ وَمَرَّةً بَعْدَ ثَلَاثٍ وَمَرَّةً بَعْدَ شَهْرٍ وَلَمْ يُوَقِّتْ فِي ذٰلِكَ وَقْتًا) (زاد المعاد ١/٤٩٣) (عون المعبود ٩/٤) وسنن الدارقطنی) (رسول الله ﷺ په یو قبر باندې یوه شپه بعد مونځ کړیدې او کله ئې درې ورځې بعد او کله میاشت بعد او پدې باره کښې ئې هیڅ وخت نۀ دې مقرر کړې).
او همدا خبره حقه ده ځکه چه پدې تحدید اتو باندې هیڅ دلیل نشته، د الله رسول (ﷺ) نۀ دی مقرر کړی.
(سبل السلام ٢/١٠٠) (عون المعبود ٩/٤) (تحفة الاحوذی ٤/١١٤) (المرعاة ٥/٣٩١) الموسوعة الفقهية (٤/١١٦) احکام الجنائز للالبانی وفتاوی الدین الخالص (٧/١٩٥) توضیح الاحکام (٢/٥٠٩)

---

١٦٥٨ (١٤) – وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ امْرَأَةً سَوْدَاءَ كَانَتْ تَقُمُّ الْمَسْجِدَ أَوْ شَابٌّ فَفَقَدَهَا رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ فَسَأَلَ عَنْهَا أَوْ عَنْهُ فَقَالُوا: مَاتَ. قَالَ: «أَفَلَا كُنْتُمْ آذَنْتُمُونِي؟».

قَالَ: فَكَأَنَّهُمْ صَغَّرُوْا أَمْرَهَا أَوْ أَمْرَهُ. فَقَالَ: «دُلُّوْنِيْ عَلَى قَبْرِهِ». فَدَلُّوْهُ فَصَلَّى عَلَيْهَا. ثُمَّ قَالَ: «إِنَّ هٰذِهِ الْقُبُوْرَ مَمْلُوْءَةٌ ظُلْمَةً عَلٰى أَهْلِهَا وَإِنَّ اللّٰهَ يُنَوِّرُهَا لَهُمْ بِصَلَاتِيْ عَلَيْهِمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَلَفْظُهُ لِمُسْلِمٍ.

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي : يوې توره ښځې به مسجد جارو كولو۔راوي وائي يا ځوان سړې وو۔ نو رسول الله ﷺ هغه لره غائب اُومندلو، د هغې يا د هغه په باره كښې ئې تپوس اُوكړو (چه دا فلانئ يا فلانے نه ښكاري چرته دے؟) صحابه كرامؓ اُوفرمايل : هغه وفات شوے۔ نبي كريم ﷺ اُوفرمايل : «تاسو ما ته خبر ولے نه راكولو؟» (چه ما هم پرې د جنازې مونځ كړے وے) ابو هريرهؓ وائي : چه خلقو د هغه ښځې يا د هغه سړي مرگ ورو كے اُوگڼړلو (او څه اهميت ئې ورنكړو چه هغې دپاره نبي ﷺ ته تكليف وركړي نو پدے سره د رسول الله ﷺ تعظيم مقصود وو) نبي كريم ﷺ اُوفرمايل : ما ته د هغه قبر راوخايئ؟ صحابه كرامو هغه ته د هغه قبر اُوخودلو نو د هغه په قبر باندې ئې مونځ اُوكړو۔ بيا ئې اُوفرمايل : بيشكه دا قبرونه په خپلو اُوسيدونكو باندې د تيارو نه ډك وي او الله تعالىٰ دا قبرونه خپلو اُوسيدونكو ته زما د مانځه په وجه رڼړا كوي۔ (دا روايت بخاريؒ ومسلمؒ روايت كړے او الفاظ د مسلمؒ دي)۔

تشريح : أَوْ شَابٌّ : دا شك د ثابت راوي دے يا د ابورافع لكه پدے باندې حافظ ابن حجرؒ جزم كړے۔ ليكن شيخ البانيؒ وئيلي دي چه روايت د امرأة په څو وجو سره راجح دے بيا ئې هغه ذكر كړيدي۔ (١) يو دا چه په يو روايت كښې امرأة ذكر ده او باقي رواياتو كښې شك دے نو يقين مقدم وي په شك باندې۔ (٢) دويم دا چه په روايت د بخاري كښې داسې الفاظ دي : (أَنَّ امْرَأَةً أَوْ رَجُلًا كَانَتْ تَقُمُّ الْمَسْجِدَ) او دا الفاظ دلالت كوي چه د راوي په نيز هم راجح دا ده چه دا ښځه وه ځكه ئې ورته كانت او تقم مؤنث فعلونه ذكر كړل (٣) دريم دا چه په بل روايت د ابو هريرهؓ كښې بغير د شك نه راغلي دے الفاظ ئې داسې دي : (فَقَدَ النَّبِيُّ ﷺ امْرَأَةً سَوْدَاءَ كَانَتْ تَلْتَقِطُ الْخِرَقَ وَالْعِيدَانَ مِنَ الْمَسْجِدِ فَقَالَ: أَيْنَ فُلَانَةُ؟ قَالُوْا مَاتَتْ) لكه هغه روايت بيهقي (٢/٤٤٠) كښې راوړيدے۔ (احكام الجنائز ص (٨٧) او ابن خزيمةؒ هم ذكر كړے۔

(٤) دا چه بعض صحابه كرامؓ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ به د مسكينانو او ضعيفانو مسلمانانو د مريضانو بيمار پرسي كوله او د هغوي جنازه پسې به تللو او بل چا به پرې د هغه نه غير مونځ نۀ كولو۔نو د عوالي د اُوسيدونكو نه يوه مسكينه ښځه وه چه بيماري ئې اُوږده شوه نو رسول الله ﷺ به د هغې د گاونډيانو نه چه څوك به حاضر شو پوښتنه كوله او دا حكم به ئې

كولو چه دا دفن نهٔ كړى كه پدے باندے څه حادثه (مرګ) راشى، دا به پرے مونځ كوى، نو دغه ښځه د شپے وفات شوه، خلقو راپورته كړه او د جنازو ځائے ته ئے راوړله د رسول الله ﷺ د مسجد په خوا كښ، دے دپاره چه رسول الله ﷺ په هغے جنازه اُوكړى لكه څنګه چه هغه حكم كړے وو نو دوى رسول الله ﷺ اُومونډلو چه د ماسخوتن مانځه نه روستو اُوده شوے وو، نو دوى دا بده اُوګنړله چه رسول الله ﷺ د خوب نه رابيدار كړى نو خپله ئے پرے مونځ اُوكړو۔ او بيا ئے (قبر ته) يوړله۔ كله چه رسول الله ﷺ سبا كړو نو د هغه زنانه د حاضر ګاونډيانو نه ئے د هغے په باره كښ تپوس اُوكړو نو خلقو ورته د هغے خبر وركړو او دا چه دوى دا بده ګنړله چه رسول الله ﷺ د خوب نه رابيدار كړى نو رسول الله ﷺ اُوفرمايل : (وَلِمَ فَعَلْتُمْ ؟) دا كار تاسو ولے كړيدے؟، راځئ چه ځو نو د رسول الله ﷺ سره روان شو تردے چه د هغے په قبر باندے اُودريدل او د رسول الله ﷺ نه ئے روستو صفونه اُوترل لكه څنګه چه د جنازے مانځه دپاره صفونه تړلے شى نو په هغے باندے رسول الله ﷺ د جنازے مونځ اُوكړو او څلور تكبيرونه ئے پرے اُووئيل لكه څنګه چه جنازو باندے تكبيرونه وئيلے شى۔(البيهقى ٤/٤٨) باسناد صحيح والنسائى (١/٢٨٠) مختصراً

او په روايت د بيهقى كښ د هغے نوم هم راغلے دے چه كنيه ئے ام مِحْجَن وه او نوم ئے خرقاء وه۔

**تَقُمُّ** : (اى تَكْنِسُ الْمَسْجِدَ وَتُخْرِجُ قُمَامَتَهُ وَتَنْظِفُهُ) (دے به مسجد جارو كولو او د هغے نه به ئے خس وخشاك بهر كولو او صفا به ئے ساتلو)

**صَغَّرُوْا أَمْرَهَا** : يعنى د هغے كارئے سپك او معمولى اُوګنړلو په مقابله د تكليف وركولو د نبى ﷺ كښ۔

**آذَنْتُمُوْنِىْ** : يعنى تاسو ما ته د هغے د مرګ خبر ولے نهٔ راكولو چه ما پرے د جنازے مونځ كړے وے؟۔

**دُلُّوْنِىْ** : په ضمه د دال دے د دلالت نه د امر صيغه ده۔

او فدلوه كښ د دال فتحه او د لام مشدد ضمه ده۔

دا حديث هم رد دے په مالكيه او احنافو باندے چه په قبر باندے مونځ ئے منع كړيدے۔

**فوائد الحديث** : ١- حديث نه معلومه شوه چه مسجد صفا ساتل او د ګندونو او خشاكو نه ئے پاكول ډير لوئى فضيلت لرى۔ ٢- خادم او ملګرے چه كله غائب شى نو د هغوى په باره كښ تپوس كول ښكار دى۔

٣- په دعاء باندے انسان ته ډير څه ملاوېږى او څومره چه د انسان تقوىٰ زياته وى د هغه په دعاء او جنازه كښ خير او بركت زيات وى۔ ٤- د نيكانو خلقو جنازے ته حاضريدو ترغيب ترے

معلوم شو۔

۵- په مړي باندې چه چا نه جنازه فوت شوي وي نو د هغه په قبر باندې جنازه کولو استحباب ترې معلوم شو۔ ٦- تکرار د جنازې په بعض اوقاتو کښې جائز دې کله چه بل چا سره اُودرېږي۔ ۷- چا ته د مرګ خبر ورکول جائز دي۔۸- نبي کريم ﷺ عالِم الغيب نۀ دې ځکه چه ددې زنانه د مرګ علم ورته نۀ وو۔

۹- عذاب د قبر او نعمتونه د قبر حق دي۔

۱۰- اشاره ده چه مونځ د جنازې د سفارش او په خالص نيت سره کول پکار دي چه د بنده نه د قبر تياره ختمه شي۔

۱۱- د رسول الله ﷺ په امت باندې شفقت او نرمي او تواضع او د هغوي د احوالو تفقد او تالاش کول او د هغوي د حقوقو اهتمام کول او د هغوي د دنياوي او ديني مصالحو نګراني کول ترې معلوم شو، پدې کښې د هر مسلمان بادشاه او امير دپاره اقتداء ده۔

۱۲- په قبر باندې مونځ کول په مقبره کښې د مانځه نه او قبرونو ته د مونځ کولو نه مستثنیٰ دي۔

۱۳- مړو ته دعاء کول ډيره فائده رسوي که په مانځه کښې وي او که بهر د مانځه نه وي۔

۱٤- نبي ﷺ چا ته فائده نشي رسولې او نۀ د چا نه ضرر دفع کولې شي که هغه سره دا اختيارات وې نو مړو ته به ئې بغير د دعاء نه او بغير د جنازې نه فائده ورکولې ليکن الله تعالیٰ هغه ته کرامت او عزت ورکوي چه د هغه دعاء قبلوي په حق د هغه چا کښې چه الله تعالیٰ اراده د هغه د نيکبختئ کړي وي۔

۱۵- اسباب اختيارول جائز دي او آهم د اسبابو نه دعاء ده خاصکر چه کله د شرطونو سره وي نو زر قبليږي۔

---

۱٦۵۹ (۱۵) - وَعَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ مَاتَ لَهُ ابْنٌ بِقُدَيْدٍ أَوْ بِعُسْفَانَ فَقَالَ: يَا كُرَيْبُ! أُنْظُرْ مَا اجْتَمَعَ لَهُ مِنَ النَّاسِ. قَالَ: فَخَرَجْتُ فَإِذَا نَاسٌ قَدِ اجْتَمَعُوْا لَهُ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ: تَقُوْلُ: هُمْ أَرْبَعُوْنَ؟ قَالَ: نَعَمْ. قَالَ: أَخْرِجُوْهُ فَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ: «مَا مِنْ رَجُلٍ مُسْلِمٍ يَمُوْتُ فَيَقُوْمُ عَلٰى جَنَازَتِهِ أَرْبَعُوْنَ رَجُلًا لَا يُشْرِكُوْنَ بِاللّٰهِ شَيْئًا إِلَّا شَفَّعَهُمُ اللّٰهُ فِيْهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه: او کريب چه د ابن عباسؓ آزاد شوې غلام دې د ابن عباس رضی الله عنهما په باره

كښې روايت نقل كوى چه د ابن عباسؓ د قديد يا د عسفان په علاقه كښې (چه مكې ته نزدې ځايونه دى) ځوى وفات شو (او جنازه تياره شوه) هغه اُوفرمايل : اے كريب! اُوګوره چه د جنازې دپاره څومره خلق راجمع شوى دى ؟ـ كريبؒ وائى: زهٔ راووتلم نو ما اُوليدل چه ډير خلق د هغه دپاره راجمع شوى وو۔ نو ما ابن عباسؓ ته خبر وركړو۔ هغه اُوفرمايل : ستا په خيال كښې به دا خلق څلوېښت كسان وى؟ هغه اُووئيل : آو۔ ابن عباسؓ اُوفرمايل : جنازه (د مانځه دپاره) بهر راوباسئ ځكه چه ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلى چه فرمايل ئے :« نشته يو سړے مسلمان چه مړشى او د هغه په جنازه څلوېښت كسان اُودريږى چه د الله سره هيڅ شے نهٔ شريكوى مګر الله به د مړى په باره كښې ضرور د هغوى سفارش قبلوى »۔ (مسلمؒ)۔

**تشريح** : يعنى د عبد الله بن عباسؓ ځوى په قُديد يا عسفان علاقه كښې وفات شوے وو او هغه ته پته نهٔ وه يا معلومه وه ليكن د خلقو معلومات ئے كولو نو كريب چه د هغه آزاد كرده غلام وو هغه ئے اُوليږلو چه اُوګوره دا خلق څومره دى؟۔هغه راغلو خبرئے وركړو نو ابن عباسؓ ورته اُوفرمايل : آيا ستا ګمان دے چه دا به څلوېښت وى؟ هغه اُووئيل : آو، نو ابن عباسؓ حكم اُوكړو چه اُوس مړے راوباسئ چه جنازه پرے اُوكړو او بيا ئے دا ارشاد نبوى اُوفرمايلو۔

**مَا اجْتَمَعَ لَهٗ مِنَ النَّاسِ** : ما موصوله ده او بيان ئے روستو من الناس لفظ دے۔ يعنى هغه خلق اُوګوره چه ددې مړى دپاره راجمع شوى وى۔ يا دا هم ممكن ده (ما) په معنى د (مَنْ) وى۔

**تَقُوْلُ: هُمْ اَرْبَعُوْنَ ؟** : تقول دلته په معنىٰ د(تَظُنُّ) دے يعنى ستا څه ګمان او خيال دے چه دا به څلوېښت وى ؟۔

په روايت د ابن ماجه كښې دى داسې ئے اُوفرمايل : (وَيْحَكَ تَرَاهُمْ اَرْبَعِيْنَ؟) ۔(آيا ته به دا څلوېښت كسان وينې؟ ما ورته اُووئيل : نهٔ، بلكه زيات دى) ۔

**اَخْرِجُوْهُ** كښې ضمير ميت (مړى) ته راجع دے۔

**جَنَازَتِهٖ** : په كسره د جيم سره د مړى نعش او كټ ته وئيلے شى۔

**لَا يُشْرِكُوْنَ** : دا شرك اكبر او شرك اصغر دواړو ته شامل دے ځكه چه شيئاً نكره ده په سباق د نفى كښې واقع شويده نو عموم فائده كوى۔ نو د شرك اكبر والا مشركانو خو مونځ نهٔ صحيح كيږى او دارنګه شرك اصغر والا يعنى رياء او سُمعت والا انسان به هم نهٔ وى چه د هغه غرض مخ ملازه، او ځان ښودنه او ښه سړى توب ښكاره كول وى يا د چا ډيرے د ملامتيا او د چا د خفګان د وجه نه به جنازې ته نهٔ وى حاضر شوے۔ بلكه مقصد به ئے صرف او صرف د مړى سفارش وى چه دا د خپلو ګناهونو په وجه د الله تعالىٰ په قيد كښې بند شويدے مونږ د الله تعالىٰ

نه غواړو چه دا ددې قيد او عذاب نه خلاص کړي.
إِلَّا شَفَّعَهُمُ اللهُ فِيهِ : (أَيْ إِلَّا قَبِلَ شَفَاعَتَهُمْ فِيْ حَقِّهِ) . يعنی الله به ضرور د هغوی سفارش د مړی په حق کښې قبلوی.

**فوائد الحديث** : ١- جنازه د مړی دپاره يو سفارش دے نو څومره چه د مونځ کونکو شمار زيات وی نو فضيلت به زياتيږی ځکه چه پدے سره به دعاء او ترحم او استغفار مړی له زيات غوختے شی.

٢- څلوېښت کسان مسلمانان چه په صحيح د سفارش په نيت د مسلمان مړی پسے جنازه اُوکړی نو ددے دير فضيلت راغلو چه ضرورئے الله معاف کوی.

٣- د الله د توحيد څومره فضيلت دے چه انسان ته هر خير ملاويږی او د شرك څومره نحوست دے چه انسان د څومره خيرونو نه محرومون. او خالص توحيد قوی سبب دے د دعاء د قبليدو ځکه خالص توحيد داسے نيکی ده چه ددے سره بله هيڅ نيکی برابره نهٔ ده. لکه څنګه چه شرك لوئی ظلم دے.

٤- جنازه د لږ شان وخت دپاره ايسارول چه خلق راګنړ شی جائز عمل دے لکه دلته ابن عباسؓ د مړی د راوستلو حکم هله اُوفرمايلو چه خلق څلوېښتو ته اُورسيدل.

٥- عالِم له پکار دی چه په داسے موقعه کښې کومه دينی مسئله يا حديث او آيت ورته ياد وی هغه بيان کړی دے دپاره چه د خلقو ذهن ته ښه پريوځی.

٦- دا هم ضروری ده چه مړے به هم مسلمان وی او کافر او مشرك به نهٔ وی ځکه که کافر باندے کروړونه خلق اُودريږی هيڅ فائده نهٔ ورکوی.

---

١٦٦٠ (١٦) وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ: «مَا مِنْ مَيِّتٍ تُصَلِّيْ عَلَيْهِ أُمَّةٌ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ يَبْلُغُوْنَ مِائَةً كُلُّهُمْ يَشْفَعُوْنَ لَهُ: إِلَّا شُفِّعُوْا فِيْهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها د نبی کريم ﷺ نه روايت کوی چه هغه فرمايلی : «نشته يو مړے چه په هغه باندے د مسلمانانو يوه ډله مونځ اُوکړی چه هغوی سلو کسانو ته رسيږی، ټول د هغه دپاره سفارش (يعنی د بخښنے دعاء) کوی (يعنی بل غرض ئے نهٔ وی صرف د سفارش په غرض راغلی وی) مګر د مړی په باره کښې به ضرور د دوی سفارش قبلولے شی». (مسلمؒ).

**تشريح** : شُفِّعُوْا : صيغه د مجهول ده. يعنی د مړی په حق به د هغوی سفارش خامخا

قبلولے شی۔

دے حدیث نه هم دا معلومه شوه چه د جنازے جماعت ډیرول مستحب عمل دے او چه کله سلو ته اُورسیږی نو پدے کښې ډیره خوشحالی ده مؤمن لره چه الله تعالیٰ ئے کامیابۍ ته رسوی او بخنه ورته کوی خو ددے دپاره دوه شرطونه دی لکه مخکښې تیر شو یو دا چه دا ټول به سفارش کونکی وی یعنی په اخلاص سره به دهغه دپاره دعاء او بخنه غواړی۔ دویم دا چه دا ټول به مسلمانان وی، مشرکان به پکښې نهٔ وی۔

بیا دے حدیث کښې سل کسان ذکر شو او مخکښې حدیث کښې څلویښت او روستو حدیث د مالك بن هبیره کښې درے صفونه ذکر دی نو ددے احادیثو ترمینځ هیڅ تعارض نشته۔ قاضی عیاضؒ فرمائی : دا احتمال شته چه دا احادیث په جواب د مختلفو سائلینو کښې وئیلے شویوی نو هریو ته د خپل سوال جواب ورکړے شوے او دغه عدد په کښې ذکر شویدے۔ یا اول نه مراد اعلیٰ مؤمنان دی او دے حدیث کښې عام گناهگار مؤمنان دی۔

امام نوویؒ فرمائی : ممکن ده چه اول د سلو کسانو د شرکت فضیلت نازل شوے وی بیا روستو الله تعالیٰ د خپلو بندگانو په حال باندے رحم زیات کړو نو دا تعداد کم کړے شو او د څلویښتو کسانو د شرکت فضیلت ئے بیان کړو، بیا نبی ﷺ ته خبر ورکړے شو چه درے صفونه وی اگرکه عدد کم وی نو د هغوی په وجه هم د بنده دپاره مغفرت او بخنه واجبیږی نو نبی ﷺ هغه بیان کړو۔

**فائده** : ابن عربیؒ وئیلی دی :کله چه ستا څوك وفات شی نو کوشش کوه چه څلویښت کسان پرے مونځ اُوکړی ځکه چه دے حدیث کښې دا تصریح ده چه څلویښت کسان دمړی دپاره سفارش کونکی دی۔

**قصه** : د عربو یو تن په یوه جنازه باندے ورتیر شو چه په هغے باندے ډیر امت مونځ کولو نو وے وئیل : دا د جنتیانو نه دے، خلقو تپوس اُوکړو چه دا څنگه ؟ وے وئیل : داسے کوم کریم او عزتمند شخص دے چه هغه ته دومره خلق د یو انسان د سفارش دپاره راشی او د هغوی سفارش دے رد کړی ؟ هیڅکله داسے نهٔ ده، قسم په الله دا هیڅکله نهٔ رد کوی۔نو څنگه به ئے اکرم الکرماء او ارحم الرحماء رد کړی ؟ او حال دا چه هغه ورته دعوت هم ورکړے چه راشئ سفارش اُوکړئ نو ضرور به ئے قبلوی۔ (فیض القدیر٥/٦١٣ لعبد الرؤف المناوی)۔

---

١٦٦١ (١٧) — وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: مَرُّوْا بِجَنَازَةٍ فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا خَيْرًا. فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ :«

وَجَبَتْ ». ثُمَّ مَرُّوْا بِأُخْرىٰ فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا شَرًّا. فَقَالَ: « وَجَبَتْ ». فَقَالَ عُمَرُ: مَا وَجَبَتْ ؟ فَقَالَ: « هٰذَا أَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِ خَيْرًا فَوَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ وَهٰذَا أَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِ شَرًّا فَوَجَبَتْ لَهُ النَّارُ أَنْتُمْ شُهَدَاءُ اللهِ فِي الْأَرْضِ » مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَفِيْ رِوَايَةٍ : « اَلْمُؤْمِنُوْنَ شُهَدَاءُ اللهِ فِي الْأَرْضِ ».

---

ترجمه : او انس ﷺ فرمائي : څه كسانو جنازه تيره كړه نو صحابه كرامو دهغه (مړي) ښه صفت اُوكړو نو نبي ﷺ اُوفرمايل : واجب شو۔ بيا دوی په يوه بله جنازه تير شو صحابه كرامو د هغه بد صفت اُوكړو نبي ﷺ اُوفرمايل : واجب شو۔ عمر فاروق تپوس اُوكړو (اے د الله رسوله! ) څه شے واجب شو ؟ نبي كريم ﷺ اُوفرمايل : ددے يو شخص تاسو ښه صفت اُوكړو نو دهٔ دپاره جنت واجب شو او ددے بل تاسو بد صفت اُوكړو نو دهٔ له اُور واجب شو، (ځكه) تاسو په زمكه كښې د الله تعالىٰ گواهان يئ (الله تعالىٰ به ستاسو د خبرے مطابق فيصله كوی) (بخاری ومسلم) په يو بل روايت كښې دی : مؤمنان په زمكه كښې د الله تعالىٰ گواهان دی۔

**تشريح : مَرُّوْا** : صيغه د معلوم ده يعنی څه كسانو جنازه تيره كړه۔ او دا معنىٰ هم صحيح ده چه دوی په يوه جنازه تيريدل۔ او په يو روايت كښې (مر) صيغه د مجهول راغلے ده۔ يعنی جنازه په صحابه كرامو تيره شوه۔

**فَأَثْنَوْا عَلَيْهَا خَيْرًا** : يعنی حاضرينو ورله ښائسته صفات ذكر كړل په روايت د حاكم كښې دی : خلقو اُووئيل : (كَانَ يُحِبُّ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَعْمَلُ بِطَاعَةِ اللهِ وَيَسْعٰى فِيْهَا)۔ (د الله او د هغه د رسول سره ئے مينه كوله او د الله طاعت ئے كولو او په هغے كښې به ئے كوشش كولو) او كومه جنازه باندے ئے چه بدی وئيلے وه نو داسے ئے وئيلی وو: (كَانَ يُبْغِضُ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَعْمَلُ بِمَعْصِيَةِ اللهِ وَيَسْعٰى فِيْهَا) ۔(دهٔ به د الله او رسول سره بغض لرلو او گناهونه به ئے كول او په هغے كښې به ئے كوشش كولو) نو دا تفسير شو د هغه خير او شر چه كوم په روايت د شيخينو كښې مبهم ذكر شوی وو۔
(واسناد الحديث صحيح صححه الالبانی فی الصحيحة رقم : ١٦٩٤)۔

**وَجَبَتْ** : يعنی دهٔ دپاره جنت ثابت شو۔ وجوب دلته په معنی د ثبوت سره دے۔

**أَثْنَيْتُمْ** : په شر كښې د ثناء استعمال مشاكلةً او تهكماً دے، ورنه ثناء په ښه صفاتو كښې استعماليږی۔ يا دا چه ثناء په معنىٰ د بيان سره دے بيا به ورسره قيد لگولے شی چه د خير بيان دے او كه د شر۔ (قاموس)

**تنبيه** : ددے نه مراد غير اختياری ثناء ده چه د انسانانو د خولو نه د مستحق دپاره خپله

اُوځي او دا مطلب نهٔ دے چه خلق د جنازے نه روستو کينې او وائي چه ده لره ښه گواهي اُوکړئ چه الله ئے معاف کړي، په دغه طريقه گواهي په دين کښې نشته.

**سوال :** په صحيح بخاري کښې د مړو د بدي بيانولو نه منع راغلے ده (لکه روستو حديث رقم ۱۹: کښې راځي) نو دے خلقو څنگه ددے مړي بدي بيان کړه ؟ ددے اشکال **جواب** دا دے چه منع په باره د هغه چا کښې ده چه منافق او کافر او ښکاره فسق او بدعت نهٔ کوي او هرچه دغه قسم خلق دي نو د هغوي د بدي ذکر کولو نه منع نشته بلکه دا بدي ذکر کول به ددے دپاره وي چه خلق د هغوي د طريقے او د هغوي د نقش قدم د اقتداء نه ځان بچ کړي او د هغوي په شان اخلاق اختيار نکړي، او دا حديث محمول دے په دے چه دوي د کوم سړي بدي بيان کړے وه نو هغه مشهور وو په منافقت وغيره (نوويؒ).

حافظ ابن حجرؒ فرمائي : ددے تائيد دا دے چه د ابوقتادهؓ نه په صحيح سند نقل دي چه نبي ﷺ په هغه سړي باندے چه خلقو ئے بدي وئيلے وه جنازه اُونکړه او په هغه بل ئے اُوکړه۔ (رواه احمد) ۔ انتهیٰ۔ (فتح الباري ۲۲۹/۳) اددے تائيد د بخاري حديث کوي چه په باب ذکر شرار الموتیٰ کښې ئے ذکر کړيدے۔ چه د ابولهب واقعه پکښې ذکر ده۔

○ بعض وائي : مړو ته د بد رد وئيلو نه منع د دفن کولو نه روستو ده او مخکښې د دفن نه جائز ده ددے دپاره چه ژوندي فاسقان ئے واوري او عبرت ترے واخلي۔

○ بعض وائي : ممکن ده چه دا حديث د انسؓ او ددے په شان نور حديثونه په هغه زمانه کښې وئيل شوي وي چه منع لا نهٔ وه راغلے او روستو بيا منع راغله۔

○ بعض وائي چه په طريقه د گواهئ ذکر کول جائز دي او که د کنځلو او بد رد په طريقه وي چه زړهٔ پرے يخوي نو بيا به منع وي او کوم شے چه د شهادت او گواهي او د خلقو د تحذير دپاره وي نو هغے ته په لغت کښې سب (بد رد) نهٔ شي وئيلے۔

**اَنۡتُمۡ شُهَدَاءُ اللهِ فِي الۡاَرۡضِ :** بعض وائي : دا خطاب خاص دے په صحابه کرامؓ پورے ځکه چه هغوي به په حکمت سره خبرے کولے په خلاف د روستنو خلقو نه چه د هغوي په شان نهٔ دي۔ ليکن دا غيره ضعيفه ده په دليل د بل روايت (اَلۡمُؤۡمِنُوۡنَ شُهَدَاءُ اللّٰهِ فِي الۡاَرۡضِ) ۔ دلته ئے مؤمنانو ته د الله گواهان وئيلي دي۔

۲- بعض وائي : صحابه کرام او د هغوي په شان نور مؤمنان مراد دي۔ ۳- بعض وائي : حقه دا ده چه دا د ثقات (مُعتَمد) او متقيانو پورے خاص دے۔ نو هر معتمد شخص داسے قسم گواهي ورکولے شي او الله تعالیٰ به په هغے باندے فيصله کوي۔

او ددې مطلب دا دې چه هر کله چه تاسو ددې يو شخص صفت او ددې بل شخص بد عملي بيان کړه نو تاسو گواهان يئ او د قيامت په ورځ به دا کسان مدعيان وي او الله تعالىٰ به قاضي (فيصله کونکې) وي او قانون دا دې چه قاضي په خپل علم فيصله نۀ کوي بلکه د گواهانو گواهي ته گوري، که د چا دپاره ښه گواهي ورکړې شوه نو بدله به ئې جنت وي او که د چا گواهي بده ورکړې شوه نو بدله به ئې بده وي۔

او ددې نه دا هم معلومه شوه چه صحابه کرام ټول عادلان دي نو دوي چه د چا دپاره د خير گواهي ورکړي هغه به نجات والا وي۔ او دا د يو شخص دپاره په منزله د سفارش او دعاء دې۔

او د صحابه کرامو د الله تعالىٰ په نيز اُوچته مرتبه معلومه شوه۔

امام نوويؒ فرمائي : دا حديث په خپل عموم او اطلاق باندې دې نو هر مسلمان چه وفات شي، الله تعالىٰ د خلقو په زړونو کښې د هغه صفت اچوي نو دا دليل وي چه دا به د جنتيانو نه وي برابره ده چه د هغه اعمال ددې مطابق وي او که نۀ ځکه چه عذاب پرې لا ثابت شوې نۀ دې بلکه د الله تعالىٰ د مشيئت په خطره کښې دې نو کله چه الله تعالىٰ خلقو ته د هغه صفت په زړۀ کښې واچولو نو پدې سره به مونږ ته معلومه شي چه الله تعالىٰ ددې بنده دپاره د مغفرت اراده کړې ده۔ او پدې سره د صفت د کولو فائده ښکاره کيږي ورنه کله چه د انسان اعمال د جنت مطابق وي نو بيا د صفت کولو څه فائده نشته او حال دا چه نبي ﷺ دې دپاره فائده ثابته کړيده انتهىٰ۔ (شرح مسلم ٧/٢٠)۔

○ علامه سنديؒ وائي : شايد چه د همدې وجه نه روايت کښې راغلي دي چه (تاسو مړي مۀ ذکر کوئ مگر په خير سره) (حاشية السندي على ابن ماجه ٣/٢٧٤)۔

حافظ فرمائي : د خير په جانب کښې خو دا واضح دې او ددې تائيد د حديث د انسؓ نه کيږي کوم چه احمد، ابن حبان او حاکم راوړيدې : (نشته يو مسلمان چه مړ شي او د هغه د نزدې گاونډيانو نه څلور کسان دا گواهي ورکړي چه دوي ددې مړي نه خير باندې پوهه شويدي نو الله تعالىٰ فرمائي : ما ستاسو خبره قبوله کړه او ما دۀ ته هغه گناهونه اُوبخل چه تاسو ته نۀ دي معلوم)۔ او هر چه د شر جانب دې نو ظاهر د احاديثو دا دې چه دا هم د خير په شان دې ليکن دا په حق د هغه چا کښې دې چه د هغه شر په خير باندې غالب وي لکه دا په روايت د نضر بن انسؓ کښې راغلىٰ دى : (اِنَّ لِلّٰهِ مَلَائِكَةً تَنْطِقُ عَلٰى اَلْسِنَةِ بَنِيْ آدَمَ بِمَا فِي الْمَرْءِ مِنَ الْخَيْرِ وَالشَّرِّ) (حاکم، الصحيحة للالباني ١٦٩٤)۔

(د الله تعالىٰ دپاره ملائك دي چه د بني آدمو په ژبه باندې خبرې کوي په هغه خير او شر سره

چه بنده کښې وي) انتهیٰ۔ (فتح الباري ٣/٢٢٩)۔

یعنی په چا کښې چه خیر غالب وي نو ملائك د بندګانو د خولو نه د الهام په طریقه د هغوي په باره کښې د خیر خبرې اُوباسي او دغه شان په باره د شر کښې۔

اَلْمُؤْمِنُوْنَ شُهَدَاءُ اللهِ فِي الْاَرْضِ : دا اضافت د تشریف دپاره دې او پدې کښې اشاره ده چه دوی د الله په نزد باندې مرتبه لري چه الله د دوی شهادت او ګواهي قبلوي۔ او ددې نه دا معلومیږي چه ژبه د خلقو نقارهٔ د الله ده۔ نو کومو خلقو دپاره چه مسلمانان د خیر ګواهي ورکوي معلومیږي چه دا خلق به د الله په نیز هم غوره وي نو ددې نه دا فائده هم معلومه شوه چه کوم امامان او علماء او محدثین چه پدې امت کښې په خیر او نیکئ سره مشهور شویدی لکه ائمه اربعه، امام بخاري، مسلم، ترمذی، ابوداود ابن ماجه، نسائي دارمي، دارقطني، شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ، ابن قیمؒ، حافظ ابن کثیرؒ، امام نوويؒ، حافظ ابن حجرؒ وغیره علماء دا به ان شاء الله ددې حدیثو په رڼرا کښې جنت ته داخل شوي وي ځکه چه عام امت د دوی دپاره د خیر ګواهي ورکوي۔

لیکن دې سره دا خبره یاد ساتل پکار دي چه دا ګواهي ورکونکي به د رشتیني او فضیلت والا خلق وي ځکه چه د فاسقانو ګواهي معتبره نهٔ ده ځکه فاسقان خلق کله د فاسقانو صفت کوي نو هغوي ددې حدیث په معنیٰ کښې نهٔ داخلیږي۔ دارنګه د شر صفت بیانول به د دشمن د طرف نه نهٔ وي ځکه چه کله دیو صالح سړي دشمنان وي نو کله ئې چه دشمن مړ شي هغه ئې په شر سره ذکر کوي هغه هم پدې حدیث کښې نهٔ داخلیږي ځکه چه د دشمن ګواهي په دنیا کښې نهٔ وه جائز اګرکه عادل وي د وجه د عداوت او د شمنئ نه۔ شرح ابن بطال ٥/٣٩٦) والله تعالیٰ اعلم۔

---

١٦٦٢ (١٨) - وَعَنْ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :(( اَيُّمَا مُسْلِمٍ شَهِدَ لَهُ اَرْبَعَةٌ بِخَيْرٍ اَدْخَلَهُ اللهُ الْجَنَّةَ)). قُلْنَا: وَثَلَاثَةٌ ؟ قَالَ:(( وَثَلَاثَةٌ)). قُلْنَا وَاثْنَانِ ؟ قَالَ:(( وَاثْنَانِ)). ثُمَّ لَمْ نَسْأَلْهُ عَنِ الْوَاحِدِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : او عمر ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمایلي دي:(( کوم مسلمان دپاره چه څلور کسان د خیر (نیکئ) ګواهي ورکړي نو الله به ئې جنت ته داخل کړي ))۔ مونږ اُووئیل : او که درې کسان ګواهي ورکړي ؟ نبی ﷺ اُوفرمایل : (( او که درې کسان ګواهي ورکړي )) نو هم (دغه ثواب دې) مونږ اُووئیل : که دوه کسان ګواهي ورکړي ؟ نبی ﷺ اُوفرمایل:(( که دوه کسان (هم) ګواهي ورکړي))۔ بیا ترې مونږ د یو تن په باره کښې تپوس اُونکړو۔ (بخاريؒ)۔

تشريح : وَثَلاثَةٌ : يعنى د درے كسانو د گواهئ څه حكم دے وے فرمائيل چه د درے كسانو گواهي هم هغه شان ده۔

أَدْخَلَهُ اللهُ الْجَنَّةَ : ددے نه مراد د اولنو خلقو سره داخليدل دى او بغير د عذاب نه داخليدل دى ورنه هر مسلمان به جنت ته داخليږى كله چه په اسلام باندے وفات شى برابره ده چه څوك ورله گواهي اُوكړى او كه نۀ۔

لَمْ نَسْأَلْهُ عَنِ الْوَاحِدِ. : د دوه كسانو په گواهى ئے اكتفاء اُوكړه او د واحد تپوس ئے اُونكړو پدے كښې حكمت (والله اعلم) دا معلوميږى چه دوه كسان غالباً د شهادت (گواهئ) نصاب دے۔

بعض وائى : عمر فاروق ﷺ د يو تن په باره كښې تپوس ځكه اُونكړو چه هغه دا بعيده گنړله چه په داسے عظيم مقام كښې دے د نصاب نه كم خلق گواهى وركړى۔ ليكن په يو روايت كښې د يو تن د گواهئ په باره كښې هم دا فضيلت راغلے دے۔ نبى ﷺ تپوس اُوكړو دا سړے چا په خير ليدلے دے، يو سړى اُووئيل : ما (د الله په لاره كښې) په څوكيدارئ ليدلے دے۔ نو نبى ﷺ اُوفرمايل : دا جنتى دے۔

فائده : ددے حديث نه بعض علماؤ دا معلومه كړيده چه په يو راوى باندے تعديل او جرح به هله قبوله وى چه دوه كسان وى يا زيات وى او دا رايه د امام مالكؒ، شافعىؒ او محمد بن الحسنؒ ده او امام ابوحنيفهؒ او ابويوسفؒ وائى چه د يو تن جرح او تعديل هم قبليږى او دا حديث دليل د امام مالكؒ او د هغه د موافقينو دے چه د دوه كسانو نه دكمو په باره كښې تپوس ندے كړے شوے، او هر كله چه مزكى او جارح كښې عدالت شرط شو نو واجب ده چه عدد هم پكښې شرط شى او پدے كښې اتفاق دے چه كله دوه كسان تعديل اُوكړى او يو جرح كوى نو تعديل به اولىٰ وى۔ (شرح ابن بطال) ليكن پدے باندے استدلال په محل د نظر كښې دے ځكه چه په بل روايت كښې د هغه يو تن د گواهى په باره كښې هم دا فضيلت راغلے دے۔ (عمدة القاري ٢٠/ ٢٣٩)

---

١٦٦٣ (١٩) ــ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« لَا تَسُبُّوا الْأَمْوَاتَ فَإِنَّهُمْ قَدْ أَفْضَوْا إِلَى مَا قَدَّمُوْا ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : او عائشه رضى الله عنها فرمائى : رسول الله ﷺ فرمايلى دى : « مړو ته بدرد مۀ وايئ ځكه چه دوى رسيدلى (جزاء د) هغه عملونو ته كوم چه ئے مخكښې ليږلى »۔ (بخارىؒ)۔

تشريح : لَا تَسُبُّوا الْأَمْوَاتَ : ظاهر ددے حديث عموم دے چه د هر قسم مړو بد رد وئيل منع دى ليكن ددے عموم نه بعض حالات خاص شويدى چه هغه د مړى بنه يا بد صفت ذكر كول په

وخت د مرګ د هغه کښې ځکه چه نبي ﷺ په مخکښې حدیث د انسؓ کښې صحابه کرامؓ ددې نه منع نهٔ کړل چه تاسو د مړي ولې بدي بيانوئ بلکه هغوي ئې په همدغه حالت بغير د منع کولو نه پريخودل.

بعض وائي : الاموات کښې الف لام عهدي دی او معهود مراد پدې سره مسلمانان دي يعنى مسلمانانو مړو ته بد رد مهٔ وايئ او هرچه فاسقان مبتدعين او هغه کسان چه د هغوي شر غالب وي نو هغوي په بدئ سره ذکر کول جائز دي چه خلق ترې نصيحت واخلي. يا په مجروح راويانو باندې جرح کول او هغوي باندې تنقيد کول که مړه وي او که ژوندي په اجماع د علماؤ جائز ده ځکه چه پدې کښې حفاظت د دين دې. او زياته تشريح مخکښې ذکر شوه.

أَفْضَوْا : افضاء په معنیٰ د رسيدلو سره. اى وَصَلُوْا. (رسيدلي دي).

إِلٰى مَا قَدَّمُوْا : يعنى کوم اعمال ئې چه ځان له مخکښې ليږلي دي. يعنى د خپلو اعمالو جزاء ته رسيدلي دي نو هغوي ته بد رد وئيلو کښې فائده نشته لکه چه د ژوندي په بد رد وئيلو کښې هغه ته فائده وي چه منع شي او په هلاکت کښې واقع نشي، هان البته کله مړي ته په بد رد وئيلو کښې د ژوندي فائده وي لکه د مړي د غلط چال چلن نه منع کول غرض وي نو بيا د مړي بدي ذکر کول جائز دي. لکه بدعتي ملا وي خلقو ته ئې غلط دين بيان کړې وي، کتابونه ئې ليکلي وي نو د هغه بدي د خلقو د اصلاح په نيت بيانول په دې حديث کښې نهٔ دي داخل.

---

١٦٦٤ (٢٠) - وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلٰى أُحُدٍ فِيْ ثَوْبٍ وَاحِدٍ ثُمَّ يَقُوْلُ: «أَيُّهُمْ أَكْثَرُ أَخْذًا لِلْقُرْآنِ؟». فَإِذَا أُشِيْرَ لَهٗ إِلٰى أَحَدِهِمَا قَدَّمَهٗ فِي اللَّحْدِ وَقَالَ: «أَنَا شَهِيْدٌ عَلٰى هٰؤُلَاءِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». وَأَمَرَ بِدَفْنِهِمْ بِدِمَائِهِمْ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ وَلَمْ يُغَسَّلُوْا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : او جابر ؓ فرمائي : رسول الله به د احد په شهيدانو کښې دوه سړي په يوه کپړه کښې راجمع کول بيا به ئې فرمايل : «په دوي کښې کوم يو ته قرآن ډير ياد دے ؟ » کله چه به نبي ﷺ ته د هغوي نه يو تن ته اشاره اُوکړے شوه نبي ﷺ به په لحد کښې هغه مخکښې کړو او فرمايل به ئې: زهٔ به د قيامت په ورځ په دوي باندې ګواه يم. جابرؓ فرمائي : رسول الله ﷺ حکم اُوکړو د دوي په دفن کولو سره د وينې د دوي نه او په دوي باندې ئې مونځ اُونکړو او نهٔ دوي ته غسل ورکړے شو. (بخاريؒ).

**تشریح : قَتْلٰی** : جمع د قتیل ده یعنی وژلے شوی په غزوه د احد کښې۔
**ثَوْبٍ وَاحِدٍ** : دا د ضرورت کفن دے ځکه چه زیاتے جامے نهٔ ملاویدے۔ پدے کښې دا نهٔ لازمیږی چه د دوارو شهیدانو بدنونه به د یوبل نه لګیدل ځکه چه دا ممکن ده چه مینځ کښې ئے سرګرے وغیره اچولے وی یا ئے یو بل ته مخامخ کپړه د دوارو بدنونو نه تاؤ کړی وی۔ یا دا احتمال لری چه جامه اُوګده وه نو په مینځ ئے دوه کسانو ته پریکړی وی او هر یو ته ئے جدا جدا کفن جوړ کړے وی۔نو مظهر چه په شرح د مصابیح کښې د ثوب واحد نه یو قبر معنیٰ مراد کړیده نو دے باندے دلیل نشته۔
بیا دلته دا اشکال کیږی چه شهید خو به د خپلو جامو سره خخولے شی نو په یوه جامه کښې د کفن ورکولو څه معنیٰ جوړیږی ؟ نو ددے اشکال جواب کښې وئیلے شی چه دا په باره د هغه چا کښې دے چه جامے ئے پریکړے شوی وی او په بدن باندے ئے باقی پاتے نهٔ وی یا لږے پاتے وی خو زخمونه پرے زیات وی۔ او کله چه څه جامے پاتے وی نو بیا به دا د دوارو د بدنونو نه فاصله کښې واقع شوی وی۔ نو مخکښے اشکال هم ختم شو۔ وهو الظاهر کما قال ابن تیمیة ځکه احد کښې د شهداء خپلے جامې وی لکن بهر غټ څادر دوه دوه کسانو ته واغوستلے شو۔
**اللَّحْدِ** : دا د قبر په کنده کښې قبلے طرف ته کوږ ځائے دے ځکه چه دا په طرف د قبر کښې کنستلے شی۔ پدے وجه ورته لحد هم وائی ځکه د لحد معنیٰ ده کوږوالے۔
بیا دا حدیث دلیل دے چه په یو جامه کښې دوه کسانو ته کفن ورکول جائز دی کله چه ضرورت راشی۔ ۲- دوه کسان یا زیات په یو لحد کښې دفن کول صحیح نهٔ دی ځکه رسول الله ﷺ به هر مړے په خپل خپل قبر کښې دفن کولو لیکن د ضرورت په بناء جائز دی۔ لکه مثلاً د قتال یا د وباء د وجه نه مړی ډیر شوی وی او قبر تیارونکی کم وی، ډیر نشی تیارولے۔ په روایت د عبد الرزاق کښې دی چه نبی ﷺ د اُحد د شهیدانو په باره کښې اُوفرمایل چه دوه او درے کسان په یو قبر کښې دفن کړئ او د ترمذی د روایت نه معلومیږی چه انصارو شکایت اُوکړو چه مونږ ته زخمونه او تکلیف رسیدلے دے نو نبی ﷺ اُوفرمایل : کندے اُوباسئ او دوه او درے سری په یو قبر کښې دفن کړئ۔
**أَخْذًا لِلْقُرْآنِ** : دا تمییز دے د اکثر دپاره یعنی چا ته چه قرآن زیات یاد وی نو هغه به په قبر کښې قبلے طرف ته مخکښې کولے شی د وجه د فضیلت د قرآن کریم نه۔ لکه څنګه چه په ژوند کښې په امامت وغیره کښې حقدار وو۔
دا دلیل دے چه د الله کتاب او د الله د کتاب علم د انسان مرتبه په ژوند کښې او پس د مرګ نه

پوره ته کوی۔

أَنَا شَهِيدٌ عَلَى هٰؤُلَاءِ: یعنی نبی ﷺ اُوفرمایل : زهٔ به ددے کسانو گواهی کوم چه دوی خپل روحونه الله لره ورکړل او خپل ژوند ئے د الله دپاره پریخودلو۔ نو پدے کښ ددے صحابه کرامو دیر تعظیم او تشریف دے۔

وَأَمَرَ بِدَفْنِهِمْ بِدِمَائِهِمْ : دا حدیث دلیل دے چه شهید له به غسل نشی ورکولے دے دپاره چه وینه پرے باقی پاتے شی او اثر د جهاد او شهادت ترے زائل نشی۔ دا به د قیامت په ورځ ددهٔ دپاره د ټولو خلقو مخامخ د فخر سبب وی۔ د قیامت په ورځ به راشی وینه به ئے د زخمونو نه روانه وی رنګ به ئے وینه وی او خوشبوئی به ئے د مشکو وی لکه په حدیث کښ راغلی دی۔ پدے کښ سعید بن المسیب او حسن بصری او شریح خلاف کړیدے هغوی وائی چه واجب ده چه شهید له به غسل ورکولے شی لیکن دا حدیث د هغوی په خلاف دلیل دے۔ (سبل السلام ۲/۹۸) ۔

وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ : دے کښ یو لفظ داسے دے چه یصل معلوم صیغه شی او لام باندے کسره شی یعنی نبی ﷺ پدے باندے مونځ اُونکړو۔ یا صیغه د مجهول شی او لام باندے فتحه شی یعنی مونځ اُونکړے شو په دوی باندے په امر د رسول الله ﷺ سره۔

دا حدیث دلیل دے چه په هغه شهید باندے چه په معرکه د کافرانو کښ وژلے شوے وی مونځ به نشی کولے ځکه چه مونځ کښ سفارش وی د مړی دپاره چه گناهونه ئے معاف شی او شهادت د شهید گناهونه ختم کړل او صفاء ئے کړو نو دا بغیر د مانځه نه د الله په فضل او احساناتو ورواوریدو۔

امام شافعیؒ فرمائی : د غسل او مونځ نهٔ کولو حکمت شاید دا وی چه دوی د خپل رب سره په خپلو زخمونو کښ ملاؤ شی او الله دوی لره دومره اکرام اُوکړو چه د مانځه نه هم مستغنی شو۔

## مسئله : آیا په شهید به مونځ کولے شی ؟ :

راجح دا ده چه شهید باندے مونځ د جنازے افضل دے او که پریخودلے شی هم جائز ده۔ او دا قول د امام احمدؒ دے او علامه ابن حزمؒ غوره کړیدے۔

**دلیل** دا دے چه نبی ﷺ په هر شهید باندے مونځ نهٔ دے کړے ځکه چه په بدر وغیره غزواتو کښ دیر شهیدان شویدی او دا ندی نقل شوی چه نبی ﷺ په هغوی مونځ کړے وی۔ دغه شان غزوه د خیبر او فتح د مکه وغیره واخله۔ لیکن بل طرفته داسے روایات هم موجود دی چه (بعض صحیح دی او بعض حسن درجه کښ دی چه) نبی ﷺ په بعض شهیدانو جنازه

کړيده لکه د اُحد په شهيدانو ئې جنازه کړيده نو دا دليل د استحباب شو۔

لکه عبد الله بن زبيرؓ فرمائي : رسول الله ﷺ د اُحد په ورځ د حمزةؓ په باره کښې حکم اُوکړو نو هغه په څادر کښې تاؤ کړے شو بيا ئې پرے مونځ اُوکړو او نهه تکبيرات ئې پرے اُووئيل بيا نورو شهيدانو ته راغلو او په هغوی باندے ئې مونځ اُوکړو او په حمزه ئې هم اُوکړو د هغوی سره۔ (طحاوی ١/ ٢٩٠) باسناد صحيح) ۔دارنګه بخاری کښې دی چه رسول الله ﷺ د اُحد په شهيدانو اته کاله روستو د نبی ﷺ د وفات نه لږ مخکښې جنازه اُوکړه لکه د ژوندو او د مړو نه د رخصت اخستونکی په شان۔ دغه شان نور احاديث هم شته چه شيخ البانیؒ په احکام الجنائز ص (٨١) کښې او علامه شوکانیؒ ذکر کړيدی۔

بل طرف ته داسے حسن او صحيح روايات هم موجود دی چه نبی ﷺ د اُحد په شهيدانو مونځ اُونکړو لکه پدے حديث الباب د جابرؓ کښې دی : (وَلَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِمْ) (صحيح بخاری) ۔ (نبی ﷺ په شهداو د احد مونځ اُونکړو) او حديث د انسؓ کښې دی : (عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ مَرَّ بِحَمْزَةَ وَقَدْ مُثِّلَ بِهِ وَلَمْ يُصَلِّ عَلَى أَحَدٍ مِنَ الشُّهَدَاءِ غَيْرَهُ) (ابوداود:٣١٣٩) باسناد حسن)۔

(انسؓ فرمائي : نبی ﷺ په حمزةؓ راتير شو چه هغه مُثله کړے شوے وو او د هغه نه علاوه په هيڅ شهيداو ئے مونځ اُونکړو)۔ ددے احاديثو ترمينځ تطبيق دا دے چه (١) مخکښې حديثونو کښې اثبات وو او دا نافي دی او د مثبت خبره مقدم وی په نافي باندے ځکه چه مثبت سره زيات علم وی۔ او نافي به معذور وو په بل طرف کښې به وو نبی ﷺ به ئې په مانځه باندے نهٔ وو ليدلے۔ (٢) يا دا چه په بل چا ئے مستقل مونځ نهٔ دے کړے بلکه د نورو سره شريك ئے مونځ کړے وو او په حمزه باندے ئې مستقل هم اُوکړو او بيا ئې د نورو سره هم شريك اچولے وو۔

(٣) يا دا چه په دغه ورځ او په حالت د واقعه کښې ئې پرے مونځ نهٔ وو کړے او روستو ئې پرے کړيدے لکه د روايت د بخاری نه معلومه شوه چه اته کاله روستو ئې پرے اُوکړو۔

امام ابن القيمؒ فرمائي : د اُحد د شهيدانو په باره کښې ظاهره خبره دا ده چه په دوی باندے مونځ په وخت د فن کښې نهٔ وو شوے ځکه چه اويا کسان شهيدان وو نو که په دوی مونځ شوے وے نو په هيچا به پټه نهٔ وے پاتے شوے او حديث د جابرؓ په ترك د مانځه کښې په هغوی باندے صحيح صريح دے او د هغه پلار هم په شهيدانو کښې شمار وو نو هغه ته ضرور معلومات زيات دی۔ (تهذيب سنن ابی داود ٢/ ٨٦ لابن القيم)۔ ليکن مخکښې روايت د ابن زبيرؓ تير شو چه په شهداو اُحد مونځ اُوشو۔

حافظ ابن قيمؒ فرمائي : پدے مسئله کښې حقه خبره دا ده چه په شهيدانو باندے مونځ

كولوكښې اختيار دے كه كوي او كه نۀ ځكه چه احاديث په دواړو كښې راغلي دي. انتهىٰ.
ددے بحث نه معلوميږي چه په شهيد مونځ مستحب دے او واجب نۀ دے او دا قول علامه عبيد الله المباركفوري په مرعاة (٥/٤٠٠) كښې او شيخ الباني په احكام الجنائز كښې راجح كړيدے (٥/٤٠٠)

## اوس د مذاهبو اختلاف :

(١) امام ترمذي فرمائي : بعض علماء وائي چه په شهيد باندے به مونځ كولے شي او دا قول د كوفيينو او اسحاق دے. (٢) او بعض وائي چه مونځ به پرے نشي كولے او دا قول د مدنيينو او شافعيؒ او احمدؒ دے. امام شوكانيؒ فرمائي : اول قول د امام ابوحنيفة او د هغه د ملګرو او ثوريؒ، او مزنيؒ او حسن بصريؒ او ابن المسيبؒ دے. (نيل الاوطار ٤/٧٩)
(٣) د امام احمدؒ نه يو روايت دا دے چه مونځ پرے مستحب دے او واجب نۀ دے، ابن حزمؒ وائي مونځ كول او نۀ كول دواړه حسن دي. او استدلال ئے كړيدے په حديثونو د جابرؓ او عقبه بن عامرؓ باندے او دا ئے وئيلي دي چه دا جائز نۀ ده چه يو د اثرينو په بل سره پريخودلے شي. بلكه دواړه حق او مباح دي او دے كښې نسخ هم نشته ځكه چه په دواړو باندے عمل ممكن دے په مختلفو احوالو كښې. (المحلى ٥/٨١)
كوم علماء چه وائي چه مونځ پرے كول واجب دي هغوي يو دليل دا وائي چه د عامو دلائلو نه ثابته ده چه په مړي باندے به جنازه كولے شي نو د هغے په عموم كښې شهيدان هم داخل دي. (ليكن دا دليل ضعيف دے ځكه چه دا عبادت دے او خصوصي عبادت په عمومي دليل ثابتول صحيح نۀ دي خاصكر كله چه د خصوصي عبادت استثناء موجوده ده).
**دويم دليل** : په صحيح بخاري كښې د عقبه بن عامرؓ حديث كښې دي چه نبي ﷺ په شهداو د احد باندے اته كاله بعد مونځ اُوكړو. (صحيح البخاري رقم : ٣٨١٦)
ليكن ددے نه امير يمانيؒ دا جواب وركړيدے چه په دغه حديث كښې خپله دا واقع شويدي چه دا مونځ اته كاله بعد وو او مخالف خو وائي چه كله موده زياته اُوشي نو په قبر به مونځ نشي كولے نو ددۀ استدلال پوره نۀ دے. (سبل السلام ٢/٩٨)
٢ - دويم دا چه دا دعاء وه او مونځ نۀ وو لكه دا خبره امير يمانيؒ او د هغه نه مخكښې امام نوويؒ كړيده او امير يمانيؒ وائي چه ددے تائيد دا دے چه رسول الله ﷺ نورو صحابه كرامو ته دعوت نۀ دے وركړے چه راځئ چه په شهيدانو د اُحد جنازه اُوكړو معلوميږي چه دا صرف دعاء او استغفار وو او كه دا چرته معلوم مونځ وے نو صحابه كرامو ته به ئے خبر وركړے وے او جمعه به

ئے کړے وے لکه څنګه ئے چه په نجاشي باندے صحابه کرام راجمع کړل۔ سره ددے نه چه د اُحد شهیدان د نجاشي نه غوره هم وو۔ دارنګه دا هم نۀ دی راغلی چه نبی ﷺ یواځے کله په قبر باندے مونځ کړے وی۔ (سبل)

(لیکن دا ملازمه نشته چه جنازه کښې به ضرور جماعت وی بلکه یواځے هم جنازه کیږی لکه د اُحد په شهیدانو نبی ﷺ یواځے مونځ کړیدے)۔

صاحب د فیض الباری (شاه انور شاه کشمیریؒ) د امام نوویؒ د دغه تاویل ذکر کولو نه روستو لیکی: پدے تاویل باندے عینیؒ رد کړیدے چه دا تاویل نۀ دے بلکه تحریف دے ځکه مفعول مطلق د تشبیه دپاره وی نو دا قول (صلاته علی المیت) (په شان د مونځ د نبی ﷺ په مړی باندے) صریح دے چه نبی ﷺ په شهداؤ د اُحد باندے مونځ کړے وو لکه څنګه چه په نورو جنازوئے مونځ کولو۔ زۀ (کشمیری) وایم: حقه خبره هغه ده چه نوویؒ وئیلی ده ځکه چه ما تول روایات تلاش کړل نو ماته ښکاره شوه چه د نبی ﷺ دغه مونځ په شهداؤ د احد باندے په هغه کال کښې وو په کوم کال چه وفات شوے وو او دا مونځ په مسجد نبوی کښې وو او دے ته اشاره کوی الفاظ د بخاریؒ: (ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى الْمِنْبَرِ) (بیا نبی ﷺ منبر ته راوګرځیدۀ) او په اُحد کښې منبر چرته وو؟ نو د نبی ﷺ راوتل په دغه واقعه کښې مسجد ته وو، نۀ اُحد ته، او مراد دا وو چه هغوی دپاره ئے دعاء اُوکړه منځکښې د وتلو د نبی ﷺ د دنیا نه د وجه د زیات فضیلت د شهداؤ د اُحد نه۔ بیا وائی: هغه څوك سهوه او خطاء دے چه دا ګمان کوی چه د نبی ﷺ وتل اُحد ته وو ځکه چه هغه خو د مدینے نه دریے میله وړاندے دے آه۔ (فیض الباری ٤٧٨/٢) والمرعاة (٣٩٩/٥)۔

لیکن د صاحب د فیض الباری کشمیری تاویل ښکاره خطاء دے ځکه چه نبی ﷺ په اُحد کښې مونځ اُوکړو او بیا مدینے ته راغلو او منبر ته اُوختلو خطبه ئے اُووئیله۔ او ددے تفصیل منځکښې تیر شویدے۔

احناف د جابرؓ او د انسؓ د حدیث نه دا جواب کوی: چه نفی په هغے کښې محمول ده په نفی د مانځه باندے یواځے یعنی په شهداؤ د اُحد ئے یواځے یواځے مونځ اُونکړو بلکه په نهه نهه یا لس لس کسانو به ئے مونځ کولو او حمزهؓ به ورسره وو لکه پدے باندے بعض روایات دلالت کوی۔ یا معنیٰ دا ده چه په نورو باندے ئے داسے مونځ اُونکړو لکه څنګه چه حمزهؓ باندے کړے وو چه په دۀ باندے ئے بار بار کړے وو د زیات رحمت او شفقت د وجه نه او په نورو باندے ئے یو کرت کړے وو او بیا ئے اته کاله پس پرے دوباره په تولو باندے اُوکړو دپاره د رخصتولو د هغوی۔

په لس لس کسانو باندے د مونځ کولو روایت د ابوداود په مراسیلو کښې د ابو مالك الغفاری نه

چه نوم ئې غزوان دې نقل دې او هغه تابعي دې۔ نو روایت مرسل دې او حافظ وئیلي دي چه رجال ئې ثقات دي لیکن امام شافعيؒ پکښې دا علت وئیلے دے چه ددې د نورو روایاتو سره تدافع ده ځکه شهداء اویا وو نو کله چه لس لس راوستے شي نو بیا د نبي ﷺ اُووه مونځونه جوړیږي نو څنګه اوویا مونځونه شو او که مراد ترې تکبیرونه وي نو تکبیرونه خو اته ویشت جوړیږي۔ لیکن ددې نه جواب شته چه مراد ددې نه دا دې چه مونځ ئې په اوویا کسانو اُوکړو او حمزه د هغوی تولو سره وو نو ګویا کښې په حمزه باندې ئې اوویا مونځونه اُوکړل۔ او ددې جواب تائید د دوه روایاتو نه کیږي یو مخکښې د عبد الله بن زبیر په روایت چه طحاوي نقل کړیدې باسناد صحیح او شیخ الباني هم ورته صحیح وئیلے دې او دویم حدیث د ابن عباسؓ دې چه ابن سحاق روایت کړیدې فرمائي: (لَمَّا وَقَفَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ عَلٰى حَمْزَةَ اَمَرَ بِهٖ فَهُيِّئَ اِلَى الْقِبْلَةِ ثُمَّ كَبَّرَ عَلَيْهِ تِسْعًا ثُمَّ جَمَعَ اِلَيْهِ الشُّهَدَاءَ، كُلَّمَا اُتِيَ بِشَهِيْدٍ وُضِعَ اِلٰى حَمْزَةَ، فَصَلّٰى عَلَيْهِ، وَعَلَى الشُّهَدَاءِ مَعَهٗ حَتّٰى صَلّٰى عَلَيْهِ وَعَلَى الشُّهَدَاءِ ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِيْنَ صَلَاةً) (طبراني في الكبير ۳/۱۰۷)

(هرکله چه رسول الله ﷺ د حمزه په خوا کښې اُودریدو نو حکم ئې اُوکړو (چه دا قبلې ته متوجه کړئ) نو هغه قبلې ته برابر کړے شو، بیا ئې پرے نهه تکبیرات اُووئیل بیا به ورسره نور شهیدان یو ځائے کولے شو، هرکله چه به شهید راوستے شو نو د حمزه سره به کیخودے شو او په هغه به ئې مونځ اُوکړو او په شهیدانو به ئې د هغه سره اُوکړو تردې چه په حمزه او شهیدانو ئې دوه اوویا مونځونه اُوکړل)۔

شیخ البانيؒ وائي : دا روایت طبراني په کبیر کښې روایت کړیدې او سند ئې جید او تمام رجال ئې ثقات دي۔ او محمد بن اسحاق پکښې تصریح په تحدیث کړیده نو شبهه د تدلیس زائله شوه۔ او داسې ښکاره کیږي چه علامه سهیليؒ او حافظ ابن حجرؒ ددې اسناد نه غافله شویدي چه هغوی دې روایت ته ضعیف وئیلے دې پدې وجه چه پدې کښې د محمد بن اسحاق نه روستو مجهول راوي دې نو که هغه حسن بن عماره وي نو هغه خو ضعیف دې او که بل وي نو مجهول دې هیڅ حجت پکښې نشته لیکن دا خبره صحیح نۀ ده ځکه چه پدې روایت کښې مبهم راوي محمد بن کعب القرظي دې یا حکم بن عُتیبه دې یا دواړه دي۔ او پدې خبره د هوکه کیدل نۀ دي پکار چه د حکم نه په روایت د مسلم کښې نفي د مانځه راغلې ده په شهداؤ د احد باندې ځکه چه جائز ده چه د هغه نه هغه خبره هیره شوې وي کومه چه به ئې مخکښې بیانوله چه هغه مونځ دې په شهداؤ د احد باندې۔ او که اُومنو چه هغه نفي کوي نو محمد بن کعب قرظي ثقه راوي دې هغه ئې اثبات کړیدې۔ نو ثابته شوه چه دا حدیث صحیح دې او هیڅ اشکال پکښې نشته۔

انتهىٰ۔ (احكام الجنائز ص (١٠٥) وارواء الغليل (١٦٤/٣)
او دا دوه حديثونه شيخ البانيؒ ددے دپاره ذكر كريدى چه دا هم جائز ده چه په هر مرى جدا جدا جنازه اُوكړے شى۔ **خلاصه** : ددے ټول بحث خلاصه دا راوځى چه په شهداؤ باندے مونځ كول واجب نهٔ دى بلكه كول ئے افضل دى او كه اُونكړے شى نو هيڅ باك نشته، ځكه چه نبى ﷺ په بعض شهيدانو مونځ كريدے لكه د اُحد او په بعضو ئے نهٔ دے كړے لكه په شهداؤ د بدر، شهداء د خيبر، شهداء د فتح د مكے وغيره۔
**فائده** : علامه شوكانيؒ فرمائى: دا اختلاف په غسل او مانځه كښ آيا صرف په هغه شهيد كښ دے چه په معركه كښ وژلے شوے وى او كه نهٔ عام دے ؟ (١) نو امام شافعى فرمائى : ددے نه مراد هغه شهيد دے چه د كافرانو په مقابله كښ په ميدان كښ شهيد شوے وى نو كه څوك په جنګ كښ زخمى شى او بيا روستو وفات شى يا د كافرانو سره جنګ نهٔ وى بلكه د باغيانو مسلمانانو سره په جنګ كښ اُووژلے شى يا په نورو اسبابو سره ورته شهادت ملاؤ شوے وى، (لكه مثلاً غريق، حريق، مبطون، مطعون، ذات الجنب والا، صاحب الهدم وغيره) يا يو ځے ظلماً چا وژلے وى نو پدے ټولو باندے به مونځ هم كولے شى او غسل به هم وركولے شى۔
(٢) امام ابوحنيفهٔ او محمدؒ فرمائى : څوك چه په معركه كښ زخمى شو كه د ارتثاث نه مخكښ مړ شو نو شهيد دے او ارتثاث دے ته وائى چه د معركے نه نقل كړے شى، يا خوراك او څكاك يا وصيت اُوكړى، يا په معركه كښ يوه ورځ او شپه ژوندے پاتے شى۔
**ليكن** په حديث د اهل يمامه كښ راځى چه عبد الله بن عمر په شهيدانو كښ ګرځيدو نو ابوعقيل الانفى ئے اُوليدو، دا وائى چه ما په هغه باندے اُوبه اُوڅكولے او په هغه باندے څوارلس زخمونه وو چه مرګ ته ئے رسولے وو نو اُوبه د هغه د زخمونه نه بهر راووتے نو هغه ته غسل ورنكړے شو، دغه شان سعد بن الربيع په احد كښ زخمى شو او نبى ﷺ ته ئے سلام راليږلے وو او بيا وفات شو او د اُحد په شهيدانو كښ حساب دے)۔ لهذا كه صرف خبرے اُوكړى يا څكاك اُوكړى نو دا ډير فصل نهٔ دے او كه خوراك اُوكړى يا ډيره موده تيره شى نو دا فصل دے پدے وخت كښ به دا شهيد نهٔ حسابيږى۔ (الشرح الكبير ٣٣٥/٢)۔
(٣) بعض علماء (هادويه) وائى چه څوك په معركه كښ زخمى شى هغه ته هم شهيد وئيلے شى اګركه د ارتثاث نه بعد مړ شى، او څوك چه د خپل نفس يا مال په مدافعت كښ يا په ښار كښ ظلماً اُووژلے شى نو امام ابوحنيفهٔ او ابويوسفؒ او هادويهٔ وائى : دا شهيد دے۔ او امام يحيىٰ او شافعيؒ وائى چه دا اګركه معنوى شهيد دے ليكن د هغه شهداؤ نه نهٔ دے چه هغوى ته

غسل نشي ورکولے او احناف او امام شافعیؒ د یو قول په بناء وائي چه د باغیانو د لاسه وژلے شوے شهید دے دوی وائي چه د نبي ﷺ ملګرو ته غسل نهٔ دے ورکړے شوے۔ (نيل الاوطار ٤/٨١) الشرح الكبير لابن قدامة ٢/٣٣٥)

(۳) امام ابن حزمؒ فرمائي : د معرکے نه علاوه هر قسم قتيل لره به غسل ورکولے شي او جنازه به هم پرے کولے شي۔ **دليل** دا وائي چه عمر فاروق، عثمان او علي رضي الله عنهم شهيدان شويدي ليکن هغوی ته غسل هم ورکړے شويدے او مونځ هم پرے شويدے۔ (المحلى ٥/٨٢) او دغه شان نبي ﷺ هم معنوی شهيد دے، او نور په طاعون کښې وفات شوی کسانو ته د صحابه کرامو په دور کښې غسل ورکړے شويدے او مونځونه پرے شويدي۔ دغه شان سعد بن معاذ باندے رسول الله ﷺ جنازه کړيده۔ (مسلم ٧/١٥٠) احمد (٣/٢٩٦) ترمذی: ٢/٣١٧) ارواء الغليل (٣/١٦٦)۔ او حال دا چه دا په معرکه (غزوه احزاب) کښې زخمي شوے وو او دوه درے ورځے پس وفات شو۔ او همدا قول حق معلوميږي او دا قول د اوزاعیؒ او ابن المنذرؒ دے په باره د باغيانو کښې۔او دغه دلائل د ابن حزمؒ، صاحب د مغني هم ذکر کړيدي۔ (المغني لابن قدامة ١٠/٥٧)۔ ليکن راجح دا ده چه هر شهيد ته غسل نشته په شرط ددے چه زر شهيد شي او وقت تير نکړي په خوراك سره او هر چه اُوبه سکل دي يا لږے خبرے دا مانع نهٔ دے اُوګوره الدين الخالص (٩)۔

**فائده** : که په معرکه کښې زنانه او ماشومان شهيدان شي نو هغوی ته هم غسل نشي ورکولے او مونځ پرے جائز او مستحب دے واجب نهٔ دے۔ حکم ئے د بالغو سړو دے۔

**دليل** دا دے چه په شهداؤ د احد کښې حارثه بن نعمان نابالغ وو او هغه ته غسل نهٔ دے ورکړے شوے۔ احناف وائي چه دا اهل د قتال نهٔ دے نو دا به د بالغانو په شان نهٔ وي۔ ليکن خبره ئے بے دليله ده، ځکه چه دا علت خو په زنانو کښې هم جاري کيږي۔ (المغني لابن قدامة)۔

**فائده** : بعض علماء وائي : که څوك په حالت د جنابت کښې شهيد شي نو غسل به ورکولے شي او دغه شان حکم د هغه زنانه دے چه په حالت د نفاس يا حيض کښې شهيده شي۔ ځکه چه حنظلة بن الراهب په حالت د جنابت کښې په اُحد کښې شهيد شو او ملائکو ورته غسل ورکړو۔ نبي ﷺ تپوس اُوکړو چه د حنظله څه قصه ده چه ملائکو ورله غسل ورکړو؟ خلقو ورته قصه بيان کړه الخ (الشرح الكبير لابن قدامة ٢/٣٣٢) ۔او دا قول د امام ابو حنيفةؒ دے۔ او امام مالك وغيره وائي چه غسل به نشي ورکولے د وجه د عموم د احاديثو نه۔ دويم : ځکه چه نبي ﷺ حنظله ته غسل نهٔ وو ورکړے او په روايت د ابوداود کښې چه شيخ البانیؒ ورته صحيح وئيلے دے دا هم دي چه حمزهؓ هم په حالت د جنابت کښې شهيد شوے وو او نبي ﷺ ورته غسل ورنکړو۔ او دا

ملائکو غسل ورکول د حنظله کرامت وو ، او دغه شان د حمزهؓ، که غسل ورکول ضروري وے نو بیا به رسول الله ﷺ ورکړے وے یا به ئے ددے نه روستو د جنب په باره کښې د غسل ورکولو حکم کړے وے۔ او همدا خبره شیخ البانیؒ راجح کړیده او د ډیرو احادیثو نه ئے استدلال کړیدے۔

(احکام الجنائز ص (٥٤ رقم المسئلة :٣٢)۔

۱۶۶۵ (۲۱) – وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: أُتِيَ النَّبِيُّ ﷺ بِفَرَسٍ مُعْرَوْرٍ فَرَكِبَهُ حِيْنَ انْصَرَفَ مِنْ جَنَازَةِ ابْنِ الدَّحْدَاحِ وَنَحْنُ نَمْشِيْ حَوْلَهُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه :** او جابر بن سمره ؓ فرمائی : نبي ﷺ ته یو داسے اس راوستے شو چه بربند وو (یعنی زین پرے نۀ وو اچولے شوے) رسول الله ﷺ په هغه باندے سور شو کله چه هغه د ابن الدحداح د جنازے نه راواپس کیدو او مونږ د هغه نه ګیر چاپیره پیاده روان وو۔ (مسلمؒ)۔

**تشریح : بِفَرَسٍ مُعْرَوْرٍ :** دا موصوف صفت دی۔ معرور د عُرىٰ نه دے هغه اس ته وائی چه زین وغیره پرے نۀ وی بلکه بربند وی۔ عرب وائی : (اِعْرَوْرَى فَرَسَهُ)۔ په بربند آس باندے سور شو۔ لازم او متعدی دواړه قسمه استعمالیږی۔ په بعض صحیح نسخو د صحیح مسلم کښې (مُعْرَوْرَىٰ) لفظ دے۔ او همدغه معنیٰ ئے ده چه په بربند اس باندے سور وو۔

**تعارف د ابن الدحداح ؓ :** ددۀ نوم : ثابت بن الدحداح بن عیم بن غیم بن ایاس حلیف الانصار دے۔ بعض وائی دا ابن الدحداحة دے او اسم کنیه ئے ابو الدحداح او ابوالدحداحة ده۔ (اصابه)۔

علامه واقدیؒ په غزوه د اُحد کښې لیکلی دی چه مونږ ته عبد الله بن عمار الخطمی بیان کریدی چه ثابت بن الدحداحة د اُحد په ورځ راروان وو وے فرمایل : اے د انصارو ډلے ! که محمد (ﷺ) قتل شوے وی، نو الله ژوندے دے، مرګ پرے نۀ راځی، نو د خپل دین د طرف نه قتال اُوکړئ، نو د نورو مسلمانانو په ملګرتیا کښې ئے حمله اُوکړه، خالد په نیزه اُووهلو نو وفات شو۔ واقدیؒ وائی : بعض ملګری زمونږ وائی : چه دا زخمی شو بیا د خپلو دغه زخمونو نه جوړ شو او په خپله بستره باندے د هغه زخمونو نه وفات شو چه دا پرے بیرته راتازه شو او نبي ﷺ چه د حدیبیے نه په شپږم کال د هجرت راواپس شو نو دا وفات شو۔ حافظ وائی همدا خبره راجح ده۔

(مغازی الواقدی ۲۸۲/۱) وصفوة الصفوة ٦١٦/١) لابن الجوزی الاستیعاب فی معرفة الاصحاب لابن عبد البر (٦١/١)۔

ددے ابن الدحداحة باره کښې راځي : عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي : کله چه دا آيت نازل شو ﴿ مَنْ ذَا الَّذِیْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَاعِفَهٗ لَهٗ ﴾ ـ نو ابوالدحداح الانصاريؓ اُووئيل : يارسول الله ! الله تعالىٰ زمونږ نه قرض غواړي، نبي ﷺ اُوفرمايل : آو اے ابوالدحداح ! ـ دهٔ اووئيل : لاس رابښکاره کړه اے د الله رسوله ! نو رسول الله ﷺ ورته لاس ورکړو ـ دهٔ اُووئيل : يقيناً ما خپل رب ته خپل باغ په قرض کښې ورکړو، راوي وائي : ددهٔ په باغ کښې شپږ سوه کجورے وني وے او پدے کښې ام الدحداح او د هغه عيال وو ـ نو ابوالدحداح راغلو آواز ئے اُوکړو : اے ام الدحداح، هغے لبيك اُووئيلو ـ ورته ئے اُووئيل : اُوځه ما دا باغ خپل رب ته په قرض کښې ورکړو، په يو روايت کښې دي : هرکله چه ام الدحداح دا آواز واوريدو نو سمدست ئے د خپلو ماشومانو د خولو نه کجورے راوخکلے او د هغوي جيبونه او لستونړي ئے د کجورو نه خالي کړل ـ دے ته ايمان وائي !! ـ (صفوة الصفوة) ـ

انس بن مالك ﷺ فرمائي : يو سړے نبي ﷺ ته راغلو چه د فلاني يوه کجوره ده او زما باغ په هغے باندے برابرېږي نو دهٔ ته اووايه چه دا ما ته راکړي نو نبي ﷺ هغه ته اُووئيل : دهٔ ته دا ورکړه په مقابله د کجوره د جنت کښې نو هغه انکار اُوکړو نو ابوالدحداح دغه سړي ته راغلو او ورته ئے اُووئيل ما باندے دغه کجوره زما د ټول باغ په مقابله کښې راخرڅه کړه نو هغه دغه شان اُوکړل ـ ابوالدحداح نبي ﷺ ته راغلو ورته ئے اُووئيل ما د فلاني نه د خپل باغ په مقابله کښې دغه کجوره واخسته نو هغه سړي ته ئے ورکړه دا ما هغه ته اُوبخله نو نبي ﷺ اُوفرمايل : څومره ډير فراخه غونچکونه د کجورو به وي د ابو الدحداح دپاره (په جنت کښې) ـ بار بار ئے داسے اُووئيل ـ نو ابوالداحداح خپلے ښځے ته راغلو ورته ئے اُووئيل : اے ام الدحداح د باغ نه اُوځه دا ما د جنت د کجورے په مقابله کښې خرڅ کړو نو هغے اُووئيل: (رَبِحَ الْبَيْعُ رَبِحَ الْبَيْعُ) ـ (ډيره د ګټے والا بيعه ده دا) (صفوة) ـ

وَنَحْنُ نَمْشِيْ حَوْلَهٗ: امام نوويؒ فرمائي : دے نه دا ثابته شوه چه مشر سور وي نو د خلقو د هغه سره پياده تلل جائز دي او دا کار د هغه او د خلقو دپاره څه مکروه نهٔ دے کله چه پدے کښې څه فساد نهٔ وي ـ او هله به مکروه وي چه د روانو خلقو سپکاوے وي يا په سور انسان کښې د عجب او تکبر وغيره مفاسد پيدا کيږي ـ

۲- دويم دا ثابته شوه چه د جنازے نه روستو په واپسئ کښې سوريدل جائز دي لکه تفصيل روستو حديث کښې اُوګوره ـ

علماء فرمائي : د جنازے نه په واپسئ کښې سوريدل بالاتفاق مکروه نهٔ دي ځکه چه عبادت

ختم شو او عام حالت شو۔ د مسند احمد په زوائدو د عبد الله بن احمد کښې حدیث راغلے دے چه هغه دلالت کوی چه دا سوریدل په تلو او واپس کیدو دواړو حالتونو کښې وو لیکن علامه احمد عبد الرحمن ساعاتیؒ وئیلی دی چه دا روایت د ټولو صحیح روایاتو خلاف دے۔ دارنګه سنداً ضعیف دے ځکه چه عمر بن موسی بن الوجیه پکښې کذاب وضاع راوی دے۔

(بلوغ الامانی ۸/۱٤)۔

## الفصل الثانی

۱٦٦٦ (۲۲) – وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ: «اَلرَّاكِبُ يَسِيرُ خَلْفَ الْجَنَازَةِ وَالْمَاشِي يَمْشِي خَلْفَهَا وَأَمَامَهَا وَعَنْ يَمِينِهَا وَعَنْ يَسَارِهَا قَرِيبًا مِنْهَا وَالسِّقْطُ يُصَلَّى عَلَيْهِ وَيُدْعَى لِوَالِدَيْهِ بِالْمَغْفِرَةِ وَالرَّحْمَةِ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ، وَفِي رِوَايَةِ أَحْمَدَ وَالتِّرْمِذِيِّ وَالنَّسَائِيِّ وَابْنِ مَاجَه قَالَ: «اَلرَّاكِبُ خَلْفَ الْجَنَازَةِ وَالْمَاشِي حَيْثُ شَاءَ مِنْهَا وَالطِّفْلُ يُصَلَّى عَلَيْهِ». وَفِي الْمَصَابِيحِ عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ زِيَادٍ.

**ترجمه** : او د مغیره بن شعبه ؓ نه روایت دے چه نبی ﷺ فرمایلی دی : «سور به د جنازے نه روستو روانیږی او پیاده شخص د جنازے نه روستو، مخکښې، ښی او ګس طرف ته د جنازے نزدے تلے شی۔ او په ناتمام ماشوم (یعنی زَین) باندے به مونځ کولے شی۔ او د هغه مور او پلار ته به د بخښنے او رحمت دعاء کولے شی»۔ (ابوداود) او د احمدؒ، ترمذیؒ، نسائیؒ او ابن ماجهؒ په روایت کښې دی : نبی ﷺ فرمایلی دی : «سور به د جنازے نه روستو وی او پیاده تلونکے چه د جنازے کوم طرف ته غواړی۔ او ماشوم باندے به مونځ کولے شی»۔ او په مصابیح کښې دا روایت د مغیره بن زیاد نه دے۔

**تشریح : اَلرَّاكِبُ يَسِيرُ**: یعنی د سور انسان د حال سره دا لائق او مناسب دی چه روستو روان شی۔ یعنی دا ورله افضل دی چه د جنازے نه روستو روستو روان شی، ددے حدیث نه دا معلومه شوه چه جنازه پسے روستو د سوریدلو په حالت کښې تلل جائز دی او ددے معارض نور حدیثونه شته چه د هغې نه کراهت معلومیږی۔ لکه یو حدیث د ثوبان دے چه نبی ﷺ ته اس راوستے شو او هغه په جنازه کښې وو نو هغه د هغې د سوریدلو نه انکار اُوکړو، کله چه واپس کیدو کښې شو نو اس ورته راوستے شو نو په هغې باندے سور شو نو هغه نه دے باره کښې تپوس اُوشو، وے فرمایل : (إِنَّ الْمَلَائِكَةَ كَانَتْ تَمْشِي فَلَمْ أَكُنْ لِأَرْكَبَ وَهُمْ يَمْشُوْنَ فَلَمَّا ذَهَبُوا رَكِبْتُ)

(ابوداود ۲/٦٤–٦٥) والحاکم (۱/۳۵۵) والبیهقی (٤/۲۳) وصححه الالبانی فی الجنائز)۔

(ملائك پياده روان وو نو زه نهٔ سوريدم چه هغوی روان وی خو هرکله چه هغوی لاړل نو زهٔ سور شوم)۔

دارنګه بل حديث د ثوبانؓ کښې دی (چه روستو راروان دے رقم : ۲۷) چه په هغے کښې زورنه ده چه ملائك پياده روان دی او تاسو په سورلو۔ نو ددے دواړو حديثونو تطبيق په ډيرو طريقو شويدے (۱) يو دا چه دا حديث المغيره په باره د معذور کښې دے چه مثلاً شل وی يا مريض وی يا ګوډ وی نو که دا په سورلئ د جنازے پسے ځی نو جائز ده خو روستو روستو به روان وی۔ او حديث د ثوبان حمل دے په غير معذور باندے چه غير معذور له په سورلئ تلل مناسب نهٔ دی۔

(۲) دويم دا چه حديث د ثوبان دلالت کوی چه دغه خلق په سورلئ باندے د جنازے نه مخکښې روان وو يا طرف ته وو او دا حديث المغيره وائی چه روستو روستو به ځی۔ نو منافات نشته۔

(۳) دريم تطبيق دا دے چه رکوب او سوريدل جائز دی بغير د کراهت نه ليکن افضل دا ده چه سور نشی لکه نبی ﷺ د ملائکو د احترام د وجه نه سور نشو نو دا دلالت نهٔ کوی چه ګنے سوريدل حرام دی بلکه ادب دا دے چه سور نشی اګرکه سوريدل هم جائز دی۔

(تحفة الاحوذی (٤/ ٨٠) واحکام الجنائز ص (٧٥) للالبانی)۔

علامه ساعاتیؒ فرمائی : پدے باره کښې د احاديثو خلاصه دا ده چه د جنازے نه مخکښې تلل افضل دی د روستو تللو په نسبت ځکه دليل ئے قوی دے او سور انسان به روستو روستو روان وی او د واپسئ نه روستو سوريدل بغير د کراهت نه جائز دی ځکه چه د نبی ﷺ نه عملاً ثابت دی، او پياده مزل په ټولو صورتونو کښې افضل دے د سوريدلو نه مګر که عذر وی والله اعلم (بلوغ الامانی۸/۱۹)۔ ليکن دا خبره ئے کمزورے ده لکه روستو به راشی۔

قَرِيبًا مِنْهَا: يعنی خو مره چه انسان جنازے ته د څلورو واړو طرفونو نه نزدے وی نو دا افضل ده ځکه چه که ضرورت راشی نو د جنازے پورته کولو کښې به مدد کوی۔

او دا حديث دليل دے چه د جنازے نه په هر طرف کښې تلل جائز دی او ټول طرفونه د پياده تلونکی په حق کښې برابر دی خو اختلاف په کښې شته روستو حديث کښې اُوګوره۔

وَالسِّقْطُ يُصَلَّى عَلَيْهِ سقط : هغه ماشوم ته وئيلے شی چه د مور د خيټے نه ګوزار شی مخکښې د مودے پوره کيدو نه۔ يا په خيټه کښې وفات شوے وی اګرکه موده ئے پوره وی۔ او په سين کښې درے واړه حرکات وئيل جائز دی۔ (تهذيب اللغة)۔

دا حديث صريح دليل دے چه په بے مودے پيدا شوی او وفات شوی بچی به هم مونځ کولے شی۔ کله چه پکښې روح اچولے شوے وی يعنی څلور مياشتے او لس ورځے پرے تيرے شوی وی۔

ځکه که دغه مودے نه کم وی نو دا بیا هسے د غوښے ټکړه ده او انسان ورته نهٔ وئیلے کیږی۔ امام شافعیؒ فرمائی : ځکه چه څلورمه میاشت کښ ددهٔ رزق او اجل لیکلے شی او دا د ژوندی دپاره کیږی۔ (نیل الاوطار ٤/٨٣)۔ او همدا حقه خبره ده۔

او کله چه ماشوم د پیدا کیدو په وخت کښ آواز اُوکړی یا حرکت اُوکړی یا پرنجے اُوکړی یا ساه واخلی نو پدے کښ اتفاق دے چه غسل به هم ورکولے شی او مونځ به هم پرے کولے شی۔

**اختلاف :** (۱) امام احمدؒ او حنابلهٔ فرمائی : په سقط (بے مودے بچی) باندے به مونځ هم کولے شی او غسل به هم ورکولے شی (المغنی ۲/۳۹۳) (التحقیق فی احادیث الخلاف ۲/۷) لابن الجوزی)۔ (۲) امام مالك او ابوحنیفهٔ وائی چه غسل به هم نشی ورکولے او مونځ به هم پرے نشی کولے۔

(۳) امام شافعیؒ وائی چه غسل به ورکولے شی او په مانځه کښ ترے دوه قوله نقل دی۔

امام خطابیؒ وائی : د خلقو اختلاف دے په سقط کښ د ابن عمرؓ نه نقل شویدی چه مونځ به پرے کولے شی اګرکه استهلال ئے نهٔ وی کړے (استهلال دیته وائی چه په وخت د پیدائش کښ آواز اُوکړی په ژړا وغیره سره) او دا قول د ابن سیرین او ابن المسیبؒ دے۔ او امام احمدؒ او اسحاق بن راهویهٔ وائی : کله چه په کښ روح واچولے شی او څلور میاشتے او لس ورځے ئے پوره شی نو مونځ به پرے کولے شی۔ او اسحاق وئیلی دی چه میراث به هله وړی چه استهلال اُوکړی او هرچه مونځ دے نو دا به پرے کولے شی ځکه چه دا پوره نفس او روح دے چه شقاوت او سعادت پرے لیکلے شویدے نو ولے به پرے خلق مونځ پریدی؟۔ او د ابن عباسؓ نه نقل دی چه کله آواز اُوکړی نو میراث به وړی او مونځ به پرے کولے شی او د جابرؓ نه نقل دی چه کله آواز اُوکړی نو مونځ به پرے کولے شی او که آواز اُونکړی نو مونځ به پرے نشی کولے او دا قول د اصحاب الرأی دے او دا قول د امام مالك، اوزاعیؒ او شافعیؒ دے۔ انتهی ترجمة کلام الخطابیؒ۔ (بلوغ الامانی ۷/۲۱۱) والمرعاة (۵/٤۲٤)۔

علامه مجد بن تیمیهٔ په منتقیٰ کښ د امام احمدؒ قول ته ترجیح ورکړیده او علامه شوکانیؒ په شرح د هغے کښ استهلال شرط ګرځول حق ګڼړلی دی لیکن صحیح او راجح قول د امام احمدؒ دے۔

علامه ابن رُشدؒ په بدایة المجتهد کښ د امام ابوحنیفهٔ قول داسے نقل کړیدے چه کله په ماشوم کښ روح اچولے شوے وی یعنی څلور میاشتے یا زیاتے ورځے پرے تیرے شوی وی، نو په دهٔ به مونځ کولے شی او دا قول د ابن ابی لیلیٰ دے۔ (بدایة المجتهد ۱/۱۹۳) ددے روایت نه دا معلومیږی چه د څلور میاشتو نه کمے مودے والا ماشوم پیدا شی نو په هغه به مونځ نشی کولے۔

**دلائل دا دي : ۱-دليل :** دا حديث الباب صريح دليل دے چه په سقط به مونځ کولے شي۔ او په روايت د ترمذي او نسائي کښ ورسره داسے الفاظ دي : (اَلطِّفْلُ يُصَلّٰى عَلَيْهِ) ۔ په ماشوم به مونځ کولے شي۔

**۲- دليل :** ابو هريرةؓ په منفوس باندے مونځ اُوکړو او داسے دعاء ئے اُووئيله : (اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا وَسَلَفًا وَاَجْرًا) (البيهقي ٤/٩) والتلخيص الحبير (٢/٢٦٦) ۔ منفوس هغه ماشوم ته وائي چه پيدا شوے وي او د مور په خيټه کښ ورته روح اچولے شوے وي۔ يعني څلور مياشتے او لس ورځے پرے تيرے شوي وي۔

**۳-دليل :** حديث د ابن مسعودؓ کښ مرفوعاً ذکر دي : (ثُمَّ يَبْعَثُ اللّٰهُ اِلَيْهِ مَلَكًا فَيَنْفُخُ فِيْهِ الرُّوْحَ) (متفق عليه) ۔ (څلور مياشتے او لس ورځے پس ورته الله ملائك راوليږي نو روح پکښ واچوي) دا دليل دے چه دا ذي روح انسان دے او په ذي روح انسان باندے شريعت مونځ وئيلے دے او استهلال ئے پکښ شرط نه دے ګرځولے۔

**٤- دليل :** ابن المنذرؒ وئيلي دي : ابن عمرؓ مونځ اُوکړو په خپل نوسي باندے چه د لور د طرفنه وو او مړ پيدا شوے وو۔ (المغني ٢/٣٩٢)۔

او د استهلال په باره کښ چه کوم روايات راغلي دي هغه ضعيف دي۔لکه يو حديث : (اَلطِّفْلُ لَايُصَلّٰى عَلَيْهِ وَلَايَرِثُ وَلَايُوْرَثُ حَتّٰى يَسْتَهِلَّ) (ترمذي، ابن ماجه) ۔ دا روايت ضعيف دے په سند د ابن ماجه رقم (٢٧٥٠) کښ ئے الربيع بن بدر دے او په سند د ترمذي (١/٢٠٠) کښ اسماعيل بن مسلم ضعيف جداً دے۔ او په اسناد حاکم (٤/٣٤٨) کښ ابو الزبير المکي مدلس دے او هغه موقوف هم دے۔ او دغه حديث بغير د لفظ د (صلاة) نه صحيح دے۔يعني د ميراث په باره کښ استهلال شرط دے۔

**خلاصه :** دا شوه چه په ماشوم باندے د څلور مياشتو او لسو ورځو تيريدو نه پس جنازه کول مستحب عمل دے او لازم نه دي۔ دليل د استحباب ئے دغه احاديث دي او دليل د عدم لزوم دا دے چه عائشه رضي الله عنها فرمائي : نبي ﷺ په خپل ځوي ابراهيم باندے چه د اتلسو مياشتو په عمر وفات شوے وو مونځ اُونکړو۔ (مسند احمد الفتح الرباني رقم : ١٦٣/٧/٢٠٩) ۔ نو که دا مونځ واجب وے نو نبي ﷺ به نۀ پريخودلے۔ او کوم روايتو مرسله ؤ کښ چه دا راغلي دي چه ابراهيم باندے نبي ﷺ مونځ کړيدے نو هغه ضعيف دي۔ (في اسناد احمد : ابراهيم بن عثمان الواسطي ضعيف) (بلوغ الاماني ٧/٢٠٨) ۔ البته د ميراث په باره کښ صحيح احاديث راغلي دي چه استهلال پکښ شرط دے۔ لکه حديث د ابن ماجه دے : (لَايَرِثُ الصَّبِيُّ حَتّٰى يَسْتَهِلَّ صَارِخًا

وَاسْتِهْلَالُهُ أَنْ يَصِيحَ أَوْ يَعْطِسَ أَوْ يَبْكِيَ) (ابن ماجه ٢٢٢٢) والصحيحة (١٥٣) والارواء (١٧٠٧)۔(ماشوم به ميراث نهٔ وړى تردے چه آواز پورته كړى او آواز پورته كول ئے دا دى چه چغه اُووهى يا پرنجے اُوكړى يا اُوژاړى)۔ تفصيل دپاره (نصب الراية ٢/٢٢٧) التلخيص الحبير (٢/١١٣) احكام الجنائز وارواء الغليل (٦/١٤٧) او فتاوى الدين الخالص (٧/١٩٠) اُوګورئ۔

ويدعى لوالديه : يعنى بچى دپاره به هم په جنازه دهغه كښې دعاء كولے شى او دهغه مور او پلار دپاره هم دعاء مستحب ده۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : اخرجه ابوداود الطيالسي (٧٠١-٧٠٢) واحمد (٤/٢٤٧) وابوداود (٣١٨٠) والترمذي (١٠٣١) وقال حديث حسن صحيح والنسائي (٤/٥٥-٥٦) وابن ماجه (١٤٨١)۔

---

**١٦٦٧ (٢٣) – وَعَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ وَأَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ يَمْشُوْنَ أَمَامَ الْجَنَازَةِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ وَأَهْلُ الْحَدِيْثِ كَأَنَّهُمْ يَرَوْنَهُ مُرْسَلًا.**

ترجمه : زهريّ د سالم نه هغه د خپل پلار (عبد الله بن عمرؓ) نه روايت كوى چه هغه فرمائيلى دى : ما رسول الله ﷺ او ابوبكر او عمر ليدلى چه د جنازے نه مخكښې به تلل۔ (احمدؒ، ابوداودؒ، ترمذيؒ، نسائيؒ، ابن ماجهؒ) او ترمذيؒ وئيلى دى چه اهل الحديث ګويا كښې دا حديث مرسل ګڼړى۔

**تشريح** : دا حديث ددے دپاره چلول شويدے چه د جنازے نه مخكښې تلل جائز دى او هيڅ كراهت پكښې نشته بلكه بعض علماؤ وئيلى دى چه پدے حديث كښې دا بيان دے چه د جنازے نه مخكښې تلل افضل دى ځكه چه پدے كښې د نبى ﷺ او د ابوبكر او عمر عادت بيان شويدے او د هغوى عادت افضل اختيارول وو۔

نو پدے كښې خو اول اتفاق دے چه د جنازے نه هر طرف ته پياده تلل جائز دى او اختلاف صرف په أفضليت كښې دے۔ بعض علماء مخكښې تللو ته افضل وائى۔ ابن قدامهؒ وائى چه دا قول د اكثرو اهل علمو دے او دا د ابوبكر، عمر، عثمان، ابن عمرو، ابو هريره، حسن بن على، ابن الزبير، ابوقتاده، ابو اسيد، عبيد بن عمير رضى الله عنهم او شريح، قاسم بن محمد، زهرى او مالك او شافعى رحمهم الله دے او بيهقى په خپل سند سره د زياد بن قيس الاشعرى نه نقل كړيدى چه هغه اُوفرمايل : زهٔ مدينے ته راغلم نو ما د رسول الله ﷺ صحابه مهاجرين او انصار اُوليدل چه د جنازے نه به مخكښې تلل۔ (المغنى والمحلى)۔ ددے علماؤ دليل دا حديث الباب دے چه نبى ﷺ

او صحابه كرام به د جنازے نه مخكښ تلل نو دا دليل د افضليت دے۔ نور دلائل ابن ابی شيبه په خپل مصنف كښ د عقار بن مغيره نه نقل كړيدى چه زۀ به د جنازے نه روستو تلم نو ابو هريرةؓ راغلو او زما په شا باندې ئې ګوتے كيخودے او ديكه ئې راكړه تردے چه زۀ د جنازے نه مخكښ شوم۔ (ابن ابی شيبة ٤٧٧/٢)ح (١١٢٣٥)۔ او بل روايت ئې راوړيدے ابو صالح فرمائي :(كَانَ أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ ﷺ يَمْشُوْنَ أَمَامَ الْجَنَازَةِ إِذَا تَبَاعَدُوْا عَنْهَا قَامُوْا يَنْتَظِرُوْنَهَا) (ابن ابی شيبة ١١٢٢٢)۔ (صحابه كرام به د جنازے نه مخكښ تلل، كله چه به وړاندے لاړل نو په انتظار كښ به ئې اودريدل)۔

(٢) دويم قول دا دے چه جنازه پسے روستو تلل افضل دی او دا قول د امام ابو حنيفةؒ، او د هغه ملګرو او اهل الظاهرو دے او دا نقل شويدے د علی بن ابی طالب، ابن مسعود، ابو الدرداء، عمرو بن العاص رضی الله عنهم نه او دا قول د ابراهيم نخعیؒ او اوزاعیؒ دے۔ او همدا قول راجح ښكاره كيږي۔ دليل دا دے چه احاديثو كښ لفظ د اتباع الجنائز راغلے دے (صحيح مسلم وغيره)۔ او اتباع روستو تللو ته وئيلے شي او نبی ﷺ امر كړيدے :(وَإِذَا مَاتَ فَاتَّبِعْهُ) (مسلم)۔ مخكښ باب عيادة المريض رقم (٣) كښ تير شو۔ او ددے باب په فصل اول كښ تير شو : (مَنِ اتَّبَعَ جَنَازَةَ مُسْلِمٍ الخ)۔ او په روستو تلو كښ د جنازے نه عبرت اخستل زيات وی ځكه چه مخكښ جنازه روانه وی نو د انسان توجه زياته برابريږي ځكه چه جنازه وينی، او دغه شان د جنازے سره مدد هم كولے شی۔ او هرچه عمل د نبی ﷺ او ابوبكر او عمر دے نو هغوی مخكښ پدے وجه تلل چه يو خو به ګنړه وه يا د بيان د جواز دپاره مخكښ تلی دی۔ والله تعالیٰ اعلم۔

علامه ساعاتیؒ د دواړو طرفونو احاديث راجمع كړيدی او آخر كښ ئې وئيلی دی چه د جنازے نه مخكښ تلل د دليل د قوت په اعتبار سره افضل دی۔ (بلوغ الامانی ١٩/٨)۔ او د روستو حديث نه استدلال كول ضعيف دی ځكه چه سنداً ضعيف دے۔ ليكن د ساعاتی صاحبؒ دا خبره صحيح نۀ ده د وجه د مخكنو دلائلو نه۔

**درجة الحديث:** اسناده صحيح : اخرجه احمد (٨/٢) وابوداود (٣١٧٩) موصولاً والترمذی (١٠٠٧) مرسلا وموصولاً والنسائی (٥٦/٤) موصولاً وابن ماجه (١٤٨٢) موصولاً۔

---

١٦٦٨ (٢٤) – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«اَلْجَنَازَةُ مَتْبُوْعَةٌ وَلَا تَتْبَعُ لَيْسَ مَعَهَا مَنْ تَقَدَّمَهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْ مَاجِدٍ

الرَّاوِيُّ رَجُلٌ مَجْهُوْلٌ.

ترجمه : او عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي :« جنازه متبوعه ده (يعني د جنازې پسې به روانيدل كيدې شي) او جنازه به تابع نهٔ وي (يعني جنازه به د خلقو پسې نشي روانولې چه خلق ترې مخكښې وي او جنازه روستو وي) د جنازې سره هغه څوك نهٔ دې چه د جنازې نه مخكښې روان شو ». (ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجهٔ) او امام ترمذيؒ وئيلي چه ابوماجد راوي مجهول شخص دې.

تشريح مَتْبُوْعَةٌ : يعني څوك چه جنازې سره روانيږي نو هغه له سنت دا دي چه روستو روستو ورسره روان شي.

وَلَا تَتْبَعُ : د تَبِعَ نه دې. په تاء او باء باندې فتحه ده. په روايت د مسند احمدؒ كښې دي : (وَلَيْسَتْ بِتَابِعَةٍ). يعني جنازه به تا پسې نهٔ وي روانه چه ته مخكښې شې او هغه درپسې وي.

لَيْسَ مَعَهَا مَنْ تَقَدَّمَهَا: يعني څوك چه جنازې نه مخكښې روان وي نو دا به د جنازې سره تلونكې نهٔ حسابيږي.

او پدې روايت باندې استدلال كول ددې دپاره چه د جنازې نه روستو تلل افضل دي صحيح نهٔ دي ځكه چه دا روايت ضعيف دې. او نور دلائل مخكښې تير شو.

درجة الحديث: اسناده ضعيف : احمد (۱/۴۱۵) وأبوداود (۳۱۸۴) وقال ابوماجد هذا لا يعرف (مجهول) (تقريب) وفي الترمذي طائر طار اى مجهول. والترمذي (۱۰۱۱) وفيه يحيى بن عبد الله لين الحديث.

---

۱۶۷۹ (۲۵) — وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« مَنْ تَبِعَ جَنَازَةً وَحَمَلَهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَقَدْ قَضٰى مَا عَلَيْهِ مِنْ حَقِّهَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

---

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي :« څوك چه جنازه پسې روان شو او هغه ئې درې ځل (په اوګو) پورته كړه نو يقيناً دهٔ ادا كړو هغه چه په دهٔ باندې د جنازې حق وو». (دا روايت ترمذيؒ نقل كړې او وئيلي ئې دي چه دا حديث غريب دې).

تشريح : مَنْ تَبِعَ جَنَازَةً : يعني څوك چه د جنازه پسې روان شي كه د هر طرف نه وي او هغه ئې په خپلو اوګو او لاسونو كښې پورته كړه نو د جنازې حق ئې ادا كړو. برابره ده كه په لاره كښې ورسره ملګرې شي او كه د كور نه ورسره روان وي. پدې كښې لس يا څلويښت قدمونه اخستلو

خبره بے ځايه ده۔ هيڅ دليل پرې نشته د عوامو ايجاد کړه خبره ده او د څلورينتو قدمونو باره کښې روايت موضوع دے او بعض حنفي فقهاء پکښې لا وائي چه هره څپې سره به لس لس قدمونه اخلي۔ ليکن دا خبره هم بے دليله بے تحقيقه ده۔

علامه مناوئ ددے مطلب داسې بيانوي چه دومره وخت دپاره ئې پورته کړي چه سترې شي بيا دمه شي بيائې پورته کړي او په دغه طريقه درې کرته دغسې اُوکړي۔

د کتاب الجنائز په ابتداء کښې تير شو چه د مؤمن د جنازې حق دا دے چه د هغه سره به روانيږي په هغې کښې دا قيد نشته چه پورته کوي به ئې يا نه۔ که پورته ئې کړه لا ښه ده او که نه وي نو هم حق ادا کيږي۔ او دا روايت سنداً ضعيف دے۔ نو د سندي صاحب خبره خطاء ده۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : الترمذي (١٠٤١) وقال هذا حديث غريب ورواه بعضهم بهذا الاسناد ولم يرفعه آه وابوالمهزّم اسمه يزيد بن سفيان وضَعّفَهٗ شعبة وهو متروك۔

---

١٦٧٠ (٢٦) – وَقَدْ رُوِيَ فِيْ «شَرْحِ السُّنَّةِ»: أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ حَمَلَ جَنَازَةَ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ بَيْنَ الْعَمُوْدَيْنِ.

**ترجمه** : او په شرح السنه کښې روايت شوې دې چه نبي ﷺ د سعد بن معاذ جنازه د دوارو لرګو ترمينځ پورته کړه۔

**تشريح** : يعني امام بغويؒ په شرح السنه کښې دا نقل کړيدي چه نبي ﷺ د سعد بن معاذ جنازه د کور نه اُوچته کړه د دوارو څپو د کټ نه ئې نيولے وه او د کور نه ئې بهر کړه۔

دا روايت دليل دے چه د جنازې پورته کول مشروع دي، او د جنازې په پورته کولو کښې څه دنائت او ذلت نشته۔ دا مسائل ثابت دي د صحابه کرامؓ نه ليکن دا روايت پکښې ضعيف دے۔

او دے روايت کښې د جنازې د وړلو صورت حمل بين العمودين راغلو ددے صورت دا جوړيږي کټ به د اُوګو په مينځ کښې کيدي او مخکنې دواړه څپې به په لاسونو کښې اُونيسي او دا صورت امام شافعيؒ غوره کړيدے۔ خو ورسره دا اضافه ئې کړيده چه دوه کسان به روستو طرف ته وي هر يو به يوه يوه څپه په اُوږه پورته کړې وي۔ او احناف وائي چه څلورو وارو طرفونو ته به ئې د هرې څپې نه يو يو تن اُوچتوي۔ حنابله وائي چه تربيع سنت ده او دا افضل ده د حمل بين العمودين نه ليکن د دوارو څپو ترمينځ ئې پورته کړو نو هم ښه ده او مکروه والے پکښې نشته۔ او امام مالک او اوزاعيؒ وائي چه څنګه ئې پورته کوي خوښه ئې ده۔ د تربيع په باره کښې علامه ابن قدامهؒ د عبد الله بن مسعودؓ موقوف روايت نقل کړيدے :(إِذَا تَبِعَ أَحَدُكُمُ الْجَنَازَةَ فَلْيَأْخُذْ بِجَوَانِبِ السَّرِيْرِ

الْاَرْبَعِ ثُمَّ لِيَتَطَوَّعْ بَعْدُ اَوْ لِيَذَرْ فَاِنَّهٗ مِنَ السُّنَّةِ)۔ ليكن دا روايت ضعيف او منقطع دے، د ابوعبيده بن عبد الله بن مسعود د خپل پلار ابن مسعود نه سماع ثابته نۀ ده) (خلاصة الاحكام للنووی۲/۹۹۵) وضعفه الالبانی فی ابن ماجه ۳۲۱ (۱٤٦٧) ۔ او پدے باره کښې دواړو طرفونو ته ډير مختلف روايات راغلي دي چه هغه نصب الرايه او التلخيص الحبير، شرح المهذب او بيهقي کښې ذکر دي ليکن هغه اکثر ضعيف دي۔ نو صحيح او راجح دا ده چه تربيع سنت ده او د صحابه کرامؓ به همدغه طريقه وه او حمل بين العمودين هم جائز او ښه ده۔ او کراهت پکښې نشته۔ او همدا شيخ مبارکفوريؒ هم راجح کړيدے۔ (المرعاة ٥/٤٠٩)۔

**درجة الحديث:** اسناده ضعيف جداً : ابن سعد فی الطبقات الكبرى (۳/٤۳۱) ضمن ترجمة سعد بن معاذ وفی اسناده الواقدی وهو كذاب وفی اسناد البغوی فی شرح السنة (٥/۳۳۷) الواقدی ثم ابراهيم بن اسماعيل بن ابی حبيبة وهو ضعيف ثم شيوخ من عبد الاشهل) وهم مجاهيل۔

---

۱٦۷۱ (۲۷) - وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ ﷺ فِيْ جَنَازَةٍ فَرَاٰى نَاسًا رُكْبَانًا فَقَالَ : «اَلَا تَسْتَحْيُوْنَ ؟ اِنَّ مَلَائِكَةَ اللهِ عَلٰى اَقْدَامِهِمْ وَاَنْتُمْ عَلٰى ظُهُوْرِ الدَّوَابِّ ».رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَرَوٰى اَبُوْدَاوُدَ نَحْوَهٗ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: وَقَدْ رُوِيَ عَنْ ثَوْبَانَ مَوْقُوْفًا.

---

**ترجمه :** او ثوبان ؓ نه روايت دے فرمائي : (يوځل) مونږ د نبی کريم ﷺ سره په يوه جنازه کښې راُووتلو نو هغه څه کسان سوارۀ اُوليدل۔ وے فرمايل : «آيا تاسو حياء نۀ کوئ ؟ د الله تعالىٰ ملائك په خپلو قدمونو روان دي او تاسو د حيوانانو په شاګانو يئ»۔ (ترمذیؒ، ابن ماجةؒ) او ابوداود ددے په شان روايت کړے او ترمذیؒ وئيلي دي : دا روايت د ثوبانؓ موقوفاً نقل شوے۔

**تشريح :** ددے روايت او ددے په شان د بل روايت تطبيق مخکښې مونږ ذکر کړے دے چه ددے تعارض وو د حديث د مغيره سره چه په هغے کښې اجازه وه چه راکب د جنازے نه روستو تلے شي او دے روايت نه معلوميږي چه راکب د جنازے نه روستو نشي تلے۔ تطبيق دا وو چه يو خو دا روايت سنداً ضعيف دے او کوم سابقه روايت چه صحيح وو نو د هغے تطبيق دا وو چه دا حمل دے پدے چه نبی ﷺ د ملائکو احترام ساتلو نو افضل دا ده چه انسان روستو روستو روان شي او که سور نشي نو بهتر به وي اګرکه سوريدل هم جائز دي۔ او علامه سندیؒ وئيلي دي چه د نيکانو او صالحينو په جنازه کښې سوريدل نۀ دي پکار ځکه چه د هغوی جنازو ته د ملائکو د حضور اميد کيدے شي، اګرکه رکوب جائز دے۔ آه۔ او روستو روايت د نسائي نه معلوميږي چه

د هرے جنازے سره ملائك روان وي۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف۔ الترمذى (١٠١٢) وابن ماجه (١٤٨٠) فيه ابوبكر بن ابى مريم وهو ضعيف كان قد سرق بيته فاختلط (تقريب)۔

---

**١٦٧٢ (٢٨) — وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ: أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَرَأَ عَلَى الْجَنَازَةِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : او ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي : نبى كريم ﷺ په جنازه كښې سورة الفاتحه أولوستله۔ (ترمذى، ابوداود، ابن ماجة)۔

**تشريح** : دا مسئله مخكښې تفصيلاً ذكر شوه چه سورة الفاتحه په جنازه كښې لوستل واجب دي او بغير ددے نه لكه څنګه چه نور مونځونه نه كيږي نو دغه شان د جنازے مونځ هم بغير ددے نه نه كيږي او په دے باره كښې صريح نصوص موجود دي والله تعالىٰ اعلم۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : الترمذى (١٠٢٦) وقال : حديث ابن عباس ليس اسناده بذلك القوى وابراهيم بن عثمان هو ابو شيبة الواسطي منكر الحديث ولكن اصل الحديث ثابت كما تقدم فى المسئلة وانظر امر الرسول ﷺ بالفاتحة فى الجنازة فى ابن ماجه (١٤٩٦)۔

---

**١٦٧٣ (٢٩) — وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِذَا صَلَّيْتُمْ عَلَى الْمَيِّتِ فَأَخْلِصُوْا لَهُ الدُّعَاءَ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : او ابو هريره ﷺ فرمائي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي :«كله چه تاسو په مړى باندے مونځ كوئ نو د هغه دپاره په دعاء كښې اخلاص كوئ»۔ (ابوداود، ابن ماجة)۔

**تشريح** : يعنى كله چه تاسو په مړى باندے د جنازے مونځ كوئ نو دعا ورله په ډير اخلاص اوغواړئ څكه چه ددے مانځه مقصد هم دا دے چه د مړى دپاره سفارش اُوكړے شى او دا سفارش به هله قبولے شى چه زيات اخلاص او عاجزى پكښې وى۔ بعض وائى ددے معنى دا ده چه : (خُصُّوْهُ بِالدُّعَاءِ)۔ دا په دعاء سره خاص كړئ ليكن دا معنىٰ غوره نه ده۔ څكه په تخصيص باندے دليل نشته۔

علامه شوكانى وائي چه دا دليل دے په په جنازه كښې د راغلو دعاګانو نه يوه خاص دعاء وئيل متعين نه دى، بلكه هره دعاء وئيل جائز دى بلكه دعاء ئے مطلق ذكر كړيده، او مناسب ده چه

مونځ کونکے د مړی دپاره په اخلاص سره دعاء اُوکړی برابره ده نیك عمل وی او که بد عمل، ځکه چه گناهگار د خپلو مسلمانانو ورونو دعاګانو ته زیات محتاج وی او د هغوی سفارش ته زیات فقیر وی دے وجه نه خلقو دا راوستے خپلے مخے ته ئے اچولے دے او وارثانو ئے مسلمانانو ته رامخکښ کړیدے چه بخښنه ورله اُوغواړی۔

علامه مناویؒ فرمائی : ددے حدیث نه دا معلومه ده چه د مړی دپاره په مانځه کښې دومره زیاته دعاء مشروعه ده کومه چه ددے په شان د ژوندی دپاره په مانځه کښې نۀ ده مشروع۔ او حافظ ابن القیمؒ فرمائی : دا حدیث د هغه چا خبره باطلوی چه وائی مړے د دعاء نه فائده نشی حاصلولے۔

تنبیه : په اتفاق د علماؤ سره پدے حدیث کښې چه کومه دعاء ذکر ده نو دا په مانځه کښې مراد ده او د جنازے نه روستو د دعاء دپاره ایساریدل بدعت دے اوکوم بدعتیان چه ددے نه دعاء بعد الجنازه مراد کوی نو دا غلطه ده ځکه چه بیا خو به د جنازے نه روستو دعاء کول واجب شی ځکه چه پدے امر راغلے دے او پدے باندے په امت کښې هیچا قول نۀ دے کړے نو دا د احادیثو غلطے معانی او تحریفات دی۔ بله وجه دا ده چه دا الفاظ ددغه مطلب سره برابر نۀ دی ځکه چه دلته شرط او جزاء راغلے ده او شرط چه په کومه زمانه کښې مراد وی نو جزاء به هم په هغه زمانه کښې مراد وی نو دلته إِذَا صَلَّيْتُمْ عَلَى الْمَيِّتِ نه معلومه شوه چه په مانځه کښې به دا دعاء مراد وی۔ ولے که بعد الصلاة دا دعاء مراد شی نو بیا خو په مانځه کښې دعاء رانغله۔ فتدبر۔

بعض مُلیانو لیکلی دی چه په ذخیره د احادیثو کښې دعاء بعد الجنازه نۀ ده راغلے لیکن منع ترے هم نۀ ده راغلے۔ دا خبره ډیره غلطه او بے علمه ده۔ وجه دا ده چه دعاء عبادت دے او عبادت د ځان نه ایجاد کول بدعت وی، او هرکله چه منع ترے راغله بیا خو منهی عنه شو بیا ورته بدعت نشی وئیلے۔ فتدبر۔

بله دا چه د الله د رسول نه یوه خبره نقل نشوه نو دا به دین نۀ وی۔ ځکه چه دا خو څه امور مباحه نۀ دی چه اصل پکښې اباحت واخستے شی۔ بلکه دا عبادات دی په توقیف بناء دی۔

تنبیه : بعض ناپوهه خلقو ددے حدیث نه د جنازے په مانځه کښې د فاتحے په نفی باندے دلیل نیولے دے چه دلته فاتحه نۀ ده ذکر او په دعاء باندے امر راغلے دے۔ خو دا استدلال غلط دے او د تحریف مشابه دے او په متشابهاتو سره صحیح صریح نص رد کول دی ځکه چه په جنازه کښې د فاتحے د وئیلو په باره کښې صریح نصوص راغلی دی او دے روایت کښې امر په دعاء راغلے نو نفی د فاتحے پکښې د کوم ځائے نه راغلے ده بلکه د فاتحے نه بعد دعاء وئیل هم ضروری دی لکه چه دا دواړه په روایت د عبد الرزاق کښې جمع شویدی، لهذا په دواړو حدیثونو باندے عمل

كول پكار دي او يو د بل سره تكراوول د اهل زيغو طريقه ده۔ (تحفة الاحوذي ٤/٩٥)۔

**فوائد :** ١- دا حديث دليل دے چه هر مسلمان دعاء ته محتاج دے اگركه ډير نيك عمل او نبي ولے نهٔ وي۔

٢- بل ته دعاء كول د مسلمان خير خواهي ده، او پدے كښې دا فال دے چه انسان بل ته په اخلاص دعاء كوي نو الله به دهٔ له داسے څوك مقرر كړي چه دهٔ ته به دعاء كوي۔

٣- دا حديث دليل دے چه مړي ته دعاء كول او په هغے كښې اخلاص پيدا كول فرض دي ځكه چه امر پرے راغلو، كه ستا او د مړي ترمينځ په دنيا كښې څه زړهٔ بدے وي د هغے حساب به په قيامت كښې كيږي ليكن ته چه كله د هغه په جنازه اُودريدے نو دعاء كښې به اخلاص كوے ځكه چه هغه خپل عملونو ته اُورسيدلو۔

٤- نبي ﷺ چا ته نفع او ضرر نشي وركولے كه هغه چا ته غائبانه ظاهري فائده رسولے شوے نو خلق به ئے تول د عذابونو نه بچ كړي وے او امت ته به ئے حكم نهٔ كولے چه تاسو مړو ته دعاء كوئ۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح، ابوداود (٣١٩٩) وابن ماجه (١٤٩٧) وابن حبان (٧٥٤) والبيهقي في الكبرى (٤/٤٠) وفي رواية ابي داود وابن ماجه عنعنة ابن اسحاق المدلس لكن اخرجه ابن حبان من طريق اخرىٰ عنه مصرحاً بالسماع (التلخيص الحبير ١٢٢/٢) رقم (٧٦٩)۔

---

١٦٧٤ (٣٠) - وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا صَلَّى عَلَى الْجَنَازَةِ قَالَ: «اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِحَيِّنَا وَمَيِّتِنَا وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا وَصَغِيْرِنَا وَكَبِيْرِنَا وَذَكَرِنَا وَأُنْثَانَا. اَللّٰهُمَّ مَنْ أَحْيَيْتَهُ مِنَّا فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِسْلَامِ وَمَنْ تَوَفَّيْتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الْإِيْمَانِ. اَللّٰهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا أَجْرَهُ وَلَا تَفْتِنَّا بَعْدَهُ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه.

**ترجمه:** او ابوهريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ به چه كله په جنازه مونځ كولو نو (داسے به ئے) فرمايل : «اللهم اغفر الخ اے الله ! زمونږ ژوندو او مړو، حاضرو او غائبو ته، وړو او غټو ته، سړو او ښځو ته بخښنه اُوكړه۔ اے الله ! څوك چه تهٔ زمونږ نه ژوندے پريدے نو هغه په اسلام ژوندے پريده او څوك چه زمونږ نه وفات كوے نو هغه په ايمان باندے وفات كړه۔ اے الله ! مونږ ددے مړي د اجر نه مهٔ محرومه كوه او مونږ ددهٔ نه روستو په فتنه كښې مهٔ اخته كوه »۔ (احمدؒ، ابوداودؒ، ترمذيؒ، ابن ماجهؒ)۔

**تشريح :** د ژوند سره ئے اسلام او د وفات سره ئے ايمان ذكر كړو دے، كښې فائده دا ښكاري چه

اسلام ظاهري اعمالو ته وئيلے شي او اعمال په ژوند كښ كيږي او ايمان په زړۀ كښ وي نو كله چه انسان وفات شي، اعمال ئے منقطع شو او ايمان ورسره دے نو دۀ سره ايمان لفظ وئيل مناسب دي۔ والله تعالىٰ اعلم۔

دا بهترينه دعاء ده ليكن عامو خلقو ترے آخري الفاظ (اللهم لا تحرمنا اجره الى آخره) غورځولي دي، الله بنه پوهيږي چه دا به ئے ولے غورځولي وي حال دا چه دا ورسره په تولو رواياتو كښ راغلي دي۔

وَصَغِيرِنَا وَكَبِيرِنَا : **اشكال** دا دے چه مغفرت خو مخكښ گناهونو ته غواړي او د ماشوم دپاره گناهونه نۀ وي نو څنگه هغه دپاره بخښنه غواړي؟ ددے يو جواب علماؤ داسے كړے چه د ماشوم دپاره د مغفرت دعاء كول د هغه د درجاتو د پورته كولو دپاره دي۔ (ابن حجرؒ) ۲- يا د صغير او كبير نه مراد شاب او شيخ (ځوان او بوډا) دي۔ (على القاريؒ) ۳- توربشتيؒ وائي : د ابوجعفر الطحاويؒ نه تپوس اُوشو چه د ماشومانو دپاره ولے استغفار طلب كولے شي د هغوي خو گناهونه نۀ وي؟ نو هغه اُوئيل چه ددے معنىٰ د الله نه دا سوال كول وي چه دوي ته هغه گناهونه معاف كړي كوم چه الله په لوح محفوظ كښ ليكلي دي چه دوي به ئے پس د بلوغ نه كوي، نو هركله ئے چه دوي اُوكړي نو ورته به بخلے شوي وي۔ او كه دا معنىٰ وانخلو نو بيا د استغفار طلب كولو ته حاجت نۀ پاتے كيږي ځكه چه ماشوم خو مكلف نۀ دے۔ انتهىٰ۔

ليكن دے علماؤ د مغفرت په معنىٰ سوچ ندے كړے۔ هر انسان د الله مغفرت ته محتاج دے اگركه نبي ﷺ وي، كه ماشوم وي او كه كبير وي ځكه چه د الله حق په خپلو مخلوقاتو ډير لوئي دے، دا مغفرت طلب كول د الله د حق د وجه نه دي، دا مستلزم گناهونو لره نۀ وي۔

اَللّٰهُمَّ لَا تَحْرِمْنَا : په فتحه د تاء او كسره د راء د حرمان نه ماخوذ دے، محرومه كولو ته وئيلے شي۔ او د باب افعال نه هم صحيح دے۔ لا تُحْرِمْنَا۔ خو فتحه د تاء افصح ده۔ (سيوطيؒ)۔

اَجْرَهٗ: يعني اجر د هغه مصيبت چه مونږ ته ددۀ په مرگ رارسيدلے دے۔ يا اجر د جنازے ددے مړي۔

وَلَا تَفْتِنَّا : په تشديد د نون سره د باب د ضرب نه د فتنے نه ماخوذ دے۔ يعني مونږ د مړي نه روستو په فتنه كښ مۀ اچوه بلكه مونږ ددۀ په مرگ سره د خپل مرگ دپاره عبرت اخستونكي او د خپل رحلت دپاره تيارے كونكي اُوگرځوه۔ ۲- يا معنىٰ ده :(لَا تُلْقِ عَلَيْنَا الْفِتْنَةَ بَعْدَ الْإِيمَانِ)۔ (مونږ باندے د ايمان نه روستو فتنه مۀ راچوه)۔

په بل روايت د ابوداود كښ (وَلَا تُضِلَّنَا بَعْدَهٗ) الفاظ راغلي دي۔ يعني مونږ ددۀ نه روستو مۀ

گمراه کوه۔

**فائده** : پدے يوه دعاء اکتفاء کول ندی پکار ځکه چه پدے کښې خو د مړی دپاره صرف دوه الفاظ استعمال شو نو د مړی خير خواهي دا ده چه د هغه دپاره هغه ډيرے دعاګانے اُووئيلے شی کومے چه رسول الله ﷺ د مړو پسے وئيلی دی۔ ډيرو خلقو ته هغه صحيح سنت دعاګانے نهٔ دی يادے او بيا اهل حقو ته ګوته نيسی چه دوی دعاګانے نهٔ منی۔ عامو مُلیانو د مسلمانانو جنازے اُوشرمولے، خندا ئے ترے جوړه کړيده، په يو څو سکنډونو کښې خلاف سنت جنازه اُوکړی، فاتحه پکښې نهٔ وائی، درود ئے د سنت خلاف وی مثال ئے داسے دے لکه يے اودسه مونځ کول۔ مسلمانانو فکر اُوکړئ! آيا دا د مړی سفارش دے او دا د هغه خير خواهي ده او که نهٔ دا د الله يے عزتی او عبادت شرمول دی ؟! فالی الله المشتکی۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح: احمد (٢/٣٦٨) وابوداود (٣٢٠١) والترمذی (١٠٢٤) وابن ماجه (١٤٩٨)۔

---

**١٦٧٥ (٣١)** – وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ أَبِيْ إِبْرَاهِيْمَ الْأَشْهَلِيِّ عَنْ أَبِيْهِ وَانْتَهَتْ رِوَايَتُهُ عِنْدَ قَوْلِهِ : وَ أُنْثَانَا. وَفِيْ رِوَايَةِ أَبِيْ دَاوُدَ: فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِيْمَانِ وَتَوَفَّهُ عَلَى الْإِسْلَامِ. وَفِيْ آخِرِهٖ:« وَلَا تُضِلَّنَا بَعْدَهُ».

**ترجمه** : او نسائیؒ د ابو ابراهيم الاشهلی نه روايت کړے او هغه د خپل پلار نه او پوره شوے روايت د نسائی ددے وينا پورے چه (وَأُنْثَانَا)۔ او په روايت د ابوداود کښې دی : پس دا ژوندے اُوساته په ايمان او وفات کښې دا په اسلام۔ او په آخره کښې ئے دا الفاظ دی :«او موږ ددهٔ نه روستو مهٔ ګمراه کوه»۔

**تشريح** : ابو ابراهيم الاشهلی مدنی انصاری د تابعينو د وسطیٰ طبقے نه شمار دے۔ حافظ ورته په تقريب کښې مقبول (يعنی عند المتابعة) وئيلے دے۔ امام ترمذیؒ وائی ما د امام بخاریؒ نه ددهٔ د نوم په باره کښې تپوس اُوکړو نو هغه اُونهٔ پيژندلو۔ بعض وائی : دا عبد الله بن ابی قتادةؒ دے ليکن خطاء دے ځکه چه هغه خو د بنی سلمه ؤ نه دے او دا د بنی الاشهل نه دے۔

**وَانْتَهَتْ رِوَايَتُهُ** : يعنی د نسائی روايت په وانثانا باندے ختم شويدے۔

**وَلَا تُضِلَّنَا** : دا د إضلال نه دے په معنیٰ د ګمراهئ کښې اچولو سره۔

**فائده** : په دے روايت کښې د وفات سره اسلام او د حياة سره ايمان ذکر شو نو دا د مشهور

روایت خلاف دے، کیدے شی چه دا د راویانو تصرف وی چه هغوی نه هیر شوی وی، هیائے دا گمان کرے وی چه د اسلام او د ایمان په تقدیم او تاخیر کښ فرق نشته۔ (علی القاریؒ)۔ علامه شوکانیؒ هم وئیلی دی چه فَأَحْيِهِ عَلَى الْإِسْلَامِ د اکثرو راویانو روایت دے۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : نسائی (١/٢٨١) والترمذی (١٤٩٨) وقال حديث حسن صحيح لكن الحافظ قال فی التلخيص (١٦١) ابراهيم محهول والحديث صحيح لشواهده۔

---

**١٦٧٦ (٣٢) - وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ قَالَ: صَلَّى بِنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ فَسَمِعْتُهُ يَقُوْلُ: «اَللّٰهُمَّ إِنَّ فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ فِيْ ذِمَّتِكَ وَحَبْلِ جِوَارِكَ فَقِهِ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ وَعَذَابِ النَّارِ وَأَنْتَ أَهْلُ الْوَفَاءِ وَالْحَقِّ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَهُ وَارْحَمْهُ إِنَّكَ أَنْتَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : او واثله بن الاسقع فرمائی : مونږ ته رسول الله ﷺ د مسلمانانو نه په یو سړی باندے مونځ اُوکړو نو ما د هغه نه واوریدل چه وئیل ئے :« اللهم ان الخ اے الله ! یقیناً فلانے ځوی د فلانی ستا په امان کښ دے او ستا په پناه کښ دے، پس دا د قبر د فتنے او د اُور د عذاب نه بچ اُوسانه او ته د وفا والا او ته د حق والا ئے۔ اے الله ده ته بخښنه اُوکړه او په ده رحم اُوکړه یقیناً ته بخښنه کونکے رحم کونکے ئے»۔ (ابوداوُدؒ، ابن ماجةؒ)۔

**تشريح** : **فَسَمِعْتُهُ** : دا روایت هم دلیل دے چه جنازه کښ جهر کول جائز عمل دے ځکه چه واثلهؓ د رسول الله ﷺ نه دا دعاء څنګه واوریدله۔ هغه په جهر وئیله ځکه ئے واوریدله خودا جهر به ډیر تیز نه وی بلکه چه تقریباً یو صف دوه ئے واوری او خاصکر د تعلیم په صورت کښ خو بیا جهر سنت عمل دے۔ او دا سوال وے ځوك نکوی چه واثلهؓ خپله څه کول چه د رسول الله ﷺ دعاء ئے زده کوله۔ وجه دا ده چه کیدے شی چه هغه ته کومے دعاګانے زده وے نو هغه ئے وئیلی وی او دا دعاء ورته نه وی زده نو د نبی ﷺ نه ئے په مانځه کښ زده کړی وی ځکه چه رسول الله ﷺ به په جنازه کښ ډیرے دعاګانے وئیلے۔ او د صحابه کرامؓ ذهنونه هم د ټاټپ ریکارډ په شان وو۔

**فُلَانَ بْنَ فُلَانٍ** : دا دلیل دے چه د مړی نوم او د هغه د پلار نوم اخستل جائز دی او که ورته معلوم نه وی نو د هغے په ځائے دے داسے اُووائی: (اَللّٰهُمَّ إِنَّ عَبْدَكَ هٰذَا) ۔ یا ددے په شان بله جمله وائی۔ خو ډیره راجحه خبره دا ده چه بس همدا فلان بن فلان الفاظ اُووائی ځکه چه الله ته خو د هغه او د هغه د پلار نوم معلوم دے۔

فِيْ ذِمَّتِكَ : ذمے نه مراد امان او لوظ او حفاظت او ضمانت دے۔ (جامع الاصول ٥٣٥/٧)۔

وَحَبْلِ جِوَارِكَ : جوار په كسرے سره دے۔ بعض وائي : دا د ذمتك دپاره عطف تفسير دے۔ او بعض وائي : د حبل نه مراد عهد او لوظ دے يعني ستاسو د حفاظت په ارخ كښ دے او ستا د طاعت په لوظ كښ دے۔ بعض داسے معنىٰ كوي : (فِيْ سَبِيْلِ قُرْبِكَ وَهُوَ الْاِيْمَانُ) ۔ يعني ستا د قرب او نزديكت په لاره كښ دے چه هغه د ايمان لاره ده۔ ليكن ډيره ظاهره معنىٰ دا ده چه حبل نه مراد د الله رسۍ ده چه هغه قرآن كريم دے لكه وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا كښ جمهورو مفسرينو قرآن مراد كړيدے۔ او د جوار نه مراد آمان دے او دا اضافت بياني دے يعني هغه رسۍ چه په هغے باندے منگولو لگولو سره امن او امان او اسلام او ايمان حاصليږي۔ (القاري) يعني دا ستا قرآن پورے انختے وو كوم چه سبب د امن او امان دے۔ يا د حبل نه مراد عهد دے يعني ستا د قرب او جوار په لوظ او عهد كښ دے يعني ترڅو چه دا ستا د حدودو سره مُجَاور وي نو ته به ورله امان او عهد وركوے۔

فَقِهِ : صيغه د امر ده د وقاية نه او دا هاء ضمير دے يا هاء د سكتے دپاره ده۔

فِتْنَةِ الْقَبْرِ : دے نه مراد د قبر امتحان او سوال او جواب دے يا قسماقسم عذابونه چه هغه د قبر تنگي او يو بل كښ پوښتۍ ننوتل او د ملائكو هيبت او وحشت او د بد عمل صورت راتلل وغيره۔

أَهْلُ الْوَفَاءِ وَالْحَقِّ : يعني ته د وعدے د وفادارۍ او حق لائق يې۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : ابوداود (٣٢٠٢) وابن ماجه (١٤٩٩) وحسنه زبير عليزى فى تعليق ابن ماجه وقال : الوليد صرح بالسماع عند ابن المنذر فى الاوسط (٤٤١/٥)۔

---

١٦٧٧ (٣٣) — وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «اُذْكُرُوْا مَحَاسِنَ مَوْتَاكُمْ وَكُفُّوْا عَنْ مَسَاوِيْهِمْ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ.

ترجمه : او ابن عمر رضى الله عنهما فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «تاسو د خپلو مړو ښائسته صفات (نيكيانے) ذكر كوئ او د هغوي د بدو نه بند شئ»۔ (ابوداود، ترمذي)۔

**تشريح**: محاسن جمع د حسن ده خلاف القياس۔ او مساوي جمع د سوء ده خلاف القياس۔ د مړو محاسن او نيكيانے او ښه صفات ذكر كول مستحب دي او د مړو بدي ذكر كول منع دي او په كُفُّوْا كښ امر د وجوب دپاره دے۔ ليكن ددے نه يو صورت مستثنىٰ دے او هغه دا چه د [illegible] ن نه مخكښ د جنازے په ليدو سره د مړي ښه صفت ذكر كول جائز دي لكه چه مخكښ په حديث د

انش کښې تیر شو۔ او هغه هم هله چه د هغې په ذکر کولو کښې څه فائده وی، لکه مثلاً د فاسقانو دپاره عبرت جوړ شي او خلق د هغې په شان کار کولو نه منع شي۔ او خاصکر هغه فاسقان چه بدعتی فاسق وی نهٔ عام گناهگار مگر که د هغه د بدی په ذکر کولو کښې فائده او مصلحت وی نو هم جواز لری۔

علماء فرمائی : د مړی غیبت د ژوندی د غیبت نه ډیر سخت وی ځکه چه د ژوندی معافی کول یا د هغه نه معافی غوختل ممکن دی او په دنیا کښې د هغې توقع کیدے شی په خلاف د مړی نه۔ او ددے نه په اجماع د علماؤ د مجروح راویانو جرح مستثنیٰ ده ځکه چه هغه د دین د حفاظت دپاره کیږی۔

د مړو په ښائسته صفاتو ذکر کولو کښې مقصد دا دے چه د مړی خیر خواهی اُوشی ځکه چه ملائک پرے آمین وائی۔

**درجة الحدیث** : اسناده صحیح لغیره : ابوداود (٤٩٠٠) والترمذی (١٠١٩) وقال حدیث غریب سمعت محمداً یقول : عمران بن انس المکی منکر الحدیث لکن یؤیده ما تقدم من حدیث عائشة : لا تسبوا الاموات، ویؤیده ایضاً ما رواه النسائی بسند صحیح عن عائشة قالت : ذُكِرَ عِندَ النَّبِيِّ ﷺ هَالِكٌ بِسُوْءٍ، فَقَالَ : لَا تَذْكُرُوْا هَلْكَاكُمْ إِلَّا بِخَيْرٍ (المرعاة ٥/٤١٥ وصحیح النسائی)۔

---

١٦٧٨ (٣٤) — وَعَنْ نَافِعٍ أَبِيْ غَالِبٍ قَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَلٰى جَنَازَةِ رَجُلٍ فَقَامَ حِيَالَ رَأْسِهٖ ثُمَّ جَاؤُوْا بِجَنَازَةِ امْرَأَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ فَقَالُوْا : يَا أَبَا حَمْزَةَ ! صَلِّ عَلَيْهَا فَقَامَ حِيَالَ وَسْطِ السَّرِيْرِ فَقَالَ لَهُ الْعَلَاءُ بْنُ زِيَادٍ: هٰكَذَا رَأَيْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ قَامَ عَلَى الْجَنَازَةِ مَقَامَكَ مِنْهَا ؟ وَمِنَ الرَّجُلِ مَقَامَكَ مِنْهُ ؟ قَالَ: نَعَمْ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَفِيْ رِوَايَةِ أَبِيْ دَاوُدَ نَحْوَهُ مَعَ زِيَادَةٍ وَفِيْهِ : فَقَامَ عِنْدَ عَجِيْزَةِ الْمَرْأَةِ.

ترجمه : او نافع ابو غالب نه روایت دے فرمائی : ما د انس بن مالك سره د یو سړی (عبد الله بن عمیرؓ) په جنازه مونځ اُوکړو نو انسؓ (چه امام وو) د هغه سر ته مخامخ اُودریدو بیا خلقو د قریشو د یوے زنانه جنازه راوړه، خلقو اُووئیل: اے ابو حمزه ! (د انس اسم کنیه ده) پدے باندے جنازه اُوکړه ! نو انس د کټ مینځ ته اُودریدو۔ نو هغه ته علاء بن زیاد اُوفرمایل : آیا تا همدغه شان رسول الله ﷺ لیدلے چه په جنازه باندے د زنانه هغه ځائے ته اُودریدلے وو کوم ځائے ته چه ته اُودریدے او د سړی نه هغه ځائے ته چه ته اُودریدلے؟ انسؓ اُوفرمایل : آو۔ (ترمذیؒ، ابن ماجهؒ) او په

يو روايت د ابوداوؐد كښې ددې په شان الفاظ دی سره د زيادت نه او په هغې كښې دا الفاظ زيات دی : نو انسؓ د ښځې د كناتو خوا كښې اُودريدو۔

**تشريح :**

**تعارف د نافع ابو غالب:** دا دباهلي قوم آزاد كرده غلام وو خياط وو د بصري اُوسيدونكے دے، د صغار التابعين نه ثقه دے، ابن معين، ابوحاتم، موسی بن هاون الحمال او ابن حبان ورته ثقه وئيلے دے۔

**حِيَالَ :** په كسره د حاء دے په معنیٰ د حِذاء او مقابل سره۔ او په روايت د ابو داود كښې دی : (عِنْدَ رَأْسِهِ)۔ يعنی د سر په خوا كښې اُودريدو۔

**اَلْعَلَاءُ بْنُ زِيَادٍ:** بن مطر بن شريح العدوی ابو نصر البصری د ثقات تابعينو نه يو عابد شخصيت دے په سنه (٨٤ هـ) كښې د حجاج بن يوسف په ولايت كښې وفات دے۔

**عَجِيْزَةِ الْمَرْأَةِ :** صرف د ښځې كناتو ته وئيلے شی۔ دا روايت صريح دليل دے چه د وسط السرير نه مراد كناتو ته اُودريدل دی او دليل دے چه د مړے زنانه كناتو ته د جنازے كولو په وخت اُودريدل سنت طريقه ده او ددے مخالفت د سنت خلاف دی او تفصيل د مسئلے سره د مالها او ماعليها نه مخكښې ذكر شويدے۔

مصنف دا دويم روايت ددے دپاره راوړو چه د وسط السرير تفسير اُوكړی او دے دپاره چه دا تاويل باطل كړی چه څوك د وسط السرير نه سينے ته اُودريدل مراد نكړی۔

**درجة الحديث:** اسناده صحيح : الترمذی (١٠٣٤) وقال : حديث انس حديث حسن وابن ماجه (١٤٩٤) ورواية ابی داود (٣١٩٤) مطولة واسنادها صحيح۔

## الفصل الثالث

**١٦٧٩ (٣٥) – عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِیْ لَيْلٰی قَالَ: كَانَ سَهْلُ بْنُ حُنَيْفٍ وَقَيْسُ بْنُ سَعْدٍ قَاعِدَيْنِ بِالْقَادِسِيَّةِ فَمَرَّ عَلَيْهِمَا بِجَنَازَةٍ فَقَامَا فَقِيْلَ لَهُمَا: إِنَّهَا مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ أَیْ مِنْ أَهْلِ الذِّمَّةِ فَقَالَا :إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ مَرَّتْ بِهٖ جَنَازَةٌ فَقَامَ فَقِيْلَ لَهٗ: إِنَّهَا جَنَازَةُ يَهُوْدِیٍّ. فَقَالَ: «أَلَيْسَتْ نَفْسًا ؟». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

ترجمه : د عبد الرحمن بن ابی ليلیٰ نه روايت دے چه سهل بن حنيف او قيس بن سعد دواړه په قادسيه كښې ناست وو نو په دواړو باندے يوه جنازه تيره شوه، دواړه راپاڅيدل۔ دوی ته اُووئيل شو: دا جنازه د زمكے والو يعنی د اهل ذمه ؤ ده ! ؟ (چه د دوی دومره اكرام نشته) دواړو صحابه

كرامو اُوفرمايل : (دغه شان يوه ورځ) په رسول الله ﷺ باندے يوه جنازه تيره شوه نو هغه ورته پاڅيدو. هغه ته اُووئيل شو دا خو د يهودي جنازه ده نو هغه اُوفرمايل : «آيا دا يو (انساني) نفس نهٔ دے». (بخاري ومسلم).

**تشريح** : دا روايت دليل دے چه د هر چا جنازے ته پاڅيدل مستحب عمل دے اگركه د كافر جنازه ولے نهٔ وي ځكه چه علت ئے دا ذكر شو چه دا يو انساني نفس دے او د مرگ لوئي هيبت دے نو پدے سره د مرگ احساس كول دي او دا د مړي د ذات دپاره پاڅيدل نهٔ دي. بعض علماؤ وئيلي دي چه دا حديث منسوخ شوے او سهل بن حنيف او قيس بن سعد ته نسخ نهٔ وه معلومه او عالِم حجت وي په غير عالم. ليكن ددے جواب دا دے چه نسخ په هيڅ صحيح صريح حديث سره نهٔ ده ثابته نو د نسخ قول ضعيف دے. او تفصيل دپاره مخكښ (حديث رقم : ٣، ٤) ته رجوع اُوكړه.

**تعارف د سهل بن حنيف** ﷺ : دا د اوس قبيلے نه انصاري مدني بدري صحابي دے. ټولو مشاهدو ته حاضر شويدے او په احد كښ د رسول الله ﷺ سره ثابت پاتے وو. بيا د علي ﷺ سره د هغه د بيعت د وخت نه ملگرے وو او هغه په بصره باندے والي جوړ كړو بيا د هغه په ملگرتيا كښ په جنگ صفين كښ حاضر شو او د فارس والي ئے جوړ كړو بيا په سنه (٣٨ هـ) كښ وفات شو او عليؓ پرے جنازه اُوكړه او شپږ تكبيرات ئے پرے اُووئيل. او ابن سعدؒ نقل كړيدي چه دهٔ او د علي په مابين كښ رسول الله ﷺ مواخات كړے وو. (ورورولي ئے قائمه كړے وه). او يو روايت كښ دي چه عليؓ په دهٔ باندے پنځه تكبيرونه اُووئيل او بيا ئے مونږ ته اُوكتل وے فرمايل : دا بدري وو.

**تعارف د قيس بن سعد** : بن عُباده انصاري خزرجي جليل القدر صحابي دے او دا قوي بدن والا جسيم حسين اُوږد شخص وو، كله چه به په خر سور شو نو د زمكے سره به ئے خپے لگيدے. دا كوسه وو چه په مخ ئے هيڅ وېښته نهٔ وو ليكن ددے سره بيا هم ښائسته وو. دا د رسول الله ﷺ شرطي (باډي گارډ) وو. ابن عبد البرؒ وائي : دا د عظيم القدر فضلاؤ نه او د عربو د بهادرانو نه وو او د رائے خاوند وو. په جنگونو كښ انتهائي چالاك وو ورسره سخاء، بهادري او شرافت پكښ وو، او رسول الله ﷺ ورته د مكے د فتح په ورځ جنډه وركړے وه ځكه چه دهٔ پلار نه ئے اخستے وه، قريشو پرے په دغه ورځ شكايت كړے وو چه دهٔ وئيلي وو چه نن ورځ به د كعبے بيعزتي كيږي، دا هم د عليؓ سره ملگرے شوے وو او د هغه سره د هغه جنگونو ته حاضر شوے وو او هغه په مصر باندے والي مقرر كړے وو. او د عليؓ سره جنگ صفين كښ هم شريك وو بيا د

حسن بن علیؓ سره رو تردے چه هغه د معاویهؓ سره صلح اُوکړه نو قیس مدینے ته راواپس شو او هلته کښې اُوسیدو او د معاویه د خلافت په آخرکښې په سنه (٦٠ هـ) کښې وفات شو۔

بِالْقَادِسِيَّةِ : دا د کجورو او اُوبو والا وروکے ښار دے، ددے او د کوفے ترمینځ دوه مرحلے یا پنځلس فرسخه یعنی (٤٥) میله فاصله ده۔

فَمُرَّ : دا صیغه د مجهول ده۔

مِنْ أَهْلِ الْأَرْضِ : اهل ذمه کافرانو ته ئے د زمکے والا ځکه اُووئیل چه کله مسلمانانو ښارونه فتح کړل نو دا ئے د زمکو په کارونو مقرر کړل او ټیکسو نه ئے پرے کیخودل۔ بله وجه دا ده چه د کافر زرهٔ د دنیا سره لګیدلے وی په خلاف د مؤمن۔

---

١٦٨٠ (٣٦) — وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِذَا تَبِعَ جَنَازَةً لَمْ يَقْعُدْ حَتّٰى تُوْضَعَ فِي اللَّحْدِ فَعَرَضَ لَهٗ حَبْرٌ مِنَ الْيَهُوْدِ فَقَالَ لَهٗ : إِنَّا هٰكَذَا نَصْنَعُ يَا مُحَمَّدُ قَالَ: فَجَلَسَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَقَالَ: «خَالِفُوْهُمْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ وَبِشْرُ بْنُ رَافِعٍ الرَّاوِيُّ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ.

ترجمه : او عباده بن صامت ؓ فرمائی : رسول الله ﷺ به چه کله د یو جنازے پسے روان شو نو نهٔ به کیناستو تردے چه هغه به په لحد کښې کیخودے شوه۔ نو (یوه ورځ) هغه ته د یهودو نه یو عالم راپیښ شو، وے وئیل: اے محمد ! دغسے کار مونږ کوو۔ عبادهؓ فرمائی : (ددے نه روستو) رسول الله ﷺ (د مړی د دفن کولو پورے نهٔ اُودریدو بلکه) کیناستو به۔ او وے فرمایل : تاسو د یهودیانو مخالفت اُوکړئ۔ (ترمذیؒ، ابوداودؒ، ابن ماجهؒ)۔ امام ترمذیؒ وائی چه دا حدیث غریب دے او بشر ابن رافع چه ددے روایت یو راوی دے قوی نهٔ دے۔

تشریح : هٰكَذَا نَصْنَعُ : یعنی مونږ دغه شان کار کوو چه کله د چا جنازه پسے روان شو نو ولاړ یو او نهٔ کینو تردے چه په لحد کښې کیخودلے شی نو رسول الله ﷺ د هغوی د مخالفت دپاره کیناستو۔

بعض علماؤ دا دلیل ګرځولے دے ددے دپاره چه جنازے ته پاځیدل منسوخ دی لیکن دا استدلال په محل د نظر کښې دے ځکه چه پدے کښې د جنازے دپاره د قیام هیڅ تذکره نشته۔ او بعض علماؤ پدے سره دلیل نیولے دے چه د جنازه پسے تلونکی دپاره قیام منسوخ دے لیکن دا استدلال هم ضعیف دے ځکه چه انتهائی خبره پدے کښې دا ده چه دا دلالت کوی پدے چه په

لحد كښې د كېخودلو نه مخكښې ناسته جائز ده۔ او دا تقاضا نۀ كوى چه په زمكه باندې د كېخودلو نه مخكښې قيام منسوخ دے۔ علاوه لا داچه دا روايت ضعيف دے او كه حسن درجه كښې شى نو دا معارض نشى كيدے د حديث د ابوسعيد وغيره سره لكه تفصيل مخكښې په فصل اول كښې په حديث د ابوسعيد كښې ذكر شو۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن: ابوداود (٣١٧٦) والترمذى (١٠٢٠) وابن ماجه (١٥٤٥) وفى اسناده عند الترمذى وابن ماجه بشر بن رافع وهو ضعيف لكن للحديث شواهد لذا حَسَّنَهُ الالبانى فى الصحيحة (٣٠٩٦) (٣٠٨/٥) وغيرها۔

---

١٦٨١ (٣٧) – وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ أَمَرَنَا بِالْقِيَامِ فِى الْجَنَازَةِ ثُمَّ جَلَسَ بَعْدَ ذٰلِكَ وَأَمَرَنَا بِالْجُلُوْسِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** : او على ﷺ فرمائى : رسول الله ﷺ مونږ ته د جنازے په باره كښې د اُودريدو حكم كړے وو بيا (دے نه روستو) هغه به كيناستو او مونږ ته ئے هم د ناستے حكم كولو۔ (احمدؒ)۔

**تشريح** : أَمَرَنَا بِالْقِيَامِ : دا امر د استحباب دپاره دے۔ مطلب دا دے چه مونږ كله جنازه اُووينو چه تيريږى يا په زمكه باندے د كيخودلو نه مخكښې مونږ ته دا امر شوے وو چه تاسو به اُودريږئ بيا نبى ﷺ د بيان د جواز دپاره كيناستو چه دا دليل دے چه قيام فرض نۀ دے۔ بلكه مستحب دے۔ او صحابه كرامؓ ته ئے په ناسته حكم اُوكړو چه ناسته تاسو لره مباح ده يا په هغوى باندے د تخفيف او آسانى راوستلو دپاره ئے دا حكم اُوكړو۔ لهذا دا دليل نۀ دے چه گنې جنازے ته قيام منسوخ دے يا كه څوك جنازه پسے روان وى نو هغه دپاره د جنازے د كيخودو نه مخكښې اُودريدل منسوخ دى بلكه د هغه اُودريدو استحباب اُوس هم باقى دے۔

**درجة الحديث** : صحيح وهذا اسناد حسن : احمد (٨٣،٨٢/١) (شعيب والبانى)۔

---

١٦٨٢ (٣٨) – وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ: إِنَّ جَنَازَةً مَرَّتْ بِالْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ وَابْنِ عَبَّاسٍ فَقَامَ الْحَسَنُ وَلَمْ يَقُمِ ابْنُ عَبَّاسٍ فَقَالَ الْحَسَنُ: أَلَيْسَ قَدْ قَامَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لِجَنَازَةِ يَهُوْدِيٍّ؟ قَالَ: نَعَمْ ثُمَّ جَلَسَ. رَوَاهُ النَّسَائِىُّ.

**ترجمه** : او محمد بن سيرين فرمائى چه (يو ځل) په حسن بن على او ابن عباس دواړو باندے يوه جنازه تيره شوه نو حسن پاڅيدو او ابن عباس پانۀ څيدو۔ حسن اُوفرمايل: آيا رسول الله ﷺ

د يو يهودي جنازے ته نۀ وو پاڅيدلے؟ ابن عباسؓ اُوفرمايل : آؤ (ليكن) ددے نه روستو (به د جنازے په ليدلو سره) كيناستو۔ (نسائیؒ)۔

**تشريح : نَعَمْ ثُمَّ جَلَسَ:** ددے مطلب دا دے چه آؤ رسول الله ﷺ به په ابتداء كښې د جنازے په ليدلو پاڅيدو ليكن بيا روستو ناست هم دے يعنې دواړه طريقے د نبي ﷺ نه نقل دي۔ ليكن ناسته ئے روستو وه۔ ددے مطلب داسے شو لكه مخكښې حديث د علي رقم (٥) چه قَامَ فَقُمْنَا وَقَعَدَ فَقَعَدْنَا۔

ددے باندے هم دليل نيولے شويدے چه كله جنازه تيريږي نو پاڅيدل ورته منسوخ دي۔ ليكن جواب دا دے چه دا نفس فعل دے او دا په نسخ باندے دلالت نۀ كوي ځكه چه دا ممكن ده چه دا ناسته ئے د بيان د جواز د دپاره كړي وي او كه امر په ناسته باندے ثابت شي نو د اباحت او تخفيف دپاره وي۔ فتدبر وقد مرت المسئلة تفصيلا۔

**درجة الحديث:** اسناده صحيح : النسائي (١/٢٧٢) واحمد (١/٢٠٠) وابن ابي شيبة في المصنف والبيهقي والطحاوي ورجال اسناده ثقات۔

---

١٦٨٣ (٣٩) – وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ الْحَسَنَ بْنَ عَلِيٍّ كَانَ جَالِسًا فَمُرَّ عَلَيْهِ بِجَنَازَةٍ فَقَامَ النَّاسُ حَتَّى جَاوَزَتِ الْجَنَازَةُ فَقَالَ الْحَسَنُ : إِنَّمَا مُرَّ بِجَنَازَةِ يَهُودِيٍّ وَكَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ عَلَى طَرِيقِهَا جَالِسًا وَكَرِهَ أَنْ تَعْلُوَ رَأْسَهُ جَنَازَةُ يَهُودِيٍّ فَقَامَ .رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

ترجمه : او جعفر بن محمد د خپل پلار نه روايت كوي چه حسن بن علي (يوه ورځ) ناست وو نو هغه باندے يوه جنازه تيره شوه، خلق اُودريدل تردے چه جنازه تيره شوه۔ نو حسنؓ اُوفرمايل : د يو يهودي جنازه تيره شوه او رسول الله ﷺ د هغې په لاره كښې ناست وو نو هغه بده گنړله چه د يهودي جنازه د هغه د سر نه پورته شي نو (پدے وجه) پاڅيدو۔ (نسائیؒ)۔

**تشريح :** جعفر بن محمد دا په جعفر صادق سره مشهور دے۔ د پلار نوم ئے ابوجعفر الباقر دے۔

**أَنْ تَعْلُوَ رَأْسَهُ :** يعنې رسول الله ﷺ دا بده گنړله چه د هغه د سر نه د يهودي جنازه پورته شي ځكه چه پدے كښې اشاره وه چه اسلام په عالي وي او په دۀ باندے به هيڅ شے نشي پورته كيدے۔ دا علت نبي ﷺ نۀ دے ذكر كړے بلكه حسنؓ فهم كړيدے۔ او د هغه اجتهاد دے او دا په حكم د مرفوع كښې نۀ دے۔

نو پدے حديث كښ حسن ﷺ د جنازے دپاره د خلقو په پاڅيدو انكار اُوكړو او په مخكني، حديث كښ ئے په ابن عباسؓ رد كړے وو چه ته ولے پاڅيدلے۔ بعض وائي : ددے وجه دا ده چه ددے حديث واقعه په هغه وخت كښ راغله چه حسن د ابن عباسؓ د بيان په وجه د قيام په منسوخ كيدو پوهه شو نو هغے ته ئے اشاره اُوكړه۔ او ورسره د نبي ﷺ د پاڅيدو سبب ئے هم ذكر كړو۔

او بعض وائي چه دۀ په ابن عباسؓ انكار څكه كړے وو چه هغه په لاره كښ وو او په خلقو ئے څكه انكار اُوكړو چه دوي په لاره كښ نۀ وو۔ نو مسئله ترے دا راوځي چه كه ستا په لاره باندے ستا په خوا كښ جنازه تيريږي نو پاڅيږي به او كه وړاندے وه او ستا د لارے نه طرف ته وه نو نۀ به پاڅيږي۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : النسائي (١/٢٧٢) ولكن لا يظهر انه في حكم المرفوع (الباني)۔

---

**١٦٨٤ (٤٠) - وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ: «إِذَا مَرَّتْ بِكَ جَنَازَةُ يَهُوْدِيٍّ أَوْ نَصْرَانِيٍّ أَوْ مُسْلِمٍ فَقُوْمُوْا لَهَا فَلَسْتُمْ لَهَا تَقُوْمُوْنَ إِنَّمَا تَقُوْمُوْنَ لِمَنْ مَعَهَا مِنَ الْمَلَائِكَةِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.**

ترجمه : او د ابو موسىٰ ﷺ نه روايت دے چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «كله چه ستا په خوا كښ د يهودي يا نصراني يا د مسلمان جنازه تيريږي نو هغے ته پاڅيږئ څكه چه تاسو د جنازے (د اكرام) دپاره نۀ پاڅيږئ بلكه تاسو پاڅيږئ د هغه ملائكو (د تعظيم) دپاره چه د جنازے سره وي»۔ (احمدؒ)۔

**تشريح : فَقُوْمُوْا لَهَا** : دے كښ هم د قيام امر د استحباب دپاره دے۔

**مِنَ الْمَلَائِكَةِ** : كه جنازه د مسلمان وي نو ملائك د رحمت ورسره وي او كه جنازه د كافر وي نو ملائك د عذاب ورسره وي۔ دا روايت سنداً ضعيف دے ليكن معنىٰ ئے صحيح ده۔ روستو حديث د انسؓ ئے تائيد كوي۔

**درجة الحديث** : صحيح لغيره وهذا اسناد ضعيف : احمد (٤/٣٩١) وفيه ليث بن ابي سليم وهو ضعيف (قاله شعيب الارنووط)۔

---

**١٦٨٥ (٤١) - وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ جَنَازَةً مَرَّتْ بِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَقَامَ فَقِيْلَ : إِنَّهَا جَنَازَةُ يَهُوْدِيٍّ فَقَالَ: «إِنَّمَا قُمْتُ لِلْمَلَائِكَةِ» . رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.**

ترجمه : د انس ﷺ نه روايت دے چه يوه جنازه په رسول الله ﷺ باندے تيره شوه نو هغه اودريدو۔ هغه ته اُووئيل شو چه دا خو د يهودي جنازه ده نو رسول الله ﷺ اُوفرمايل : ((زهٔ د ملائکو (د اکرام) دپاره پاڅيدلے يم))۔ (کوم چه ددے جنازے سره روان وو) (نسائیؒ)۔

**تشريح** : دا دليل دے چه د نبي ﷺ جنازے ته پاڅيدل د ملائکو د اکرام دپاره وو ليکن دا پاڅيدو د نورو علتونو سره معارض نهٔ دے ځکه چه احتمال لري چه د هغه ټولو اسبابو د وجه نه پاڅيدلے وي کوم چه مخکښې ذکر شويدي۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح :النسائي (٤٨،٤٧/٤) وصححه الالباني۔

---

١٦٨٦ (٤٢) – وَعَنْ مَالِكِ بْنِ هُبَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ:(( مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَمُوْتُ فَيُصَلِّيْ عَلَيْهِ ثَلَاثَةُ صُفُوْفٍ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ إِلَّا أَوْجَبَ )). فَكَانَ مَالِكٌ إِذَا اسْتَقَلَّ أَهْلَ الْجَنَازَةِ جَزَّأَهُمْ ثَلَاثَةَ صُفُوْفٍ لِهٰذَا الْحَدِيْثِ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ. وَفِيْ رِوَايَةِ التِّرْمِذِيِّ : قَالَ كَانَ مَالِكُ بْنُ هُبَيْرَةَ إِذَا صَلَّى الْجَنَازَةَ فَتَقَالَّ النَّاسَ عَلَيْهَا جَزَّأَهُمْ ثَلَاثَةَ أَجْزَاءٍ ثُمَّ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :(( مَنْ صَلّٰى عَلَيْهِ ثَلَاثَةُ صُفُوْفٍ أَوْجَبَ )).وَرَوَى ابْنُ مَاجَه نَحْوَهُ.

---

ترجمه : دمالك بن هبيره ﷺ نه روايت دے چه ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلي چه فرمايل ئے : (( نشته يو مسلمان چه مړ شي او په هغه باندے درے صفونه د مسلمانانو مونځ اُوکړي مګر الله هغه دپاره (مغفرت او جنت) واجبوي))۔ نو مالكؒ به چه کله جنازے والا کم ليدل نو ددے حديث د وجه نه به ئے هغه (هم) درے صفونو کښې تقسيمول۔ (ابوداودؒ)۔ او په روايت د ترمذيؒ کښې دي : راوي وائي : مالك بن هبيرهؒ به چه کله په جنازه مونځ کولو او په هغې باندے به ئے خلق کم ليدل نو هغه به ئے درے حصو ته تقسيمول بيا به ئے فرمايل : رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (( چا باندے چه درے صفونه خلق مونځ اُوکړي الله تعالیٰ د هغه دپاره جنت واجبوي))۔ ابن ماجهٔ هم دا قسم روايت نقل کړے۔

**تعارف د مالک بن هبيرة** ﷺ : مالك بن هُبيره بن خالد بن مسلم السکوني او الکندي، کنيه ئے ابوسعيد ده، صحابي دے په حمص او مصر کښې اُوسيدلے دے، او د معاويه د طرف نه د حمص والي پاتے شويدے او د حمص اُوسيدونکو ترے روايتونه نقل کړيدي او محمد بن الربيع الجيزي په هغه صحابه کرامو کښې ذکر کړيدے چه د مصر فتح ته حاضر شويدي۔ په

خلافت د مروان بن الحکم کښې وفات شویدے۔

**تشريح : أَوْجَبَ:** يعنى اَوْجَبَ ذٰلِكَ الْفِعْلُ عَلَى اللّٰهِ الْجَنَّةَ اَوِ الْمَغْفِرَةَ) (دے کار واجب کړو په الله بانديے جنت يا مغفرت) او په اصابه کښې حافظ داسے لفظ سره ذکر کړے (إِلَّا وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ) (جنت دۀ لره واجب شو) او په روايت د احمد کښې (إِلَّا غُفِرَ لَهُ) ذکر دے۔

يا معنىٰ دا ده چه الله دۀ لره واجب کړو مغفرت او جنت۔

**فَتَقَالَّ :** صيغه د مجهول ده د قلة نه دے۔ يعنى خلق به ئے کم اُوليدل۔ اِسْتَقَلَّ الشَّيْءَ وَتَقَالَّهُ عَدَّهُ وَرَآهُ قَلِيلًا) (استقل او تقال په هغه ځائے کښې وئيلے شى چه انسان يو شے کم اُوګنړى يا ئے کم اُووينى)۔

**جَزَّأَهُمْ :** تجزئه تقسيمولو او تفريق ته وئيلے شى۔

**ثَلَاثَةَ صُفُوْفٍ:** د اصح قول په بناء اقل افراد د صف دا دى چه دوه کسان وى۔

ددے روايت نه دا معلوميږى چه په جنازه کښې اګرکه خلق کم وى نو صفونه درے جوړل بهتر عمل دے او د صفونو پوره کول په جنازه کښې ضرورى نۀ دى۔

او ددے تطبيق د نورو حديثونو سره مخکښې ذکر شويدے چه په هغے کښې د سلو او څلويښتو کسانو د شرکت فضيلت ذکر وو چه د الله رحمت ددے امت دپاره ډير فراخه دے که ډير کم خلق هم پرے جنازه اُوکړى نو الله تعالىٰ ورته بخنه کوى او الله تعالىٰ په معمولى بهانو سره انسان د جنت مستحق ګرځوى نو پدے کښې د ايمان والو دپاره يو قسم خوشحالى ده۔ والحمد لله على كل حال واعوذ بالله من حال اهل النار. نسأل الله ان يغفر لنا ويرحمنا بفضله وكرمه ومنه انه جدير بذلك۔

**درجة الحديث :** اسناد الموقوف حسن واسناد المرفوع ضعيف لعنعنة ابن اسحاق : اخرجه ابو داود (٣١٦٦) والترمذى (١٠٢٨) وابن ماجه (١٤٩٠) واحمد (٧٩/٤) وصححه الحاكم ووافقه الذهبى (٣٦٢/١)۔

---

**١٦٨٧ (٤٣) – وَعَنْ أَبِىْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ فِى الصَّلَاةِ عَلَى الْجَنَازَةِ : « اَللّٰهُمَّ أَنْتَ رَبُّهَا وَأَنْتَ خَلَقْتَهَا وَأَنْتَ هَدَيْتَهَا إِلَى الْإِسْلَامِ وَأَنْتَ قَبَضْتَ رُوْحَهَا وَأَنْتَ أَعْلَمُ بِسِرِّهَا وَعَلَانِيَتِهَا جِئْنَا شُفَعَاءَ فَاغْفِرْ لَهُ ». رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.**

ترجمه : او ابو هريره ﷺ د نبى کريم ﷺ په باره کښې دا روايت نقل کړے چه هغه به د جنازے په مانځه کښې دا دعاء کوله : « اللهم انت ربها : اے الله اتۀ دۀ رب ئے او تا دا پيدا کړے او تا دۀ ته اسلام طرف ته هدايت کړے او تا دۀ روح اخستے او تۀ دۀ په پټو او ښکاره پو هه ئے مونږ (دۀ په

باره کښې) سفارش کونکی راغلی یو نو پس دهٔ ته بخنه اُوکره». (ابوداوُدٓ)۔

**تشریح : بِسِرِّهَا:** یعنی ددهٔ په پټ او ښکاره او باطن او ظاهر باندے ته ښه پوهه ئے۔

**فَاغْفِرْ لَهُ :** مخکښې ضمائر مؤنث راوړے شو په اعتبار د نفس یا روح سره او روستو ضمیر مذکر کړے شو په اعتبار د شخص یا میت سره۔ ددے نه معلومیږی چه میت ته دواړه قسمه ضمیر راجع کول صحیح دی که مذکر کوی او که مؤنث وی۔ خو پدے کښې د نقل تابعداری ښه ده۔

**درجة الحدیث :** اسناده ضعیف : احمد (٢٥٦/٢، ٣٤٥، ٣٦٣) وفیه علی بن شماخ لم یوثقه غیر ابن احبان وباقی رجاله ثقات اخرجه ابوداود (٣٢٠٠) (شعیب والبانی) لکن ذکره الحافظ فی آمالی الاذکار من طریق الطبرانی فی الدعاء، وقال : هذا حدیث حسن انظر الفتوحات الربانیة (١٧٦/٤) لابن علان وصححه الشیخ احمد شاکر فی تعلیقه علی المسند (قاله شعیب)۔

---

**١٦٨٨ (٤٤) — وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ: صَلَّيْتُ وَرَاءَ أَبِي هُرَيْرَةَ عَلَى صَبِيٍّ لَمْ يَعْمَلْ خَطِيئَةً قَطُّ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ :اَللّٰهُمَّ أَعِذْهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ. رَوَاهُ مَالِكٌ.**

---

**ترجمه :** او سعید بن المسیب وائی : ما د ابو هریره پسے په یو ماشوم باندے مونځ اُوکړو چه هغه هیڅ کله هیڅ گناه نهٔ وه کړے نو ما د ابو هریره نه واوریدل چه داسے ئے وئیل : اللهم اعذه یعنی اے الله ! دا د قبر د عذاب نه بچ اُوساتهٔ۔ (مالك)۔

**تعارف د سعید بن المسیب :** دا سعید بن مسیب بن حزن بن ابی وهب القرشی المخزومی المدنی دے کنیه ئے ابومحمد ده، د عمر فاروق د خلافت دوه کاله تریدلو نه روستو پیدا شو، دا سید کبار التابعین دے، فقه، حدیث، زهد، عبادت او ورع ئے راجمع کړیدی۔ دا د ابو هریرهٔ په احادیثو او د عمر فاروقٌ په قضاوتونو (فیصلو) د تولو خلقو نه دیر عالم وو۔ دیر صحابه کرام ئے لیدلی دی، او د هغوی نه ئے روایتونه نقل کړیدی او د امام زهریؒ او د دیرو تابعینو استاذ دے۔ علماؤ دهٔ ته اعلم التابعین (د تولو تابعینو نه لوئی عالِم) لقب ورکړیدے۔ ابن المدینیؒ وائی : ما ته په تابعینو کښې ددهٔ نه فراخه علم والا نهٔ دے معلوم۔ مکحول امام د اهل الشام وائی چه زهٔ په طلب د علم کښې په توله زمکه اُوګرځیدم خو د ابن المسیب نه لوئی عالم سره ملاؤ نشوم۔ تولو علماؤ اتفاق کړے چه ددهٔ مرسلات (مرسل حدیثونه) د تولو مراسیلو نه اصح دی۔ ابن المسیبؒ فرمائی : ما څلویښت حجونه کړیدی۔ د نویم (٩٠) هجری نه روستو تقریباً د اتیا کالو په عمر وفات شویدے۔

**تشريح : عَلٰى صَبِيٍّ** : بعض علماء (باجیؒ) وائی چه په ماشوم باندے جنازه کول د هغه دپاره د قربت سبب دے او د هغه په حق کښ دا شفقت دے چه الله دا د خپلو مخکښنو نیکانو سره پیوسته کړی او په ماشوم باندے مونځ واجب دے آه۔ لیکن راجح دا ده چه په ماشومانو باندے جنازه کول مستحب دی او په وجوب باندے ئے دلیل نشته۔

**خَطِيئَةً قَطُّ** : ځکه چه دا د بلوغ نه مخکښ مړ شوے وو او د ماشومانو نه تر بلوغ پورے قلم پورته شویدے، د هغوی گناهونه نهٔ لیکلے کیږی۔

ددے نه بعض علماؤ دا معلومه کړیده چه د ماشومانو نه به هم په قبر کښ سوال کیږی او بعض وائی : د هغوی نه سوال نشته۔ او بعض وائی پدے باره کښ توقف پکار دے او همدا خبره حقه ده ځکه چه دوارو طرف ته هیڅ نص نشته۔

**يَقُولُ** : یعنی د فاتحے او درود لوستلو نه روستو ئے دا دعاء اُوکړه۔

د ماشومانو دپاره عذاب قبر خو نهٔ وی نو څنګه ئے د قبر د عذاب نه ورله پناهی طلب کړیده ؟ جواب دا دے چه عذاب یو عام مفهوم لری چه معلوم عذاب ته هم وئیلے شی کوم چه د گناهونو په بدله کښ وی او هر قسم درد، غم، افسوس، وحشت او تنګی ته وئیلے شی او دا کارونه د ماشومانو دپاره هم راتلے شی ځکه چه د قبر وحشت او یواځے والے او د مور او پلار نه جدائی خو د هر ماشوم دپاره شته۔ او صحیح حدیث کښ ثابت دی چه نبی ﷺ یو ماشوم دفن کړو بیا ئے اُوفرمایل : (لَوْ اَفْلَتَ اَحَدٌ مِنْ ضَمَّةِ الْقَبْرِ لَاَفْلَتَ هٰذَا الصَّبِيُّ) (طبرانی ۵/۱۲۱ مجمع الزوائد ۳/۴۷)

(که یو تن د قبر د جوختیدو نه خلاصیدلے نو دا ماشوم به خلاص شوے وے) دا حدیث او ددے په شان نور صحیح احادیث دلالت کوی چه د قبر په ابتداء د دفن کښ جوختیدل په هر مؤمن او هر ماشوم باندے وی) او ددے ډیر حکمتونه الله تعالیٰ ته معلوم دی۔ بعض علماؤ ئے دا حکمت خودلے دے چه انسانان د زمکے نه پیدا دی نو دا اولاد د زمکے دی او ډیره موده ترے غائب شویدی، نو ځکه ئے ځان ته راجوختوی لکه مور چه ډیره موده غائب بچے ځان ته راجوختوی، لیکن د مؤمن او ماشومانو راجوختول په آسانئ سره وی او د کافر جوختول ډیر سخت وی۔

قاضیؒ وئیلی دی چه دے کښ دا احتمال شته چه ابو هریره به کیدے شی د رسول الله ﷺ نه څه خبره آوریدلی وی چه د قبر عذاب ماشوم او غټو دپاره شته، او فتنه د قبر به د ماشوم دپاره هم وی، په دنیا کښ اګرکه ماشوم مکلف نهٔ وو لیکن په قبر کښ الله چه څه غواړی کولے ئے شی۔ ابن عبد البرؒ وئیلی دی چه یو عذاب القبر دے او بل فتنة القبر نو ماشوم دپاره فتنه د قبر شته لیکن که الله بندګانو ته عذاب ورکول غواړی نو هغه به پرے ظلم کونکے نهٔ وی ځکه چه دا

تول د هغه مخلوق دی۔

بعض وائی : کیدے شی ابو هریره دا گمان کرے وی چه دا لوئی دے ځکه ئے د عذاب القبر نه ورله پناهی طلب کره۔ لیکن دا خبره ضعیفه بے دلیله ده۔ یا کیدے شی چه مقصود ئے درجات زیاتول وی آه۔ لیکن اوله خبره صحیح ده کومه چه مونږ ذکر کړه۔

احناف وائی چه ماشومانو دپاره به په جنازه کښې د بالغانو دعاء هم نشی وئیلے او نهٔ به ورله استغفار غوختے شی بلکه صرف (اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا فَرَطًا الخ) به ورله وئیلے شی۔ مگر صحیح دا ده چه ماشوم دپاره څه منع نهٔ ده بلکه هغه ته او د هغه مور او پلار ته به دعاء اُوکړے شی او راتلونکے حدیث کښې دعاء ذکر ده هغه به ورله اُووئیلے شی۔ والله اعلم۔

**درجة الحدیث** : اسناده صحیح : مالك (٢٢٢/١٧) قاله الالبانی فی تعلیق المشکاة۔

---

١٦٩٨ (٤٥) - وَعَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيقًا قَالَ : يَقْرَأُ الْحَسَنُ عَلَى الطِّفْلِ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَيَقُولُ: اَللّٰهُمَّ اجْعَلْهُ لَنَا سَلَفًا وَفَرَطًا وَذُخْرًا وَأَجْرًا.

ترجمه : او امام بخاری په طریقه د تعلیق (یعنی په ترجمة الباب کښې ئے بغیر د سند نه دا روایت) نقل کړی چه حسن بصریؒ به په ماشوم باندے (په جنازه کښې) سورة فاتحه لوستله۔ او وئیل به ئے : اللهم اجعله۔ اے الله! دا ماشوم (د قیامت په ورځ) زمونږ پیشوا، مخکښې تلونکے او زمونږ دپاره ذخیره او ثواب جوړ کړه۔

**تشریح : تَعْلِيقًا** : تعلیق دیته وائی چه د ابتداء د سند نه یو یا زیات راویان پرله پسے حذف کړے شی او د حدیث نسبت د محذوف راوی نه بره ته اُوکړے شی۔ بعض علماء ئے دے دپاره استعمالوی چه تول سند حذف کړی او نسبت اصل راوی ته اُوکړی۔ لکه پدے مقام کښې شو۔ علماؤ وئیلی دی چه تعلیقات د بخاری په حکم د مسانیدو کښې دی خاصکر هغه چه په صیغه د جزم سره وی لکه قَالَ، فَعَلَ، اَمَرَ، رَوٰى، ذَكَرَ چه معلومے صیغے دی۔ او مجهول صیغو سره چه استعمال شی نو هغه غالباً صحیح او موصول وی خو بیا به ئے هم تحقیق کولے شی۔

**سَلَفًا** : یعنی زمونږ دپاره جنت ته مخکښې تلونکے۔ بعض وائی : دا د سلف المال نه ماخوذ دے (مخکښې لیږلے شوے مال) گویا کښې دا ئے مخکښې اُولیږلو او د صبر په بدله کښې ئے د اجر او ثواب دپاره قیمت او ثمن اُوگرځولو۔ بعض وائی : د انسان سلف هغه خلقو ته وئیلے شی چه دده د پلارانو او خپلوانو نه مخکښې وفات شوی وی، پدے وجه اولے پیړئ د صحابه کرام او تابعینو ته سلف صالحین وائی۔ ځکه چه دا هم مخکښې تیر شویدی۔

وَفَرَطًا : هغه انسان ته وائي چه د قافلې نه مخکښې روان وي دپاره ددې چه هغوی له اسباب د پړاؤ، د اُوبو وغیره پروګرام برابروي۔

وَذُخْرًا : یعني ذخیره۔

ماشوم دپاره د سرو دعاء وئیل هم جائز او هر قسم دعاء هغه او د هغه والدینو ته جائز ده۔

**تنبیه** : په صحیح بخاري کښې دا روایت پداسې الفاظو دې :وَقَالَ الْحَسَنُ: يَقْرَأُ (اَیِ الْمُصَلِّیْ) عَلَى الطِّفْلِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ الخ) یعني حسن بصري وئیلي دي چه مونځ کونکے به په ماشوم بانديې سورۃ فاتحه هم وائي او ورسره (د درود نه بعد) دغه دعاء۔ لهذا مصنف له پکار وو چه داسې الفاظ ئې وئیلي وې : (وَعَنِ الْحَسَنِ اَنَّهٗ قَالَ: الخ)

او ددې حسنؒ نه مراد حسن بصري دې او ابن الاثیرؒ ترې په جامع الاصول کښې حسن بن علي مراد اخستې دې، هغه خطائي ده۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : اخرجه البخاري معلقاً (١٨٩/١) والبيهقي باسناد حسن لا بأس به في العمل) (الباني تعليق كتاب الجنائز ص ١٢٦)۔

---

**١٦٩٠ (٤٦) – وَعَنْ جَابِرٍ اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ قَالَ: «اَلطِّفْلُ لَا يُصَلّٰى عَلَيْهِ وَلَا يَرِثُ وَلَا يُوْرَثُ حَتّٰى يَسْتَهِلَّ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه إِلَّا اَنَّهٗ لَمْ يَذْكُرْ «وَلَا يُوْرَثُ».**

**ترجمه** : او د جابر ﷺ نه روایت دې چه نبي کریم ﷺ فرمایلي :«ماشوم بانديې به مونځ نشي کیدې او نۀ به میراث وړي او نۀ به ددۀ نه میراث وړې شي تردې چه (د ولادت په وخت کښې) آواز اُوکړي»۔ دا روایت ترمذيؒ او ابن ماجهؒ نقل کړې مګر ابن ماجهؒ په خپل روایت کښې (لَا يُوْرَثُ) نۀ دې نقل کړې۔

**تشریح** : پدې حدیث کښې مخکښې تحقیق تیر شو چه پدې کښې د مانځه متعلق خبره ضعیفه ده او باقي حدیث صحیح دې۔ او د استهلال معنیٰ هم ذکر شویده۔ د میراث په باب کښې د ماشوم استهلال یعني د پیدائش په وخت کښې آواز ضروري دې ځکه چه میراث مالي حق دې او مالي حق به هله ثابتیږي چه د انسان دنیا ته راتلل په حالت د ژوند کښې یقیني اُوشي۔ او هرچه مونځ دې نو هغه د روح سره تعلق لري او دا د احکامو د آخرت نه دې او چه کله پرې څلور میاشتې او لس ورځې تیرې شوی وې نو یقیناً په دۀ کښې روح اچولې شوې دې او سعادت او شقاوت ئې لیکلې شویدې نو مونځ به پرې نشي پریخودلې لکه دا قول د اسحاق بن راهویهؒ وو چه مخکښې مونږ په مسئله کښې ذکر کړو۔

بعض علماء فرمائي : ذكر د استهلال دے مراد ترے نه د هغه د ژوند معلومات دے څکه چه چغه، پرنجے، ساه اخستل او حركت كول د ژوند علامات دي، خو تعبيرئے ترے په استهلال سره اُوكړو څكه چه غالباً ماشوم د پيدا كيدو په وخت كښ آواز كوى. يعنى چه بنه يقينى علم راشى چه ماشوم ژوندے وو بيا وفات شويدے نو د ميراث حكم به پرے هم جارى كيږى او مونځ به هم پرے كولے شى سره د غسل وركولو نه او دا مسئله اتفاقى ده.

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : الترمذى وابن ماجة (١٥٠٨) باسنادين واهيين عن ابى الزبير عنه معنعناً (التلخيص الحبير (١١٣/٢) وضعفه زبير عليزى فى تعليق ابن ماجه وقال الالبانى ضعيف (ضعيف الجامع الصغير ٣٦٥٨) والترمذى (١٠٣٢).

---

١٦٩١ (٤٧) – وَعَنْ أَبِيْ مَسْعُوْدٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ :نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ أَنْ يَقُوْمَ الْإِمَامُ فَوْقَ شَيْءٍ وَالنَّاسُ خَلْفَهُ يَعْنِيْ أَسْفَلَ مِنْهُ. رَوَاهُ الدَّارَقُطْنِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او ابو مسعود انصارى ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ منع كړے ددے نه چه امام (يواځے) د يو شى دپاسه اُودريږى او مقتديان د هغه نه شا ته يعنى لاندے وى. (دارقطنىؒ، ابوداودؒ)

**تشريح** : يعنى چه امام بره ولاړ وى او مقتديان لاندے وى نو دا په جنازه او عام فرضى وغيره مونځونو كښ جائز نۀ ده او عكس طرف به په طريق اولىٰ جائز نۀ وى چه مقتديان بره وى او امام ښكته وى او ددے مسئلے تفصيل په باب الموقف كښ مخكښ ذكر شويدے.

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : اخرجه الدارقطنى فى السنن وابوداود (٥٩٧) وهو فى صحيح الجامع الصغير (٦٨٤٢).

OOOOOOO

# باب دفن المیت

## د مړی د دفن (خخولو) بیان

په اتفاق د علماؤ د انسان دفن کول په خاورو کښې لازم دی او هسې په زمکه پریخودل یا سین ته ارتول حرام دی۔

## الفصل الأول

۱۶۹۲ (۱) ـ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِیْ وَقَّاصٍ أَنَّ سَعْدَ بْنَ أَبِیْ وَقَّاصٍ قَالَ فِیْ مَرَضِهِ الَّذِیْ هَلَكَ فِیْهِ : اِلْحَدُوْا لِیْ لَحْدًا وَانْصِبُوْا عَلَیَّ اللَّبِنَ نَصْبًا كَمَا صُنِعَ بِرَسُوْلِ اللهِ ﷺ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : د عامر بن سعد بن ابی وقاص نه روایت دے چه سعد بن ابی وقاص په خپل هغه مرض کښې چه په کوم کښې وفات شو اُوفرمایل : چه زما (د دفن) دپاره لحد جوړ کړئ او په ما باندے کچه خختې اُودروئ لکه څنګه کار چه د رسول الله ﷺ سره شوے وو۔ (مسلمؒ)۔

تشریح : اِلْحَدُوْا: دا د باب افعال نه هم صحیح دے اَلْحِدُوْا۔ او د باب د فتح نه هم صحیح دے۔ اِلْحَدُوْا۔ د لحد نه جوړ دے په معنیٰ د کوږ والی سره او دا قسم قبر هم کوږ والی ته مائل وی۔ ځکه چه په کنده کښې دننه قبلې ته مائل بل اړخ ته کنده وی۔

وَانْصِبُوْا : د ضرب نه په معنیٰ د اُودرولو سره دے۔

اللَّبِنَ : لکه د ګټف په شان کچه (ناپوخ کړے شوے) خختې۔

دا حدیث دلیل دے چه لحد او کچه خختې اُودرول مستحب دی ځکه چه دا کار په رسول الله ﷺ باندے په اتفاق د صحابه کرامو سره شویدے، اهل سیرت لیکی چه په رسول الله ﷺ نهه کچه خختې کیخودلې شوے وے۔ (نوویؒ) علامه عراقی وائی :

| وَلَحَدُوْا لَهُ وَنُصِبَتْ | عَلَیْهِ تِسْعُ لَبِنَاتٍ أُطْبِقَتْ |
| --- | --- |

روستو اختلاف راځی چه لحد غوره دے او که شق؟۔

١٦٩٣ (٢)- وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: جُعِلَ فِيْ قَبْرِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ قَطِيْفَةٌ حَمْرَآءُ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه :** او ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی : د رسول الله ﷺ په قبر کښې سره شړۍ (څادر) کیخودے شوے وو۔ (مسلمؒ)۔

**تشریح : قَطِيْفَةٌ :** دا هغه شړۍ ده چه پلنو طرفونو ته زوندی او تارونه لری۔

دا شړۍ ورته شقران لاندے اچولے وه کوم چه د رسول الله ﷺ آزاد کړده غلام وو۔ لکه ترمذی کښې راغلی دی چه هغه وائی : قسم په الله ما د رسول الله ﷺ لاندے په قبر کښې شړۍ اچولے وه۔ (بسند حسن)۔ بیهقیؒ د ابن عباسؓ نه نقل کوی چه شقرانؓ کله رسول الله ﷺ قبر ته کوز کړو نو د رسول الله ﷺ شړۍ چه هغه به اغوستله او خوروله به ئے، راواخستله او د رسول الله ﷺ سره ئے په قبر کښې خښ کړه او وے وئیل : قسم په الله ستا نه روستو به دا هیڅوك نهٔ اغوندی، نو د هغه سره ئے دفن کړه۔ (بیهقی ٣/٤٠٨)۔

بیا پدے کښې اختلاف دے چه آیا په قبر کښې جامه او شړۍ وغیره اچول مستحب دی او که نهٔ ؟۔

نو دے کښې فیصله دا ده چه د سرګړی اچول مستحب دی ځکه چه دا د رسول الله ﷺ په زمانه کښې عام عادت وو لکه په اوږد حدیث د ابن عباسؓ کښې راغلی دی چه نبی ﷺ د مکے حرمت بیان کړو چه ګیاهګانے به ئے نشی شوکولے بیا عباسؓ اجازت طلب کړو چه سرګړے مستثنیٰ کړی ځکه چه دا مونږ په قبرونو کښې خوروو۔ نو رسول الله ﷺ د هغے استثناء اُوکړه۔ نو دا په قبر کښې د سرګړی اچولو د استحباب دپاره دلیل دے۔

او پاتے شو جامه وغیره په قبر کښې اچول نو دا مستحب نهٔ دے او ظاهر دا ده چه کله د قبر په زمکه کښې لوند والے او څه علت نهٔ وی نو ددے استعمال مکروه او اسراف او مال ضائع کول دی۔ او دا کار د رسول الله ﷺ په زمانه کښې موجود نهٔ وو۔

او هرچه رسول الله ﷺ ته شقران دا شړۍ اچولے ده نو دا د هغه اجتهاد دے چه هغه اُووئیل زهٔ دا بده ګنړم چه دا شړۍ د رسول الله ﷺ نه علاوه بل څوك استعماله کړی۔

او بله دا چه ددے صحابی د عمل سره د نورو صحابه کرامو مخالفت هم موجود دے ځکه چه د ابن عباسؓ نه دا نقل دی چه هغه به دا مکروه ګنړله چه د مړی لاندے په قبر کښې جامه واچولے شی (رواه البیهقی فی الکبریٰ ٣/٤٠٨)۔

او د طبقات ابن سعدؒ د بعض روایاتو نه دا هم معلومیږی چه دا شړۍ ئے پدے وجه واچوله چه په زمکه کښې نیل (لوندوالے) وو۔ (حاشیة السندی علی النسائی ٤/٨٣)

او دا د اکثرو علماؤ قول دے۔ چه دا کار مکروه دے۔ او امام دارقطنیؒ د وکیعؒ نه نقل کړیدی، چه

دا کار د نبی ﷺ د خصوصیاتو نه وو۔

او ددے وجه بعض علماؤ دا ذکر کړیدہ چه د انبیاؤ بدن زمکه نهٔ خوری او د روغ بدن سره دا لائقه ده چه هغه ته څه کپړه خوره کړے شی۔ (المرقاة والمرعاة)۔

او واقدیؒ د علی بن حسینؒ نه نقل کړیدی چه صحابه کرامؓ هغه شړیٔ راویستلے وه۔ او همدا خبره ابن عبد البرؒ په الاستیعاب کښ هم ذکر کړیدہ چه کله دوی په هغه بانددے خاورے اچولے نو. بیا ئے هغه شړیٔ را اُوویستله۔ او حافظ عراقیؒ په الفیة السیرة کښ وائی

| وَفُرِشَتْ فِیْ قَبْرِهٖ قَطِیْفَةٌ | | وَقِیْلَ اُخْرِجَتْ وَهٰذَا اَثْبَتُ |
|---|---|---|

چه د نبی ﷺ په قبر کښ شړیٔ خوره شوے وه لیکن بیرته ترے راویستلے شوے وه او همدا خبره زیاته ثابته ده آه۔

او بعض علماء (علامه بغویؒ او ابن حزمؒ) دے ته مستحب وئیلی د وجے ددے حدیث الباب نه لیکن خبره ئے ضعیفه ده۔ ځکه چه یو خو دا د مشهور سنت نه خلاف ده او بل پدے کښ اضاعة المال دے کوم نه چه نهی راغلے ده۔ او د شقران پدے قول کښ هیڅ دلیل نشته بلکه د بعض روایاتو نه دا هم معلومه شوه چه نورو صحابه کرامو راوخکلے وه۔

(المحلی ١٦٤/٥) وفقه السنة ٥٤٦/١) والتحقیق فی السیل الجرار المتدفق علی حدائق الازهار (٢٢٤/١) للشوکانی المتوفیٰ (١٢٥٠هـ) وفتاوی الدین الخالص (٢٥٠/٧)۔

---

١٦٩٤ (٣) — وَعَنْ سُفْيَانَ التَّمَّارِ: اَنَّهٗ رَاٰى قَبْرَ النَّبِيِّ ﷺ مُسَنَّمًا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ

---

ترجمه : او سفیان التمار روایت کوی چه دهٔ د نبی کریم ﷺ قبر اُولیدو چه ماهی پشت وو۔ (بخاریؒ)۔

**تشریح** : سفیان التمار دا سفیان بن دینار التمار ابو سعید العصفری الکوفی دے د کبار اتباع التابعین نه ثقه دے او د صحابه کرامؓ زمانه ئے لاندے کړیدہ لیکن د صحابی نه ئے روایت معلوم نهٔ دے۔ په جامع الاصول کښ د سفیان په ځائے عبد الله بن عباسؓ ذکر دے لیکن هغه خطائی ده۔

**مُسَنَّمًا**: ماهی پُشت۔ یعنی د ماهی د ملا په شان وو۔ قاموس کښ لیکی : چه تسنیم ضد د تسطیح دے۔ یعنی ماهی پشت جوړول مخالف دی د مسطح یعنی چت ورکولو نه یعنی د څلور قنجه جوړولو نه۔ مستم دیته هم وائی چه د اُوښ د سنام (قُب) په شان وی۔

قبر دواړه قسمه جوړول جائز دي په اتفاق د علماؤ سره ليكن اختلاف دے چه مسنم افضل دے او كه مسطح؟ امام شافعيؒ مسطح افضل گڼړي او امام ابوحنيفةؒ، احمدؒ، مالكؒ او مُزَنيؒ وائي چه تسنيم القبر افضل دے۔ او همدا قول د وجه ددے حديث نه راجح دے۔

٢- او امام شعبيؒ فرمائي : (رَأَيْتُ قُبُوْرَ شُهَدَاءِ أُحُدٍ جُثًى مُسَنَّمَةً) (ابن ابی شيبة) (ما د أحد د شهداؤ قبرونه اُوليدل چه ماهي پشت پراته وو)۔ ٣- خالد بن ابی عثمان وائي : (رَأَيْتُ قَبْرَ ابْنِ عُمَرَ مُسَنَّمًا) (ابن جرير الطبري) ما د ابن عمرؓ قبر اُوليدو چه مسنم (ماهي پشت) وو۔

علامه طبريؒ فرمائي : (إِنَّ هَيْئَةَ الْقُبُوْرِ سُنَّةٌ مُتَّبَعَةٌ وَلَمْ يَزَلِ الْمُسْلِمُوْنَ يُسَنِّمُوْنَ قُبُوْرَهُمْ) (د قبرونو هيئت جوړول جاري سنت دي او مسلمانانو به هميشه قبرونه ماهي پُشت كول) امام مُزنيؒ فرمائي : ماهي پشت قبرونه ځكه بهتر دي چه دا ځائے د ناستے نهٔ وي او ځلور قنجه قبرونو باندے د ناستے امكان كيدے شي۔

او امام شافعيؒ او د هغه بعض موافقين دليل نيسي په بعض رواياتو چه نبي ﷺ د خپل ځوي قبر مسطح جوړ كړے وو ليكن صحيح دا ده چه دا مرسل يا معضل روايت دے من بلاغات الشافعيؒ دے۔ او د فصل ثاني په آخر كښ چه كوم حديث د قاسم بن محمد نه راغلي دے چه عائشےؓ ما ته درے قبرونه راښكاره كړل چه نهٔ اُوچت وو او نهٔ زمكے سره هموار وو الخ نو هغه احتمالي حديث دے چه تسنيم هم ترے معلوميږي او تسطيح هم۔ لهٰذا د هغے نه دليل نيول په محل د نظر كښ دي۔

علامه بيهقيؒ، شوكانيؒ او حافظ ابن حجرؒ تسطيح ته ترجيح وركړيده او علامه مباركفوريؒ تسنيم ته او همدا خبره راجح ده۔ (المرعاة ٤٢٩/٥)۔

او احنافو ليكلي دي : (وَمِقْدَارُ التَّسْنِيْمِ أَنْ يَكُوْنَ مُرْتَفِعًا مِنَ الْأَرْضِ قَدْرَ شِبْرٍ أَوْ أَكْثَرَ قَلِيْلًا) (بدائع الصنائع ٣٤٢/٣) (چه د تسنيم القبر مقدار به دا وي چه يو لويشت د زمكے نه پورته شي يا لږ زيات)۔

---

١٦٩٥ (٤) - وَعَنْ أَبِي الْهَيَّاجِ الْأَسَدِيِّ قَالَ: قَالَ لِيْ عَلِيٌّ: أَلَا أَبْعَثُكَ عَلٰى مَا بَعَثَنِيْ عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «أَنْ لَا تَدَعَ تِمْثَالًا إِلَّا طَمَسْتَهُ وَلَا قَبْرًا مُشْرِفًا إِلَّا سَوَّيْتَهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابو الهياج الاسديؒ روايت كوي چه ما ته علي بن ابي طالبؓ اُوفرمايل : آيا زهٔ تا په هغه كار نهٔ مقرروم چه په هغے باندے زهٔ رسول الله ﷺ مقرر كړے وم (هغه دا چه) ته هيڅ

تصویر مهٔ پریده مگر هغه ورانوه او اُوچت قبر مهٔ پریده مگر هغه همواره وه۔ (مسلم)۔

**تعارف د ابو الهياج الاسدی** : ددهٔ نوم حَیَّان بن حصین کوفی دے د ثقات التابعین نه شمار دے او د علی بن ابی طالبؓ پولیس او خصوصی ملګرے دے۔

**تشريح** : **تِمْثَالًا** : صورت نه وئیلے شی مراد ترے د ذی روح شی صورت دے۔

**طَمَسْتَهُ** : د باب د ضَرَبَ يَضْرِبُ نه دے۔ طمس محو کول او زائل کول او ورانولو ته وئیلے شی او د صورت محول کول دا دی چه د هغه نه سر پریکړے شی یا ئے مخ بدل کړے شی وغیره۔

**مُشْرِفًا** : دا د اشراف نه دے، متعدی په معنیٰ د لازم سره دے (اَشْرَفَ الشَّیْءُ أَیْ إِذَا ارْتَفَعَ) ۔ کله چه یو شے پورته شی نو هلته أَشْرَفَ لفظ استعمالیږی۔ دلته مراد هغه قبر دے چه په هغه باندے آبادے شوے وی او پورته کړے شوے وی۔ او د علماتو دپاره پرے کانړی، شره، ګیتی کیخودل جائز دی۔

جمهور علماء وائی چه ذکوم اُوچتوالی د قبر نه چه منع راغلے ده او د هغے د زائله کولو امر راغلے دے نو ددے نه تسنیم (ماهی پشت قبر جوړول) مراد نهٔ دی او نهٔ هغه اندازه چه په هغے سره قبر معلومیږی دے دپاره چه احترام ئے اُوشی بلکه ددے نه مراد ډیر اُوچتول دی کوم چه به په جاهلیت زمانه کښ اهل جاهلیت اُوچتول، آبادیانے به ئے پرے جوړولے۔ او هرچه تسنیم دے نو دا خو د نبی ﷺ د قبر طریقه وه او دا دومره اندازه ده چه د زمکے نه اُوچت ښکاره او جدا ښکاره شی او په یو روایت د بیهقیؒ کښ د جابرؓ نه نقل دی : (وَرُفِعَ قَبْرُهُ عَنِ الْأَرْضِ قَدْرَ شِبْرٍ) چه د رسول الله ﷺ قبر د زمکے نه د لویشت په اندازه پورته کړے شوے وو۔ (صححه ابن حبان) (بلوغ المرام)۔

علامه شوکانیؒ فرمائی : پدے حدیث کښ دا مسئله ده چه سنت دا ده چه قبر زیات پورته نکړے شی او پدے کښ د افضل انسان او غیر افضل فرق نشته، او ظاهر دا ده چه د شرعی اندازے نه زیات قبر پورته کول حرام دی او پدے باندے امام مالك او د امام احمد اصحابو او د امام شافعیؒ د اصحابو یو جماعت تصریح کړیده ۔ او پدے قبرونو پورته کولو کښ اول هغه قبے او ګنبدونه او آبادیانے داخل دی کوم چه د قبر دپاسه جوړے شوی وی او دا په اتخاذ القبور مساجد کښ داخل دی یعنی د قبرونو په خوا کښ سجده ګاه جوړول۔ او نبی ﷺ پداسے کار کونکی باندے لعنت وئیلے دے۔ او په قبرونو باندے قوی قوی آبادیانے جوړولو او هغه ښائسته کولو نه داسے مفاسد او ضرورنه خوریږی چه اسلام هغے ته ژاړی (او هغه حراموی) لکه ددے نه جاهلانو داسے عقیده جوړیږی لکه څنګه چه د کافرانو د بتانو په باره کښ عقیده وه او بیا دا خبره دے حد ته رسیږی چه هغه قبرونو والا د خیر په راخکلو او د شر په دفع کولو باندے قادر

گنړی او بیا خلق هغه د خپلو حاجتونو د پوره کولو دپاره مقصد او مرجع گنړی او هغه سوالونه ترې کوی چه بندگان ئې د خپل رب نه کوی او هغې طرف ته سفرونه کوی او د هغې کانړو پورې ځان راکاږی او مددونه ترې غواړی او آوازونه ورته کوی، خلاصه دا چه دوی هیڅ هغه کارونه پرینخودل کوم چه به جاهلیت والو د خپلو بتانو سره کول مگر هغه ئې پوره پوره اُوکړل انا لله وانا اليه راجعون۔ او داسې لوئې منکرات او قبيح كفر موجود دې بیا هم داسې خلق نشته چه هغه د الله دپاره غصه شي او ديني غيرت پکښې پيدا شي، نهٔ عالم، او نهٔ متعلم او نهٔ امير او نهٔ وزير او نهٔ بادشاه۔ او مونږ ته ډیر داسې يقيني خبرونه رارسيدلى دى چه ډیر قبر پرست خلق كله چه ورله څوك قسم وركوى نو په الله باندې په دروغه قسم كوى خو چه كله ورته اُووئيلې شى چه په خپل شيخ يا فلانى ولي باندې قسم اُوكړه نو هغه اَك بَكْ شى او انكار اُوكړى او د حق اقرار اُوكړى، نو دا ښكاره دليل دې پدې خبره چه ددې خلقو شرك د هغه خلقو (نصاراو) د شرك نه ډير پورته دې كوم چه وائي الله دريم دې د دريو نه نواې د دين علماؤ او اې مسلمانانو بادشاهانو ا د اسلام دپاره بل كوم مصيبت او خفگان د كفر نه زيات سخت دې او د عبادت د غير الله نه بل كوم مصيبت په اسلام باندې ډير ضرورى دې او مسلمانانو ته په رسيدلو د مصيبتونو كښې ددې نه بل كوم لوئې مصيبت دې او ددې نه پس به بل په كوم منكر باندې رد كولې شي۔

| لَـقَـدْ اَسْـمَـعْـتَ مَـنْ نَـادَيْـتَ حَيًّـا | | وَلٰـكِـنْ لَا سَـمَـاعَ لِـمَـنْ تُـنَـادِىْ |
|---|---|---|
| وَلَـوْ نَـارًا نَـفَـخْـتَ بِـهَـا اَضَـاءَ تْ | | وَلٰـكِـنْ اَنْـتَ تَـنْـفُـخُ فِـىْ رَمَـادِ |

(كه تا ژوندى ته آواز كړې وې نو ورته اُورولې به دې وو ليكن چا ته چه آواز كوې هغه دپاره طاقت د اوريدو نشته) (او كه تا سكروټې ته پوكې كولې نو رنړا به ئې كړې وې ليكن ته ايرو ته پوكى كوې) (نيل الاوطار٤/١٣١-١٣٢) والمرعاة (٥/٤٣٠)

ددې نه بعض علماؤ استدلال كړيدې چه څلور قنجه قبر جوړول افضل دى ځكه چه كه ماهى پشت شى نو بيا قبر اُوچت راځى ليكن دا دليل نيول غوره نهٔ دى ځكه چه مخكښې تير شو چه ددې نه د جاهليت والو په شان قبر ډير اُوچتول مراد دى او هرچه ماهى پشت جوړول دى نو هغه پكښې داخل نهٔ دى فتدبر۔

---

١٦٩٦ (٥) - وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ اَنْ يُّجَصَّصَ الْقَبْرُ وَاَنْ يُّبْنٰى عَلَيْهِ وَاَنْ يُّقْعَدَ عَلَيْهِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ ددیے نه منع فرمایلے ده چه قبر چونه کړے شی یا په هغے باندے آبادے جوړ کړے شی یا په هغے باندے ناسته اُوکړے شی۔ (مسلمؒ)۔

تشریح : يُجَصَّصَ الْقَبْرُ : په روایت د ابن ماجه وغیره کښ تقصص القبور راغلے دے د دواړو یوه معنیٰ ده، دیته وئیلے شی چه په جص (چونے او سیمنټو) سره مضبوط کړے شی۔ او خختو او بلاکونو سره جوړ کړے شی۔یعنی د قبرونو پخولو نه منع شویده۔ د جاهلیت زمانه کښ د قبرونو په چونے سره پخولو طریقه رائجه وه نو نبی ﷺ د هغے نه منع اُوفرمائیله۔

دا حدیث صریح دے چه د قبر چونه کول او پخول قطعی حرام دی۔ علامه عراقیؒ فرمائی : حکمت د نهی دا دے چه جص په اُور سوزولے شوی وی نو ددے وجه نه ختے سره لیو (اخیر) کول جائز دی لکه دا خبره امام شافعیؒ کړیده، علامه ابن قدامهؒ فرمائی : دا حدیث دلیل دے چه د قبر په خاورو لیو کول جائز دی ځکه چه پدے کښ صرف د تجصیص (چونه کولو، پخولو) تخصیص شویدے۔او عمر بن عبد العزیزؒ د پخو خختو نه د قبر جوړولو نه منع اُوکړه او په لیو کولو ئے وصیت اُوکړو او اسود بن یزیدؒ وصیت اُوکړو چه زما په قبر پخے خختے مه اچوئ۔ ابراهیم نخعیؒ فرمائی : صحابه کرام او تابعینو به په قبرونو کښ پخے خختے بدے گنړلے۔ ابن قدامهؒ فرمائی : د امام احمدؒ نه د تطیین (لیو کولو) د قبرونو باره کښ تپوس اُوشو نو هغه اُووئیل زما امید دے چه هیڅ باك به پرے نۀ وی او پدے کښ حسن بصریؒ، شافعیؒ رخصت ورکړیدے او امام احمدؒ په خپل سند نقل کړیدی د نافعؒ نه چه عبد الله بن عمرؓ به د خپل ورور عاصم بن عمر د قبر خیال ساتلو او ځوی د هغه په غیاب کښ وفات شوے وو کله چه راغلو نو د هغه باره کښ ئے تپوس اُوکړو نو موني ورته اُوخودلو نو هغه به د قبر خیال ساتلو او د هغے د روغولو حکم به ئے کولو۔ آه۔

او کوم روایت کښ چه دا راغلی دی چه مړی په قبر کښ اذان آوری ترڅو چه قبر ئے لیو شوے نۀ وی۔ (مسند الفردوس عن الحاکم) نو حافظ ابن حجرؒ فرمائی : ددے سند باطل دے، محمد بن قاسم الطالقانی پکښ وضاع راوی دے۔ او جعفر بن محمدؒ د خپل پلار نه نقل کړیدی چه د نبی ﷺ قبر د زمکے نه یو لویشت پورته کړے شو او د خوړ په سرۀ ختمه اخیر کړے شو آه۔ رواه ابوبکر النجاد (التلخیص الحبیر ١٦٥)

او فقه حنفی کښ دی :(وَيُكْرَهُ تَجْصِيصُ الْقَبْرِ وَتَطْيِينُهُ وَكَرِهَ اَبُوْحَنِيْفَةَ الْبِنَاءَ عَلَى الْقَبْرِ وَاَنْ يُعْلَمَ بِعَلَامَةٍ وَكَرِهَ اَبُوْيُوْسُفَ الْكِتَابَةَ عَلَيْهِ) (بدائع الصنائع ٣/٣٤٢) (چه قبر پخول او لیو کول په خاورو مکروه عمل دے او امام ابوحنیفهؒ بد گنړلی دی چه قبر باندے آبادے جوړ شی یا پرے څه نخه

اُولـكولے شي او امـام ابـويـوسف پـرے لیـکـل حرام گنړلي دي)۔ او اُوس زمونږ د زمانے دعويدار احنافو ته سوچ اُوكړئ آيا هغوی پدے خبرو عمل کوی؟!۔

**وَأَنْ يُبْنٰى عَلَيْهِ** : ددے آبادي جوړولو نه يا مراد دا دے چه په نفس قبر باندے دومره آبادي اُوكړی چه د زمکے نه ئے ډير پورته كړى۔ ۲- يا مراد د قبر نه گيرچاپيره آبادي ده لكه د هغے خواته كوټه جوړه كړى د منجور دپاره يا مسجد وغيره۔ (نوويؒ) نو دا حديث دليل دے چه د قبر په خوا كښې مسجد جوړول يا د هغے خواته د منجورانو دپاره كوټه جوړول حرام او منهى عَنْهُ دى۔ ځكه چه دا د جاهليت والو كار وو چه په قبر باندے به ئے خيمه وهله او پدے كښې مال ضائع كول هم دى۔ (توريشتيؒ)۔ او داسے قسم كوټه به نړولے شي او مسجد كه روستو جوړ شوے وو نو نړول ئے لازم دى۔عبد الله بن عمرؓ د خپل ورور عبد الرحمن په قبر باندے يوه خيمه اُوليدله، وے فرمايل : (فَقَالَ: اِنْزَعْهُ يَا غُلَامُ وَاِنَّمَا يُظِلُّهٗ عَمَلُهٗ) (اے غلام ! دا اُوباسه ځكه چه دهٔ باندے به خپل عمل سورے كوى)۔ (مرقاة)

كه څوك په قبرونو باندے قبے، گنبدونه او كمرے او هر قسم آبادي جوړوى نو پدے عظيمه كبيره گناه كښې به اخته كيږى او هميشه به ورته دا گناه رسيږى او كه مرى په ژوند كښې دا عمل خوښ گنړلو او دا خواهش ئے لرلو چه د هغه قبر پوخ كړے شي يا پرے عمارت جوړ كړے شي يا ئے وصيت كړے وى نو هغه ته به هم دغه گناه رسيږى۔

داسے صريح احاديث موجود دى او ددے سره قبر پرست د قبرونو نه تاويږى او د هغے د ښائسته كولو او په هغے باندے آبادئ جوړولو كښې مصروف دى او علماء ئے هم نهٔ منع كوى د دنياوى لالچ او د امامت د زائله كيدو د خاطره۔ يا د نوم نه يريږى چه خلق به راپسے خبرے كوى چه وهابى شويدے۔ والى الله المشتكىٰ والله المستعان۔

**وَأَنْ يُّقْعَدَ عَلَيْهِ** : يعني د قبر دپاسه كيناستل هم حرام دى لكه مثلاً يو مرے خخوى نور خلق د قبرونو دپاسه ورته انتظار كښې كينى نو دا كار حرام دے۔ وجه دا ده چه پدے كښې د مسلمان ورور سپكاوے او تحقير دے۔ بعض علماء وائى چه ددے نه مراد د قضاء حاجت (اُودس ماتى) دپاره كيناستل دى چه هغه حرام دى او هسے ناسته حرامه نهٔ ده۔ ليكن دا خبره صحيح نهٔ ده۔ دليل دا دے چه طبرانى او حاكم د عماره بن حزم حديث راوړيدے هغه فرمائى : زهٔ رسول الله ﷺ په قبر ناست اُوليدم وے فرمايل : (يَا صَاحِبَ الْقَبْرِ اِنْزِلْ مِنْ عَلَى الْقَبْرِ لَاتُؤْذِیْ صَاحِبَ الْقَبْرِ وَلَايُؤْذِيْكَ) (طبرانى فى الكبير وفيه ابن لهيعة وفيه كلام وَقَدْ وُثِّقَ (صحيح لغيره : صحيح الترغيب والترهيب ۳۵۶۶) (اے په قبر باندے ناست انسانه ! د قبر نه كوز شه، قبر والاته ضرر مهٔ وركوه او هغه تا ته (ستا د

ناستے د گناه په وجه) ضرر درنكړي)۔

او د ابن مسعود ﷺ نه نقل دی فرمائی : (لَاَنْ اَطَأَ عَلٰی جَمْرَةٍ اَحَبُّ اِلَیَّ مِنْ اَنْ اَطَأَ عَلٰی قَبْرِ مُسْلِمٍ) (طبرانی کبیر والخطیب، وصحیح الجامع رقم الحدیث : ۵۰۳۵ بسند صحیح) (كه زهٔ په سكروټه خپے كيدم دا ما ته ډيره خوښه ده ددے نه چه زهٔ د مسلمان په قبر باندے خپه كيدم)۔

او متصل راتلونكي حديثونه هم پرے دليل دے۔

۱- او هـمدا د حسن بصريؒ، ابن سيرينؒ، سعيد بن جبيرؒ، مكحولؒ، احمدؒ، اسحاقؒ، ابو سليمان داؤدؒ، او ډير شوافعو لكه امام نوويؒ وغيره قول دے چه مطلقاً په قبر كيناستل حرام دی۔ عينيؒ وئيلی دی چه دا كراهت مطلقاً د عبد الله بن مسعود، ابوبكره، عقبه بن عامر، ابو هريره، جابر رضی الله عنهم نه نقل دے او دا مذهب د اهل ظاهرو دے۔

۲- او امام ابو حنيفهؒ او صاحبينؒ او يو جماعت د شافعيه ؒ نه وئيلی دی چه په قبر باندے د قضاء حاجت نه بغير كيناستل فقط مكروه دی او حرام نهٔ دی او دغه شان په قبر دپاسه ګرځيدل او تكيه لګول دی۔ حافظ ابن حجرؒ فرمائی : امام نوويؒ د امام ابو حنيفهؒ مذهب د جمهورو په شان ګنړلے دے ليكن صحيح دا ده چه د هغه مذهب د امام مالك په شان دے لكه چه طحاويؒ ذكر كړيدے او هغه دا راتلونكے قول دے۔ (فتح البارى ۳/۲۲۴)

۳- او امام مالك او طحاوی وئيلی دی چه په قبر باندے كيناستل مكروه نهٔ دی او امام مالك احاديث د نهی د قضاء حاجت دپاره كيناستلو باندے حمل كړيدی ليكن امام نوويؒ فرمائی چه دا تاويل ضعيف او باطل دے۔ او امام احمدؒ وئيلی دی چه دا هيڅ شے نهٔ دے۔ امام طحاويؒ د خپل قول دپاره د ابن عمرؓ په عمل دليل نيولے دے چه هغه به په قبرونو كيناستو او دغه شان د علی ﷺ نه هم نقل دی او د زيد بن ثابت نه نقل دی چه نبی ﷺ په قبر باندے د غتو يا وړو بولو دپاره كيناستو نه منع كړيده۔ (قال الحافظ ابن حجر : رجاله ثقات)۔ او امام بخاری هم په خپل صحيح كښ دا رأی راجح كړيده او آثار ئے راوړی ليكن زمونږ په نيز راجح د كيناستو نه منع ده۔

ليكن علامه سندیؒ وئيلی دی چه ظاهر دا ده چه دا احاديث په خپل ظاهر باندے حمل دی ځكه چه ددے تائيد دا دے چه پدے كښ منع راغلے ده د خپے كيخودلو نه هم۔ او علامه ابن حزمؒ فرمائی : دا تاويل د طحاوی ځكه خطاء دے چه په حديث د ابو هريرهؓ كښ (روستو) راځی : (لَاَنْ يَّجْلِسَ اَحَدُكُمْ عَلٰی جَمْرَةٍ فَتُحْرِقَ ثِيَابَهٗ) چه هيڅوك داسے نشته چه غائط (غټو بولو) ته د جامو دپاسه كينی نو دا دليل شو چه دلته كيناستل په خپل حقيقت باندے بناء دی او د متيازو دپاره كيناستل مراد نهٔ دی۔ او ابن بطال هم دغه تاويل ته باطل وئيلے دے۔ او وئيلی ئے دی چه د متيازو

دپاره کیناستل خو ډیر قبیح دی د هسې کیناستو نه ځکه چه هسې کیناستل منع دی نو غائطو دپاره کیناستل خو په طریق اولیٰ منع دی۔ مرفوع احادیث پدې دلالت کوی چه دلته ظاهری کیناستل مراد دی او کوم صحابي چه دا د قضاء حاجت دپاره کیناستو باندې حمل کړیدی نو دا د هغوی اجتهاد دې چه د مرفوع احادیثو خلاف دې، یا به هغوی ته حدیث د نهی نهٔ وی رسیدلې، لهذا په مرفوع احادیثو به عمل وی او په همدې کښې احتیاط دې۔

---

١٦٩٧ (٦) – وَعَنْ أَبِيْ مَرْثَدٍ الْغَنَوِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «لَا تَجْلِسُوْا عَلَى الْقُبُوْرِ وَلَا تُصَلُّوْا إِلَيْهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابو مرثد الغنوی فرمائی رسول الله ﷺ فرمایلی دی :« په قبرونو مهٔ کینئ او مهٔ هغې طرف ته مونځ کوئ »۔ (مسلم)۔

**تعارف د ابو مرثد الغنوی ﷺ** : دا نسبت دې غنی بن یعصر ته، ددهٔ نوم کناز بن الحصین بن یربوع، مشهور بدری صحابي دې، په اسم کنیه مشهور دې د حمزه بن عبد المطلب حلیف وو۔ او د هغه همزولې وو۔ ابن عبد البرّ فرمائی : نبی ﷺ ددهٔ او د عباده بن صامت ترمینځ مواخات کړې وو، ټولو غزواتو ته د رسول الله ﷺ سره حاضر شویدې او د هجرت په سنه (١٢) کښې د ابوبکر صدیق په خلافت کښې د (٦٦) کالو په عمر وفات شو او دا د قد نه اُوږد، ډیر ویښتو والا شخص وو او په شامیینو کښې شمار دې۔

**تشریح : لَا تَجْلِسُوْا**: دا واضح دلیل دې چه په قبر باندې مطلقاً کیناستل حرام دی لکه چه همدا صحیح قول وو۔ علامه ابن همامؒ وئیلی دی چه : په قبر باندې کیناستل او په هغې باندې خپې کیخودل مکروه دی نو پدې وخت کښې چه عام خلق کوم کار کوی چه خپلوان ئې یو ځائې کښې دفن وی بیا هلته نور خلق هم دفن شوی وی نو دا د هغوی په قبرونو خپې اړدی او د خپلوان قبر ته ځان رسوی نو دا مکروه او بد کار دې او دغه شان د قبر په خوا کښې خوب کول او قضاء حاجت کول مکروه دی بلکه دا زیات بد کار دې او هر هغه کار مکروه دې چه هغه په سنت کښې معلوم نهٔ وی او په سنت کښې صرف د قبر زیارت معلوم دې او د قبر په خوا کښې په ولاړه دعاء لکه څنګه چه به رسول الله ﷺ کولو چه کله به بقیع ته اُووتلو۔ آه۔

**وَلَا تُصَلُّوْا إِلَيْهَا**: یعنی قبر ته مخ کولو سره مونځ حرام دې ځکه چه پدې کښې زیات تعظیم د قبر دې۔ که حقیقةً دا تعظیم د قبر کوی یا د صاحب قبر نو پدې سره تعظیم کونکې کافر کیږی۔ نو دغه شان د هغه سره تشبه حرام ده او په حدیث د انسؓ کښې دی : (إِنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهٰى عَنِ الصَّلَاةِ

بَيْنَ الْقُبُوْرِ) (بزار- ورجاله رجال الصحيح قاله الهيثمى فى المجمع (٢/٢٧) (نبی ﷺ د قبرونو ترمینځ د مونځ کولو نه منع کړیده)۔ لهذا که قبر شا ته وی او که مخې ته نو مونځ کول حرام دی۔

١٦٩٨ (٧) - وَعَنْ أَبِىْ هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «لَأَنْ يَّجْلِسَ أَحَدُكُمْ عَلٰى جَمْرَةٍ فَتُحْرِقَ ثِيَابَهُ فَتَخْلُصَ إِلٰى جِلْدِهٖ خَيْرٌ لَّهُ مِنْ أَنْ يَّجْلِسَ عَلٰى قَبْرٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :« که یو تن په تاسو کښې په یوه سکروټه کینی او ددهٔ جامه اُوسیزی او د هغې نه ددهٔ بدن ته اُورسیږی دا غوره ده دهٔ لره ددې نه چه د قبر دپاسه کینی »۔ (مسلم)۔

**تشریح : فَتَخْلُصَ:** د خلص په صله چه کله الی راشی نو په معنی د رسیدلو وی۔

علامه طیبیؒ وائی : لکه څنګه چه اُور د انسان د جامې نه دننه څرمنې نه سرایت اُوکړی او انسان پرې خبر نهٔ وی نو دغه شان ددې انسان زړهٔ ته ددې ګناه لو ضرر سرایت اُوکړو او دا پرې خبر نهٔ دې۔

دا حدیث هم صریح دلیل دې چه په قبر باندې کیناستل اګرکه د قضاء د حاجت دپاره نهٔ وی حرام دی او د عبد الله بن عمرؓ نه چه جواز نقل دې نو هغه محمول دې پدې چه هغه ته نهی نهٔ وه رسیدلې۔ (انظر معرفة السنن والآثار للبيهقى (٦/٣٣٣) او کوم مرفوع روایت د ابو هریرةؓ کښې چه داسې راغلی دی : (مَنْ جَلَسَ عَلٰى قَبْرٍ يَبُوْلُ إِلَيْهِ أَوْ يَتَغَوَّطُ فَكَأَنَّمَا جَلَسَ عَلٰى جَمْرَةٍ) (څوك چه به قبر باندې کیناستو د بول یا غائطو دپاره نو ګویا کښې دا په سکروټه کیناستو) نو دا روایت ضعیف دې۔ (طحاوى ١/٥١٧) قال الحافظ فى الفتح (٣/٢٢٤) اسناده ضعيف)

او دغه روایت ته شیخ البانیؒ منکر وئیلې دې ځکه چه دا ددې مرفوع حدیث خلاف دې۔ (السلسلة الضعيفة : ٩٦٦)

## الفصل الثانی

١٦٩٩ (٨) - عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ: كَانَ بِالْمَدِيْنَةِ رَجُلَانِ أَحَدُهُمَا يَلْحَدُ وَالْآخَرُ لَا يَلْحَدُ. فَقَالُوْا: أَيُّهُمَا جَاءَ أَوَّلًا عَمِلَ عَمَلَهُ. فَجَاءَ الَّذِىْ يَلْحَدُ فَلَحَدَ لِرَسُوْلِ اللهِ. رَوَاهُ فِىْ شَرْحِ السُّنَّةِ.

ترجمه : عروه بن الزبیرؓ فرمائی : په مدینه کښې دوه سری وو یو به لحد ویستلو او بل به لحد نهٔ ویستلو (یعنی شق به ئې جوړولو) (نو کله چه نبی کریم ﷺ وفات شو) صحابه کرامو

اُوفـرمـايـل : پدے دوارو کښې چه کوم اول راغلو هغه به خپل عمل کوی۔ نو هغه سرے چه لحد به ئے جوړولو راغلو نو هغه د رسول الله ﷺ دپاره لحد جوړ کړو۔ (شرح السنه)۔

**تشريح** : د رسول الله ﷺ د وفات نه روستو د صحابه کرامو يو پدے خبره کښې اختلاف شو چه د رسول الله ﷺ دپاره څنګه قبر اُوکنو، څکه چه په مدينه کښې به دوه قسمه قبرونه کنستلے کيدل يو لحد (چه د قبر په کنده کښې بنې طرف ته يو څيرې ځائے د بغل په شکل) او دويم شق (د قبر د کنـدے پـه مـيـنـځ کښې يو څيرې ځائے ويستل او مړے په هغے کښې کيخودل) وو، ابو طلحه زيد بن سهل الانصارى ﷺ بـه لـحد ويستلو او ابوعبيده بن الجراح به شق کنستلو۔ نو فيصله ئے داسے اُوکړه چـه دوه کسانو پسے جواب اُوليږئ کوم چه اول راغلو بس هغه به قبر اُوباسى نو پـدے کښې ابوطلحه د لحد والا مخکښې راغلو، ددے نه معلوميږى چه الله ته لحد زيات غوره وو څکه ئے د خپل غوره رسول دپاره دغه غوره عمل منتخب کړو۔

او دا حـديـث دلـيـل دے چـه شق او لـحـد دواړه قسمه قبرونه کنستل جائز دی ولے که يو پکښې نـاجـائـز وے نـو دا عـمـل بـه تر مرګ د رسول الله ﷺ پورے هميشه نهٔ پاتے کيدے، او حال دا چه دا دواړه قسـمـه قـبـرونـه بـه غـوره صحابه کرامو ويستل چه هغه دواړه جنتيان دی۔ (باجیؒ) او امام بخاریؒ د دواړو امرينو جواز ته اشاره کړيده، داسے باب ئے لګولے دے۔ (باب اللحد والشق ١/ ٨٠)

**درجة الحديث** : اسـنـاده صـحـيـح : مالك فى الموطأ (١/ ٢٢١) والبغوى فى شرح السنة (١٥١٠) ولـه شـاهـد عند ابن ماجه (١٥٥٧) واحمد (٣/ ٩٩) قال فى ((الزوائد)) مبارك بن فضالة وثقه الجمهور وصرح بـالـتـحـديـث فزالت تهمة تدليسه وباقى رجال الاسناد ثقات فالاسناد صحيح وحسنه الحافظ فى التـلـخـيص (٢/ ١٢٨) وانظر البدر المنير فى تخريج الاحاديث والآثار الواقعة فى الشرح الكبير (٥/ ٢٠٠) وتعليق المشكاة لرمضان (٢/ ٦٧٧) وله شاهد حسن عند ابن ماجه (١٥٥٨) (زبير عليزى)۔

---

**١٧٠٠ (٩) — وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «اَللَّحْدُ لَنَا وَالشَّقُّ لِغَيْرِنَا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَاَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.**

ترجمه : او ابـن عبـاس رضى الله عنهما فرمائى : رسول الله ﷺ فرمايلى دى: «لحد يعنى (د بغل والا قبر) زمونږ دپاره دے او شق (يعنى د صندوقچے په شان قبر) د نورو دپاره دے »۔ (ترمذیؒ، ابوداودؒ، ابن ماجهؒ)۔

**تشريح** : ددے غـوره مـطـلـب دا دے چـه لـحـد زمـونږ د مسلمانانو دپاره دے او شق د پخوانو امتونو دپاره وو نو پدے کښې اشاره ده چه لحد غوره دے په شق باندے۔او پدے کښې نهى د شق نه

نشته څکه چه ابوعبيدهؓ په دين کښې ډير جليل القدر او امين صحابي دے او هغه به شق والا قبرونه ويستل۔ او که دا منع وے نو بيا صحابه کرامؓ ولے داسے فيصله کوله چه کوم اول راغلو بس هغه به قبر اُوباسي۔ او کوم روايت کښې چه نهي د شق نه راغلے ده هغه ضعيف دے۔

۲- بعض وائي : اللحد لنا معنیٰ ده لحد زمونږ د انبياؤ دے او شق د غير انبياؤ دپاره دے۔

۳- يا لحد زمونږ مسلمانانو دپاره دے او شق د يهود او نصاراؤ دپاره دے۔ خو على كل حال په دے کښې نهي د شق نه نشته۔ والله تعالیٰ اعلم۔

**درجة الحديث**: اسناده حسن : ابوداود (۳۲۰۸) والترمذی (۱۰۴۵) وقال حديث حسن غريب، والنسائی (۴/۸۰) وابن ماجه (۱۵۵۴) وابن سعد فی الطبقات (۳/۷۲) والبيهقی (۳/۴۰۸) وهو ضعيف لكن الحديث حسن بشواهده التی ذكرها المؤلف بعده۔

---

۱۷۰۱ (۱۰) - وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ جَرِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : مسند احمد (۴/۳۵۷،۳۵۹،۳۶۲) وابن ماجه (۱۵۵۵) من طرق ضعيفة عن زاذان عنه والحديث صحيح للشاهد السابق۔

---

۱۷۰۲ (۱۱) - وَعَنْ هِشَامِ بْنِ عَامِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ يَوْمَ أُحُدٍ: «اِحْفِرُوْا وَأَوْسِعُوْا وَأَعْمِقُوْا وَأَحْسِنُوْا وَادْفِنُوْا الْاِثْنَيْنِ وَالثَّلَاثَةَ فِيْ قَبْرٍ وَاحِدٍ وَقَدِّمُوْا أَكْثَرَهُمْ قُرْآنًا». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَرَوَى ابْنُ مَاجَه إِلَى قَوْلِهٖ وَأَحْسِنُوْا.

---

ترجمه : او د هشام بن عامر نه روايت دے چه نبي کريم ﷺ د اُحد په ورځ اُوفرمايل :« کندے اُوباسئ او جورئے کړئ او ښائسته ئے کړئ او دوه او درے کسان په يو قبر کښې دفن کړئ او (قبلے طرف ته) مخکښې کړئ هغه څوک چه زيات وی د دوی نه په قرآن يادولو کښې »۔ (احمدؒ، ترمذیؒ، ابوداودؒ، نسائیؒ او ابن ماجه ددے قول وَأَحْسِنُوْا پورے روايت کړے۔

**تعارف د هشام بن عامر** : هشام بن عامر بن امية بن الحسحاس النجاری الانصاری دا او ده پلار دواړه صحابه دی، بعض وائی ددهٔ نوم شهاب وو نبي ﷺ ورله نوم هشام سره بدل کړو، په بصره کښې اُوسيدلے دے، او بيا هلته وفات شويدے او د زياد د حکومت پورے ژوندے وو۔

**تشريح** : نبي ﷺ چه کله د جنګ احد نه فارغ شو او شهيدانو باره کښې ئے حکم اُوکړو چه دا دفن کړئ نو انصار راغلل او دائے اُوئيل چه اے د الله رسوله ! مونږ ته زخمونه رسيدلی دی او

مونږ ته د هر انسان دپاره قبر كنستل گران دى نو نبى ﷺ اُوفرمايل چه لويه كنده اُوكنئ او دوى دوه او درے په يو يو قبر كښ دفن كړئ.

اِحْفِرُوْا: ددے امر نه دا معلومه شوه چه د مړى دفن كول فرض دى او هسے په داكه پريخودل د انسان بے عزتى ده.

وَاَعْمِقُوْا : د قبر د ژور والى هيڅ شرعى حد نشته صرف دومره به ئے ژور كړى چه د مړى جثه پټه شى او درنده ئے راونهٔ باسى يا سيلاب ئے وينسى. عمر بن الخطابؓ حكم كړے وو چه تاسو قبر د سړى د قامت او بدن په اندازه ژور كړئ. (ابن ابى شيبة وابن المنذر - ذكره الشوكانى فى النيل)

امام احمدؒ وائى : تر سينے پورے به ئے ژور كړى، او همدا د حسنؒ او ابن سيرينؒ نه هم نقل دى.

عمر بن عبد العزيزؒ وائى : تر نامه پورے. (المرعاة ٥/٤٣٧)

د امام ابوحنيفةؒ نه نقل دى چه د نيمائى قامت پورے به وى او كه زيات شو نو افضل ده.

راجح دا ده چه د يو قامت په اندازه ژور كړے شى لكه چه دا قول د عمر فاروق دے. (فقه السنة ١/٥٤٤)

وَاَحْسِنُوْا : ١- يعنى مړى سره په دفن كولو سره احسان اُوكړئ. ٢- يا معنىٰ دا ده چه د مړى قبر ښائسته كړئ په ژور والى سره، برابر ئے كړئ او د زياتى خاورو او خشاكونه ئے اُوساتئ او هسے كندے ته ئے مه گوزارئ ځكه دا د مړى حق دے په ژوندو باندے چه قبر به ورله ژور وى.

وَادْفِنُوا الْاِثْنَيْنِ: دا دليل دے چه په وخت د ضرورت كښ دوه او درے كسان په يو قبر كښ دفن كول جائز دى ليكن مينځ كښ به ئے د خاورو څه فاصله وركړى، دا به په منزله د بيل بيل قبر شى. او كه ضرورت نهٔ وى نو دا كار مكروه دے، بلكه هر مړى له جدا جدا قبر ضرورى دے. او همدا قول د شافعىؒ، احمدؒ او ابوحنيفةؒ دے.

اَكْثَرُهُمْ قُرْآنًا : دا دليل دے چه د علم او عمل په لحاظ د عظيم شخصيت تعظيم كول پكار دى كه ژوندى وى او كه مړے. او د قرآن عظمت پكښ دے.

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : احمد (١٩/٤) وابوداود (٣٢١٥) والترمذى (١٧١٣) وقال : هذا حديث حسن صحيح والنسائى (١٨/٤) وابن ماجه (١٥٦٠).

---

١٧٠٣ (١٢) - وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: لَمَّا كَانَ يَوْمُ اُحُدٍ جَاءَتْ عَمَّتِىْ بِاَبِىْ لِتَدْفِنَهُ فِىْ مَقَابِرِنَا فَنَادٰى مُنَادِىْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ : «رُدُّوا الْقَتْلٰى اِلٰى مَضَاجِعِهِمْ». رَوَاهُ اَحْمَدُ

وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَلَفْظُهُ لِلتِّرْمِذِيِّ.

**ترجمه :** او جابر ﷺ فرمائي : كله چه د اُحد ورځ شوه نو زما ترور (د پلار خور) زما پلار (د احد د ميدان نه خپل كلي مدينے ته) راوړو دے دپاره چه زمونږ په مقبره كښ ئے دفن كړى نو د رسول الله ﷺ يو آواز كونكي آواز اُوكړو چه شهيدان خپلو د شهيد كيدو ځايونو ته واپس كړئ.
(احمدؒ، ترمذيؒ، ابوداودؒ، نسائيؒ، دارميؒ او الفاظ د ترمذي دي).

**درجة الحديث:** اسناده صحيح : احمد (٣/٢٩٧) والدارمي (١/٢٢،٢٣) وابوداود (٣١٦٥) والترمذي (١٧١٧) وقال : هذا حديث حسن صحيح ونجيح ثقة والنسائي (٤/٧٩) وابن ماجه (٦/١٥).

**تشريح : عَمَّتِيْ :** ددے نوم فاطمه بنت عمرو بن حرام انصاريه ده لكه په روايت د طيالسي كښ د هغے نوم ذكر دے.

**بِأَبِيْ :** دا باء د تعديت دپاره ده.

د جابرؓ د ارشاد مطلب دا دے چه كله په غزا د اُحد كښ بعض مسلمانان شهيدان شو نو زما پلار هم په هغه شهيدانو كښ وو. زما ترور زما والد محترم د ميدان جنگ نه مدينے ته راوړو، راروان شو چه په خپله مقبره يعنى بقيع كښ دفن كړے شي ليكن د رسول الله ﷺ د طرف نه يو شخص اعلان اُوكړو چه شهيدان كوم ځائے شهيدان شوى دى هملته دے دفن كړے شي نو بيرته واپس كړے شو.(بيهقي ٤/٧٥)

**مسئله :** آيا مړى د خپل ځائے د وفات نه نقل كول جائز دى ؟

جواب دا دے چه مړى كوم ځائے وفات شي نو سنت عملي د رسول الله ﷺ او د تولو مسلمانانو دا دے چه د هغه ځائے نه به نشي نقل كولے. البته كه لږ نزدے نقل كړے شي نو هيڅ حرج نشته لكه مثلاً يو ميل يا دوه درے ميله. يا مثلاً په خپله علاقه كښ په لاره وفات شي او كور ته نقل كړے شي، د كفن او غسل وغيره دپاره.

**دلائل : ١ - دليل :** دا حديث الباب صريح دليل دے چه مړى د خپل ځائے د مرگ نه نقل كول حرام دى او ددے د شهيدانو پورے خاص كولو باندے هيڅ دليل نشته بلكه حكم ئے د وجه د راتلونكو دلائلو نه عام دے.

**٢- دليل :** عبد الرحمن بن ابى بكر (د عائشے ورور) په حبشي علاقه كښ چه مكے ته قريب ځائے وو) وفات شو نو مكے ته راوړے شو او هلته دفن كړے شو، كله چه عائشهؓ مكے ته راغله نو د عبد الرحمن قبر ته ورغله او بيا ئے اُوفرمايل : (وَاللّٰهِ لَوْ حَضَرْتُكَ مَا دُفِنْتَ إِلَّا حَيْثُ مِتَّ وَلَوْ شَهِدْتُكَ

مَا زُرْتُكَ) (ترمذی ۱/ ۲۰۳) وسیأتی فی الفصل الثالث (۲۵)۔

(قسم په الله که زۀ ستا مرگ ته حاضره شوې وې نو ته به نۀ وې دفن شوې مګر هغه ځائې چه ته وفات شوې وې او که زۀ تا ته حاضره شوې وې نو زۀ به ستا د قبر ملاقات ته نۀ راتلې)۔ نو د عائشہؓ په نیز هم د مړو نقل کول مکروه اوبد عمل دې۔

۳- **دلیل** : ابوعبیده بن الجراح په فحل علاقه کښې وفات کیدو وې فرمایل : (اِدْفِنُوْنِیْ خَلْفَ النَّهْرِ ثُمَّ قَالَ: اِدْفِنُوْنِیْ حَیْثُ قُبِضْتُ) (بیهقی) (ما د نهر شا ته خښ کړئ بیائې اُوفرمایل : ما نه چه کوم ځائې روح اُوځی نو هلته مې دفن کړئ)۔

او د سعد بن ابی وقاص او سعید بن زید په باره کښې چه دا نقل دی چه دوی د عقیق نه مدینې ته رانقل شویدی او په مدینه کښې دفن شویدی۔ نو ددې یو جواب دا دې چه دا په صحیح سند ثابت نۀ دی (کما فی الموطأ ۱/ ۲۱۳) ونیل الاوطار (٤/ ١٦٧)

۲- دویم جواب دا دې چه عقیق مدینې ته نزدې دې او مونږ مخکښې اُوویل چه نزدې ځائې کښې خو نقل کول جائز دی مثلاً مقبره دوه درې میله فاصله کښې وی۔

البته که ضرورت راپیښ شی مثلاً د هغه په قبر باندې د اعتداء او زیاتی یره وی، دشمنان ئې راوباسی، یا ئې بې عزتی کیږی، یا مقبره مغصوبه زمکه وی۔ نو پدې صورتونو کښې به د مړی نقل کول جائز وی۔ نو کوم خلق چه مړی د یو ملك نه بل ملك ته نقل کوی نو دا سوچه حرام کار کوی او ډیر مسلمانان بزرګان هم پدې کار کښې اخته دی۔ نسأل الله العصمة۔ او که د دفن کولو نه روستو نقل کوی نو دا خو ډیر جرم دې مګر که یو ضرورت راپیښ شی نو جواز ئې لکه مثلاً زمکه لمده وی، یا د قبر زمکه پردئ اُوخیژی۔ یا مړې شریك د بل مړی سره خښ شوې وی او وارثان په زړۀ کښې ددې نه یو پریشانی محسوسوی نو بیا جواز لری خو پدې شرط چه ځائې به نزدې وی لکه جابر بن عبد الله خپل پلار چه د بل چا سره یو قبر کښې دفن شوې وو شپږ میاشتې روستو راوېستو او بقیع ته ئې راوړو او هلته ئې دفن کړو۔ والله تعالیٰ اعلم۔

احناف وائی : چه د دفن کولو او کچه خښتو د لګولو نه مخکښې یا مطلقاً نقل کول جائز دی او امام محمدؒ دا مقید کړیدې په یو یا دوه میلونو ځکه چه د کلی مقبرې همدومره مسافت کښې وی او که ددې مسافت نه زیات وی نو مکروه ده۔

۲- بعض علماء وائی : د مړی د یو کلی نه بل کلی ته نقل کول مکروه دی ځکه چه پدې کښې تاخیر د دفن راځی او تعریض دې بې عزتئ د مړی ته۔ او نص کښې منع راغلې ده هر علت چه وی۔

١٧٠٤ (١٣) – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : سُلَّ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ. رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ.

---

**ترجمه** : او ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي : رسول الله ﷺ (په قبر كښ د كيخودو په وخت كښ) د سر د طرف نه راويستلې شوې وو. (شافعیؒ).

**تشريح** : سُلَّ: په تشديد د لام سره صيغه د مجهول ده. سل د يو شي په آرام او نرمۍ سره او په تدريج سره راويستلو ته وئيلې شي. (نهايه) يعني رسول الله ﷺ چه د كټ نه راويستلې كيدو او قبر ته خكته كولې شو نو د سر د طرف نه راوويستلې شو.

## مړے به قبر ته په کومه طريقه داخلولے شي ؟

علامه سندیؒ وائي : ددے صورت دا دے چه كټ د مړي د قبر آخر ته كيخودلے شي او مړے د هغے نه راپورته كړے شي او په لحد كښ كيخودے شي او په دے طريقه په اُوس زمانه كښ هم عمل دے او همدا آسانه طريقه ده. او زمونږ احناف وائي چه مړے به د قبلے د طرف نه قبر ته داخل كړے شي او لحد كښ به كيخودلے شي نو د مړي راخستونكے به په حالت د راخستو كښ قبلے ته مخامخ وي خو دا اختلاف په افضليت كښ دے. (سندیؒ)

٢ – امام شافعيؒ او احمدؒ او اكثر علماء وائي چه ددے طريقه دا ده چه مړے په قبر كښ د سر د طرف نه داخل كړے شي پدے طريقه چه سر د جنازے د قبر په آخر كيخودلے شي بيا مړے قبر ته راداخل كړے شي او همدغسے د كټ نه راويستلے شي. او همدا سنت طريقه ده او دا حديث ئے دليل دے.

٢ – **دليل** : ابواسحاق فرمائي : حارث (اعور) وصيت اُوكړو چه په هغه باندے عبد الله بن يزيد مونځ اُوكړي نو (د وصيت مطابق) هغه پرے مونځ اُوكړو (ثُمَّ أَدْخَلَ مِنْ قِبَلِ رِجْلَيِ الْقَبْرِ وَقَالَ : هٰذَا مِنَ السُّنَّةِ) (ابن ابي شيبة ٣٢٨/٣) وابوداود (٦١٩/٢) رقم (٣٢١١) والبيهقي (٥٤/٤) وسنده صحيح (بلوغ المرام رقم :٤٧٤) (بيا ئے هغه قبر ته د خپو د طرف نه داخل كړو او وے فرمايل چه همدا سنت طريقه ده). ابن همامؒ هم دے حديث ته صحيح وئيلے دے. او من السنة لفظ چه كله صحابي اُووائي نو دا مرفوع حديث وي كما قال البيهقي واقره الزيلعيؒ.

٣ – **دليل** : عبد الله بن عمرؓ يو مړے د خپو د طرف نه قبر ته داخل كړو. (مصنف ابن ابي شيبة ٣٢٧/٣) او همدا د شعبيؒ او عمر بن عبد العزيزؒ نه هم نقل دي او شعبيؒ وائي : (هٰذَا وَاللهِ السُّنَّةُ) (قسم په الله همدا سنت عمل دے).

او همدا په مرفوع حديث كښې راغلى دى او امام ابن ابى شيبه بعض آثار نقل كړيدى چه دلالت كوى پدے چه مړے به د قبلے طرف نه قبر ته داخلولے شى ليكن هغے كښې مرفوع صحيح حديث نشته۔ او روستو چه كوم مرفوع حديث د ابن عباسؓ راروان دے هغه ضعيف دے۔ او دغه شان بيهقى (٤/٥٤) بعض ذكر كړيدى نو بس عمل به په مرفوع حديث وى۔ والله تعالىٰ اعلم۔
(راجع احكام الجنائز ص (١٥٠) رقم المسألة (١٠٣) وتوضيح الاحكام ٢/ ٥٤٠ رقم : ٤٧٤)۔

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف ومعناه صحيح: شافعى فى المسند (٥٩٨) والبيهقى فى الكبرى، (٤/٥٤) فيه عمر بن عطاء ضعفه يحيى والنسائى وقال مرة ليس بشىء۔

---

**١٧٠٥ (١٤) - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ : أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ دَخَلَ قَبْرًا لَيْلًا فَأُسْرِجَ لَهُ بِسِرَاجٍ فَأَخَذَ مِنْ قِبَلِ الْقِبْلَةِ وَقَالَ : «رَحِمَكَ اللّٰهُ إِنْ كُنْتَ لَأَوَّاهًا تَلَّاءً لِلْقُرْآنِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ: إِسْنَادُهُ ضَعِيْفٌ.**

**ترجمه**: او ابن عباس رضى الله عنهما روايت كوى چه نبى كريم ﷺ (د يو مړى د كيخودو دپاره) د شپے قبر ته داخل شو او هغه دپاره يوه ډيوه بله كړے شوه نبى كريم ﷺ مړے د قبلے د طرف نه اُونيولو (او قبر ته ئے كوز كړو) او دا ئے اُوفرمايل چه «الله دے په تا رحم اُوكړى يقيناً ته (د الله د يرے نه) ډير ژړيدونكے او د قرآن ډير لوستونكے وے»۔ (ترمذى، او په شرح السنه كښې ئے وئيلى دى : چه ددے سند ضعيف دے)۔

**تشريح** : دا مړے بعض وائى : عبد الله بن عَبْدِ نُهْم المزنى ذو البجادين وو كوم چه د رسول الله ﷺ لاريښود وو۔ او د تبوك په مقام كښې كله چه دوى غزا د تبوك ته تلى وو په خپل مرګ وفات شوے وو نو رسول الله ﷺ د شپے دفن كړو۔ او داسے ئے اُوفرمايل : اے الله ! زۀ دده نه راضى يم ته هم ترے راضى شه، ابن مسعودؓ فرمائى: ارمان چه زۀ ددے قبر والا وے۔ دا صحابى تره ترلے وو او جامے ئے ترے هم ويستلے وے چه تا ولے ايمان راوړيدے بيا مور ورله يو څادر وركړو او هغه ئے ورله په مينځ پريكړو نو يو نه ئے لنګ اُووهلو او بل ئے د ځان نه تاو كړو او مدينے ته ئے هجرت اُوكړو پدے وجه ئے ورته ذو البجادين هم وئيلو۔ (يعنى دوه څادرونو والا) (الفائق فى غريب الحديث ١/٨٠) للزمخشرى) والسيرة النبوية لابن كثير ٤/٣٣)۔

پدے روايت كښې د شپے د دفن مسئله صحيح ده ځكه چه د نورو رواياتو نه ئے معنىٰ صحيح ده لكه چه هغه مخكښې تير شويدى او په روايت د ابن ماجه رقم (١٢٣٤) او ترمذى (١٧٨) كښې

په صحيح سند ثابت دي۔ او هرچه د قبلې د طرف نه داخلول دي نو دا ضعيف دي ځکه چه روايت ضعيف دے۔

**لَأَوَّاهًا** : (اى كَثِيْرَ التَّأَوُّهِ مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ) (يعنى د الله د يرے نه ډير اُوه اُوه كونكے وے، يعنى ډيره عاجزى كونكے۔ او اَوّاه هغه چا ته وائى چه زړۀ ئے هميشه د الله په ياد باندے خوزيږى۔ ٢ – بعض وائى : اواه كثير البكاء او كثير الدعاء ته وئيلے شى يعنى چه ژړا پكښې ډيره وى او ورسره د الله نه دعاګانے هم زياتے غواړى ځكه چه دعاء او ژړا سره په انسان كښې عاجزى پيدا كيږى چه هغه ته الله ډيره خوښه ده۔

**تَلَّاءً** : (اى كَثِيْرَ التِّلَاوَةِ) يعنى ډير تلاوت كونكے وے۔

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف لكن موضع الشاهد منه وهو الدفن ليلاً حسن : الترمذى (١٠٥٧) وقال حسن وانكر عليه الزيلعى فى نصب الراية (٣٠٠/٢) وقال : لان مداره على الحجاج بن ارطاة وهو مدلس ولم يذكر سماعاً والمنهال بن خليفة راويه عن الحجاج ضعيف فقول الترمذى ليس بحسن۔

---

**١٧٠٦ (١٥) – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ إِذَا أُدْخِلَ الْمَيِّتُ الْقَبْرَ قَالَ: «بِسْمِ اللّٰهِ وَبِاللّٰهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ». وَفِيْ رِوَايَةٍ: «وَعَلٰى سُنَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَرَوٰى أَبُوْدَاوُدَ الثَّانِيَةَ.**

**ترجمه** : او د ابن عمر رضى الله عنهما نه روايت دے چه نبى كريم ﷺ به چه كله مړے قبر ته داخلولو نو داسے به ئے فرمايل : بسم الله الخ د الله په نوم او د الله د حكم مطابق او د رسول الله (ﷺ) په شريعت باندے (دے قبر ته كوزوم)۔ او د يو روايت الفاظ داسے دى : او د رسول الله (ﷺ) په سنت باندے۔ (يعنى د مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ په ځائے عَلٰى سُنَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ الفاظ راغلى دى)۔ (احمدؒ، ترمذىؒ، ابن ماجهؒ او دويم روايت ابوداؤدؒ نقل كړے)۔

**تشريح** : دا حديث دليل دے چه د مړى سپاردونكى له واجب دى چه دا ذكر اُوكړى۔ ځكه په بل روايت كښې پدے باندے امر راغلے دے۔

او په دے باب كښې څلور قسمه الفاظ راغلى دى او تول صحيح دى اول : بِسْمِ اللّٰهِ وَبِاللّٰهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ۔ لكه دے روايت كښې راغلل۔ (والحاكم ٣٦٦/١)

٢– په حديث د ابن عمرؓ كښې دى رسول الله ﷺ اُوفرمايل: إِذَا وَضَعْتُمْ مَوْتَاكُمْ فِى الْقَبْرِ فَقُوْلُوْا :بِسْمِ اللّٰهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ) (احمد ٢٧/٢) : (كله چه تاسو مړى په قبر كښې اږدئ نو داسے وايئ : په نوم د الله او په ملت د رسول الله ﷺ)

٣- (بِسْمِ اللّٰهِ وَعَلٰى سُنَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ) (احمد ٢/٥٩) وابوداود (٢/٦١٩)۔
٤- (بِسْمِ اللّٰهِ وَفِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ) (ابن ماجه ١٥٥)۔
دے کښ چه هريو واثی صحيح دہ۔
بِسْمِ اللّٰهِ: يعنی د الله په نوم مے کيخودلو۔
وَبِاللّٰهِ: يعنی د الله په امر او د هغه په حکم او مدد او قدرت سره ئے اږدم۔
وَعَلٰى مِلَّةِ رَسُوْلِ اللّٰهِ: يعنی په دين او طريقه د رسول الله ﷺ سره ئے اږدم۔
ملة: نوم دے د هغه شريعت چه الله تعالىٰ خپلو بندګانو دپاره په ژبه د انبياؤ مقرر کړے وی دے دپاره چه په هغے سره د الله رضا او د هغه ثوابونو ته اُورسی۔
امام راغب اصفهانیؒ وائی: فرق د ملت او د دين دا دے چه د ملت اضافت صرف نبی ﷺ ته کيږی کوم ته چه منسوب دے او غالباً اضافت ئے الله ته نهٔ کيږی۔ او نه افرادو د امت ته۔ او په مجموعه د شرائعو ئے اطلاق کيږی نهٔ په احاد او افرادو باندے۔ او داسے نشی وئيلے چه زما ملت او د زيد ملت لکه چه وئيلے شی دين الله (د الله دين) دين زيد (د زيد دين) او ملت ورته پدے اعتبار سره وئيلے شی چه دا الله مقرر کړيدے او دين ورته پدے اعتبار وئيلے شی دا قائمولے شی څکه چه د دين په معنىٰ کښ طاعت پروت دے۔ (توضيح الاحكام ٢/٥٤٢)
مړی سپارل د رسول الله ﷺ خپله هميشه عادت نهٔ وو بلکه کله نا کله به خپله قبر ته کوز شو او مړے به ئے اُوسپارلو، عام حالاتو کښ به خپلو وارثانو سپارلو۔
**درجة الحديث**: اسناده صحيح: احمد (٢/٢٧) والترمذي (١٠٤٦) وقال حديث حسن غريب من هذا الوجه وابن ماجه (١٥٥٠) ورواه ابوداود (٣٢١٣) بالاسناد الصحيح عن ابن عمر لكن من فعله ﷺ۔

---

١٧٠٧ (١٦) - وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيْهِ مُرْسَلًا أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ حَثَا عَلَى الْمَيِّتِ ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ بِيَدَيْهِ جَمِيْعًا وَأَنَّهُ رَشَّ عَلٰى قَبْرِ ابْنِهِ إِبْرَاهِيْمَ وَوَضَعَ عَلَيْهِ حَصْبَاءَ. رَوَاهُ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ وَرَوَى الشَّافِعِيُّ مِنْ قَوْلِهِ: «رَشَّ».
ترجمه: او جعفر بن محمد د خپل پلار نه په طريقه د ارسال نقل کوی چه نبی کريم ﷺ په دواړو لاسونو سره په مړی باندے درے لپے خاورے واچولے۔ او هغه د خپل څوی ابراهيم په قبر باندے اُوبه چړکاؤ کړے او په هغه باندے ئے د خوړ کاڼړی کيخودل۔ (شرح السنه او امام شافعیؒ دا حديث د رش (د چړکاؤ) الفاظو نه تر آخره پورے روايت کړے۔

**تشریح** : خَثًا: د رمیٰ په وزن دے د نصر او ضرب نه (حَثَا یَحْثُوْ حَثْواً وَیَحْثِیْهِ حَثْیاً) (ای قَبَضَ التُّرَابَ وَرَمَاهُ) یعنی خاورے ئے په موټی کښې راواخستے او په قبر ئے واچولے۔
یعنی درے لپے خاوره ئے پرے واچوله۔ دا ادنیٰ اندازه ورنه په مړی باندے په خاورو اچولو کښې کوشش پکار دے، دا یو نیك عمل دے او د مسلمان حق ادا کول دی۔
دا روایت اگرکه سنداً ضعیف دے لیکن اوله حصه صحیح ده۔ په روایت د ابن ماجه رقم (١٥٦٥) کښې په سند حسن سره د ابو هریرهؓ په روایت کښې دی چه رسول الله ﷺ په یوه جنازه مونځ اُوکړو او بیا د مړی قبر ته راغلو او په هغه باندے ئے د سر د طرف نه درے لپے خاوره واچوله۔ (اسناده حسن قاله زبیر علی زئ)
دغه شان عثمان بن مظعون باندے رسول الله ﷺ درے لپے خاورے په ولاړه وارولے۔ (دارقطنی والحدیث صحیح توضیح الاحکام رقم :٤٧٩)۔
او دویمه حصه چه هغه اُوبه اچول دی نو هغه هم د ډیرو روایاتو نه معلوم دی چه اکثر ضعیف دی بعض پکښې د شواهدو د وجه نه حسن دی لکه حدیث د جابرؓ کښې دی (روستو راروان دے) : چه د نبی ﷺ په قبر باندے اُوبه چړکاؤ شوے او هغه سړے چه د نبی ﷺ په قبر ئے اُوبه چړکاؤ کړے وے بلال بن رباح وو د یوے تیکے نه چه د سر د طرف نه ئے شروع اُوکړه تردے چه خپو ته اُورسیدلو )) (دلائل النبوة للبیهقی والسنن الکبری (٤١١/٣) وهو حسن لشواهده کما فی صلاة الرسول ص (٤٧٥)
او روستو هم بعض روایات راځی۔
علامه ابن قدامهؒ وائی : مستحب دی چه په قبر باندے اُوبه چړکاؤ کړے شی دے دپاره چه خاوره ئے یو بل سره جوختے شی۔ آه۔
حَصْبَاءَ : د خوړ واړه کاڼړوته وئیلے شی۔ (قاموس)
او دا حدیث دلیل دے چه په قبر باندے کاڼړی کیخودل جائز بلکه سنت دی۔ دے دپاره چه قبر هموار نشی او د انسانانو نه خطاء نشی۔ بیهقی د محمد بن جعفر عن ابیه نه روایت نقل کړیدے چه د نبی ﷺ په قبر باندے د خوړ کاڼړی کیخودلے شو۔
(قال الالبانی رواه البیهقی واسناده صحیح) الارواء (٢٠٦/٣) رقم : ٧٥٥)
**درجة الحدیث** : اسناده ضعیف ومعناه صحیح : مسند الشافعی (٦٠١) واسناده ضعیف لارساله ومع ارساله فیه ابراهیم بن محمد وهو ابن ابی یحیی الاسلمی وهو متروك ورواه البغوی فی شرح السنة (١٥١٥)۔

۱۷۰۸ (۱۷) - وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ ﷺ أَنْ تُـجَصَّصَ الْقُبُوْرُ وَأَنْ يُكْتَبَ عَلَيْهَا وَأَنْ تُوْطَأَ» .رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ترجمه : او جابر ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ ددې نه منع فرمائيلې ده چه قبرونه چونه کړې شي يا په هغې باندې ليکل اُوکړې شي يا په هغې باندې خپې کيخودې شي۔ (ترمذیؒ)

تشريح : أَنْ تُجَصَّصَ: په بعض نسخو د ترمذی کښ (يجصص) مذکر دې۔

وَأَنْ يُكْتَبَ عَلَيْهَا : په قبر باندې هر قسم ليکل گناه ده۔ علامه سنديؒ د عراقيؒ نه نقل کړيدي چه احتمال لرى چه نهى د کتابت نه مطلقاً وى لکه د قبر والا نوم، تاريخ وفات ليکل يا د برکت دپاره د قرآن څه آيتونه او سورتونه ليکل (آية الکرسی وغيرة) نو دا حرام دی ځکه چه امکان شته چه پدې باندې خپې کيخودلې شي يا په زمکه راپريوځى او د خپو لاندې شي۔

حاکمؒ په مستدرك کښ ددې حديث د تخريج نه روستو وئيلى دى چه ددې احاديثو سندونه صحيح دى خو پدې باندې عمل نشته ځکه چه د مشرق نه تر مغرب پورې د مسلمانانو د امامانو په قبرونو باندې ليکل شويدى او دا هغه عمل دې چه خلفو د سلفو نه اخستې دې۔

ليکن علامه ذهبیؒ په مختصر کښ پرې رد کړيدې چه مونږ ته هيڅ صحابى نهٔ دې معلوم چه هغه داسې کار کړې وى بلکه دا يو شے دے چه بعض تابعينو راپيدا کړيدې او هغوى ته نهى نهٔ وه رسيدلې۔ انتهىٰ۔

علامه شوکانیؒ فرمائي : دا حديث دليل دے چه په قبرونو باندې ليکل حرام دی او ظاهر دا ده چه د مړی په نوم ليکلو يا نور څيزونو په ليکلو کښ هيڅ فرق نشته۔

نو په قبرونو باندې چه کوم خلق کتيې ليکى، يا پرې شعرونه او غزلې ليکى يا پرې قرآنى آيتونه، يا د مړى سوانح او تاريخ وفات ليکى دا ټول د سنت خلاف او بدعت او ناروا کارونه دى۔

## د قبرونو ترمينځ گرځيدل او هغې باندې خپې کيخودل جائز نهٔ دى

وَأَنْ تُوْطَأَ: يعنى په قبر باندې خپې او چپړې او څپلۍ کيخوستل حرام دی ځکه چه پدې کښ د مړى سپکاوې دې۔ نو په مقبره کښ د قبرونو ترمينځ بغير د ضرورت نه د چپړو او څپلو سره گرځيدل حرام دی او ضرورت دا دې چه په لارو کښ ازغى وى يا ماران لرمانان وى يا لرگى او شگې وى چه انسان ته ضرر ورکوى نو بيا جائز دى۔ او همدا خبره حافظ ابن قيمؒ په جامع الفقه (۲/۵۰۵) او تهذيب السنن (۴/۳۴۳) کښ راجح کړيده۔

او حديث د بشيرؓ او حديث د قرع النعالۓ ذکر کړيدى بيائے وئيلى دى چه کوم کسان د څپلو

سره په قبرونو کښې گرځيدل جائز گنړي هغوي وائي چه دا احتمال لري چه دغه صحابي ته نبي ﷺ د څپلو ويستلې حکم ځکه اُوکړو چه کيدے شي چه د هغه په څپلو کښې گندگي وه، يا دا چه نعال سبتيه د عجمو او خوش عيشه خلقو لباس دے نو پدے کښې مزل کول انسان کښې تکبر پيدا کوي پدے وجه ئې دغه سړي دپاره په هغې کښې مزل مکروه اُوگنړلو۔

ليکن دا خبرے تولے بيکاره دي او نۀ په هيڅ حديث کښې ذکر دي بلکه چا چه تدبر اُوکړو په نهي د رسول الله ﷺ کښې د ناستے نه په قبر باندے يا په هغې باندے د تکيه لگولو او هغې باندے د خپے کيخودلو نه نو هغه ته به ضرور دا معلومه شي چه دا نهي پدے وجه ده چه احترام اُوشي د اُوسيدونکو د قبرونو چه د هغوي په سرونو باندے خپے کينخودے شي، پدے وجه د قبرونو ترمينځ د بولو نه ئې منع کړيده او دا خبر نبي ﷺ ورکړيدے چه په سکروټه باندے کيناستل تردے چه د هغه جامے اُوسوزي په قبر باندے د ناستے نه بهتردي۔ خلاصه دا ده چه احترام د مړي په قبر کښې په منزله د احترام د هغه دے په هغه کور کښې کوم کښې چه په دنيا کښې اُوسيدو ځکه چه اُوس ئې قبر کور گرځيدلے دے۔ او د مړي هډوکے ماتول داسے دي لکه د ژوندي) (الحديث)

او حديث د بشيرؓ کښې هيڅ طعن چا نۀ دے کړے بلکه امام احمدؒ وئيلي دي چه ددے سند جيد دے او عبد الرحمن بن مهديؒ وئيلي دي چه عبد الله بن عثمان به دے باره کښې وئيل چه دا حديث جيد دے او رجال ئې ثقه دي۔

او هرچه ددے تعارض دے ددے حديث (اِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ) سره (يعني چه مړے د ژوندي د څپلو کشارے آوري) نو دا تعارض غلط دے ځکه چه پدے حديث کښې نبي ﷺ صرف د واقع نه دا اخبار ورکړيدے چه مړے د ژوندي د څپلو کشارے اوري او دا دلالت په اجازت باندے نۀ ورکوي چه گنے قبرونو ترمينځ د څپلو سره گرځيدل جائز دي ځکه چه اخبار د وقوع د يو شي نه دلالت نۀ کوي په جواز او نۀ په حرمت او نۀ په حکم۔ نو دا به څنگه د صريح نهي معارض شي ؟ امام خطابيؒ وئيلي دي : دا خبره ثابته ده چه رسول الله ﷺ د قبرونو د پائيمال کولو نه منع کړيده او ابن ماجه په خپل سند سره د ابوالخير عن عقبة بن عامر مرفوع حديث راوړيدے چه رسول الله ﷺ فرمائي : (لَاَنْ اَمْشِيَ عَلٰى جَمْرَةٍ اَوْ سَيْفٍ اَوْ اَخْصِفَ نَعْلِيْ بِرِجْلِيْ اَحَبُّ اِلَيَّ مِنْ اَنْ اَمْشِيَ عَلٰى قَبْرِ مُسْلِمٍ وَمَا اُبَالِيْ اَوْسَطَ الْقُبُوْرِ قَضَيْتُ حَاجَتِيْ اَوْ اَوْسَطَ السُّوْقِ) (چه زۀ په سکروټه يا توره روان شم يا زۀ خپله څپلۍ (چپره) د خپے پورے اُوگنډم دا ما ته ډيره خوښه ده ددے نه چه زۀ د مسلمان په قبر باندے تير شم او زۀ باك نۀ لرم چه د قبرونو ترمينځ خپل حاجت پوره کړم او که په مينځ د بازار کښې) يعني دواړه يو شان قبيح او د شرم کارونه دي۔ (صححه الالباني في صحيح سنن ابي ماجه رقم :

١٠٦٧) (١/٤٩٩) والبوصيرى ٢/٤١)۔

**درجة الحديث:** اسناده صحيح: الترمذى (١٠٥٢) وقال :حديث حسن صحيح وفى اسناده مسلسان : ابن جريج وابوالزبير ومن هذا الوجه رواه مسلم دون الكتابة وقد مضى لفظه برقم (١٦٩٧) ورواه الحاكم (٣٧٠) لكنه زاد الكتابة وبدونها رواه ابوداود (٣٢٢٥) والنسائى (١/٢٨٥) مصرحاً بتحديث ابن جريج وابى الزبير فصح الحديث والحمد لله۔

---

**١٧٠٩ (١٨) – وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: رُشَّ قَبْرُ النَّبِيِّ ﷺ وَكَانَ الَّذِيْ رَشَّ الْمَآءَ عَلٰى قَبْرِهٖ بِلَالُ بْنُ رَبَاحٍ بِقِرْبَةٍ بَدَأَ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهٖ حَتّٰى انْتَهٰى إِلٰى رِجْلَيْهِ. رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ.**

**ترجمه :** او جابر ﷺ فرمائى : د نبى كريم ﷺ قبر باندے چركاؤ اُوكړے شو او هغه شخص چه د نبى كريم ﷺ په قبر ئے اُوبه چركاؤ كړے وے هغه بلال بن رباح وو۔ چه هغه مشك راواخستو او د سر د طرف نه ئے (په قبر باندے) شروع اُوكړه تردے چه د هغه خپو ته اُورسيدو۔ (د بيهقىّ دلائل النبوة)۔

**تشريح : رُشَّ :** مجهول صيغه ده يعنى د نبى ﷺ په قبر باندے اُوبه چركاؤ شوے۔

**بَدَأَ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهٖ :** يعنى د سر د طرف نه په بنى طرف ئے شروع اُوكړه۔

په قبر باندے د اُوبو اچولو يو حكمت علماؤ دا بيان كړيدے چه كيدے شى پدے كښں اشاره وى په قبر باندے د الله د رحمتونو او مهربانيانو نازليدو ته چه اے الله ! دا د گناهونو نه داسے صفا كړه لكه په اُوبو سره چه صفائى كيږى۔يا داسے ئے تازه اُوساته لكه د اُوبو په شان۔ (طيبىّ)۔ ٢– بعض وائى : حكمة دا دے چه قبر باندے كله اُوبه چركاؤ شى نو ډيره موده پورے باقى پاتے كيږى او د ډوريدو او زړيدو نه وراندے وى (ميرك شاه)۔

او په قبر باندے اُوبه چركاؤ كول سنت طريقه ده۔ راجع الارواء (٣/٢٠٦) ۔

**درجة الحديث:** اسناده ضعيف والحديث صحيح: البيهقى فى الكبرى (٣/٤١١) ودلائل النبوة (٧/٢٦٤) نقال : قال الواقدى) وذكره الحافظ فى التلخيص (٢/١٣٣) ولم ينسبه لاحد وقال فى اسناده الواقدى۔

---

**١٧١٠ (١٩) وَعَنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ أَبِيْ وَدَاعَةَ قَالَ :لَمَّا مَاتَ عُثْمَانُ ابْنُ مَظْعُوْنٍ أُخْرِجَ بِجَنَازَتِهٖ فَدُفِنَ أَمَرَ النَّبِيُّ ﷺ رَجُلًا أَنْ يَأْتِيَهٗ بِحَجَرٍ فَلَمْ يَسْتَطِعْ حَمْلَهَا فَقَامَ إِلَيْهِ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ**

وَحَسَرَ عَنْ ذِرَاعَيْهِ. قَالَ الْمُطَّلِبُ: قَالَ الَّذِيْ يُخْبِرُنِيْ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ كَأَنِّيْ أَنْظُرُ إِلٰى بَيَاضِ ذِرَاعَيْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ حِيْنَ حَسَرَ عَنْهُمَا ثُمَّ حَمَلَهَا فَوَضَعَهَا عِنْدَ رَأْسِهٖ وَقَالَ: «أُعْلِمُ بِهَا قَبْرَ أَخِيْ وَأَدْفِنُ إِلَيْهِ مَنْ مَاتَ مِنْ أَهْلِيْ». رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

---

ترجمه : او د مطلب بن ابی وداعه نه روایت دے چه کله عثمان بن مظعون وفات شو، د هغه جنازه رابهر کرے شوه او هغه دفن شو نو نبی کریم ﷺ یو سړی ته حکم اُوکړو چه هغه ته یو کانړے راوړی (هغه سړے لاړو لیکن) هغه د کانړی د راپورته کولو طاقت اُونۀ لرلو نو رسول الله ﷺ هغه ته راپاځیدو او خپلے لیچے ئے برښدے کړے۔ مطلب وائی : هغه سړے چه ما ته ئے د رسول الله ﷺ د طرف نه خبر راکولو فرمائی : گویا کښې زۀ د رسول الله ﷺ د دواړو لیچو سپینوالی ته گورم کله ئے چه د هغې نه کپړه لرے کړه۔ بیا رسول الله ﷺ هغه کانړے راپورته کړو او د عثمان د قبر سر ته ئے کیخودو او وے فرمایل :«زۀ ددے کانړی په ذریعه د خپل ورور (عثمان) په قبر علامه (نخه) کوم او زما د اهل نه چه څوك وفات شی زۀ به ئے ددۀ خوا ته دفن کوم» ۔ (ابوداوٌد)۔

**تعارف د مطلب بن ابی وداعة :** دا قریشی سَهْمِی دے د ابووداعه نوم حارث بن صبیرة بن سعید بن سعد بن سهم۔ او ام المطلب بن ابی وداعة اروىٰ بنت الحارث بن عبد المطلب د. چه د رسول الله ﷺ د ترۀ لور ده۔ دا صحابی دے په فتح د مکه کښې په اسلام مشرف شویدے، بیا کوفه کښې اُوسیدلے دے، بیا د هغې نه مدینے ته راغلے دے، او مدینه کښې ئے کور هم وو او ډیره زمانه هلته کښې پاتے شویدے او بیا په مدینه کښې وفات شویدے

**تنبیه :** مشکاة کښې دا حدیث مطلب بن ابی وداعة ته منسوب دے چه دا صحابی دے لیکن صحیح دا ده چه دا روایت د صحابی نۀ دے بلکه د مطلب بن عبد الله بن المطلب بن حنطب المخزومی دے چه هغه تابعی دے، لهذا دا حدیث مرسل دے لیکن مطلب وائی چه ما ته یو صحابی د رسول الله ﷺ د طرف نه خبر راکړیدے لهذا جهالت د صحابی ضرر نۀ ورکوی نو حدیث صحیح او متصل دے او دلیل پدے باندے چه دا روایت د مطلب بن عبد الله دے دا دے چه دا روایت ابن سعدٌ په طبقات کښې د مطلب بن عبد الله نه نقل کړیدے۔ او حافظ وئیلی دی چه دا ابوداوٌد نقل کړیدے د روایت د المطلب بن عبد الله نه او دا صحابی نۀ دے لیکن خبر ورته صحابی ورکړیدے۔(التلخیص الحبیر ص١٦٦)۔ او د حدیث روستو الفاظو نه هم معلومیږی۔

دعثمان بن مظعون تعارف په باب المساجد ومواضع الصلاة کښ ذکر شویدے حدیث رقم (٣٦)

**تشریح** : حَسَرَ : ( اَیْ کَشَفَ الثَّوْبَ) (یعنی جامه ئې د لیچو نه لرے کړه)

ددے حدیث نه دا مسئله ثابته شوه چه د مړی په قبر باندے یوه گټه خخول سنت دی ددے دپاره چه دا پته اُولگی چه دا قبر دے او د زمکے سره هموار نکړے شی یا پکښ څوك بل مړے خخ نکړی، یائے څوك پائیمال نکړی۔

پاتے شو دوه کانړی کیخودل یو په سر او بل خپو طرف ته او دواړه اوږده اُودرول او د زنانه په قبر باندے خپو تـه تپنړ کانړے اُودرول او سرته ئې په اُوږدو اُودرول په هیڅ حدیث کښ نهٔ دی ثابت۔ لهذا دا به عبادت نشی گنړلے، البته که په هره طریقه یوه نخه په قبر باندے کیخودے شی چه قبر پرے معلوم شی نو جائز ده۔ بله دا چه د قبر اول او آخر معلوم شی۔

٢- دویمه مسئله دا ثابته شوه چه په مقبره کښ خپل خپلوان د یو بل سره نزدے دفن کول سنت دی، ملاقات به ئې آسان وی او پدے سره به په هغوی ترحم زیات کیږی۔

(فقه السنة ١/٤٨٥) المغنی (٢/٣٨٤) والمرعاة (٥/٤٤٧)

٣- دریم دا چه د نیکانو په خوا کښ مړی خخول افضل عمل دے ځکه چه عثمان بن مظعون نیك سړے وو نو ځکه رسول الله ﷺ ددهٔ په خوا کښ مړی خخول۔ بعض وائی : اول ئې ددهٔ په خوا کښ ابراهیم (د رسول الله ﷺ ځوی) دفن کړو۔ او کوم روایت د ابو نعیم په حلیه (٦/٣٥٤) کښ چه راغلی دی چه (مړی د نیکانو په مینځ کښ دفن کړئ ځکه چه مړے د بد گاونډی نه ضرر حاصلوی) نو دا ضعیف دے او ابن الجوزیؒ په الموضوعات کښ ذکر کړیدے۔ او ددے مطلب دا نهٔ دے چه انسان به د خپل کلی نه لرے ځایونو ته مړے نقل کوی ځکه چه هغے نه خو منع راغلے ده۔ بلکه مطلب دا دے چه په مقبره کښ کوم خلق په نیکئ مشهور وی نو د هغوی په خوا کښ مړے دفن کول پکار دی۔

**درجة الحدیث** : اسناده صحیح : ابوداود (٣٢٠٩) والبیهقی فی الکبری (٣/٤١٢) وفی کثیر بن زید کلام لا یضر قال الالبانی وسنده حسن وله شاهدان ذکرتهما فی التعلیقات الجیاد۔

---

١٧١١ (٢٠) - وَعَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ قَالَ: دَخَلْتُ عَلٰی عَائِشَةَ فَقُلْتُ: یَا اُمَّاهُ اکْشِفِیْ لِیْ عَنْ قَبْرِ النَّبِیِّ ﷺ وَصَاحِبَیْهِ فَکَشَفَتْ لِیْ عَنْ ثَلَاثَةِ قُبُوْرٍ لَا مُشْرِفَةٍ وَلَا لَاطِئَةٍ مَبْطُوْحَةٍ بِبَطْحَاءِ الْعَرْصَةِ الْحَمْرَاءِ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوُدَ.

**ترجمه :** او د قاسم بن محمد نه روايت دے چه زهٔ د عائشهؓ خوا ته ورغلم، ما ورته أووئيل : اے مورے! ما ته د نبي كريم ﷺ او د هغه د دوارو ملگرو قبرونه رابنكاره كره نو هغې ما ته درے قبرونه رابنكاره كړل چه نهٔ ډير اُوچت وو او نهٔ په زمكه هموار وو، په هغوى باندے د (مدينې د) ميدان سرهٔ كانړى پراته وو. (ابو داودؒ).

**تشريح :** قاسم بن محمد د ابوبكر صديق نمسے دے او د عائشهؓ وراره دے، ده أووئيل چه اے مورے ما ته د نبي ﷺ قبر بنكاره كره يعني پرده لرے كره نو هغې پرده لرے كره نو درے قبرونه بنكاره شو.

**لَا مُشْرِفَةٍ :** يعني نهٔ پورته وو په زيات پورته كيدو سره. بعض وائي : معنىٰ دا ده چه د زمكے نه ډيو لويشت نه زيات پورته نهٔ وو.

**لَاطِئَةٍ :** د (لَطَأَ بِالْاَرْضِ اَىْ لَزِقَ بِهَا) نه ماخوذ دے يعني لطأ بالارض په هغه وخت وئيلے كيږى چه يو شے د زمكے پورے پيوسته شى او اُونخلى) نو معنىٰ دا ده چه زمكے سره هموار هم نهٔ وو.

**مَبْطُوْحَةٍ :** (اى مَفْرُوْشَةٍ) يعني د خوړ كانړى پرے خواره كړے شوى وو)

**بِبَطْحَاءِ :** شړے او وړو كانړو ته وئيلے شى. په اصل خوړ ته وئيلے شى چه په هغې كښې واړه واړهٔ كانړى او شگے پرتے وى. يعني كاړ.

**الْعَرْصَةِ :** دا ډيو ځائے نوم دے. ۲- يا عرصة كولاؤ ميدان ته وئيلے شى چه په هغې كښې آبادى نهٔ وى يعني خوړ.

ددے حديث نه امام شافعيؒ او د هغه موافقينو دليل نيولے دے چه قبر ځلور قنجه جوړول افضل دى د ماهى پشت جوړولو نه ليكن دا دليل نيول ضعيف دى يو خو روايت ضعيف دے او دويم دا چه دا صريح نهٔ دے بلكه ماهى پشت قبر باندے هم كانړى كيخوستل منافات نهٔ لرى. او تفصيل د مسئلے لږ مخكښې تير شو.

**درجة الحديث :** اسناده ضعيف : اخرجه ابوداود (۳۲۲۰) والحاكم (۳۶۹/۱) وقال : هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه ووافقه الذهبي ولكن الحديث فيه عمرو بن عثمان بن هانيء وهو مجهول الحال وهذا معنى قول الحافظ فيه مستور.

---

۱۷۱۲ (۲۱) وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ فِىْ جَنَازَةِ رَجُلٍ مِنَ الْاَنْصَارِ فَانْتَهَيْنَا اِلَى الْقَبْرِ وَلَمَّا يُلْحَدْ بَعْدُ فَجَلَسَ النَّبِىُّ ﷺ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ وَجَلَسْنَا مَعَهٗ. رَوَاهُ اَبُوْدَاوٗدَ وَالنَّسَائِىُّ وَابْنُ مَاجَه وَزَادَ فِىْ آخِرِهٖ : كَاَنَّ عَلٰى رُءُوْسِنَا الطَّيْرَ.

ترجمه : او براء بن عازب ﷺ فرمائي : (يو ځل) مونږ د رسول الله ﷺ سره د انصارو د يو سړي په جنازه كښې راووتو مونږ قبر ته اُورسيدو او لا تر اُوسه مړيے په قبر كښې نهٔ وو خخ شويے۔ نو نبي كريم ﷺ د قبلے مخامخ كيناستو او مونږ (هم) د هغه سره كيناستو۔ (ابوداودؔ، نسائيؔ، ابن ماجهؔ) او ابن ماجهؔ په آخر كښې دا الفاظ زياتي كړيدي : (مونږ داسے ناست وو) گويا كښې زمونږ په سرونو باندے مارغان ناست وو۔ (يعني انتهائي چپ چاپ خكته سرونه ناست وو)۔

تشريح : بَعْدُ: يعني زما د رارسيدو پورے لا مړے لحد ته نهٔ وو كوزكړے شوے۔

يُلْحَدْ : د مجهول صيغه ده۔

مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ : دا حديث دليل دے چه څوك د مړي دفن كولو ته انتظار كښې ناست وي نو قبلے ته مخ كول مستحب دي۔ او دا حديث تفصيلاً په فصل ثالث د باب ما يقال عند من حضره الموت كښې تير شويدے رقم (۱۵) او ظاهر دا معلوميږي چه رسول الله ﷺ تقرير كړيدے او صحابه كرام ترے گير چاپيره ناست دي۔

كَأَنَّ عَلَى رُؤُوسِنَا الطَّيْرَ: دا د صحابه كرامو انتهائي ادب د رسول الله ﷺ او د هغه د مجلس دے، داسے قسم ادبناك خلق د واعظ او معلم او استاذ نه كامله فائده اخستے شي۔

درجة الحديث : اسناده صحيح : احمد (٤/٢٨٧) وابوداود (٣٢١٢) والنسائي (٤/٧٨) وابن ماجه (١٥٤٩)۔

---

١٧١٣ (٢٢) – وَعَنْ عَائِشَةَ: أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ:« كَسْرُ عَظْمِ الْمَيِّتِ كَكَسْرِهِ حَيًّا». رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.

ترجمه : او عائشه رضي الله عنها فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «د مړي هډوكے ماتول (د گناه په اعتبار) داسے دي لكه د ژوندي شخص هډوكے ماتول» ـ(مالكؔ، ابوداودؔ، ابن ماجهؔ)

تشريح : يعني د مړي هډوكے ماتول دومره گناه لري لكه د هغه هډوكے ماتول په ژوند كښې۔ دا تشبيه په گناه كښې ده۔ ددے حديث سبب ورود دا وو چه جابر ﷺ فرمائي : مونږ د رسول الله ﷺ سره په يوه جنازه كښې اُووتلو نو نبي ﷺ د قبر په غاړه كيناستو او مونږ د هغه سره كيناستو نو قبر كنستونكي يو هډوكے د پوندئ يا پتون را اُوويستو نو شروع شو چه هغه ئے ماتولو، نبي ﷺ اُوفرمايل : دا مهٔ ماتوه ځكه كه تا دا په دے مړيني حالت كښې مات كړو نو دا داسے دے لكه چه تا په ژوندينې مات كړے وے، ليكن دا په اړخ د قبر كښې دفن كړه»۔

(حاشية ابى داود للسيوطى واللمع فى اسباب ورود الحديث للسيوطى ص (٤٥) -

او ددے حديث مطلب دا دے چه د مړی احترام لکه څنګه په ژوند کښ وو نو پس د مرګ نه ئے هم احترام همغه شان باقی دے۔ او دا تشبيه په قصاص او ديت کښ په اجماع د علماؤ سره نۀ ده۔ (زرقانیؒ)

او ددے دا مطلب هم کيدے شی چه مړی ته هغه شان ضرر رسی لکه څنګه چه ژوندی ته رسی او ددے تائيد هغه اثر کوی چه ابن ابی شيبه د عبد الله بن مسعودؓ نه روايت کړيدے : (أَذَى الْمُؤْمِنِ فِيْ مَوْتِهٖ كَأَذَاهُ فِيْ حَيَاتِهٖ) (مؤمن ته پس د مرګ نه ضرر ورکول داسے دی لکه په ژوند کښ ضرر ورکول)۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح: مالك فى الموطأ (١/٢٣٨) رقم (٤٥) واحمد (٦/١٦٨) وابوداود (٣٢٠٧) وابن ماجه (١٦١٦) وابن حبان (٧٧٦)۔

## الفصل الثالث

**١٧١٤ (٢٣) – عَنْ أَنَسٍ قَالَ: شَهِدْنَا بِنْتَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ تُدْفَنُ وَرَسُوْلُ اللهِ ﷺ جَالِسٌ عَلَى الْقَبْرِ فَرَأَيْتُ عَيْنَيْهِ تَدْمَعَانِ فَقَالَ:«هَلْ فِيْكُمْ مِنْ أَحَدٍ لَمْ يُقَارِفِ اللَّيْلَةَ ؟». فَقَالَ أَبُوْطَلْحَةَ: أَنَا. قَالَ: فَانْزِلْ فِيْ قَبْرِهَا فَنَزَلَ فِيْ قَبْرِهَا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.**

**ترجمه** : انس رضی الله عنه فرمائی : مونږ د رسول الله ﷺ لور ته حاضر شو چه هغه دفن کولے شوه او رسول الله ﷺ د قبر خوا کښ ناست وو ـ ما د هغه دواړه سترګے اُوليدلے چه اُوښکے ترے روانے وے۔ وے فرمايل : « آيا په تاسو کښ داسے شخص موجود دے چه بيګاه شپه ئے د خپلے بی بی سره کوروالے نۀ وی کړے ؟ » نو ابوطلحه اُوفرمايل : زۀ يم۔ وے فرمايل : «تۀ ددے قبر ته کوز شه» نو هغه (د سپارلو دپاره) د هغے قبر ته کوز شو۔ (بخاریؒ)۔

**تشريح** : **فوائد الحديث** : ١- دا روايت دليل دے چه د مړی پسے په آرام سره په اُوښکو ژړل غوره عمل دے خو په دے شرط چه آواز پکښ اُوچت نۀ وی او جزع فزع نۀ وی۔ او دا د الله رحمت دے چه د بندګانو په زړونو کښ ئے پيدا کوی او پدے سره د بنده حق ادا کيږی۔

٢- او دليل دے چه رسول الله ﷺ بشر دے د ځان نه خفګان او مصيبت نشی دفع کولے۔

**لَمْ يُقَارِفِ اللَّيْلَةَ** : مقارفه نزديکت ته وئيلے شی مراد ترے نه جماع کول دی۔ بعض علماء وائی : مقارفه ګناه کولو ته وئيلے شی۔ ليکن ابن حزمؒ وئيلی دی چه معاذ الله چه ابو طلحه د رسول الله ﷺ په حضور کښ د خپل ځان تزکيه اُوکړی چه ما په دغه شپه ګناه نۀ ده کړے۔ نو

صحیح دا ده چه ددې نه مراد جماع ده. ځکه چه دا محاله ده چه صرف د ابوطلحه نه علاوه نورو صحابه کرامؓ پدې شپه گناه کړې وي. او که څوك اُووائي چه دا خو بعيده ده چه تولو صحابه کرامؓ سوي د ابوطلحه نه پدې شپه جماع کړې وي ؟ نو جواب دا دې چه ابوطلحهؓ اول جواب ورکړو او د رسول الله ﷺ مقصد په هغه باندې پوره شو نو د نورو صحابه کرامؓ جواب ورکولو ته ضرورت پاتې نشو نو ځکه ئې هغه کوز کړو.

دا حدیث دلیل دې چه قبر کښې به مرې هغه څوك سپاري چه د شپې جماع ئې نۀ وي کړې. او دا په عوامو بلکه په ډیرو ملیانو کښې ناشنا مسئله ده.

او د زنانه قبر ته پردې سړې هم کوزیدې شي پدې شرط چه د شپې به ئې جماع نۀ وي کړې.

او مړې که زنانه وي نو هم سړې به ئې قبر ته کوزیږي نۀ ښځه ځکه چه دلته فاطمهؓ موجوده وه لیکن هغه کوزه نشوه بلکه ابوطلحهؓ ئې کوز کړو.

(المجموع شرح المهذب ٥/٢٨٩) للنووي واحکام الجنائز ص (١٨٨)

او ددې سبب بعض علماؤ داسې بیان کړیدې چه عثمان بن عفان په دغه شپه د بعض وینزو سره جماع کړې وه نو بغیر د ښکاره وینا نه رسول الله ﷺ هغه لره په نرمئ سره منع کړو چه د هغه د لور قبر ته کوز نشي.

دا وجه ده په روایت د احمدؒ، طحاويؒ، او حاکمؒ کښې په صحیح سند ثابت دي چه رقیه رضي الله عنها کله وفات شوه نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : (لَا يَدْخُلُ الْقَبْرَ رَجُلٌ قَارَفَ اللَّيْلَةَ أَهْلَهُ فَلَمْ يَدْخُلْ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ الْقَبْرَ) (هغه سړې به قبر ته نۀ داخليږي چه بیګاه شپه ئې کور والې کړې وي نو عثمان قبر ته داخل نۀ شو) دا حدیث د مخکنی حدیث معنیٰ متعین کوي چه د (لم يقارف) نه گناه نۀ ده مراد.

او دا بعیده ده چه رسول الله ﷺ عثمان ﷺ پدې وجه منع کړې وي چه گنې هغه د رسول الله ﷺ د لور خیال نۀ دې ساتلې او هغې سره ئې نزدیکت کړیدې پداسې حالت کښې چه هغه بیماره وه. لیکن بعض علماؤ دا هم وئیلي دي چه ممکن ده چه د عثمان د بي بي بیماري اُوږده شوې وي او عثمان د هغې نزدیکت ته محتاج شوې وي او د هغه دا گمان نۀ وي چه دا به په دغه شپه وفات کیږي. او پدې حدیث کښې دا هم نشته چه گنې عثمانؓ د وفات نه بعد ورسره نزدیکت کړیدې یا ئې په حالت د وفات کښې.

بلکه عثمان ئې پدې وجه منع کړو چه دا مسئله واضحه کړي چه نزدې جماع کونکې شخص به قبر ته نۀ کوزیږي. د وجه د راتلونکي حکمت نه.

بیا دا حدیث پدے خبرہ هم دلیل دے چه پردی سری چه د بی بیانو نه ئے للتونه په نزدیکت سره نزدے نهٔ وی اخستی هغه به مقدم کولے شي د هغه نزدو خپلوانو سرو نه چه هغوی نزدے وخت کښې نزدیکت کړے وی۔ او ددے وجه بعض علماؤ دا ذکر کړیده چه کله انسان نزدے جماع نهٔ وی کړی نو هغه په امن کښې وی د شیطان نه چه هغه ته بیگانې حالت رایاد کړی۔ او چه کله ئے نزدے جماع کړی وی نو شیطان ورته زور خیال راتازه کوی۔

امام نووی فرمائی : ددے حدیث تعارض ددے خبرے دفقهاؤ سره نشته چه محارم او خاوند د نیکانو پردو خلقو نه غوره دی۔ ځکه چه دلته احتمال شته چه نبی ﷺ او عثمان دپاره څه عذر وی د قبر د کوزیدو نه، آو دے نه دا خبره ثابتیږی چه که نیکان صالحین خلق موجود وی او یو تن پکښې نزدے وخت کښې نزدیکت نهٔ وی کړے نو هغه به د مړی په کیخودلو کښې او قبر ته کوزیدو کښې مخکښې کولے شي۔

**تنبیه** : دا هغه حدیث دے چه صحیح دے او څلورو وارو امامانو پرے قول نهٔ دے کړے نو دا دلیل دے چه تول دین په څلورو مذاهبو کښې راګیر نهٔ دے بلکه ډیر داسے مسائل شته چه احادیثو کښې راغلی دی او ائمه اربعه و پرے قول نهٔ وی کړے لکه پدے کتاب کښې تاسو ډیر مثالونه د هغې لیدلی او وے به وینئ۔ او د فتاوی الدین الخالص څلورم جلد ابتداء اُوګوره۔

---

١٧١٥ (٢٤) - وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ لِابْنِهِ وَهُوَ فِيْ سِيَاقِ الْمَوْتِ: إِذَا أَنَا مِتُّ فَلَا تَصْحَبَنِّيْ نَائِحَةٌ وَلَا نَارٌ فَإِذَا دَفَنْتُمُوْنِيْ فَشُنُّوا عَلَيَّ التُّرَابَ شَنًّا ثُمَّ أَقِيْمُوْا حَوْلَ قَبْرِيْ قَدْرَ مَا يُنْحَرُ جَزُوْرٌ وَيُقْسَمُ لَحْمُهَا حَتّٰى أَسْتَأْنِسَ بِكُمْ وَأَعْلَمَ مَاذَا أُرَاجِعُ بِهِ رُسُلَ رَبِّيْ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : او د عمرو بن العاص رضی الله عنه په باره کښې روایت دے چه هغه خپل ځوی ته اُووئیل کله چه هغه د نزع په حالت کښې وو: کله چه زهٔ مړ شم نو ما سره دے ویر ګیره ښځه او اُور نهٔ ملګرے کیږی او کله چه تاسو ما دفن کړئ نو ما باندے په آرام آرام سره خاورے راواړوئ بیا زما د قبر نه ګیر چاپیره دومره وخت (زما د دعا او مغفرت دپاره) اُودریږئ څومره وخت کښې چه اُوښ ذبح کړے شي او بیا د هغه غوښه تقسیم کړے شي۔ دے دپاره چه زهٔ په تاسو سره آرام موندهٔ کړم۔ او (بغیر د وحشت او ګبراهټ نه) پوهه شم چه زهٔ د خپل رب استازو (ملائکو) ته څه جواب ورکوم۔ (مسلم)۔

**تشريح : سِيَاقِ الْمَوْتِ:** يعنى د روح په وتلو كښې شروع وو. امام نووىؒ وائى : په كسره د سين سره يعنى حالت د حضور د مرگ. نو ددے جامعه معنىٰ ده : (دا په روندش د مرگ كښې وو).

د جاهليت په زمانه كښې دا طريقه وه چه د فخر او لوئى او رياء په طور به د مړى سره اُور وړے شو، دے دپاره چه د هغے په ذريعه خوشبوئى وغيره اُولگولے شى يا د بل كار دپاره پكار شى نو اسلام ددے نه منع كړيده پدے وجه عمرو بن العاصؓ دا وصيت اُوكړو چه زما د جنازے سره به نۀ وير كونكے زنانه ځى ځكه چه دا سراسر غير اسلامى طريقه ده او نۀ به اُور وړلے شى ځكه چه دا هم د جاهليت يوه نښه ده. ددے نه معلومه شوه چه د جنازے سره د اگرباتئ يا اُوردان وړل منع دى.

بعض وائى : د اُور نه بد فال نيولے شى پدے وجه ترے منع اُوكړے شوه.

**نَائِحَةٌ :** يعنى په آواز سره ژړا كونكے ښځه. ددے نه منع ځكه اُوكړے شوه چه عربو كښې به دا عادت وو چه زنانو به په مړو باندے وير كولو او بيا به ئے دا فخر گنړلو چه زمونږ داسے عظيم مړے دے چه ډيره ژړا پرے اُوكړے شوه. نو عمرو بن العاصؓ وصيت اُوكړو چه دا كار به ما سره نۀ كوئ. معلومه شوه چه كوم شخص ته معلومه وى چه ما باندے به ژړا كيدے شى نو هغه باندے لازم دى چه ددے د منع كولو دپاره به وصيت كوى او كه ددے عمل نه په خپل قوم او كورنئ كښې خبر وى چه دا كار مړو سره كيږى او وصيت اُونكړى نو مړے گناهگار دے.

**فَشُنوا :** دا امر د صيغه ده د(شَنَّ الْمَاءَ) نه اخستے شويدے كله چه اُوبه جدا جدا واړولے شى يعنى چړكاؤ. او په بل روايت كښې په سين سره هم راغلے دے په نرمئ او آسانئ سره راړولو ته وئيلے شى.

**جَزُوْرٌ :** په فتحه د جيم اُوښ ته وئيلے شى دا لفظ د مؤنث دے او كه ددے نه مذكر مراد كړے شى نو بيا ئے تذكير هم جائز دے. نو ينحر او تنحر دواړه جائز دى. (قارىؒ).

**اَسْتَأنِسَ بِكُمْ:** ددے نه باطل پرست او بدعتيانو دا دليل نيسى چه اُوكوره مړے د ژوندى په حال پوهيږى ځكه عمرو بن العاصؓ وائى چه زما خوا كښې ايسار شئ چه زۀ په تاسو سره اُنس حاصل كړم. **جواب** دا دے چه ددے معنىٰ دا ده چه زما د قبر په خوا كښې د دعاء دپاره ډير وخت اُودريږئ او زياته دعاء راته اُوكړئ (لكه څنگه چه دا د رسول الله ﷺ طريقه وه چه د مړى په قبر به ئے دعاء كوله) دے دپاره چه ما له الله په قبر كښې تثبت او استقامت راكړى او د خپل رب استازى او ملائكو ته جواب وركړم. ځكه چه د مسلمانانو دعاء د مړى په حق كښې ډيره ښه قبليږى او ډير اثر لرى.

نو دلته د نظر او د كلام د اوريدو خبره نشته بلكه استيناس بالدعاء مراد دے.

**١٧١٦ (٢٥) – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: سَمِعْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَقُولُ: «إِذَا مَاتَ أَحَدُكُمْ فَلَا تَحْبِسُوْهُ وَأَسْرِعُوْا بِهِ إِلَى قَبْرِهِ وَلْيُقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِهِ فَاتِحَةُ الْبَقَرَةِ وَعِنْدَ رِجْلَيْهِ بِخَاتِمَةِ الْبَقَرَةِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ. وَقَالَ: وَالصَّحِيْحُ أَنَّهُ مَوْقُوْفٌ عَلَيْهِ.**

---

**ترجمه:** او دعبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دے چه ما د نبی کریم ﷺ نه آوریدلی چه فرمایل ئے: «کله چه یو تن ستاسو نه مړ شی نو هغهٔ مهٔ ایساروئ او هغه خپل قبر ته په جلتئ سره یوسئ او د هغه د (قبر) سر سره دے د سورة البقرے ابتدائی آیتونه او د هغه د خپو سره دے د سورة البقرے آخری آیتونه اُولوستے شی۔ (بیهقیؒ)

**درجة الحديث:** اسناده ضعيف جداً: الطبرانی فی المعجم الكبير (٣/٢٠٨/٢) وفيه يحيى بن عبد الله بن الضحاك والبابلتي وهو ضعيف عن ايوب بن نهيك ضعفه ابوحاتم وغيره وقال الازدی: متروك، والموقوف لا يصح اسناده، فيه عبد الرحمن بن العلاء بن اللحلاج وهو مجهول۔

**تشريح: فَلَا تَحْبِسُوْهُ:** ددے مطلب دا دے چه مړے به بے ځايه په کور کښې نشی ایسارولے بلکه په جلتئ سره ورله تکفین او تدفین کوئ لکه دا مسئله مخکښې تفصيلاً ذکر شویده۔

بیا دلته دوه مسئلے دی یو دا چه آیا په مقبره کښې قراءت د قرآن وئیل شته او که نهٔ؟ دویم دا چه د قبر سر او خپو ته د سورة الفاتحه او سورة بقرے لوستل څنګه دی؟

### ١- مسئله: آیا مقبرو کښې د قبرونو په خوا کښې تلاوت جائز دے؟

په مقبره کښې د قرآن لوستلو یو صورت دا دے چه تلاوت ددے دپاره کوی چه ددے ثواب مړو ته بخښی نو دا کار جائز نهٔ دے ځکه چه په راجح قول د اقوالو د علماؤ کښې مړے د بل چا په بدنی اعمالو فائده نشی اخستے مګر ددے نه بعض اعمال لکه حج وغیره مستثنیٰ دی۔ او شریعت دے ته دعوت نهٔ دے ورکړے چه تاسو مړو ته عملونه وربخښئ او نهٔ ددے ثبوت د رسول الله ﷺ نه او د هغه د صحابه کرامو نه شته۔ دویم صورت دا دے چه مقبره کښې قرآن ددے دپاره لولی چه ځان دپاره عمل کوی لیکن دے دپاره ئے کوی چه مړے پدے سره اُنس او برکت حاصل کړی نو دا کار هم صحیح نهٔ دے بلکه بدعت دے ځکه چه صحیح خبره دا ده چه په مقبره کښې د قرآن لوستل جائز نهٔ دی۔ هیڅ عالم د سلفو صالحینو نه دے ته مستحب نهٔ دی وئیلی۔ او ددے باره کښې چه کوم روایات راغلی دی هغه ټول یا ضعیف دی یا موضوع دی۔

**١- دليل:** (مَنْ عَمِلَ عَمَلًا لَيْسَ عَلَيْهِ أَمْرُنَا فَهُوَ رَدٌّ) (مسلم) (چا چه یو عمل اُوکړو چه په هغے

بانـدې زمـونږ حـكـم نهٔ وونو هغه به مردود وي) او دا عمل د رسول الله ﷺ نه په صحيح سند ثابت نهٔ دې لهذا دا بدعت دې.

**٢- دليل :** هر هغـه عـمـل چه د رسول الله ﷺ پـه زمانه كښې او د هغه نه روستو دير واقع كيږي او د امت ورته ضرورت وي او نبي ﷺ پرې حكم نهٔ كوي نهٔ ترغيب وركوي نو دا دليل دې چه دغه عمل په دين كښې ثابت نهٔ دې ځكه كه ثابت وې نو ضرور به رسول الله ﷺ پخپله كولې يا بـه ئې تـرغيـب وركـولې. او رسول الله ﷺ زيارة القبور او هغوى باندې سلام اچولو ته ترغيب وركړيدې او تلاوت عند القبور ته ئې دعوت نهٔ دې وركړې. لكه دا خبره شيخ الاسلامؒ په مجموعة الفتاوى (٢١/ ١٤٠) كښې كړيده.

**٣- دليل :** عـائشې رضي الله عنها د رسول الله ﷺ نه تپوس اُوكړو: چه زهٔ به په زيارة القبور كښې څـنـگـه وايـم نـو رسول الله ﷺ اُوفرمايل : داسې وايه : (اَلسَّلَامُ عَلٰى اَهْلِ الدِّيَارِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَيَرْحَمُ اللهُ الْمُسْتَقْدِمِيْنَ مِنَّا وَالْمُسْتَأْخِرِيْنَ، وَاِنَّا اِنْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَلَاحِقُوْنَ) (صحيح مسلم ١/ ٣١٤) وسيأتي في المشكاة (١/ ١٥٤)

نو دا مقام د بيان دې او نبي ﷺ هغې ته دا بيان نكړل چه په مقبره كښې به تلاوت كوې نو دليل شو چه تلاوت په مقبره كښې مشروع نهٔ دې.

**٤- دليل :** ابو هريره ﷺ د رسول الله ﷺ نـه نـقـل كوي فرمائي :(لَاتَجْعَلُوْا بُيُوْتَكُمْ مَقَابِرَ فَاِنَّ الشَّيْطَانَ يَنْفِرُ مِنَ الْبَيْتِ الَّذِيْ يُقْرَأُ فِيْهِ سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ) (مسلم ١/ ١٨٨) (احمد ٢/ ٢٨٣) ترمذي (٣/ ٣٣).

(كـورونـو تـه مقبرې مه جوړوئ ځكه چه شيطان د هغه كور نه تيخته كوي كوم كښې چه سورة البـقـره لـوستلې شي) مـعـلـومـه شـوه چـه مـقبره د قرآن كريم د قراءت او د مانځه ځائې نهٔ دې، خاصكر سورة البقره. (مجلة البحوث الاسلامية ٢٠/ ١٦٦).

## ٥- اكثر علماء په مقبره كښې قراءة القرآن ناجائز كنړي

**مذهب الحنفية :** عـلامـه ملا على القاريؒ فرمائي : (ثُمَّ الْقِرَاءَةُ عِنْدَ الْقُبُوْرِ مَكْرُوْهَةٌ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمَالِكٍ وَاَحْمَدَ رَحِمَهُمُ اللهُ - فِيْ رِوَايَةٍ لِاَنَّهُ مُحْدَثٌ، لَمْ تَرِدْ بِهِ السُّنَّةُ) (شرح الفقه الاكبر لملاعلى القاري ص (١١٠، ١٦٠) وشرح الاحياء (١/ ٢٨٠) الموسوعة الفقهية الكويتية (٣٤/ ١٠٦)

(د قبرونـو په خوا كښې قراءت د قرآن مكروه دې په نيز د امام ابو حنيفةؒ او مالكؒ او احمدؒ رحمهم الله باندې په يو روايت كښې ځكه چه دا يو نوې كار دې چه سنت كښې نهٔ دې راغلې).

شيخ اعزاز على ديوبندي وائي : (وَيُكْرَهُ قِرَاءَةُ الْقُرْاٰنِ فِي الْمَقْبَرَةِ مُطْلَقًا) (حاشية نور الايضاح ص

(١٣٤) فصل فى حملها) (د قرآن تلاوت په مقبره کښې مطلقاً مکروه دے).

**مذهب الشافعية** : امام شافعیؒ مرې ته د ثواب په نۀ رسيدلو په آيت : ﴿ وَأَنْ لَّيْسَ لِلْإِنْسَانِ إِلَّا مَا سَعٰى ﴾ او په حديث : (إِذَا مَاتَ ابْنُ آدَمَ إِنْقَطَعَ عَمَلُهٗ إِلَّا مِنْ ثَلَاثٍ الخ) سره دليل نيولے دے.

نوویؒ په شرح المنهاج د ابن النحویؒ کښې وائي : مړي ته زمونږ په نيز ثواب د قراءت نۀ رسيږي بناء په مشهور قول. او د عز بن عبد السلامؒ نه ددے باره کښې تپوس اُوشو نو هغه جواب ورکړو چه ثواب د قراءت د قاري پورے بند دے او دا بل چا ته نۀ رسيږي بلکه تعجب دے د خلقو نه چه دا کار په خوبونو سره ثابتوي او حال دا چه خوبونه هيڅ دليل نۀ دے. آه.

**مذهب المالكية** : شيخ ابن ابى حمزةؒ وائي : د قبرونو په خوا کښې قراءت کول بدعت دے او دا سنت نۀ دے (كما فى المدخل) علامه وهبة الزحيليؒ وائي : د مالکيانو په نيز قراءت په مړي باندے د هغه د مرګ نه پس او د هغه په قبر باندے مکروه عمل دے ځکه چه دا د سلفو عمل نۀ وو الخ . (الفقه الاسلامى وادلته ٥٥٠/٢)

**مذهب الحنابلة** : امام احمد يو سړے اُوليدو چه د قبر په خوا کښې ئے قراءت کولو نو هغه منع کړو او ورته ئے اُوفرمايل : (اَلْقِرَاءَةُ عِنْدَ الْقَبْرِ بِدْعَةٌ) (الانصاف للمرداوى ٣٦٩/٤) واقتضاء الصراط المستقيم (٧٣٥/٢) ( چه د قبر په خوا کښې تلاوت کول بدعت دے).

مجلة البحوث کښې فرمائي : (لَايَجُوْزُ اَنْ يُّقْرَأَ الْقُرْآنُ عِنْدَ الْقُبُوْرِ كَمَا يَفْعَلُهٗ بَعْضُ النَّاسِ الْيَوْمَ لِاَنَّ ذٰلِكَ مُحْدَثٌ لَمْ تَرِدْ بِهِ السُّنَّةُ، وَلَمْ يَصِحَّ عِنْدَ اَحَدٍ مِنَ السَّلَفِ) (مجلة البحوث الاسلامية ١٦٥/٢٠) (جائز نۀ دی چه د قبرونو په خوا کښې قرآن اُولوستلے شي لکه څنګه چه نن صبا ئے بعض خلق کوي ځکه چه دا کار بدعت دے سنت کښې نۀ دے ثابت او د سلفو د هيڅ عالِم په نيز صحيح نۀ دے).

لنډه دا ده چه د سلفو نه د قبرونو په خوا کښې قراءت کول نۀ دی ثابت نو کوم متأخرين مقلدين چه دے ته مستحب وائي، غلط وائي هيڅ دليل پرے نشته.

٢- **المسئلة الثانية** : دا خو ثابته شوه چه په مقبره کښې د قرآن کريم تلاوت په څلور مذهبه مکروه دے نو آيا خاص سورة الفاتحه او بقره لوستل جائز دي او که نۀ؟ نو د مخکنې دلائلو نه ثابته شوه چه ددے لوستل هم ضعيف دي او ددے په باره کښې خاص دلائل دا دي چه هغه هم ضعيف دي :

١- **روايت** : دا روايت دے چه (طبراني كبير ٤٤/١٢) بيهقى فى شعب الايمان (١٦/٧) رقم (٩٢٩٤) حياة الصحابة (٢٩١/٣) السنن الكبرىٰ (٥٦/٤) جامع الاحاديث للسيوطى رقم (٢٥٧٥).

دا روايت ضعيف جداً دے او په متن کښې ئے هم اختلاف دے ځکه چه په مشکاة وغيره کښې

ئې داسې الفاظ دي : (وَلْيُقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِهِ بِفَاتِحَةِ الْبَقَرَةِ) او په روايت د طبراني كښې (بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ)دي، او ددې په سند كښې بابلتي او ايوب بن نهيك دواړه ضعيف دي. (مجمع الزوائد ٣/٤٤) . او پدې كښې بل اختلاف دا دې چه داسې الفاظ دي : (وَلْيُقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِهِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَعِنْدَ رِجْلَيْهِ وَبِخَاتِمَةِ الْبَقَرَةِ فِيْ قَبْرِهِ).

**٢- روايت** : عبد الرحمن بن العلاء بن اللجلاج د خپل پلار نه نقل كوي چه ما ته پلار اُووئيل : (إِذَا أَنَا مِتُّ فَأَلْحِدْنِيْ وَفِيْهِ : ثُمَّ اقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِيْ بِفَاتِحَةِ الْبَقَرَةِ، وَخَاتِمَتِهَا فَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ ذٰلِكَ) (الطبراني في الكبير (١٩/٢٢) مجمع الزوائد (٦/٣٣)

او ددې سند هم ضعيف دې پدې كښې عبد الرحمن مقبول راوي دې يعنې لين الحديث دې ليكن كه متابع ئې پيدا شي او دلته ئې هيڅ متابع نشته. ابن حجر او نووي په اذكار كښې ورته حسن وئيلې دې ليكن هغوي دې علت ته نۀ دي متوجه شوي.

او دلته چه مشكاة كښې دا خبره راغله چه (والصحيح انه موقوف)نو ددې مطلب دا دې چه دې روايت باره كښې صحيح خبره دا ده چه دا موقوف روايت دې او دا مطلب نۀ دې چه موقوف روايت صحيح دې. بلكه دا موقوف روايت دې او ضعيف دې.

(اخرجه ابن عساكر في تاريخ دمشق (١٤/٦٢٦)

**٣- دريم روايت** : خلال روايت كوي فرمائي : ما ته حسن بن احمد الوراق خبر راكړې هغه وائي چه ما ته حديث بيان كړې علي بن موسى الحداد او هغه صدوق دې هغه فرمائي : زۀ د احمد بن حنبلؒ او محمد بن قدامة الجوهريؒ سره په يوه جنازه كښې شريك وم، كله چه مړې دفن شو نو يو روند سړې د قبر په خوا كښې كيناستو قراءت ئې كولو. نو احمدؒ ورته اُوفرمايل : اې سړيه ! د قبر په خوا كښې د قرآن لوستل بدعت دې، كله چه مونږ د مقبرې نه اُووتلو نو محمد بن قدامة احمد بن حنبل ته اُووئيل : اې ابوعبد الله ! ته د مبشر بن اسماعيل الحلبي په باره كښې څه وائې ؟ هغه اُووئيل : هغه ثقه (معتمد) دې. دۀ اُووئيل : زۀ ترې څه ليكلي شم ؟ احمدؒ اُوفرمايل : آو. نو هغه اُووئيل : ما ته مبشر د عبد الرحمن بن العلاء بن اللجلاج نه خبر راكړيدې چه هغه د خپل پلار نه روايت كوي چه هغه وصيت كړې وو چه هغه كله دفن كړې شي نو د هغه د سر سره دې د بقرې ابتدائي آيتونه او آخري آيتونه اُولوستلې شي. او دا ئې وئيلي دي چه ما د عبد الله بن عمرؓ نه آوريدلي دي چه پدې باندې به ئې وصيت كولو. نو امام احمدؒ ورته اُووئيل : لاړشه او هغه سړي ته اُووايه چه قراءت كوي. (المغني لابن قدامة ٢/٤٢٢) كتاب الروح لابن القيم ص (١٠) نو دا روايت ضعيف دې ځكه چه عبد الرحمن مجهول دې او وراق

هم غیر معروف شخص دے او دغه شان علی بن موسیٰ هم۔ لهذا مدار ددے روایت هم په عبد الرحمن دے او هغه مجهول دے نو چا چه ورته حسن وئیلی دے هغه له اعتبار نشته نو روایت ضعیف دے موقوفاً او مرفوعاً۔ دا وجه ده چه عام علماؤ د قبر په خوا کښې تلاوت کولو ته مکروه وئیلی دی۔

شیخ البانیؒ هم ورته بدعت وئیلی دی او اثر د ابن عمرؓ ته ئے ضعیف وئیلی دی۔

لهذا پدے باندے عمل کول نۀ دی پکار۔ راجع فتاوی الدین الخالص (۷/۲۳۹)

او دا اصولی قاعده ده چه کله یو شے دائر شی په مابین ددے کښې چه دا به مستحب وی او که بدعت نو ترک ئے واجب وی، دے دپاره چه انسان د مستحب په وجه په بدعت کښې واقع نشی۔ والله تعالیٰ اعلم۔

او مسئله د ایصال الثواب الی الاموات په اول جلد ددے کتاب کښې ذکر شویده۔

---

١٧١٧ (٢٦) - وَعَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ: لَمَّا تُوُفِّيَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ بِالْحُبْشِيِّ (مَوْضِعٌ قَرِيبٌ مِنْ مَكَّةَ) وَهُوَ مَوْضِعٌ فَحُمِلَ إِلٰى مَكَّةَ فَدُفِنَ بِهَا فَلَمَّا قَدِمَتْ عَائِشَةُ أَتَتْ قَبْرَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ فَقَالَتْ :

| | |
|---|---|
| وَكُنَّا كَنَدْمَانَيْ جَذِيْمَةَ حِقْبَةً | مِنَ الدَّهْرِ حَتّٰى قِيْلَ لَنْ يَّتَصَدَّعَا |
| فَلَمَّا تَفَرَّقْنَا كَأَنِّيْ وَمَالِكًا | لِطُوْلِ اجْتِمَاعٍ لَمْ نَبِتْ لَيْلَةً مَعًا |

ثُمَّ قَالَتْ: وَاللّٰهِ لَوْ حَضَرْتُكَ مَا دُفِنْتَ إِلَّا حَيْثُ مِتَّ وَلَوْ شَهِدْتُكَ مَا زُرْتُكَ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

ترجمه : او د ابن ابی ملیکۀ نه روایت دے، فرمائی چه کله عبد الرحمن ابی بکر په حُبشی علاقه کښې وفات شو (دا مکے ته نزدے) ځائے وو۔ نو مکے ته راوړے شو او هلته دفن کړے شو۔ هرکله چه عائشے رضی الله عنها (د حج دپاره مکے ته) تشریف راوړو نو (د خپل ورور) عبد الرحمن بن ابی بکر قبر ته راغله او هلته ئے دا اشعار اُووئیل :

(ترجمه : مونږ دواړه د جذیمه د دواړو ناستو ملګرو په شان د زمانے د یوے اُوږدے مودے پورے نۀ وو جدا شوی تردے چه دا اُووئیل شو چه دا دواړه خو به هیڅ کله هم جدا نشی لیکن کله چه مونږ دواړه (یعنی زۀ او مالك) د یو بل نه جدا شو نو د اُوږدے زمانے پورے پاتے کیدو باوجود ګویا

کښې د يو بے شپے دپاره هم يو ځائے شوى نهٔ وو۔ دے نه روستو عائشے رضى الله عنها اُوفرمايل : قسم په الله ! که زهٔ ستا د مرګ په وخت حاضره وے نو تهٔ به هغه ځائے کښې دفن کيدے کوم ځائے چه وفات شوے وے۔ او که زهٔ ستا د مرګ په وخت کښې حاضره وے نو پدے وخت کښې به ستا قبر خواته نهٔ راتلے۔ (ترمذى)۔

## تعارف د عبد الرحمن بن ابى بكر:

دا د ابوبکر صديق ځوى دے او مور ئے ام رومان د عائشۀ خپل سکه وروړ وو دا په اولادو د ابوبکر صديق کښې د تولو مشر وو، د مکے د فتح نه ئے لږ شان مخکښې ايمان راوړو او په جاهليت کښې ئے عبد الكعبة يا عبد العزى نوم وو، نبى ﷺ ورله عبد الرحمن نوم کيخودو دا ډير نيک عمله انسان وو، هيڅکله پرے تجربه د دروغو نهٔ ده شوے او دا په قريشو کښې انتهائى بهادر وو او د غشو په ويشتو کښې ډير ماهر وو، د خالد بن الوليد سره په جنګ يمامه کښې شريک وو نو د يمامے والو نه ئے اُووه کسان قتل کړل او نورو فتوحاتو ته هم حاضر شويدے او جنګ جمل کښې د خپلے خور عائشۀ سره ملګرے وو۔ او ددهٔ وروړ محمد د علی ؓ سره وو۔ عبد الرحمن د معاويه نه انکار اُوکړو چه د يزيد سره بيعت اُوکړى، معاويه ورته يو لاکهـ روپئ اُوليږلے هغه قبولے نکړے بيرته ئے اُوليږلے او دا ئے اُووئيل : (لَا أَبِيعُ دِيْنِىْ بِدُنْيَاىَ) (زهٔ خپل دين په دنيا نهٔ خرڅوم) نو مکے ته لاړو او هلته وفات شو مخکښې ددے نه چه د يزيد دپاره بيعت لا تمام شوے نهٔ وو۔ بعض وائى : د مکے په لاره کښې ناڅاپى وفات شو په سنه (٥٣هـ) کښې۔ بعض وائى : ددے وخت نه روستو وفات دے او عائشۀ ددهٔ نه لږه موده روستو په سنه (٥٩هـ) کښې وفات شوه۔

**تشريح : بِالْحُبْشِيِّ** : په ضمه د حاء دے د مکے نه دولس ميله وړاندے علاقه ده۔ بعض وائى لس ميله فاصله کښې پروت دے۔ جوهرى وائى د مکے لاندے طرف ته د يو غر نوم دے۔

**وَكُنَّا كَنَدْمَانَىْ** : دا اشعار متضمن دى دوه قصو لره هله پرے انسان پو هيږى۔

**اوله قصه** دا ده چه جذيمه د حِيْرَه (عراق) او دهغے د ماحول يو بادشاه وو۔ ددهٔ پوره نوم ابومالك جذيمة بن مالك بن فهم بن دوس الازد الازدى دے، دهٔ ته به ئے الابرش او الوضاح وئيلو وجه دا وه چه دا برګى بيمارئ والا وو او عرب به ددهٔ نه يريدل نو برص (برګى بيمارئ) ته ئے نهٔ منسوب کولو۔ نو دغه دوه صفتونه (الابرش او الوضاح) باندے به ئے پيژندلو۔ دا د طوائف الملوکى بادشاهانو په طريقه وو۔ او دا د عيسى ؑ د زمانے نه ډيرش کاله روستو راغلے وو۔ ددهٔ يو خورئيے وو چه هغه ته ئے عمرو بن عدى بن نصر بن ربيعة بن الحارث بن مالك اللخمى وئيلو او دهٔ ته به ئے عمم وئيلو ځکه چه دا اولنے هغه شخص وو چه پټکے به ئے په سرکونو او د

جذيمه د خور نوم رقاش وو۔ او د جذيمة د خپل خورئى سره ډيره سخته مينه وه نو هغه ترې پيرانو اُوتختولو، ډيره موده وروسته اُوګرځيدو ليكن پيدا ئې نهٔ كړو۔ پدې كښې د بنى القين نه دوه سړي راغلل چه ديو نوم مالك وو او د بل نوم عقيل وو۔ دواړه د فارج بن مالك بن كعب بن القين ځامن وو۔ دا دواړه په يو ځنګل كښې روان وو نو د عمرو سره مخامخ شو چه ډير بد حالت كښې وو نوكوټه ئې غټ شوى وو، ويخته ئې پراګنده وو۔ نو دې دواړو اُوپيژندلو او وې نيولو او خپل ماما جذيمه ته ئې راوستو پسددې نه چه د هغه وېښته او نور حالت ئې ورله برابر كړو نو جذيمه دې دواړو ته د ډير خوشحالئ نه اختيار وركړو او وې وئيل چه ما باندې څه حكم اُوكړئ! نو دې دواړو اُووئيل : (مُنَادَمَتَكَ مَا بَقِيتَ وَمَا بَقِينَا) ستا مجلس او هميشه دپاره ستاسو سره اُوسيدل غواړو چه ته تر څو ژوندې ئې او مونږ ژوندي يو)۔ نو هغه ورته اُووئيل ما دا كار اُوكړو۔ بس دا دواړه د هغه ملګرى شو چه بيا به په مثال كښې ذكر كولې شو څكه چه دا دواړه د هغه سره څلويښتو كالو پورې همجلس وو چه هيڅ خبره كښې ئې اختلاف نهٔ وو راغلې۔

(وفيات الاعيان لابى العباس احمد بن خلكان ١٨/٦ ) دا يوه قصه وه۔

**دويمه قصه** : دا اشعار د متمم بن نويره دي چه د خپل ورور مالك بن نويره مرثيه كوى كله چه هغه خالد بن وليد په خلافت د ابوبكر صديق كښې قتل كړې وو۔ كله چه عام عرب مرتد شو نو ابوبكر صديق خالد بن وليد د هغوى د قتال پسې اُوليږلو، خالد د مختلفو خلقو سره قتال اُوكړويو په هغوى كښې بنى تميم هم وو۔ نو د مالك بن نويره قوم بنى يربوع ته ورغلو، دا مالك بن نويره په جاهليت دور كښې انتهائى بهادر ميلمه دوست او غيرتى وو، نبى ﷺ ته راغلې وو او اسلام ئې راوړې وو، رسول الله ﷺ د خپل قوم بنى يربوع په صدقاتو او زكاتو راټولو باندې مقرر كړې وو كله چه نبى ﷺ وفات شو نو دا مرتد شو نو كله چه خالد مقابلې له ورغلو نو دهٔ اُووئيل زهٔ په مونځ باندې راتګ كوم او زكوة نهٔ وركوم، خالد اُووئيل : مونځ او زكوة دواړه د يو بل نه نهٔ جدا كيږي۔ يو د بل نه بغير نهٔ قبليږي، مالك اُووئيل : دا ستاسو د صاحب (يعنى ابوبكر) خبره ده۔ نو خالد په غصه شو چه دا ته خپل صاحب نهٔ ګنړې؟۔ خالد اراده اُوكړه چه قتل ئې كړي نو ابوقتاده انصاريؓ او عبد الله بن عمرؓ دواړو ورسره خبره اُوكړه چه مهٔ ئې قتلوه ليكن خالد اُونهٔ منله او ضرار بن الازور ته ئې حكم اُوكړو چه ددهٔ څټ اُووهه، پدې كښې ددهٔ ښځه راغلله چه ډيره ښائسته مخ والا وه نو هغې په مالك باندې ځان ګوزار كړو، مالك چه ښځې ته اُوكتل وې وئيل : (أَنْتِ الَّتِي قَتَلْتِنِي) اې ښځې ! تا زهٔ قتل كړم۔ خالد اُووئيل : (بَلْ قَتَلَكَ اللّٰهُ بِرُجُوعِكَ عَنِ الْإِسْلَامِ) ۔ بلكه الله قتل كړې د وجه د واپس كيدو ستا د اسلام نه۔ نو هغه اُووئيل

زهٔ په اسلام يم۔ خالد حکم اوکړو چه څټ ورله اووهه نو هغه اووهلو، نو پدے کښې متمم بن نويره راغلو او مرثيه ئے اوکړه او د خپل ورور په غم کښې ئے ابوبکر صديق ته اشعار اووئيل : او ابو قتادةؓ او ابن عمرؓ ابوبکرؓ ته ددے قصے خبر ورکړو نو ابوبکر ډير خفه شو او متمم بن نويره ته ئے ديت ورکړو۔ او کوم قيديان چه خالد نيولى وو هغه ئے هم ورته پريخودل۔ او خالد بن وليد د مالك ښځه واخستـه۔ عمر فاروق او ابو قتاده ابوبکر ته اووئيل چه خالد باندے حد جارى کړى ليکن ابوبکر اوفرمايل :(إِنَّهُ تَأَوَّلَ فَأَخْطَأَ) اجتهاد کښې خطاء شويدے۔

(شذرات الذهب فى اخبار مَنْ ذَهَبَ لعبد الحى العكرى الدمشقى ت (١٠٨٩هـ) (١/١٠)۔

او دا متمم هم ښائسته مسلمان وو۔ دهٔ به د خپل ورور په غم کښې تول عمر اشعار وئيل او ژړل به ئے تردے چه اهل تاريخ ليکى چه په دنيا کښې هيڅوك داسے نشته چه ورور پسے ئے دومره خفگان او ژړا کړى وى لکه څومره چه متمم د خپل ورور مالك پسے ژړا کړيده۔ يوه ورځ ورته عمر فاروق اووئيل چه زما دا خوښه ده چه ما هم دومره خفگان کړے وے په خپل ورور (زيد بن الخطاب) پسے څومره چه ته د مالك پسے کوے۔ نو هغه اووئيل : (وَاللهِ لَوْ عَلِمْتُ اَنَّ اَخِىْ صَارَ اِلىٰ مَا صَارَ اِلَيْهِ اَخُوكَ لَمْ اَرْثِهِ وَلَمْ اَحْزَنْ عَلَيْهِ- يَعْنِى الْجَنَّةَ) (که ما ته دا معلومه وے چه زما ورور هغه ځائے ته واپس شويدے کوم ځائے ته چه ستا ورور واپس شويدے يعنى جنت نو ما به د هغه مرثيه نهٔ وے وئيلے او نهٔ به مے پرے غم کړے وے) بعض علماء وائى دا روايت تائيد کوى ددے چه مالك په حالت د ارتداد کښې تلے دے۔ ليکن بعض نور علماء وائى چه دا په غلط فهمئ کښې وژل شويدے او خالد پرے ګمان اوکړو چه ګنے دا مرتد دے۔ او همدا خبره ابن عبد البرؒ راجع کړيده۔

(الاستيعاب ١/٤٣٣) (سمط النجوم العوالى فى انباء الاوائل والتوالى للعصامى ١/٤٤١)

متمم د خپل ورور ډيره مرثيه کړيده لکه داسے اشعار ئے وئيلى دى :

| | | |
|---|---|---|
| لَقَدْ لَامَنِىْ عِنْدَ الْقُبُوْرِ عَلَى الْبُكَا | | رَفِيْقِىْ لِتَذْرَافِ الدُّمُوْعِ السَّوَافِكِ |
| فَقَالَ : اَتَبْكِىْ كُلَّ قَبْرٍ رَاَيْتَهُ | | لِقَبْرٍ ثَوٰى بَيْنَ اللِّوٰى وَالدَّكَادِكِ |
| فَقُلْتُ لَهُ اِنَّ الشَّجَا يَبْعَثُ الشَّجَا | | فَدَعْنِىْ فَهٰذَا كُلُّهُ قَبْرُ مَالِكِ |

(الحماسة باب المراثى) وفيات الاعيان (٦/١٧)۔

نو بعض اشعار ئے پدے روايت کښې راغلى دى وکنا کندمانى الخ

نو عائشے رضى الله عنها د خپل ورور عبد الرحمن په باره کښې پدے اشعارو تمثل اوکړو او د متمم دا شعرونه ئے د خپل ورور په باره کښې اووئيل څکه چه دا دلسوز دى۔

**حاصل الابيات** : ددے دواړو شعرونو مطلب دا دے چه شاعر وائي : زهٔ (متمم) او مالك دواړه ډيره زمانه داسے شريك گرځيدو او ژوند مو تيرولو چه خلقو به دا گمان كولو چه دوی به هيچرے د يو بل نه جدا نشي لكه څنگه چه د جذيمه دواړه ملگري د يو بل په نهٔ جدا كيدو مشهور شوي وو۔ ليكن هركله چه مونږ د يو بل نه جدا شو (په مرگ د مالك سره) نو گويا كښې زهٔ او مالك داسے ښكاريدو لكه چه مونږ سره د اوږد ژوند نه يوه شپه هم شريكه نهٔ وي تيره كړې۔ او وخت دومره زر تير شو۔ او پوره جدائي راغله۔ نو عائشةؓ فرمائي : گويا كښې ما او عبد الرحمن هم شريك ژوند نهٔ دے تير كړے۔

ددے دواړو شعرونو په مينځ كښې صاحب د وفيات الاعيان داسے شعر هم زيات كړيدے :

| وَعِشْنَا بِخَيْرٍ فِي الْحَيَاةِ وَقَبْلَنَا | | اَصَابَ الْمَنَايَا رَهْطَ كِسْرىٰ وَتُبَّعَا |
|---|---|---|

(او مونږ په خير سره ژوند تير كړے وو او لو زمونږ نه مخكښې د كسرىٰ او تبع قوم ته مرگونه رسيدلي دي) نو د مرگ نه خلاصے نشته۔

**حل الابيات** : حِقْبَةً: دا په كسره د حاء سره اوږدے مودے ته وئيلے شي۔ او حقبة منصوب دے په كُنَّا سره اصل كښې داسے دے : (وَكُنَّا حِقْبَةً مِنَ الدَّهْرِ كَنَدْمَانَيْ جَذِيْمَةَ)

وَمَالِكًا: منصوب دے عطف دے په ياء ضمير د متكلم۔ او ددے مالك نه مراد د شاعر ورور دے چه مالك بن نويره ئے نوم دے۔

حَتّٰى قِيْلَ : يعني خلقو كښې دا مشهوره شوے وه۔

لَنْ يَتَصَدَّعَا : تصدع يو بل نه جدا كيدو ته وائي۔

لِطُوْلِ اجْتِمَاعٍ : لام په معنیٰ د مع دے يعني سره د اوږد راجمع كيدو زمونږ نه د يو بل سره۔ يا لام په معنیٰ د بعد دے۔ لكه په آيت : (اَقِمِ الصَّلَاةَ لِدُلُوْكِ الشَّمْسِ) كښې لام په معنیٰ بَعْدُ سره دے۔

مَعًا: يعني په يو ځائے۔

لَوْحَضَرْتُكَ : يعني كه زهٔ ستا د دفن وخت ته حاضره شوے وے نو ته به هغه ځائے دفن شوے وے كوم ځائے چه وفات شوے وے۔

ددے نه معلومه شوه چه د مړي د خپل ځائے د مرگ نه نقل كول گناه ده او دا د عائشےؓ فهم هم دے۔ صرف يو ميل دوه (يعني معمولي) فاصله كښې نقل كول جائز دي لكه مسئله مخكښې تفصيلًا ذكر شوه۔

وَلَوْ شَهِدْتُكَ مَا زُرْتُكَ: ددے الفاظو د عائشےؓ نه معلوميږي چه د زنانو دپاره د قبرونو زيارت او ملاقات جائز نهٔ دے نو بيا عائشهٔ ولے د ورور ملاقات له راغله۔ نو ددے وجه دا ده چه كوم روايت كښې د

زنانو دپاره د زیارة القبور نهی راغلی ده نو هغه محمول دے په دیر بار بار زیارت کولو۔ لکه په بعض روایاتو کښې (لَعَنَ اللّٰهُ زَوَّارَاتِ الْقُبُوْرِ) راغلی دی او زوّارات د مبالغې صیغه ده چه دلالت کوی په تکرار او بار بار تللو باندے۔ لیکن د ابن عباسؓ د روایت نه معلومیږی چه (زَائِرَاتِ الْقُبُوْرِ) الفاظ هم راغلی دی (رواه احمد وابوداود) نو هغې نه د مطلقاً زیارت نهی معلومیږی۔

نو ددے وجه نه بعض علماء وائی چه دا نهی په هغه وخت کښې ده چه زنانه د شرطونو خلاف زیارت کوی مثلاً گناهونه پکښې کوی لکه ویر کوی، زینت ښکاره کوی، خاص بابا له ځی۔ او که داسے نهٔ وی نو بیا د زنانو دپاره زیارة القبور ثابت دے۔ او ددے مسئلې تفصیل په باب المساجد کښې تیر شویدے۔

**درجة الحديث** : الحديث صحيح: الترمذی (۱۰۵۵) وهو مرسل ورجاله ثقات الا ان ابن جريج مدلس وقد عنعنه وذكره الهيثمي في المجمع (۳/۶۰) عن الطبرانی فی الکبیر ورجاله رجال الصحیح واخرجه عبد الرزاق (۶۵۳۵) من حدیث ابن جریج قال سمعت ابن ابی ملیکة یقول : قالت عائشة : لو حضرت عبد الرحمن تمنی اخاها – ما دفن الا حیث مات و کان مات بالحبشی ودفن باعلی مکة واسناده صحیح فقد صرح ابن جریج بسماعه من ابن ابی ملیکة فانتفت تهمة تدلیسه وتابعه ایوب عند عبد الرزاق ایضا (۶۵۳۹) وقال الالبانی وله شاهد الارواء (۷۷۵) (۳/۲۳٤)۔

---

**۱۷۱۸ (۲۷) – وَعَنْ أَبِيْ رَافِعٍ قَالَ: سَلَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ سَعْدًا وَرَشَّ عَلٰى قَبْرِهٖ مَاءً. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : او ابو رافع ؓ فرمائی : رسول الله ﷺ د سعد (جنازه) د خپو طرف نه قبر ته کوزه کړه او د هغه په قبر باندے ئے اوبه چړکاؤ کړے۔ (ابن ماجة)۔

**تشریح** : د سل معنیٰ مخکښې ذکر شوه چه د مړی کټ د قبر آخر ته کیږدی او بیائے د سر نه په اوږدو باندے کندے ته راکاږی۔ او همدا سنت طریقه ده او په پلنو باندے سنت نهٔ دی۔

ددے سعد نه مراد سعد بن معاذ ؓ دے۔

په قبر باندے اوبه چړکاؤ کول هم سنت عمل دے لیکن دا صرف په ابتداء د دفن کښې مراد ده او بار بار د اخترونو په ورځو کښې یا د عاشورے په ورځ اوبه وراچول جائز نهٔ دی۔

دا روایت اگرکه ضعیف دے۔ لیکن دا دواړه مسئلې د نورو صحیح احادیثو نه ثابت دی۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف جداً، ابن ماجة (۱۵۵۱) لضعف مندل بن علی وشیخه محمد بن عبید الله بن ابی رافع متروک۔

**۱۷۱۹ (۲۸) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ : أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ صَلّٰى عَلٰى جَنَازَةٍ ثُمَّ أَتَى الْقَبْرَ فَحَثَا عَلَيْهِ مِنْ قِبَلِ رَأْسِهِ ثَلَاثًا. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه :** او د ابو هریره ﷺ نه روایت دے چه (یو ځل) رسول الله ﷺ په یوه جنازه باندے مونځ اُوکړو بیا قبر ته راغلو او په هغه باندے ئے د سر د طرف نه درے لپے خاورے واړولے۔ (ابن ماجه).

**تشریح : فَحَثَا عَلَيْهِ :** یعنی د هغه په قبر ئے درے لپے خاوره واچوله ځکه چه دا د مړی حق دے۔ او نبی ﷺ دغه شان کار په قبر د عثمان بن مظعون باندے هم کړے وو۔ لهذا دا هم سنت طریقه ده۔

**درجة الحديث :** اسناده صحیح : ابن ماجه (١٥٦٥) قال فی الزوائد : رجاله ثقات (البانی) ارواء الغلیل (٧٥١) (٣/٢٠٠)۔

---

**۱۷۲۰ (۲۹) – وَعَنْ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ قَالَ: رَآنِي النَّبِيُّ ﷺ مُتَّكِئًا عَلٰى قَبْرٍ فَقَالَ: «لَا تُؤْذِ صَاحِبَ هٰذَا الْقَبْرِ أَوْلَا تُؤْذِهِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.**

**ترجمه :** او عمر بن حزم ﷺ فرمائی : زهٔ نبی کریم ﷺ اُولیدم چه په قبر مے تکیه وهلے وه۔ وے فرمایل : «ددے قبر والا ته تکلیف مهٔ ورکوه »۔ یا ئے داسے اُوفرمایل : «دے مړی ته تکلیف مهٔ ورکوه»۔ (احمد)۔

**تشریح :** یعنی یا ئے صاحب لفظ استعمال کړے یا ئے د هغه په ځائے ضمیر ذکر کړیدے۔ یعنی صاحب ددے قبر ته ضرر مهٔ ورکوه یا دهٔ ته ضرر مهٔ ورکوه۔

دا روایت سره د نورو مخکښ تیر شوی روایاتو نه دلیل دے چه په قبر باندے کیناستل، په مقبره کښ بغیر د ضرورت نه د څپلو سره ګرځیدل او دغه شان قبر باندے تکیه لګول جائز نهٔ دی۔ او پدے روایت کښ علت ذکر شو چه کیناستل او تکیه لګول ځکه حرام دی چه پدے سره مړی ته تکلیف رسی۔ دا حدیث د عمارة بن حزم په روایت صحیح دے لکه مخکښ مسئله کښ ذکر شویدے۔

**درجة الحديث:** اسناده صحیح : قال الالبانی اسناده صحیح، سلسلة الاحادیث الصحیحة (٦/٤٥٩) رقم (٢٩٦٠) وقال الحافظ فی الفتح اسناده صحیح وهذا الحدیث لا یوجد فی المسند وذکره المنذری فی الترغیب والترهیب (٤/١٩٠) والهیثمی فی المجمع (٣/٦١) نحوه من عمارة بن حزم وهو اخو عمرو۔

# ٧- باب البكاء على الميت

## په مړي باندے د ژړا بيان

بکاء په مد سره هغه ژړا ته وئيلے شي چه اُوښکے ورسره وي او بغير د مد نه هغه ژړا ده چه اُوښکے ورسره نهٔ وي۔

په مړي باندے ژړا دوه قسمه ده يو په مړي باندے ژړا كول په غير د نياحت (وير) او فرياد او جزع فزع نه وي چه آواز پكښې نهٔ پورته كوي صرف اُوښكے روانے وي نو دا سنت عمل دے او د مړي حق دے او د مسلمان د زړهٔ نرمي او رحمت دے۔

دويمه هغه ژړا ده چه په صوت او آواز سره وي نو دا كبيره گناه ده او پدے سره مړي ته الله تعالىٰ عذاب وركوي۔ لكه روستو به راشي۔

د بعض صوفياؤ نه نقل دي چه هغوي له به كله د خپل بچي د وفات خبر وركړے شو نو هغوي به خندا كوله۔ حال دا چه دا كار د سنت نبوي خلاف دے، او د الله د نبي نه ځان مخكښې كول دي۔ دير كرت د خلقو دا گمان راځي چه گنے همدا به، د الله په تقدير باندے رضا وي چه د چا د مرگ د خبريدو نه پس خندا اُوكړے شي۔ حال دا چه دا ناروا عمل دے۔

وجه دا ده چه د انسان د وفات په وخت دوه حقوق انسان ته متوجه وي يو د الله حق چه د هغه نه به بنده نهٔ ناراضه كيږي او د هغه په تقدير به خوشحاله وي او په زړهٔ او خولے سره به په الله باندے اعتراض نهٔ كوي او بل حق د بنده دے او هغه دا چه كله يو بنده د دنيا نه آخرت ته نقل كيږي نو دا عظيم هيبت دے، پكار ده چه بنده په هغه باندے خائكان اُوكړي۔ او دا د زړهٔ سختي ده او عظيم عقوبت او سزاء ده چه د مؤمن زړه سخت شي، يو زور مسلمان يا بچے د هغه د دنيا نه روان وي او دا خندا كوي۔ او كه مړے راژوندے شي او خبر شي چه زما په مرگ باندے فلاني خندلي دي نو څومره به خفه شي۔نو د مرگ هيبت تقاضا كوي چه د مړي پسے ژړا اُوكړے شي لكه رسول الله ﷺ ددے دواړو خبرو لحاظ ساتلے دے لكه چه تاسو ته به په راتلونكو احاديثو كښې ددے معلومات اُوشي۔ د رسول الله ﷺ د عمل په مخالفت كښې به د هيڅ صوفي طريقے ته نشي كتلے۔

## الفصل الأول

١٧٢١ (١) - عَنْ أَنَسٍ قَالَ: دَخَلْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ عَلٰى أَبِيْ سَيْفٍ الْقَيْنِ وَكَانَ ظِئْرًا لِإِبْرَاهِيْمَ فَأَخَذَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِبْرَاهِيْمَ فَقَبَّلَهُ وَشَمَّهُ ثُمَّ دَخَلْنَا عَلَيْهِ بَعْدَ ذٰلِكَ وَإِبْرَاهِيْمُ يَجُوْدُ بِنَفْسِهِ فَجَعَلَتْ عَيْنَا رَسُوْلِ اللهِ ﷺ تَذْرِفَانِ. فَقَالَ لَهُ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ عَوْفٍ: وَأَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللهِ؟ فَقَالَ: «يَا ابْنَ عَوْفٍ! إِنَّهَا رَحْمَةٌ» ثُمَّ أَتْبَعَهَا بِأُخْرٰى فَقَالَ: «إِنَّ الْعَيْنَ تَدْمَعُ وَالْقَلْبَ يَحْزَنُ وَلَا نَقُوْلُ إِلَّا مَا يَرْضٰى رَبُّنَا وَإِنَّا بِفِرَاقِكَ يَا إِبْرَاهِيْمُ لَمَحْزُوْنُوْنَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: د انس ﷺ نه روايت دے فرمائي : مونږ د رسول الله ﷺ سره په ابوسيف لوهار داخل شو چه دا (د نبي ﷺ د خوى) ابراهيم د دائي خاوند وو۔ (يعني د ابراهيم رضاعي پلارئے وو) نو رسول الله ﷺ ابراهيم لره (په خپله غيږه کښې) راواخستو او خکل ئے کړو او بوئي کړو (يعني خپله خوله او پوزه ئے په هغه ډاسے کيخودل لکه چه يو ه خوشبوئي بوئي کوي) ددے واقعے نه څه ورځے روستو مونږ ابوسيف باندے داخل شو او ابراهيم خپل روح باندے سخا کوله (يعني په حالت د زنکدن کښې وو) نو د رسول الله ﷺ دواړه سترگے د اُوښکو نه اُوبهيدلے۔ هغه ته عبد الرحمن بن عوف اُووئيل : اے د الله رسوله ! تهٔ هم (ژړا کوے ؟) نبي کريم ﷺ جواب ورکړو : اے ابن عوف ! دا (د سترگو بهيدل) رحمت دے۔ دے نه روستو بيا د نبي کريم ﷺ د سترگو نه اُوښکے اُوبهيدلے۔ او وے فرمايل: سترگے اُوښکے بهيوي او زړهٔ غمجن دے ليکن ددے باوجود مونږ به هغه خبره کوو کوم باندے چه زمونږ رب راضي کيږي او مونږ اے ابراهيم ! ستا په جدائي ضرور غمجن يو۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)۔

**تشريح** : أَبِيْ سَيْفٍ : د واقديؒ د روايت نه معلوميږي چه ابراهيم ابن النبي ﷺ ته ام برده بنت المنذر بن زيد تئے ورکړے وو او دلته وائي چه د ابوسيف ښځے ام سيف ورکړے وو۔ نو قاضي عياضؒ وئيلي دي چه ام سيف د ابوسيف ښځه وه او دا بعينه ام برده وه او نوم د هغے خوله بنت المنذر الانصاريه وه۔

حافظ ابن حجرؒ وائي : کيدے شي دواړو تے ورکړے وي۔

د عربو عادت دا وو چه خپل بچي به ئے د تيو دپاره باندو والو ته ورکول دے دپاره چه هغوي ئے تربيت اُوکړي او ژبه هم صحيح ياده کړي۔ او په جبال (غرونو) د اعرابو کښې ئے بدن قوي شي۔

الْقَيْنِ : آهنګر او لوهار ته وائي بيائې په هر کاريګر باندې اطلاق کيږي او په اصل کښې قين مصلح او د يو شي جوړونکي ته وئيلې شي.

وَكَانَ ظِئْرًا : ظئر اصل کښې تئې ورکونکې ته وئيلې شي. ليکن سړي د پاره پدې وجه استعماليږي چه په ښځه کښې پئ د سړي د وجه نه پيدا شويدي نو ګويا کښې تې ورکونکې سړې شو. بيا ظئر د دواړو د پاره استعماليږي مذکر او مؤنث دواړه پکښې برابر دي. او ظئر په اصل لغت کښې دې د پاره استعمال دې چه ګله يوه اُوښه د بل چا بچي له تې ورکړي په هغې ئې رحم راشي. نو دلته د ظئر نه مراد رضاعي پلار دې.

په روايت د مسلم کښې دي : رسول الله ﷺ اُوفرمايل : ((بيګاه شپه زما خوي شوې دې ما ورله د خپل پلار نوم (ابراهيم) کيخودو بيائې هغه ام سيف ته ورکړو چه په مدينه کښې د يو آينګر ښځه وه چه هغه ته ئې ابو سيف وئيلو نو رسول الله ﷺ روان شو. (انسؓ فرمائي:) زهٔ هم ورپسې شوم نو ابو سيف ته اُورسيدو او هغه خپلې يني ته پوکي کول او کوټه د لوګو نه ډکه شوې وه نو زهٔ د رسول الله ﷺ نه مخکښې تيز لاړم او ابو سيف ته مې اُووئيل: بند شه رسول الله ﷺ راغلو. نو هغه راغلو او خپل خوي ئې خکل کړو الخ.

وَشَمَّهُ : يعني پوزه او مخ ئې د ابراهيم په مخ باندې کيخودو لکه څوك چه يوه خوشبوئي بوئي کوي.

ثُمَّ دَخَلْنَا عَلَيْهِ : دا جدا موقعه ده.

يَجُودُ بِنَفْسِهِ : سخاء ئې په خپل نفس سره کوله يعني ساه ئې ورکوله.

تَذْرِفَانِ: اُوښکې ترې روانې وې. (ذَرَفَتِ الْعَيْنُ إِذَا جَرَى دَمْعُهَا- نهايه)

وَأَنْتَ يَا رَسُولَ اللهِ : پدې کښې معنیٰ د تعجب پرته ده. يعني اې د الله رسوله ! ته هم د نورو خلقو په شان ژړا او جزع فزع کوې؟. نو رسول الله ﷺ ورته جواب ورکړو چه دا خو د الله رحمت دې.

إِنَّهَا رَحْمَةٌ : يعني دا اُوښکې تويه ول يا دا حالت چه ته ئې وينې دا اثر د هغه رحمت دې چه الله تعالیٰ ئې په زړونو د خپلو بندګانو کښې اچوي. يعني د بندګانو په زړونو کښې دا رحمت الله تعالیٰ اچولې وي پدې وجه د هغوي په يو بل باندې خفګان او شفقت راځي نو د هغوي په مړ کيدو څکه ژاړي. او دا هغه ژړا نهٔ ده کومه چه په جزع فزع سره وي او بې صبري نهٔ ده.

په روايت د ابن سعدؒ او طبرانيؒ کښې په دې حديث د عبد الرحمن بن عوف کښې دي چه ما اُووئيل : (يَارَسُولَ اللهِ تَبْكِي أَوَلَمْ تَنْهَ عَنِ الْبُكَاءِ) (اې د الله رسوله ! ته هم ژاړې آيا تا ګنې د ژړا نه منع نهٔ ده کړې ؟) او په روايت د مکحول کښې مرسلاً راغلي دي چه : زهٔ خلق د ويرنه منع کوم چه يو

انسان د یو سړي داسې ستائینې اُوکړي چه هغه کښې نهٔ وي۔

**ثُمَّ أَتْبَعَهَا بِأُخْرَى** : ١- یعنی د یو کرت اُوښکو بیولو نه بعد ئې بیا اُوژړل۔ ٢- یا مخکښې کلمې ته راجع دې یعنې ددې مخکښې مجملې کلمې پسې ئې بله کلمه ورپسې کړه او د هغې تشریح او تفسیر ئې اُوکړو پدې الفاظو سره ان العین الخ۔ حافظ ابن حجرؒ دا دویم مطلب غوره کړیدې۔ دوجه د مخکنو دوه روایتونو نه۔

یعنی دې ژړا ته چه ما رحمت اُوویلو نو وجه دا ده چه د انسانانو زړونه په یو بل رحم او شفقت کوي نو د هغې په وجه د سترګو نه اُوښکې څي او مونږ به هغه خبرې کوو چه الله پرې راضي کیږي او دا جزع فزع نهٔ ده۔

**وَإِنَّا بِفِرَاقِكَ** : ابراهیم اګرکه پدې آواز نهٔ پوهیږي لیکن پدې کښې تعریض او اشاره ده غیر ته چه اې مخاطبینو تاسو پوهه شئ چه دا صرف ظاهري حزن او خفګان دې په مړي پسې او پدې کښې د تقدیر او د الله د رضا هیڅ مخالفت نشته۔ او دا په مخکنۍ نهي کښې داخل نهٔ دې۔

**مَا يَرْضَى رَبُّنَا** : یرضی صیغه د معلوم ده او ربنا ئې فاعل دې او ما موصوله ده چه عائد ئې محذوف دې اې مَا يَرْضَى بِهِ رَبُّنَا ۔ علي القاريؒ وائي : په یوه نسخه کښې د یاء ضمه ده او رَبَّنَا منصوب دې مفعول به دې۔ أَيْ مَا يُرْضِيْ رَبَّنَا۔ یعنی هغه خبرې چه زمونږ رب خوشحالوي۔

**فوائد الحدیث** : ١- کله چه ابراهیم ؓ وفات شو نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : (إِنَّ لَهُ مُرْضِعًا فِي الْجَنَّةِ) (ابراهیم له الله تعالیٰ په جنت کښې یو تې ورکونکې ښځه ورکړه چه هغه ته تې ورکوي) (متفق علیه) دا ابراهیم د اتلسو میاشتو په عمر وفات شوې وو۔

٢- د الله نبي بشر دې، د عام انسانانو په شان احوال پرې راځي، غم او خفګان د خپل ځان نه نشي دفع کولې۔ نو د الله په بادشاهۍ کښې متصرف او واکدار نهٔ دې۔

٣- ابن بطالؒ وغیره وائي : دا حدیث د مباحې ژړا او جائز غم کولو تفسیر کوي کوم چه د سترګو په اُوښکو سره وي او د زړهٔ په نرمۍ سره وي او د الله په تقدیر باندې هیڅ اعتراض او په هغې باندې هیڅ غصه نهٔ وي نو دا جائزه ژړا ده۔

٤- حدیث نه ثابته شوه چه ماشومان خکلول افضله طریقه ده څکه چه دا د رحمت او شفقت تقاضا ده۔

٥- خپل ماشوم له د پردو زنانو تې ورکول جائز دي۔

٦- د بیمار، اګرکه ماشوم وي عیادت کول سنت عمل دې۔٧- مر کیدونکي انسان ته حاضریدل افضل دي۔

۸- په خپل اهل وعیال باندے شفقت لرل ضروری دی۔

۹- د خپل خفګان ښکاره کول او د هغے خبر ورکول جائز دی اګرکه پټول ئے افضل دی۔

۱۰- تعریض کول جائز دی یعنی چه خطاب یو ته کوی او مراد ترے بل څوك وی لکه دلته خطاب ابراهیم ته اُوشو لیکن مراد ترے نور حاضرین دی او ابراهیم خو اهل د خطاب نهٔ وو ځکه چه یو خو ماشوم وو بل روح ترے روان وو۔ نو پدے کښ حاضرینو ته دا اشاره شوه چه داسے قسم خفګان او ژړا کول په مخکنئ نهی او منع کښ نهٔ داخلیږی۔

۱۱- د چا عمل چه د هغه خبرو مخالف ښکاره شی نو هغه باندے اعتراض کول جائز دی چه دا ولے کوی؟ دے دپاره چه فرق ښکاره شی۔

۱۲- تابع له جائز دی چه د خپل متبوع نه تپوس اُوکړی کله چه یوه خبره اُووینی چه ظاهر کښ د شریعت خلاف وی۔ په رندو سترګو به د چا تابعداری نشی کیدے۔ نو دا خبره غلطه شوه چه بعض خلق وائی د امامانو او علماؤ نه به د دلیل تپوس نشی کیدے۔ خصوصاً تصوف والا وائی چه په خپل شیخ او پیر به هیڅ اعتراض نهٔ کوے اګرکه د شریعت خلاف کوی۔

---

۱۷۲۲ (۲) - وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ: أَرْسَلَتِ ابْنَةُ النَّبِيِّ ﷺ إِلَيْهِ :أَنَّ ابْنًا لِيْ قُبِضَ فَأْتِنَا. فَأَرْسَلَ يُقْرِءُ السَّلَامَ وَيَقُوْلُ: «إِنَّ لِلّٰهِ مَا أَخَذَ وَلَهٗ مَا أَعْطٰى وَكُلٌّ عِنْدَهٗ بِأَجَلٍ مُسَمًّى فَلْتَصْبِرْ وَلْتَحْتَسِبْ» . فَأَرْسَلَتْ إِلَيْهِ تُقْسِمُ عَلَيْهِ لَيَأْتِيَنَّهَا فَقَامَ وَمَعَهٗ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ وَمُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ وَرِجَالٌ فَرُفِعَ إِلٰى رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ الصَّبِيُّ وَنَفْسُهٗ تَتَقَعْقَعُ فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ. فَقَالَ سَعْدٌ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا هٰذَا ؟ فَقَالَ: «هٰذِهٖ رَحْمَةٌ جَعَلَهَا اللّٰهُ فِيْ قُلُوْبِ عِبَادِهٖ. فَإِنَّمَا يَرْحَمُ اللّٰهُ مِنْ عِبَادِهِ الرُّحَمَاءَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او اسامه بن زید ﷛ فرمائی : د نبی کریم ﷺ لور (زینبؓ) هغه ته په یوه ذریعه دا پیغام اُولیږلو چه زما ځوی وفات کیږی پدے وجه (فوراً) تاسو زمونږ خوا ته تشریف راوړئ۔ نو نبی کریم ﷺ (ددے په جواب کښ) پیغام اُولیږلو چه سلام ئے وئیلو او فرمایل ئے : ان لله ما اخذ ......یعنی الله چه کوم شے واخستو (اولاد وغیره) هغه د الله دپاره وو او هغه شے چه هغه ورکړے وو هغه هم د هغه دے (لهذا د هغے په اخستو جزع فزع مهٔ کوه) او هر شے د الله سره په یوه مقرره نیته دے لهذا ته صبر کوه او د ثواب امید ساته۔ زینبؓ دوباره پیغام اُولیږلو او (پدے ځل) هغے رسول الله ﷺ ته قسم ورکړو چه خامخا تشریف راوړی۔ نو نبی کریم ﷺ راپاڅیدو او د هغه

سره سعد بن عباده او معاذ بن جبل او ابى بن كعب او زيد بن ثابت او نور سري وو. (كله چه هلته اُورسيدل) نو ماشوم د نبى كريم ﷺ غيږ كښې وركړے شو چه د روح د وتلو په حالت كښې وو. (پدے ليدو سره) د نبى كريم د سترګو مباركو نه اُوښكې راتوى شوے. سعدؓ اُووئيل : اے د الله رسوله ! دا څه دى ؟. نبى كريم ﷺ اُوفرمايل : ((دا رحمت دے چه الله د خپلو بندګانو په زړونو كښې اچولے دے او الله تعالىٰ د خپلو بندګانو نه په هغه چا رحم كوى چه هغوى په نورو خلقو رحم كونكى وى)) (بخارىؒ).

**تشريح :** اِبْنَةُ النَّبِيِّ : په روايت د ابن ابى شيبه او ابن بشكوال كښې دى چه دا زينبؓ وه.

اِبْنًا لِيْ قُبِضَ : نهايه كښې ئے ليكلى دى چه د قبض لفظ د دوه معنو دپاره استعماليږى يو دا چه روح ترے اُوځى. ٢- دويم دا چه مرګ ته نزدے شوے وى او روح ئے په وتو كښې وى.

ددے ابن نه مراد على بن ابى العاص بن الربيع دے. ليكن دے باندے بعض خلقو دا اشكال كړيدے چه دا خو بلوغ ته نزدے شوے وو او رسول الله ﷺ د مكے د فتح په ورځ د ځان سره په اُوښه باندے شاته كينولے وو. نو عرفاً خو دهٔ ته صبى نشى وئيلے اګركه لغةً ورته صبى وئيلے شى.

نو ددے وجه نه بعض علماؤ وئيلى دى چه دا د عثمان بن عفان ځوى دے د رقيه نه او نوم ئے عبد الله وو. لكه بلاذرى په الانساب كښې دا روايت راوړيدے.

٣- بعض وائى : دا د فاطمے ځوى وو محسن ئے نوم وو او په وړوكوالى كښې وفات شويدے. ٤- او حافظ ليكښې دا هم وئيلى دى چه دا هلك نهٔ وو بلكه جينۍ وه لكه د بعض رواياتو د ابوداود وغيره نه معلوميږى نوم ئے امامه بنت ابى العاص بن الربيع وه. او امامه اګركه د نبى ﷺ نه روستو هم ژوندۍ وه خو دا كيدے شى چه نبى ﷺ ورغلے وى او الله تعالىٰ ورله اكرام كړے وى او ددے بيمارۍ نه ئے ښه كړى وى او بيا ئے ژوند تير كړے وى.

ليكن عينىؒ وائى چه د بخارى روايت پدے دلالت كوى چه دا ابن وو او بعض علماؤ ددے تطبيق داسے كړيدے چه دا امكان شته چه دا مختلفے واقعے وى.

وَيَقُوْلُ: يعنى هغے ته ئے تسلى وركوله او داسے ئے وئيل :

اِنَّ لِلّٰهِ مَا اَخَذَ وَلَهٗ مَا اَعْطٰى : يعنى دا هر څه د الله دى او هغه واخستل نو بل څه چل پاتے نهٔ دے مګر صبر كول.

معنىٰ دا ده : چه الله د كوم څيز د اخستو اراده كړيده نو همدا شے الله تعالىٰ وركړے وو نو كه الله واخستو، دا د هغه خپل شے وو نو پدے باندے جزع فزع اوبے صبرى نهٔ ده پكار څكه چه په سره امانت كيخودلے شوے وى او بيا د هغه نه د هغه امانت د واپسۍ مطالبه كولے شى نو هغه له

جزع فزع او شکایت نهٔ دے پکار۔

ما اخذ : (ما) په دواړو ځایونو کښې موصوله ده۔ د (اخذ او اعطى) دپاره ئې مفعول ذکر نکړو دے دپاره چه اشاره شی عموم ته۔ یعنی هر شے الله ورکړیدے او هغه ئې بیرته اخلی۔

وَكُلٌّ : یعنی هر یو د ورکړے او اخستو نه د الله په علم کښې دے۔

وَلْتَحْتَسِبْ : یعنی دا دے په خپل صبر کولو سره نیت د ثواب اُوکړی۔ دے دپاره چه دا ورله په نیك عمل کښې حساب شی۔

تُقْسِمُ : دا د اقسام نه ماخوذ دے۔ قسم ورکولو ته وئیلے شی۔

د طبرانی د روایت نه معلومیږی چه نبی ﷺ دغه جواب دوه کرته واپس کړے وو خو په دریم ځل ورغلو۔

نو سوال دا دے چه نبی ﷺ اول کښې ولے نهٔ ورتلو ؟ نو ددے ډیر حکمتونه کیدے شی (۱) یو دا چه کیدے شی چه نبی ﷺ په دغه وخت کښې په څه کار مشغول وو۔ (۲) یا دا چه نبی ﷺ څکه سمدستی نهٔ ورتلو چه پدے کښې الله تعالیٰ ته په تسلیمیدو کښې پوره اظهار دے۔ (۳) یا پدے کښې دا حکمت وو چه دا ښکاره کړی چه داسے قسم دعوت قبلول فرض او واجب نهٔ دی لکه د ولیمے په شان چه خامخا به ورتلل ضروری وی۔

لیکن هرکله چه هغے مبالغه او اصرار کولو چه خامخا راشی نو نبی ﷺ ورغلو څکه چه شفقت ئې په هغے باندے راغلو۔ دویم پدے وجه چه دا وهم ختم کړی چه د نبی ﷺ په سیز به ددے څه حیثیت نهٔ وو څکه نهٔ ورتلو۔

یا دا چه ابرار المقسم ئې کولو۔ یعنی د مسلمان قسم ئې پوره کولو۔

وَرِجَالٌ : یعنی نور سری چه هغه په بل روایت کښې راغلی دی چه عبد الرحمن بن عوفؓ، عبادہ بن صامت او اسامه رضی الله عنهم وو۔

فَرُفِعَ : دلته ئې اختصار کړیدے یعنی دوی روان شو تردے چه د هغے کور ته اُورسیدل، اجازت ئې طلب کړو، اجازه ورکړے شوه نو ماشوم رسول الله ﷺ ته راپورته کړے شو۔او هغه په غیږ کښې واخستو۔

وَنَفْسُهٗ تَتَقَعْقَعُ : یعنی روح ئې حرکت کولو۔ ساه ئې تله راتله۔ قعقع په معنیٰ د حرکت او خوزیدو سره استعمالیږی چه په یو حالت نهٔ وی۔

فَقَالَ سَعْدٌ: یعنی سعد بن عباده ﷺ اُووئیل دا ژړا څنګه ده ؟۔

هٰذِهٖ رَحْمَةٌ : یعنی هغه ژړا ناروا ده چه بے صبری او فریاد او چغے پکښې وی۔امام نوویؒ فرمائی

: د سعدؓ دا گمان وو چه هر قسم ژړا به حرامه وی او نبی ﷺ نه به هیره شوی وی نو رسول الله ﷺ هغه ته خبر ورکړو چه نفس ژړا او اوښکې بیول حرام او مکروه نهٔ دی بلکه دا رحمت او فضیلت دے۔

الرُّحَمَاءَ: رحماء جمع د رحیم په معنیٰ د راحم سره۔ ځکه معنیٰ ئے د متعدی ده۔

الرحماء مفعول دے د يَرْحَمُ او مِنْ عِبَادِهِ کښې مِنْ بیانیه دے او دا حال دے د مفعول نه یا تبعیضیه دے۔ معنیٰ د من بیانیه دا ده : الله تعالیٰ رحم کوی په هغه کسانو چه هغوی رحم کونکی وی پداسے حال کښې چه هغه د الله بندگان دی۔ یعنی الله رحم کوی په هغه بندگانو چه هغوی د الله تعالیٰ په اخلاقو متصف وی او د هغه په بندگانو رحم کوی۔ او د من تبعیضیه معنیٰ دا ده : چه الله رحم کوی په خپلو بندگانو کښې په هغه خلقو چه هغوی رحم کوی په بل چا باندے۔نو چا چه په بل رحم نهٔ کولو په هغه به رحم نشی کیدے۔

**فوائد الحديث** : ١- کله چه یو انسان وفات کیږی، د هغه دپاره د نیکانو خلقو راغوختل جائز دی دے دپاره چه هغوی ورته دعاء اُوکړی۔ ٢- نیکانو ته پداسے موقعه قسم ورکول هم جائز دی۔ ٣- پدے کښې د ابرار المقسم افضیلت ذکر دے۔چه یو مسلمان قسم اُوکړی نو ته به هغه سر ته رسوے او هغه باندے به قسم نهٔ اړوے۔ ٤- مصیبت والا ته د مصیبت او مرگ راتلو نه مخکښې په صبر باندے حکم کول پکار دی دے دپاره چه مخکښې نه د الله په تقدیر راضی شی۔

٥- سلام به د کلام نه مخکښې کولے شی، نبی ﷺ اول سلام اُولیږلو بیائے دغه خبره ذکر کړه۔

٦- عیادة المریض پکار دے اگرکه د ماشوم وی یا د ادنیٰ شخص وی۔

٧- د اهل خیر والفضل خلقو دپاره پکار دی چه خپل فضل د هغوی نه بند نکړی۔

٨- تابع له جائز دی چه کله ورته ظاهر کښې تعارض ښکاره شی چه تپوس اُوکړی چه دا کار ولے اُوکړے شو۔ او متبوع له غصه نهٔ ده پکار چه مثلًا شاگرد ته استاذ اُووائی چه ما نه داسے تپوسونه مهٔ کوه بلکه په ښه شان سره جواب ورکول پکار دی۔

٩- په حدیث کښې ترغیب دے چه د الله په بندگانو شفقت او رحمت کول پکار دی ځکه چه دا د الله د رحمت حاصلولو سبب دے۔

١٠- د قسوة القلب او د سترگو اُوچیدلو ترهیب پکښې ذکر دے۔

١١- هغه ژړا کول پکار دی چه بغیر د فریاد او ویر نه وی۔

---

١٧٢٣ (٣) - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: اِشْتَكٰى سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ شَكْوٰى لَهٗ فَأَتَاهُ النَّبِیُّ

ﷺ يَعُوْدُهُ مَعَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ وَسَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ وَعَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ فَلَمَّا دَخَلَ عَلَيْهِ وَجَدَهُ فِيْ غَاشِيَةٍ فَقَالَ: «قَدْ قُضِيَ ؟ ». قَالُوْا: لَا يَا رَسُوْلَ اللهِ فَبَكَى النَّبِيُّ ﷺ فَلَمَّا رَأَى الْقَوْمُ بُكَاءَ النَّبِيِّ ﷺ بَكَوْا فَقَالَ: «أَلَا تَسْمَعُوْنَ ؟ إِنَّ اللهَ لَا يُعَذِّبُ بِدَمْعِ الْعَيْنِ وَلَا بِحُزْنِ الْقَلْبِ وَلٰكِنْ يُعَذِّبُ بِهٰذَا وَأَشَارَ إِلٰى لِسَانِهِ أَوْ يَرْحَمُ وَإِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او عبد الله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی: سعد بن عباده په یوه بیماری بیمار شو نو نبی کریم ﷺ د هغه خوا ته راغلو د هغه تپوس ئے کولو د عبد الرحمن بن عوف او سعد بن ابی وقاص او عبد الله بن مسعود سره۔ کله چه نبی کریم ﷺ سعد بن عباده باندے داخل شو، هغه ئے په بے هوشئ حالت کښی اُوموندلو، تپوس ئے اُوکړو: آیا سعد وفات شوے دے ؟ کور والو عرض اُوکړو۔ یا رسول الله ! نهٔ دے۔ نبی کریم ﷺ (د سعد حالت چه اُولیدو) وے ژړل۔ کله چه صحابه کرامؓ د نبی کریم ﷺ ژړا اُولیدهٔ هغوی هم اُوژړل۔ بیا نبی کریم ﷺ اُوفرمایل: «آیا خبره نهٔ آورئ! (یعنی ښه متوجه شئ) الله تعالیٰ د سترګے په اُوښکو بهیولو او د زړهٔ په غم سره عذاب نهٔ ورکوی لیکن عذاب ورکوی پدے سره او خپلے ژبے ته ئے اشاره اُوکړه۔ یا رحم کوی (یعنی که د یو مصیبت او حادثے په وخت د ژبے نه د ناشکرئ یا د بے ادبئ الفاظ اُوځی یا په تیزه ژړا اُوکړے شی نو دا د عذاب مستحق دے او که په داسے موقعه کښی په ژبه حمد او شکر ادا کړی او انا لله اُووائی نو د رحم او ثواب مستحق به ګرځی) او مړی ته د هغه د کور والو په ژړا سره عذاب ورکولے شی»۔ (بخاری ومسلم)۔

**تشریح : شَكْوَى لَهٗ:** یعنی مریض شو۔ شکوی مفعول مطلق د اشتکی دے یعنی په یو قسم بیمارئ بیمار شو۔

**فِيْ غَاشِيَةٍ :** ددے یوه معنیٰ دا ده چه دا په خپلو خادمانو کښی وو یعنی خپل کور والو کښی وو۔ غاشیه خادمانو ته وئیلے شی چه انسان باندے داخلیږی۔ ۲- یا د غاشية نه مراد غَشْيَةٌ ده لکه په روایت د مسلم کښی غَشْيَةٌ لفظ راغلے دے یعنی دا په حالت د بے هوشئ کښی وو۔ یعنی د تکلیف د وجه نه پرے بے هوشی راغلے وه۔

نبی ﷺ تپوس اُوکړو چه آیا دا وفات شویدے؟ خلقو جواب ورکړو چه نهٔ، نو د نبی ﷺ زړهٔ کښی نرمی پیدا شوه او وے ژړل، حاضرینو هم د هغه په تابعداری کښی اُوژړل۔ دلته ورسره عبد الرحمن هم ژړلی او اعتراض ئے نهٔ دے کړے ځکه چه د مخکښی نه ورته مسئله معلومه شوه او

معلوميږي چه دا د ابراهيم د واقعے نه روستو راپيښه شوے واقعه ده۔
**أَلَا تَسْمَعُوْنَ ؟** : دلته فعل متعدی نازل شويدے په منزله د فعل لازم نو مفعول نهٔ غواړی۔ يعنی آيا تاسو آوريدل نشئ کولے ؟ مقصد پکښ د هغوی متوجه کول وی چه اے خلقو متوجه شئ او خبره په ښه شان واورئ۔
**إِنَّ اللّٰهَ** : إن به په کسره وئيلے شی۔
**أَوْ يَرْحَمُ** : يعنی که څوك په ژبه باندے فرياد او اعتراض په الله اُونکړی او د هغه فيصلے ته تابعدار شی نو الله پرے رحم کوی۔
**وَإِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهٖ** : ددے تشريح روستو باب کښ تفصيلًا راروانه ده۔
**فوائد الحديث** : ١- د عيادة المريض استحباب معلوم شو۔ ٢- اعلیٰ شخص د خپل ځان نه د خکته شخص ملاقات او عيادت ته تلے شی او په همدے کښ فضيلت دے۔
٣- مشر له پکار دی چه ځان سره کشران هم روان کړی دپاره د عيادت د بل کشر۔
٤- نهی عن المنکر ثابت شو۔
٥- په ژبه د تيزے ژړا کولو وعيد بيان شو۔
٦- د مريض په خوا کښ ژړل جائز دی۔
٧- خلقو له جائز دی چه مشر زاړی د هغه تابعداری اُوکړی۔
٨- نبی ﷺ عالِم الغيب نهٔ دے ځکه تپوس کوی چه آيا وفات خو نهٔ دے ؟۔
٩- د رسول الله ﷺ د زړهٔ نرمی ترے معلومه شوه او په خپلو کشرانو باندے ترحم کول او د هغوی د احوالو تپوس کول۔
١٠- صحابه کرام د الله اولياء دی او بيا هم واکدار نهٔ دی ځکه چه د خپل ځانونو نه تکليف او بے هوشی نشی لرے کولے۔

---

**١٧٢٤ (٤) - وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :« لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُوْدَ وَشَقَّ الْجُيُوْبَ وَدَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

---

**ترجمه** : او عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمايلی دی :« هغه څوك زمونږ نه نهٔ دے چه (د مصيبت په وخت) اننگی وهی او گريوانونه شوکوی او د جاهليت د زمانے په شان آوازونه کوی»۔ (بخاریؒ ومسلمؒ)۔

**تشريح : لَيْسَ مِنَّا** : دا مخکښې بار بار تير شويدي چه ددې مطلب دا وي چه زمونږ په طريقه او سنت نهٔ دې روان او دا مطلب نهٔ دې چه دا د دين نه وتلې دې البته که دا کار جائز گنړي نو بيا به کافر وي۔ ليکن نبي ﷺ ددې بيان نهٔ دې کړې پدې کښې سخت زجر او رټنه وي چه انسان ددې کارونو نه منع شي په دې باندې خطره ده چه دا کارونه ئې د دين نه اُوباسي۔ سفيان الثوريؒ نه نقل دي چه هغه به ددې په تاويل کښې نښوتل بد گڼړل او دا به ئې وئيل چه دا په خپل حالت پريدئ او هيڅ تاويل پکښې نهٔ دې پکار دې دپاره چه په خلقو بنه اثر اُوکړي۔

**ضَرَبَ الْخُدُوْدَ** : د عربو د جاهليت دا رواج وو چه په وخت د مصيبت کښې به ئې مخونه وهل نو ځکه ئې دا خاص کړل ورنه تول بدن وهل او ځان باندې شوکې لګول حرام دي۔

**وَشَقَّ الْجُيُوْبَ** : جمع د جيب ده گريوان ته وئيلې شي۔

**بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ** : جاهلية د فترة (انقطاع) هغه زمانې ته وئيلې شي چه د اسلام نه مخکښې وي يعنې څوك چه په وخت د مصيبت کښې د دغه زمانې په شان آوازونه کوي چه هغوی به هلاکتونو ته آوازونه کول داسې به ئې وئيل : (يَا وَيْلَاهُ يَا ثُبُوْرَاهُ وَاكَهْفَاهُ وَاجَبَلَاهُ) يَا عَضُدَاهُ (اې زمونږ متره) واجبلاه (اې زمونږ غره)، هائې تباه شوم۔

يا بعض وائي : لږ شان سترگې خو اُوغوړوه او لږ شان راته اُوگوره۔

په بعض روايتونو کښې د زنانو تخصيص شويدې نو هغه په اعتبار د عادت سره دې ځکه چه دا کار به د زنانو عادت وو۔

دا کارونه ځکه ناروا دي چه دا ټول د الله نه په نهٔ راضي کيدو او د هغه تقدير او فيصلې ته په نهٔ تسليميدو دلالت کوي۔

---

١٧٧٥ (٥) - وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ: أُغْمِيَ عَلَى أَبِي مُوْسَى فَأَقْبَلَتْ امْرَأَتُهُ أُمُّ عَبْدِ اللهِ تَصِيْحُ بِرَنَّةٍ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ: أَلَمْ تَعْلَمِيْ ؟ وَكَانَ يُحَدِّثُهَا أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ: « أَنَا بَرِيْءٌ مِمَّنْ حَلَقَ وَصَلَقَ وَخَرَقَ ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. وَلَفْظُهُ لِمُسْلِمٍ.

ترجمه : او ابوبرده فرمائي : په ابوموسیٰ (اشعري) باندې بې هوشي راغله۔ نو د هغه ښځه ام عبد الله رامخامخ شوه چه په ژړا سره ئې آواز پورته کولو بيا ابوموسیٰ رابيدار شو وې فرمايل : آيا تا ته معلومه نهٔ ده ؟ (چه په زوره ژړا څومره لويه گناه ده) راوي وائي : ابوموسیٰؓ به مخکښې نه هغې ته دا حديث بيانولو چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي : زهٔ د هغه چا نه بيزار يم چه (د

مصيبت په وخت) سر خريوی او آوازونه پورته کوی او جامے شوکوی۔ بخاری ومسلم او الفاظ د مسلم دی)۔

**تشريح : امْرَأَتَهُ أُمُّ عَبْدِ اللهِ :** عمر بن شبه په تاريخ البصره کښ ليکلی دی چه دا د ابوبرده بن ابی موسیٰ مور وه او نوم ئے صفيه بنت دمون وه او ددے روايت نه ثابته شوه چه دا د عبد الله مور ده۔ او ابن عبد البرّ او حافظ دا په صحابياتو کښ ذکر کړيده۔

او دا کار د ابوموسیٰ سره په هغه وخت کښ راپيښ شوے وو چه کله هغه عمر فاروق د طرف نه په بصراه باندے امير وو۔

**بِرَنَّةٍ :** رَنَّه هغه ژړا ته وئيلے شی چه آواز ورسره وی او په پوزه کښ ترنم شان وی۔ يعنی نرے آواز۔

**وَكَانَ يُحَدِّثُهَا :** دا جمله حاليه ده او مفعول د أَلَمْ تَعْلَمِيْ روستو (ان رسول الله ﷺ) جمله ده۔ او مينځ کښ د راوی د طرف نه جمله حاليه معترضه ده۔

**أَلَمْ تَعْلَمِيْ :** کيدے شی ابوموسیٰ ته ملائکو خبر ورکړے وی چه ستا ښځے تا پسے ژړل۔ نو ځکه ئے ورته دا ارشاد اُوفرمايلو۔ لکه روستو راځی دغه شان واقعه د عبد الله بن رواحه سره شويده او په هغے کښ دا راځی چه تا ما پسے څۀ وئيل نو ما ته به ملائکو وئيل چه آيا ته همداسے ئے؟۔ او يا په حالت بے هوشی کښ په ځان پوهه شوے وی کما هو الظاهر۔

**أَنَا بَرِیٌٔ :** يعنی زۀ د دغه زنانو او د هغوی ددے کار د سزا نه بری يم۔ يا ما درته بيان اُوکړو نو زۀ بيزار او بری يم ددے نه چه تاسو عذر پيش کړئ چه مونږ خبر نۀ وو او مونږ ته بيان نۀ وو شوے۔ نووی وائی : ظاهر دا ده چه مقصود دلته ددے کارونو د کونکی نه براءت دے۔ يعنی خوک چه دا کارونه کوی نو د هغه نه زۀ بيزاره يم او زۀ به د هغه نه خفه يم۔ او دا مطلب نۀ دے چه د دين نه وتلے دے۔

**مِمَّنْ حَلَقَ :** يعنی چه څوک د مصيبت په وخت کښ ويښته خريوی، لکه دا عادت د هندستان د هندوانو دے۔

**وَصَلَقَ :** دا په يو لغت کښ په سين سره هم استعمال دے۔ يعنی هغه څوک چه د مصيبت په وخت کښ آواز پورته کوی او چغے وهی۔

٢- يا هغه ښځه چه د مصيبت په وخت مخ په څپيړو وهی او مخ شوکوی۔

**وَخَرَقَ :** يعنی مصيبت په وخت جامے شيری کوی۔ دا کارونه ځکه ناروا دی چه پدے کښ د الله په فيصله او تقدير باندے ناراضگی ده۔ او دا ټول د جاهليت کارونه دی او غالباً په زنانو کښ

موجود دي۔

---

١٧٢٦ (٦) - وَعَنْ أَبِيْ مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« أَرْبَعٌ فِيْ أُمَّتِيْ مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ لَا يَتْرُكُوْنَهُنَّ : الْفَخْرُ فِي الْأَحْسَابِ وَالطَّعْنُ فِي الْأَنْسَابِ وَالْاِسْتِسْقَاءُ بِالنُّجُوْمِ وَالنِّيَاحَةُ » وَقَالَ:« اَلنَّائِحَةُ إِذَا لَمْ تَتُبْ قَبْلَ مَوْتِهَا تُقَامُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَعَلَيْهَا سِرْبَالٌ مِنْ قَطِرَانٍ وَدِرْعٌ مِنْ جَرَبٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ابو مالك الاشعري ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي :« زما په امت كښې د جاهليت د زمانې څلور كارونه داسې دي چه دوى ئې نۀ پريږدي : (١) په حسب (شرافت) باندې فخر كول۔ (٢) په نسب باندې طعن كول۔ (٣) د ستورو په ذريعه باران طلب كول۔ (٤) او (په مړي پسې) وير كول »۔ او نبي كريم ﷺ دا (هم) فرمايلي دي :« وير كره ښځه چه كه د مرګ نه مخكښې توبه اُونۀ باسي نو د قيامت په ورځ به راپورته كړې شي پداسې حال كښې چه په هغې باندې به د رنزرو قميص او د خارخ قميص وي »۔ (مسلم)۔

**تشريح : لَا يَتْرُكُوْنَهُنَّ** : يعني دا خصلتونه به زما په امت كښې هميشه وي په يو ځل ئې نۀ پريږدي لكه څنګه چه نور كارونه د جاهليت ئې ايكدم پريښودي دي۔ نو دا خصلتونه كه يوه ډله پريږدي نو بله ډله به پرې راتلل كوي۔ او دا د رسول الله ﷺ د خپل امت نه ددې كارونو په براءت كښې شكايت او ګيله ده او پدې كښې زورنه ده چه دا د جاهليت كارونه دي دا پريښودل پكار دي۔

او دا د رسول الله ﷺ رشتينې پيشينګوئي ده چه پدې امت كښې صادقه شويده۔ ډير پاك خلق هم ددې نه خلاص نۀ دي۔

: **الْفَخْرُ فِي الْأَحْسَابِ** : فخر : عد المناصب والمآثر ته وئيلې شي يعني خپل صفتونه او كمالات په بل باندې شمارل چه زۀ داسې اُوچت شخصيت يم او داسې داسې صفات لرم۔

الاحساب : جمع د حسب ده، د انسان ذاتي خصلتونو ته وئيلې شي لكه بهادري، فصاحت، علم، اُوچت نسب وغيره مراد ترې نه كمالات او شرافتونه دي۔ بعض وائي : د پلارانو نيكونو په كمالاتو باندې فخر كولو ته حسب وائي۔ پدې كار كښې د خپل ځان تكبر وي، خپل ځان افضل ګڼړي او بل مسلمان سپك ګڼړي۔

حديث كښې دي : (كَرَمُ الرَّجُلِ دِيْنُهُ وَمُرُوْءَتُهُ عَقْلُهُ وَحَسَبُهُ خُلُقُهُ) (تفسير ابن كثير ١/٦٨٣) (بيهقي ١٠/١٩٥) قال البيهقي هو موقوف على عمر واسناده صحيح) دا حديث مرفوعاً ضعيف او

موقوفاً صحيح دے۔

(د انسان كرامت او شرافت په دين سره دے، سړی توب ئے په عقل سره او كمال ئے په اخلاقو سره دے) چه اخلاق ئے د شريعت برابر وی او ديندار وی بس دغه شرافت او فخر والا دے۔ او آيت كښې هم دی : ﴿ إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ ﴾ (الحجرات) (غټ عزتمند هغه څوك دے چه تقویٰ ئے زياته وی)۔

معلومه شوه چه شرافت او كرامت د انسان په دين او اخلاقو سره حاصلیږی نهٔ د پلار نيكه په بهادرئ او سخاء سره۔

**وَالطَّعْنُ فِي الْأَنْسَابِ**: يعنی په نسبونو كښې عيبونه بيانول۔ پدے كښې د نورو خلقو د پلارانو سپكاوے دے لكه ډيرو خلقو كښې د جاهليت داكار موجود دے چه يو بل ته پيغورونه كوی چه ته خو فلانے ئے او د فلانی څوئے او پنجابے ئے يا پښتون ئے، نسبونه ئے سبب د كمال او فضيلت جوړ كړی وی۔

**وَالْاِسْتِسْقَاءُ بِالنُّجُوْمِ** : يعنی د ستورو په سبب سره باران غوختل يعنی د ستورو د پريوتو په وخت كښې اميد او توقع لری چه اُوس به باران كيږی۔ لكه جاهليت والو به وئيل : (مُطِرْنَا بِنَوْءِ كَذَا) (مونږ باندے د فلانی ستوری په پريوتو سره باران اُوشو) نو د باران نسبت به ئے ستورو ته كول۔ ۲- بعض وائی : ددے معنیٰ ده : د ستورو نه باران غوختل نو كه دا عقيده ئے وی چه ستوری د باران په كولو كښې حقيقی مؤثر دی نو پدے سره كافر كيږی۔

**وَالنِّيَاحَةُ** : په مړی باندے په چغو او واويلا او جزع فزع سره ژړا ته وئيلے شی۔ يعنی وير كول۔ او د مړی ښائسته صفات شمارل او ستائينے كول۔

يعنی وير كره ښځه به د قيامت په ورځ په ميدان كښې اُودروی، دے دپاره چه ښه اُوشرميږی ځكه چه دے به هم د خلقو په مخامخ بغير د څه شرم كولو نه وير كولو۔

**قَطِرَان**: رنزړو ته وئيلے شی (گند هلك هم ورته وائی) كوم چه د نښترونے نه اُوځی دا ډير سخت سوزونكی وی، بد بوئی هم لری۔ او عربو به ددے دپاره استعمالول چه په اُوښانو به خارخ اُولگيدو هغه به ئے پرے داغل چه خارخ ئے ختم شی۔

علامه طيبیؒ وائی : ددے زنانه په اندامونو به اول داسے خارخ راشی چه ټول بدن به ورله پټ كړی لكه څنگه چه درع (قميص) بدن پټوی او دا به ورپورے كلك اُونخلی نو بيا به په هغے باندے دپاسه رنزړه واچولے شی دے دپاره چه خارخ ئے سوړ شی ليكن دا دوائی به د مخكنی خارخ نه هم ډيره سخته وی۔ ځكه چه پدے كښې به د رنزړو سوزش او تيزی او گرمائش او بد

بوٹي او څرمن سيزل او لمبه کيدل، او رنګ توريدل شامل وي چه نفس به ترې انتهائي کرکه کوي- توربشتيؒ وائي : د خارخ قميص ورته ځکه اغوندي چه دې ښځې به په خپلو سوزونکو کلماتو سره د مصيبت والا زنانه زخمي کولې او د هغې باطن او زړونه به ئې ګرول نو داسې سزا ورکړې شوه چه د هغې ددې کار په شکل کښې مشابه ده آه- يعني دا هم خارختئ وه چه نورې زنانه به ئې ځان سره ژړولې نو الله پرې قيامت کښې خارخ راولي او د دغه خارخ دپاسه سوزيدل هم ورکوي چه دا عذاب در عذاب دې-

**فائده** : پدې څلورو کارونو کښې وعيد او عذاب صرف د نياحت (وير) دپاره ذکر شو وجه دا ده چه دا کار زنانه ډير کوي او اکثرې زنانه ددې کارونو نه نۀ منع کيږي نو ځکه ورته زيات وعيد بيان شو-

ابن عباسؓ د قطران معنى کوي : (اَلنُّحَاسُ الْمُذَابُ) (ويلې کړې شوې تانبه)-

---

١٧٢٧ (٧) – وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: مَرَّ النَّبِيُّ ﷺ بِامْرَأَةٍ تَبْكِيْ عِنْدَ قَبْرٍ فَقَالَ : « اِتَّقِي اللهَ وَاصْبِرِيْ» قَالَتْ: إِلَيْكَ عَنِّيْ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَبْ بِمُصِيْبَتِيْ وَلَمْ تَعْرِفْهُ فَقِيْلَ لَهَا: إِنَّهُ النَّبِيُّ ﷺ . فَأَتَتْ بَابَ النَّبِيِّ ﷺ فَلَمْ تَجِدْ عِنْدَهٗ بَوَّابِيْنَ فَقَالَتْ: لَمْ أَعْرِفْكَ. فَقَالَ:« إِنَّمَا الصَّبْرُ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْأُوْلٰى». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** : او انسؓ فرمائي : نبي کريم ﷺ په يوه ښځه تير شو چه د قبر په خوا کښې ئې ژړل ورته ئې اُوفرمايل: « د الله نه اُويريږه او صبر اُوکړه »- هغې اُووئيل : زما د خوا نه جدا شه (نۀ زما غم څه پيژنې) ځکه چه تا ته زما مصيبت نۀ دې رسيدلې- انسؓ فرمائي : دې ښځې نبي کريم ﷺ نۀ وو پيژندلې- نو دې ته اُووئيل شو چه دا خو نبي کريم ﷺ وو- نو دا د نبي کريم ﷺ دروازې ته راغله- د هغه په دروازه ئې کوم دربانچيان (او پهره داران) اُونۀ موندل (لکه څنګه چه ددې خيال وو چه دبادشاهانو په دروازه باندې پهره داران ولاړ وي) دې (نبي کريم ﷺ ته) اُووئيل : ما تۀ نۀ وې پيژندلې (زما ګستاخي معاف کړه) نبي کريم ﷺ ورته اُوفرمايل : صبر خو د مصيبت په ابتداء کښې وي- (بخاريؒ ومسلمؒ)-

**تشريح** : عِنْدَ قَبْرٍ : د روايت د مسلم نه معلوميږي چه دا ئې څوي وو-

إِلَيْكَ عَنِّيْ : اسم فعل دې په معنیٰ د أَبْعُدْ او تَنَحَّ سره- يعني ما نه وراندې شه تا ته زما په شان مصيبت نۀ دې رسيدلې-

**وَلَمْ تَعْرِفْهُ** : یعنی دے چه داسے سخته خبره اُوکړه نو رسول الله ﷺ ئے نهٔ وو پیژندلے۔

**فقیل لها** : په طبرانی فی الاوسط کښې دی : چه فضل بن عباسؓ ترے تپوس اُوکړو چه آیا ته دا سړے پیژنې؟ هغې اُووئیل: نهٔ۔ او د مسلمؒ په یو روایت کښې دی : (فَأَخَذَهَا مِثْلُ الْمَوْتِ) (یعنی د مرګ په شان سخت غم اُونیوله) ځکه چه خجالته شوه او هیبت پرے راغلو چه ما د الله رسول ته داسے سپکه خبره اُوکړه۔ او دے رسول الله ﷺ ځکه نهٔ وو پیژندلے چه رسول الله ﷺ کښې عاجزی او تواضع وه ځان پسے به ئے روستو خلق نهٔ وو روان کړی۔ لکه څنګه چه د عامو مشرانو دا عادت وی چه روستو ورپسے خلق روان وی۔ بله دا چه دا د ژړا او د غم په وجه پریشانه هم وه نو دیر تدبر ئے پکښې اُونکړو۔

**فَلَمْ تَجِدْ عِنْدَهُ** : ددے جملے فائده دا ده چه کله دے ته اُووئیلے شو چه دا نبی ﷺ وو نو ددے په زړهٔ کښې دا خوف او هیبت راغلو او تصور ئے اُوکړو چه دا به د بادشاهانو په شان وی چه هغه به دربانچیان او خادمان لری چه په دروازه به ئے ولاړ وی او خلق به ورته نشی رسیدلے نو کله چه ورغله، خبره بل شان وه۔

**لَمْ أَعْرِفْكَ** : یعنی اے د الله رسوله ! ما اونهٔ پیژندلے نو ما په دغه سخت جواب ورکولو سره معذوره اُوګڼړه۔

**الصَّدْمَةِ الْأُولٰى** : یعنی هغه صبر چه په هغې باندے اجر ملاویږی او هغه ممدوح او بهترین صبر دے او الله تعالیٰ ئے صفت کړیدے دا هغه صبر دے چه په ابتداء د مصیبت کښې وی۔ او روستو خو به انسان خود بخود صبر کوی ځکه چه ستړے شی۔

صدم په اصل کښې یو سخت شے د بل سخت شی نه وهل۔ بیا استعمالیږی د هغه مصیبت دپاره چه په زړهٔ باندے راځی۔

طیبیؒ وائی : دا جواب د رسول الله ﷺ په طریقه د اسلوب الحکیم دے ګویا کښې رسول الله ﷺ هغې ته اُوفرمایل: چه عذرونه پریده ځکه چه زما خوئی دا دے چه زهٔ صرف د الله دپاره غصه کیږم خو ته خپل نقصان ته اُوګوره چه تا نه د جزع فزع په وجه دیر ثوابونه فوت شو د هغې غم اُوکړه۔ نو رسول الله ﷺ ورله دغه جفاء او سخت جوابی معاف کړه ځکه چه دا په حالت د مصیبت کښې وه او پیژندلے ئے هم نهٔ وو۔

**فوائد الحدیث** : ۱- د زنانو دپاره زیارة القبور جائز دے ځکه چه رسول الله ﷺ ددے نه منع نهٔ کړه چه ته ولے د مړی د قبر زیارت له راغلے ئے بلکه هغې ته ئے د صبر او تقویٰ امر اُوکړو۔

۲- رسول الله ﷺ به د جاهلانو سره تواضع کوله او د مصیبت زدهٔ انسان سره به ئے نرمی

كولـه او د هغوى عذر بـه ئـې قبلولو. ۳- رسول الله ﷺ به هميشه امر بالمعروف او نهى عن المنكر كولو.

٤- قاضى او د خلقو دينى او دنيوى مشر له پكار دى چه د خلقو د حاجتونو مخې ته پردې واقع نكړى.

٥- چا ته چه امر بالمعروف اُوشى نو هغه له منل پكار دى اگركه هغه آمر نهٔ پيژنى.

٦- جزع فزع د منهياتو نه ده ځكه نبى ﷺ دغه زنانه ته په تقوىٰ باندې امر اُوكړو سره د صبر كولو نه.

٥- پدې كښې ترغيب دې چه كله بنده ته نصيحت او وعظ كيږى نو هغه له پكار دى چه د تكليف برداشت اُوكړى.

---

**١٧٢٨ (٨) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «لَا يَمُوْتُ لِمُسْلِمٍ ثَلَاثٌ مِنَ الْوَلَدِ فَيَلِجَ النَّارَ إِلَّا تَحِلَّةَ الْقَسَمِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه :** او ابو هريره ﷺ فرمائى : رسول الله ﷺ فرمايلى دى : «د كوم مسلمان چه درې بچى وفات شى هغه بـه اُورته نهٔ داخليږى مگر د قسم پوره كولو دپاره به داخليږى» (بخارى ومسلم).

**تشريح :** د هر مسلمان كه سړې وى او كه ښځه چه د هغه درې اولاد نارينه وى او كه زنانه مړهٔ شى نو اُورته بـه د عذاب دپاره نهٔ داخليږى مگر دومره وخت چه په هغې سره قسم پوره كيږى چه هغه په پُل صراط باندې تيريدل دى ځكه چه څوك په پُل صراط تير شى نو دا جهنم دپاسه تير شو.

او ددې اولاد نـه مراد د خپلې شا نـه پيدا اولاد دى او دليل پدې باندې حديث د انسؓ دې چه نسائى روايت كړيدې : (مَنِ احْتَسَبَ ثَلَاثَةً مِنْ صُلْبِهِ دَخَلَ الْجَنَّةَ) .(چا چه درې بچى د خپل شا نه ثواب اُوگنړل نو جنت ته به داخليږى).

**فَيَلِجَ النَّارَ :** دا منصوب دې پـه أَنْ مقدر سره ځكه فعل مضارع د نفى نه روستو په أَنْ مقدر سره منصوبه راځى.

**تَحِلَّةَ :** هغه شى تـه وئيلې شى چه په هغې سره قسم سپرلې شى. عرب وائى : (فَعَلْتُهُ تَحِلَّةَ الْقَسَمِ - اَىْ لَمْ اَفْعَلْهُ اِلَّا بِقَدْرِ مَا حَلَلْتُ بِهٖ يَمِيْنِىْ وَلَمْ اُبَالِغْ) (يعنى ما دا كار اُوكړو په اندازه د تحلة القسم يعنى ما ندې كړې مگر په دومره اندازه چه زما قسم پرې حلاليږى او زيادت مې پكښې نهٔ دې كړې).

او ددے قسم نـه مـراد دا دے چـه الله تـعالىٰ په قرآن كريم كښې قسم كړے ﴿ وَإِنْ مِنْكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَقْضِيًّا ﴾ چـه زۀ بـه ټول انسانان جهنم باندے وروړلم نو الله به څوك ورغورزوى او څوك به پرے اخوا تيروى۔

١٧٢٩ (٩) – وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ لِنِسْوَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ: «لَا يَمُوْتُ لِإِحْدَاكُنَّ ثَلَاثَةٌ مِنَ الْوَلَدِ فَتَحْتَسِبُهُ إِلَّا دَخَلَتِ الْجَنَّةَ ». فَقَالَتِ امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ: أَوِ اثْنَانِ يَا رَسُوْلَ اللهِ؟ قَالَ: « أَوِ اثْنَانِ ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَفِي رِوَايَةٍ لَهُمَا: « ثَلَاثَةٌ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ ».

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فـرمائي : رسول الله ﷺ د انصارو زنانو ته اُوفرمايل : « ستاسو د يو تـن درے بچي نۀ مري چه هغه ئے د ثواب اميد اُوساتي مگر هغه به (د هغوى په ذريعه) جنت ته داخليږى»۔ د هغـوى نـه يـوے ښځے اُووئيـل : يارسول الله ! كه دوه بچي وى ؟ نبى كريم ﷺ اُوفرمايل : « او كه دوه وى » (نو هم)۔ (مسلمؒ) او د بخارىؒ او مسلمؒ په روايت كښې دى : « درے بچي چه د بلوغ حد ته نۀ وى رسيدلى»۔ (نو همدا بشارت ئے دے)۔

**تشريح : اِمْرَأَةٌ مِنْهُنَّ :** ظاهر دا ده چه دا د انسؓ مور ام سليم انصاريه ده۔

**أَوِ اثْنَانِ:** يعنى د دوو هم د دريو په شان حكم دے۔ او په بعض رواياتو كښې يو بچے هم راغلے دے لكه حديث د ابن عباسؓ په فصل ثانى كښې راروان دے۔

**لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ :** يعنى چه بلوغ ته او زمانے د گناه ته نۀ وى رسيدلى۔ ځكه چه انسان بالغ شى نـو پـه هـغـه باندے گناه ليكلے شى او مخكښې د بلوغ نه پرے گناه نشى ليكلے۔ او دا قيد ئے ځـكـه اُولـگـولـو چه كـلـه بـلـوغ ته بچے رسيدلے وى او بيا وفات شى نو هغه ته به دا قسم اجر نۀ مـلاويږى ځـكه كيدے شى چه دۀ به داسے گناه كړى وى چه د هغے په وجه به د رحمت نه محروم شـوے وى۔او اكثـرو احاديثو كښې همدا قيد راغلے دے۔ او ددے وجه دا ده چه مقصود پدے سره د مور او پلار دپاره د ماشومانو شفاعت كول وى او شفاعت د گناهونو نه پاك انسان كولے شى۔

ليـكـن زيـن ابـن المنيرؒ او عراقىؒ په تقريب الاسانيد كښې وئيلى دى چه هركله د ماشوم په باره كـښې دا فـضيـلت دے چه هغه لا په مور او پلار باندے بوج وى نو بالغ خو به په طريق اولىٰ داخل وى چه هغـه لا د مور او پلار سره زمانے د خدمت ته رسيدلى وى او د ماشومانو په نسبت بالغ پـه مـصيبت بـانـدے تـفجـع او خفگان زيات وى۔ او د حنث معنىٰ كوى په شرك سره۔ يعنى چه

مشركان نهٔ وي۔

ليکن اول قول ډیرغوره دے ځکه چه عامو احاديثو کښې د بلوغ قيد صراحةً ذکر دے۔ اګرکه د نفس اولادو په مرګ باندے نور فوائد ملاوېږي۔

ليکن دويم قول دپاره هم دليل يو حديث شته ابوسلمیٰ فرمائي : ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي چه فرمايل ئې : (بَخٍ، بَخٍ وَأَشَارَ بِيَدِهِ لِخَمْسٍ مَا أَثْقَلَهُنَّ فِي الْمِيزَانِ: سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰـهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ وَالْوَلَدُ الصَّالِحُ يُتَوَفَّى لِلْمَرْءِ الْمُسْلِمِ فَيَحْتَسِبُهُ) (نسائي، ابن حبان ٢/ ١٠٠) رقم (٨٣٠) بزار واحمد (٤/٢٣٧) واسناده صحيح صحيح الترغيب (٣/ ٨٠) (واه واه، په لاس سره ئې پنځه خبرو ته اشاره اُوکړه چه دا څومره په ميزان کښې درنے دي، سبحان الله، الحمد لله، لا اله الله والله اکبر او نيك بچے چه د مسلمان وفات شي او ثواب ئې اُوګنړي) نو ولد صالح (نيك بچے) ووکي او غټ دواړو ته شامليږي لهذا د الله نه اُميد دے چه په غټ بچي سره هم دغه فضيلت حاصل شي۔ خو پدے کښې هم دا شرط دے چه نيك به وي ځکه چه بد عمله سفارش نشي کولے۔

او د اولادو په مرګ کښې بعض فوائد دا دي : ١- د اُور نه حجاب او پرده ګرځي لکه په ډيرو احاديثو کښې راغلي دي۔ ٢- د انسان په ميزان کښې ثقل او دروند والے پيدا کوي۔

٣- د جنت په داخليدو کښې شفاعت کوي۔

٤- د قيامت د سختے تندے په ورځ کښې به خپلو والدينو ته د جنت د اُوبو نه اُوبه ورکوي۔

٥- د مور او پلار مرګ ئې آسانيږي۔ ځکه چه دوي ته د هغوي په فوت کيدو ډير درد رسيدلے دے۔ (فيض القدير ٥/٦٣٣)

---

١٧٣٠ (١٠) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :«يَقُوْلُ اللّٰهُ: مَا لِعَبْدِي الْمُؤْمِنِ عِنْدِيْ جَزَاءٌ إِذَا قَبَضْتُ صَفِيَّهُ مِنْ أَهْلِ الدُّنْيَا ثُمَّ احْتَسَبَهُ إِلَّا الْجَنَّةُ ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

ترجمه : او ابو هريره ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «الله تعالیٰ فرمائي : ما سره د خپل مؤمن بنده دپاره بدله نشته کله چه زۀ د هغه محبوب د دنيا والو نه واخلم بيا ئې هغه د ثواب اميد اُوساتي مګر (هغه بدله) جنت دے»۔ (بخاري)۔

تشريح : صَفِيَّهٗ: صفي: خالص دوست ته وائي لکه ځوي او ورور، ښځه يا خاوند وغيره او هر هغه څوك چه انسان ورسره د الله د رضا دپاره محبت کوي۔

مِنْ أَهْلِ الدُّنْيَا : اهـل دنيـا قيـد نـه معلومه شوه چه كه د آخرت والو نه د چا عزيز او محبوب وفات شي او په هغې باندې صبر اُوكړي نو ددې نه به هم زيات سعادت او اجر ملاويږي چه الله به ترې راضي شي او د چا نه چه الله راضي شو نو هغه ته د دنيا او آخرت ټول خيرونه ملاؤ شو۔
نـو پـدې كښې د عـلـماؤ سره محبت هم داخل دے۔ چه كله يو عالم وفات شي او دا پرې د ثواب نيت اُوكړي الله تعالىٰ به دهٔ ته هم دا فضيلت وركوي ان شاء الله تعالىٰ۔

## الفصل الثاني

١٧٣١ (١١) – عَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ: لَعَنَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ النَّائِحَةَ وَالْمُسْتَمِعَةَ. رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ.

تـرجمه : ابـوسعيد خدرى ﷛ فـرمـائـي : رسـول الله ﷺ په وير كره (په زوره ژړا) كونكے او د هغې په آوريدونكي باندې لعنت فرمايلے دے۔ (ابوداؤد)۔

**تشريح** : د وير كرې ښځې نه مراد هغه ښځه ده چه د مړي ښائسته صفتونه او خوبونه په ژړا ژړا كښې بيانـوي۔ دے تـه سـتـائينې هم وائي۔ يا دا چه په اوچت آواز سره ژړا كانې كوي۔ وير كره ښـځـه گـنـاه كبيـره كـونـكے ده او د هغې ژړا آوريدونكے د هغې په گناه باندې انكار نهٔ كوي نو دے نهي عن المنكر پريخودے ده۔

**درجة الحديث** : اسـنـاده ضعيف : اخرجه ابوداود (٣١٢٨) فيه محمد بن الحسن بن عطية العوفي عن ابيه عن جده وثلاثتهم ضعفاء ـ

---

١٧٣٢ (١٢) – وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ ﷛ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« عَجَبٌ لِلْمُؤْمِنِ :إِنْ أَصَابَهُ خَيْرٌ حَمِدَ اللهَ وَشَكَرَ وَإِنْ أَصَابَتْهُ مُصِيْبَةٌ حَمِدَ اللهَ وَصَبَرَ فَالْمُؤْمِنُ يُؤْجَرُ فِيْ كُلِّ أَمْرِهِ حَتّٰى فِي اللُّقْمَةِ يَرْفَعُهَا إِلٰى فِيْ امْرَأَتِهِ ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ.

---

تـرجمه : او سـعد بن ابي وقـاص ﷛ فـرمـائـي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : « د مؤمن سړي (حـال) عـجيبـه دے كـه دهٔ ته خير (او راحت) رسيږي نو د الله حمد وائي او د هغه شكر كوي او كه هـغـه تـه مـصيبت رسيږي نو د الله حمد وائي او صبر كوي۔ لهذا مؤمن ته د هغه په هر كار كښې اجـر مـلاويـږي تردې چه په هغه نوړئ كښې چه دائے د خپلې ښځې خولې ته پورته كوي (هم ثواب ملاويږي) »۔ (بيهقیؒ في شعب الايمان)۔

**تشريح : يَرْفَعُهَا إِلَىٰ فِيْ امْرَأَتِهٖ** : دا يا په ظاهر باندې حمل دې چه انسان په ګپ شپ کښې د ښځې په خوله کښې نوړئ ورکړي او پدې سره ئې نيت د ثواب وي او د مسلمان خوشحاله کول وي۔ نو پدې کښې هم ورته اجر ملاوېږي ځکه چه مباحاتو کښې کله صحيح نيت د ثواب اُوکړې شي هغه هم عبادت ګرځي۔ ٢- دويم مطلب دا چه انسان مال او نفقه زنانه ته ورکړي چه هغه پرې خوراك وغيره تيارَوي نو پدې کښې هم د خاوند اجر کيږي۔

نو د مؤمن د ايمان په برکت سره هر حالت او هر کار د خير نه ډك وي ځکه چه هغه دا تول کارونه په ښه نيت سره کوي، که خوب وي که خوراك وي دې تولو کښې د عبادت نيت کوي۔ فَلَكَ الْحَمْدُ يا الله يا رحمن في كل الاحوال۔

**درجة الحديث** : اسناده صحيح : اخرجه احمد (١٨٢/١) والنسائي في عمل اليوم والليلة (١٠٦٧) واخرج نحوه مسلم عن صهيب في الصحيح (٢٩٩٩) دون قوله فالمومن، فَعَزْوُ الْحَدِيْثِ للبيهقي في الشعب قُصُوْرٌ مِنْهُ رحمه الله۔

---

**١٧٣٣ (١٣) - وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ : «مَا مِنْ مُؤْمِنٍ إِلَّا وَلَهٗ بَابَانِ: بَابٌ يَصْعَدُ مِنْهُ عَمَلُهٗ وَبَابٌ يَنْزِلُ مِنْهُ رِزْقُهٗ. فَإِذَا مَاتَ بَكَيَا عَلَيْهِ فَذٰلِكَ قَوْلُهٗ تَعَالىٰ: ﴿ فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ ﴾ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.**

**ترجمه** : او انس ﷺ فرمائي، رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «د هر مؤمن دپاره دوه دروازې دي يوه هغه دروازه ده چه د هغې نه ددهٔ (نيك) عمل پورته خيژي او بله دروازه ده چه د هغې نه ددهٔ رزق نازليږي۔ نو کله چه مؤمن مړ شي نو دا دواړه دروازې په هغهٔ پسې ژاړي۔ دا خبره د الله تعالىٰ ددې وينا نه معلوميږي : (فما بكت عليهم السماء والارض) يعني پدې (کافرانو) باندې نهٔ آسمان اُوژړل او نهٔ زمکې»۔ (ترمذي)۔

**تشريح** : يعني کله چه مؤمن وفات شي نو دواړه دروازې د عمل او د رزق پسې ژاړي ځکه چه عمل او رزق دواړه ئې منقطع شو او د کافر نه دا دواړه دروازې تنګې وي نو هغې ته تکليف رسي نو په هغه پسې ژړا نهٔ کوي۔ او الله تعالىٰ په مخلوق غير ذي روح څيزونو کښې هم علم او حس او شعور او تسبيح او خشيت اچولې شي لکه دا د اهل سنت والجماعة مسلك دې۔ او دغه آيت ئې تائيد کوي (فما بكت عليهم السماء) او په احاديثو کښې ددې ډير تائيدات شته، د رسول الله ﷺ د منبر په جوړولو پوې ستې د کجورې اُوژړل ځکه چه رسول الله ﷺ به هغې ته په وخت د خطبه

كښې تكيه وهله نو اُوس د هغې نه منبر ته نقل شو نو هغې اُوژړل او صحابه كرامؓ د هغې ژړا واوريدله. ۲- د دغه شان حديث نه معلوميږي چه كله يو غر باندې يو مؤمن تسبيح والا تير شي نو بل غر باندې فخر كوي.

بعض وائي: ددې دوارو دروازو ملائك ورپسې ژاړي نو دلته مضاف حذف دې (اَیْ بَكٰی عَلَيْهِ اَهْلُهُمَا مِنَ الْمَلَائِكَةِ) (يعني په دهٔ باندې اهل د دوارو دروازو ژاړي چه هغه ملائك دي) ليكن اوله خبره صحيح ده ځكه چه مضاف حذف كولو ته هيڅ حاجت نشته.

**فَمَا بَكَتْ عَلَيْهِمُ السَّمَاءُ:** حافظ ابن كثيرؒ فرمائي : يعني ددې فرعونيانو دپاره نيك اعمال نهٔ وو چه هغه دروازو د آسمان ته ختلي وې چه بيا آسمان د هغې په ختميدو ژړلي وې او نهٔ د زمكې په څه حصه كښې دوي د الله عبادت كړې وو چه هغه ورپسې وژاړي نو دې وجه نه دوي ددې مستحق دي چه هيڅ كتل ورته اُونكړې شي او نهٔ ورله مهلت وركړې شي ځكه چه دوي كفر، جرمونه، سركشي او عناد كړيدې.

**درجة الحديث** : اسناده ضعيف : الترمذي (٣٢٥٥) وقال حديث غريب لا نعرفه مرفوعاً الا من هذا الوجه وموسى بن عبيدة ويزيد بن ابان الرقاشي يضعفان في الحديث، وفي الباب عن شريح بن عبيد الحضرمي مرسلاً مرفوعاً عند ابن جرير وعن علي عند ابن ابي حاتم، وعن ابن عباس عند ابن جرير موقوفا من قولهما ذكر ذلك ابن كثير في تفسيره (المرعاة) فالحديث بشواهده قوي.

---

**١٧٣٤ (١٤) - وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَنْ كَانَ لَهُ فَرَطَانِ مِنْ اُمَّتِيْ اَدْخَلَهُ اللهُ بِهِمَا الْجَنَّةَ». فَقَالَتْ عَائِشَةُ: فَمَنْ كَانَ لَهُ فَرَطٌ مِنْ اُمَّتِكَ ؟ قَالَ: « وَمَنْ كَانَ لَهُ فَرَطٌ يَا مُوَفَّقَةُ !». فَقَالَتْ:فَمَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ فَرَطٌ مِنْ اُمَّتِكَ ؟ قَالَ : « فَاَنَا فَرَطُ اُمَّتِيْ لَنْ يُصَابُوْا بِمِثْلِيْ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.**

ترجمه: او ابن عباسؓ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي : «زما د امت نه چه د چا دپاره دوه بچي د بالغ كيدو نه مخكښې مړهٔ شوي وي. الله تعالىٰ به هغه لره د هغوي په وجه جنت ته داخل كړي ». عائشےؓ اُوفرمايل : ستا د امت نه چه د چا يو بچے مخكښې مړ وي ؟ وے فرمايل : « اے موفقه ! د چا چه يو بچے مړ وي (د هغه دپاره هم دا بشارت دے) » عائشے رضي الله عنها بيا تپوس اُوكړو : كه د چا دپاره ستا د امت نه د هيڅا بچے نهٔ وي مړ ؟ نبي كريم ﷺ اُوفرمايل : «بيا زهٔ د خپل امت دپاره مخكښې ليږلے شوے (ميلمستيا تيارونكے) يم. (ځكه چه) امت ته زما (د

وفات) په شان مصیبت نهٔ دے رسیدلے»۔ (دا روایت ترمذی نقل کړے او وئیلی ئے دی چه دا حدیث غریب دے)۔

**تشریح : فَرَطَانِ** : مراد ددے نه دوه ماشومان بچی دی چه بلوغ ته نهٔ وی رسیدلی او وفات شی۔ اصل کښې فرط مخکښې لیږلو ته وئیلے شی نو فرط هغه بچی ته وئیلے شی چه د مور او پلار نه مخکښې تلے وی او د هغوی دپاره سفارش کوی او د جنت میلمستیا تیاروی لکه څنګه چه د قافلے نه مخکښې فارط (یو شخص مخکښې تلونکے) ځی او د قافلے والو دپاره اُوبه، چراګاه تیاروی۔ نو دلته فرط په معنیٰ د فارط سره دے۔

**فَمَنْ كَانَ لَهُ فَرَطٌ** : یعنی ستا د امت نه چه د چا یو فرط مخکښې تلے وی نو ددے به څه حکم وی ؟ یا آیا ددهٔ دپاره به ثواب وی ؟۔

**يَا مُوَفَّقَةُ !**: یعنی اے عائشے! تا له توفیق درکړے شویدے د نیکیانو۔ یا په امت باندے د شفقت دپاره تا له توفیق درکړے شویدے د داسے تپوسونو کولو چه هغه په خپل ځائے واقع دی۔ ٣– یا موفقه نه مراد (اَلْحَرِيْصَةُ عَلٰى تَعَلُّمِ الشَّرَائِعِ) (یعنی د احکام شرعیو په زدهٔ کړه ته حرص لرے)۔

**لَنْ يُّصَابُوْا بِمِثْلِيْ** : زما امت ته زما په شان مصیبت بل نهٔ دے رسیدلے، زما وفات د امت دپاره لوئی مصیبت دے چه داسے به پرے بل مصیبت نهٔ وی راغلے نو ددے وجه نه زهٔ به د دوی سفارش کونکے یم۔ څکه چه امت ته د رسول الله ﷺ په وفات باندے لوئی مصیبت رسیدلے دے چه دا د اولادو او د ښځے او مالونو تولو مصیبتونو نه غټ مصیبت دے نو اجر به هم پکښې زیات وی۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن: الترمذی (١٠٦٢) وقال حدیث حسن غریب، واسناده محتمل للتحسین فان رجاله ثقات خلا عبد ربه بن بارق فقد قال فی التقریب (صدوق یخطئ) قال الامام احمد : ما به بأس، واثنی علیه عمرو بن الفلاس خیراً وذکره ابن حبان فی الثقات۔

---

١٧٣٥ (١٥) – وَعَنْ أَبِيْ مُوْسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «إِذَا مَاتَ وَلَدُ الْعَبْدِ قَالَ اللهُ تَعَالٰى لِمَلَائِكَتِهٖ: قَبَضْتُمْ وَلَدَ عَبْدِيْ ؟ فَيَقُوْلُوْنَ: نَعَمْ. فَيَقُوْلُ: قَبَضْتُمْ ثَمَرَةَ فُؤَادِهٖ ؟ فَيَقُوْلُوْنَ: نَعَمْ . فَيَقُوْلُ: مَاذَا قَالَ عَبْدِيْ ؟ فَيَقُوْلُوْنَ: حَمِدَكَ وَاسْتَرْجَعَ. فَيَقُوْلُ اللهُ: اِبْنُوْا لِعَبْدِيْ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ وَسَمُّوْهُ بَيْتَ الْحَمْدِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

---

ترجمه : او ابو موسی اشعری ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : «کله چه د بنده بچے

وفات شي نو الله تعالىٰ ملائكو ته فرمائي : تاسو زما د بنده د بچي روح واخستو؟۔ هغوى وائي: آو، الله تعالىٰ فرمائي : تاسو د هغه د زړهٔ ميوه واخسته ؟ ملائك وائي، آو۔ الله تعالىٰ فرمائي : زما بنده څه أُووئيل؟ : ملائك وائي : ستا حمد ئې أُووئيلو او انا لله وانا اليه راجعون ئې أُووئيله۔ نو الله تعالىٰ فرمائي : زما د بنده دپاره په جنت کښې يو کور جوړ کړئ او هغې ته ((بيت الحمد)) کيدئ ))۔ (احمدؒ، ترمذيؒ)

**تشريح** : وَاسْتَرْجَعَ : يعني انا لله ئې أُووئيله۔

بيت الحمد ورته ځکه وئيلے شي چه د الحمد لله په وينا سره جوړ شويدے۔ د مصيبت په وخت کښې الحمد لله وئيل د الله په تقدير باندے د رضا ده او د الله تعالىٰ حکمونو ته تسليميدل دي نو ځکه ورله الله تعالىٰ ښائسته بدله ورکوي۔ او بچي ته ئې ثمره أُووئيله ځکه چه دا هم د مور او پلار دپاره ميوه او نتيجه وي لکه څنګه چه ميوه د ونے نتيجه وي۔ او لکه څنګه چه د ميوے نه فائده اخستے شي نو مور او پلار د خپل بچي نه فائدے اخلي۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن لغيره: اخرجه احمد فى المسند (٤/٤١٥) والترمذى (١٠٢١) وقال حديث حسن غريب وفى اسناده ابوسنان واسمه عيسى بن سنان القسملى لين الحديث (تقريب) وانظر (صحيح الترغيب والترهيب (٣٤٩١) للالبانى۔

---

١٧٣٦ (١٦) – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :(( مَنْ عَزّٰى مُصَابًا فَلَهٗ مِثْلُ أَجْرِهٖ)). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ:هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ لَا نَعْرِفُهٗ مَرْفُوْعًا إِلَّا مِنْ حَدِيْثِ عَلِيِّ بْنِ عَاصِمٍ الرَّاوِيْ وَقَالَ: وَرَوَاهُ بَعْضُهُمْ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سُوْقَةَ بِهٰذَا الْإِسْنَادِ مَوْقُوْفًا.

**ترجمه** : او عبد الله بن مسعودؓ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي :(( چا چه مصيبت زدهٔ ته تسلي ورکړه نو ددهٔ دپاره به د هغه په شان اجروي ))۔ (ترمذيؒ، ابن ماجهؒ) او ترمذيؒ وئيلي دي : دا حديث غريب دے۔ مونږ دا روايت د علي بن عاصم راوي نه علاوه د بل چا په ذريعه مرفوع نهٔ پيژنو او ترمذيؒ دا هم فرمايلي دي : بعض محدثينو دا روايت د محمد بن سوقه نه پدے سند سره (په ابن مسعود ﷺ باندے) موقوف نقل کړيدے۔

**تشريح** : عَزّٰى : د تعزيه نه دے تسلي ورکولو ته وئيلے شي۔

مُصَابًا : مصاب مصيبت زدهٔ ته وئيلے شي که هر قسم مصيبت ور رسيدلے وي، په بچي

باندے وی او که بل څه مصیبت وی۔

د تعزیه ورکونکي اجر د مصیبت والا په شان څکه دے چه دا قانون دے چه څوك چا ته د نیکئ دعوت ورکړی او هغه پرے عمل اوکړی نو د هغه په شان اجر ورته الله تعالیٰ ورکوی۔ لکه دا د صحیح احادیثو نه معلومه خبره ده۔

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف، الترمذى (١٠٧٣) وابن ماجه (١٦٠٢) وعلى بن عاصم ضعيف لخطئه واصراره عليه، وله متابعات لا يصح منها شىء ومثله حديث انس مرفوعاً: مَنْ عَزّٰى أَخَاهُ الْمُؤْمِنَ فِيْ مُصِيْبَتِهِ كَسَاهُ اللّٰهُ حُلَّةً خَضْرَاءَ يُحْبَرُ بِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ، قِيْلَ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ! مَا يُحْبَرُ بِهَا؟ قَالَ: يُغْبَطُ۔ اخرجه الخطيب (٣٩٧/٧) وابن عساكر (١/٩١/١٥)وابن ابى شيبة (١٦٤/٤) (اسناده حسن: احكام الجنائز، وارواء الغليل٢١٧/٣رقم٧٦٤) للالبانى۔

---

**١٧٣٧ (١٧) – وَعَنْ أَبِىْ بَرْزَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ: «مَنْ عَزّٰى ثَكْلٰى كُسِيَ بُرْدًا فِي الْجَنَّةِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.**

**ترجمه**: او ابوبرزه ﷺ فرمائی رسول الله ﷺ فرمایلی دی: «چا چه هغه ښځے ته تسلی ورکړه چه د هغے بچی وفات شوی وی، نو هغه ته به په جنت کښ ډیر غوره لباس اغوستلے شی»۔ (امام ترمذیؒ دا روایت نقل کړے او وئیلی ئے دی چه دا حدیث غریب دے)۔

**تشریح**: مَنْ عَزّٰی: دا کلمه د (مَنْ) عامه ده، شامله ده سړو او ښځو ټولو ته نو دے نه دا فائده معلومه شوه چه زنانه و دپاره هم جائز دی چه د مړی کور ته د تعزیه دپاره لاړ شی او د مړی کور والو ته تعزیه او تسلی ورکړی او هغوی ته دعاء اوکړی۔

**ثَكْلٰى**: هغه ښځے ته وئیلے شی چه بچے ئے وفات شوے وی۔

**بُرْدًا**: په ضمه د باء سره ښتے جامے ته وائی۔ دۀ هغه ته د تسلی جامه وروا غوستله نو الله تعالیٰ دۀ ته د جنت جامه اغوندوی۔

علامه مناویؒ فرمائی: ځوانے ښځے ته به خاوند یا محرم تسلی ورکوی، ځکه چه د نورو سړو د تسلی نه نقصان پیدا نشی۔

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف، الترمذى (١٠٧٦) وقال حديث غريب وليس اسناده بالقوى وفى الاسناد منية ابنة عبيد بن ابى برزة قال عنها ابن حجر فى التقريب: لا يعرف حالها۔

---

**١٧٣٨ (١٨) – وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ: لَمَّا جَاءَ نَعْيُ جَعْفَرٍ قَالَ النَّبِيُّ ﷺ: «**

اِصْنَعُوْا لِآلِ جَعْفَرٍ طَعَامًا فَقَدْ أَتَاهُمْ مَا يَشْغَلُهُمْ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُوْدَاوُدَ وَابْنُ مَاجَه.

---

**ترجمه** : او عبد الله بن جعفر فرمائي : كله چه د جعفر د مرگ خبر راغلو نبي كريم ﷺ (خپل كور والو ته) اُوفرمايل : «د جعفر اهل وعيال دپاره خوراك تيار كړئ ځكه چه هغوی ته يوه داسې حادثه راپيښه شوې ده چه هغوی (د طعام پخولو نه) مشغوله كوي»۔ (ترمذیؒ، ابوداودؒ، ابن ماجةؒ)۔

**تشريح** : جعفر بن ابی طالب د علي ﷺ ورور دے، په غزوه موته كښ رسول الله ﷺ درے كسان يو بل پسې د لښكر اميران مقرر كړي وو يو په هغې كښ جعفر وو او دا ئې اُووئيل : كه زيد مړ شي نو جعفر به امير وي او كه جعفر وفات شي نو عبد الله بن رواحه به امير وي۔ صحابه كرامؓ اُووئيل : زمونږ زړونو كښ راغلل چه دا به شهيدان كيږي۔ او همدغه شان اُوشو چه درے واړه په غزوه موته كښ په اتم سنه هجري كښ شهيدان شول۔ (موته د تبوك په خوا كښ يو ځائے دے)۔

كله چه دوی شهيدان شول نو رسول الله ﷺ د دوی د مرگ خبر وركړو چه زيد جنډه واخسته او قتال ئې كولو تردے چه شهيد شو بيا جعفر بيا عبد الله بن رواحه او ټول جنت ته داخل شو۔

ددے نه پس ئې خپلوانو ته حكم اُوكړو چه تاسو د جعفر كور والو دپاره څه خوراك تيار كړئ ځكه چه دوی باندے داسې مصيبت او غم راغلے دے چه دوی ئې د طعام پخولو نه مشغوله كړيدي۔

بيا دا حديث دليل دے چه د مړي كور والو دپاره طعام تيارول افضل عمل دے۔ او امام ترمذیؒ فرمائي: بعض اهل علم دا مستحب گنړي چه د مړي كره څه شے د طعام اُوليږلے شي ځكه چه هغوی په مصيبت مشغول دي او دا قول د امام شافعيؒ دے۔ آه۔

**مسائل** : دلته يو څو مسئلے دي۔(۱) يوه دا چه كله چا كره مړے اُوشي نو دوی به د بل چا طمع نۀ ساتي چه خلق به روټئ راوړي بلكه خپله به پخلے كوي لكه حديث كښ راغلي دي چه د عائشې رضي الله عنها په كورنئ كښ به كله څوك وفات شو او هغے ته به زنانه او خپلوانے راجمع شوے نو بيا چه به خورے شوے نو دے به حكم اُوكړو چه تلبينه پخه كړئ (دا يو قسم حلواء ده چه د پيو او وړو يا د وربوړے نه جوړيږي) بيا به ئې ثريد يعني ما ته ډوډئ تياره كړه او تلبينه به ئې په هغې باندے وارَوله بيا به ئې فرمائيل : دا خورئ ځكه چه ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلي دي : (اَلتَّلْبِيْنَةُ مُجِمَّةٌ لِفُؤَادِ الْمَرِيْضِ وَتَذْهَبُ بِبَعْضِ الْحُزْنِ)

(صحيح البخاری رقم: ۵۱۰۱ ومسلم)۔

(تلبينه د مريض زړۀ ته آرام رسوي او بعض غم ختموي) نو دے حديث نه دا ثابته شوه چه د مړي كور والا به د چا انتظار نۀ كوي. او دا هم ثابته شوه چه كور والا دپاره پخلے جائز دے نو كوم خلق چه د دريو ورځو پورے د مړي په كور كښې اُور بلول او پخلے كول ناروا گنړي نو دا غلطه عقيده ده.

(۲) دويمه مسئله دا ده چه كلي والا او خوا او شا گاونډيانو باندے لازم دي چه هغوي به د مړي كور ته طعام ليږي، پدے كښې بيا دا ضروري نۀ ده چه گدان يا غوا او ميخه به ذبح كوي او ټولو خلقو له ډوډئ كوي، دا بدعت دے. بعض خلق اعلان كوي چه اے خلقو فلاني روټئ كړيده او تاسو ايسار شئ دا د خپل ثوم او مخ ملازے روټئ وي ددے خوړل صحيح نۀ دي او ډير خلق پدے كښې د يتيم او د كونډے ښځې مال لگوي او كۀ هغه سره نۀ وي نو خپل مال اُولگوي بيا ئے يتيم پسے حسابوي دا ټول سراسر ظلمونه دي. ډير كرت د مړي كور والا دغه رواجي خيرات نۀ كوي ليكن بل گاونډي يا خپلوان گډ حلال كړي بيا چه د هغه مړے اُوشي نو دا به ئے ورله حلالوي، دا هم يوه غلطه طريقه ده.

(۳) د كور والو دپاره روټي تيارول جائز دي او كه د لرے نه ميلمانه راغلي وي چه بيرته كورونو ته نشي واپس كيدے نو گاونډيانو باندے لازم دي چه دغه ميلمانه تقسيم كړي لكه څنگه چه رسول الله ﷺ به ميلمانه تقسيمول (صحيح بخاري ۸٤/۱).

ډير خلق خپلے خيتے د مړي په كور والو كښې ځروي، په هغوي غم وي او دوي خوشحاله وي او د روټئ په تالاش كښې وي دا د خلقو همدردي ده ؟ او پدے كښې نورے ډيرے حرامے كيږي.

(٤) څو ورځو پورے به دا طعام ليږي ؟:

پدے كښې امام شافعيؒ او نورو علماؤ دا وئيلي دي چه زۀ دا خوښوم چه گاونډيان د مړي كور والو ته يوه ورځ او يوه شپه خوراك وركړي او همدا خبره علي القاريؒ هم كړيده او وئيلي ئے دي چه غالباً غم چه د روټئ د خوړلو نه مشغوله كونكے وي نو هغه يوه ورځ او يوه شپه وي، بيا چه كله ورله طعام تيار كړي نو پكار ده چه په هغوي باندے زور اُوكړے شي د هغے په خوړلو، ځكه هغوي به يا حياء كوي يا به زياته جزع فزع كوي نو كمزوري به شي. او علماء ليكي : چه د مصيبت او مرگ په وخت پكار ده چه غمزده انسان خوراك اُوكړي ځكه چه پدے سره په غم كښې آساني پيدا كيږي او كله چه ورته انسان اُوږے هم وي نو بيا ئے غم بدن خرابوي.

ليكن په احاديثو كښې د ورځو څه تعيين نۀ دے راغلے بلكه هر څومره وخت كښې چه د هغوي پريشاني په آرام شي نو طعام دے ورليږي.

(۵) **مسئله :** ټولو فقهاؤ پدے باندے تصريح كړيده چه د مړي په كور باندے ميلمه كيدل او د

هغوي د كور نه خوراك كول مكروه او حرام دي. او ديته ئې بدعت قبيحه وئيلې دې. لهٰذا ميلمنو له پكار دي چه د مړي په كور والو ميلمانه نشي بلكه خپلو كورونو ته واپس شي يا نورو خپلوانو دوستانو يا گاونډيانو كره لاړ شي هسې نه چه پدې حرامو كښې واقع نشي پدې سره به ئې زړۀ خراب شي ځكه چه د مړي د كور نه خوراك كول زړۀ مړ كوي.

لكه علامه ابن همامؒ فرمائي : (وَيُكْرَهُ اِتِّخَاذُ الضِّيَافَةِ مِنْ اَهْلِ الْمَيِّتِ، لِاَنَّهٗ شُرِعَ فِي السُّرُوْرِ لَا فِي الشُّرُوْرِ، وَهِيَ بِدْعَةٌ مُسْتَقْبَحَةٌ آه) (د مړي د كور والو نه ميلمستيا اخستل مكروه دي ځكه چه دا كار په خوشحالئ كښې كيږي نۀ په مصيبتونو كښې او دا قبيح بدعت دې).

على القاريؒ فرمائي : (وَاِصْطِنَاعُ اَهْلِ الْمَيِّتِ الطَّعَامَ لِاَجْلِ اجْتِمَاعِ النَّاسِ عَلَيْهِ بِدْعَةٌ مَكْرُوْهَةٌ بَلْ صَحَّ عَنْ جَرِيْرٍ رضى الله عنه اَنَّهٗ قَالَ : كُنَّا نَعُدُّهٗ مِنَ النِّيَاحَةِ) (او د مړي د كور والو طعام تيارول دې دپاره چه خلق ورته راجمع شي دا مكروه بدعت دې بلكه د جرير ﷺ نه صراحةً نقل دي چه هغه فرمائيلي دي چه مونږ به دا كار د نياحت (وير) نه گنړلو او دا ظاهر دې په حرمت كښې). نو پدې كښې رد دې په هغه خيراتونو چه پښتانه ئې كوي. او د مړي د كور والو نه ميلمستيا حاصلول او هغوي كره خوراك څكاك كول حرام دي.

دليل پرې حديث د جرير بن عبد الله البجلي دې هغه فرمائي : (كُنَّا نَعُدُّ الْاِجْتِمَاعَ اِلَى اَهْلِ الْمَيِّتِ وَصُنْعَةِ الطَّعَامِ بَعْدَ دَفْنِهٖ مِنَ النِّيَاحَةِ) (احمد، وابن ماجه) (مونږ به مړي كره راجمع كيدل او د هغوي طعام جوړول د مړي د دفن نه روستو د نياحت (وير) نه گنړل) كوم چه حرام دې.

علامه سنديؒ فرمائيلي دي چه كنا نعد الخ لفظ د صحابه كرامو د اجماع روايت دې. يا تقرير د نبي ﷺ دې. لهٰذا پدې باندې اجماع د صحابه كرامو ده چه د مړي د كور نه خوراك څكاك كول او په هغوي باندې ميلمه كيدل او هغوي دپاره د مړي پسې خيراتونه كول او خلق ورله راغونډول حرام دي.

**اشكال** :تاسو خو د مړي د كور نه خوراك او د هغوي د خلقو دپاره طعام تيارولو ته حرام اُووئيلو او حال دا چه يو روايت كښې راغلي دي چه عاصم بن كليب د خپل پلار نه نقل كوي هغه يو د سړي د انصارو نه روايت كوي چه مونږ د رسول الله ﷺ سره په يوه جنازه كښې وو، نو ما رسول الله ﷺ اُوليدو چه د قبر سره ولاړ وو او د قبر كنستونكي ته ئې وصيت كولو چه دا قبر د خپو د طرف نه فراخه كره، د سر د طرف نه ئې فراخه كره نو هر كله چه راواپس شو (اِسْتَقْبَلَهٗ دَاعِي امْرَاَتِهٖ) (نو مخې له راغې هغه ته دعوت وركونكې د ښځې د مړي، نو هغه دعوت قبول كړو او مونږ ورسره وو، طعام راوړې شو نو هغه لاس كيخودو او خلقو هم لاسونه (په طعام كښې)

کیخودل او خوراك ئې شروع کړو الحدیث) (ابوداوده بیهقی فی دلائل النبوة بسند صحیح) نو دې نه ځو معلومیږي چه د مړي ښځې نبي ﷺ ته دعوت ورکړو او هغه سره د صحابه کرامو نه په شریکه اُوخوړلو) او دا صحیح حدیث دے۔

**الجواب** : دا روایت صحیح دے لیکن پدے کښ د (دَاعِیُ امْرَأَتِهِ) الفاظ صحیح نهٔ دی دا سهوه د کاتبانو ده یا دس البغاة دے، بلکه دا بغیر د ضمیر نه صحیح دے او دلیل پدے باندے دا دے چه دا روایت په سنن ابوداود کښ (دَاعِي امْرَأَةٍ) الفاظو سره راغلے دے او دغه شان په مسند احمد (۲۹۳/۵) کښ هم (دَاعِي امْرَأَةٍ) الفاظ دی۔ بلکه پدے روایت کښ ورسره دا الفاظ زیات دی (تَلَقَّاهُ دَاعِي امْرَأَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ) او په یو بل روایت کښ دی :(صَنَعَتِ امْرَأَةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ مِنْ قُرَيْشٍ لِرَسُولِ اللهِ ﷺ طَعَامًا فَدَعَتْهُ وَأَصْحَابَهُ الخ)

او په سنن کبریٰ د بیهقی (۹۷/٦) کښ داسے الفاظ دی : (صَنَعَتِ امْرَأَةٌ مِنْ قُرَيْشٍ لِرَسُولِ اللهِ ﷺ طَعَامَهُ فَدَعَتْهُ وَأَصْحَابَهُ) او په طحاوی کښ داسے الفاظ دی : (إِنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ كَانَ مَعَ النَّبِيِّ ﷺ فِيْ جَنَازَةٍ فَلَقِيَهُ رَسُولُ امْرَأَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ يَدْعُوهُ إِلَى الطَّعَامِ) (معانی الآثار ۳۲۰/۲) دا ټول الفاظ دلالت کوی چه دا طعام د قریشو یوے ښځے تیار کړے وو او د مړي د کور ښځه نهٔ وه نو دا پردے دعوت وو چه رسول الله ﷺ خپل کور ته روان دے او په لاره کښ یوے زنانه په خپل شوق سره ستون کړیدے او هغه او د هغه ملګرو ته ئې دعوت ورکړیدے نو ددے د مړي د کور والو سره هیڅ تعلق نشته۔ ددې مثال داسے دے لکه چه ته د مړي یوه جنازه اُوکړے او بیا کور ته روان ئې او په لاره کښ درله څوك دعوت درکړي او هغوی کره میلمستیا اُوکړے نو دے کښ هیڅ نقصان نشته۔ (راجع المرعاة ٤٨١/٥)

(٦) **مسئله** : بعض خلق چه کله په ګاوند کښ مړے اُوشي نو دوی ګرځي او د ګاوندیانو نه مالونه راجمع کوی یا هره میاشت یا هر کال چه مړے به کیږي او پدے مال سره به د هغوی دپاره طعام تیاروو۔دا کار بدعت او ظلم او حرام دے۔ وجه دا ده چه دا طریقه د رسول الله ﷺ او د هغه د صحابه کرامو نه نقل نهٔ ده۔ نو بس بدعت شو۔

۲- دویم دا چه دے ته هیڅ ضرورت نشته چه په دغه پیسو باندے ټول کلی ته روټۍ ورکړے شي هر سړے کور لري هغې ته به لاړ شي او هرچه میلمانه دی نو هغه مخکښ بیان شو چه تقسیم به کړے شي۔ ۳- بله دا چه پدے کښ به د چا خوښه او څوك به نارضا وي او د هغه نه په کښ مال اخستے شي او حال دا چه د چا نه په نا خوښۍ سره مال اخستل حرام دی کما فی الحدیث۔

نو صحیح طریقه دا ده چه د هر سړي څومره وس کیږي نو مړي کره دے طعام اُولیږي مثلاً د

مري کور والا لس کسان وي نو بس دوه کاسے ترکاري او شل دودئ اُولیږه په هغې به ئے گوزاره اُوشي او نورو بدعاتو ته هيڅ ضرورت نشته، افسوس چه خلقو ځان ته ودونه او خوشحالیانے او مري گران کړيدي۔ او فتاوى الدين الخالص کښې ددے بدعت ترديد اُوگوره۔

**درجة الحديث:** اسناده صحيح : ابوداود (٣١٣٢) والترمذى (٩٩٨) وقال حديث حسن صحيح واخرجه ابن ماجه (١٦١٠) وصححه الحاكم والذهبى وابن السكن۔

## الفصل الثالث

**١٧٣٩ (١٩) – عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ ﷺ يَقُولُ: «مَنْ نِيحَ عَلَيْهِ فَإِنَّهُ يُعَذَّبُ بِمَا نِيحَ عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.**

**ترجمه:** مغيره بن شعبه فرمائي : ما د رسول الله ﷺ نه آوريدلي چه فرمايل ئے : « چا باندے چه وير (يعنى په اُوچت آواز سره ژړا) اُوکړے شي نو هغه ته به د قيامت په ورځ د وير کيدو په وجه عذاب ورکولے شي »۔ (بخارئ ومسلمٌ)۔

**تشريح : اشكال :** پدے حديث کښې دا اشکال کيږي چه قرآن کريم کښې راغلي دي : ﴿ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ﴾ (فاطر) (څوک د بل چا بوج نشي اُوچتولے) نو څنګه ژړا کوروالو کړيده او عذاب مړي ته ورکولے شي؟۔

ددے اشکال په جواب کښې علماؤ دولس تطبيقات کړيدي چه هغه صاحب د مرعاة تفصيلاً ذکر کړيدي۔

(١) اول : حديث مطلقاً په خپل ظاهر بناء دے او دا خاص دے د آيت نه۔ يعنى آيت کښې دي چه د بل چا گناه څوک نشي پورته کولے مگر د بل په ژړا سره مړي ته عذاب ورکولے شي۔ او دا قول د عمر فاروق او د هغه د ځوى عبد الله بن عمر رضى الله عنهما دے۔ لکه روستو په حديث د ابن ابى مليکه کښې راځي۔

٢- **دويم :** مړي ته مطلقاً عذاب نشي ورکولے په سبب د ژړا د ژوندي۔ او دا قول د ابو هريرةؓ دے۔ بکر بن عبد الله المزنيؒ فرمائي : قسم په الله يو مجاهد في سبيل الله به لاړ شي شهيد به شي بيا به ددهٔ ښځه د جهالت او کم عقلتيا نه په دهٔ پسے ژاړي نو آيا دے شهيد ته به ددے سفيهے او جاهلے په گناه سره عذاب ورکولے شي؟۔(رواه ابويعلى الموصلى) او دا قول والا آيت په عموم حمل کوي او په حديث کښې تاويل کوي۔

٣- دريم : په بما نيح او ببكاء اهله عليه) کښې باء د حاليت دپاره ده معنىٰ دا ده : (اَىْ اِنَّهُ يُعَذَّبُ

حَالَ بُكَاءِ هِمْ عَلَيْهِ وَالتَّعْذِيْبُ مِنْ ذَنْبِهٖ لَا بِسَبَبِ الْبُكَاءِ) (چه دهٔ ته عذاب ورکولے شی په داسے حال کښې چه دوی په هغه باندے ژاړی نو دا عذاب د مړی د ګناه په سبب دے نهٔ چې د ژړا په سبب نهٔ دے) نو پدے کښې دا حالت د نوح او بکاء سبب د عذاب نشو بلکه د مړی د عذاب سبب ګناه ده او ژړا ئے یو حالت ذکر کړو۔ مطلب ئے دا دے چه خلق پرے ژاړی او حال دا چه په هغه باندے عذاب شروع دے۔ لهٰذا دا حدیث خاص دے په بعض مړو پورے۔

٤- څلورم : دا عذاب په کافر مړی پورے خاص دے۔ چه هغه دپاره د بل ژړا هم سبب د عذاب ګرځی۔ او دا دواړه قولونه د عائشے رضی الله عنها دی۔ لکه ددے قول تشریح به روستو په روایت د عمرة عن عائشه کښې راشی۔

او روستو حدیث د ابن عباسؓ کښې د عائشےؓ نه نقل دی چه هغے فرمایل :(يَرْحَمُ اللهُ عُمَرَ، وَاللهِ مَا حَدَّثَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ اَهْلِهٖ عَلَيْهِ وَلٰكِنْ اِنَّ اللهَ يَزِيْدُ الْكَافِرَ عَذَابًا بِبُكَاءِ اَهْلِهٖ عَلَيْهِ) (یعنی الله دے په عمر رحم اُوکړی قسم په الله رسول الله ﷺ دا کله هم نهٔ دی وئیلی (یعنی دا ئے مقصد نهٔ دے) چه مړی ته به د هغه د کور والو د ژړا په سبب عذاب ورکولے شی لیکن (مقصد ئے دا دے چه) الله کافر لره عذاب زیاتوی په سبب د ژړا د کوروالو د هغه په هغه باندے)۔

٥- امام بخاری دا روایت ذکر کړے او بیا ئے تطبیق داسے کړے چه :(هٰذَا اِذَا كَانَ النَّوْحُ مِنْ سُنَّتِهٖ وَطَرِيْقَتِهٖ) (یعنی مړی ته د ژوندی په ژړا عذاب هله ملاویږی کله چه ژړا د هغه طریقه ری په ژوند کښې) نو کله چه دا خپله مړ شی او په دهٔ باندے څوك ژاړی نو دهٔ ته الله تعالیٰ عذاب ورکوی۔ او دا رنګه ژړا د هغه د قوم عادت وی او دا خبر وی چه که زهٔ مړ شم نو ما پسے به هم دغه شان خلق ژړا کوی او دا په ژوند کښې هغوی منع نکړی نو دا راضی دے د هغوی په کار باندے او نهی عن المنکر ئے پریخودے دے نو ځکه دهٔ ته عذاب ملاویږی۔

(تهذیب سنن ابی داود لابن القیم ۲/۸۳)

٦- یا دا چه دا په باره د هغه چا کښې دے چه په ژړا کولو وصیت اُوکړی نو دهٔ په ګناه وصیت اُوکړو نو ددے ګناه سزا به خوری۔ لکه عربو به دا وصیتونه کول یو شاعر خپلے بنځے ته وائی :

| وَشُقِّيْ عَلَيَّ الْجَيْبَ يَا ابْنَةَ مَعْبَدٖ | | اِذَا اَنَا مِتُّ فَانْعِيْنِيْ بِمَا اَنَا اَهْلُهٗ |
|---|---|---|

(کله چه زهٔ مړ شم نو زما د مرګ خبر خلقو ته ورکړه په هغه صفاتو چه زهٔ ئے لائق یم او په ما باندے ګریوان څیرے کړه اے د معبد لورے !)۔

٧- ددے نه مراد د ملائکو توبیخ دے په هغه صفاتو چه کور والا ئے د مړی دپاره وائی لکه د ابو موسی اشعریؓ نه نقل دی چه کله ویر ګره ښځه اُووائی :(واعضداه واناصراه، واكاسياه) (اے

زما متـه، اے زمـا مـددگاره، اے ما ته جامے راغوستونكيه) نو ملائك مړي راكاږي او ورته وائي چـه تـه ددے مـث وے، تهٔ ددے مددگار وے او تا ورله جامے وركولے. لكه ددے حديث شاهد روستو راتلونكے حديث د نعمان بن بشير دے.

٨- ددے نه مراد (تَأَلُّمُ الْمَيِّتِ بِمَا يَقَعُ مِنْ أَهْلِهِ) (د مړي دردمند كيدل په هغه خبرو چه د ژوندو نه واقـع كيږي چه ژړا وغيره دي. يعني كله چه كور والا د مړي ے ځايه صفتونه بيانوي او په هغه پسے ژاړي نـو دا پـرے دردمـنـد كيـږي او خـفـه كيږي او دا قول ابو جعفر الطبريؒ او عياضؒ او شيخ الاسلام ابـن تيـميـهٔ او يـو جـمـاعـت د متـأخـرينو غوره كړيدے او حافظ ابن قيمؒ فرمائي : چه دا عـذاب پـه گـنـاه نـهٔ دے بـلـكـه دا د مـړي عذاب دے په تنگيدلو لكه څنگه چه سفر ته نبي ﷺ قطعة من العذاب وئيلے ده او هغه هم په گناه عذاب نهٔ دے. نو مړي ته دا د الله د طرف نه عذاب نـهٔ دے بـلـكه دا د مړي په عذابيدل دي په سبب ددے چه ملائك ورته د ژوندي دا خبرے آوروي او هغه پرے خفه كيږي.

عبد الله بن مسعودؓ ځه زنانه په جنازه كښې اُوليدلے وے فرمايل : (اِرْجِعْنَ مَأْزُوْرَاتٍ غَيْرَ مَأْجُوْرَاتٍ فَإِنَّكُنَّ لَتُفْتِنَّ الْأَحْيَاءَ وَتُؤْذِيْنَ الْأَمْوَاتَ) (واپس شئ پداسے حال كښې چه تاسو د گناهونو بوج پورته كـونـكـي يئ، اجر به درته نهٔ ملاويږي، ځكه چه تاسو ژوندي په فتنه كښې اچوئ او مړو ته ضرر وركوئ) (سعيد بن منصور).

ابـو الـربيعؒ فرمائي : زهٔ د ابن عمرؓ سره په يوه جنازه كښې وم نو هغه د يو انسان آواز واوريدو چه چغے ئے وهلے نو هغه پسے انسان اُوليږلو هغه ئے غلے كړو، ما ترے تپوس اُوكړو چه تاسو ولے غلے كړو ؟ اے ابـو عبد الرحمن. هغه اُوفرمايل : إِنَّـهُ يَتَـأَذَّى بِهِ الْمَيِّتُ حَتَّى يَدْخُلَ قَبْرَهُ) (احمد) (دے سره مړي ته ضرر رسي تردے چه قبر ته داخل شي).

٩- يا ددے نه مراد دا دے :(اَلتَّعْذِيْبُ بِالصِّفَاتِ الَّتِيْ يَبْكُوْنَ بِهَا عَلَيْهِ) (چه مړي كښې بد صفات وو په ژونـد كـښې بـه ئے هـغـه كول نو پس د مرگ نه چه دا ژوندي خلق هغه رايادوي او ددهٔ صفات پرے كـوي لـكـه مثلاً مړي په ژوند كښې شرك كولو، چه كله هغه مړ شي نو ژوندي پسے داسے وائي چه اے فلانيه ! ته څو مره ښه سړے وے چه زهٔ به دے فلاني بابا له بوتلم او مونږ دوارو به د فلاني بابا قبر جارو كولو او د هغے كاڼړي او جاروگانے به مو ځان پسے راښكلے يا نور گناهونه ياد كړي. او عـربـو بـه داسے وئيل : (يَا مُرَمِّلَ النِّسْوَانِ، وَيَا مُيَتِّمَ الْأَوْلَادِ، يَا مُخَرِّبَ الدُّوْرِ) (اے ښـځـو لره كونډئ كـونـكـيـه، اے اولادو لره يتيم كونكيه، اے كورونه خرابونكيه). نو په دغه بدو صفاتو الله عذاب وركوي، پدے ژړا ئے نهٔ وركوي. نو پدے وخت كښې د آيت او د حديث تعارض ختم شو.

نور وجوهات پدے کښې مندرج دی۔ لهذا د آيت او د حديث هيڅ قسمه تعارض نشته۔
ليکن په بعض روايتونو کښې دا عذاب په قبر کښې ذکر دے او په بعضو کښې په ورځ د قيامت کښې ذکر دے نو که دا عذاب د قيامت په ورځ واخستے شي نو بيا دے ٭مره بعض جوابونه مناسبت نه لري۔ فتدبر وارجع۔
پدے ټولو جوابونو کښې غوره جواب د هغه چا دے چه وائي دا حديث په باره د هغه چا کښې دے چه هغه د بل چا د ژړا دپاره سبب ګرځيدلے وي مثلًا ژړا ددهٔ طريقه وي، يائے پرے په ژوند کښې وصيت کړے وي يا ددهٔ کور والا ژړا کونکي وي او دهٔ نهٔ وي منع کړي۔ او کله چه د مړي هيڅ قصور پکښې نهٔ وي نو بيا به خبره د عائشہؓ قوي وي چه هغې به دليل پيش کولو (وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ) الخ راجع المرعاة (٥/٤٨٥) وفتاوى الدين الخالص (٧/٣٤٦)

---

١٧٤٠ (٢٠) - وَعَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّهَا قَالَتْ: سَمِعْتُ عَائِشَةَ وَذُكِرَ لَهَا أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ يَقُوْلُ: إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ الْحَيِّ عَلَيْهِ تَقُوْلُ: يَغْفِرُ اللهُ لِأَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَمَا إِنَّهُ لَمْ يَكْذِبْ وَلٰكِنَّهُ نَسِيَ أَوْ أَخْطَأَ إِنَّمَا مَرَّ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ عَلٰى يَهُوْدِيَّةٍ يُبْكٰى عَلَيْهَا فَقَالَ: «إِنَّهُمْ لَيَبْكُوْنَ عَلَيْهَا وَإِنَّهَا لَتُعَذَّبُ فِيْ قَبْرِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه : او د عمره بنت عبد الرحمن نه روايت دے چه هغه فرمائي : ما د عائشہؓ نه واوريدل او هغې ته دا خبره ذکر شوه چه، عبد الله بن عمرؓ فرمائي : مړي ته په هغه باندے د ژوندي په ژړا کولو سره عذاب ورکولے شي۔ نو ما د عائشہؓ نه واوريدل چه فرمايل ئے : الله تعالىٰ دے ابوعبد الرحمن (ابن عمر) ته بخښنه اُوکړي۔ خبردار هغه، (قصداً) دروغ نهٔ دي وئيلي بلکه هغه خبره هيره کړے يا خطاء شوے دے۔ (چه هغه د يو خاص ارشاد نه عام حکم مراد کوي) حقيقت دا دے چه رسول الله ﷺ په يوه يهوديه زنانه باندے تيريدلو چه په هغې باندے ژړا کيدے شوه (پدے ليدو سره) نبي کريم ﷺ اُوفرمايل : ددے خپلوان په دے باندے ژړا کوي او هغې ته په قبر کښې عذاب ورکولے شي۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)۔

**تشريح :** يَغْفِرُ اللهُ : (يعنې الله دے ورته بخښنه اُوکړي) دا جمله عرب په داسے موقعه کښې استعمالوي چه کله يو شخص په خپله خبره کښې خطائي اُوکړي۔ نو هر مسلمان له پکار دي چه کله يو مجتهد په يوه مسئله کښې خطاء شي نو هغه باندے ترحم اُووائي۔ اګرکه خبره به ئے نشي منلے۔

د عائشې د خبرې مقصد دا دے چه رسول الله ﷺ په یوه یهودیه زنانه باندې ورتیریدو او کور والو پرې ژړل نو هغه داسې اُوفرمایل : دا خلق خو مره جاهلان او ناپوهه دي چه دا بد بخته ښځه د قبر په عذاب کښې مبتلا ده او خواره او ذلیله ده لکه څنګه چه د کافرانو حال وي او دا خلق ورپسې ژاړي دا مرحومه ګنړي او ددې سره د محبت اظهار کوي لهذا رسول الله ﷺ دا خبره خاص ددې یهودي زنانه په باره کښې وئیلې وه او دغه شان د نورو کافرانو حال هم وي چه خپلوان او کورنۍ ئې مرحوم ګنړي او د محبت اظهار ورسره کوي، ژړاګانې پسې کوي او جنتي ئې ګنړي لیکن هغه باندې په قبر کښې عذاب وي. نو رسول الله خو دا نۀ دي وئیلي دي چه دے مړي باندې دا عذاب د دوي د ژړا په وجه دے. لهذا عبد الله بن عمر ﷺ چه کوم نتیجه او کوم مطلب د رسول الله ﷺ د ارشاد نه اخستے دے نو دا صحیح نۀ دے، دوي پکښې خطاه شویدي.

او دا اعتراض د بعض علماؤ په نیز د عائشې اجتهاد دے او څه مرفوع حدیث ئې نۀ دے پیش کړے لیکن ددې الفاظو نه ئې استنباط کړیدے ځکه چه د هغې په نظر کښې که د ژوندي د ژړا په وجه هر مړي ته عذاب ورکړے شي نو بیا خو د آیت خلاف راځي.

لیکن دا اجتهاد په هغه وخت کښې صحیح کیدے شي چه د رسول الله ﷺ دا ارشاد خاص ددې یهودي ښځې په باره کښې شي او که چرته په عموم باندې حمل شي لکه همدا خبره صحیح ده چه د نورو احادیثو نه معلومه ده چه نبي ﷺ مطلقاً داسې فرمائیلې دي چه مړي ته د ژوندي په ژړا سره عذاب ورکولے شي لکه دغه روایات د نورو صحابه کرامو نه هم نقل دي لکه د عمرؓ په حدیث کښې دي (متصل راروان دے) :(إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبَعْضِ بُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ) نو بیا به د عبد الله بن عمرؓ خبره صحیح وي او د آیت سره د تعارض ختمیدو جوابونه به هغه وي کوم چه مخکښې تیر شو.

**تنبیه** : شوکانيؒ فرمائي : امام نوويؒ د علماؤ اجماع نقل کړیده سره د اختلاف د مذاهبو : هغوي نه پدې خبره چه مراد د هغه ژړا نه چه مړي ته د هغې په وجه عذاب ملاویږي هغه ژړا ده چه په صوت او نیاحت (ویر) سره وي، نۀ نفس د سترګو نه اُوښکې تلل.

---

١٧٤١ (٢١) - وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِيْ مُلَيْكَةَ قَالَ: تُوُفِّيَتْ بِنْتٌ لِعُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ بِمَكَّةَ فَجِئْنَا لِنَشْهَدَهَا وَحَضَرَهَا ابْنُ عُمَرَ وَابْنُ عَبَّاسٍ فَإِنِّيْ لَجَالِسٌ بَيْنَهُمَا فَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ لِعَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ وَهُوَ مُوَاجِهُهُ: أَلَا تَنْهٰى عَنِ الْبُكَاءِ ؟ فَإِنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ : « إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ ». فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: قَدْ كَانَ عُمَرُ يَقُوْلُ بَعْضَ ذٰلِكَ. ثُمَّ حَدَّثَ

فَقَالَ: صَدَرْتُ مَعَ عُمَرَ مِنْ مَكَّةَ حَتَّى إِذَا كُنَّا بِالْبَيْدَاءِ فَإِذَا هُوَ بِرَكْبٍ تَحْتَ ظِلِّ سَمُرَةٍ فَقَالَ: اذْهَبْ فَانْظُرْ مَنْ هَؤُلَاءِ الرَّكْبُ؟ فَنَظَرْتُ فَإِذَا هُوَ صُهَيْبٌ. قَالَ: فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ: ادْعُهُ فَرَجَعْتُ إِلَى صُهَيْبٍ فَقُلْتُ: ارْتَحِلْ فَالْحَقْ أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ. فَلَمَّا أَنْ أُصِيبَ عُمَرُ دَخَلَ صُهَيْبٌ يَبْكِي يَقُولُ: وَا أَخَاهُ وَاصَاحِبَاهُ. فَقَالَ عُمَرُ: يَا صُهَيْبُ أَتَبْكِي عَلَيَّ وَقَدْ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ: «إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبَعْضِ بُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ؟». فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَلَمَّا مَاتَ عُمَرُ ذَكَرْتُ ذَلِكَ لِعَائِشَةَ فَقَالَتْ: يَرْحَمُ اللهُ عُمَرَ لَا وَاللهِ مَا حَدَّثَ رَسُولُ اللهِ ﷺ أَنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ وَلَكِنْ: إِنَّ اللهَ يَزِيدُ الْكَافِرَ عَذَابًا بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ. وَقَالَتْ عَائِشَةُ: حَسْبُكُمُ الْقُرْآنُ: ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى﴾. قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ عِنْدَ ذَلِكَ: وَاللهُ أَضْحَكَ وَأَبْكَى. قَالَ ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ: فَمَا قَالَ ابْنُ عُمَرَ شَيْئًا.

**ترجمه** : او عبد الله بن ابی مليكهؒ فرمائی : د عثمان بن عفان (رضی الله عنه) لور په مکه کښې وفات شوه نو مونږ راغلو چه هغې ته حاضریدو او هغې ته ابن عمرؓ او ابن عباسؓ (هم) حاضر شوی وو، زۀ د دواړو ترمينځ ناست وم نو عبد الله بن عمرؓ عمرو بن عثمان ته أوفرمايل چه هغه ورته مخامخ ناست وو : آيا تۀ (خپل کور والا په اُوچت آواز سره) د ژړا نه نۀ منع کوې؟ ځکه چه رسول الله ﷺ فرمايلی دی :« يقيناً مړی ته د خپل کور والو د ژړا په وجه سره عذاب ورکولے شی ». عبد الله بن عباسؓ (ددے په جواب کښې) أُووئيل چه عمر فاروق (هم) ددے نه څه خبره کوله (يعنی د نبی ﷺ ددے خبرے نه د نهی عموم معلوميږی ليکن عمر به دا منع صرف د قريب الموت سره په اُوچت آواز سره په ژړا کولو محمولوله) نو هغوی دا واقعه بيان کړه چه کله زۀ، عمر فاروق سره د مکے نه رواپس شوم او مونږ بيداء مقام ته راورسيدو (کوم چه د مکے او مدينے ترمينځ يو ځائے دے) نو ناځاپې عمرؓ د کيکرونے لاندے يوه قافله أوليدۀ ـ هغه (ما ته) أُووئيل : تۀ هلته لاړ شه أوګوره چه په قافله کښې څوک دی. ما چه أوکتل هغه صهيبؓ (او د هغه ملګری) وو. ابن عباسؓ فرمائی : زۀ راغلم عمر ته مے خبر ورکړو. عمر أُوفرمايل : چه دوی راوغواړه. نو زۀ د صهيب خوا ته راغلم او هغه ته مے أُووئيل چه لاړ شه او د امير المؤمنين عمر فاروق سره ملاؤ شه. ددے نه روستو چه کله (په مدينه کښې) عمر زخمی کړے شو نو صهيب په ژړا سره راداخل شو او دا ئے وئيل : اے زما وروره، اے زما آقا (دا څه أُوشو؟) عمر (پدے حالت کښې) صهيبؓ ته أُوفرمايل :آيا تۀ زما په خوا کښې (په أُوچت آواز سره) ژړا کوے او حال دا چه رسول الله ﷺ

فرمايلي دي : يقيناً مړى ته د هغه د كور والو په بعض ژړا سره عذاب وركولے شي۔ ابن عباسؓ فرمائي : كله چه عمر فاروق وفات شو نو ما د هغه دا وينا عائشې رضى الله عنها ته ذكر كړه نو هغې اُوفرمايل : الله تعالىٰ دې په عمرؓ باندې رحم اُوكړي ! دا خبره نۀ ده قسم په الله ! رسول الله ﷺ دا نۀ دي فرمايلي چه مړي ته د خپل كور والو په ژړا سره عذاب وركولے شي (يعنى نۀ مطلقاً په ژړا سره او نۀ په اُوچت آواز سره د ژړا په كولو مړي ته عذاب وركولے شي) ليكن الله تعالىٰ د كافر په عذاب كښې د هغه د كور والو د ژړا په وجه سره زيادت كوي۔ او عائشېؓ اُوفرمايل : (ددې په ثبوت كښې) ستاسو دپاره د قرآن كريم دا فيصله كافى ده چه : ولا تزر وازرة وزر اخرى۔ (هيڅ شخص د بل هيچا بوج نۀ پورته كوي)۔

ابن عباسؓ فرمائي : ددې آيت مفهوم هم تقريباً همدا دې چه ((الله تعالىٰ خندول كوي او الله تعالىٰ ژړول كوي ))۔ ابن ابى مليكة وائي چه ابن عمرؓ (چه دا خبره واوريده) هيڅ ئې اُونۀ وئيلؓ۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)۔

**تشريح** : په روايت د احمد كښې دي چه دا ام ابان بنت عثمان بن عفان وه او مونږ د عبد الله بن عمر سره د هغه جنازې په انتظار كښې ناست وو او د هغه سره عمرو بن عثمان هم وو نو پدې كښې ابن عباس راغلو چه يو قائد (راښكونكى) راښكلو (ځكه چه روند شوے وو)۔ نو زما ګمان دې چه قائد ورته د ابن عمر د ناستې د ځائې خبر وركړو نو هغه راغلو تردې چه زما اړخ ته كيناستو نو زۀ د دواړو ترمينځ شوم۔ پدې كښې د كور نه آوازونه راپورته شو۔ او په روايت د نسائي او حميدى كښې دي چه : (بنحو اُوژړل) نو پدې سره د ابن عمر عمرو بن عثمان ته : وينا سبب معلوم شو۔ چه ورشه دا زنانه د ژړا نه منع كړه۔

او دا عمرو بن عثمان د عثمان مشر ځوى وو ابو عثمان ئې اسم كنيه ده مدنى ثقه د كبار التابعين نه دې، معاويه چه كله خليفه شو نو خپله لور رمله ئې دۀ ته په نكاح وركړه۔

**صَدَرْتُ** : (اَىْ رَجَعْتُ) (زۀ راواپس شوم) د عمر فاروق سره په هغه وخت چه هغه د خپل حج نه واپس كيدونكے وو۔

**بِالْبَيْدَاءِ** : دا د مدينې او مكې ترمينځ يوه دشته ده۔ (عينيؒ) على القاريؒ وائي : دا ذى الحليفې ته نزدې ځائې دې۔ آه۔ همدا خبره غوره ده۔

**فَإِذَا هُوَ بِرَكْبٍ** : اذا مفاجاتيه ده : يعنى ناڅاپه د يو جماعت سره ملاؤ شو چه سواره وو۔ يعنى قافلې سره۔

**سَمُرَةٍ** : د كيكر ونې ته وئيلے شي۔

**بَعْضَ ذٰلِكَ:** يعني عمر فاروق به هم دغه شان خبره كوله چه ددے حديث نه عامه ژړا مراد ده او د خاص كافر په باره كښ نهٔ دے۔

٢- يا بعض ذلك نه مراد دا چه د عمر په روايت كښ ورسره ببعض بكاء اهله عليه دے۔ او مقصد د دوارو يو دے۔

**أُدْعُهُ** : ادع د امر صيغه د دعاء نه په معنىٰ د راغوختلو او هاء ضمير د مفعول راجع دے صهيب ته۔

**اِرْتَحِلْ** : (أَيْ مِنْ مَكَانِكَ) (يعني د خپل ځائے نه راپاځيږه)۔

**فَالْحَقْ أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ:** دے ځائے پورے يوه واقعه ختمه شوه دا ئے ددے دپاره ذكر كړه چه د عمر فاروق او د صهيب داسے جوخت تعلق او مضبوطه دوستانه وه چه عمر به دا خوښول چه صهيب ورسره په سفر كښ هم ملګرے شي۔ او دا د روستو واقعے دپاره تمهيد او توطئه ده چه روستو صهيب د عمرؓ پسے څكه ژړل چه د دوارو ډير تعلق وو۔او په يو بل ډير خفه كيدل۔

**فَلَمَّا أَنْ أُصِيْبَ عُمَرُ** : يعني كله چه په نهم ذى الحجه سنه (٢٣ هـ) د چهار شنبے په ورځ په سهر مانځه كښ په مسجد نبوى كښ عمر فاروق خلقو ته مونځ وركولو، خلقو صفونه تړلى وو او عمر په محراب كښ مونځ شروع كړے وو چه پدے كښ د مغيره بن شعبه غلام ابو لؤلؤة لعين د روستو نه په خنجر په تشى كښ اُووهلو۔ بعض وائى : شپږ زخمونه ئے پكښ كړى وو نو عمر فاروق راپريوتو، هغه راپورته كړے شو او كور ته راوستے شو، نو توله مدينه كښ دا خبر د اُور په شان زر خور شو، خلق په كثرهٔ د هغه كور ته راورسيدل په هغوى كښ جناب صهيب بن سِنان بن قاسط ﷺ هم شامل وو، كله چه دهٔ خپل دوست عمر فاروق په وينو كښ لت پت اُوليدو نو بے اختياره په ژړا شو او دا آوازونه ئے شروع كړل (وَا أَخَاهُ، وَاصَاحِبَاهُ) (اے زما وروره ! اے زما ملګريه، سرداره !) نو عمر ورته اُوفرمايل : اے صهيبه ! آيا ته په ما ژاړے او حال دا چه رسول الله ﷺ فرمايلى دى : مړى ته عذاب وركولے شى په سبب د بعض ژړا د كور والا په دهٔ باندے۔نو عبد الله بن عباس دے واقعے ته اشاره كوى۔

**وَا أَخَاهُ** : (وا) كلمه د ندبے دپاره ده او په آخر كښ الف د مد الصوت (آواز اُوږدولو) دپاره دے۔ او هاء د سكتے ده۔

**وَقَالَتْ:** د عائشے مطلب دا دے چه دا ارشاد د رسول الله ﷺ د كافر په باره كښ دے او هغه خو هسے هم په عذاب كښ مبتلا كيږى برابره ده كه په هغه باندے كور والا ژړا اُوكړى او كه نهٔ۔ البته دومره خبره ضرور شته چه د كور والو د ژړا په وجه سره د كافر مړى په عذاب كښ زيادت

کيږي او هغه هم پدے وجه سره چه کافر په هغه ژړا راضي او خوشحاله وو تردے چه بعض کافران د مرګ په وخت وصيت کوی چه کله مړ شي نو هغه پسے دے ژړا او وير اُوکړے شي۔

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ : يعنى عبد الله بن عباسؓ هم د عائشےؓ تائيد اُوکړو او د عمر د مسلك نفی ئے اُوکړه چه د انسان ژړا او خندا د الله په اختيار کښ ده، او الله تعالىٰ دا راپيدا کوی لهذا د ژړا دپاره په عذاب کښ څه دخل دے ؟۔

وَاللهُ أَضْحَكَ وَأَبْكَى: د مسند احمد د روايت نه معلوميږی چه دا قول د عائشےؓ دے او د شيخينو ددے روايت نه معلوميږی چه دا قول د ابن عباسؓ دے نو احتمال شته چه دواړو وئيلے وی۔ او مطلب ددے الفاظو دا دے چه الله تعالىٰ خندول او ژړول کوی نو ژړا او خندا د بنده په اختيار کښ نۀ ده، دا غير اختيارى شے دے نو پدے باندے به انسان ته څنګه عذاب ملاويږی پاتے لا دا چه مړی ته پرے عذاب ورکړے شي۔ داودیؒ وائي : معنىٰ ئے دا ده چه الله تعالىٰ په ښائسته ژړا کښ اجازت ورکړے نو الله په هغه شي عذاب نۀ ورکوی په کوم کښ ئے چه اجازه ورکړيده۔ طيبیؒ وائی : دا د عائشےؓ د قول تائيد دے چه په انسان کښ ژړا الله تعالىٰ موجوده وی، د بنده څه اثر پکښ نشته نو الله پرے عذاب هم نۀ ورکوی۔ (بلوغ الامانى ۱۲۳/۷ شرح مسند احمد الشيبانى)۔

د عبد الله بن عباسؓ په قول باندے په ظاهر کښ دا اعتراض واردیږی چه دغسے خو د بندګانو ټول افعال الله تعالىٰ پيدا کوی، او بنده هغه کوی په کوم باندے چه ثواب او عذاب مرتب کيږی نو که نيك کار کوی ثواب به ورته ملاويږی او که بد عمل کوی نو عذاب به ورته ملاويږی۔ دغه شان خندا واخله که څوك يو مسلمان ورور اُوويني او هغه ته اُوخاندی نو دۀ ته ثواب ملاويږی او که په هغه پورے د استهزاء او مسخرے په طريقه اُوخاندی نو ګناهګاريږی دغه شان غم او خوشحالی واخله، بعض خوشحالئ او غم باندے ثواب ملايږی او په بعضے غم او خوشحالئ باندے عذاب ملاويږی۔

البته که د ابن عباسؓ دا قول ددے قيد سره واخستے شي چه (هغه خندا او ژړا غير اختيارى وی) نو بيا صحيح ده څکه چه په غير اختيارى ژړا او خندا باندے د عذاب او ثواب مرتب کيدل نۀ وی۔ ليکن دلته هغه مراد نۀ ده۔ څکه چه عذاب په هغه ژړا ملاويږی چه اختيارى وی او په آواز او وير سره وی۔ او نفس ژړا خو منع نۀ ده بلکه رحمت دے۔

فَمَا قَالَ ابْنُ عُمَرَ شَيْئًا : يعنى ابن عمرؓ دے آوريدو سره هيڅ خبره اُونکړه۔ دا پدے خبره دلالت نۀ کوی چه ابن عمرؓ دا قصه د ابن عباسؓ واوريده او د هغه خبره ئے اُومنله بلکه هغوی پدے وجه خاموشی اختيار کړه چه بحث ختمول ئے مناسب اُوګنړل لکه څنګه چه دا د اهل وقار او اهل

علمو طريقه ده۔

علامه قرطبیؒ وائی: دا سکوت د ابن عمرؓ پدے وجه نۀ وو چه هغه ته شك راپیښ شو، ځکه چه هغه خو مرفوع حدیث صراحةً ذکر کړے وو، شك ئې نۀ وو لیکن دا احتمال شته چه د هغه په نیز دغه حدیث قابل د تاویل وی۔ او هغه ته به ئې محمل نۀ وو متعین شوے چه په دغه وخت کښې ئې پرے حمل کړے وے یا به دغه مجلس او مقام د جګړے او بحث نۀ وو۔ او څه حاجت به هم ورته نۀ وو۔ بله وجه دا ده چه صحابه کرام قلیل التکلف وو۔ د کتاب او سنت تعارض به ئې نۀ راوستلو او نۀ ئې پدے کښې جګړے کولے۔

خطابیؒ وائی: روایت چه کله صحیح ثابت شی نو هغه په ګمانونو سره نۀ دفع کیږی او عمرؓ او ابن عمرؓ دواړو مرفوع حدیث پیش کړو او د عائشهؓ خبره د هغوی روایت نۀ ختموی ځکه چه جائز ده چه دواړه روایتونه صحیح وی او د دواړو ترمینځ څه منافات هم نشته ځکه چه مړی ته عذاب هم ملاویږی کله ئې چه په ژړا وصیت کړے وی۔ آه۔

---

١٧٤٢ (٢٢) — وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: لَمَّا جَاءَ النَّبِيَّ ﷺ قَتْلُ ابْنِ حَارِثَةَ وَجَعْفَرٍ وَابْنِ رَوَاحَةَ جَلَسَ يُعْرَفُ فِيهِ الْحُزْنُ وَأَنَا أَنْظُرُ مِنْ صَائِرِ الْبَابِ تَعْنِيْ شَقَّ الْبَابِ فَأَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ: إِنَّ نِسَاءَ جَعْفَرٍ وَذَكَرَ بُكَاءَهُنَّ فَأَمَرَهُ أَنْ يَنْهَاهُنَّ فَذَهَبَ ثُمَّ أَتَاهُ الثَّانِيَةَ لَمْ يُطِعْنَهُ فَقَالَ: «انْهَهُنَّ». فَأَتَاهُ الثَّالِثَةَ قَالَ: وَاللهِ غَلَبْنَنَا يَا رَسُوْلَ اللهِ فَزَعَمَتْ أَنَّهُ قَالَ: «فَاحْثُ فِيْ أَفْوَاهِهِنَّ التُّرَابَ». فَقُلْتُ: أَرْغَمَ اللهُ أَنْفَكَ لَمْ تَفْعَلْ مَا أَمَرَكَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَلَمْ تَتْرُكْ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ مِنَ الْعَنَاءِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه: او د عائشهؓ نه روایت دے چه کله نبی کریم ﷺ ته د زید بن حارثه او جعفر او عبد الله بن رواحه د قتل خبر راغلو نو هغه کیناستو چه د غم آثار په کښې معلومیدل او ما د دروازے د سوری نه (د نبی کریم ﷺ کیفیت ته) کتل نو پدے کښې یو سړے راغلو او وے وئیل چه د جعفر د کور زنانه (داسے داسے کوی) او د هغوی ژړا ئې ذکر کړه۔ رسول الله ﷺ هغه ته حکم اُوکړو چه هغوی منع کړی۔ هغه لاړو او (لږ وخت روستو) دویم ځل واپس راغلو وے وئیل چه ښځے ددۀ خبره نۀ منی۔ نبی کریم ﷺ بیا هغه ته اُوفرمایل چه (ورشه) منع ئې کړه۔ (هغه لاړو منع ئې کړے او لږ وخت روستو) بیا دریم ځل راغلو او وے وئیل چه اے د الله رسوله! قسم په الله! هغه ښځے په مونږ غالبه شوے (یعنی هغوی زمونږ خبره نۀ منی) دعائشهؓ ګمان دے چه (پدے آوریدو

سره) نبي كريم ﷺ دا اُوفرمايل : چه د هغوی په خوله کښې خاورے واچوه۔ عائشهؓ فرمائي چه ما (هغه شخص ته) اُووئيل : الله دے ستا پوزه په خاورو ککړه کړی رسول الله ﷺ چه کوم حکم تا ته کړے وو نهٔ دے په هغے باندے عمل اُوکړو او نهٔ دے رسول الله ﷺ د مشقت نه پريخودو۔ (بخاريؒ ومسلمؒ)۔

**تشريح** : مطلب د حديث دا دے چه هرکله رسول الله ﷺ ته د زيد بن حارثهؓ او د جعفرؓ او عبد الله بن رواحهؓ د مرګ خبر راغلو نو په غم او خفګان کښې ناست وو نو پدے کښې يو سړے ورته راغلو ورته ئے اُووئيل : د جعفر زنانه يعني ښځه ئے چه اسماء بنت عميس خثعميه ده او د هغے سره نورے حاضرے رشته دارے زنانه راجمع شويدی او د هغوی ژړا ئے ذکر کړه چه هغوی د جعفرؓ پسے ژړا کوی۔ رسول الله ﷺ هغه ته اُووئيل چه ورشه ته ئے منع کړه، هغه سړے راغلو زنانه ئے منع کولے ليکن زنانو به ئے خبره نهٔ وه منلے نو دا دويم ځل نبي ﷺ ته راغلو چه هغوی خو زما خبره نهٔ مني۔نبي ﷺ ورته بيا اُوفرمايل : چه ورشه منع ئے کړه نو دا ورغلو او هغه ئے منع کړے ليکن هغوی ئے خبره اُونهٔ منله نو دريم ځل رسول الله ﷺ ته راغلو وے وئيل : اے د الله رسوله ! قسم په الله په مونږ باندے ښځے غالبے شوے۔عمرهٔ فرمائي چه عائشيؓ داسې اُووئيل چه رسول الله ﷺ ورته اُوفرمايل : ورشه په خولو کښې ورله خاورے واچوه۔ ځکه چه نهٔ منع کيږی۔ نو عائشه فرمائي : ما اُووئيل : الله دے ستا پوزه په خاورو ککړه کړی چه نهٔ دے د رسول الله ﷺ حکم پوره طريقے سره عملی کړو چه ښځے دے خبره هم نهٔ مني او زور پرے کولے نشے او نهٔ رسول الله ﷺ پريدے چه آرام اُوکړی بلکه هغه دے هم ځان سره په مشقت کښې اچولے دے۔ يعني چه اول نه ښځو ستا خبره نهٔ منله او د هغوی د منع کولو نه عاجز ئے نو بيا ځله د نبي ﷺ خوا له راځے، هرکله چه ته عاجز ئے بس د الله نبي ته اُووايه چه زهٔ عاجز يم بل څوك ورپسے اُوليږه چه خبره آسانه شي۔ او کله چه يو انسان خپله په غم کښې اخته وی او بل څوك ترے په دے وخت کښې تپوسونه هم کوی نو انسان باندے مشقت زياتيږی۔نو ځکه عائشهؓ پوهه شوه چه رسول الله ﷺ ته ددے سړی د بار بار تپوسونو په وجه تکليف ملاؤ شو۔

**صَائِرِ الْبَابِ** : صائر او صِير دواړه په يوه معنىٰ دی يعني د دروازے چاودے۔

**إِنَّ نِسَآءَ جَعْفَرٍ** : د جعفر ؓ صرف يوه ښځه وه اسماء بنت عميس دلته د هغه ښځه سره د نورو خپلوانو نه مراد دی۔

**غَلَبْنَنَا** : يعني زنانه په مونږه غالبے شوے ځکه چه هغوی باندے زيات غم وو نو طاقت ئے نهٔ لرلو چه ځان کنټرول کړی۔يا به هغوی ته د شارع د طرف نه نهی او منع صراحةً نهٔ وه شوے۔ او

دلته نفس ژړا نهٔ ده مراد بلکه دا به د آواز او ویر سره ژړا وه ځکه د منع کولو لائقې وې.

**فَزَعَمَتْ** : زعم ګمان ته هم وائي ۲- او یقیني خبرې ته هم وئیلې شي او دلته همدا مراد ده.

**فَاحْثُ** : د حثي یحثو نه دې. اچولو او ویشتلو ته وئیلې شي. په خوله کښې د خاورو اچولو مطلب دا دې چه ورشه خوله ورله د خاورو نه ډکه کړه چه قادره نشي په ویر کولو. یا مراد پدې سره مبالغه ده په منع کولو کښې.

علامه قرطبيؒ وائي : دا دلالت کوي چه دوی په ژړا سره آواز ونه پورته کړی وو لیکن هرکله چه نهٔ منع کیدلې نو حکم ئې ورته اُوکړو چه خولې دې ورله بندې کړي او خوله ئې ځکه خاص کړه چه ویر په همدې باندې کیږي.

قاضي عیاضؒ فرمائي : مقصد دلته تعجیز دې یعني دا زنانه خو نهٔ غلې کیږي مګر پدې طریقه چه خوله ورله بنده کړې شي او د دوی خولې نهٔ بندیږي مګر داسې چه خاورو نه ډکې شي نو ورشه که دا کار کولې شې اُوکړه.

بیا ظاهر دا ده چه د دوی په ژړا کښې د مباحې اندازې نه زیادت وو نو دا نهي د تحریم دپاره وه ځکه ئې باربار کوله او د هغوی په سزا باندې ئې حکم اُوکړو چه که نهٔ غلې کیږي نو خاورې ورله په خولو کښې واچوه. نو کیدې شي چه صحابیاتو ددې نه روستو تیزه ژړا پریخودې وي ځکه ئې بل سړې اُونهٔ لیږلو.

**أَرْغَمَ اللهُ أَنْفَكَ** : دا کنایه وي د ذلت نه.

**لَمْ تَفْعَلْ** : یعني پوره طریقې سره دې د رسول الله ﷺ په امر عمل اُونکړو.

**فوائد الحدیث** : ۱- ددې حدیث نه معلومه شوه چه د تعزیه دپاره کیناستل په آرام او وقار سره جائز دي. ۲- د اجنبي زنانو پردو سړو ته کتل جائز دي. ۳- څوك چه د یو نا مناسب کار کولو نه نهٔ منع کیږي نو هغه له زجر او تادیب ورکول جائز دي.

٤- امام بخاريؒ پدې حدیث باندې داسې باب لګولې دې (بَابُ مَنْ جَلَسَ عِنْدَ الْمُصِيبَةِ يُعْرَفُ فِيهِ الْحُزْنُ) او مقصد ئې دا دې چه کله په یو انسان باندې مصیبت راشي نو هغه له اعتدال کول پکار دي، داسې به نهٔ وي چه مصیبت پرې راشي نو جزع فزع او ګریوانه شوکول او ویر او ژړا کوي او داسې به هم نهٔ وي چه غټ مصیبت ورته رسیدلې دې او دا ځان کلك کړي او هیڅ غم په ځان نهٔ ښکاره کوي. دا کار انسان له قسوت قلب او د مصیبت زدهٔ د مرتبې سپکاوي ته رسوي لهٰذا د رسول الله ﷺ د حال اقتداء به کولې شي چه د مصیبت په وخت کښې معمولي شان ناسته اُوکړي چه هغه باندې د غم آثار ښکاره شي. (فتح الباري لابن حجر ۳/۱٦٧)

٥- کله چه څوك رسول الله ﷺ ته تکليف ورکوی يا د هغه په سنتو پسے خبرے کوی نو هغه ته د ذلت ښيرے جائز دی۔

٦- د رسول الله ﷺ خوش اخلاقیٔ ته اُوګوره، د غم په حالت کښ دے او بيا هم دغه سړی ته بد رد نهٔ وائی۔

٧- د عائشةؓ هوښيارتيا معلومه شوه او په رسول الله ﷺ باندے د هغے خفګان۔

٨- پردو سړو سره خبرے اترے جائز دی۔ د زنانه آواز عورت نهٔ دے۔

---

١٧٤٣ (٢٣) - وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: لَمَّا مَاتَ أَبُوْ سَلَمَةَ قُلْتُ غَرِيْبٌ وَفِيْ أَرْضِ غُرْبَةٍ لَأَبْكِيَنَّهُ بُكَاءً يُتَحَدَّثُ عَنْهُ فَكُنْتُ قَدْ تَهَيَّأْتُ لِلْبُكَاءِ عَلَيْهِ إِذْ أَقْبَلَتِ امْرَأَةٌ تُرِيْدُ أَنْ تُسْعِدَنِيْ فَاسْتَقْبَلَهَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَقَالَ: «أَتُرِيْدِيْنَ أَنْ تُدْخِلِي الشَّيْطَانَ بَيْتًا أَخْرَجَهُ اللهُ مِنْهُ ؟». مَرَّتَيْنِ وَكَفَفْتُ عَنِ الْبُكَاءِ فَلَمْ أَبْكِ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او ام سلمه رضی الله عنها فرمائی : کله چه ابو سلمه وفات شو۔ ما اُووئیل : (دا يو) مسافر سړے وو او د مسافرت په حالت کښ وفات شو نو زهٔ په دهٔ باندے داسے ژړا کوم چه زما ژړا به (خلقو کښ) بيانولے شی۔ (يعنی په خلقو کښ به چرچه وی چه ام سلمهؓ دومره اُوژړل چه هيچا هم دومره نهٔ دی ژړلی) نو ما په هغه باندے د ژړا دپاره ځان تيار کړو چه ناڅاپه يوه ښځه راغله د هغے اراده وه چه ما سره (په ژړا کښ) مدد اُوکړی نو د هغے مخے له رسول الله ﷺ راغلو وے فرمايل : آيا ستا اراده ده چه تهٔ شيطان داسے کور ته راننباسے چه الله تعالیٰ د هغے نه هغه دوه ځل ويستلے دے۔(د نبی کريم ﷺ ددے ارشاد په آوريدو سره) زهٔ د ژړا نه بنده شوم او بيا مے (دغه شان) اُونهٔ ژړل۔ (د کوم نه چه په شريعت کښ منع راغلے ده)۔ (مسلمؒ)۔

تشريح : ابوسلمه د ام سلمےؓ اول خاوند وو او دا د مکے والو نه وو او په مدينه کښ وفات شوے وو۔

يُتَحَدَّثُ عَنْهُ : يعنی د هغه ژړا په باره کښ به خبرے اترے کولے شی يعنی خلق به پرے خبرے کوی او تعجب به ترے کوی، دومره ډيره او سخته ژړا به وی۔

مَرَّتَيْنِ : دا صفت د خروج دے يعنی تهٔ پدے خپل مدد او ژړا سره شيطان داسے کور ته راداخلوے چه الله تعالیٰ ترے دوه ځله ويستلے دے۔ په اسلام او هجرت سره يا په دوه هجرتونو سره چه حبشو او مدينے ته شويدے۔ يعنی د جاهليت کارونه ختم شويدی اُوس بيرته د جاهليت او شيطانی طريقے راتازه کوے۔

دا دلیل دے چه کومه زنانه په مړو باندے ویر او ژړا کوی نو شیطان د هغې کور ته او بدن ته راداخلیږی۔ او پدے طریقه ئے گمراه کوی او کفری کلمات ئے د خولے نه اُوباسی۔
یا مرتین متعلق دے په قال پورے او مطلب دا دے چه دا جمله ئے دوه ځله اُوفرمایله۔ او همدا مطلب ظاهر دے۔
**وَكَفَفْتُ** : یعنی زهٔ د ژړا نه بنده شوم۔
**فَلَمْ أَبْكِ** : یعنی بده ژړا او په تیزه ژړا مے بنده کړه۔

---

**١٧٤٤ (٢٤) – وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ: أُغْمِيَ عَلَى عَبْدِ اللهِ بْنِ رَوَاحَةَ فَجَعَلَتْ أُخْتُهُ عَمْرَةُ تَبْكِي: وَاجَبَلَاهُ وَاكَذَا وَاكَذَا تُعَدِّدُ عَلَيْهِ فَقَالَ حِيْنَ أَفَاقَ: مَا قُلْتِ شَيْئًا إِلَّا قِيْلَ لِيْ: أَنْتَ كَذٰلِكَ ؟ زَادَ فِيْ رِوَايَةٍ : فَلَمَّا مَاتَ لَمْ تَبْكِ عَلَيْهِ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.**

---

**ترجمه** : او د نعمان بن بشیر ﷺ نه روایت دے فرمائی : په عبد الله بن رواحه باندے بی هوشی راغله نو د هغه خور عَمره شروع شوه چه ژړل ئے (او داسے ئے وئیل) واجبلاه۔ اے غره ! افسوس دے او داسے داسے، یعنی د هغه صفتونه ئے شمارل۔ کله چه عبد الله په هوش کښې راغلو نو (خور ته ئے) اُووئیل چه تا هیڅ خبره نهٔ ده کړے مگر ما ته (د تنبیه په طور) وئیل شویدی : آیا تهٔ داسے ئے ؟ (یعنی تهٔ واقعی غر ئے چه خلق درنه پناه غواړی) او په یو روایت کښې ئے دا الفاظ زیاتی کړیدی : هر کله چه عبد الله بن رواحهؓ وفات شو (یعنی په غزوه مؤته کښې شهید شو) نو د هغه خور په هغه باندے اُونهٔ ژړل۔ (بخاریؒ)۔
**تشریح** : یعنی عبد الله بن رواحهؓ بیمار شو او په بیماریٔ کښې پرے بے هوشی راغله۔
**أُخْتُهُ عَمْرَةُ** : عمره بنت رواحه دا د بشیر بن سعد الانصاریؓ زوجه ده او د نعمان مور ده۔ ددے چه کله نعمان اُوشو، رسول الله ﷺ ته ئے راوړو، هغه کجوره راوغوختته او خولے کښې ئے اُوژوله بیا ئے د هغه خوله کښې واچوله او تالو پورے ورله راخکله۔ دے اُووئیل : اے د الله رسوله ! د الله نه دعا اُوکړه چه ددهٔ مال او اولاد زیات کړی۔ رسول الله ﷺ ورته اُوفرمایل : آیا ته په دے نهٔ خوشحالیږے چه دا داسے ژوند تیر کړی لکه څنګه چه ددهٔ ماما (ابن رواحه) ژوند تیر کړو چه ستائیلی شوے او شهید قتل کړے شویدے او جنت ته داخل شویدے۔
**وَاجَبَلَاهُ** : یعنی ته زمونږ دپاره د غر په شان وے چه تا ته به مو پناه در وړهٔ کله چه به څه

حوادث راپیښ شو او تا ته به مو په کارونو کښې تکیه لګوله۔
إِلَّا قِيلَ لِيْ: ددے نه معلومیږی چه ملائك ورته داسے خبره کوی او زورنه ورله ورکوی۔ او دا کار دهٔ سره په بے هوشئ حالت کښې شوے وو، کرامهٔ او دے دپاره چه دا مسئله امت ته ښکاره شی چه مړو پسے په ویر ژړا نهٔ کوی۔
: أَنْتَ كَذٰلِكَ ؟ : یعنی ما ته به وئیلے شو چه آیا ته رښتیا دوی دپاره غر وے یعنی په طریقه د انکار او سپکاوی او زورنے به راته وئیلے شو۔ او مقصد دا وو چه تا ولے کور والا ددے کارونو نه نهٔ منع کول۔
فَلَمَّا مَاتَ : یعنی کله چه عبد الله بن رواحهٔ په غزوه موته کښې شهید شو بیا دے ورپسے نهٔ ژړل۔

---

١٧٤٥ (٢٥) – وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ يَقُوْلُ: «مَا مِنْ مَيِّتٍ يَمُوْتُ فَيَقُوْمُ بَاكِيْهِمْ فَيَقُوْلُ: وَاجَبَلَاهُ وَاسِيِّدَاهُ وَنَحْوَ ذٰلِكَ إِلَّا وَكَّلَ اللهُ بِهِ مَلَكَيْنِ يَلْهَزَانِهِ وَيَقُوْلَانِ: أَهٰكَذَا كُنْتَ ؟». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ حَسَنٌ.

---

ترجمه : او ابوموسیٰ فرمائی : ما د رسول الله ﷺ نه آوریدلی چه فرمایل ئے :«نشته یو مړے چه وفات شی او په هغه باندے ژړیدونکے شروع شی او داسے اُووائی : واجبلاه واسیداه (اے غره ! اے سرداره !) یا ددے په شان نور کلمات مګر الله تعالیٰ په هغه باندے دوه ملائك مقرر کوی چه هغه له په سینه سوکونه ورکوی او ورته وائی: آیا ته دغسے وے ؟»۔ امام ترمذیؒ دا روایت نقل کړے او وئیلی ئے دی چه دا حدیث غریب حسن دے۔
**تشریح** : فَيَقُوْمُ : یعنی شروع شی، قیام دلته په معنیٰ د شروع سره دے۔
يَلْهَزَانِهِ : لهز په معنیٰ د وهلو او دیکه کولو دے۔ په اصل کښې سینه کښې سوك ورکولو ته وئیلے شی (نهایه)۔
دا حدیث او مخکښې حدیث د نعمان دلیل دے چه په حقیقی مړی او مرګ ته نزدے انسان باندے ویر کول حرام دی۔ ملائك مړی ته سوکونه ورکوی په دے وجه چه دهٔ باندے وصیت کول فرض وو چه ما پسے به ویر او ژړا نهٔ کوئ او دهٔ هغه منع نکړل۔
**درجة الحديث** : اسناده حسن : الترمذی (١٠٠٣) ویشهد له حدیث النعمان برقم (١٧٤٥)۔
١٧٤٦ (٢٦) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ: مَاتَ مَيِّتٌ مِنْ آلِ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَاجْتَمَعَ النِّسَاءُ

يَبْكِيْنَ عَلَيْهِ فَقَامَ عُمَرُ يَنْهَاهُنَّ وَيَطْرُدُهُنَّ. فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« دَعْهُنَّ فَإِنَّ الْعَيْنَ دَامِعَةٌ وَالْقَلْبَ مُصَابٌ وَالْعَهْدَ قَرِيْبٌ ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ.

---

ترجمه: او ابو هريره ﷺ فرمائى : د رسول الله ﷺ د كورنئ نه يو مړے اُوشو (هغه زينبؓ وه چه په روستو روايت كښې ئے تصريح راغلے) نو زنانه راجمع شوے چه په هغه باندے اُوژاړى نو عمرؓ راپاڅيدو چه هغوى منع كړى او وے شړى نو رسول الله ﷺ اُوفرمايل : « دوى (په خپل حال) پريږده ځكه چه ستركو نه اُوښكے بهيږى او زړهٔ مصيبت زدهٔ دے او د مرګ وخت نزدے دے»۔ (احمدؒ، نسائیؒ)۔

**تشريح : مَيِّتٌ** : ددے نه مراد د رسول الله ﷺ لور زينبؓ ده لكه روستو روايت كښې راځى۔

دا حديث دليل دے چه ددے ښځو ژړا بغير د وير او چغو او فرياد نه وه او دا خو حرامه نهٔ ده نو ځكه رسول الله ﷺ رخصت وركړو۔

**وَالْقَلْبَ مُصَابٌ** : يعنى زړهٔ ته مصيبت رسيدلے دے ځكه به ئے د ستركو نه اُوښكے بهيږى او زمانه د مصيبت هم نزدے ده نو داسے وخت كښې د هر قسم ژړا نه صبريدل ګران وى۔

د عمر فاروقؓ دا خيال وو چه هر قسم ژړا به منع وى نو ځكه ئے هغوى منع كولے نو رسول الله ﷺ اُوفرمايل : چه دا قسم ژړا جائز ده چه صرف د ستركو نه اُوښكے روانے وى۔ او ندبه او نياحت (وير) نهٔ وى۔ دا زمونږ د اسلام انصاف او عدل دے۔

**درجة الحديث:** اسناده ضعيف، النسائى (١/٢٦٣) وفيه سلمة بن الازرق وهو مقبول عند الحافظ ونقل السندى فى حاشية ابن ماجه عن الحافظ انه قال : رجاله ثقات، وضعفه الالبانى۔

---

١٧٤٧ (٢٧) – وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: مَاتَتْ زَيْنَبُ بِنْتُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَبَكَتِ النِّسَاءُ فَجَعَلَ عُمَرُ يَضْرِبُهُنَّ بِسَوْطِهِ فَأَخَّرَهُ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بِيَدِهٖ وَقَالَ: « مَهْلًا يَا عُمَرُ! » ثُمَّ قَالَ : « إِيَّاكُنَّ وَنَعِيْقَ الشَّيْطَانِ ». ثُمَّ قَالَ: « إِنَّهُ مَهْمَا كَانَ مِنَ الْعَيْنِ وَمِنَ الْقَلْبِ فَمِنَ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ وَمِنَ الرَّحْمَةِ وَمَا كَانَ مِنَ الْيَدِ وَمِنَ اللِّسَانِ فَمِنَ الشَّيْطَانِ » . رَوَاهُ أَحْمَدُ.

---

ترجمه : او ابن عباسؓ فرمائى : د رسول الله ﷺ لور زينبؓ وفات شوه نو زنانه ؤ ژړا شروع كړه۔ عمر فاروقؓ شروع شو چه هغوى ئے په خپل چابك سره وهلے، رسول الله ﷺ هغه په خپل

لاس سره روستو كړو او ويې فرمايل : اې عمرؓ ! نرمي اختيار كړه۔ بيا ئې (ښځو ته) اُوفرمايل : تاسو خپل ځانونه د شيطان د آوازونو نه بچ اُوساتئ (يعني په تيزه ژړا او چغې مهٔ وهئ) بيا ئې اُوفرمايل : ترڅو پورې چه (ژړا) د سترګې نه او د زړهٔ نه (په غم سره) وي نو دا د الله عزوجل د طرف نه وي او د رحمت سبب دې (يعني دا څيزونه الله تعالیٰ ته خوښ دي) او څه چه د لاس او ژبې نه راښكاره كيږي نو هغه د شيطان د طرف نه دي۔ (احمدؒ)۔

**تعارف د زينب رضى الله عنها** : دا د رسول الله ﷺ د ټولو لوڼو نه ئې مشره لور ده، ابو العاص بن ربيع چه ددې د مور د خور (يعني ترور) ځوی وو۔ سره ئې واده شويدې او د رسول الله ﷺ د نبوت نه مخكښې بعض وائي لس كاله مخكښې پيدا شويده۔ د ابو العاص د مور نوم هاله بنت خويلد وو۔ زينب په هغه وخت ايمان راوړو چه لا خاوند ئې كافر وو او دې د ابو العاص نه يو هلك راوړې وو چه نوم ئې علي وو او بلوغ ته نزدې شوې وو بيا وفات شو او يوه لورئې وه امامه بنت ابي العاص چه دا علي ﷺ دفاطمې د وفات نه روستو په نكاح كړې وه۔ او دا زينب د اتم كال د هجرت په ابتداء كښې وفات شوه، سبب د وفات ئې دا وو چه دې كله رسول الله ﷺ ته د مكې نه هجرت كولو نو هبار بن الاسود او يو بل سړې ورته مخې له راغلل يوه ديكه ئې وركړه نو د اُوښ نه په كاڼړي راپريوته او حمل ئې ګوزار كړو او وينه پرې جاري شوه او دا مرض پرې هميشه شو تردې چه په اتم كال د هجرت كښې وفات شوه۔ او د خاوند ورسره ډيره مينه وه او خاوند وروسته زر وفات شو۔

**تشريح** : دا دليل دې چه ددې ښځو ژړا د سترګو او زړهٔ نه وه او د خولې نه نهٔ وه چه چغې او سورې پكښې وي۔ او عمرؓ كيدې شي پدې وجه منع كولې چه دا سبب د تيزې ژړا جوړ نشي نو په حرامو كښې به واقع شي او مړي ته به تكليف اُورسي۔

مِنَ الْيَدِ : د لاس ژړا دا ده چه ځان وهي او ګريوانونه شوكوي۔ او په ژبه چغې او واويلا كوي۔

مَهْلًا : دا په سكون د لام او فتحه باندې رفق او نرمئ ته وائي۔

وَنَعِيْقَ : رمبارو ته وئيلې شي دلته ترې د ژړا چغې او رمبارې دي۔

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف، احمد (٣٣٥/١) وفي اسناده علي بن زيد بن جدعان ضعيف، اُوبه اعله الهيثمي في المجمع (١٧/٣) وقال الذهبي حديث منكر (ميزان)۔

---

**١٧٤٨ (٢٨) – وَعَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيقًا قَالَ: لَمَّا مَاتَ الْحَسَنُ بْنُ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ ضَرَبَتِ امْرَأَتُهُ الْقُبَّةَ عَلٰى قَبْرِهٖ سَنَةً ثُمَّ رُفِعَتْ فَسَمِعَتْ صَائِحًا يَقُوْلُ: اَلَا هَلْ وَجَدُوْا مَا**

فَقَدُوْا ؟ فَأَجَابَهُ آخَرُ: بَلْ يَئِسُوْا فَانْقَلَبُوْا.

ترجمه : او امام بخاريؒ په طريقه د تعليق نقل كړي چه هركله چه حسن بن الحسن بن علي وفات شو نو د هغه ښځې د هغه په قبر باندې يو كال خيمه اُوهله بيا ئې پورته كړه نو دې د يو (غيبي) آواز كونكي نه واوريدل چه وئيل ئې : آيا دوي (يعني دې زنانه) هغه څه موندهٔ كړل كوم ئې چه ورك كړي وو ؟ نو بل يو تن ورته جواب وركړو : بلكه دوي نا اُميده شو نو واپس شو۔

تعارف د حسن بن حسن بن علي : دا د علي بن ابي طالب نمسے دے او د حسن ځوي دے د پلار او ځوي نوم يو شے دے ددهٔ وفات په سنه (۹۷ هـ) كښې شوے وو او عمر ئې (۵۷) كاله وو۔ دا د ثقات التابعين نه دے او دده د ځوي نوم هم حسن دے۔ نو د نيكه او ځوي او نمسي تولو نومونه حسن دي۔

ددهٔ د ښځې نوم فاطمه بنت الحسين بن علي بن ابي طالب وه دا ئې د تره لور وه چه ددے ترجمه مخكښې باب المساجد كښې ذكر شويده۔

تشريح : وَعَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيْقًا : داسے وئيل مناسب نهٔ دي بلكه پكار ده چه د بخاري د استاذ نه ئې په عن سره نقل كړے وے او بيا په آخر كښې داسے وئيلي وے۔ (رواه البخاري تعليقاً)۔

او د بخاري پدے اثر راوړو كښې غرض دا دے چه په مړو باندې خيمے وهل او د هغې په خوا كښې ديره كيدل او آبادي جوړول ناروا دي دلته هركله چه حسن بن حسن بن علي باندې خپلے ښځې دا خيمه يو كال پورے اُوهله نو هيڅ فائده ئې ورته ونكړه او هسے خپل وخت ئې ضائع كړو او شريعت دے ته دعوت نهٔ دے وركړے چه تاسو د مړو په خوا كښې ديره شئ ددے وجه نه ملائكو يا پيرانو پرے رد اُوكړو چه دوي نا اُميده واپس شو۔ او هيڅ ورته په لاس رانغلل ځكه چه دا خو د عقل كار نهٔ دے چه مړي خوا كښې انسان ديره شي، پدے سره نهٔ مړے راژوندے كيدے شي. او نهٔ انسان ته څه فائده دنيوي او ديني رسيږي بلكه لا پكښې قيمتي اوقات ضائع كيږي او انسان ته هميشه غم تازه كيږي۔ خو دے زنانه دا كار په خپل عقل سره كړے وو او د خپل خاوند سره ئې زيات محبت وو ۔ ليكن محبت داسے حد ته رسول چه په هغې كښې انسان گناه ته اُورسوي، د شريعت خلاف دي۔ دا وجه ده امام بخاريؒ د دے اثر ذكر كولو نه پس د عائشے مرفوع روايت ذكر كړيدے چه رسول الله ﷺ په مرض الوفات كښې په يهود او نصاراو باندې رد اُوكړو چه الله دے په يهود او نصاراو لعنت اُوكړي دوي به د خپلو انبياو د قبرونو نه مساجد جوړول۔ او دغه شان رسول الله په قبرونو باندې د آبادي جوړولو ته منع فرمائيلې ده لكه ددے تشريح مخكښو رواياتو كښې تيره شويده۔ او ددے منع والي ته امام بخاريؒ داسے هم اشاره كړيده چه د قبر په خوا كښې

آبادي جوړول يا خيمه وهلو کښې به انسان محتاج کيږي چه مونځ پکښې اُوکړي نو په مقبره او د قبرونو په خوا کښې به مونځ کوي او د قبرونو په خو اکښې مونځ کولو نه صراحةً منع راغلې ده۔ دا په اتخاذ القبور مساجد کښې داخل دے۔ او کله به دغه قبر د قبلې په طرف کښې وي نو کراهت به نور هم زياتيږي۔او هرکله چه دغه آواز کونکي د ورانے خيمے په باره کښې دغسے انکار اُوکړو نو وهلے شوے خيمه خو په طريقه اولیٰ سره منکر کار دے۔ او دا غيبي آواز اگرکه حکم شرعي نۀ دے ليکن د حکم شرعي مطابق دے۔ (قسطلانیؒ بتغيير)۔

---

۱۷۴۹ (۲۹) – وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ وَأَبِيْ بَرْزَةَ قَالَا: خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فِيْ جَنَازَةٍ فَرَأَى قَوْمًا قَدْ طَرَحُوْا أَرْدِيَتَهُمْ يَمْشُوْنَ فِيْ قُمُصٍ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ: «أَبِفِعْلِ الْجَاهِلِيَّةِ تَأْخُذُوْنَ؟ أَوْ بِصَنِيْعِ الْجَاهِلِيَّةِ تَشَبَّهُوْنَ؟ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ أَدْعُوَ عَلَيْكُمْ دَعْوَةً تَرْجِعُوْنَ فِيْ غَيْرِ صُوَرِكُمْ». قَالَ: فَأَخَذُوْا أَرْدِيَتَهُمْ وَلَمْ يَعُوْدُوْا لِذٰلِكَ. رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

---

**ترجمه** : او عمران بن حصينؓ او ابوبرزةؓ دواړه فرمائي : مونږ د رسول الله ﷺ سره په يوه جنازه کښې راووتلو نو هغه څه خلق اُوليدل چه څادرونه ئے لرے کړي وو او په قميصونو کښې روان وو۔ رسول الله ﷺ (پدے حالت کښې اُوليدل) وے فرمايل : آيا تاسو د جاهليت په فعل باندے عمل کوئ يا د جاهليت د کارونو سره مشابهت کوئ؟ (ددے بے خونده کارونو په ليدو سره) ما اراده کړے وه چه زۀ تاسو ته داسے ښيرے اُوکړم چه تاسو خپلو کورونو ته په نورو شکلونو (يعني د شادوګانو يا خنزيرانو په شکل) کښې واپس شئ۔ راوي وائي : چه هغه خلقو (فوراً) خپل څادرونه واغوستل او بيا دوباره هيڅ کله دے کار ته راواپس نۀ شو۔ (ابن ماجهؒ)۔

**تشريح** : يعني دے خلقو څادرونه ارتولي وو او صرف قميصونو کښې روان وو لکه دا د جاهليت والو رواج وو چه د غم په حالت کښې به ئے لنګ او څادر لرے کړو او په عورت ښکاره کولو کښې به ئے هيڅ عيب نۀ محسوس کولو۔ دلته د څادرونو نه مراد هغه څادرونه دي چه د لنګ په ځائے استعماليږي۔

لنډه دا چه د غم د وجه نه په خپل لباس کښې تغيير پيدا کول ډير قبيح عمل دے او د جاهليت والو مشابهت دے چه دا حرام کار دے۔ غم د زړۀ شے دے او ددے اثر په جامو او لباسونو کښې ښکاره کول حرام دي۔ د شيعه ګانو رواج دے چه د ماتم په وخت تور قميص او سپين پرتوګ

اچوي نو مسلمان به د كافرانو مشابهت نهٔ كوي۔ دا روايت ضعيف دے ليكن د كافرانو او جاهليت والو د مشابهت نه په صحيح احاديثو كښې منع راغلې ده۔

او د ارديتهم نه دا نهٔ معلوميږي چه د قميص دپاسه څادرونه استعمالول مراد دي ځكه چه دا د صحابه كرامو عادت نهٔ وو بلكه د طيلسان استعمالول د احاديثو د نګاه نه مكروه دي۔ نو د ملاعلي القاريؒ دا خبره صحيح نهٔ ده چه وائي : ددې روايت نه دا اخذ كيږي چه په هغه زمانه كښې د خلقو معروف شعار دا وو چه د قميص دپاسه به ئې څادر استعمالولو۔

**تَشَبَّهُوْنَ** : دا په اصل كښې تتشبهون دے يوه تاء حذف شويده۔

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف جداً ابن ماجه (١٤٨٥) وفيه علي بن الحزور عن نفيع بن الحارث ابوداود الاعمى وهو كذاب متهم بالوضع والاول متروك۔

---

**١٧٥٠ (٣٠) – وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ : «أَنْ تُتْبَعَ جَنَازَةٌ مَعَهَا رَانَّةٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : او د ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دے چه رسول الله ﷺ د هغه جنازې پسې د روانيدو نه منع فرمائيلې ده چه د هغې سره وير كونكې ښځه وي۔ (احمدؒ، ابن ماجهؒ)۔

**تشريح** : **تُتْبَعَ** : تخفيف هم جائز دے او تشديد هم يعني تُتْبَعَ او تُتَّبَعَ۔

**رَانَّةٌ**: نرې آواز كونكې زنانه چه په پوزه كښې ژړا او وير كوي۔

مطلب دا دے چه داسې جنازه پسې به نهٔ روانيږئ چه هغې كښې داسې ناروا كار كيږي چه ژړيدونكې ښځې ورپسې روانې وي يعني داسې ښځه به منع كولې شي چه جنازه پسې روانې نشي چه هغه په زوره ژړا كوي۔

ملاعلي القاريؒ وائي : ددې په معنىٰ كښې دا هم ده چه كله د جنازې سره بل منكر كار كيږي نو د هغې پسې روانيدل هم ناروا دي (لكه ډولكې پسې وهل كيږي) او دا بنياد دے ددې خبرې دپاره هم چه كله يو مجلس كښې ناروا كيږي نو هغې ته حاضريدل هم ناروا دي۔

**درجة الحديث**: اسناده ضعيف، ابن ماجه (١٥٨٣) وفيه ابو يحيى القتات وهو ضعيف۔

---

**١٧٥١ (٣١) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ لَهُ: مَاتَ ابْنٌ لِيْ فَوَجَدْتُ عَلَيْهِ: هَلْ سَمِعْتَ مِنْ خَلِيْلِكَ صَلَوَاتُ اللّٰهِ عَلَيْهِ شَيْئًا يُطَيِّبُ بِأَنْفُسِنَا عَنْ مَوْتَانَا ؟ قَالَ : نَعَمْ سَمِعْتُهُ**

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «صِغَارُهُمْ دَعَامِيصُ الْجَنَّةِ يَلْقَى أَحَدُهُمْ أَبَاهُ فَيَأْخُذُ بِنَاحِيَةِ ثَوْبِهِ فَلا يُفَارِقُهُ حَتّٰى يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ وَأَحْمَدُ وَاللَّفْظُ لَهُ.

---

**ترجمه** : د ابو هريره ﷺ نه روايت دے چه يو سړى هغه ته اُووئيل : زما يو څوى وفات شوے چه د هغه په وجه سره زۀ ډير غمجن يم۔ آيا تا د خپل دوست يعنى رسول الله ﷺ نه څه شے آوريدلے چه هغه زمونږ د مړو (يعنى فوت شوى ماشومانو) د طرف نه زړونه خوشحاله کړى۔ (چه دوى به زمونږ په آخرت کښې په کار راشى) ابو هريره ﷺ اُوفرمايل : آؤ، ما د نبى کريم ﷺ نه آوريدلى چه فرمايلى ئے دى : د مسلمانانو واړه بچى د جنت د درياب د حيوانانو په شان دى۔ (يعنى ژورے) يو تن به د دوى نه د خپل پلار سره ملاؤ شى نو هغه به د جامے د يو طرف نه اُونيسى او تر هغه پورے به ترے نۀ جدا کيږى تردے چه هغه جنت ته داخل کړى۔ (مسلمؒ، احمدؒ او الفاظ د احمدؒ دى)

**تشريح** : فَوَجَدْتُ عَلَيْهِ : دا د مَوْجِدَةٌ او وَجْدٌ نه دے په معنىٰ د غم او خفگان سره۔

يَطِيْبُ بِأَنْفُسِنَا : باء د تعديه دپاره ده۔ يا يُطَيِّبُ په تشديد سره دے او باء د تاکيد دپاره ده۔

دَعَامِيْصُ الْجَنَّةِ : جمع د دُعْمُوْص ده ژورے ته وئيلے شى دا په اُوبو کښې واوړه واړه تور چينجى دى چه د حيوانانو په ژبو او مزيو کښې مضبوط انخلى چه ترے نۀ جدا کيږى چه پدے سره حيوان ډير په عذاب وى۔ ديته (عَلق) هم وائى۔ نو دغه شان ماشومان بچى به د مور او پلار پورے کلك انختى وى چه نۀ به ترے جدا کيږى تردے چه جنت ته ئے داخل کړى۔ دا حديث هم دليل دے چه يو بچے د چا مړ شى نو هغه د انسان دپاره د جنت د داخليدو ذريعه جوړيږى خو پدے شرط چه صبر ئے کړے وى او دا ئے ثواب گڼړلے وى ځکه چه انما الاعمال بالنيات۔ ولله الحمد على توسعة رحمة الله۔

مَوْتَانَا : ددے نه مراد ماشومان اولادو دے۔

---

١٧٥٢ (٣٢) – وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ : جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلٰى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَقَالَتْ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! ذَهَبَ الرِّجَالُ بِحَدِيثِكَ فَاجْعَلْ لَنَا مِنْ نَفْسِكَ يَوْمًا نَأْتِيكَ فِيهِ تُعَلِّمُنَا مِمَّا عَلَّمَكَ اللهُ. فَقَالَ: «اِجْتَمِعْنَ فِي يَوْمِ كَذَا وَكَذَا فِي مَكَانِ كَذَا وَكَذَا». فَاجْتَمَعْنَ فَأَتَاهُنَّ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ فَعَلَّمَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَهُ اللهُ ثُمَّ قَالَ: «مَا مِنْكُنَّ امْرَأَةٌ تُقَدِّمُ بَيْنَ يَدَيْهَا مِنْ وَلَدِهَا ثَلاثَةً إِلَّا كَانَ

لَهَا حِجَابًا مِنَ النَّارِ». فَقَالَتِ امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ: يَا رَسُولَ اللهِ أَوْ اثْنَيْنِ ؟ فَأَعَادَتْهَا مَرَّتَيْنِ. ثُمَّ قَالَ: « وَاثْنَيْنِ وَاثْنَيْنِ وَاثْنَيْنِ ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** : او ابوسعیدؓ فرمائي: (یوه ورځ) یوه ښځه د رسول الله ﷺ خوا ته راغله، وې وئیل : یارسول الله! سړو ستا خبرې حاصلې کړې نو زمونږ دپاره (هم) د خپل طرف نه یوه ورځ مقرر کړه چه مونږ تا ته په هغې کښې راځو او ته مونږ ته د هغه خبرو تعلیم راکړې د کوم تعلیم چه تا ته الله درکړې۔ نبي ﷺ اُوفرمایل: په فلانۍ فلانۍ ورځ په فلانی فلانی ځائے کښې راجمع شئ۔ نو زنانه راجمع شوې۔ رسول الله ﷺ د هغوی خوا ته راغلو او هغوی ته ئې هغه خبرې اُوخودلې کوم چه الله تعالیٰ هغه ته خودلې وې۔ بیا نبي ﷺ (دا هم) اُوفرمایل: ستاسو نه یوه زنانه نشته چه هغه د خپل ځان نه مخکښې د خپلو اولادو نه درې کسان اُولیږی مګر دا به د هغې دپاره د اُور نه پرده وی۔ د هغوی نه یوې ښځې اُووئیل: یارسول الله! او که دوه وی؟ دا خبره ئې دوه ځل اُوکړه۔ بیا نبي ﷺ اُوفرمایل: «او که دوه وی، دوه وی، دوه وی»۔ (بخاریؒ)۔

**تشریح**: زنانو له د دین او د دین د تعلیم داسې شوق پکار دې لکه څنګه چه دې صحابیاتو سره د دین د زده کولو حرص وو۔ ځکه چه دا د کامیابۍ ذریعه ده۔ د غفلت نه بیداری پکار ده او خپل مقصد پیژندل ضروری دی۔ او سړو له هم پکار دی چه که خپله دکانداریانې کوی، خپلې ښځې د دین زده کړې ته اُوزګارې کړی دې دپاره چه هغوی هم د دین نه خبرې شی او د سړی غاړه هم آزاده شی۔

**وَاثْنَيْنِ** : دا درې ځل ئې د تاکید دپاره اُووئیل او (واو) په معنیٰ د (أَوْ) دې۔ دې روایت کښې تخصیص د زنانو راغلو او مخکښې پلار ذکر وو نو معلومه شوه چه دا بچې به مور او پلار دواړه جنت ته داخلوی او د اُور نه به ئې بچ کوی برحمة الله سبحانه وتعالیٰ۔

او دا روایت دلیل دې چه زنانه مسجد، مدرسې یو کور ته تلې شی چه په هغې کښې دین زده کړی او یو استاذ یا عالِم ورله راځی او دین ورته زده کوی یا ورته وعظ او نصیحت کوی او د پښتنو دا خبره غلطه ده چه ښځه یا په کور ده یا په ګور ده۔

امام بخاریؒ پدې حدیث داسې ترجمة الباب لګولې دې : (بَابُ الْمُحَدِّثِ يُحَدِّثُ النِّسَآءَ) (باب دې په بیان ددې کښې چه یو محدث (حدیث بیانونکې) زنانو ته هم حدیثونه بیانولې شی) لیکن شرط دا دې چه ګمراه کونکې استاذ به نه وی اول د استاذ حقیقت معلومول ضروری وی، هسې نه چه ګمراه ئې کړی۔

**١٧٥٣ (٣٣) - وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ :« مَا مِنْ مُسْلِمَيْنِ يُتَوَفَّى لَهُمَا ثَلَاثَةٌ إِلَّا أَدْخَلَهُمَا اللهُ الْجَنَّةَ بِفَضْلِ رَحْمَتِهِ إِيَّاهُمَا ». فَقَالُوْا: يَا رَسُوْلَ اللهِ أَوِ اثْنَانِ ؟ قَالَ: « أَوِ اثْنَانِ ». قَالُوْا : أَوْ وَاحِدٌ ؟ قَالَ:« أَوْ وَاحِدٌ ».ثُمَّ قَالَ:« وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ إِنَّ السَّقْطَ لَيَجُرُّ أُمَّهُ بِسَرَرِهٖ إِلَى الْجَنَّةِ إِذَا احْتَسَبَتْهُ ».رَوَاهُ أَحْمَدُ وَرَوَى ابْنُ مَاجَه مِنْ قَوْلِهٖ:« وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ ».**

**ترجمه** : او معاذ بن جبل ؓ فرمائي : رسول الله ﷺ فرمايلي دي: نشته دوه مسلمانان چه د هغوى درے اولاد وفات شي مگر دا دواړه به الله تعالىٰ په خپل زياتي رحمت سره جنت ته ضرور داخلوي۔ صحابه کرامو عرض اُوکړو يا رسول الله ! او که دوه وفات وي؟۔ نبي ﷺ اُوفرمايل : او که دوه وفات وي (هم دا اجر دے) صحابه کرامو (بيا) عرض اُوکړو : او که يو وي ؟ نبي ﷺ اُوفرمايل : که يو وي (هم)۔ بيائے اُوفرمايل : قسم په هغه ذات چه زما روح د هغه په لاس کښ دے يقيناً کچه (ناتمام) بچے (د يوے زنانه چه گوزار شي) هغه به ضرور خپله مور د نامه نه جنت طرف ته راکاږي (پدے شرط) کله ئے چه هغه ثواب گنړلے وي۔ (احمدؒ، او ابن ماجهؒ دا روايت ددے قول والذى نفسي بيده نه تر آخره پورے نقل کړے)۔

**تشريح** : **بِفَضْلِ رَحْمَتِهِ إِيَّاهُمَا** : يعني په زياتي رحمت د الله په مور او پلار باندے ۔ (اياهما) ضمير مور او پلار ته راجع دے۔ يعني د بچي په وجه الله تعالىٰ په مور او پلار باندے زياتي رحمت کوي چه ددۀ په ذريعه ئے جنت ته داخلوي۔ او د مسلمين نه مراد مور او پلار مسلمانان دي۔ د کافرانو داسے ثوابونه نشته۔

**السَّقْطَ** : دا هغه بچے دے چه د مور د خيټے نه د مودے پوره کيدو نه مخکښ پريوزي۔ (يعني زين او نيمګړے بچے)۔

**بِسَرَرِهٖ** : يعني په خپل نوم سره سَرَر هغه پړي او کولمے ته وئيلے شي چه په وخت د پيدائش کښ د ماشوم پورے انختي وي او دائي ئے پريکوي۔ او هرچه سُرّه ده نو دا هغه غوټے ته وئيلے شي چه د دائي د پريکولو نه روستو پاتے شي۔

**درجة الحديث** : صحيح لغيره دون قصة السقط وهذا اسناد ضعيف (شعيب الارنووط) احمد (٥/ ٢٤١) وابن ماجه (١٦٠٨) فيه يحيى بن عبد الله بن موهب متروك (تقريب) اتفقوا على ضعفه (الزوائد) لا بأس به اذا روى عن ثقة (يعقوب بن سفيان) وقال الجوزجاني: احاديثه متقاربة من حديث اهل الصدق وضعفه غيرهم وحسن الالباني قصة السقط فى صحيح الجامع (٧٠٦٤) وقال فى صحيح

ابن ماجه (۱۶۰۸) وصحیح الترغیب (۲۰۰۸) صحیح لغیره۔

---

۱۷۵۴ (۳۴) – وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«مَنْ قَدَّمَ ثَلَاثَةً مِنَ الْوَلَدِ لَمْ يَبْلُغُوا الْحِنْثَ كَانُوْا لَهٗ حِصْنًا حَصِيْنًا مِنَ النَّارِ». فَقَالَ أَبُوْ ذَرٍّ: قَدَّمْتُ اثْنَيْنِ. قَالَ: «وَاثْنَيْنِ». قَالَ أُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ أَبُو الْمُنْذِرِ سَيِّدُ الْقُرَّاءِ: قَدَّمْتُ وَاحِدًا. قَالَ :«وَوَاحِدًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ : هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ.

**ترجمه** : او عبد الله بن مسعود ؓ فرمائی: رسول الله ﷺ فرمایلی دی: « چا چه درے اولاد چه بلوغ ته نۀ وی رسیدلی د خپل ځان نه مخکښې اُولیږل (یعنی مخکښې وفات شو) نو دا به ددۀ دپاره د اُور نه یوه مضبوطه قلعه وی». ابوذر عرض اُوکړو : ما دوه بچی لیږلی دی۔ (یعنی زما دوه بچی وفات شوی) نبی ﷺ اُوفرمایل: او دوه هم۔ ابی بن کعبؓ چه کنیت ئے ابوالمنذر دے او د قاریانو سردار دے اُووئیل چه ما خو یو لیږلے دے ؟ نبی ﷺ اُوفرمایل : او یو هم۔(د اُور نه پناه جوړیږی)۔ (ترمذیؒ، ابن ماجهؒ) او امام ترمذیؒ فرمائی چه دا حدیث غریب دے۔

**تشریح** : حِصْنًا حَصِيْنًا : یعنی قوی پرده۔ یعنی پوره او قوی مانع به وی۔

سَيِّدُ الْقُرَّاءِ : دۀ ته ئے سید القراء ځکه وئیلو چه رسول الله ﷺ فرمائیلی وو، (أَقْرَأُكُمْ أُبَيٌّ) (لوئی قاری په تاسو کښې ابی بن کعب دے)۔

دا هم مشروط دے په صبر باندے چه په اوله صدمه کښې به ئے صبر کړے وی۔ دا روایت سنداً ضعیف دے لیکن معنیٰ ئے د نورو احادیثو نه ثابته ده۔

**درجة الحديث** : حدیث صحیح لغیره وهذا اسناد ضعیف ابوعبیدة لم یسمع من ابیه (شعیب) اخرجه الترمذی (۱۰۶۱) وابن ماجه (۱۶۰۶) وضعفه الالبانی ولکن قول شعیب اجود منه فالحدیث کله صحیح لغیره۔

---

۱۷۵۵ (۳۵) – وَعَنْ قُرَّةَ الْمُزَنِيِّ : أَنَّ رَجُلًا كَانَ يَأْتِي النَّبِيَّ ﷺ وَمَعَهُ ابْنٌ لَهٗ. فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ ﷺ :«أَتُحِبُّهٗ ؟ ». فَقَالَ: يَا رَسُوْلَ اللهِ ﷺ أَحَبَّكَ اللهُ كَمَا أُحِبُّهٗ. فَفَقَدَهُ النَّبِيُّ ﷺ فَقَالَ :«مَا فَعَلَ ابْنُ فُلَانٍ ؟ ». قَالُوْا: يَا رَسُوْلَ اللهِ! مَاتَ. فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«أَمَا تُحِبُّ أَلَّا تَأْتِيَ بَابًا مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ إِلَّا وَجَدْتَهٗ يَنْتَظِرُكَ ؟ ». فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُوْلَ اللهِ! لَهٗ خَاصَّةً أَمْ لِكُلِّنَا ؟ قَالَ:« بَلْ لِكُلِّكُمْ ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** : او د قره مزنیؓ نه روایت دے چه یو سړے به نبی کریم ﷺ ته راتلو او د هغه سره به یو ځوی وو۔ (یوه ورځ) ورته نبی کریم ﷺ اُوفرمایل : آیا تهٔ ددهٔ سره مینه کوے؟ هغه اُووئیل : الله دِے تا سره داسے محبت اُوکړی لکه څنګه چه زهٔ ددهٔ سره مینه کوم۔ (څه موده روستو) نبی کریم ﷺ هغه ماشوم (د خپل پلار سره) اُونهٔ موندلو، تپوس ئے اُوکړو : د فلانی شخص ځوی باندے څه اُوشو ؟ صحابه کرامو عرض اُوکړو چه یارسول الله ! د هغه بچے خو وفات شوے۔ (دے نه روستو چه کله هغه شخص حاضر شو، هغه ته) رسول الله ﷺ اُوفرمایل : آیا تهٔ دا نهٔ خوښوے چه تهٔ به (سبا د قیامت په ورځ) د جنت د دروازو نه یوے دروازے ته نهٔ راځے مګر خپل بچے به موندهٔ کوے چه ستا انتظار به کوی (چه ستا سفارش اُوکړی او تا ځان سره جنت ته بوځی) یو شخص عرض اُوکړو یارسول الله ! دا زیرے خاص ددے شخص دپاره دے او که زمونږ ټولو دپاره دے ؟ نبی ﷺ اُوفرمایل : بلکه ستاسو ټولو دپاره دے۔ (احمدؒ)۔

**تشریح** : فَفَقَدَهُ : ضمیر یا ابن (ځوی) ته یا اب (پلار) ته راجع دے۔

إِلَّا وَجَدْتَّهُ : د جنت حالت جدا دے پدے وجه دا ماشوم به په هره دروازه کښې حاضریږی۔

بَلْ لِكُلِّكُمْ : دا حدیث دلیل دے چه رسول الله ﷺ کومه خبره یا فضیلت یا حکم شرعی بیان کړی نو دا به د ټول امت دپاره وی اګرکه سبب ئے خاص وی ترڅو پورے چه په احادیثو کښې دا نهٔ وی راغلی چه دا د رسول الله ﷺ یا یو امتی پورے خاص دے۔

او دلیل دے چه د بچو سره محبت ساتل اجر او ثواب دے۔

**درجة الحدیث** : اسناده صحیح : احمد (٥/٣٥) والنسائی (١/٢٩٦) رجاله ثقات (شعیب)۔

---

**١٧٥٦ (٣٦) – وَعَنْ عَلِيٍّ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« إِنَّ السِّقْطَ لَيُرَاغِمُ رَبَّهُ إِذَا أُدْخِلَ أَبَوَيْهِ النَّارَ فَيُقَالَ: أَيُّهَا السِّقْطُ الْمُرَاغِمُ رَبَّهُ أَدْخِلْ أَبَوَيْكَ الْجَنَّةَ فَيَجُرُّهُمَا بِسَرَرِهِ حَتّٰى يُدْخِلَهُمَا الْجَنَّةَ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.**

**ترجمه** : او علی ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی : ﴿ یقیناً ناتمام بچے به د خپل رب سره جګړه کوی کله چه الله تعالیٰ د هغه والدین اُور ته د داخلیدو اراده اُوکړی۔نو دهٔ ته به وئیلے شی: اے ناتمام بچیه ! چه د خپل رب سره جګړه کوے! (ځه) خپل مور او پلار جنت ته داخل کړه نو دا به خپل مور او پلار د خپل نوم په ذریعه راکاږی تردے چه دواړه به جنت ته داخل کړی۔ (ابن ماجهؒ)۔

**تشريح :** لَيُرَاغِمُ : مراغمه بحث او جګړې ته وئيلې شي يعنې د الله سره به د مور او پلار دپاره په سختئ سره سفارش کوي او کوشش به کوي چه د هغه سفارش قبول شي. داسې به وائي چه اے الله تـه خو رحيم ئې ضرور زما او پلار جنت داخل کړه. دا روايت سنداً ضعيف دے او معنیٰ ئې د نورو احاديثو نه واضحه ده.

**درجة الحديث :** اسناده ضعيف لضعف مندل بن على اخرجه ابن ماجه (١٦٠٨) واسماء بنت عابس لا يعرف حالها (تقريب).

---

١٧٥٧ (٣٧) — وَعَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ : «يَقُوْلُ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى: اِبْنَ آدَمَ! إِنْ صَبَرْتَ وَاحْتَسَبْتَ عِنْدَ الصَّدْمَةِ الْأُوْلٰى لَمْ أَرْضَ لَكَ ثَوَابًا دُوْنَ الْجَنَّةِ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

**ترجمه :** او ابوامامهؓ د نبی کریم ﷺ نه روایت کوی چه الله تبارك وتعالیٰ فرمائي : اے د آدم خویه ! که تا صبر اُوکړو او د مصیبت په ابتداء کښې دے د ثواب امید اُوساتلو نو زهٔ ستا دپاره د جنت نه په کم کوم اجر ثواب نهٔ راضي کيږم (يعنی زهٔ به تا ددے په بدله کښې جنت ته داخل کړم). (ابن ماجهؒ).

**تشريح :** اِبْنَ آدَمَ ! : دا منادیٰ ده او حرف نداء حذف شويدے.

پدے روايت کښې د مصيبت په راتلو باندے بدله جنت خودلے شويدے په دوه شرطونو چه صبر اُوکړے شی چه جزع فزع او فرياد پکښې نهٔ وی. او دويم : هغه ثواب اُوګنړلے شی. نو جنت به ته ابتداءً داخليږی. دلته د دخول الجنة نه مراد ابتدائي دخول دے چه بغير د عذاب او سزا نه وی ځکه که داسے وانخلو نو بيا خو جنت ته نفس دخول په ايمان بناء دے. شريعت دومره ثوابونه د مصيبت دپاره ولے وئيلی دی؟ دے دپاره چه بنده ته مصيبت آسان شی او صبر ورته ګران نشی.

**درجة الحديث :** اسناده حسن: ابن ماجه (١٤٩٧) احمد (٢٥٨/٥) من طرق عن اسماعيل به وحديثه عن الشاميين قوى وقال فى الزوائد اسناده صحيح ورجاله ثقات.

---

١٧٨٧ (٣٨) —وَعَنِ الْحُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ : «مَا مِنْ مُسْلِمٍ وَلَا مُسْلِمَةٍ يُصَابُ بِمُصِيْبَةٍ فَيَذْكُرُهَا وَإِنْ طَالَ عَهْدُهَا فَيُحْدِثُ لِذٰلِكَ اسْتِرْجَاعًا إِلَّا جَدَّدَ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى لَهُ عِنْدَ ذٰلِكَ فَأَعْطَاهُ مِثْلَ أَجْرِهَا يَوْمَ أُصِيْبَ بِهَا». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ.

**ترجمه :** او حسين بن على رضی الله عنهما د نبی کريم ﷺ نه روايت کوی : نشته يو

مسلمان سړے یا ښځه چه هغوی ته یو مصیبت اُورسی۔ بیا هغه رایاد کړی اګرکه د هغے زمانه ډیره تیره شوی وی او د هغے په وجه (اُوس) انا لله وانا الیه راجعون اُووائی مګر الله تبارك وتعالیٰ به هغه ته دا مصیبت نیوے کړی او هغه ته به د هغه مصیبت برابر ثواب ورکړی په کوم ورځ چه هغه ته مصیبت رسیدلے وو۔ (احمدؒ، بیهقیؒ)۔

**تشریح** : مطلب دا دے چه کله زوړ مصیبت یو انسان ته رایاد شی او د هغے په وجه پریشان شی نو اُوس دِے انا لله وانا الیه راجعون اُووائی نو الله به ددے انا لله په وجه دۀ ته د دغه مصیبت اجر راتازه کړی او د مصیبت په شان اجر به ورکړی۔ لکه مثلًا د چا مور او پلار وفات شوی وی یا ئے بچے وفات وی یا ورته بل مصیبت رسیدلے وی او هغه رایاد کړی نود انا لله په وئیلو سره ورته د دغه مصیبت اجر ملاویږی۔

اسْتِرْجَاعًا: استرجاع : انا لله وانا الیه راجعون وئیلو ته وائی۔

**درجة الحدیث:** اسناده ضعیف : احمد (١/ ٢٠١) بسند ضعیف فیه هشام بن ابی هشام وهو مجهول کما قال ابوحاتم۔ قال فی التقریب : هو متروك و کنیته ابوالمقدام ۔

---

١٧٥٩ (٣٩) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :« إِذَا انْقَطَعَ شِسْعُ أَحَدِكُمْ فَلْيَسْتَرْجِعْ فَإِنَّهُ مِنَ الْمَصَائِبِ».

**ترجمه** : ابو هریره ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :« کله چه ستاسو د یو تن د څپلئ تسمه اُوشوکیږی نو هغه دِے انا لله وانا الیه وانا رالیه راجعون اُووائی ځکه چه دا هم د مصیبتونو نه (یو مصیبت) دے۔

**تشریح** : شِسْعُ : د څپلئ تسمے او مزی ته وئیلے شی کوم چه د غټے او درمیانه ګوتے ترمینځ وی۔ یعنی کله چه یو ګوتے والا څپلئ چپړه وی او په هغے کښ مینځنے مزے پریکړے شی نو دا هم یو مصیبت دے انا لله پرے وئیل پکار دی۔ او دا مزے یو معمولی شے دے نو ددے نه په بره مصیبت باندے په طریقه اولیٰ انا لله وئیل پکار دی۔ بیا برابره ده که مصیبت دینی وی او که دنیوی دواړو کښ د انا لله نقل شته بلکه د جَمعے د مانځه په فوت کیدو انا لله وئیل شوی ده۔ دارنګه د تهجدو په فوت کیدو او فتح چه په شکست بدله شوی وی نو هم وئیل شویده۔ کما فی الدین الخالص (٧)

**درجة الحدیث** : اسناده ضعیف : قال الهیثمی فی المجمع (٢/ ٣٣١) رواه البزار وفیه بکر بن خنیس وهو ضعیف ورواه عن شداد بن اوس مرفوعاً مثله وفیه خارجة بن مصعب وهو متروك۔

١٧٦٠ (٤٠) - وَعَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ قَالَتْ: سَمِعْتُ أَبَا الدَّرْدَاءِ يَقُوْلُ: سَمِعْتُ أَبَا الْقَاسِمِ ﷺ يَقُوْلُ: «إِنَّ اللهَ تَبَارَكَ وَتَعَالٰى قَالَ: يَا عِيْسٰى إِنِّيْ بَاعِثٌ مِنْ بَعْدِكَ أُمَّةً إِذَا أَصَابَهُمْ مَا يُحِبُّوْنَ حَمِدُوا اللهَ وَإِنْ أَصَابَهُمْ مَا يَكْرَهُوْنَ اِحْتَسَبُوْا وَصَبَرُوْا وَلَا حِلْمَ وَلَا عَقْلَ. فَقَالَ: يَا رَبِّ كَيْفَ يَكُوْنُ هٰذَا لَهُمْ وَلَا حِلْمَ وَلَا عَقْلَ؟ قَالَ: أُعْطِيْهِمْ مِنْ حِلْمِيْ وَعِلْمِيْ». رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ.

**ترجمه** : او ام الدرداء رضی الله عنها فرمائي : ما د ابو الدرداء نه آوريدلي چه فرمايل ئے : ما د ابو القاسم صلی الله علیه وسلم نه آوريدلي چه فرمايل ئے : الله تبارك وتعالیٰ (عیسی ؑ ته) فرمايلي وو: اے عیسیٰ ! زهٔ ستا نه روستو يو امت پيدا کوم چه کله هغوی ته هغه شے اُورسی چه دوی ئے خوښوی نو د الله حمدونه وائی او چه کله دوی ته اُورسی هغه شے چه دوی ئے بد گنړی نو د هغے د ثواب امید به ساتي او صبر به کوی حال دا چه نهٔ به (دوی سره کامل) عقل وی او نهٔ بردباری۔ عیسیٰ اُوفرمايل : اے ربه ! دا به د دوی دپاره څنګه وی حال دا چه دوی سره به بردباری هم نهٔ وی او نهٔ عقل؟ الله اُوفرمايل : زهٔ به دوی ته د خپل طرف نه بردباری او د خپل علم نه (څه حصه) ورکوم۔ (بیهقیؒ)۔

**تشریح** : پخوانو امتونو ته به ددے امت صفتونه کيدل چه دا دومره بهترین امت دے۔

وَلَا حِلْمَ وَلَا عَقْلَ : یعنی بردباری او صبر او عقل به ورله ذاتی نهٔ وی۔ حلم : د اعتدال هغه صفت دے چه انسان د عجلت او جلتیٔ نه منع کوی او په کارونو کښې ئے په سوچ او فکر باندے راپورته کوی نو بیا به د مقام د تقاضا مطابق چليږی نو د انعام په وخت به شکر کوی او تکبر به نهٔ کوی او د تکليف په وخت به صبر کوی۔ او د مصيبت په وخت به جزع فزع نهٔ کوی۔ او عقل سره انسان د بدو او نامناسبه کارونو نه بنديږی۔

او مطلب دا دے چه دوی چه کله د مصيبت په وخت صبر او احتساب کوی نو دا به ئے په عمل او اخلاص او د الله د رضا په طلب کولو باعث کوی نهٔ حلم او عقل۔ نو سوال پيدا شو چه يو انسان سره حلم او عقل نهٔ وی نو څنګه به د ګناهونو نه بچ شی او په مصيبتونو به صبر اُوکړی نو الله اُوفرمايل: زهٔ به ورته حلم او عقل ورکړم۔

دا دليل دے چه څوك د الله دپاره کارونه کوی او په مصيبتونو صبر کوی نو الله به ورته د خپل طرف نه وهبی او لدنی علم او صبر او عقل ورکوی۔ اګرکه مخکښې به پکښې پوره طريقے سره نهٔ وی۔

وَعِلْمِيْ: د الله دپاره عقل نهٔ استعماليږی پدے وجه ئے پدے ځائے کښې د (عَقْلِيْ) په ځائے

(عِـلْـمِـيُ) لفظ اُووئيلو۔ ځکه چه عقل کښې احتياج وَی نو ځکه الله دپاره نهٔ استعماليږی۔ بلهٔ دا چه هغه علم چه حاصل بالعقل وی هغه حادث وی او د الله تعالیٰ علم حضوری قديم دے۔

**درجة الحديث** : اسـنـاده ضعيف اوحسـن : لـجهالة حال ابی حلبس يزيد بن ميسرة فانه مجهول الـحـال ولـم يرو عنه الا اثنان معاوية وصفوان بن عمرو الخ اخرجه البيهقی فی الشعب وابونعيم فی الحلية (٢٢٧/١) (٢٤٣/٥) ضـعـفــه الالبــانـی فـی الـضـعـيـفة تفصيلا (٢٩/٩) رقم (٤٠٣٨) وقـال الهيثمی (٦٨/١٠) بـعـد عـزوه لاحمد والبزار والطبرانی : ورجال احمد رجال الصحيح غير الحسن بن سوار وابی حـلبـس يزيد ميسرة وهما ثقتان انتهیٰ ولكن قال شعيب والالبانی ان يزيد مجهول الحال ولم يعلم عدالته فالحديث لاينحط عن درجة الحسن لغيره ان شاء الله۔

OOOOOOOO

# باب زیارة القبور

## د قبرونو د زیارت بیان

مخکښې د مړو بیان وو اُوس د ژوندو دپاره احکام ذکر کوی چه دا بے وفائی ده چه د انسان مور او پلار او بچی او رشته دار وفات شی او بیا ئے بالکل هیر کړی، بلکه د هغوی د قبرونو خوا له ورتلل پکار دی۔

بیا پدے کښې شرعی فوائد دی: (١) یو دا چه پدے سره د مړو حقوق ادا کیږی۔ (٢) پدے کښې د آخرت یادول دی چه دا د هر خیر باعث ګرځی۔ (٣) او دنیا کښې بے رغبتی او بے محبتی پیدا کیږی، انسان په دنیا سره د آخرت نه نۀ غافله کیږی او انسان ته خپل مقصد او فناء یادیږی نو بیا په دنیا کښې د ګناهونو نه ځان ساتی او د آخرت په کارونو کښې تیزی پیدا کوی۔

(٥) مړو ته دعاء کول مقصد وی۔ ځکه چه مړ انسان داسے دے (کَالْغَرِیْقِ الْمُتَغَوِّثِ) لکه یو انسان چه اُوبو راخستے وی هرځه ته لاس اچوی نو مړے هم د هر چا دعاء ته حاجت لری او د مړو په حق کښې دعاګانے ډیرے ښے قبلیږی او الله تعالیٰ قبرونو ته د غرونو هومره ثوابونه ورداخلوی۔

### د زیارة القبور آداب او احکام:

(١) دخاص باباګانو قبرونو ته تلل او د هغوی نه برکتونه حاصلول حرام دی او ډیرو ملیانو دا جائز کړیدی چه د اولیاؤ مزاراتو او قبرونو ته تلل د برکت او سعادت حاصلولو دپاره تلل پکار دی ځکه چه د اولیاؤ په برزخ کښې تصرفات او برکتونه بیشماره دی۔ آه لکه دا ګمراهی ئے په مظاهر حق کښې لیکلے ده۔ (مظاهر حق٢/١٦٦)

دا سو چه دروغ دی او شرك ته دعوت دے۔ او دیته بدعی او شرکی زیارة القبور وائی۔ او په حاشیه د مشکوة کښې ئے دے ځائے کښې پوره شرك ثابت کړیدے چه د نبی ﷺ او د نورو انبیاؤ نه مددونه غوختلو کښې اختلاف نشته او هرچه نور اولیاء دی نو هغے نه اکثرو فقهاؤ انکار کړیدے لیکن مشائخ صوفیه ؤ او بعض فقهاؤ ثابت کړیدے۔ او د ډیرو خلقو دپاره د اولیاؤ د ارواحو نه فیوضات (خیرونه) حاصل شویدی۔ الخ۔ بیا روستو په حدیث د (حیاء من عمر) کښې

لیکی : (فَاِنَّ لِلصَّالِحِیْنَ مَدَدًا ظَاهِرًا بَالِغًا لِزُوَّارِهِمْ بِحَسَبِ اَدَبِهِمْ وَنَهْمَتِهِمْ وَقَبُوْلِهِمْ) (د صالحینو دپاره ښکاره قوی مدد شته چه زائرینو سره د هغوی د ادب او حاجت قبولیت په اندازه مددونه کوی) (کذا فی اشعة اللمعات) دا غټه گمراهی او تباهی ده چه مُلیان د شرك دعوت خلقو ته ورکوی چه د اولیاؤ د روحونو نه فیوضات حاصل کړئ، او د نیکانو قبرونو له د هغوی نه د مدد حاصلولو دپاره ورځئ۔ دا د مقلدینو عقیدے دی چه د خرافاتونه ډکے دی۔ شرك به د دوی په نیز نور څه وی چه د غیر الله نه مدد غوختل او بیا پس د مرگ نه او د هغوی د قبرونو نه غوختل د دوی په نیز ښه توحید او افضل عمل دے۔ او ډیر ښه دلائل ئے ذکر کړل۔ آفرین ؟!!، نهٔ قرآن شته او نهٔ حدیث او نهٔ اجماع د علماؤ بلکه صرف خرافات او آرزوگانے او متشابهات د دوی دلائل دی۔ هائے افسوس ! د الله دین کوم طرفته روان دے او دوی کوم طرفته روان دی۔ فالی الله المشتکی من علماء السوء۔

(٢) د قبر د ملاقات په وخت قبر ته متوجه کیدل یا د هغه نه مدد غوختل یا زړهٔ کښ د هغه تعظیم راوستل تهول مشرکانه طریقے دی۔ بلکه انسان به الله تعالیٰ طرف ته متوجه کیږی او مړی ته به دعاء کوی او هغه به محتاج گنړی چه دا مړے زمونږ دعاگانو ته حاجت لری۔

(٣) د قبر خکلول یا قبرونو ته سر ختکه کول او سجده کول یا په هغه باندے غلاف اچول یا د هغه په خوا کښ شمعے او اگرباتئ بلول یا د قبر کانړی او جاروگانے ځان پورے راخکل یائے خاوره څټل او ځان سره د برکت حاصلولو دپاره کورته راوړل دا تول د هندوانو مشرکانو اوے دینه خلقو کار دے۔

(٤) ادب دا دے چه د زیارة القبور دعاء به اُووئیلے شی۔ او بیا که خاص دعاء کوی خپل او پردو مړوتنو جائز ده خو قبر ته به نهٔ متوجه کیږی بلکه قبلے طرفته به متوجه وی۔ او لاسونه هم پکښ پورته کولے شی۔

(٥) د قبرونو په خوا کښ مونځونه کول، تلاوتونه کول دا تول ناجائز اعمال دی۔

## الفصل الأول

١٧٦١ (١) — عَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ :«نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ فَزُوْرُوْهَا وَنَهَيْتُكُمْ عَنْ لُحُوْمِ الْأَضَاحِيْ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَأَمْسِكُوْا مَا بَدَا لَكُمْ وَنَهَيْتُكُمْ عَنِ النَّبِيْذِ إِلَّا فِيْ سِقَاءٍ فَاشْرَبُوْا فِي الْأَسْقِيَةِ كُلِّهَا وَلَا تَشْرَبُوْا مُسْكِرًا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : او بریده ﷺ فرمائی : رسول الله ﷺ فرمایلی دی :(( ما تاسو مخکښ د قبرونو د ملاقات نه منع کړی وئ مگر (اُوس) د قبرونو ملاقات کوئ۔ او ما تاسو د درے ورځو نه زیات د

قربانئ د غوښو نه منع كړې وئ مګر (اُوس) څو مره وخت چه ستاسو خوښه وى څان له سا تئ۔ او ما تاسو د نبيذ نه سوى د مشك نه (په نورو لوښو كښ د سكلو نه) منع كړې وئ نو (اُوس) په ټولو لوښو كښ سكل كوئ ليكن د نشے شے هيڅ كله مه سكئ۔ (مسلمؒ)۔

**تشريح** : *فَزُوْرُوْهَا*: دا امر د رخصت او استحباب دپاره دے۔ يعنى په ابتداء د اسلام كښ زيارة القبور نه منع څكه شوے وه چه خلق نوى مسلمانان وو، د جاهليت زمانه نزدے وه نو دا خطره وه چه خلق به د قبرونو په خوا كښ د كفر او شرك خبرے او طريقے راتازه كړى، او دا د قبرونو د عبادت ذريعه اُونه ګرځى ليكن كله چه رسول الله ﷺ ته پته اُولګيده چه د خلقو په زړونو كښ د اسلام مضبوطوالے حاصل ګړونو د زيارة القبور اجازه ئے وركړه او فوائد ئے بيان كړل چه دا انسان ته آخرت يادوى او دنيا كښ بے رغبتى پيدا كوى۔ دا دليل دے چه د بت عبادت او د قبر عبادت يو شان شرك دے۔

او پدے حكم كښ زنانه هم داخلے دى۔ څكه چه په لعن الله زائرات القبور سره صراحةً زنانه منع شوے وے۔ هر كله چه اجازه راغله نو اول به پكښ هغوى داخلے وى۔ او كوم فوائد چه په زيارة القبور كښ دى نو دا د سړو پورے خاص نهٔ دى بلكه زنانه هم د هغے حاصلولو ته محتاج دى لهذا د هغوى دپاره هم زيارة القبور مستحب دے خو په خاص شرطونو باندے چه د هغے تفصيل ددے كتاب په جلد (٣) كښ اُوګوره۔

**فائده**: امام نووىؒ او د هغه نه مخكښ عبدرىؒ او حازمىؒ وئيلى دى چه د امت پدے اتفاق دے چه زيارة القبور د سړو دپاره جائز دے آه۔ ليكن ابن ابى شيبةؒ وغيره د ابراهيم نخعىؒ، ابن سيرينؒ او شعبىؒ نه نقل كړى دى چه هغوى به زيارة القبور د سړو دپاره هم مكروه ګڼړلو تردے چه شعبىؒ به وئيل: (لَوْلَا نَهْيُ النَّبِيِّ ﷺ لَزُرْتُ قَبْرَ ابْنَتِيْ)

(كه د رسول الله ﷺ نهى نهٔ وے نو ما به د خپلے لور د قبر ملاقات كړے وے) نو كيدے شى چه هغوى ته به نهى نهٔ وه رسيدلے، دا ډير اُوچت تابعين دى او د اسلام غرونه دى ليكن ډير كرته واضحه مسئله په اُوچتو خلقو هم پټه پاتے كيدے شى،

نو پدے كښ رد دے په تقليد باندے او دليل دے پدے خبره چه ټول دين په يو شخص كښ نشى راجمع كيدے نو ثابته شوه چه تحقيق ضرورى دے۔ او تقليد بيكاره او د سُستو خلقو كار دے۔

*وَنَهَيْتُكُمْ عَنْ لُحُوْمِ الْأَضَاحِيْ* : يعنى اوله كښ د درے ورځو نه زيات د اختر د قربانئ غوښے ساتل منع وو د وجه د هغه فقراء او مسكينانو نه چه هغوى مدينے ته راغلى وو۔ څكه چه ابتداء كښ خلق تنګدست وو او فراخى نهٔ وه نو هر سړى به قربانى نشوه كولے پدے وجه رسول الله

ﷺ قربانی کونکو ته وئیلی وو چه تاسو به د درے ورځو نه زیات غوښے نهٔ ساتئ بلکه دا به فقیرانو او تنگدسته خلقو ته ورکوئ لیکن کله چه الله تعالیٰ مسلمانانو ته د ژوند فراخي ورکړه او د هغوئ فقیری او غریبی مجموعی طور سره ختمه شوه نو د خلقو د بل چا د قربانئ غوښو ته ضرورت پاتے نشو نو رسول الله ﷺ اجازت ورکړو چه د قربانئ غوښه هر څومره موده پورے ساتلے شئ۔

النَّبِیْذِ : په اُوبو کښې کجورے او وڅکے وغیره اچولو ته وئیلے شي۔ چه هغه څو ورځو پورے په اُوبو کښې پراته وي او د هغے نه بعد یو شربت ترے جوړ شي۔ دا نبیذ تر هغه وخت پورے حلال دي چه ترڅو په کښې نشه نهٔ وي پیدا شوي۔ رسول الله ﷺ په ابتداء د اسلام کښې خلقو ته دا حکم کړے وو چه نبیذ په مشك کښې سازوئ ځکه چه مشك نرے وي، نو پدے کښې نبیذ یخ پراته وي او زر نهٔ گرمیږي چه نشه پکښې پیدا شي۔ او په نورو لوخو کښې د نبیذ جوړولو نه ئے منع کړے وه ځکه چه په هغے کښې نبیذ زر گرمیږي او زر تینگ شي شراب ترے جوړ شي۔ او خلقو لا تر اُوسه د شرابو خوند نهٔ وو هیر کړے نو پدے وجه خطره وه چه هسے نه پدے طریقه خلق په آرام آرام شرابو ته متوجه نشي۔ لیکن کله چه د خلقو په زړونو کښې د شرابو حرمت پوره کیناستو او د شرابو نه ئے مکمل نفرت پیدا شو نو پدے وجه دا حکم اُوشو چه هر قسم لوښو کښې د نبیذ جوړول جائز دي خو پدے شرط چه نشے درجے ته نهٔ وي رسیدلی او هسے خوږ طاقتور شربت وي۔ او ددے باقي تفصیلات به په کتاب الاشربة کښې ان شاء الله تعالیٰ راځي۔

---

١٧٦٢ (٢) – وَعَنْ أَبِیْ هُرَیْرَةَ قَالَ: زَارَ النَّبِیُّ ﷺ قَبْرَ أُمِّهٖ فَبَکٰی وَأَبْکٰی مَنْ حَوْلَهٗ فَقَالَ: «اِسْتَأْذَنْتُ رَبِّیْ فِیْ اَنْ أَسْتَغْفِرَ لَهَا فَلَمْ یُؤْذَنْ لِیْ وَاسْتَأْذَنْتُهٗ فِیْ أَنْ أَزُوْرَ قَبْرَهَا فَأَذِنَ لِیْ فَزُوْرُوا الْقُبُوْرَ فَإِنَّهَا تُذَکِّرُ الْمَوْتَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : د ابو هریره ﷺ نه روایت دے فرمائي : نبي کریم ﷺ د خپلے مور د قبر زیارت ته تشریف یوړو نو هغه اُوژړل او هغه ملگری ئے هم اُوژړول کوم چه د هغه نه گیر چاپیره وو۔ بیا ئے اُوفرمایل : «ما د خپل رب نه اجازت اُوغوختو چه زهٔ د مور دپاره بخنه اُوغواړم لیکن ما ته د هغے اجازت اُونهٔ شو۔ بیا ما د خپل رب نه اجازت اُوغوختو چه زهٔ د مور قبر زیارت ته راځم نو ما ته ئے اجازت راکړو نو تاسو (هم) د قبرونو زیارت کوئ ځکه چه دا (انسان ته) مرگ رایادوي»۔ (مسلم)۔

**تشریح** : د حدیث نه معلومه شوه چه د کافرانو دپاره - اگرکه مور او پلار او خپلوان وی- بخنه غوختل حرام دی البته د هغوی د قبرونو زیارت کول جائز دی ځکه چه مقصود پدے کښ عبرت اخستل دی او هغه فوائد دی کوم چه مخکښ ذکر شو۔ اود کافرانو مقبرے ته چه کله انسان ورشی نو داسے به وائی : (اَبْشِرُوْا يَا كُفَّارُ بِالنَّارِ) (اے کافرانو ! د اُور زیرے قبول کرئ)
(طبرانی کبیر ۱/۱۹۱) الصحیحة (۱/۲۵)

او نووئ وائی : ددے نه دا معلومه شوه چه د مشرك مور او پلار ملاقات ته په حالت د ژوند کښ تلل جائز دی ځکه چه بعد الوفات جائز شونو په ژوند کښ په طریق اولیٰ جائز دی۔

## آیا د رسول الله ﷺ مور او پلار کافران وو ؟

فَلَمْ يُؤْذَنْ لِيْ : دا دلیل دے چه د رسول الله ﷺ مور او پلار دواړه کافران وفات شویدی او د کافر دپاره بخنه طلب کول حرام دی۔ او الله تعالیٰ حکیم او علیم دے پدے کښ د رسول الله ﷺ هیڅ بے عزتی نشته لکه څنګه چه د ابراهیم ؑ پلار په حالت د کفر کښ وفات شویدے۔
﴿ وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ وَيَخْتَارُ ﴾ ﴿ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ ﴾ ﴿ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَاءُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴾ (البقره) ﴿ فَإِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَاءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَاءُ ﴾ (فاطر۷)

په کوم حدیث کښ چه دا راغلی دی چه الله تعالیٰ د رسول الله ﷺ مور او پلار راژوندی کړل او ایمان ئے راوړو نو هغه ضعیف جداً دے۔ امام دارقطنیؒ، جوزقانیؒ، ابن الجوزیؒ او ابن دحیهؒ ورته موضوع وئیلے دے۔ او بعضو ورته ضعیف وئیلے دے لکه ابن شاهین، خطیب، ابن عساکر، سهیلیؒ او محب الدین الطبریؒ او ابن سید الناسؒ وغیره۔ او سیوطیؒ خپله هم د هغے په ضعف باندے اقرار کړیدے حال دا چه هغه پدے قائل دے چه د رسول الله ﷺ مور او پلار په حالت د اسلام کښ وفات دی۔

علامه سندیؒ وئیلی دی چه د رسول الله ﷺ د والدینو په باره کښ درے مسلکونه دی (۱) یو مسلك دا دے چه دا دواړه د زمانے د فترت والو نه دی او دوی ته دعوت نهٔ وو رسیدلے او په هغه چا عذاب نهٔ وی چه دعوت ورته نهٔ وی رسیدلے ځکه چه الله تعالیٰ فرمائی : ﴿ وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِيْنَ حَتّٰى نَبْعَثَ رَسُوْلًا ﴾ (الاسراء : ۱۵) نو ددے مسلك والا پدے حدیث کښ داسے تاویل کوی چه استغفار فرع د تصور د ګناه ده د هغوی دپاره او ګناه په زمانه د تکلیف کښ وی او چا ته چه دعوت نهٔ وی رسیدلے نو هغوی مکلف نهٔ دی نو د هغوی دپاره استغفار ته ضرورت نشته، ځکه چه دا ممکن ده چه استغفار صرف هغه خلقو دپاره وی چه دعوت ورته رسیدلے وی۔ نهٔ د

غیر دپاره اګرکه هغه نجات والا وی۔
(۲) دویم مسلك دا دے چه دوی الله تعالیٰ خپل نبی ﷺ ته راژوندی کړل او ایمان ئے پرے راوړو۔ نو هغوی دا حدیث حملوی په هغه زمانه باندے چه لا ژوندی شوی نهٔ وو۔
(۳) مسلك : او څوك چه دا وائی چه الله تعالیٰ به د قیامت د امتحان په ورځ د خیر توفیق ورکړی نو هغوی وائی چه دنیا کښ د هغوی دپاره استغفار طلب کول نشته نو هغوی پدے حدیث کښ تاویل هم نهٔ کوی نو دا حدیث د دریے واړو مسالکو سره لګیږی۔ انتهیٰ ترجمة کلام السندیؒ۔ امام سیوطیؒ پدے مسئله کښ اُووه رسالے لیکلی دی چه د رسول الله ﷺ مور او پلار کافران نهٔ وو۔
لیکن دا دریواړه مسلکونه غلط دی۔ په دریم مسلك باندے خو هیڅ دلیل نشته دا هسے دعوه ده۔ او هر چه اول مسلك دے نو هغوی په دلیل کښ د نبی ﷺ د مور او پلار د راژوندی کولو حدیث ذکر کوی او هغه موضوع دے۔ لکه چه تا اُوپیژندلو۔
او هرچه آیت دے نو هغه مکی دے او د رسول الله ﷺ د مور د قبر ملاقات د فتح د مکے په کال وو۔
بعض وائی : د حدیبیه په کال په شپږم د هجرت کښ وو۔ دغه شان بعض وائی: آیت د مخکنو امتونو پورے خاص دے۔ بعض وائی : ددے نه مراد په دنیا کښ استیصالی عذاب دے او د آخرت عذاب به ورله وی۔ او بل طرفته دلائل او احادیث موجود دی چه د رسول الله ﷺ پلار او مور مشرکان وو۔ لکه حدیث د مسلم او ابوداوُد کښ دی : یو سړے راغلو رسول الله ﷺ ته ئے اُووئیل : (اَیْنَ اَبِیْ ؟ قَالَ : (فِی النَّارِ) (زما پلار چرته دے ؟ نو رسول الله ﷺ اُوفرمایل : په اُور کښ دے۔ هرکله چه سړے واپس شو نو راوے غوختو ورته ئے اُوفرمایل : [اِنَّ اَبِیْ وَاَبَاكَ فِی النَّارِ] (زما او ستا پلار دواړه په اُور کښ دی)۔

(صحیح ابی داود ٤٧١٨) ومسلم (١/١٣٢) صحیح السیرة النبویة للالبانی ص (٢٤)۔

نو دا حدیث واضح دلیل دے چه څوك په زمانه د فترة کښ وفات وی او په شرك باندے اخته وو. نو ذا به د اُور والو نه شمار وی څکه چه دے خلقو ته د ابراهیم علیه السلام او د نورو انبیاء کرامو دعوت رسیدلے وو۔
علامه ابو الحسن مبارکفوریؒ فرمائی : زما په نیز باندے اسلم او احوط دا ده چه توقف او سکوت اُوکړے شی او الله تعالیٰ ته اُوسپارلے شی۔ آه۔ لیکن دا خبره غوره نهٔ ده څکه چه صریح دلائل موجود دی چه د رسول الله ﷺ والدین په حالت د کفر او شرك کښ وفات شویدی چه بعض

د هغينه مخكښ ذكر شو۔ بله دا چه توقف اوكړے شي نو بيا د صريح حديث قيمت څه دے ؟۔

---

١٧٦٣ (٣) — وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُعَلِّمُهُمْ إِذَا خَرَجُوْا إِلَى الْمَقَابِرِ: « اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الدِّيَارِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَإِنَّا إِنْ شَآءَ اللهُ بِكُمْ لَلَاحِقُوْنَ نَسْأَلُ اللهَ لَنَا وَلَكُمُ الْعَافِيَةَ ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** : او بريده ﷺ فرمائي : رسول الله ﷺ به صحابه كرامو ته ددے خبرے تعليم وركولو. كله چه دوى مقبرو ته اوتلو (چه داسے اووائي) السلام عليكم اهل الديار الخ په تاسو دِے سلام وي اے د مؤمنانو او مسلمانانو كورونو والو ! يقيناً مونږ كه الله اوغواړي تاسو سره يو ځائے كيدونكي يو۔ مونږ د الله نه ځان دپاره او ستاسو دپاره عافيت (يعني د آفتونو نه سلامتيا) غواړو۔ (مسلم)۔

**تشريح** : يعني دا د مقبرے ته د ورتللو دعاء ده چه كله په قبرونو نظر اولگي نو داسے دعاء دِے اووائي۔ پدے باره كښې مختلف قسم الفاظ په احاديثو كښې راغلي دي يو د هغينه ددے حديث الفاظ دي او دا هم صحيح دي، مسلم روايت كړيدى۔

أَهْلَ الدِّيَارِ : دا منصوب دے په اختصاص سره۔ يا حرف نداء حذف ده۔ يا مجرور دے بدل دے د ضمير (كُمْ) نه۔

قبرونو ته ئے كورونه اووئيل ځكه چه كور كښې ژوندي خلق راجمع وي نو مقبره د مړو د راجمع كيدو ځائے دے۔

ان شاء الله ئے د بركت دپاره وئيلے ده او پدے كښې د الله تعالىٰ د امر : ﴿ وَلَا تَقُوْلَنَّ لِشَيْءٍ اِنِّيْ فَاعِلٌ ذٰلِكَ غَدًا اِلَّا اَنْ يَّشَاءَ اللّٰهُ ﴾ امتثال دے۔ نو ان شاء الله په نسبت د انسانانو ده او پدے كښې الله تعالىٰ ته تفويض او ځان سپارل دي۔ بعض وائي : مشيئت راجع دے د دغه مړو سره كيدو ته يعنى الله تعالىٰ ته پته ده چه مونږ به ستاسو خوا ته درځو او كه بل ځائے به مړه كيږو۔

## الفصل الثاني

١٧٦٤ (٤) — عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: مَرَّ النَّبِيُّ ﷺ بِقُبُوْرٍ بِالْمَدِيْنَةِ فَأَقْبَلَ عَلَيْهِمْ بِوَجْهِهٖ فَقَالَ: « اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُوْرِ يَغْفِرُ اللهُ لَنَا وَلَكُمْ أَنْتُمْ سَلَفُنَا وَنَحْنُ بِالْأَثَرِ ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ غَرِيْبٌ.

ترجمه : ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي : (یوه ورځ) نبی کریم ﷺ په مدینه کښ په څه قبرونو ورتیر شو نو هغوی طرف ته ئې مخ راوګرزولو وې فرمایل : السلام علیکم۔ سلام دې وی په تاسو اې قبرونو والو ! الله تعالیٰ دې مونږ او تاسو ته بخښنه اُوکړی۔ تاسو زمونږ نه مخکښې تلی یئ او مونږ تاسو پسې راروان یو۔ (امام ترمذیؒ دا روایت نقل کړې او وئیلی ئې دی چه دا حدیث حسن غریب دې)۔

**تشریح** : دې روایت نه معلومه شوه چه په وخت د سلام کښې قبرونو ته مخ اړول مستحب عمل دې۔لیکن حدیث ضعیف دې۔

علی القاریؒ وائي : دا حدیث دلیل دې چه په مړی باندې د سلام اچولو په وخت کښې مستحب دا ده چه مخ ددهٔ د مړی مخ ته متوجه وی او په دعاء کښې به په همدې حالت کښې همیشه وی او پدې باندې د عامو مسلمانانو عمل دې۔ آه۔

شیخ البانیؒ پرې رد کوی چه دا استدلال ښکاره ضعیف دې وجه دا ده چه پدې حدیث کښې صرف دا خبره ده چه نبی ﷺ په وخت د سلام کښې قبرونو طرف ته مخ اړولې دې۔ او هرچه د مړو مخونو ته متوجه کیدل دی نو دا مستقل دلیل او نص ته حاجت لری او هغه نشته۔ او بل طرفته روایت هم ضعیف دې۔ (احکام الجنائزص (۱۹۷)۔

**سَلَفُنَا** : یعنی تاسو زمونږ نه مخکښې تلی یئ۔

**بِالْأَثَرِ**: یعنی مونږ ستاسو پسې روستو تلونکی یو۔او ستاسو په قدمونو پسې درروان یو۔

**درجة الحديث** : اسناده ضعیف : فی اسناده قابوس بن ابی ظبیان وهو ضعیف وحسنه الترمذی لشواهده فان معناه ثابت فی الاحادیث الصحیحة (احکام الجنائز ص (۱۹۷)۔

## الفصل الثالث

۱۷٦٥ (٥) — وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: كَانَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ كُلَّمَا كَانَ لَيْلَتُهَا مِنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ يَخْرُجُ مِنْ آخِرِ اللَّيْلِ إِلَى الْبَقِيْعِ فَيَقُوْلُ: «اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِيْنَ وَاَتَاكُمْ مَا تُوْعَدُوْنَ غَدًا مُؤَجَّلُوْنَ وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَاحِقُوْنَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِأَهْلِ بَقِيْعِ الْغَرْقَدِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او عائشه رضی الله عنها فرمائي: هرکله چه به ددې شپه د رسول الله ﷺ سره وه نو رسول الله ﷺ به د شپې په آخری حصه کښې بقیع (مقبرې) ته وتلو او داسې به ئې وئیل : السلام علیکم الخ سلام دې وی په تاسو اې مؤمن قومه ! تاسو ته هغه شې راغلې د کوم چه تاسو سره

وعده شوی (یعنی ثواب او عذاب) د سبا ورځې (یعنی د قیامت ورځې) تاسو ته (یوې معینې مودې پورې) مهلت درکړې شوې دې. او یقیناً مونږ هم که الله تعالیٰ غواړی تاسو سره ملاویدونکی یو. اې الله! بقیع غرقد والو ته بخښنه اُوکړه. (مسلم).

تشریح : بقیع الغرقد د مسجد نبوی خوا ته یو ځائې دې چه مخکښې به پکښې د غرقد ونې ولاړې وې او د نبی ﷺ په زمانه کښې به پکښې مړی ښخولې شو، مقبره وه. تر اُوسه پورې مقبره ده.

مُؤَجَّلُوْنَ : یعنی تاسو سبا ته روستو شوی یئ، یعنی سبا له قیامت کښې به درله الله بدلې درکوی.

---

١٧٦٦ (٦) – وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ : كَيْفَ أَقُوْلُ يَا رَسُوْلَ اللهِ؟ تَعْنِيْ فِيْ زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ قَالَ:« قُوْلِيْ: اَلسَّلَامُ عَلٰى أَهْلِ الدِّيَارِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُسْلِمِيْنَ وَيَرْحَمُ اللهُ الْمُسْتَقْدِمِيْنَ مِنَّا وَالْمُسْتَأْخِرِيْنَ وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَلَاحِقُوْنَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

ترجمه : او د عائشه رضی الله عنها نه روایت دې هغې اُوفرمایل : زۀ به څنګه وایم اې د الله رسوله! یعنی د زیارة القبور په وخت کښې به څه وایم؟ نبی ﷺ اُوفرمایل : وایه : السلام علی، اهل الخ سلام دې وی د مؤمنانو او مسلمانانو نه په کورونو والو او الله تعالیٰ دې زمونږ نه په مخکښنو او روستنو رحم اُوکړی او یقیناً مونږ که الله اُوغواړی تاسو سره پیوسته کیدونکی یو. (مسلم).

تشریح : دا روایت دلیل دې چه د زنانو دپاره مقبرې ته تلل جائز دی څکه که ناجائز وې نو رسول الله ﷺ به عائشې ته وئیلی وې چه ستاسو دپاره مقبرې ته تلل ناجائز دی نو د دعاء تپوس ئې څله کوو؟. بلکه هغې ته ئې دعاء اُوخودله، دا دلالت کوی چه هغوی دپاره مقبرې ته تلل جواز لری. خو په خاص شرطونو سره. دویم دا دلیل دې پدې چه په مقبره کښې قرآن لوستل نشته که دا ثابت وې نو دا مقام د بیان دې، رسول الله ﷺ به ورته هغه هم خودلې وې. خاصکر د سورة البقرې نه صراحةً منع راغلې ده.

---

١٧٦٧ (٧) – وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ النُّعْمَانِ يَرْفَعُ الْحَدِيْثَ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ قَالَ:« مَنْ زَارَ قَبْرَ أَبَوَيْهِ أَوْ أَحَدِهِمَا فِيْ كُلِّ جُمُعَةٍ غُفِرَ لَهٗ وَكُتِبَ بَرًّا ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِيْ شُعَبِ الْإِيْمَانِ مُرْسَلًا.

ترجمه : او محمد بن نعمان دا حديث نبي ﷺ ته پورته كوي چه هغه فرمايلي دي : چا چه د خپل مور او پلار د دواړو يا د يود قبر هره جمعه ملاقات اُوكړو نو هغه ته به بخنه اُوكړے شي او هغه به (د ملائكو په صحيفو كښ) نيك عمله اُوليكلے شي۔ (بيهقي په شعب الايمان كښ په طريقه د ارسال روايت كړے)۔

تشريح : محمد بن نعمان بن بشير انصاري ابوسعيد ئے كنيه ده د كبار التابعين نه ثقه راوي دے۔

وَكُتِبَ بَرًّا : يعني نيك عمله به اُوليكلے شي يعني ابرارو كښ به حساب شي۔ د جُمعے په ورځ د زيارة القبور په باره كښ چه څومره روايات راغلي دي هغه تول ضعيف دي۔ لهذا زيارة القبور د جُمعے د ورځے پورے د خاص كولو په باره كښ هيڅ فضيلت نشته، هر وخت چه ځي تلے شي، پدے باب كښ د ورځو خاص فضيلت نشته۔

درجة الحديث : اسناده موضوع : راجع سلسلة الاحاديث الضعيفة (٤٩) يحيى بن العلاء البجلي كذاب وضاع ۔

---

١٧٦٨ (٨) – وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ:« كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ فَزُوْرُوْهَا فَإِنَّهَا تُزْهِدُ فِي الدُّنْيَا وَتُذَكِّرُ الْآخِرَةَ ».رَوَاهُ ابْنُ مَاجَه.

ترجمه : او ابن مسعود ﷺ روايت كوي چه رسول الله ﷺ فرمايلي دي : ما (مخكښ) تاسو د قبرونو د ملاقات نه منع كړي وئ (ليكن اُوس) د قبرونو ملاقات كوئ ځكه چه دا په دنيا كښ بے رغبتي پيدا كوي او آخرت ياد وي۔ (ابن ماجة)۔

تشريح : دے حديث كښ د زيارة القبور فائدے اُوخودلے شوے چه هغه دنيا كښ بے رغبتي پيدا كول او آخرت يادول دي۔

درجة الحديث: اسناده ضعيف : اخرجه ابن ماجه (١٥٧١) وحسنه البوصيري والمباركفوري في المرعاة وفيه عنعنة ابن جريج ۔

---

١٧٦٩ (٩) – وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ ﷺ :أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ لَعَنَ زَوَّارَاتِ الْقُبُوْرِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيْثٌ حَسَنٌ صَحِيْحٌ.

وَقَالَ: قَدْ رَأَى بَعْضُ أَهْلِ الْعِلْمِ أَنَّ هٰذَا كَانَ قَبْلَ أَنْ يُرَخِّصَ النَّبِيُّ ﷺ فِيْ زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ فَلَمَّا رَخَّصَ دَخَلَ فِيْ رُخْصَتِهِ الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ. وَقَالَ بَعْضُهُمْ:إِنَّمَا كُرِهَ زِيَارَةَ الْقُبُوْرِ

لِلنِّسَاءِ لِقِلَّةِ صَبْرِهِنَّ وَكَثْرَةِ جَزَعِهِنَّ. تَمَّ كَلَامُهُ.

**ترجمه :** او ابو هريره ﷺ روايت کوی چه رسول الله ﷺ د قبرونو ملاقات کونکو ښځو باندے لعنت فرمائيلے دے۔ (احمدؒ، ترمذیؒ، ابن ماجهؒ) او امام ترمذیؒ وئيلی دی : دا حديث حسن صحيح دے۔ او دا ئے (هم) فرمايلی دی : چه د ځينی علماؤ رائے دا ده چه دا (د ښځو زيارة القبور نه منع) په هغه وخت کښ وه چه نبی کريم ﷺ د زيارة القبور په باره کښ رخصت نهٔ وو ورکړے خو کله ئے چه رخصت ورکړو نو پدے رخصت کښ سړی او ښځے (دواړه) برابر دی۔ او ځينی علماء وائی : چه د زنانو دپاره د زيارة القبور پدے وجه بد گڼلے شوے وو چه د دوی صبر کم دے او جزع فزع ئے زياته ده۔ (د امام ترمذیؒ خبره پوره شوه)۔

**تشريح : زَوَّارَاتِ الْقُبُوْرِ:** دا صيغه د مبالغے ده دلالت کوی په دے چه زنانه به ډيرے اوبار بار زيارة القبور له نهٔ ځی۔

او کوم روايت د ابن عباسؓ کښ چه زائرات القبور راغلے دے (احمد، ابوداود، نسائی) نو هغه به محمول وی په ابتداء حالت باندے چه اول ناجائز وو بيا منسوخ شو او رخصت راغلو۔ يا محمول دے پدے چه ناجائز طريقے سره زيارة القبور کوی لکه جزع فزع کوی، چغے وهی، ډول کوی۔

د امام ترمذیؒ د قول خلاصه دا ده چه د بعض اهل علمو دا رائے ده چه دا لعنت په هغه زمانه کښ وو چه نبی ﷺ په زيارة القبور کښ اجازت نهٔ وو ورکړے او هر کله ئے چه اجازت ورکړو نو پدے کښ سړی او ښځے دواړو ته اجازه شوه نو دواړو دپاره زيارة القبور جائز بلکه مستحب عمل دے۔ وهو الظاهر۔ او بعض نورا اهل علم وائی چه زيارة القبور ښځو دپاره ځکه مکروه دے چه د هغوی صبر کم دے او جزع فزع او بے صبری ئے زياته ده لهذا دا ممانعت د هغوی دپاره اُوس هم باقی دے ليکن دا قول صحيح نهٔ دے ځکه چه د منع دا علت په هره ښځه کښ نشی جاری کيدے ولے په زنانو کښ ډيرے هوښيارے، عالمے، تقوی دارے زنانه شته چه هغوی د ډيرو سړو نه په صبر کښ تکړه وی نو د ټولو ښځو دپاره ځکه زيارة القبور ناجائز شی بلکه ددے علت نه د زيارة القبور شرط معلوميږی او هغه دا چه زنانه زيارة القبور کولے شی پدے شرط چه جزع فزع به نهٔ کوی، که کومے زنانه جزع فزع کوله نو هغے دپاره به تلل حرام وی۔ او نور شرطونه د نورو احاديثو نه معلوم دی چه (٢) خاص بابا نه به نهٔ ځی۔ (٣) سفر به نهٔ کوی۔ (٤) شرك به نهٔ کوی۔ (٥) ډول او سندرغاړ به نهٔ کوی۔ (٦) او د خاوند په اجازه به ځی۔ پدے شرطونو سره عمل په ټولو احاديثو راځی۔

**درجة الحديث** : اسناده حسن : اخرجه احمد (٢/٣٣٧،٣٥٦) والترمذي (١٠٥٦) وابن ماجه (١٥٧٦) وصححه ابن حبان (٧٨٩) ويشهد له حديث ابن عباس وحديث حسان راجع احكام الجنائز للالباني۔

---

**١٧٧٠ (١٠) – وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كُنْتُ أَدْخُلُ بَيْتِيَ الَّذِيْ فِيْهِ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ وَإِنِّيْ وَاضِعٌ ثَوْبِيْ وَأَقُوْلُ: إِنَّمَا هُوَ زَوْجِيْ وَأَبِيْ فَلَمَّا دُفِنَ عُمَرُ ﷺ مَعَهُمْ فَوَاللهِ مَا دَخَلْتُهُ إِلَّا وَأَنَا مَشْدُوْدَةٌ عَلَيَّ ثِيَابِيْ حَيَاءً مِنْ عُمَرَ. رَوَاهُ أَحْمَدُ.**

**ترجمه** : او عائشه رضي الله عنها فرمائي : زهٔ به هغه کوټې ته داخليدم چه په هغې کښې رسول الله ﷺ (او ابوبکر صديق) دفن وو۔ نو ما به (د خپل بدن نه) کپړه (يعني څادر) کيخودو او (زړهٔ کښې به مې) وئيل چه دا (رسول الله ﷺ) خو زما خاوند او پلار (ابوبکر صديق) دی۔ (او دا دواړه پردی څوك نهٔ دی نو حجاب څله کوم؟) ليکن کله چه (پدې حجره کښې) د هغوی سره عمر فاروق ﷺ دفن شو نو قسم په الله ! زهٔ هغه حجرې ته نهٔ يم داخله شوې مګر په ما باندې د عمرؓ د حياء په وجه جامې تاو کړې شوی وی۔ (احمدؒ)۔

**تشريح** : دا حديث مشرکانو د څان دپاره دليل جوړ کړيدې هغوی وائی که مړی ليدل نهٔ کولې نو عائشېؓ ترې حياء څنګه کوله ؟ هرکله چه عائشهؓ ترې حياء کوی دا دليل دې چه مړی ليدل کوی۔

**جواب** : پدې کښې بعض علماء داسې جواب کوی چه دلته مضاف حذف دې يعني (حياء من آل عمر) يعني تر اُوسه پورې دې کوټې ته بل څوك نشو راتلې خو هرکله چه عمر پکښې دفن کړې شو نو دې کوټې ته به د عمرؓ د کورنۍ خلق هم راځی نو کيدې شی چه په هغې کښې به د عائشې غير محرم ناست وی نو څکه به عائشېؓ د هغوی نه حياء کوله۔ دا تاويل بعيد دې۔

٢– **جواب** : ظاهر دا ده چه د مړو نه هم حياء شته لکه څنګه چه د ژوندو نه حياء کيږی او په حديث کښې دا نشته چه مړی ليدل کوی يائې نهٔ کوی۔ بلکه علماؤ او تولو شارحينو وئيلی دی چه د زيارة القبور په وخت د مړی احترام پکار دې څومره احترام چه د هغه په ژوند کښې کيدهٔ۔ طيبیؒ وائی : دا حديث واضح دليل دې ددې دپاره چه د اهل القبور احترام واجب دې او هريو د هغوی نه به نازلولې شی په هغه مرتبه کوم چه د هغه دپاره په ژوند کښې وی سره د لحاظ ساتلو د ادب نه د هغوی سره په اندازه د مرتبو د هغوی۔ والله اعلم آه۔ ابن ابی الدنيا په کتاب القبور کښې د سليم بن غفر په باره کښې نقل کړيدی چه دا يوه ورځ په مقبره تيريدو او متيازو تړنګ

كرې وو نو دۀ ته اُووئيل شو چه كه دلته كوز شې او متيازې اُوكړې نو مسئله به آسانه شي.
هغه اُووئيل : سبحان الله ! قسم په الله زۀ د مړو نه داسې حياء كوم لكه څنګه چه زۀ د ژوندو نه حياء كوم. (ذكره القارى)

نو يو د مړى ليدل دى او بل د انسان خپله ذاتى حياء ده نو حياء د انسان په خپل نفس كښې وى چه مثلاً د هغه شخص مرتبه او هيبت رایاد كړى او حياء پكښې پيدا شى اګر كه هغه شخص دې حياء كونكى ته نۀ ګورى.

او كله انسان د بوټى او حيواناتو او جماداتو نه حياء كوى، كله چه په نفس كښې حياء زياته وى نو داسې حالت پيدا كيږى. نو دلته عائشې رضى الله عنها د د خپلې ډيرې حياء د وجه نه د قبر نه حياء كړې ده نو پدې كښې دا خبره نشته چه عمرؓ به ورته كتل.

په سير اعلام النبلاء كښې راځى چه ابوتميم به په هغه كمره كښې نۀ اوده كيدو چه قرآن به پكښې پروت وو. د الله تعالىٰ د كتاب نه به ئې حياء كوله. د ډيرې حياء په وجه په انسان كښې دا حالت راځى چه د هر څه نه حياء كوى تردې چه مؤمن د زمكې، د اندامونو، د ملائكو او الله تعالىٰ نه حياء كوى لكه دا خبره مونږ په الفوائد (٣) كښې تفصيلاً ذكر كړيده. دا حديث چه كومو علماؤ ضعيف كړيدې لكه (راشدىؒ) نو حق ته نۀ دې رسيدلى.

والله تعالىٰ اعلم وعلمه اتم واحكم وبالله التوفيق.

**درجة الحديث** : اسناده صحيح على شرط الشيخين: اخرجه احمد (٢٥٧٠١) رجاله رجال الصحيح (شعيب والهيثمى).

وصلى الله على نبينا محمد وعلى آله وصحبه وسلم تسليماً كثيراً

وَاَنْتَهِىْ كلامى بتسبيح ربى : وسبحانك اللهم ربنا وبحمدك اللهم اغفر لى

تم المجلد السادس من الحق الصريح شرح مشكاة المصابيح

ويليه الجزء السابع ان شاء الله تعالىٰ، واوله كتاب الزكاة بعون الله العظيم الغفار

OOOOOOOO

# فهرست مضامین الحق الصریح

